وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ (القرآن)

# فَتْحُ الْهِدَايَة

پښتو شرح

# هِدَايَة

د اول ځل لپاره په آسانه معیاري پښتو
د هدایې یوه جامع شرحه

ژباړه او ترتیب


مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه



صداقت کتبخانه
کندهار

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهدایه

## پښتو شرح

# هدایه

د اول ځل لپاره په آسانه معیاري پښتو
د هدایې یوه جامع شرحه

- د حدیثونو تخریج
- د متن بشپړ اعراب
- صرفي تحقیق
- د لغاتو حل

پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله یوه جامع مقدمه

- تعیین د قول راجح
- د هرې جملې تر څنګ ژباړه
- د عنواناتو اضافه
- صورت د مسئلې

دریم ټوک

کتاب النکاح - فصل فیما تحل به المطلقة

ژباړه او ترتیب:
مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتب خانه



نى
سه
سم
یث
ذاك
عن
معانیه
كلّ ما
لغات
للغة
صاحب
سرحت
حسن
الشرح
وأرجوا

## التقريظ الرابع لشيخ الدعوة والارشاد العالم الصمداني

## مولوي اطيع الله صاحب دامت فيضه الجاري

بسم الله الرحمٰن الرحيم

الحمد لله وليّ الفقهاءِ العاملينَ القائلِ فِي محكمِ تنزيله: ﴿فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ﴾، والصّلاةُ والسلام على رسوله الأمين قائدِ الْغرّ الْميامينِ الّذى حَضّ عَلَى التّفقُّه فِى الدين فقال: "مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ"، وعَلى اله وَصَحْبِه إلى يوم الدين، ومن تبعهم بإحسان من المؤمنين؛ وبعد:

فخيرُ شُغْل المؤمن مَعرفة الحلال من الحرام والصحيح من الفاسد، وحُسْنِ حظّ الفقهاء فَعِلْمُ الفقه كلُه مبنىٌ على هٰذا، وعليه ما فيه، وَقد صُنّفَتْ وأُلّفَتْ كتبٌ كثيرةٌ فى هٰذا الفنّ يُمكن أنّ لا يُحصيها العدّ لا سيّما فــى الفقــه الحنفىّ منه. وكتاب الهداية للمرغيناني رَحِمَهُ الله من اعظم الكتب فى الفقه الحنفى ولا يخفىٰ علىٰ أحدٍ من أهل العلــمِ منزلتُه وأساسيّـــتُـــهُ فى الفقه الحنفيّ؛ فنظراً لأهمّية هٰذا الكتاب قام العلماء بشرحه مرارًا فى القــديم والحــديث بلُغاتٍ مختلفةٍ إلّا أن كل شارح راعىٰ فى شرحه استعداد الطلبة مِنْ أهل زمانه، فَشَرَحَهُ حسب ذكــائهم فــى ذاك الزمان كفتح القدير والعناية وغير ذٰلك من الشروحات، أمّا فى عصرنا فنرى الإنحطاط العلميّ ورغبة الطلبة عن العلم يزداد يوماً فيوماً وتَكْثُـــــرُ البلادةُ ويذهب الذكاءُ فى العلم، ولّما كان "الهداية" كتابٌ تعمّقتْ معانيه وعباراتُه لا سيّما على طلبة عصرنا هٰذا، اشْتدّ الاحتياجُ إلى شرحه شرحاً بسيطاً ومُوجَزًا محتويًا على كلّ ما يحتاج إليه الطالب من: ① إعرابِ العبارة ② والتحقيق الصرفّى لصيغه المشكلة ③ وحل مشكل اللغات ④ وتعيين القول الراجح فيه ⑤ وصُوَرِ مسائله بنهجٍ بسيط؛ فكان هٰذا الاحتياج باقياً وخاصةً فى اللغــة البشتو، وقد لــبّىٰ هٰذا الاحتياجَ الشرحُ الْمسمّى "بفتح الهداية" رتّبه أخونا فى الله الفاضل الشابُ صاحبُ القلم حبيب الرحمٰن البدلى "أدام الله خدمته للعلم"، قد قدّم لي نسخةً من هٰذا الشرحِ للنّظر فيه، فسرّحتُ النظر فى بعض مواضع منه؛ فوجدتُه أحسن شرحٍ فى هٰذه اللغة مُعلّلاً بالتحقيق الصرفى وإعرابِ حســن وصُــوَرِ مسائلٍ بحيث يُمكن أن يستفيد منه الخاصّ والعام، وسيجد القارئُ كل ما وَصَفْتُه فى هٰذا الشرح حينما يطالعه؛ فجزى الله راقمه على هٰذا العمل الشاقّ خير الجزاء، وأفادَ به كُلّ طالبِ خير الإفادة، وأرجوا المولى أن يجعله فى ميزان حسناته إنه سميعٌ قدير، وبالإجابة جدير.

المُصدّق

**اطيع الله عفى عنه**

خادم الأحاديث النبوية على صاحبها ألف صلوة

في الجامعة الاسلامية علامه تاون چمن

۱۶/ رمضان المبارک/ ۱۴۳۸ ھ

## الصورة الأصلية لتقريظ شيخ مولوي اطيع الله صاحب

الحمد لله ولي الفقهاء العاملين القائل في محكم تنزيله: فلولا نفر من كل فرقة منهم طائفة ليتفقهوا في الدين. والصلاة والسلام على رسوله الأمين قائد الغر المياميين الذي حض على التفقه في الدين. فقال من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين وعلى آله وصحبه إلى يوم الدين ومن تبعهم بإحسان من المؤمنين. وبعد. فيحتاج المؤمن معرفة الحلال من الحرام والصحيح من الفاسد ولهذا حث الفقهاء فعلم الفقه كله مبني على هذا وفيه ما فيه وقد صنفت وألفت كتب كثيرة في هذا الفن يمكن ان لا يحصيها العد لا سيما في الفقه الحنفي منه. وكتاب الهداية للمرغيناني رحمه الله من أعظم الكتب في الفقه الحنفي ولا يخفى على أحد من أهل العلم منزلته وأساسيته في الفقه الحنفي فنظراً لأهمية هذا الكتاب قام العلماء بشرحه مراراً في القديم والحديث بلغات مختلفة إلا أن كل شارح راعى في شرحه استعداد الطلبة من أهل زمانه فشرحه حسب ذكائهم في ذلك الزمن كفتح القدير والعناية وغير ذلك من الشروحات أما في عصرنا فنرى الانحطاط العلمي ورغبة الطلبة من العلم يزداد يوما فيوماً وتكثر البلادة ويذهب الذكاء في العلم ولما كان كتاب الهداية كتاب تعمقت معانيه وعباراته لا سيما على طلبة عصرنا هذا اشتد الاحتياج إلى ترجمة شرحاً بسيطاً وموجزاً محتوياً على كل ما يحتاج إليه الطالب من إعراب العبارة والتحقيق الصرفي لصيغه المشكلة وحل مشكل اللغات وتعيين القول الراجح فيه وصور مسائله بنهج بسيط. فكان هذا الاحتياج باقياً وخاصة في اللغة البشتو وقد لبى هذا الاحتياج الشرح المسمى بفتح الهداية رتبه أخونا في الله .... الفاضل الشاب صاحب القلم حبيب الرحمن المدني ادام الله خدمته للعلم قد قدم لي نسخة من هذا الشرح للنظر فيه فسرحت النظر في بعض مواضع منه فوجدته أحسن شرح في هذه اللغة مكللاً بالتحقيق الصرفي وإعراب حسن وصور مسائل بحيث يمكن ان يستفيد منه الخاص والعام و سيجد القارئ كل ما وصفته في هذا الشرح حينما يطالعه فجزى الله راقمه على هذا العمل الشاق خير الجزاء وأفاد به كل طالب خير الإفادة وأرجو المولى أن يجعله في ميزان حسناته انه سميع قدير وبالإجابة جدير

المصدق اخوكم في الله اطيع الله عفي عنه

خادم الاحاديث النبويه على صاحبها الف صلوة وسلام

في الجامعة الاسلاميه (علامه تاؤن) چمن

١٦ رمضان المبارک ١٤٣٩ھ بمطابق 2018

# فهرس

## بَابُ الْقَسْمِ



## كِتَابُ الرَّضَاعِ

# کِتَابُ النِّكَاحِ

## (دا) کتاب د نکاح (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح:** کله چي مصنف رَحِمَهُ الله له حج او نورو عباداتو څخه فارغ سو، نو اوس د "معاملاتو" په بیان شروع کوي، او د قدوري د متن په خلاف اول د "نکاح" په بیان شروع کوي؛ ځکه نکاح په یوه اعتبار سره "عبادت" دی، او په بل اعتبار سره د خاوند او ښځي په مینځ کي "معامله" ده، عبادت ځکه دی چي نکاح کول د انبیاءِ کرامو یو اهم سنت دی، او په دې سره د انسان نیم دین او ایمان پوره کیږي؛ او معامله ځکه ده چي د دې په ذریعه انسان د ښځي د یوې اهمي حصې (یعني د بُضع) مالک ګرځي، نو کله چي نکاح عبادت هم دی، او معامله هم ده، نو ځکه یې تر عباداتو وروسته ذکر کړه، او تر کتابُ البیوع یې مخکي ذکر کړه، ځکه هغه خالص معاملات دی، د عبادت هیڅ معنیٰ پکښي نسته. (او په قدوري کي کتابُ النکاح تر کتابُ البیوع وروسته ذکر سوی دی).

**د نکاح لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د نکاح لغوي معنیٰ ده: "جمع کول، سره یو ځای کول".

د نکاح شرعي او اصطلاحي معنیٰ ده: "هُوَ عَقْدٌ يُفِيْدُ مِلْكَ الْمُتْعَةِ"، (یعني نکاح یو داسي عقد دی چي د هغه په ذریعه انسان د ملکِ مُتعه [بضع] مالک کیږي).

څرنګه چي نکاح په لغت کي "ضم" او "جمع کولو" ته وایي او دا معنیٰ په عملي توګه په "وطي" کي سته، نو ځکه نکاح د حقیقت له رویه د وطي په معنیٰ سره استعمالیږي، او څرنګه چي "عقدِ نکاح" د "قدرت علی الوطي" سبب دی، نو ځکه نکاح مجازاً د "عقد" په معنیٰ سره هم استعمالیږي.

**د نکاح قسمونه:** په شرعي توګه د نکاح درې (۳) قسمونه دي: ① سنتِ مؤکده، ② واجب، ③ مکروه.

که انسان د ښځي پر نفقه او خرچه قادر وي، او د مهر اداء کولو طاقت لري، او پر جماع هم قدرت لري، نو په داسي حال کي نکاح کول سنتِ مؤکده دي.

پر پورتنیو شیانو د قدرت لرلو سره، سره که د انسان خواهشِ او شوق د ښځو طرف ته غالب او ډېر زیات وي، نو په داسي صورت کي نکاح کول واجب دي.

او که په پورتنیو شیانو کي انسان پر یوه شي قدرت نه لري، نو بیا نکاح مکروه ده، یعني په داسي صورت کي نکاح نه کول غوره دي.

صاحب د بدائع علامه کاساني رَحِمَهُ الله د نکاح يو بل قسم هم بيان کړی دی، او هغه دا چې د شهوت د غلبې (يعني د توقان) او په زنا د اخته کېدلو په صورت کې نکاح کول فرض دي.

تاسي دا يو جلا قسم وګڼئ! يا يې د واجب نکاح مترادف (هَمْ معنی) وګڼئ!

## د نکاح تړلو طريقه

قَالَ فرمايي اَلنِّكَاحُ يَنْعَقِدُ بِالْاِيْجَابِ وَالْقُبُوْلِ نکاح تړل کيږي په ايجاب او قبول سره بِلَفْظَيْنِ د دوو داسي لفظونو په ذريعه يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنِ الْمَاضِيْ چې په هغه دواړو لفظونو سره تعبير کيږي له ماضي صيغې څخه [يعني چې هغه دواړه لفظونه په ماضي صيغه سره بيان کړل سي] لِأَنَّ الصِّيْغَةَ وَإِنْ كَانَتْ لِلْإِخْبَارِ وَضْعًا ځکه د ماضي صيغه که څه هم د "خبر ورکولو" لپاره وضع سوې ده فَقَدْ جُعِلَتْ لِلْإِنْشَاءِ شَرْعًا لېکن په شرعي توګه د انشاء لپاره متعيّنه سوې ده دَفْعًا لِلْحَاجَةِ د حاجت ليري کولو لپاره وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظَيْنِ او [همدارنګه] په دوو داسي لفظو سره [هم] تړل کيږي يُعَبَّرُ بِأَحَدِهِمَا عَنِ الْمَاضِيْ چې په يوه سره تعبير کيږي له ماضي څخه [يعني د ماضي له صيغې څخه] وَبِالْآخَرِ عَنِ الْمُسْتَقْبَلِ او په بل سره [تعبير کيږي] له مستقبل څخه مِثْلُ: أَنْ يَقُوْلَ مثلاً: [له خاوند او ښځې څخه يو] داسي ووايي زَوِّجْنِيْ زَوِّجْنِيْ (زما سره نکاح وکړه!) فَيَقُوْلُ: زَوَّجْتُكَ او [بل په جواب کي ورته] ووايي: زَوَّجْتُكَ (ما ستا سره نکاح وکړه) لِأَنَّ هٰذَا تَوْكِيْلٌ بِالنِّكَاحِ ځکه چې دا [د زَوِّجْنِيْ ويل] د نکاح وکيل جوړول دي وَالْوَاحِدُ يَتَوَلّٰى طَرَفَيِ النِّكَاحِ او [فقط] يو سړی [هم] وکيل جوړېدای سي د نکاح د دواړو طرفونو [يعني د ايجاب او قبول] عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى لکه [اَينده] چې به موږ د دې هغه بيان وکړو، انشاء الله تعالیٰ.

**اللغات:** ﴿يَنْعَقِدُ﴾ د إنفعال مضارع ده: مقرر کېدل، قايمېدل، تړل کېدل. ﴿إِيْجَاب﴾ د إفعال مصدر دی: واجبول، لازمول (دلته څخني مراد هغه کلام دی چې د نکاح د عقد په باره کي اول د عاقدينو له طرفه صادر سي). ﴿قَبُوْل﴾ او قُبُوْل: د سمِع مصدر دی: قبلول (قبولول)، منظورول، منل (دلته څخني مراد هغه کلام دی چې تر ايجاب وروسته د بل عاقد له طرفه صادر سي). ﴿يُعَبَّرُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله صيغه ده: تعبيرول، بيانول. ﴿إِخْبَار﴾ د إفعال مصدر دی: خبر ورکول (خبرول). ﴿إِنْشَاء﴾ دا هم د إفعال مصدر

دی: پیدا کول، ایجادول (خلقول). ﴿تَوْكِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: وکیل جوړول، نایب جوړول (اختیار ورکول).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې کله سړی او ښځه د شرعي ګواهانو په حضور کې د ماضي په صیغه سره ایجاب او قبول وکړي، نو د هغو نکاح وتړل سوه (او ښځه د سړي زوجه [ماينه] سوه). مثلاً سړی ایجاب وکړي او ووایي: "زَوَّجْتُكِ" (ما ستا سره نکاح وکړه)، نو اوس که ښځه د سړي دا ایجاب قبول کړي او "قَبِلْتُ یا رَضِيْتُ یا زَوَّجْتُ نَفْسِيْ مِنْكَ" د ماضي په صیغه سره ووایي، نو د دواړو په مینځ کې نکاح وتړل سوه، اوس دوی ته خاوند او ښځه (ماينه) ویل کېدای سي، او یو تربله ازدواجي تعلقات قايمولای سي.

**بِلَفْظَيْنِ**: په عبارت کې د "بِلَفْظَيْنِ" په قید سره و دې طرف ته اشاره ده چې ایجاب او قبول به لفظي وي یعني په خوله سره به ذکر سوي وي، په تحریري ایجاب او قبول سره نکاح نه سي تړل کېدای. یعني د خط او نوشتې په ذریعه په ایجاب او قبول سره نکاح قائمیږي.

**يعبّر بهما عن الماضي**: یعني د ایجاب او قبول دواړه لفظونه به فعلِ ماضي وي، بیا نکاح تړل کیږي.

**لأن الصيغة إلخ**: په دې جمله سره مصنف رَحِمَهُ الله د یو إشکال جواب ورکوي، او د جواب په ضمن کې د دې خبرې دلیل هم بیانوي چې ایجاب او قبول به ولې د ماضي په صیغه سره وي؟، إشکال دا دی چې نکاح د إنشاء له قبیلې څخه ده، ځکه د إنشاء معنیٰ ده: "إِثْبَاتُ مَا لَمْ يَكُنْ ثَابِتًا" (نا ثابت شی ثابتول)، او دا معنیٰ په نکاح کې سته، ځکه چې نکاح یو داسې شی ثابتوي کوم چې تر دې مخکې ثابت نه وي (یعني اِسْتِمْتَاع بِالْمَرْأَةِ) لهذا کله چې په نکاح کې د إنشاء معنیٰ سته، نو باید د نکاح د انعقاد او تړون لپاره داسې لفظ مقرر سي چې هغه صراحتاً د إنشاء پر معنیٰ دلالت کوي، لیکن تاسو د ماضي صیغه د نکاح د تړلو لپاره مقرره کړې ده، د ماضي صیغه خو د إنشاء لپاره وضع سوې نه ده، بلکې د إخبار لپاره وضع سوې ده، یعني د داسې شي د خبر ورکولو لپاره وضع سوې ده چې هغه په تېره زمانه کې واقع سوی وي، او نکاح خو په راروان وخت کې تړل کیږي، نو د ماضي په صیغه سره به د نکاح تړل څرنګه صحیح وي؟

د دې إشکال او اعتراض په جواب کې مصنف رَحِمَهُ الله وايي: "لأن الصيغة وإن كانت..." یعني موږ هم دا منو چې د ماضي صیغه د إخبار لپاره وضع سوې ده، لكن څرنګه چې صراحتاً د إنشاء پر معنیٰ باندې د دلالت کولو لپاره په شریعت کې هیڅ صیغه نه ده وضع سوې، او إنشاء ته ضرورت سته.

ځکه چي د إنشاء سره اړوند مسئلو او أحکامو ته هر وخت د خلګو ضرورت پيښيږي، نو د دې ضرورت د مخنيوي لپاره د ماضي صيغه د إنشاء لپاره منتخب او متعين سوه.

د دې خبري چي "ايجاب او قبول به دواړه د ماضي په صيغه سره وي" دويم دليل دا دی چي په قرآن کريم کي هم د ايجاب او قبول لپاره د ماضي صيغه استعمال سوې ده، الله تعالیٰ فرمايي: ﴿فَلَمَّا قَضٰى زَيْدٌ مِنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا﴾ [سورة الأحزاب، ٣٧]، په دې آيت کي "زَوَّجْنَا" د ماضي صيغه ده، او په حديث کي هم د ايجاب او قبول لپاره د ماضي صيغه استعمال سوې ده.

وينعقد بلفظين إلخ: د نکاح تړلو دويم شکل دا دی چي د ايجاب او قبول دواړه لفظونه د ماضي په صيغه سره نه وي، بلکي يو د أمر صيغه وي چي هغه ته د مستقبل صيغه وايي، او دويم د فعلِ ماضي صيغه وي، نو په دې صورت کي هم نکاح تړل کيږي، مثلاً له عاقِدَينو څخه سړی د امر صيغه استعمال کړي او داسي ووايي: "زَوِّجْنِيْ" (يعني ته خپل ځان زما په نکاح کړه!، او زما سره نکاح وکړه!) او ښځه خپل ځان د هغه په نکاح کړي، نو نکاح وتړل سوه (او ښځه د سړي زوجه سوه).

لأن هٰذا إلخ: له دې ځايه دليل بيانوي چي په دې صورت کي که څه هم دواړه لفظونه د ماضي صيغې نه دي، خو بيا هم د نکاح د صحيح کېدلو دليل دا دی چي "زَوِّجْنِي" ويل ايجاب نه دی، بلکي د نکاح وکيل جوړول دي، ګواکي د "زَوِّجْنِي" په ويلو سره سړي ښځه د خپل نکاح وکيله جوړه کړه، او په نکاح کي يو انسان (شخصِ واحد) له دواړو طرفونو څخه وکيل جوړېدای سي، نو دلته ښځه د نکاح د دواړو طرفونو يعني د ايجاب او قبول دواړو وکيله جوړه سوه، او هغې د ماضي صيغه استعمال کړې ده، نو ګواکي د ايجاب او قبول دواړو لپاره يې د ماضي صيغه استعمال کړه، نو ځکه به په دې صورت کي هم نکاح تړل کيږي. خلاصه دا چي کله په نکاح کي وکيل ماضي صيغه استعمال کړه، نو ګواکي له دواړو طرفونو څخه د ماضي صيغه استعمال سوه، ځکه چي شخصِ واحد د نکاح د دواړو طرفونو متولي او وکيل جوړېدای سي.

لېکن په بيع او شراء کي شخصِ واحد د دواړو طرفونو وکيل نه سي جوړېدای، يعني يوازي يو انسان ايجاب او قبول دواړه نه سي کولای، د دې دليل او تفصيل به په "كتابُ البيوع" کي بيان سي، په "عَلٰى مَا نُبَيِّنُه" سره يې همدې ته اشاره کړې ده.

## د نکاح تړلو الفاظ

وَيَنْعَقِدُ [همدارنګه] نکاح تړل کيږي بِلَفْظِ النِّكَاحِ په لفظ سره د نکاح وَالتَّزْوِيجِ وَالْهِبَةِ او [په لفظ سره] د تزويج او هبې وَالتَّمْلِيكِ وَالصَّدَقَةِ او [په لفظ سره] د تمليک او صدقې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ او ويلي دي امام شافعي رَحِمَهُ الله لَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَالتَّزْوِيجِ چې نکاح نه تړل کيږي مګر په لفظ سره د نکاح او [په لفظ سره] د تزويج لِأَنَّ التَّمْلِيكَ لَيْسَ حَقِيقَةً فِيهِ ځکه چې تمليک خو نه په نکاح کې حقيقت دی وَلَا مَجَازًا عَنْهُ او نه له نکاح څخه مجاز دی ايعني نه حقيقتاً په نکاح کې تمليک سته او نه د مجاز په اعتبار سره] لِأَنَّ التَّزْوِيجَ لِلتَّلْفِيقِ ځکه چې تزويج د تلفيق (مبنلولو) لپاره دی وَالنِّكَاحَ لِلضَّمِّ او نکاح د ضم (يو ځای کولو) لپاره ده وَلَا ضَمَّ وَلَا ازْدِوَاجَ بَيْنَ الْمَالِكِ وَالْمَمْلُوكَةِ أَصْلًا او د مالک او مملوک په مينځ کې نه څه ضم سته او نه ازدواج وَلَنَا او زموږ دليل دا دی أَنَّ التَّمْلِيكَ سَبَبٌ لِمِلْكِ الْمُتْعَةِ فِي مَحَلِّهَا چې تمليک د متعې په محل کې د ملک متعې سبب دی بِوَاسِطَةِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ په واسطه سره د ملک رقبې [يعني که څوک د رقبې يعني د مينځې مالک سي نو د دې په سبب سره د ملک متعې يعني د وطي او جماع هم مالک کيږي] وَهُوَ الثَّابِتُ بِالنِّكَاحِ او ملک متعه د نکاح په ذريعه ثابت دی [يعني ملک متعه حقيقتاً په نکاح سره ثابتيږي] وَالسَّبَبِيَّةُ طَرِيقُ الْمَجَازِ او سببيت [هم] د مجاز لاره [او د مجاز علاقه] ده.

**اللغات:** ﴿تَزْوِيج﴾ د تفعيل مصدر دی: واده ورکول، نکاح ورکول (نکاح تړل)، ﴿هِبَة﴾ تحفه ورکول، هديه ورکول، ﴿تَلْفِيق﴾ د تفعيل مصدر دی: دوه شيان سره مبنلول (لګول)، ﴿ضَمّ﴾ د نصر مصدر دی: يو شی د بل شي سره يو ځای کول (جمع کول)، ﴿اِزْدِوَاج﴾ د افتعال مصدر دی: نکاح، واده، (مبنلول، لګول)، ﴿مِلک متعه﴾ (له ښځې څخه) د نفع اخيستلو ملکيت، يعني د ښځې سره د جماع او وطي کولو حق، د "ملک بضعه" هم دغه معنیٰ ده، ﴿مِلک رقبه﴾ د غاړې ملکيت، يعني د غلام او مينځې مالک کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله موږ ته دا راښيي چې په کومو الفاظو سره نکاح تړل کېدای سي، او په کومو الفاظو سره نه سي تړل کېدای سي. نو فرمايي چې زموږ په نېز د نکاح په لفظ

سره، د تزويج په لفظ سره، د هبې په لفظ سره، د تمليک په لفظ سره او د صدقې په لفظ سره نكاح ترل کيږي، مثلاً داسي ووايي: نَكَحْتُ، يا تَزَوَّجْتُ، يا وَهَبْتُ، يا مَلَّكْتُكَ، يا صَدَّقْتُكَ، نو په دې الفاظو سره نكاح ترل كيږي، د امام مالک رَحِمَهُ الله قول هم دغه دی.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز صرف په دوو لفظونو سره يعني په نكاح او تزويج سره نكاح ترل کېدای سي، له دغه دوو ځخه پرته په هبه، تمليک، صدقه او په داسي نورو الفاظو سره د دوی په نيز نكاح نه ترل كيږي.

**دليل:** د امام شافعي او امام محمد دليل دا دی چي په هر لفظ کي فقط دوه احتماله وي: ① يا به هغه په خپله حقيقي معنیٰ سره مستعمل وي، ② يا به په مجازي معنیٰ سره مستعمل وي، او موږ وينو چي د تمليک لفظ نه د نكاح او تزويج حقيقي معنیٰ ده او نه يې مجازي معنیٰ ده.

حقيقي معنیٰ يې ځکه نه ده چي د نكاح حقيقي معنیٰ دا ده: "ضم او يوځای کول"، همدارنګه د تزويج حقيقي معنیٰ ده: "تلفيق او منبلول"، اوس که چيري تمليک ته يا هبې او نورو الفاظو ته هم دا معنیٰ ورکول سي، نو په دوی کي به ترادُف راسي او دا د حقيقيت او اصليت منافي دي، نو په دې وجه په تمليک او داسي نورو الفاظو سره د نكاح او تزويج حقيقي معنیٰ نه سي اداء کېدلای؛ او مجازي معنیٰ يې ځکه نه ده چي د مجاز لپاره مشاكلت او مجانست فی المعانی ضروري دی، او د نكاح، تزويج او تمليک په مينځ کي معناً هيڅ مشاكلت نسته، ځکه چي د مالک او مملوک په مينځ کي منافات او تباين دی، او د تباين سره مناسبت او مشاكلت نه ثابتيږي، حال دا چي د مجاز لپاره دا دواړه خبري ضروري دي، لهذا تمليک او داسي نور الفاظ د نكاح او تزويج مجازي معنیٰ هم کېدلای نه سي، او څرنګه چي په هر لفظ کي فقط همدغه دوه احتماله وي، او په تمليک او نورو کي دا دواړه نسته، نو ځکه به په تمليک او نورو الفاظو سره نكاح نه ترل كيږي.

**زموږ دليل:** دا دي چي ستاسو دا دعویٰ صحيح نه ده چي په تمليک او داسي نورو الفاظو کي د نكاح او تزويج مجازي معنیٰ نسته؛ ځکه چي د مجاز له علاقو ځخه يوه مهمه علاقه د "سببيت" ده، او په تمليک او نورو الفاظو کي دا علاقه موجوده ده، ځکه چي د ملک رقبه په واسطة سره تمليک (يعني د مينځي مالک کېدل) سبب جوړيږي د ملک متعې، په دې شرط چي مملوک د متعې محل وي، يعني [illegible]

نو ملک متعه خو حقیقتاً په نکاح سره حاصلیږي، مګر په مینځه کي په تملیک سره حاصلیږي، نو ګواکي تملیک د ملکِ متعې سبب سو، او سببیّت د مجاز علاقه او د مجاز لاره ده. نو ځکه به تملیک او نور الفاظ د نکاح او تزویج مجازي معنیٰ وي، او څرنګه چې په حقیقي معنیٰ لرونکو الفاظو سره یعني په نکاح او تزویج سره نکاح ترل کیږي، نو همداسي به د نکاح په مجازي معنیٰ لرونکو الفاظو یعني په تملیک، هبه او داسې نورو سره هم نکاح ترل کیږي.

## هغه الفاظ چي نکاح نه په ترل کیږي

| |
|---|
| وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْبَيْعِ او په لفظ د "بیع" سره [هم] نکاح ترل کیږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح قول دی لِوُجُودِ طَرِيْقِ الْمَجَازِ ځکه چي [د تملیک په څیر دلته هم] د مجاز لار سته وَلَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْإِجَارَةِ فِي الصَّحِيْحِ او نکاح نه ترل کیږي د "إجارې" په لفظ سره د صحیح قول مطابق لِأَنَّهُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِمِلْكِ الْمُتْعَةِ ځکه چي اجاره د ملک متعې سبب نه ده وَلَا بِلَفْظِ الْإِبَاحَةِ وَالْإِحْلَالِ وَالْإِعَارَةِ او نه [نکاح ترل کیږي] په لفظ د "إباحت" او "إحلال" او "اعارې" سره لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی وَلَا بِلَفْظِ الْوَصِيَّةِ او نه [نکاح ترل کیږي] په لفظ سره د "وصیت" لِأَنَّهَا تُوجِبُ الْمِلْكَ ځکه چي وصیت یو داسي ملکیت ثابتوي مُضَافًا إِلَىٰ مَا بَعْدَ الْمَوْتِ کوم چي منسوب وي تر مرګ وروسته [وخت] ته [یعني وصیت تر مرګ وروسته ملکیت ثابتوي]. |

**اللغات:** ﴿إِجَارَة﴾ د إفعال مصدر دی: د کرایې معامله، په کرایه ورکول، ﴿إِبَاحَة﴾ مخکنۍ صیغه ده، روا کول، حلال کول، ﴿إِحْلَال﴾ مخکنۍ صیغه ده: حلال کول، ﴿إِعَارَة﴾ مخکنۍ صیغه ده: په پور ورکول. تملیک المنفعة بلا عوض ("بېله عوضه یوشی ورکول" یعني که یو سړی له بل څخه خواست وکړي چي دیو څو وخت لپاره ستا فلانکی شی راکړه! زه به کار (نفع) ځني واخلم، او س که دا بل څوک لغه ته شي ... نو دې ته إعارتکه ویکول وایي).

**تشریح:** په دې عبارت کي هم مصنف رَحِمَهُ الله د نکاح الفاظ بیان کړي دي، فرمایي چي د صحیح قول مطابق د بیع په لفظ سره نکاح ترل کیږي، یعني که ... بِعْتُكَ نَفْسِي ... او ولي ... بل قبلت یا نعم یا داسي نور د قبولیت الفاظ ووایي نو نکاح ترل کیږي، ځکه چي د تملیک په څیر د بیع په لفظ کي هم د مجاز طریقه او علاقه موجوده ده، یعني څرنګه چي په تملیک کي د ملک رقبې په واسطه سره ملک متعه ثابتیږي، همدا رنګه په بیع کي هم انسان په رانیولو سره د مینځې او داسي

نورو مالک جوړېږي، او د ملک رقبې ملکیت د ملک متعې سبب جوړېږي، او مخکې موږ وویل چې د تملیک په لفظ سره نکاح تړل کېږي (ځکه چې په تَملیک کې د مجاز علاقه [سببیّت] سته)، لهذا د بیع په لفظ سره به هم نکاح تړل کېږي.

**هو الصحيح:** همدا صحیح او متعمد قول، په دې قید سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د امام ابو بکر اعمش له قول څخه احتراز کړی دی، امام اعمش رَحِمَهُ الله وايي چې د بیع په لفظ سره نکاح نه تړل کېږي، ځکه چې دا لفظ خاص د تملیکُ المال لپاره وضع سوی دی، او په نکاح سره د مال تملیک نه کېږي. نو ځکه به د بیع په لفظ سره نکاح نه تړل کېږي؛ لېکن زموږ له طرفه هغه ته جواب دا دی چې د بیع لفظ خو حقیقتاً د تملیک مال لپاره وضع سوی دی، نه مطلقاً او مجازاً (یعني مجازاً په بیع سره تملیک مراد کېدلای نه سي)، او د نکاح په مسئله کې موږ مجازاً د بیع په لفظ سره نکاح تړل صحیح ګرځولي دي، او په دې سره د بیع پر حقیقي معنیٰ هیڅ اثر او اغېز نه پرېوځي، نو ځکه به د بیع په لفظ سره هم نکاح تړل صحیح وي.

**ولاینعقد بلفظ الإجارة إلخ:** فرمايي چې د صحیح قول مطابق د إجارې په لفظ سره نکاح نه تړل کېږي، ځکه چې اجاره د ملک متعه سبب نه ده، ځکه چې په اجاره سره انسان د یو شي د عین (ذات) نه مالک کېږي، بلکې د یو څو وخت لپاره له هغه څخه د نفع اخیستلو مالک کېږي، او د جماع حق د اجارې په توګه نه سي ترلاسه کېدای، نو که یو څوک مثلاً مینځه په کرایه واخلي، نو په هغې خدمت کولای سي، لېکن جماع نه سي ور سره کولای، ځکه چې د جماع حق په اجاره او کرایه سره نه سي اخیستل کېدای، هغه فقط د نکاح په ذریعه سره یا د مینځې په ملکیت (ملک رقبه) سره حاصلیږي، لهذا د اجارې په لفظ سره د سببیت په توګه ملکِ متعه (یعني نکاح) مرادول صحیح نه دي، نو ځکه به د اجارې په لفظ سره نکاح نه تړل کېږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دلته هم د "صحیح" قید لګولی دی، په دې سره د هغه مقصد د امام کرخي رَحِمَهُ الله له قول څخه احتراز دی، ځکه چې د امام کرخي په نېز د اجارې په لفظ سره هم نکاح تړل کېدای سي.

**ولا بلفظ الإباحة إلخ:** فرمايي چې د إباحت، إحلال او إعارې په الفاظو سره هم نکاح نه تړل کېږي، مثلاً ښځه داسې ووايي چې ما خپل ځان ستا لپاره مباح یا حلال کړی، یا تا ته مې خپل ځان په عاریت درکړی، نو په دې سره نکاح نه قایمیږي، ځکه چې دا الفاظ د ملک متعې سبب نه دي، إباحت او إحلال خو ځکه د ملکِ متعې سبب نه دي چې په دې لفظ سره بالکل ملَکیت نه ثابتیږي، همدا وجه

ده که څوک د بل چا لپاره يو شئ مباح او حلال کړي، نو دا بل څوک د دې شي مالک کېدلای نه سي. لهذا کله چي د إباحت او إحلال په لفظ سره انسان د يو مباح شي هم نه سي مال کېدلای، نو په دې سره به نكاح څرنګه ثابته سي! (نكاح خو د مال په عوض کي د ملک متعې حاصلولو ته وايي)؛ او إعاره هم د ملک متعې سبب نه ده، ځکه که څه هم په إعاره کي تمليکُ المنفعت وي، خو هغه بېله عوضه وي، حالانکي د ملک متعې د تمليک لپاره عوض او مال ضروري دی، او إعاره له دې څخه خالي ده. نو ځکه به د إعارې په لفظ سره هم نكاح نه ترل کيږي.

**ولا بلفظ الوصية إلخ:** او همدارنګه د وصيت په لفظ سره نكاح نه ترل کيږي، ځکه چي د وصيت په لفظ سره که څه هم ملکيت ثابتيږي، خو هغه تر مرګ وروسته ثابتيږي، او د نكاح ترلو لپاره في الحاله ملکيت ضروري دی، نو ځکه به د نكاح په لفظ سره هم نكاح نه ترل کيږي.

## په نكاح کي د ګواهانو حکم

قَالَ فرمايي وَلَا يَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْمُسْلِمِينَ او نه ترل کيږي نكاح د مسلمانانو إِلَّا بِحُضُورِ شَاهِدَيْنِ مګر په حضور کي د دوو داسي ګواهانو حُرَّيْنِ عَاقِلَيْنِ بَالِغَيْنِ مُسْلِمَيْنِ رَجُلَيْنِ چي دواړه آزاد وي، عاقلان وي، بالغان وي، مسلمانان وي او دواړه نارينه (سړي) وي أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ يا يو سړی او دوې ښځي وي عُدُولًا كَانُوا أَوْ غَيْرَ عُدُولٍ [برابره ده] هغوی عادلان وي او که نه وي أَوْ مَحْدُودِينَ فِي الْقَذْفِ او [برابره ده] که حد پر جاري سوی وي د زنا په تور [تهمت] لګولو کي [او که نه وي] قَالَ [صاحب د هدايې] فرمايي اِعْلَمْ أَنَّ الشَّهَادَةَ شَرْطٌ فِي بَابِ النِّكَاحِ پوه سه! چي د نكاح په باب کي ګواهي شرط ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام[1] ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي لَا نِكَاحَ إِلَّا بِشُهُودٍ چي بغير له ګواهانو څخه نكاح نه [منعقد] کيږي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ او دا حديث د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی فِي اِشْتِرَاطِ الْإِعْلَانِ دُونَ الشَّهَادَةِ د اعلان په شرط لګولو کي له ګواهی څخه بغير [يعني په دې هکله د امام مالک په خلاف حجت دی چي د هغه په نېز د نكاح ترلو په وخت کي ګواهان شرط نه دي] وَلَا بُدَّ مِنْ اِعْتِبَارِ الْحُرِّيَّةِ فِيهَا او په ګواهی کي د آزادوالي اعتبار کول ضروري دي [يعني دا ضروري ده چي

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه، باب من قال: لا نكاح إلا بولي، حديث رقم: ۵۹۳۲. والبيهقي في السنن الكبرى. باب لا نكاح إلا بولي، حديث رقم: ۱۳۴۲۳.

ګواهان به آزاد وي! لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا شَهَادَةَ لَهُ لِعَدَمِ الْوِلَايَةِ ځکه چي غلام د شهادت اهل نه دی د ولايت د نشتوالي په وجه وَلَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْعَقْلِ وَالْبُلُوْغِ او [په ګواهانو كي] د عقل او بلوغ اعتبار كول [هم] ضروري دي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ بِدُوْنِهِمَا ځکه چي له عقل او بلوغ څخه بغير ولايت نه ثابتيږي وَلَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ الْإِسْلَامِ فِيْ أَنْكِحَةِ الْمُسْلِمِيْنَ او د مسلمانانو په نكاح ګانو كي [د ګواهانو] د اسلام اعتبار كول [هم] ضروري دی لِأَنَّهُ لَا شَهَادَةَ لِلْكَافِرِ عَلَى الْمُسْلِمِ ځکه چي د مسلمان په حق كي د كافر ګواهي معتبره نه ده وَلَا يُشْتَرَطُ وَصْفُ الذُّكُوْرَةِ خو [په ګواهانو كي] د نارينه والي صفت شرط نه دی حَتّٰى يَنْعَقِدَ بِحُضُوْرِ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ تر دې چي د يوه سړي او دوو ښځو په حضور كي [هم] نكاح تړل كيږي وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې باره كي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَسَتَعْرِفُ فِي الشَّهَادَاتِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او ته به هغه انشاء الله په كتابُ الشهادات كي وپيژنې! [يعني دا اختلاف او دلائل به انشاء الله تا ته په كتابُ الشهادات كي معلوم سي].

**اللغات:** ﴿حضور﴾ حاضر والى، موجودوالى (موجوديت)، ﴿حُرّ﴾ آزاد، جمع: أَحْرَار، ﴿عُدُوْل﴾ جمع د عَادِلٌ ده: د عدل خاوند، ثقه، ﴿مَحْدُوْد﴾ د نصر اسم مفعول دی: هغه څوک چي د يو جرم په سزا كي حدّ پر جاري سوى وي، ﴿القَذْف﴾ د زنا تهمت (تور)، له محدود فى القذف څخه هغه كس مراد دی چي پر يوې ښځي د زنا تور ولګوي خو هغه ثابت نه كړاى سي چي د هغه په وجه حدِّقذف پر ولګول سي. فرمايي كه د نكاح تړلو په وخت كي محدود فى القذف كس ناست وي، نو هغه هم كافي دی، ﴿الذُّكُوْرَة﴾ مذكّر كېدل، نر كېدل (نر والى)، نارينه توب.

**تشريح:** په دې عبارت كي مصنف رَحِمَهُ الله د نكاح د ګواهانو په هكله بحث كوي چي د نكاح لپاره ګواهي شرط ده او د نكاح د تړلو په وخت كي دوه ګواهان ضروري دي چي هغوی به دواړه مسلمانان، آزاد، بالغ، عاقل او په هوښ كي وي، او دواړه به نارينه وي، يا به يو نارينه او دوې ښځي وي، بيا برابره ده، كه دوی عادلان وي او كه غير عدول (او فاسقان) وي، همدارنګه محدود في القذف وي او كه نه وي، په هر حال كي د دوی په ګواهي او حضور كي نكاح صحيح كيږي او منعقد كيږي.

په متن كي تر مسلمين وروسته د بحضور شاهدين نه قيد شوه د كافرانو له واده او نكاح څخه احتراز دی، ځکه چي د كافرانو د نكاح بندی لپاره ګواهان ضروري نه دي، د دې په خلاف د مسلمانانو د نكاح بندی لپاره ګواهان ضروري دي. نبي كريم ﷺ فرمايلي دي چي له ګواهانو څخه بغير نكاح نه تړل كيږي، په دې حديث كي په ښكاره توګه نبي ﷺ د نكاح د تړلو لپاره د ګواهانو وجود ضروري ګرځولى دی، دا آيت كه

څه هم د قرآني آيت ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ﴾ د عموم مخالف دی، خو څرنګه چې دا حديث مشهور دی، او ضابطه دا ده چې په حديثِ مشهور سره پر كتابُ الله زيادت كول جائز دي.

د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دغه مسلک دی چې د نكاح لپاره ګواهان ضروري دی. لېكن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز ګواهان ضروري نه دي، بلكې د هغه په نېز د نكاح اعلان كول شرط او ضروري دي.

**د امام مالک دليل:** امام مالک رَحِمَهُ الله په دې حديث سره دليل نيسي: "أَعْلِنُوا النِّكَاحَ وَلَوْ بِالدُّفِّ". ځكه فرمايي چې په دې حديث كې رسولُ الله ﷺ د امر په صيغه سره د نكاح د اعلان كولو حكم كړی دی، لهذا په نكاح كې به اعلان شرط وي، او د نكاح انعقاد (تړون) به پر اعلان موقوف وي.

**جواب:** زموږ له طرفه د امام مالک رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چې په دې حديث كې صرف د اعلان حكم سوی دی، دا نه دي ذكر سوي چې د نكاح د انعقاد (تړون) لپاره اعلان شرط دی او د نكاح تړون پر اعلان موقوف دی، لهذا په دې حديث سره خو فقط اعلان ثابتېدای سي، لېكن په دې سره اعلان شرط كېدلای نه سي.

او د شهادت او ګواهۍ په شرط كولو كي دا (د اعلان) مقصد هم حاصلېږي، لهذا فقط ګواهي به شرط وي، نه اعلان.

**ولا بد من اعتبار الحرية إلخ:** فرمايي چې د نكاح لپاره د ګواهانو آزادي هم ضروري ده، په دې قيد سره د غلام له ګواهۍ څخه احتراز دی، ځكه چې ګواهي د ولايت له باب څخه ده، او ولايت وايي و "تَنْفِيْذُ الْقَوْلِ عَلَى الْغَيْرِ" ته (يعني پر بل چا حكم او خبره نافذول)، او غلام ته خو پر خپل ځان هم ولايت حاصل نه دی، نو پر بل چا به څرنګه د ولايت حقدار سي؟!.

همدارنګه د ګواهانو بالغوالی او عاقل والی هم ضروري دی، ځكه چې له عقل او بلوغت څخه بغير ولايت ثابتېدای نه سي، او څرنګه چې ګواهي د ولايت له باب څخه ده، نو ځكه ګواهي هم له عقل او بلوغت څخه بغير بالكل امكان نه لري.

**ولا بد من اعتبار الاسلام إلخ:** فرمايي چې د مسلمانانو په نكاح كي د ګواهانو مسلمان والی هم ضروري دی، ځكه چې كافر مردود او رټل سوی دی، او د مسلمان په خلاف د هغه ګواهي بالكل معتبره نه ده، لكه څرنګه چې دا آيت د دې تائيد كوي: ﴿وَلَنْ يَّجْعَلَ اللهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا﴾.

**ولا يشترط إلخ:** زموږ په نېز د نكاح لپاره د ګواهانو مذكر كېدل (نر والی) ضروري نه دی، بلكې د يوه سړي او دوو ښځو په حضور كي هم نكاح تړل كېدای سي، لېكن په دې هكله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، د هغه په نېز په نكاح كي د ښځو ګواهي معتبر نه ده، بلكې د ګواهانو مذكر كېدل ضروري دي، او د ټولو دليلونه به انشاء الله په "كتاب الشهادات" كي ذكر سي.

## په ګواهۍ کې د فسق اثر

وَلَا تُشْتَرَطُ الْعَدَالَةُ او [په نکاح کې د ګواه] عادل کېدل شرط نه دي حَتَّى يَنْعَقِدَ بِحَضْرَةِ الْفَاسِقَيْنِ عِنْدَنَا تر دې چې زموږ په نېز د دوو فاسقانو په حضور کې [هم] نکاح ترل کیږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لَهُ: أَنَّ الشَّهَادَةَ مِنْ بَابِ الْكَرَامَةِ د هغه دلیل: دا دی چې ګواهي ورکول د کرامت [ستر توب او شرافت] له باب څخه دي وَالْفَاسِقُ مِنْ أَهْلِ الْإِهَانَةِ او فاسق له رذیلانو څخه دی [یعني فاسق له سپکو او لاندې خلکو څخه دی] وَلَنَا أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ او زموږ دلیل دا دی چې فاسق له ولایت لرونکو خلکو څخه دی فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ نو ځکه به له ګواهانو څخه [هم] وي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَمَّا لَمْ يُحْرَمِ الْوِلَايَةَ عَلَى نَفْسِهِ لِإِسْلَامِهِ او دا په دې وجه چې کله فاسق د خپل اسلام په وجه پر خپل ځان له ولایت څخه محروم نه کړی سو لَا يُحْرَمُ عَلَى غَيْرِهِ نو پر بل چا به [هم] له ولایت څخه نه محرومول کیږي لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِهِ ځکه چې دا بل څوک [هم] د هغه له جنس څخه دی وَلِأَنَّهُ صَلَحَ مُقَلِّدًا او ځکه چې فاسق [دا] صلاحیت لري چې بل چا ته هار وربه غاړه کړي فَيَصْلُحُ مُقَلَّدًا نو هغه به [په خپله هم] د هار خاوند جوړېدای سي وَكَذَا شَاهِدًا لهذا ګواه به هم جوړېدای سي وَالْمَحْدُودُ فِي الْقَذْفِ مِنْ أَهْلِ الْوِلَايَةِ او محدود فی القذف [هم] له ولایت لرونکو خلکو څخه دی فَيَكُونُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ لهذا هغه به [هم] له ګواهانو څخه وي تَحَمُّلًا د ګواهۍ د برداشتولو [زغملو] په اعتبار سره وَإِنَّمَا الْفَائِتُ ثَمَرَةُ الْأَدَاءِ بِالنَّهْيِ لِجَرِيمَتِهِ او [د محدود فی القذف په حق کې] فقط د خپل جرم په وجه د قرآني نهي په سبب سره ثمره د اداء فوت ده [یعني فقط ګواهي نه سي اداء کولای، ځکه چې د هغه د مجرم والي په وجه الله تعالیٰ موږ د هغه د ګواهۍ له قبلولو څخه منع کړي یو] فَلَا يُبَالِي بِفَوَاتِهِ خو [د ګواهۍ] د اداء په فوتېدلو سره به هیڅ پروا نه کیږي [یعني که څه هم د هغه په حق کې د ګواهۍ اداء کول فوت دي، خو دا هیڅ پروا نه لري، او په دې سره به د نکاح په ګواهۍ کې هیڅ خلل نه راځي] كَمَا فِي شَهَادَةِ الْعُمْيَانِ وَابْنَيِ الْعَاقِدَيْنِ لکه د ړندو خلکو او د عاقدینو د زامنو په ګواهۍ کې [چې د ګواهۍ اداء فوتیږي او په هغه هیڅ پروا نه کیږي].

**اللغات:** ﴿فَاسِق﴾ د نصر او کَرُم له باب څخه اسم فاعل دی: بدکاره سړی، (دلته څني مراد هغه فاسق دی چې مثلاً د لمونځ پرېښوولو یا د زکاة نه اداء کولو یا د داسې نورو کارونو په وجه فاسق ګرځېدلی وي، لېکن که د دروغو ویلو په وجه فاسق ګرځېدلی وي، نو د هغه ګواهي به بالکل نه قبلیږي، ځکه چې د دروغو په وجه د هغه خبرې لري هیڅ اعتبار نسته)، ﴿إِهَانَة﴾ د إفعال مصدر دی: سپکاوی، ذلالت، رذالت، ﴿لَمْ يُحْرَمْ﴾ د ضرب او سمع له باب څخه د جحد

مجهول صيغه ده: محروم كول (محرومول)، منع كول. ﴿مُقَلِّد﴾ په عبارت كې اول "مقلد" د تفعيل له باب څخه اسمِ فاعل دی او معنیٰ يې ده: هار ور په غاړه كونكی، دلته ځنې مراد حاكم (واكمن) دی، ځكه كله چې د يو ځای حاكم يو عالم قاضي جوړوي نو هغه ته هار او امېل ورپه غاړه كوي، نو په دې مناسبت حاكم ته "مُقَلِّد" هم وايي. او "مُقَلَّد" د لام په فتحه سره د تفعيل د باب اسم مفعول دی، او معنیٰ يې ده: هغه څوک چې هار ور په غاړه كړی سي، دلته ځنې مراد قاضي دي، ځكه د حاكم له طرفه هغه ته هار ور په غاړه كول كيږي، ﴿تَحَمُّلًا﴾ د تفعّل مصدر دی: برداشتول، زغمل، دلته ځني مراد د "گواهي برداشتول" دي، يعني "گواه جوړېدل"، ﴿ثَمَرَةُ الأَدَاء﴾ د گواهي اداء كولو فايده، يعني گواهي نه سي اداء كولای، ﴿لِجَرِيْمَتِهِ﴾ په ځيني نسخو كي دا لفظ په حاء سره "حَرِيْمَته" دی، خو معتبر "جَرِيْمَتـه" دی، ﴿ابْنَي﴾ د تشنيې صيغه ده: دوه زامن، ﴿عَاقِدَيْن﴾ دا هم د تشنيې صيغه ده: دوه نكاح كونكي، مراد ځني سړی او ښځه ده، ﴿عُمْيَان﴾ جمع د أعمٰى ده: ړوند، نابينا.

**تشريح:** په مخكني عبارت كي ضمناً دا خبره ذكر سوه چي د نكاح لپاره د گواهانو عادل والی او له حد قذف څخه پاكوالی ضروري نه دی، په دې عبارت كي همدغه دوې خبري په تفصيل سره بيانوي، فرمايي چي زموږ په نېز د نكاح بندي لپاره د گواهانو عادل والی ضروري نه دی، يعني كه د غيرِ عادلو گواهانو په مخ كي نكاح وتړل سي، نو هغه نكاح هم صحيح او مقبوله ده.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د گواهانو عادل والی ضروري دی، او د غيرِ عادلو گواهانو په حضور كي نكاح نه سي تړل كېدای (يعني د هغو گواهي معتبره نه ده)، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي گواهي قابلِ احترام او د تعظيم لائق ده، لكه څرنگه چي رسولُ الله ﷺ فرمايلي دي: "أَكْرِمُوا الشُّهُوْدَ. فَإِنَّ اللهَ يُحْيِيْ بِهِمُ الْحُقُوْق" (يعني د گواهانو تعظيم او احترام كوی، ځكه چي الله تعالىٰ د همدوی په سبب سره د خلكو حقوق ژوندي ساتي)، دا حديث په واضحه توگه دې خبري ته اشاره كوي چي گواهي د كرامت او تعظيم له باب څخه ده، نو ځكه به د گواهي أهل او لائق هم هغه انسان وي چي هغه قابل د تعظيم او لائق د احترام وي، او فاسق خو مردود او رذيل وي (او د سپكاوي لائق وي)، نو ځكه هغه د گواهي أهل نه سي كېدای، او نبي كريم ﷺ خو تر دې اندازې فرمايلي دي چي "كله تاسو د فاسق سره مخامخ سئ، نو هغه ته د قهر او غضب په نظر سره گورئ!"، نو كله چي په حديث كي د فاسق و طرف ته د شفقت له نظر څخه منع سوې ده، نو د گواهي په څير د محترم شي به د هغه مالک جوړول څرنگه صحيح وي!؟

**زموږ دليل:** دا دی چي د فاسق فسق او فجور صرف د هغه تر ذات پوري محدود دی، نور خلک له هغه څخه مستثنیٰ دي، همدا وجه ده چي د فسق باوجود شريعت هغه له ولايت لرونكو خلكو څخه شمارلی دی يعني د ولايت مالک او د ملكيت خاوند يې گڼلی دی، يعني هغه خپله نكاح په خپله كولای سي (تړلای سي). او د

غلام او مينځي نكاح هم كولاى سي، لهذا څرنګه چي د فاسق لپاره ولايت ثابت دى، نو همداسي به د هغه لپاره ګواهي هم ثابته وي او د ګواهى أهل به وي.

او فاسق په دې توګه له ولايت لرونكو خلكو څخه دى چي هغه له اسلام څخه وتلى نه دى بلكي هغه په هر حال كي مسلمان دى، او د خپل اسلام په وجه هغه شريعت پر خپل حق له ولايت او ملكيت څخه منع كړى نه دي، او موږ چي د كوم كس په حق كي د هغه ګواهي قبلوو، هغه هم د مسلمان والي په وجه د دې فاسق كس همجنسه دى، لهذا كله چي انسان پر خپل ځان ولايت او ملكيت لري، نو پر خپل همجنسه به يې هم لري.

**ولأنه صلح مقلِّدا إلخ**: له دې ځايه د دې خبري دويم دليل ذكر كوي چي "فاسق د ګواهى أهل دى"، د دليل حاصل دا دى چي فاسق حاكم او مقلَّد جوړېداى سي، لكه څرنګه چي حجاج بن يوسف يو ستر فاسق وو خو بيا هم د ملک حاكم جوړ سو، همدارنګه تر خلفاء راشدينو وروسته ډېر لږ حاكمان له فسق و فجور څخه پاک ول، او فاسق حاكم كه وغواړي چي يو عالم د ښار قاضي مقرر كړي نو هغه قاضي مقرر كولاى سي، لهذا كله چي فاسق حاكم بل څوک قاضي جوړولاى سي نو هغه خپله هم قاضي جوړېداى سي، او كله چي فاسق قاضي جوړېداى سي نو ګواه هم جوړېداى سي، ځكه چي قاضي جوړېدل او ګواه جوړېدل يو شي دي او د يوې درختي ښاخونه دي، بلكي قضاوت خو ډېره ستره مرتبه ده، نو كله چي هغه قاضي جوړېداى سي، نو د ګواهى په څېر د كوچنى مرتبې مالک جوړېدل به په طريقه اولىٰ سره جائز وي، لهذا په نكاح كي به د هغه ګواه جوړول بالكل جائز او صحيح وي.

**والمحدود في القذف إلخ**: كوم څوک چي پر يوې مُحصِني (پاک لمني) ښځي د زنا تور ولګوي، او بيا په څلورو ګواهانو سره زنا ثابته نه كړي، او د دې په وجه پر هغه د زنا د تور حد جاري كړى سي، دغسي كس ته محدود في القذف وايي، څرنګه چي محدود في القذف هم د خپل اسلام په وجه له ولايت لرونكو خلكو څخه دى، نو ځكه به هغه هم د ګواهى أهل وي او له ګواهانو څخه به شمارل كيږي؛ لېكن تاسي په دې خبره ځان پوه كړئ! چي محدود في القذف د ګواهى برداشتېدلو (تحمّلِ شهادة) أهل دى، د ګواهى اداء كولو أهل نه دى، د ګواهى برداشتولو مطلب دا دى چي د ده په موجود والي او حضور كي خو نكاح تړل كېداى سي او ګواه جوړېداى سي (يعني كه د نكاح تړلو په وخت كي ناست وي، نو دىٔ هم كفايت كوي)، لېكن كه د قاضي په مخ كي د نكاح په هكله د ګواهى اداء كولو نوبت راسي، نو د هغه ګواهي معتبره نه ده، ځكه چي د قرآنِ كريم په دې آيت ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ سره هغه د ګواهى اداء كولو أهل نه دى.

**وإنما الفائت إلخ**: په دې جملې سره د يو مقدر سوال جواب وركوي، سوال دا دى چي كله محدود في القذف نه ولايت لرونكو خلكو څخه دى (يعني د ولايت خاوند دى)، نو بايد د ده ګواهي هم د نورو ولايت لرونكو په څېر كامله او پوره واى، مطلب دا چي بايد د هغوى په څېر ده ته هم د ګواهى اداء كولو حق وركول سوي واى،

حال دا چي ده ته فقط د تحمّلِ شهادة حق ورکول سوی دی، او له ګواهی اداء کولو څخه محروم سوی دی، آخر د دې څه وجه ده؟

نو د دې سوال په جواب کي فرمايي چي د دغه آيت ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ په وجه محدود فی القذف له ګواهی اداء کولو څخه محروم دی، ځکه چي په دې آيت کي په واضحه توګه مسلمانانو ته دا حکم سوی دی چي تاسي د هغو ګواهي مه قبلوئ!، نو ځکه به هغوی د ګواهی اداء کولو أهل نه وي، خو د تحمّلِ شهادة (ګواهی برداشتېدلو او ګواه جوړېدلو) أهل به وي، ځکه چي هغه له ولايت لرونکو خلګو څخه دی، او په دې باره کي هيڅ يو شرعي مانع نسته.

او په دې خبره به هيڅ پروا نه کيږي چي "هغه ګواهي نه سي اداء کولای خو بيا هم ګواه جوړېدای سي" ځکه چي په شريعت کي د دې مثالونه سته چي يو څوک د تحمّل أهل وي خو د اداء أهل نه وي، لکه د ړندو خلګو په ګواهی سره نکاح تړل کېدای سي لېکن هغوی د قاضي په مخ کي ګواهي نه سي اداء کولای، همدارنګه که د عاقدَينو په نکاح کي فقط د هغو دوه زامن ناست وي، نو د هغوی ګواهي معتبره ده او د عاقدَينو نکاح صحيح ده، لېکن که د قاضي په دربار کي د ګواهی اداء کولو ضرورت پيښ سي، نو د عاقدَينو په حق کي د هغو د زامنو ګواهي لره هيڅ اعتبار نسته، لهذا څرنګه چي ړانده خلک او د عاقدَينو زامن فقط د "تحملِ شهادت" أهل دي، همداسي به محدود فی القذف هم فقط د تحملِ شهادت أهل وي، او څرنګه چي دا دوه صنفونه د "اداءِ شهادت" أهل نه دي، همداسي به محدود فی القذف هم د اداءِ شهادت أهل نه وي.

## ﴿ د ګواهانو د شمېر په هکله کامله نقشه ﴾

څرنګه چي دلته د نکاح د ګواهی په هکله بيان سوی دی، نو غوره ګڼم چي د زنا، قتل، معاملات او د داسي نورو مسئلو د ګواهانو شمېر هم ذکر کړم چي طالب ته د دې علم او خبر هم حاصل سي:

د ګواهانو اته (٨) درجې دي او د نکاح ګواهي پر څلورمه درجه ده چي تفصيل يې په لاندي ډول دی:

| شمېر | ګواهي | څومره خلک به يې اداء کوي | د ګواهانو صفت |
|---|---|---|---|
| (١) | د زنا ګواهي | څلور سړي، د ښځو ګواهي معتبره نه ده | ټوله به عادله وي |
| (٢) | د قتل ګواهي | دوه سړي، د ښځو ګواهي معتبره نه ده | دواړه به عادله وي |
| (٣) | د معاملاتو ګواهي لکه بيع او شراء | دوه سړي، يا يو سړی او دوې ښځي | ټوله به عادله وي |
| (٤) | د نکاح ګواهي | دوه سړي، يا يو سړی او دوې ښځي | عادل او فاسق دواړه کافي دي |
| (٥) | د مياشتي ګواهي | د روژې لپاره يو سړی، د اختر لپاره دوه سړي | عادل او مستورُ الحال دواړه کافي دي |
| (٦) | د عيوبُ النساء ګواهي | د دوو ښځو ګواهي، د سړو ګواهي معتبره نه ده | دواړي به عادله وي |
| (٧) | د وکيل جوړولو ګواهي | د يوه غلام ګواهي هم کافي ده | عادل او غيرِ عادل دواړه کافي دي |
| (٨) | د هداياوو ګواهي | د کوچني او مينځي ګواهي هم کافي ده | عادل او غيرِ عادل دواړه کافي دي |

## د ذميانو په ګواهۍ کې د ذمي ښځې سره د مسلمان د نکاح کولو حکم

قَالَ: وَإِنْ تَزَوَّجَ مُسْلِمٌ ذِمِّيَّةً فرمايي: که يو مسلمان د يوې ذمي ښځې سره نکاح وکړي بِشَهَادَةِ ذِمِّيَّيْنِ د دوو ذميانو په ګواهۍ سره جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ ❁ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [دا نکاح] جائز ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ: لَا يَجُوْزُ او امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې جائز نه ده لِأَنَّ السَّمَاعَ فِي النِّكَاحِ شَهَادَةٌ ځکه چې په نکاح کې [د ايجاب و قبول] اورېدل ګواهي ده وَلَا شَهَادَةَ لِلْكَافِرِ عَلَى الْمُسْلِمِ او د کافر لپاره د مسلمان په خلاف ګواهي جائز نه ده فَكَأَنَّهُمَا لَمْ يَسْمَعَا كَلَامَ الْمُسْلِمِ نو داسې سو لکه ذميانو چې بالکل د مسلمان خبره اورېدلې نه وي وَلَهُمَا: أَنَّ الشَّهَادَةَ شُرِطَتْ فِي النِّكَاحِ عَلَى اعْتِبَارِ إِثْبَاتِ الْمِلْكِ د شيخينو دليل دا دی: چې په نکاح کې ګواهي شرط کړی سوې ده د ملکِ بضع د ثابتولو په اعتبار سره [يعني په نکاح کې د ملک بضع (ملکِ مُتعې) د ثابتولو په اعتبار سره ګواهي شرط ده] لِوُرُوْدِهِ عَلَى مَحَلٍّ ذِيْ خَطَرٍ ځکه چې ملکِ بضع د احترام [او تعظيم] پر مقام واقع ده لَا عَلَى اعْتِبَارِ وُجُوْبِ الْمَهْرِ [او] د مهر د وجوب په اعتبار سره [په نکاح کې ګواهي] شرط نه ده إِذْ لَا شَهَادَةَ تُشْتَرَطُ فِي لُزُوْمِ الْمَالِ ځکه چې د مال په واجبولو کې ګواهي شرط نه ده وَهُمَا شَاهِدَانِ عَلَيْهَا او هغه دواړه ذميان [ګواهان] د دې ذمي ښځې په خلاف ګواهان دي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَسْمَعَا كَلَامَ الزَّوْجِ په خلاف د هغه صورت کله چې دواړو ذميانو د خاوند خبره اورېدلې نه وي لِأَنَّ الْعَقْدَ يَنْعَقِدُ بِكَلَامَيْهِمَا ځکه چې عقد [نکاح] د دواړو [زوجينو] په کلام سره تړل کيږي وَالشَّهَادَةُ شُرِطَتْ عَلَى الْعَقْدِ او ګواهي پر عقد شرط ده.

**اللغات:** ﴿تَزَوَّجَ﴾ د تفعّل ماضي ده: نکاح کول، واده کول. ﴿ذِمِّيٌّ﴾ هغه کافر ته چې وايي په اسلامي هيواد کې اوسيږي او اسلامي حکومت له هغه څخه جزيه (ټکس) اخلي. ﴿وُرُوْد﴾ د ضرب مصدر دی: راتلل، واقع کېدل، جاري کېدل. ﴿الْمِلْك﴾ له دې څخه مراد ملکِ بضع ده، يعني د ښځې سره د جماع کولو حق. ﴿ذِيْ خَطَر﴾ د احترام والا، لوی (ستر)، يعني ملکِ بضع د احترام او درناوي قابل شی دی.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې په متن کې له ذمي ښځې څخه مراد کتابيه ده، يعني نصراني او يهودي ښځه چې له هغې څخه په دارُالاسلام کې ټکس (محصول) اخيستل کيږي. ځکه چې د غيرِ کتابيه ښځې سره د مسلمان نکاح جائز نه ده، د عبارت خلاصه دا ده چې که يو مسلمان د يوې

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٢٩٧)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٢٦٧). [القول الراجح ج:١، ص:٢٤٤]

**يهودي يا نصراني ښځې** سره نکاح وکړي د دوو يهوديانو يا د دوو نصرانيانو په حضور کې. نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا نکاح صحيح او جائز ده. لېکن د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز دا نکاح جائز نه ده. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**دليل:** د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې په نکاح کې د ګواهي ورکولو مطلب دا دی چې ګواهان فقط ايجاب و قبول واوري، يعني په نکاح کې فقط د ايجاب وقبول اورېدل ګواهي ده. او مخکې تېر سوه چې د کافر ګواهي د مسلمان په حق کې معتبره نه ده، نو ځکه به د يهودي او نصراني ګواهي نه قبليږي. او داسي به ګڼل کيږي چې دوی بالکل د مسلمان ايجاب و قبول اورېدلی نه دی، لهذا کله چې يې اورېدلی نه دی، نو داسي ده لکه بالکل چې يې ګواهي ورکړې نه وي، او ګواهي د نکاح لپاره شرط ده. نو ځکه به د ذميانو (يهودي او نصراني) په ګواهۍ سره نکاح تړل صحيح نه وي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې په نکاح کې د ګواهۍ دوه حيثيته دي: ① دا ګواهي يا د دې لپاره شرط ده چې د سړي لپاره د ښځې ملک بضع ثابت کړی سي، ② يا د دې لپاره شرط ده چې پر سړي د ښځې مهر ثابت کړی سي. که غور وفکر وکړی سي نو دا خبره به ښکاره سي چې ګواهي د ملک بضع د ثابتولو لپاره شرط ده. ځکه چې ګواهي د هغو شيانو د ثابتولو لپاره وي کوم چې محترم (د احترام او درناوي قابل) وي، او بضع هم يو محترم محل دی. او د مهر ثابتولو لپاره ګواهي شرط نه ده. ځکه چې مهر د مال له قبيلې څخه دی، او مال د احترام او تعظيم قابل نه دی، همدا وجه ده که د نکاح په وخت کې د مهر يادونه نه وسي، نو بيا هم نکاح صحيح کيږي، لنډه دا چې په نکاح کې ګواهي د دې لپاره شرط ده چې د سړي (خاوند) لپاره ملک بضع ثابت سي، لهذا دا ګواهي به د مسلمان په حق کې يعني د مسلمان په فايده کې وي، د هغه په مخالفت کې به نه وي، او د مسلمان په حق کې د کافر ګواهي په شريعت کې معتبره ده، نو ځکه به په دې مسئله کې هم د ذميانو ګواهي د مسلمان په حق کې معتبره وي، او نکاح به صحيح وي.

**بخلاف ما إلخ:** په دې عبارت سره د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې ستاسو دا خبره صحيح نه ده چې "ذميانو د مسلمان ايجاب وقبول بالکل اورېدلی نه دی"، دا خبره موږ هم منو چې ګواهي يعني د ايجاب و قبول اورېدل د نکاح لپاره شرط دي، او که نه واورېدل سي نو نکاح نه صحيح کيږي، خو په دې مسئله کې حقيقت دا دی چې ذميانو د خاوند او ښځې کلام (ايجاب وقبول) اورېدلی دی، لهذا "اورېدل" به پر "نه اورېدلو" قياسول څرنګه صحيح وي!؟

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دی. كما قال في الهندية: ولو كان الزوج مسلمًا والمرأة ذمية فالنكاح ينعقد بشهادة الذميين. سواء كانا موافقين لها في الملة أو مخالفين. كذا في السراج الوهاج. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۴۲]

## په نکاح کي د يوه سړي د ګواهي بيان

وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا بِأَنْ يُزَوِّجَ ابْنَتَهُ الصَّغِيرَةَ او که څوک يو سړي ته د خپلي کوچنۍ [نابالغي] لور د نکاح کولو حکم وکړي [يعني که يو څوک يو کس وکيل جوړ کړی چي زما د لور نکاح وتړه!] فَزَوَّجَهَا نو هغه د دې نکاح وکړي [يعني ويې تړي] وَالْأَبُ حَاضِرٌ په داسي حال کي چي پلار [په نکاح کي] حاضر وي بِشَهَادَةِ رَجُلٍ وَاحِدٍ سِوَاهُمَا په ګواهي سره د يوه سړي ماسوا له آمر او مأمور څخه [يعني د نکاح په دې مجلس کي له آمر (پلار) او مأمور (وکيل) څخه بغير فقط يو سړی موجود وي] جَازَ النِّكَاحُ نو نکاح جائز ده لِأَنَّ الْأَبَ يُجْعَلُ مُبَاشِرًا لِلْعَقْدِ لِاتِّحَادِ الْمَجْلِسِ ځکه چي د مجلس د يو والي په وجه به پلار [هم] په خپله د نکاح تړونکی ګرځول کيږي وَيَكُونُ الْوَكِيلُ سَفِيرًا وَمُعَبِّرًا او وکيل به د مينځ سړی [دربمګړی] او ترجمان وي فَيَبْقَى الْمُزَوِّجُ شَاهِدًا نو نکاح کونکي [يعني همدغه وکيل] به [د پلار په حضور کي] ګواه پاته سي وَإِنْ كَانَ الْأَبُ غَائِبًا او که پلار غائب وي [د نکاح په مجلس کي حاضر نه وي] لَمْ يَجُزْ نو نکاح جائز نه ده لِأَنَّ الْمَجْلِسَ مُخْتَلِفٌ ځکه چي مجلس مختلف دی فَلَا يُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ الْأَبُ مُبَاشِرًا نو ممکنه نه ده چي پلار د نکاح تړونکی وګرځول سي وَعَلَى هٰذَا إِذَا زَوَّجَ الْأَبُ ابْنَتَهُ الْبَالِغَةَ بِمَحْضَرِ شَاهِدٍ وَاحِدٍ نو بناء پر دغه [پورتني] قاعدې که پلار [فقط] د يوه ګواه په حضور کي د خپلي بالغي لور نکاح وکړي [وتړي] إِنْ كَانَتْ حَاضِرَةً که لور [د نکاح په مجلس کي] حاضر وي جَازَ نو نکاح جائز ده وَإِنْ كَانَتْ غَائِبَةً او که [له مجلس څخه] غائبه وي لَمْ يَجُزْ نو نکاح جائز نه ده.

**اللغات:** ﴿مُبَاشِرًا﴾ د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: په خپله کار کونکی (يعني هغه کس چي په بل چا کار (مثلاً د نکاح تړل) نه وکړي بلکي په خپله يې وکړي)، دلته ځني مراد په خپله د نکاح تړونکی دی، ﴿سَفِيْرٌ﴾ د نصر له باب څخه د صفتِ مشبه صيغه ده: استازی، دلته ځني مراد د مينځ سړی يعني منځګړی او دربمګړی دی، ﴿مُعَبِّرٌ﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: تعبير کونکی، د بل چا د خبرو نقل کونکی، ترجمان، ﴿مُزَوِّجٌ﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: نکاح تړونکی، نکاح ورکونکی (واده ورکونکی).

**تشريح:** مخکي دا خبره تېره سوه چي د نکاح د روايښت لپاره ګواهي شرط ده، پر دې خبره يوه مسئله تفريع کوي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي مثلاً زيد د خپلې نابالغي لور د نكاح لپاره عُمر وكيل جوړ كړی چي د هغې نكاح وتړه! ، عُمر ديوه ګواه (خالد) په مخ كي د حامد سره د نجلۍ نكاح وتړله، په دغه مجلس كي پلار (زيد) هم حاضر وو، نو دا نكاح صحيح او جائز ده، ځكه كله چي پلار د نكاح په مجلس كي حاضر دی، نو د مجلس د اتحاد په وجه هغه په خپله د نكاح تړونكی (مُباشر) شمارل كيږي، ځكه چي هغه آمر او مؤكِل (وكيل جوړونكی) دی، او د نكاح په باب كي ټوله حقوق د مؤكِل وطرف ته راجع كيږي او نقل كيږي، نو د وكيل (عُمر) تزويج (د نكاح تړل) به په خپله د پلار (زيد) تزويج وي، يعني ګواكي پلار د دوی نكاح وتړله، او وكيل (عُمر) به محض يو سفير او د پلار د خبري نقل كونكی وي، لهذا اوس به هغه فقط ګواه پاته سي، او څرنګه چي وكيل (عُمر) ديو بل ګواه (خالد) په مخ كي دا نكاح وتړله، نو خالد به دويم ګواه سي، او د دوو ګواهانو په مخ كي نكاح صحيح كيږي، نو ځكه به په دې مسئله كي هم نكاح صحيح او جائز وي.

**وإن كان الأب إلخ**: ليكن كه پلار (زيد) د لور د نكاح په مجلس كي نه وو، نو نكاح نه صحيح كيږي، ځكه كله چي په مجلس كي پلار نسته نو د هغه مجلس مختلف سو، لهذا اوس د وكيل (عُمر) خبره د پلار وطرف ته نه سي نقل كېدای او پلار د نكاح تړونكی نه سي شمارل كېدای، او كه شمار كړی سي، نو په دوو مختلفه مجلسو كي به ايجاب وقبول واقع سي او دا صحيح نه دي، لهذا كله چي پلار نكاح تړونكی شمارل كېدای نه سي، نو اوس به وكيل (عُمر) د نكاح تړونكی (مزوّج او مباشر) وي او ګواه به پاته نه سي، او څرنګه چي هغه فقط ديوه ګواه (خالد) په مخ كي دا نكاح تړلې ده، او ديوه ګواه په حضور كي نكاح نه صحيح كيږي، نو ځكه به دا نكاح صحيح او جائز نه وي.

**وعلى هٰذا إلخ**: دا مسئله هم د مخكنۍ مسئلې په څير ده، فرمايي چي كه پلار فقط ديوه ګواه په حضور كي د خپلې بالغي لور نكاح وتړي، او نجلۍ هم د نكاح په مجلس كي حاضره وي، نو دا نكاح صحيح ده، ځكه كله چي نجلۍ د نكاح په مجلس كي حاضره وي، نو د پلار خبره به د هغې و طرف ته نقل كيږي يعني نجلۍ به په خپله د خپلې نكاح تړونكې شمارل كيږي، ځكه چي هغه عاقله هم ده او بالغه هم ده، او پلار به ګواه پاته سي، او يوه ګواه له مخكي څخه موجود دی، نو دا به دوه ګواهان سي، نو ځكه به نكاح صحيح او جائز وي. او كه لور په مجلس كي نه وي، نو نكاح نه صحيح كيږي، ځكه چي پلار ګواه نه سو، بلكي نكاح تړونكی سو، او ګواه فقط يو دی، نو ځكه به نكاح صحيح او جائز نه وي.



# فَصْلٌ فِيْ بَيَانِ الْمُحَرَّمَاتِ

(دا) فصل په بيان د هغو ښځو کې دی چې
نکاح کول ور سره حرام وی

**تشريح:** له "مُحَرَّمَات" څخه مراد هغه ښځې دي چې نکاح ور سره کول حرام او ممنوع وي، څرنګه چې د ښځو د حراموالي مختلف اسباب او بېلابېل عوامل دي، مثلاً بعضې ښځې د قرابت په سبب حرامې وي، او بعضې د مصاهرت او رضاعت په سبب حرامې وي، نو د دې ټولو اسبابو د جلا بيانولو لپاره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله يو مستقل فصل ذکر کوي، او په همدې فصل کې د هغه اسبابو بيان کوي.

## ﴿ ټولې مُحرّمات ښځې په يوه نقشه کې ﴾

د عبارت تر شروع مخکې مناسب ګڼم چې د طالبانو د آسانۍ او يادانښت لپاره ټولې مُحرّماتې ښځې په يوه نقشه کې د خپلو اسبابو سره په ترتيب ذکر کړم. لاندې نقشې ته پاملرنه وکړئ!

| شمېر | کومې ښځې حرامې دي؟ | په کوم سبب حرامې دي؟ |
|---|---|---|
| (۱) | مور، انا، د انا مور، امه (عمه)، خاله لور، لمسۍ (هغه که د زوی لور وي، که د لور، لور وي)، خور، وريره (د وروړ لور)، خورزه (د خور لور). | د نسب په وجه حرامې دي |
| (۲) | خواښې، مېروړ (د زوي مېينه)، د لمسي مېينه، مېره (ناسکه مور)، ناسکه انا. | د نکاح په وجه حرامې دي |
| (۳) | رضاعي مور، رضاعي امه، رضاعي خاله، رضاعي خور، رضاعي لور، رضاعي لمسۍ (يعني د رضاعي لور يا د رضاعي زوي لور). | د رضاع په وجه حرامې دي |
| (۴) | (په نکاح کې) دوې خوندې سره يو ځای کول، امه او وريره سره يو ځای کول. | د دوو ښځو د جمع کولو په وجه حرام دي |
| (۵) | د آزادې ښځې په وجود کې د مينځې سره نکاح کول، همدارنګه د خپلې مينځې سره نکاح کول. | ځکه پر آزادې ښځې مينځه کول حرام دي |
| (۶) | هغه ښځه چې د بل چا په نکاح کې وي | د بل چا د منکوحې سره نکاح حرامه ده |
| (۷) | د غلام لپاره د خپلې سيّدې (مشرې) سره نکاح حرامه ده | ـ |
| (۸) | د کافرې او مشرکې ښځې سره نکاح حرامه ده | ځکه له کتابي ښځې څخه بغير د هرې کافرې ښځې نکاح حرامه ده |
| (۹) | چې درې طلاقه ورکول سوي وي، د هغې سره نکاح حرامه ده | ځکه چې له حلالې (تحليل) څخه بغير د مطلقهٔ ثلاثه ښځې سره نکاح کول حرام دي |

## د قرآني مُحرّماتو بيان

قَالَ: لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ فرمايي: حلال اروا نه دي د سړي لپاره أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُمِّهِ چي نكاح وكړي د خپلي مور سره وَلَا بِجَدَّاتِهِ مِنْ قِبَلِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ او نه د اناګانو سره د خلګو او ښځو له طرفه ايعني او نه نكاح روا ده د پلارني او مورني انا سره لِقَوْلِهِ تَعَالَى: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ.....(الخ) [سورة النساء: ۲۳] ځكه الله تعالىٰ فرمايلي دي: چي ستاسي مندي او لوڼي..... پر تاسو حرامي دي وَالْجَدَّاتُ أُمَّهَاتٌ او اناګاني (هم) مندي دي إِذِ الْأُمُّ هِيَ الْأَصْلُ لُغَةً ځكه په لغت كي (د انسان) و "أصل" ته مور وايي أَوْ ثَبَتَتْ حُرْمَتُهُنَّ بِالْإِجْمَاعِ يا داسي ووايه چي (چي د اناګانو حُرمت په إجماع سره ثابت دى قَالَ: وَلَا بِبِنْتِهِ فرمايي: او نه (حلال دي د سړي لپاره چي نكاح وكړي) د خپلي لور سره لِمَا تَلَوْنَا د هغه آيت په وجه چي (اوس) موږ تلاوت كړى وَلَا بِبِنْتِ وَلَدِهِ او نه (نكاح كول حلال دي) د خپلي لمسى سره وَإِنْ سَفُلَتْ كه څه هم د لاندي درجې وي لِلْإِجْمَاعِ د اجماع په وجه (يعني ځكه چي دا حكم په اجماع سره ثابت دى) وَلَا بِأُخْتِهِ وَلَا بِبَنَاتِ أُخْتِهِ وَلَا بِبَنَاتِ أَخِيهِ او نه (نكاح كول حلال دي) د خپلي خور سره او نه د خپلو خورزه ګانو سره او نه د خپلو وريره ګانو سره وَلَا بِعَمَّتِهِ وَلَا بِخَالَتِهِ او نه د خپلي امه سره او نه د خپلي خاله سره لِأَنَّ حُرْمَتَهُنَّ مَنْصُوصٌ عَلَيْهَا فِي هٰذِهِ الْآيَةِ ځكه چي د دوى ټولو حُرمت په دې آيت كي مذكور دى وَتَدْخُلُ فِيهَا الْعَمَّاتُ الْمُتَفَرِّقَاتُ او داخليږي په دې آيت كي متفرّقي (بيلابيلي) امه ګاني وَالْخَالَاتُ الْمُتَفَرِّقَاتُ وَبَنَاتُ الْإِخْوَةِ الْمُتَفَرِّقِينَ او متفرّقي خاله ګاني او متفرّقي وريره ګاني لِأَنَّ جِهَةَ الِاسْمِ عَامَّةٌ ځكه چي جهت (طرف) د لفظ عام دى (يعني په پورتني آيت كي چي كوم د "عَمَّات، خَالَات او بَنَاتُ الْأَخِ" الفاظ ذكر سوي دي، دا عام دي، هر ډول امه ګانو، خاله ګانو، وريره ګانو او خورزه ګانو ته شامل دي).

**اللغات:** ﴿جَدَّات﴾ جمع د "جَدَّةٌ" ده: انا (نيا)، ﴿تَلَوْنَا﴾ د نصر له باب څخه د جمع متكلم ماضي صيغه ده: تلاوت كول. ﴿سَفُلَت﴾ د كرُم د باب ماضي صيغه ده: لاندي كېدل، كښته كېدل. ﴿عَمَّة﴾ امه، جمع: عَمَّات. ﴿جِهَة﴾ طرف (سِمت)، علت، سبب.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي په دې خبره ځان پوه کړئ! چي د ښځو سره د نکاح د حراموالي نهه (۹) اسباب دي: ① قرابت، ② مصاهرت، ③ رضاعت، ④ جمع بين الاختين، ⑤ د آزادي ښځي په وجود کي د مينځي سره نکاح کول، ⑥ د هغه ښځي سره نکاح کول چي د بل خاوند په عدت (عده) کي وي، ⑦ د کافري او مشرکي ښځي سره نکاح کول، ⑧ د خپلي سيّدي سره د غلام نکاح کول، ⑨ د مطلقه ثلاثه سره بغير له تحليله نکاح کول، دا نهه اسباب دي، لکه مخکي چي موږ په نقشه کي په ترتيب سره ذکر کړه، او په کتاب کي هم تقريباً په همدغه ترتيب سره د مُحرّماتو مسئلې بيان سوي دي.

نو فرمايي چي د هر کس لپاره د خپلي مور او د خپلي انا سره نکاح کول حلال او جائز نه دي، انا که د پلار له طرفه وي او که د مور له طرفه دواړي په دې حکم کي داخلي دي، همدارنگه د خپلي لور سره هم نکاح کول حلال نه دي؛ ځکه چي قرآن کريم په واضحه توگه د دوی حرمت بيان کړی دی، الله تعالیٰ فرمايي: ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ﴾، په دې آيت کي په ښکاره توگه د منلواو لوڼو حُرمت بيان سوی دی او د انا ذکر په دې آيت کي نسته، نو د انا حُرمت څرنگه ثابت سو، د دې دوه جوابه ورکول سوي دي: ① يو دا چي د "أُم" لغوي معنیٰ ده: "أصل"، او انا په "أصل" کي داخله ده، ځکه انا، نيکه، ورنيکه...إلیٰ آخره، دا ټوله ذ انسان په أصولو کي داخل دي، نو ځکه به د لغوي معنیٰ په اعتبار سره "جِدَّات" هم په "أُم" کي داخل وي او "أُم" په آيت کي ذکر سو دی، لهذا د "أُم" په څير به "جِدَّات" هم ابدي او دايمي حرامي وي.

**أو ثبتت حرمتهن**: ② دويم جواب دا دی چي د انا حُرمت په اجماع سره ثابت دی، يعني پر دې خبره د اسلام له شروع څخه (بلکي د جاهليت له زمانې څخه) د اُمت اجماع سوې ده چي د اناگانو سره نکاح کول حرام دي، او د کتابُ الله په څير اجماع هم د شريعت اصل او بنياد دی، نو ځکه به د انا سره نکاح کول حرام وي.

**ولا ببنت ولده إلخ**: فرمايي چي څرنگه د انا پر حُرمت د اُمت اجماع او تفاق دی، همدارنگه د لمسيانو سره هم د نکاح کولو پر حُرمت د ټوله اُمت اتفاق دی، نو د دې اتفاق او اجماع په سبب به لمسياني هم په مُحرّماتو کي داخلي وي او د هغوی سره به نکاح کول حرام وي.

**ولا بأخته**: د دې حاصل دا دی چي د خور، امه، خاله او د وريرې او خورزې سره نکاح کول هم حرام دي؛ ځکه چي د دې ښځو حُرمت هم په دې آيت کي ذکر سوی دی: ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ

وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الأَخِ وَبَنَاتُ الأُخْتِ﴾، له "بَنَاتُ الأَخ" څخه مراد د ورور لوڼي (يعني وريره ګانې) دي، او له "بَنَاتُ الأخت" څخه مراد د خور لوڼي (يعني خورزه ګانې) دي.

**وتدخل فيها العمات المتفرقات**: د دې حاصل دا دی چې په قرآن کې د "عمات، خالات، بناتُ الأخ، بناتُ الأخت" الفاظ مطلق ذکر سوي دي، نو ځکه به هر قسم امه ګانې، خاله ګانې... او داسې نورې حرامې وي، او د هغوی سره به نکاح کول ناجائز وي.

**العمات المتفرقات**: امه پر درې قسمه ده: ① حقيقي امه، يعني د پلارسکه خور، چې د پلار سره په پلار او مور دواړو شريکه وي، ② علاتي امه، چې د پلار سره فقط په پلار شريکه وي (کوم ته چې مېرېزې امه وايي)، ③ أخيافي امه، چې د پلار سره فقط په مور شريکه وي (کوم ته چې مورنۍ امه يا ناسکه امه او داسې نور وايي)، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په پورتنې آيت کې د "عمات" لفظ عام او مطلق دی، نو ځکه دغه درېو سره قسمونو ته شامل دی.

**الخالات المتفرقات**: خاله هم پر درې قسمه ده: ① حقيقي خاله، د مور سکه خور چې په پلار او مور دواړو ور سره شريکه وي، ② علاتي خاله، چې فقط په پلار ور سره شريکه وي، ③ أخيافي خاله، چې فقط په مور ور سره شريکه وي، د نکاح په حُرمت کې دا درې سره قسمه خاله ګانې شريکې دي، ځکه چې په آيت کې د "خَالات" لفظ عام دی، ټولو ته شامل دی.

**بنات الإخوة المتفرقين**: وريره هم پر درې قسمه ده: ① حقيقي وريره، يعني د سکه ورور لور، ② علاتي وريره، يعني د مېرېزي ورور لور، ③ أخيافي وريره، د مورني ورور لور (يعنې د هغه ورور لور چې د سړي سره فقط په مور شريک وي)، په حرمت کې دا درې سره قسمه وريره ګانې داخلې دي، ځکه چې د "بَنَاتُ الأَخ" لفظ عام دی، ټولو ته شامل دی.

همدارنګه د خورزې (يعني د خور د لور) هم درې قسمه دي، او درې سره قسمه په حرمت کې داخل دي، ځکه چې په آيت کې د "بَنَاتُ الأخت" لفظ عام دی، ټولو ته شامل دی.

**يادونه**: مصنف رَحِمَهُ الله فقط "بنات الإِخْوَة" (وريره ګانې) ذکر کړي دي، خو ښکاره دي وي چې په دې کې "بنات الأَخَوَات" (خورزه ګانې) هم داخلې دي، ځکه چې دا لفظ "بنات الإِخْوَة" دواړو ته شامل دی، او د هر يوه درې قسمونه دي، لکه لوړ چې ذکر سول، او د پورتني آيت په وجه د ټولو سره نکاح حرامه ده.

## د خواښې او داسې نورو د حرمت بيان

قَالَ: وَلَا بِأُمِّ امْرَأَتِهِ فرمايي: او نه [نكاح حلاله ده] د خپلې خواښې سره الَّتِيْ دَخَلَ بِهَا أَوْ لَمْ يَدْخُلْ [ابرابره ده] د هغې د لور سره يې وطي كړې وي او كه نه وي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَأُمَّهَاتُ نِسَائِكُمْ [النساء: ۲۳] ځكه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: ستاسي د ښځو مندي [پر تاسو حرامي دي] مِنْ غَيْرِ قَيْدِ الدُّخُوْلِ بغير له قيد څخه د دخول [يعني په دې آيت كې د وطي او دخول هيڅ قيد نسته] وَلَا بِبِنْتِ امْرَأَتِهِ الَّتِيْ دَخَلَ بِهَا او نه [نكاح حلاله ده] د خپلې هغه ښځې د لور سره چې د هغې سره يې وطي كړې وي لِثُبُوْتِ قَيْدِ الدُّخُوْلِ بِالنَّصِّ ځكه چې د دخول [او وطي] قيد په آيت سره ثابت دى سَوَاءٌ كَانَتْ فِيْ حِجْرِهِ برابره ده كه هغه لور د ده په پالنه [او روزنه] كې وي أَوْ فِيْ حِجْرِ غَيْرِهِ يا د بل چا په پالنه كې وي لِأَنَّ ذِكْرَ الْحِجْرِ خَرَجَ مَخْرَجَ الْعَادَةِ ځكه چې [په قرآن كې] د پالنې [او روزنې] ذكر د عادت په توګه سوى دى لَا مَخْرَجَ الشَّرْطِ نه د شرط په توګه وَلِهٰذَا اكْتَفٰى فِيْ مَوْضِعِ الْإِحْلَالِ بِنَفْيِ الدُّخُوْلِ له همدې كبله يې [په آيت كې] د إحلال پر موقع فقط د دخول [او وطي] پر نفي اكتفاء كړې ده.

**اللغات:** ﴿أم إمْرَأتِهِ﴾ خپله خواښې، ﴿دَخَلَ﴾ د نصر ماضي ده: داخلېدل، دلته دخول كول او وطي څني مراد دي، ﴿حِجْر﴾ غېږه، پالنه او روزنه. جمع: حُجُوْر. ﴿إحْلَال﴾ حلال كول، روا كول.

**تشريح:** دا عبارت د "حُرمتِ مصاهرت" په باره كې دى، حاصل يې دا دى چې د خواښې سره د همېشه لپاره مطلقاً نكاح كول حرام دي، برابره ده خاوند د هغې د لور سره وطي او كوروالى كړى كه نه وي؛ دليل دا دى چې په قرآن كې د خواښې حرمت مطلق ذكر سوى دى، د وطي او دخول هيڅ قيد پكښې نسته، بلكې فقط پر "أُمَّهَاتِ نِسَائِكُمْ" اكتفاء سوې ده. نو ځكه به د خواښې حرمت مطلق وي، هغه كه خاوند د خپلې ښځې سره وطي كړې وي كه نه وي.

**ولا ببنت امرأته التي إلخ:** د دې حاصل دا دى چې د سړي لپاره دا هم روا نه دي چې د ربيبه نجلۍ سره نكاح وكړي، ربيبه د ښځې د مخكنۍ مېړه لور ته وايي يعني چې له مخكني مېړه څخه ورپاته وي. د داسې نجلۍ سره په دې شرط نكاح روانه ده چې سړي د هغې د مور سره وطي كړې وي، او كه وطي يې نه وي ور سره كړې، نو بيا نكاح روا ده؛ دليل يې دا دى چې قرآن كريم د ربيبه نجلۍ د حكم بيانولو په وخت كې د هغې د مور سره د وطي او دخول كولو قيد هم ذكر كړى دى، الله تعالیٰ فرمايي: ﴿وَرَبَائِبُكُمُ

اللَّاتِیْ فِیْ حُجُوْرِكُمْ مِنْ نِسَائِكُمُ اللَّاتِیْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ...(الخ)﴾، نو کله چي په آيت (نص) کي دا حکم د وطي او دخول په قيد سره مقيّد دی، لهذا که وطي او دخول سوی وي نو نکاح به حرامه وي، کنې حرامه به نه وي.

**سواء كانت فى حجره الخ:** په دې عبارت سره د يو سوال جواب ورکوي، هغه دا چي قرآن کريم د دخول د قيد سره د پالني او روزني "حُجُوْر" قيد هم ذکر کړی دی، او د دې مطلب دا کيږي چي د ربيبه نجلۍ سره د سرې نکاح هغه وخت حرامه ده چي هغه د دې سړی تر پالني او روزني لاندي وي، او که چيري د مخکني خاوند يا د بل کس په پالنه کي وي، نو بيا نکاح ور سره روا ده، حال دا چي حکم د دې په خلاف دی؟

نو د دې جواب دا دی چي د "حِجْر" قيد اتفاقي او عادي (عُرفي) دی، احترازي نه دی، يعني په عامه توګه عادت او رواج همدا دی چي د داسي نجونو او کوچنيانو پالنه دويم خاوند کوي، ځکه چي ښځه خپل کوچنيان د ځان سره را ولي اول خاوند ته يې نه پرېږدي، همدا وجه ده چي قرآن کريم (د ربيبه نجلۍ) سره د نکاح د روايښت (إحلال) په بيان کي فقط د دخول پر نفي اکتفاء کړې ده، د "حِجْر" نفي يې نه دي کړي، لکه چي فرمايي: "فَإِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ"، لهذا که چيري د دخول د نفي سره د "حِجْر" نفي هم شرط وای، نو تر "دَخَلْتُمْ بِهِنَّ" وروسته به يې د "وَلَسْنَ فِیْ حُجُوْرِكُمْ" قيد هم ذکر وای، لهذا د دغه قيد نه ذکر کېدل د دې خبري ښکاره دليل دی چي دلته د "حِجْر" قيد اتفاقي او عادي دی، احترازي نه دی.

## د يو څو نورو محرّماتو بيان

قَالَ: وَلَا بِامْرَأَةِ أَبِيْهِ وَأَجْدَادِهِ فرمايي: او نه [نکاح روا ده] د خپل پلار د ښځي سره [يعني د مېرېزۍ مور سره] او نه د خپلو نيکه ګانو د ښځو سره [يعني د مېرېزۍ اناګانو سره] لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ [النساء: ۲۲] ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: د هغو ښځو سره نکاح مه کوئ! چي ستاسو پلرونو نکاح ور سره کړې وي وَلَا بِامْرَأَةِ ابْنِهٖ وَبَنِیْ أَوْلَادِهٖ او نه [نکاح کول روا دي] د زوی د ښځي سره او نه د لمسيانو د ښځو سره [يعني د خپلو مړيندو سره نکاح کول هم حرام دي] لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى: وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِيْنَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ [النساء: ۲۳] ځکه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: او

ستاسي د هغو زامنو ښځي كوم چي ستاسو له شا [نسل] څخه وي [هم پر تاسو حرامي دي] وَذِكْرُ الْأَصْلَابِ لِإِسْقَاطِ اعْتِبَارِ التَّبَنِّيْ او [په آيت کي] د "أصلاب" ذکر د متبنّىٰ [نومولي زوى] د ساقطولو لپاره دى لَا لِإِحْلَالِ حَلِيْلَةِ الِابْنِ مِنَ الرَّضَاعَةِ نه د رضاعي زوى د ښځي د حلالوالي لپاره وَلَا بِأُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ وَلَا بِأُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ او نه [نکاح کول روا] دي د خپلي رضاعي مور سره او نه د خپلي رضاعي خور سره لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِيْ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ مِنَ الرَّضَاعَةِ [النساء: ۲۳] ځکه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: او ستاسي هغه مندي چي تاسو ته يې شيدې درکړي وي او ستاسي رضاعي خوندي [پر تاسو حرامي دي] وَلِقَوْلِهِ ﷺ [1]: يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ او د نبي کريم ﷺ د دې قول په وجه: کوم شيان چي د نسب په سبب حراميږي هغه د رضاعت په سبب [هم] حراميږي.

**اللغات:** ﴿أَجْدَاد﴾ جمع د جَدٌّ: نيکه (هغه که د مور له طرفه وي، که د پلار له طرفه)، ﴿حَلَائِل﴾ جمع د حَلِيْلَةٌ ده: ماينه (زوجه)، له حَلَائِلُ أَبْنَائِكُم څخه مراد مرېندي دي، ﴿أَصْلَاب﴾ جمع د صُلْبٌ ده: شا (ملا)، مراد ځني حقيقي زوى دى (يعني هغه زوى چي د انسان له خپلي ملا څخه وي)، ﴿التَّبَنِّيْ﴾ د تَفَعُّل مصدر دى: مراد ځني نومولى زوى دى، (يعني هغه هلک چي سړي خپل زوى ګرځولى وي، حقيقي زوى يې نه وي)، ﴿رَضَاعَة﴾ له سمع، فتح او ضرب ټولو څخه مصدر دى: د مور شيدې رودل، دلته ځني مراد رضاعي قرابت دى، (د کومي ښځي شيدې چي سړي رودلي وي، هغې ته د ده رضاعي مور وايي، او د رضاعي مور لوڼي د ده رضاعي خوندي کيږي).

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي د انسان لپاره د خپل پلار او نيکه د منکوحه ښځي سره، په بله وينا د خپلي مېرېزى مور او انا سره نکاح کول حرام دي؛ دليل دا آيت دى: ﴿وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ...(إلخ)﴾ (يعني تاسي د خپل پلار د منکوحه ښځو سره نکاح مه کوئ!)، که څه هم په دې آيت کي صراحتاً نيکه نه دي ذکر سوى، خو ضمناً ذکر سوى دى، ځکه چي نيکه هم په "أب" کي داخل دى، ځکه د "أب" لغوي معنىٰ ده: "أصل"، او نيکه هم د انسان له أصولو څخه دى، يا دا چي د نيکه د ښځي پر حرمت اجماع سوې ده، لنډه دا چي هغه حرامه ده، او د روايښت هيڅ ګنجايش پکښې نسته.

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الشهادات، باب الشهادة على الأنساب والرضاع، حديث رقم: ۲۶۴۵.

(۲)... دویمه مسئله دا ده چې د خپل زوی د ښځې يعني د ميرور سره همدارنګه د لمسي د ښځې سره هم نکاح حرامه ده، دليل دا آيت دی: ﴿وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ...(الخ)﴾.

**وذكر الأصلاب إلخ:** په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې په آيت کې د "أصلاب" له قيد څخه دا معلوميږي چې د رضاعي زوی د ښځې سره نکاح روا ده، حال دا چې د هغې سره هم نکاح حرامه ده، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په جواب کې فرمايي چې د "أصلاب" قيد د متبنّیٰ يعني د نوملي زوی د ساقطولو او خارجولو لپاره دی، يعني د متبنّیٰ ښځه په دې حکم کې داخله نه ده بلکې د هغې سره نکاح روا ده، لکه په خپله چې د نبي کريم ﷺ عمل پر دې ګواه دی چې هغه د خپل متبنّیٰ حضرت زيد بن حارثه د ښځې "حضرت زينب ﷺ" سره نکاح وکړه. او دا (د "أصلاب") قيد د رضاعي زوی د ساقطولو لپاره نه دی، ځکه چې په دې حديث "يَحْرُمُ مِنَ الرِّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ" سره رضاعي زوی د نسبي زوی په حکم کې ګرځول سوی دي، له دې څخه معلومه سوه چې د "أصلاب" په قيد سره فقط متبنّیٰ خارج سوی دی، لهذا اعتراض کول صحيح نه دي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده چې د رضاعي مور او رضاعي خور سره هم نکاح حرامه او ناجائز ده، د دوی حرمت په قرآن او حديث دواړو سره ثابت دی، حديث خو اوس ذکر سو يعني: "يَحْرُمُ مِنَ الرِّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ"، او قرآني دليل دا آيت دی: ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ مِنَ الرَّضَاعَةِ﴾.

## د دوو خوندو سره د نکاح کولو حکم

**وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ أُخْتَيْنِ بِنِكَاحٍ** او نه دې دوې خوندې په [يوه] نکاح کې جمع کوي **وَلَا بِمِلْكِ يَمِينٍ وَطْئًا** او نه دې يې د ملکِ رقبې په ذريعه په وطي کې [جمع کوي] لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ [النساء: ۲۳] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او [حرام دي دا] چې تاسي دوې خوندې سره جمع کړی وَلِقَوْلِهِ الطَّيِّلاً [1]: مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ او ځکه چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: څوک چې پر الله او د آخرت پر ورځې ايمان لري فَلَا يَجْمَعَنَّ مَاءَهُ فِي رَحِمِ أُخْتَيْنِ نو هغه دې [هيڅکله] نه جمع کوي خپلې اوبه د دوو خوندو په رحم کې.

**اللغات:** ﴿مِلْكِ يَمِينٍ﴾ د رقبې ملکيت (د غلام يا مينځې مالک کېدل (يعني چې غلام يا مينځه د انسان په ملکيت کې راسي)، ﴿مَاء﴾ اوبه، مراد څخې مني دي.

[1] تخريج: أخرجه البخارى فى كتاب النكاح، باب رقم:۲۶، حديث رقم:۵۱۰۶ فى معناه.

**تشريح:** دا عبارت د "جمع بين الأختين" د حرمت په باره کې دی، حاصل يې دا دی چې د هيڅ لپاره هم دا روا نه دي چې دوې خوندې په يوه نکاح کې جمع کړي، همدارنګه پر يوه ځای د دوو داسې مينځو مالک کېدل خو صحيح دي چې دواړې سره خوندې وي، لېکن پر يوه ځای د دواړو سره (يعني کله د يوې سره او کله د بلې سره) وطي کول روا نه دی. د دوو خوندو د حرمت دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ﴾ دی.

او بل دليل دا حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو يعني: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ...(إلخ)".
او د دوو مينځو (خوندو) سره د وطي کولو د حرمت دليل هم دغه حديث دی؛ ځکه په دې حديث کې مطلقاً د دوو خوندو په رحم کې له اوبو جمع کولو (وطي کولو) څخه منع سوې ده، برابره ده که هغوی دواړې مينځې وي او که آزادې وي.

## د مينځې د خور سره د نکاح کولو حکم

فَإِنْ تَزَوَّجَ أُخْتَ أَمَةٍ لَهُ قَدْ وَطِئَهَا که [يو سړی] نکاح وکړي د مينځې د خور سره په داسې حال کې چې د مينځې سره يې وطي کړې وي صَحَّ النِّكَاحُ نو نکاح صحيح ده لِصُدُورِهِ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلَى مَحِلِّهِ ځکه چې نکاح له خپل أهل څخه صادره سوه [او] د خپل محل وطرف ته يې نسبت وسو وَإِذَا جَازَ لَا يَطَأُ الْأَمَةَ او کله چې نکاح جائز ده نو [د دې سړي لپاره حکم دا دی] چې د مينځې سره دې وطي نه کوي وَإِنْ كَانَ لَمْ يَطَأْ الْمَنْكُوحَةَ که څه هم [د هغې دا منکوحه (خور) سره يې وطي نه وي کړې لِأَنَّ الْمَنْكُوحَةَ مَوْطُوءَةٌ حُكْمًا ځکه چې منکوحه ښځه د حکم په اعتبار سره وطي کړی سوې ده وَلَا يَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ لِلْجَمْعِ او د منکوحې مينځې سره دې [هم] وطي نه کوي [د دوو خوندو] د جمع کېدو په وجه إِلَّا إِذَا حَرَّمَ الْمَوْطُوءَةَ عَلَى نَفْسِهِ بِسَبَبٍ مِنَ الْأَسْبَابِ خو دا چې وطي کړی سوې مينځه په يوه سبب سره پر ځان حرامه کړي فَحِينَئِذٍ يَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ نو په دې وخت کې د منکوحه مينځې سره وطي کولای سي لِعَدَمِ الْجَمْعِ ځکه چې [اوس د وطي په اعتبار سره] جمع کېدل نسته [يعني ځکه چې اوس د جمع بين الوطی خرابي نه پېښيږي] وَيَطَأُ الْمَنْكُوحَةَ او د منکوحه مينځې سره وطي کولای سي إِنْ لَمْ يَكُنْ وَطِئَ الْمَمْلُوكَةَ که چيرې هغه د مملوکه مينځې سره وطي نه وي کړي لِعَدَمِ الْجَمْعِ وَطْئًا ځکه چې د وطي په اعتبار سره جمع کېدل نسته إِذِ الْمَرْقُوقَةُ لَيْسَتْ مَوْطُوءَةً حُكْمًا ځکه چې مملوکه مينځه

د حکم په اعتبار سره وطي کړی سوې نه ده [يعني مملوکه مينځه د انسان په ملکيت سره وطي کړی سوې نه شمارل کيږي].

**اللغات:** ﴿صدور﴾ د نصر مصدر دی: صادر بدل، واقع کېدل، ﴿مَوْطُوْءَة﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: وطي کړې سوې ښځه. هغه ښځه چي جماع (وطي) ور سره سوي وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديو چا په ملکيت کي موطوئه مينځه وي يعني هغه وطي ور سره کړي وي. او بيا هغه د دې موطوئه مينځي د خور سره نکاح وکړي، نو دا نکاح صحيح او جائز ده.

دليل دا دی چي دا نکاح له داسي کس څخه صادره سوې ده چي هغه د نکاح أهليت لري (يعني عاقل او بالغ دی)، همدارنګه د چا سره چي يې نکاح کړې ده هغه اجنبيه (پردی ښځه) ده او د نکاح محل ده. لهذا نکاح يې هم په خپل محل کي واقع سوه. نو ځکه به نکاح صحيح او جائز وي. او تر نکاح وروسته هغه بيا د خپلي موطوئه (مملوکه) مينځي سره وطي نه سي کولای. که څه هم د هغې د منکوحه خور سره يې تر اوسه وطي کړي نه وي. او منکوحه حکماً د موطوئې په درجه کي ده. نو اوس که هغه د مملوکه مينځي سره وطي وکړي، نو د جمع بين الأختين في الوطی خرابي به پيښه سي. کوم چي ناروا او حرامه ده. او د منکوحې مينځي سره د وطي کولو په صورت کي هم پورتنۍ خرابي پيښيږي. نو ځکه د هغې سره هم وطي نه سي کولای (لنډه دا چي په دې صورت کي هغه نه د مملوکه مينځي سره وطي کولای سي او نه د هغې د خور يعني د منکوحه مينځي سره وطي کولای سي).

لېکن که تر نکاح کولو وروسته خاوند خپله موطوئه (مملوکه) مينځه په يو سبب سره پر ځان حرامه کړي. مثلاً خرڅه يې کړي يا يې بل چا ته هبه کړي او هغه ته يې وسپاري. يا په يو بل سبب سره يې پر ځان حرامه کړي، نو بيا د منکوحه مينځي سره وطي کولای سي، ځکه چي اوس د جمع بين الأختين في الوطی خرابي مينځ ته نه راځي.

او که چيري هغه د مملوکه مينځي سره بالکل وطي کړي نه وي. نو بيا د منکوحه مينځي سره وطي کولای سي، ځکه چي مملوکه مينځه موطوئه نه شمارل کيږي (يعني صرف په ملکيت کي د مينځي په موجودوالي سره هغه وطي کړي سوې نه شمارل کيږي. بلکي وطي شرط دي). لهذا دا صورت هم د جمع بين الأختين في الوطی د خرابی څخه پاک دی. نو ځکه په دې صورت کي د منکوحې مينځي سره وطي کول صحيح او جائز دي.

## د دوو خوندو سره د نکاح کولو يو بل صورت

فَإِنْ تَزَوَّجَ أُخْتَيْنِ فِي عُقْدَتَيْنِ او که [يو سړی] نکاح وکړي د دوو خوندو سره په دوو عقدونو کي وَلَا يَدْرِيْ أَيَّتُهُمَا أُوْلٰى او خبر نه وي [په دې] چي کومه يوه اوله ده فُرِّقَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمَا نو د خاوند او دوو خوندو په مينځ کي به تفريق کيږي [يعني له خاوند څخه به دواړي خوندي جلا کول کيږي] لِأَنَّ نِكَاحَ إِحْدَاهُمَا بَاطِلٌ بِيَقِيْنٍ ځکه چي په دواړو کي د يوې نکاح په يقيني توګه باطله ده وَلَا وَجْهَ إِلَى التَّعْيِيْنِ او [له دواړو څخه د يوې] د متعيّنولو هيڅ صورت نسته لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ ځکه چي اول والي نسته [يعني ځکه چي د يوې اول والی (سړي ته) معلوم نه دی] وَلَا إِلَى التَّنْفِيْذِ مَعَ التَّجْهِيْلِ او د جهالت سره د نکاح د نافذولو [هم] هيڅ صورت نسته لِعَدَمِ الْفَائِدَةِ ځکه [په دې کي هيڅ] فايده نسته أَوْ لِلضَّرَرِ يا دا چي [په دې کي] نقصان سته فَتَعَيَّنَ التَّفْرِيْقُ نو په دې وجه [د دوی په مينځ کي صرف] تفريق متعيّن سو وَلَهُمَا نِصْفُ الْمَهْرِ او د دواړو لپاره به نيم مهر واجب وي [يعني هغه سړی به دغه دواړو خوندو نيم مهر ورکوي] لِأَنَّهُ وَجَبَ لِلْأُوْلٰى مِنْهُمَا ځکه چي [دا] نيم مهر خو واجب سوی وو د اولي [خور] لپاره وَانْعَدَمَتِ الْأَوْلَوِيَّةُ لِلْجَهْلِ بِالْأَوْلَوِيَّةِ [لېکن داولي خور] ترجيح [او ولايت] معلوم سو په اول والي سره د ناخبرۍ په وجه [يعني ځکه چي سړي ته د يوې اول والی معلوم نه دي چي کومه يوه اوله ده] فَيُصْرَفُ إِلَيْهِمَا نو ځکه به [نيم مهر] دواړو ته ورکول کيږي وَقِيْلَ: لَا بُدَّ مِنْ دَعْوٰى كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا أَنَّهَا الْأُوْلٰى او يو قول دا دی: چي له دواړو څخه د هري يوې [دا] دعوه کول ضروري دي چي زه اوله يم أَوْ الْاِصْطِلَاحِ يا [د دواړو خوندو] صلح [او اتفاق] کول ضروري دي لِجَهَالَةِ الْمُسْتَحِقَّةِ ځکه چي حقداره [خور] مجهوله ده.

**اللغات:** ﴿أُوْلَوِيَّة﴾ د الف په "ضمه" سره: له "أُوْلٰى" څخه مشتق دی، معنیٰ يې ده: اول والی، مخکښي والی (أُوْلٰى د مؤنث لپاره راځي؛ ځکه چي د مذکر لپاره أَوَّل استعماليږي)، ﴿أَوْلَوِيَّة﴾ د الف په "فتحه" سره: له "أَوْلٰى" څخه مشتق دی، معنیٰ يې ده: غوره والی، افضليت، ترجيح، مراد ځني ولايت او ملکيّت دی.

**تشريح : صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي په دوو جلا عقدونو کې د دوو خوندو سره نکاح وکړي (د دوو عقدونو قيد يې ځکه ولګوی چې که په يوه عقد کې د دوو خوندو سره نکاح وکړي، نو په هغه ګړي د دواړو نکاح باطليږي، ځکه چې په يوه عقد (نکاح) کې د دوو خوندو جمع کول جائز نه دي، لېکن که په دوو جلا عقدونو کې نکاح ورسره وکړي) او دا معلومه نه وي چې د کومې يوې سره يې اول نکاح وکړه (ځکه که دا معلومه وي چې د فلانکۍ سره يې اول نکاح وکړه، نو هغه يې په نکاح کېږي او د دويمې نکاح باطليږي)، نو په داسې صورت کې به قاضي د خاوند او دواړو خوندو په مينځ کې تفريق کوي، او دا تفريق به طلاقِ بائن شمارل کيږي.

دليل يې دا دی چې په دې دواړو کې د يوې نکاح په يقيني توګه جائز ده او د يوې نکاح په يقيني توګه باطله ده، نو اوس د قاضي لپاره دوه صورتونه دي: ① يو دا چې په دواړو خوندو کې يوه متعيّنه کړي او د هغې سره د خاوند نکاح نافذ کړي، ② دويم دا چې د جهالت په وجه د دواړو سره د خاوند نکاح نافذ کړي، لېکن دا دواړه صورتونه ممکن نه دي؛ اول صورت خو په دې وجه ممکن نه دی چې د يوې ښځې په متعيّنولو سره ترجيح بلا مرجح راځي کوم چې صحيح نه دی، دويم صورت ځکه ممکن نه دی چې د دواړو د نکاح په نافذولو کې هيڅ فايده خو نسته بلکې په دې کې (د خوندو) نقصان هم دی، فايده ځکه نسته چې د نکاح مقصد د وطي حلال والی او د أولاد حاصلول دي، لېکن په دې صورت کې هغه يوې ته ور نژدې کېدلای هم نه سي وطي خو هلته پرېږده! (ځکه چې په دې صورت کې يوه خور د هغه منکوحه ګرځي او بله يې مملوکه ګرځي، او د دې حکم مخکې ذکر سو)، لهذا د دواړو د نکاح په نافذولو کې هيڅ فايده نسته، او نقصان په دې توګه دی چې دواړې خوندې به د يوه سړي تر قبضې لاندې اوسيږي او دواړو ته به فقط يوه نفقه ورکول کيږي او دوی به هيچا سره نکاح نه سي کولای، نو دا صورت هم ممکن نه دی، لهذا کله چې دا دواړه صورتونه ناممکن دي، نو له تفريق څخه پرته بله هيڅ لاره نسته، د دوی په مينځ کې به تفريق راوستل کيږي، چې د جمع خرابې او داسې نورې خرابيانې مينځ ته را نه سي، او چې دا ښځې (خوندې) يو بل ځای خپله نکاح وکړي او په آزاده ژوند تېر کړي.

**ولهما نصف المهر الخ**: د دې حاصل دا دی چې تر تفريق وروسته به دواړو منکوحه خوندو ته نيم مهر ورکول کيږي، مثلاً که مهر زر (۱۰۰۰) درهمه وو، نو دواړو ته به په ګډه پنځه سوه درهم ورکول کيږي چې د هرې يوې لپاره به دوه نيم سوه (۲۵۰) درهم وي؛ دليل دا دی چې مهر په حقيقت کې د اولې خور لپاره واجب دی (ځکه چې د بلې خور نکاح په يقيني توګه باطله ده)، او څرنګه چې دا تفريق قبل الدخول دی، نو ځکه به اوله خور فقط د نيم مهر حقداره وي، خو څرنګه چې دلته اول والی معلوم نه دی چې کومه يوه اوله ده، لهذا ظاهراً پر هرې يوې د نکاح د صحت او عدمِ صحت حکم

کېدای سي، نو د دوی په مينځ کي ترجيح مشکل ده، نو ځکه به دا نيم مهر دواړو ته په ګډه ورکول کيږي.

**وقيل لابد إلخ**: د فقيه ابو جعفر او نورو رايه دا ده چي په دغه دواړو خوندو کي هري يوې ته دا دعوه کول پکار دي چي زه اوله منکوحه يم، د دې لپاره چي د قاضي لپاره فيصله کول مشکل سي. او هغه په نيم مهر کي دواړي ګډي او شريکي کړي، يا دا چي دواړي خوندي دي په خپل مينځ کي صلح وکړي او د نيم مهر پر شرکت او ګډون دي راضي سي.

## د دوو محرمو ښځو سره د نکاح کولو بيان

**وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا** او نه دي سره جمع کوي [په يوه نکاح کي] ښځه او د هغې امه **أَوْ خَالَتِهَا** يا د هغې خاله **أَوِ ابْنَةِ أَخِيهَا** يا د هغې ورېره **أَوِ ابْنَةِ أُخْتِهَا** يا د هغې خورزه **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ** [1] ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي **لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا وَلَا عَلَى خَالَتِهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أَخِيهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أُخْتِهَا** نه دي په نکاح کيږي ښځه د هغې پر امه او نه پر خاله او نه پر ورېرې او نه پر خورزې **وَهٰذَا مَشْهُورٌ** او دا حديث مشهور دی **يَجُوزُ الزِّيَادَةُ عَلَى الْكِتَابِ بِمِثْلِهِ** [او] په داسي حديث سره په کتابُ الله باندي زيادت کول جائز دي.

**اللغات**: ﴿عَمَّة﴾ امه (امکه)، ﴿لَا تُنْكَحُ﴾ د فتح له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: نکاح ور سره کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که يو سړي ديوې ښځي سره نکاح کړې وي، نو د هغې ښځي په وجود کي د هغې د امه او خاله سره نکاح کول جائز نه دي، همدارنګه د سړي لپاره د هغې د ورېرې او خورزې سره نکاح کول جائز نه دي، دليل پورتنی حديث دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو چي نبي کريم ﷺ له دې څخه منع کړې ده، دا حديث امام مسلم، امام ابوداو او امام ترمذی روايت کړی دی، او مشهور حديث دی، د حديث مضمون که څه هم د قرآن د دې آيت ﴿وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذٰلِكُمْ﴾ [سورة النساء:۲۴]، مخالف دی (ځکه چي په دې آيت کي د ښځي سره د امه، خاله او د داسي نورو د جمع کولو حرمت نه دي ذکر سوی)، خو څرنګه چي دا حديث مشهور دی، او په حديث مشهور سره په کتابُ الله باندي زيادت جائز دی، او په دې سره هيڅ خرابي مينځ ته نه راځي.

[1] تخريج: أخرجه أبوداؤد في كتاب النكاح، باب ما يكره أن يجمع بينهن من النساء، حديث رقم:۲۰۶۵. والترمذي في كتاب النكاح، باب رقم ۳۰: حديث رقم ۱۱۲۶

## د پورتني مسئلې په هکله يوه قاعده او اصول

وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ امْرَأَتَيْنِ او نه دې جمع کوي [په يوه نکاح کې] داسې دوې ښځې لَوْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا رَجُلًا چې که [بالفرض] په دوی کې يوه ښځه نارينه وای لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْأُخْرَى نو جائز به نه وای د سړي لپاره چې د بلې سره نکاح وکړي لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَهُمَا يُفْضِي إِلَى الْقَطِيعَةِ ځکه چې د داسې دوو ښځو جمع کول د قطع رحمۍ سبب جوړېږي وَالْقَرَابَةُ الْمُحَرَّمَةُ لِلنِّكَاحِ مُحَرِّمَةٌ لِلْقَطْعِ او کوم قرابت چې نکاح حراموي هغه قطع رحمي هم حراموي وَلَوْ كَانَتِ الْمَحْرَمِيَّةُ بَيْنَهُمَا بِسَبَبِ الرَّضَاعِ او که د دوی په مينځ کې حُرمت د رضاعت په وجه وه يَحْرُمُ لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ نو د دوی جمع کول [به د هغه حديث په وجه حرام وي کوم چې موږ مخکې بيان کړی.

**اللغات:** ﴿قَطِيعَة﴾ قطع رحمي (وسيله شکول)، د قريب سره بد چلندي کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې امام قدوري رَحِمَهُ الله د "جمع بين المرأتين" د حلت او حرمت په حواله سره يوه قاعدهٔ کليه بيانوي، قاعده دا ده چې د سړي لپاره هرې دوې داسې ښځې په يوه نکاح کې جمع کول حرام دي چې که يوه ښځه له دوی دوو څخه نارينه فرض کړی سي، نو نکاح به يې په خپل مينځ کې حرامه وي، مثلاً يوه وريره وي او بله يې امه وي، نو که وريره نارينه فرض کړی سي نو هغه به وراره سي، او د وراره او امه په مينځ کې نکاح حرامه ده، نو ځکه به وريره او امه په نکاح کې سره جمع کول حرام وي، همدارنګه که امه نارينه فرض کړی سي نو هغه به اکا وي، او د اکا او وريرې په مينځ کې نکاح حرامه ده، همدارنګه د خورزې او خاله مثال دی.

دليل مخکنی حديث دی يعني: "لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا... (الخ)" د همدغه حديث پر بناء مصنف رَحِمَهُ الله دا قاعدهٔ کليه بيان کړې ده.

**لأن الجمع بينهما يفضي إلخ:** عقلي دليل دا دی چې د داسې دوو قريبو ښځو جمع کول د دوی دواړو په مينځ کې د قطع رحمۍ سبب جوړېږي، ځکه چې په دې صورت کې يوه د بلې بَنْ ګرځي، او دا ښکاره خبره ده چې د بُونو په مينځ کې عموماً دښمني (نفرت) وي، او قطع رحمي او دښمني حرامه ده، نو کوم شی چې د دښمنۍ سبب جوړېږي، هغه به هم حرام وي.

**ولو كانت المحرمية إلخ:** فرمايي که د "جمع بين المرأتين" د حرمت سبب رضاعت وي، نو په دې صورت کې به د هغه حديث وجه د دوی جمع کول حرام وي کوم چې مخکې بيان کړی يعني دا حديث: "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ".

## په پورتنۍ قاعده باندې يوه تفريع سوې مسئله

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ امْرَأَةٍ وَبِنْتِ زَوْجٍ كَانَ لَهَا مِنْ قَبْلُ او هيڅ حرج نسته په دې کې چې جمع کړي [په يوه نکاح کې] ښځه او د هغې د مخکنې خاوند لور [کوم چې يې له دويمې ښځې څخه وي، يعني د ښځې مېړېزې لور وي] لِأَنَّهُ لَا قَرَابَةَ بَيْنَهُمَا وَلَا رَضَاعَ ځکه چې د دې دواړو په مېنځ کې نه قرابت سته او نه رضاعت وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوزُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا نکاح جائز نه ده لِأَنَّ ابْنَةَ الزَّوْجِ لَوْ قَدَّرْتَهَا ذَكَرًا ځکه که د (اول) خاوند لور [يعني مېړېزې لور] ته نارينه فرض کړې لَا يَجُوزُ لَهُ التَّزَوُّجُ بِامْرَأَةِ أَبِيهِ نو جائز به نه وي د هغه لپاره د خپل پلار د ښځې سره نکاح کول قُلْنَا: اِمْرَأَةُ الْأَبِ لَوْ صَوَّرْتَهَا ذَكَرًا موږ جواب ورکوو چې که ته د پلار ښځه [يعني مېړېزې مور] نارينه فرض کړې جَازَ لَهُ التَّزَوُّجُ بِهٰذِهٖ نو د هغه لپاره به د دې نجلۍ سره نکاح کول جائز وي وَالشَّرْطُ أَنْ يُصَوَّرَ ذٰلِكَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او شرط دا دی چې دا [نه جائز کېدل] له هر طرف څخه فرض کړی سي.

**اللغات:** ﴿قَدَّرْتَ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مذکر مخاطب ماضي صيغه ده: فرض کول، اندازه کول.
﴿صَوَّرْتَ﴾ مخکنۍ صيغه ده: تصوّر کول، سنجول، فرض کول.

**تشريح:** په تېر عبارت کې چې د "جمع بين المرأتين" په هکله کومه قاعده بيان سوه، دا مسئله پر هغه قاعدې متفرع سوې ده، حاصل د مسئلې دا دی چې ښځه او د هغې د اول خاوند د بلې ښځې لور په نکاح کې سره جمع کول صحيح او جائز دي، په لنډه توګه دا چې مېرېزې مور او د هغې مېرېزې لور سره جمع کول جائز دي، د مثال په توګه د زيد دوې ښځې په نکاح دي، يوه حفصه او بله فاطمه، او له فاطمې څخه يوه لور هم لري چې د هغې نوم زينب دی، اوس که زيد حفصې ته طلاق ورکړي، نو د خالد لپاره دا جائز دي چې زينب او فاطمه دواړه په نکاح کې سره جمع کړي، ځکه چې د حفصې او زينب په مېنځ کې نه قرابت سته او رضاعت.

امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز نه دي، وجه يې دا ده چې که زينب نارينه فرض کړی سي نو هغه به د حفصې مېړېزی زوی سي او د مېړېزي زوی سره د مېړېزې مور نکاح کول حرام دي، نو ځکه به د دوی جمع کول جائز نه وي.

**قلنا امرأة الأب إلخ:** امام زفر رَحِمَهُ الله ته موږ دا جواب ورکوو چې په پورتنۍ قاعده کې له "نارينه فرض کولو" څخه مراد دا دي چې دواړه طرفه نارينه فرض کړی سي او په دواړو طرفونو کې حُرمت ثابت سي، دلته که څه هم د زينب (يعني د مېړېزې لور) په نارينه فرض کولو سره حُرمت ثابتيږي، لېکن د حفصې (يعني د مېړېزې مور) په نارينه فرض کولو سره حرمت نه ثابتيږي، ځکه که حفصه (مېړېزې مور) نارينه فرض کړی سي نو

حفصه به أجنبي (پردۍ سړی) وګرځي او د زينب او حفصې په مينځ کي به دا مېړېزيتوب بالکل ختم سي، او دواړي به سره أجنبي سي، او دوې أجنبي (پردۍ) ښځي په نکاح کي جمع کول جائز دي، لهذا په پورتنۍ مسئله کي به هم د سړی لپاره دا جائز وي چي د ښځي سره د هغې مېړېزۍ لور په نکاح کي جمع کړي، ځکه چي دلته په دواړو طرفو کي د نکاح حرمت نه ثابتيږي، او د "جمع بين المرأتين" د حرمت شرط دا دی چي په دواړو طرفونو کي به حرمت ثابت وي. والله أعلم بالصواب

## په زنا سره د حرمتِ مصاهرت د ثبوت بيان

وَمَنْ زَنٰى بِامْرَأَةٍ او څوک چي د يوې ښځي سره زنا وکړي حَرُمَتْ عَلَيْهِ أُمُّهَا وَبِنْتُهَا نو پر هغه د دې [زانيې] ښځي مور او د هغې لور حرامي سوې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الزِّنَا لَا يُوْجِبُ حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زنا حرمتِ مصاهرت نه سي ثابتولای ايعني په زنا سره د خواښي توب حرمت نه ثابتيږي] لِأَنَّهَا نِعْمَةٌ ځکه چي مصاهرت يو نعمت دی فَلَا تُنَالُ بِالْمَحْظُوْرِ لهذا هغه به په حرام شي سره نه حاصليږي وَلَنَا: أَنَّ الْوَطْءَ سَبَبُ الْجُزْئِيَّةِ بِوَاسِطَةِ الْوَلَدِ او زموږ دليل دا دی: چي وطي د بچي په واسطه سره د جزء جوړېدلو سبب دی حَتّٰى يُضَافَ إِلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا همدا وجه ده چي [د وطي په سبب پيدا سوی] په دواړو کي د هر يوه طرف ته په پوره توګه منسوب کيږي فَيَصِيْرُ أُصُوْلُهَا وَفُرُوْعُهَا كَأُصُوْلِهِ وَفُرُوْعِهِ نو ځکه به د زانيې [وطي کړی سوي ښځي] أصول او فروع د زاني د اصولو او فروعو په څير ګرځي وَكَذٰلِكَ عَلَى الْعَكْسِ او همدارنګه به د دې برعکس هم کيږي وَالِاسْتِمْتَاعُ بِالْجُزْءِ حَرَامٌ او فايده اخيستل له [خپل] جزء څخه حرام دي إِلَّا فِي مَوْضِعِ الضَّرُوْرَةِ مګر د ضرورت په ځای کي وَهِيَ الْمَوْطُوْءَةُ او د ضرورت ځای وطي کړی سوې ښځه ده وَالْوَطْءُ مُحَرِّمٌ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ سَبَبُ الْوَلَدِ او وطي په دې حيثيت سره [د أصولو او فروعو] حراموونکي دي چي وطي د بچي سبب دي لَا مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ زِنَاءٌ نه په دې حيثيت سره چي وطي زنا ده.

**اللغات:** ﴿مُصَاهَرَةٌ﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د خسر توب او خواښي توب قرابت، د خېښۍ او زومتوب قرابت، ﴿لَا تُنَالُ﴾ د فتح د باب نفي صيغه ده: نه حاصليږي، نه تر لاسه کيږي، ﴿مَحْظُوْرٌ﴾ ممنوع او حرام شی يا کار، ﴿إِسْتِمْتَاعٌ﴾ د استفعال مصدر دی: فايده او نفع اخيستل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که یو سړي د یوې ښځې سره زنا وکړي نو آیا په دې سره د دوی په مینځ کې حرمت مصاهرت ثابتیږي که نه؟ یعني آیا د دې زناکاره سړی (زاني) او زناکاره ښځې (زانیې) اُصول او فروع یو پر بل حرامیږي که نه؟ په دې باره کې د فقهاؤ اختلاف دی، د احنافو مذهب دا دی چې په زنا سره حرمت مصاهرت ثابتیږي، یعني د زانیې اصول او فروع پر زاني او د زاني اصول او فروع پر زانیې حرامیږي، لهٔ اصولو څخه مراد مور، انا او داسې نور دي، او له فروعو څخه مراد لور، لمسۍ او داسې نور دي.

د شوافعو مذهب دا دی چې په زنا سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږي، نو د دوی په نیز د زاني او زانیې اصول او فروع په خپل مینځ کې سره حلال دي (یعني یو د بل سره نکاح کولای سي).

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې د زنا یو حرام کار دی، او الله تعالیٰ په دې آیت: ﴿وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا﴾ [سورة الفرقان: ٥٤]. کې مصاهرت او خپښې یو محترم قرابت او غوره نعمت ګرځولی دی، او په یو حرام کار سره نعمت نه سي حاصلېدای، نو ځکه به په زنا سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږي، او د زاني او زانیې اصول او فروع به په خپل مینځ کې نه سره حرامیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چې په وطي کولو سره سړی د ښځې جزء جوړیږي، او ښځه د سړي جزء جوړیږي، ځکه کله چې د سړي د وطي په سبب کوچنی پیدا سي، نو کوچنی په پوره توګه د دواړو زوی شمارل کیږي، دواړو ته یې نسبت کیږي او ویل کیږي چې دا د فلانکي سړي زوی دی او دا د فلانکۍ ښځې زوی دی، او زوی که نارینه وي، نو پر هغه د موطوئې (زانیې) مور اُصول او فروع حرامیږي، او که کوچنی ښځینه وي، نو پر هغه د واطي (زاني) اصول او فروع حرامیږي. حاصل دا چې کوچنی د وطي په وجه پیدا کیږي، او د کوچني په وجه ښځه د سړي جزء جوړیږي او سړی د ښځې جزء جوړیږي، او له خپل جزء څخه فایده اخیستل حرام دي، نو ځکه به د زاني او زانیې اُصول او فروع په خپل مینځ کې سره حرام وي، اوس که دغه وطي روا (حلال) او که حرام وي یعني زنا وي، په دواړو سره کوچنی پیدا کیږي او په دواړو سره جزئیت ثابتیږي، نو ځکه به په زنا سره هم حرمت مصاهرت ثابتیږي.

**إلا في موضع الضرورة**: په دې سره د یو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې کله ښځه د سړي جزء جوړه سو، او سړی د ښځې جزء جوړ سو، او له خپل جزء څخه فایده اخیستل حرام دي، نو تر

يوه کوچني وروسته هم د دغه زانيې ښځي سره د زاني نکاح او وطي حرامېدل پکار دي، حال دا چي حکم د دې په خلاف دی.

نو د دې جواب ورکوي چي اصل خو همدغه دی چي له خپل جزء څخه فايده اخيستل حرام دي، ليکن دلته د سخت ضرورت په وجه د نکاح اجازه ورکول سوې ده هغه دا چي د نکاح مقصد "يعني د اولاد زېږولو سلسله" (توالد او تناسل) ختم نه سي، او دا مسئله داسي ده لکه څرنګه چي پر حضرت ادام ؑ تولي لوڼي حرامي وې او حضرت حوا هم د هغه د لوڼو په فهرس کي راتله، خو د توالد او تناسل د ضرورت په وجه هغه له دې حکم څخه مستثنیٰ وه.

**جواب**: په "والوطئ محرم..." سره د امام شافعي د دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي وطي د زنا په حيثيت سره د حرمتِ مصاهرت سبب نه جوړيږي، بلکي په دې حيثيت سره د حرمتِ مصاهرت سبب جوړيږي چي د وطي په وجه هلک پيدا کيږي، نو وطي د ولد قائم مقام دي، برابره ده وطي حلال وي که حرام (يعني زنا) وي، او ولد معصوم او بې قصوره دی، ځکه چي د زاني او زانيې په عمل کي د هغه هيڅ دخل نسته، لنډه دا چي وطي د "من حيث أنه سبب الولد" په وجه د حرمتِ مصاهرت سبب جوړيږي، او څرنګه چي په دې کي هيڅ قباحت او بدي نسته، نو ځکه په دې سره د مصاهرت نعمت حاصلېدای سي. والله أعلم بالصواب

## په مسه کولو سره د حرمتِ مصاهرت د ثبوت بيان

وَمَنْ مَسَّتْهُ اِمْرَأَةٌ بِشَهْوَةٍ او کوم سړی چي ښځه په شهوت سره مسه کړي [يعني که ښځه په شهوت سره يو سړي ته لاس ور وړي] حَرُمَتْ عَلَيْهِ أُمُّهَا وَابْنَتُهَا نو پر هغه سړي د دې ښځي مور او لور حراميږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَحْرُمُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نه حراميږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ مَسُّهُ اِمْرَأَةً بِشَهْوَةٍ او پر همدغه اختلاف دي مسه کول د سړي د يوې ښځي په شهوت سره [يعني که سړي په شهوت سره يو ښځي ته لاس ور وړي نو هم دغه اختلاف دی] وَنَظَرُهُ إِلٰى فَرْجِهَا او [پر همدغه اختلاف دي] د ښځي شرمګاه ته د سړي کتل [په شهوت سره] وَنَظَرُهَا إِلٰى ذَكَرِهٖ عَنْ شَهْوَةٍ او [پر همدغه اختلاف دي] د سړي و ذکر ته د ښځي کتل په شهوت سره لَهُ: أَنَّ الْمَسَّ وَالنَّظَرَ لَيْسَا فِي مَعْنَى الدُّخُوْلِ د امام شافعي

رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې مسه کول او کتل د دخول [او وطي] په حکم کې نه دي وَلِهٰذَا لَا يَتَعَلَّقُ بِهِمَا فَسَادُ الصَّوْمِ وَالْإِحْرَامِ وَوُجُوبُ الِاغْتِسَالِ همدا وجه ده چې د دې دواړو سره د روژې او احرام فساد او د غسل وجوب نه متعلق کیږي [یعني همدا وجه ده چې په شهوت سره د مسه کولو او کتلو په وجه روژه او احرام نه فاسدیږي او غسل نه واجبیږي] فَلَا يُلْحَقَانِ بِهِ نو ځکه به دوی د دخول سره نه لاحق کیږي وَلَنَا: أَنَّ الْمَسَّ وَالنَّظَرَ سَبَبٌ دَاعٍ إِلَى الْوَطْءِ او زموږ دلیل دا دی: چې مسه کول او کتل د وطي [او دخول] او طرف ته را بلونکی سبب دی [یعني همدا دواړه انسان د وطي او دخول و طرف ته کشوي او د دې بلنه ورکوي] فَيُقَامُ مُقَامَهُ فِي مَوْضِعِ الِاحْتِيَاطِ نو ځکه به دوی د احتیاط په ځای کې د وطي [او دخول] قائم مقام کیږي ثُمَّ الْمَسُّ بِشَهْوَةٍ أَنْ تَنْتَشِرَ الْآلَةُ بیا په شهوت سره مسه کول دا دي چې آله [ذکر] وغوړیږي [او ودریږي] أَوْ تَزْدَادَ انْتِشَارًا یا یې غوړیدل [او دریدل] زیات سي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح [تعریف] دی وَالْمُعْتَبَرُ النَّظَرُ إِلَى الْفَرْجِ الدَّاخِلِ او معتبر دننه فرج ته کتل دي وَلَا يَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ إِلَّا عِنْدَ اتِّكَائِهَا او دا نه ثابتیږي مګر [د ناستي په حالت کې] د ښځي په تکیه [او وهه] وهلو سره وَلَوْ مَسَّ فَأَنْزَلَ او که څوک [یوه ښځه] مسه کړي او انزال سي فَقَدْ قِيلَ: إِنَّهُ يُوجِبُ الْحُرْمَةَ نو ویل سوي دي: چې دا حرمت مصاهرت ثابتوي وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا يُوجِبُهَا او صحیح قول دا دی چې دا حرمت مصاهرت نه ثابتوي لِأَنَّهُ بِالْإِنْزَالِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ غَيْرُ مُفْضٍ إِلَى الْوَطْءِ ځکه چې [د مغه] په انزالیدلو سره ښکاره سوه چې [د مغه] دا مسه کول تر وطي پوري رسوونکي نه دي وَعَلَى هٰذَا إِتْيَانُ الْمَرْأَةِ فِي الدُّبُرِ او د ښځي [سره] په مقعد کې وطي کول هم پر دغه اختلاف دي.

**اللغات**: ﴿فَرْج﴾ د ښځي شرمګاه. ﴿ذَکَر﴾ د نارینه تناسلي آله (غڼ). ﴿تَنْتَشِر﴾ د افتعال مضارع ده: غوړیدل، دریدل (ښغیدل، لګیدل). ﴿اِتِّکَاء﴾ تکیه وهل، دلته څني مراد د ناستي په حالت کې پر یو شي تکیه وهل دي. ﴿تَبَيَّنَ﴾ د تَفَعُّل د باب ماضي ده: ښکاره کیدل، څرګندیدل. ﴿دُبُر﴾ د شا حصه، مقعد (کونه).

**تشریح**: د عبارت تر حل مخکې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې دلته له "مسّ" او "نظر" څخه حلال "مسّ" او حلال "نظر" مراد دی، او د همدې په هکله اختلاف بیان سوی دی. ځکه مخکې ذکر

سوه چي دامام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په حرام وطي سره بالکل حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي، لهذا د هغه په نيز به په حرامو مسه کولو او حرامو کتلو سره څرنګه حرمتِ مصاهرت ثابت سي!؟

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی ديوې ښځي سره نکاح وکړي، او طلاق قبل الدخول ورکړی. نو د خاوند لپاره د دغه ښځي مور حلاله ده، لېکن که خاوند تر طلاق ورکولو مخکي دا ښځه په شهوت سره مسه کړي، يا په شهوت سره د هغې و فرج ته وګوري، يا ښځه په شهوت سره خاوند مسه کړي يا د هغه شرمګاه (ذکَر) ته وګوري، نو په دې ټولو صورتونو کي داحنافو په نيز حرمتِ مصاهرت ثابتيږي يعني د خاوند او ښځي أصول او فروع يو پر بل حراميږي.

دامام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په هيڅ صورت کي هم حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي "مسه کول" او "کتل" د دخول په حکم کي نه دي، ځکه کوم احکام چي د دخول سره متعلق دي هغه د دې دواړه سره متعلق نه دي، مثلاً د روژې په حالت کي په دخول سره روژه فاسديږي، همدارنګه إحرام په دخول سره فاسديږي، او غسل په دخول سره واجبيږي. لېکن په شهوت سره په مسه کولو او کتلو سره نه روژه ماتيږي، نه إحرام فاسديږي او نه غسل واجبيږي. نو ځکه مسه کول او کتل به د دخول په حکم او معنیٰ سره نه وي، حال دا چي د حرمتِ مصاهرت د ثبوت لپاره دخول ضروري دی، نو په مسه کولو او کتلو سره به څرنګه حرمتِ مصاهرت ثابت سي!.

**زموږ دليل**: زموږ د احنافو اول دليل هغه حديث دی چي په هغه کي د ښځي شرمګاه ته کتل د حرمتِ مصاهرت سبب ګرځول سوي دي، همدارنګه د امِ هاني ﷺ دا روايت دی چي: "مَنْ نَظَرَ إِلٰى فَرْجِ اِمْرَأَةٍ، حُرِمَتْ عَلَيْهِ أُمُّهَا وَبِنْتُهَا".

**دويم دليل**: دا دی چي مسه کول او کتل فقط د دخول په معنیٰ سره نه دي، بلکي د وطي او د دخول وطرف ته داعي هم دي، او قاعده دا ده چي "السَّبَبُ الدَّاعِيْ إِلَى الشَّيْءِ يُقَامُ مَقَامَهُ فِيْ مَوْضِعِ الْاِحْتِيَاط"، يعني د يو شي وطرف ته داعي (او رابلونکی) سبب د احتياط په محل کي د هغه شي قائم مقام کيږي، او څرنګه چي په پورتنۍ مسئله کي مسه کول او کتل داعي إلى الوطي والدخول دي، نو ځکه به هغه هم د دخول قائم مقام منل کيږي او د دخول حکم به پر کيږي، او په دخول سره حرمتِ مصاهرت ثابتيږي، نو ځکه به په دوی سره هم حرمتِ مصاهرت ثابتيږي.

**ثم أنّ المس إلخ:** له دې ځايه صاحب د هدايې د "مسّ بالشهوة" تعريف کوي فرمايي چې "مس بالشهوة" دا دی که له مخکې څخه آله (ذکر) درېدلې او منتشر نه وي، نو په دې "مسّ" سره منتشر او ودرېږي، او که له مخکې څخه منتشر او ولاړ وي، نو په دې سره نور انتشار او سختي پکښې پيدا سي.

ځيني علماؤ د "مس بالشهوة" دا تعريف کړی چې د سړي زړه د ښځې طرف ته مائل سي او جماع يې ته شوق وسي، ليکن صحيح اول قول دی، لکه څرنګه چې صاحب د هدايې په "هو الصحيح" سره اشاره ورته کړې ده.

همدارنګه په "نظر" (کتلو) کې د ښځې دننه (داخلي) فرج ته کتل معتبر دي، دباندېني فرج ته په کتلو سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتېږي، او داخلي (دننی) فرج هغه وخت ليدل کېدای سي چې ښځې د ناستې په حالت کې پر دېوال يا داسې بل شي ځان تکيه کړی وي او پښې يې پورته وي. له دې څخه بغير داخلي فرج نه سي ليدل کېدای.

**ولو مس فأنزل إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که يو سړی ښځه مسه کړي او د مسه کولو په وجه هغه سړی انزال سي، آيا په دې سره حرمتِ مصاهرت ثابتېږي که نه؟، نو په باره کې يو قول دا دی چې په دې صورت کې هم حرمتِ مصاهرت ثابتېږي، ځکه کله چې فقط په مسه کولو سره حرمت ثابتېږي، نو په "مسّ مع الإنزال" سره خو په طريقه اولیٰ ثابتېږي، ځکه چې په انزال سره "مسّ" نور مستحکم کېږي، او کله چې يو شی په غيرِ مستحکم شي سره ثابتېږي، نو په مستحکم شي سره به په طريقه اولیٰ ثابتېږي، دا د شمس الاسلام علامه اوزجندی رَحِمَهُ الله او نورو قول دی، او همدا د دوی متفیٰ به قول دی.

لېکن صحيح قول دا دی چې په دې صورت کې حرمت مصاهرت نه ثابتېږي، ځکه چې په شهوت سره مسه کول او کتل په دې وجه د وطئ او دخول قائم مقام دي چې وطئ او دخول سبب جوړېږي، لېکن کله چې هغه انزال سو، نو د وطئ او دخول امکان ختم سو، او دا ښکاره سوه چې دا مسه کول د وطئ وطرف ته رسونکي نه دي او د وطئ سبب نه جوړېږي، نو ځکه به حرمتِ مصاهرت هم نه په ثابتېږي.

پر همدې اختلاف د ښځې سره په مقعد کې وطئ کول دي، يعني که په داسې وطئ سره سړی انزال سي نو زموږ په نېز په دغه وطئ سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتېږي، او که انزال نه سي، نو ثابتېږي.

ځکه که انزال نه سي نو دا وطي د دخول في الفرج سبب جوړيږي، لېکن د علامه شمس الاسلام اوزجندي رَحِمَهُ الله او نورو په نېز مطلقاً د مقعد په وطي سره حرمتِ مصاهرت ثابتيږي، هغه که سړی انزال سي که نه سي.

## د طلاق سوي ښځې په عدت (عده) کي د هغې د خور سره د نکاح کولو حکم

وَإِذَا طَلَّقَ اِمْرَأَةً طَلَاقًا بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًا او که یو سړی خپلې ښځې ته طلاقِ بائن یا طلاقِ رجعي ورکړي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِهَا نو د دې سړي لپاره جائز نه دي چي د هغې د خور سره نکاح وکړي حَتّٰى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا تر دې چي د هغې عدت [عده] تېره سي [یعني کله چي د هغې عدت زمانه تېره او ختمه سي نو بیا یې د خور سره نکاح کول جائز دي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: إِنْ كَانَتِ الْعِدَّةُ عَنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که عدت د طلاقِ بائن يا د دريو طلاقونو وي يَجُوزُ نو [د خور سره يې] نكاح جائز ده لِانْقِطَاعِ النِّكَاحِ بِالْكُلِّيَّةِ إِعْمَالًا لِلْقَاطِعِ ځکه چي قاطعِ نکاح [یعني طلاق] ته په عمل ورکولو سره اوله نکاح په پوره توګه منقطع [ختمه] سوه وَلِهٰذَا لَوْ وَطِئَهَا مَعَ الْعِلْمِ بِالْحُرْمَةِ همدا وجه ده که خاوند د هغې [طلاق سوي ښځې] سره وطي وکړي د وطي په حرمت د خبر والي سره [یعني خاوند په دې خبر وي چي د هغې سره وطي حرام دي، لېکن بیا هم وطي ور سره وکړي] يَجِبُ الْحَدُّ نو حد پر واجبيږي وَلَنَا: أَنَّ نِكَاحَ الْأُولٰى قَائِمٌ زموږ دليل دا دی: چي د اولې ښځې نکاح [تر اوسه] پاته ده لِبَقَاءِ بَعْضِ أَحْكَامِهِ ځکه چي د نکاح ځیني احکام [اوس هم] پاته دي كَالنَّفَقَةِ وَالْمَنْعِ وَالْفِرَاشِ لکه نفقه او منع عن الخروج [له دباندي وتلو څخه ښځه منع کول] او فِراش وَالْقَاطِعُ تَأَخَّرَ عَمَلُهُ او د قاطعُ النكاح [طلاق] عمل مؤخّر سو وَلِهٰذَا بَقِيَ الْقَيْدُ او له همدې وجهې قيد [یعني د منع عن الخروج حکم] پاته دی وَالْحَدُّ لَا يَجِبُ عَلٰى إِشَارَةِ كِتَابِ الطَّلَاقِ او د [مبسوط] د "كتابُ الصلاة" د اشارې مطابق حد نه واجبيږي وَعَلٰى عِبَارَةِ كِتَابِ الْحُدُودِ يَجِبُ او [د مبسوط] د "كتابُ الحدود" د عبارت مطابق حد واجبيږي لِأَنَّ الْمِلْكَ قَدْ زَالَ فِي حَقِّ الْحِلِّ ځکه چي مِلکِ نکاح د وطي د حِلّت په حق کي زائل سو فَيَتَحَقَّقُ الزِّنَا نو ځکه په زنا ثابتيږي وَلَمْ يَرْتَفِعْ فِي حَقِّ مَا ذَكَرْنَا او دا ملکِ نکاح پورته سوی [زائل سوی] نه دی د هغو شيانو په حق کي کوم چي [اوس] موږ ذکر کړل [یعني نفقه، منع عن الخروج او

فراش] فَيَصِيرُ جَامِعًا نو ځکه به هغه [په يوه نکاح کي د دوو خوندو] جمع کونکي وګرځي.

**اللغات:** ﴿بَائِن﴾ د ضرب اسم فاعل دی: جلا کونکی طلاق، داسي طلاق چي تر هغه وروسته ښځي ته رجوع نه سي کېدای، بلکي نوې نکاح به تړل کيږي، او "رَجْعِي" هغه طلاق ته وايي چي تر هغه وروسته ښځي ته رجوع کېدای سي، ﴿تَنْقَضِي﴾ د انفعال مضارع ده: تېرېدل (ختمېدل)، پوره کېدل، ﴿إِنْقِطَاع﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل، درېدل، ﴿بِالْكُلِّيَّة﴾ په پوره توګه (په بشپړه توګه)، بالکل، ﴿إِعْمَالًا﴾ د إفعال مصدر دی: عمل ورکول، کار په کول، ﴿قَاطِع﴾ د فتح اسم فاعل دی: غوڅونکی، ختمونکی، مراد ځني طلاقِ بائن او طلاقِ ثلاث دی، ځکه چي هغه نکاح ختموي، ﴿النَّفَقَة﴾ خرڅه (خرڅه)، ﴿فِرَاش﴾ بستر، بستره، ښځي والی (د چا په نکاح کېدل)، "فِرَاش" په أصل کي ښځي ته وايي ځکه چي خاوند پر هغې د پاسه پرېوځي او هغه تر خاوند لاندي وي د بستري په څېر، دلته ځني مراد د خاوند د ښځي والي وظرف ته نسبت دی يعني د هغه ښځي نسبت اوس هم د خاوند سره پاته دی يعني تر طلاق وروسته هم د هغې نسبت د خاوند وظرف ته کيږي په دې توګه چي که دعدوت په دوران کي له هغې څخه بچی پيدا سي نو دا بچی به د هغه (طلاق ورکونکي) خاوند وي، ﴿تَأَخَّرَ﴾ د تَفَعُّل ماضي ده: ځنډېدل (مؤخر کېدل)، وروسته کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي خپلي ښځي ته طلاقِ بائن يا طلاقِ رجعي ورکړي، نو اوس د دې سړي لپاره د عدت په زمانه کي د هغې د خور سره نکاح جائز ده که نه؟ د احنافو مذهب دا دی چي نکاح ور سره جائز نه ده، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي که دا ښځه د طلاقِ بائن يا د دريو طلاقو په عدت کي وي، نو بيا د هغې د خور سره نکاح جائز ده.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د قاطعِ نکاح (يعني د طلاقِ بائن يا دريو طلاقو) په وجه نکاح بالکل ختمه سوه، ځکه کله چي قاطع او ختمونکی شی ثابت سي، نو د هغه اثر هم خامخا ثابتيږي، او د نکاح د بالکل ختمېدلو يو دليل دا هم دی چي که خاوند د مطلقه بائنې ښځي سره د عدت په زمانه کي د وطي کولو په حُرمت خبر وي، خو بيا هم وطي ور سره وکړي، نو پر هغه د زنا حد واجبيږي. ښکاره خبره ده چي که نکاح ختمه نه وای نو پر هغه به حد نه واجبېدای، نو د حد واجبېدل د دې خبري دليل دی چي تر طلاقِ بائن يا دريو طلاقو وروسته نکاح بالکل ختميږي، نو ځکه به د هغې د خور سره نکاح کول جائز وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د معتدې ښځي نکاح د عدت تر ختمېدلو پوري پاته ده، همدا وجه ده چي تر عدت ختمېدلو پوري د ښځي دري احکام باقي پاتيږي: ① اول دا چي تر عدت ختمېدلو پوري پر

خاوند د هغې نفقه لازم ده، (٢) دويم دا چي خاوند ته دا حق سته چي په دې دوران کي ښځه له دباندي وتلو څخه منع کړي (يعني د عدت په دوران کي خاوند ته د "منع عن الخروج" حق حاصل دی). (٣) درېيم دا چي که په دې دوران کي د ښځي کوچنی پيدا سي (تر دوو کالو پوري)، نو دا کوچنی به له دې خاوند څخه ګڼل کيږي، ځکه چي ښځه تر اوسه د خاوند فِراش او بستره ده؛ په دې احکامو کي هر يو حکم پر دې خبره دليل دی چي تر اوسه د ښځي نکاح پاته ده، نو که اوس (يعني د عدت په زمانه کي) د هغې د خور سره نکاح وکړي نو "جمع بين الأختين" به لازم سي، نو په دې وجه به د هغې د خور سره نکاح کول حرام او ناجائز وي.

**جواب: والقاطع تأخر إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي. هغه وويل چي د قاطعِ نکاح (طلاق) په وجه نکاح بالکل ختمه سوه. نو جواب ورکوي چي د طلاق عمل د پورتني احکامو په وجه د عدت تر ختمېدو پوري وځنډول سو (ځکه چي د نکاح ټوله أحکام هغه وخت ختميږي کله چي عدت ختم سي)، همدا وجه ده چي تر عدت ختمېدو پوري "قيد" هم پاتيږي. د قيد پاتېدلو مطلب دا دی چي خاوند ته دا حق سته چي د عدت په دوران کي ښځه له دباندي وتلو څخه منع کړي، لهذا کله چي د طلاقِ عمل (چي هغه د نکاح ختمول دي) وځنډېدی. نو د ښځي نکاح پاته ده.

**والحد لا يجب على إشارة إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دويم دليل جواب ورکوي. هغه وويل چي د مطلقهٔ بائنه ښځي د عدت په زمانه کي په وطي کولو سره حد واجبيږي. نو د هغه جواب ورکوي چي اول خو موږ دا خبره بالکل نه تسليمو چي په دې وطي سره حد واجبيږي لکه د "مبسوط" په "کتاب الطلاق" کي چي دې ته اشاره سوې ده. او که دا خبره تسليم کړو چي حد واجبيږي لکه د "مبسوط" په "کتاب الحدود" کي چي صراحتاً ذکر سوي دي، نو موږ جواب ورکوو چي حد ځکه واجبيږي چي تر طلاقِ بائن او طلاقِ ثلاث وروسته فقط د وطي په حق کي حلت ختم سو، نو ځکه به هغه وطي زنا ګڼل کيږي او په زنا سره بالکل حد واجبيږي. او دا نه دي ځني مراد چي بالکل نکاح ختمه سوه، ځکه د پورتني ذکر سوو احکامو يعني د نفقې، قيد او فراش په وجه تر اوسه د نکاح او وطي حلت نه دي ختم سوی، لهذا اوس هم من وجه نکاح پاته ده (يعني اوس هم په يوه اعتبار سره نکاح پاته ده)، نو کله چي من وجه نکاح پاته ده، نو د "جمع بين الأختين" د حراموالي په وجه به د دې ښځي د خور سره (د عدت په زمانه کي) نکاح حرامه او ناجائز وي.

## د مالک لپاره د مینځې سره د نکاح کولو حکم

وَلَا يَتَزَوَّجُ الْمَوْلٰى أَمَتَهُ او نکاح دې نه کوي مالک د خپلې مینځې سره وَلَا الْمَرْأَةُ عَبْدَهَا او نه [مالکه] ښځه د خپل غلام سره لِأَنَّ النِّكَاحَ مَا شُرِعَ إِلَّا مُثْمِرًا بِثَمَرَاتٍ ځکه نکاح په داسې ثمراتو [او احکامو] سره مُثمِره [او مُتعلِقه] مشروع سوې ده مُشْتَرَكَةٍ بَيْنَ الْمُتَنَاكِحَيْنِ چې هغه ثمرات [او احکام] د خاوند او ښځې په مینځ کې مشترک دي وَالْمَمْلُوكِيَّةُ تُنَافِي الْمَالِكِيَّةَ او مملوک کېدل [غلامتوب] د مالک کېدلو [مالکتوب] مخالف دي فَيَمْتَنِعُ وُقُوعُ الثَّمَرَةِ عَلَى الشَّرِكَةِ نو ځکه به پر شرکت د ثمرې واقع کېدل ممتنع وي [یعنې د شرکت په توګه به د نکاح د ثمرې (حکم) واقع کېدل ناممکن وي].

**اللغات:** ﴿مَوْلٰى﴾ مالک، سیّد، بادار، څښتن (د غلام مالک)، ﴿مُثْمِر﴾ مېوه دار، ګټمن، ﴿ثَمَرَات﴾ فایدې، منافع (ګټې)، ﴿مُثْمِرًا بِثَمَرات﴾ د دې مطلب دا دی چې د خاوند او ښځې تر مینځ ډېر ثمرات (منافع او ګټې) او ډېر احکام سته، کوم چې د مینځې او مالک یا د غلام او مالکې تر مینځ نسته، نو که مالک د خپلې مینځې سره یا مالکه د خپل غلام سره نکاح وکړي، نو معامله به چپه واوړي او غلام او مینځه به مالکان وګرځي، نو په دې وجه د دوی نکاح صحیح نه ده.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د مالک (مولیٰ) لپاره د خپلې مینځې سره نکاح کول، همدارنګه د مالکې (سیّدې) لپاره د خپل مملوک (غلام) سره نکاح کول جائز نه دي، همدا د ائمه اربعه وو مسلک دی، او پر همدې اجماع ده.

دلیل دا دی چې نکاح پر داسې فوایدو او منافعو مشتمله ده کوم چې د خاوند او ښځې تر مینځ مشترک او تقسیم دي، لکه څرنګه چې یو طرف ته له نکاح څخه خاوند ته دا منافع حاصلیږي: "① قدرت علی الوطی، ② منع عن الخروج، ③ حصول ولد، ④ تربیت، ⑤ رضاعت او داسې نور"، نو په بل طرف کې ښځې ته هم منافع حاصلیږي یعنې: "① مهر، ② نفقه ③ کسوة، ④ د خاوند د مجبوب کېدلو یا عنین کېدلو په صورت کې د نکاح فسخ کولو اختیار او داسې نور"، نو د منافعو اشتراک ته په کتلو سره هر یو مالک هم دی او مملوک هم دی، او غلام او مینځه فقط مملوک وي، او مملوکیت (غلامتوب) د مالکتوب منافي دي، اوس که مالک د خپلې مینځې سره نکاح وکړي، نو بیا خو هغه د عامو ښځو په څېر له خپل مالک څخه د مهر او نفقې مطالبه کوي او دا د مالکتوب منافي او خلاف دي (ځکه چې مملوک [غلام] له مالک څخه د دې شیانو مطالبه نه کوي)، او که ښځه د خپل غلام سره نکاح وکړي، نو مخکې خو ښځه مالکه (سیّده او حاکمه) وه، لېکن تر نکاح وروسته به غلام د

خاوندتوب په وجه پر خپلي مالکي حاکم جوړ سي او دا د مالکتوب خلاف دي، نو په دې وجه د مالک لپاره د خپلي مينځي سره او د مالکي (سيّدي) لپاره د خپل غلام سره نکاح کول جائز نه دي.

لېکن د آزادي ښځي سره (چي هغه مالکه نه وي) د غلام نکاح د ضرورت په وجه خلافُ القياس جائز ګرځول سوې ده، لهذا په دې هکله فکرمن کېدل او اعتراض کول پکار نه دي.

## د يهودي او نصراني ښځي سره د نکاح کولو مسئله

وَيَجُوْزُ تَزَوُّجُ الْكِتَابِيَّاتِ او جائز دي نکاح کول د کتابي ښځو سره لِقَوْلِهٖ تَعَالىٰ: وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ [المائدة: ٥] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او پاکي ښځي له اهلِ کتابو څخه استاسو لپاره حلالي دي! أَيْ الْعَفَائِفُ يعني پاک لمني ښځي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْكِتَابِيَّةِ الْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ او هيڅ فرق نسته د کتابي آزادي ښځي او کتابي مينځي په مينځ کي عَلىٰ مَا نُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالىٰ لکه څرنګه چي وروسته به موږ انشاء الله [د دې] بيان وکړو.

**اللغات:** ﴿مُحْصَنَات﴾ د إفعال د باب جمع مؤنث اسم فاعل دی: له زنا او بدلارۍ څخه پاکي او سپېڅلي ښځي (پاک لمني ښځي)، ﴿عَفَائِف﴾ جمع د عَفِيْفَةٌ ده: پاک لمنځي ښځي.

**تشريح:** له "کتابيات" څخه مراد يهودي او نصراني ښځي دي، واحد يې "کتابية" راځي، د دوی سره نکاح کول بېله اختلافه جائز دي، يعني له ائمه اربعه وو څخه هيچا په دې کي اختلاف نه دی کړی، او د کتابي آزادي ښځي او کتابي مينځي په مينځ کي هيڅ فرق نسته، لېکن په کتابي مينځي کي د ځينو امامانو څه اختلاف سته چي هغه به وروسته بيان سي.

د "کتابياتو" سره د نکاح د روايښت دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِيْنَ...﴾، (يعني د اهلِ کتابو [يهودو او نصاراوو]) پاکي او سپېڅلي ښځي ستاسو لپاره حلالي ګرځېدلي دي)، په دې آيت کي د "عَفَائِف" (يعني د پاکوالي او سپېڅلتوب) قيد عادي او اتفاقي دی، د "کتابي ښځي" سره د نکاح د جواز لپاره شرط او ضروري نه دی، خو بايد په ياد مو وي چي که يهودي يا نصراني ښځه د جهنم سبب جوړېدله، نو بيا د هغې نکاح پرېښوول ضروري دي.

علامه ثميري (صاحب د اثمار الهدايې) فرمايي چي د يهودي او نصراني ښځو سره زياتره خلک په عشق مبتلا کېږي، او د خپل عشق پوره کولو لپاره د هغوی سره ودونه کوي، نو د آيت په دې قيد کي (عَفَائِف) کي ودې طرف ته هم اِشاره ده چي بايد په نکاح سره ستاسو اراده عشق او حرامکارۍ نه وي، بلکي ستاسو مقصد دا وي چي په دې سره پاکي او عفت حاصل کړی.

**يادونه:** د مسلماني ښځي لپاره په هيڅ صورت کي د نصراني او يهودي سړي سره نکاح کول جائز نه دي، لکه څرنګه چي په دې هکله ډېر آثار وارد سوي دي.

## د نورو کافرو ښځو سره د نکاح کولو مسئله

وَلَا يَجُوزُ تَزَوُّجُ الْمَجُوسِيَّاتِ او جائز نه دي نکاح کول د مجوسي [آتش پرستو] ښځو سره لِقَوْلِهِ ﷺ: «سُنُّوا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: "تاسي د مجوسو سره د اهلِ کتابو په څير سلوک [او معامله] کوئ! غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ» بغير له نکاح کولو د هغو د ښځو سره او بغير له خوړلو د هغو د ذبح کړي سوي څاروېو" قَالَ: وَلَا الْوَثَنِيَّاتِ فرمايي: او [جائز نه دي نکاح کول] د بُت پرستو ښځو سره لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ [البقرة: ٢٢١] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسو نکاح مه کوئ! د شرک کونکو ښځو سره تر دی چي هغوی ايمان راوړي وَيَجُوزُ تَزَوُّجُ الصَّابِئَاتِ او جائز دي نکاح کول د صابيه ښځو سره إِنْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِدِينِ [په دې شرط] که هغوی [د يو نبي] پر دين ايمان لري وَيُقِرُّونَ بِكِتَابٍ او د يو [آسماني] کتاب اقرار [او تصديق] کوي لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ ځکه چي [په دې صورت کي] هغوی له اهلِ کتابو څخه دي وَإِنْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْكَوَاكِبَ [ليکن] که هغوی د ستورو عبادت کوي وَلَا كِتَابَ لَهُمْ او هيڅ [آسماني] کتاب ور سره نه وي لَمْ تَجُزْ مُنَاكَحَتُهُمْ نو [په دې صورت کي] د هغو د ښځو سره نکاح کول جائز نه دي لِأَنَّهُمْ مُشْرِكُونَ ځکه چي [اوس خوهغوی] مشرکين دي وَالْخِلَافُ الْمَنْقُولُ فِيهِ او په دې باره کي چي [زموږ د امامانو] کوم اختلاف نقل سوی دی مَحْمُولٌ عَلَىٰ اشْتِبَاهِ مَذْهَبِهِمْ هغه د دوی [صابئينو] د مذهب پر مشتبه کېدلو باندي محمول دی فَكُلٌّ أَجَابَ عَلَىٰ مَا وَقَعَ عِنْدَهُ نو [زموږ] هر امام د هغه مطابق جواب ورکړی کوم چي د هغه په نېز ثابت سو [يعني زموږ په امامانو کي چي د کوم امام په نېز د صابئينو اهلِ کتابت ثابت سو نو هغه د دې مطابق جواب ورکړی، او د کوم امام په نېز چي د هغو مشرکوالی ثابت سو، نو هغه بيا د همدې مطابق جواب ورکړی] وَعَلَىٰ هٰذَا حِلُّ ذَبِيحَتِهِمْ او د هغو د ذبيحې روايښت هم پر دغه اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿سُنُّوا﴾ د نصر له باب څخه د جمع مذکر امرِ حاضر صيغه ده، د دې باب ډېري معناوي دي، چي يو څو معناوي يې دا دي: جاري کول، تاکل، اختيارول، مراد ځني سلوک او طريقه اختيارول دي، ﴿سُنَّة﴾ طريقه، خصلت، سلوک، چلند (چلن)، ﴿وَثَنِيَّات﴾ بت پرسته ښځي، ﴿صَابِئَات﴾ لا دينه ښځي (کوم

چې په هيڅ دين ايمان نه لري). ﴿حِلّ﴾ د ضرب مصدر دی: حِلت، حلال كېدل، روا كېدل (روايښت).

**تشريح:** په دې عبارت کې درې (٣) مسئلې بيان سوي دي:

(١)... اوله مسئله دا ده چې د مجوسي (آتش پرستو) ښځو سره نكاح كول بالاتفاق حرام او نا روا دي؛ دليل د عبارت حديث دی چې "د اهلِ كتابو سره چې كومه معامله تاسو (د جزيې او داسې نورو شيانو په هكله) كوئ، هغه د مجوسو سره هم كوئ!، خو د هغو د ښځو سره نكاح مه كوئ! او د هغو د ذبح كړي سوي حيوان غوښې مه خورئ!"، نو د دې حديث په آخري جزء كې په واضحه توګه د مجوسو له ښځو او ذبيحې څخه منع سوې ده.

(٢)... دويمه مسئله دا ده چې د بُت پرستو ښځو سره هم نكاح كول حرام او ناجائز دي. دليل دا آيت دی: ﴿وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ﴾.

(٣)... دريمه مسئله دا ده چې د صابيه ښځو سره نكاح جائز ده كه نه؟ نو په دې هكله د امامانو اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز ده، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ناجائز ده. په حقيقت كي د دوی اختلاف د صابي په تعريف کي دی، امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې صابي هغه كس ته وايي چې پر يو نبي ايمان لري او د يو آسماني كتاب اقرار كوي، نو د دې تعريف مطابق صابي په اهلِ كتابو كي داخل دی، او د كتابي ښځو سره نكاح جائز ده، نو د صابي ښځې سره به هم جائز وي، لېكن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې صابي هغه كس ته وايي چې د ستورو عبادت كوي او د هيڅ آسماني كتاب اقرار نه كوي، نو د دې تعريف مطابق هغه د بت پرستو په حكم كي داخل دی. او د بت پرستو سره نكاح جائز نه ده، نو د صابيې ښځې سره به هم نكاح جائز نه وي.

## د احرام په حالت كي د نكاح كولو حكم

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلْمُحْرِمِ وَالْمُحْرِمَةِ فرمايي: او جائز دي د احرام تړونكي سړي او د احرام تړونكي ښځي لپاره أَنْ يَتَزَوَّجَا فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ چې نكاح وكړي په حالت د احرام كي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [د احرام په حالت كي نكاح كول] جائز نه دي وَتَزْوِيجُ الْوَلِيِّ الْمُحْرِمِ وَلِيَّتَهُ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او د محرم ولي لپاره د خپلي مَوْلِيې نجلۍ نكاح كول هم پر دغه اختلاف دي [اله مَوْلِيې څخه مراد هغه ښځه او نجلۍ ده چې د ولي تر ولايت لاندي وي] لَهُ قَوْلُهُ ﷺ: لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا

يُنْكِحُ د امام شافعي دليل د نبي کريم ﷺ دا قول دی: چې محرم دې نه [خپله] نکاح کوي او نه دې د بل چا نکاح کوي وَلَنَا مَا رُوِيَ: أَنَّهُ ﷺ تَزَوَّجَ بِمَيْمُوْنَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ او زموږ دليل هغه روايت دی: چې نبي کريم ﷺ نکاح وکړه د حضرت ميمونې رضي الله عنها سره د احرام په حالت کې وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْوَطْئِ او کوم حديث چې امام شافعي روايت کړی دی هغه پر وطي حمل سوی دی.

**اللغات:** ﴿مُحْرِمٍ﴾ هغه کس چې احرام يې تړلی وي او د احرام په حالت کې وي. ﴿تَزْوِيْج﴾ د تفعيل مصدر دی: د بل چا نکاح کول، نکاح تړل (واده ورکول).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز محرم سړی او ښځه د احرام په حالت کې خپله نکاح هم کولای سي، او د بل چا نکاح هم تړلای سي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې محرم نه خپله نکاح کولای سي او نه د بل چا نکاح تړلای سي، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی.

**دليل:** د امام شافعي او نورو دليل د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه دا حديث دی: "الْمُحْرِمُ لَا يَنْكِحُ وَلَا يُنْكِحُ"، (يعني محرم نه خپله نکاح کولای سي او نه د بل کس نکاح تړلای سي)، لهذا کله چې په حديث کې محرم کس له نکاح کولو او تړلو څخه منع سوی دی، نو بيا د محرم لپاره هغه جائز ګڼل د دې حديث مخالفت کول دي، او د حديث مخالفت صحيح نه دی.

**زموږ دليل:** زموږ د احنافو اول دليل هغه حديث دی کوم چې په عبارت کې ذکر سو، د هغه راوي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دی، ابن عباس فرمايي چې نبي کريم ﷺ د حضرت ميمونې رضي الله عنها سره د احرام په حالت کې نکاح وکړه، د همدغه مضمون مطابق بل حديث د ابو هريره رضي الله عنه په حواله سره په دارِ قطني کې هم ذکر سوی دی، او حضرت عائشې رضي الله عنها هم د دغه مضمون مطابق يو حديث روايت کړی چې د هغه عبارت داسې دی: "تَزَوَّجَ وَهُوَ مُحْرِمٌ وَاحْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ"، او دا ټوله حديثونه له مشهورو صحابه وو څخه روايت سوي دي، او دا حقيقت يې ښکاره کړی دی چې رسول الله ﷺ د حضرت ميمونې رضي الله عنها سره د احرام په حالت کې نکاح وکړه. لهذا د امت لپاره به هم د احرام په حالت کې نکاح کول جائز وي.

**جواب:** **وما رواه محمول:** د احنافو له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل څو جوابونه ورکول سوي دي:

①... اول جواب دا دی چې د حضرت ابن عباس حديث مثبت دی، او د حضرت عثمان حديث نافي دی، او قاعده دا ده چې "الإِثْبَاتُ مُقَدَّمٌ عَلَى النَّفْيِ" (يعني اثبات پر نفي مخکې وي)، نو ځکه به دلته

هم هغه حديث مقدّم وي او د عمل قابل وي چي په هغه کي اثبات وي، او اثبات د ابن عباس په حديث کي سته، نو ځکه به هغه راجح او د عمل قابل وي (او په هغه به عمل کيږي).

(۲)... دويم جواب دا دی چي د حضرت عثمان په حديث کي له نکاح څخه مراد وطي (او جماع) ده، او د حديث مفهوم دا دی چي د محرم لپاره خو نکاح روا ده لېکن وطي روا نه دي، او موږ هم د دې قائل يو.

(۳)... درېيم جواب دا دی چي د ابن عباس د حديث ټوله روايان ثقه او معتبر دي او د ضبط و إتقان ماهرين دي، او د حضرت عثمان د حديث په سند کي يو راوي "هبه بن وهب" هم دی، او هغه د ابن عباس د حديث له روايانو څخه په علم و فضل او په ضبط و إتقان دواړو کي کم دی، او د تعارض په وخت کي د ثقه او ضابطو راويانو په روايت باندي عمل کيږي.

(۴)... څلورم جواب دا دی چي په دې حديث کي نهي تنزيهي دي، او د حديث مطلب دا دی چي د احرام په حالت کي نکاح کول مکروه او نامناسب دي، لېکن که يو څوک نکاح وکړي نو د هغه نکاح صحيح او جائز ده.

او بيا دا خبره هم سته چي د احرام په حالت کي نور عقود او معاملات مثلاً بيع و شراء صحيح او جائز دي، او نکاح هم يو ډول عقد او معامله ده، نو ځکه به هغه هم صحيح او جائز وي.

**يادونه**: صاحب د اشرف الهدايې د امام شافعي مسلک ته ميلان کړی دی، او د هغه مسلک يې قوي ګڼلی دی، خو اصلاً د انصاف خبره دا ده چي د احرام په حالت کي نکاح مکروه او نامناسبه ده، لکه زموږ په څلورم جواب کي چي دا خبره ذکره سوه، او علامه ثميري هم د دې تاييد کړی دی، لهذا د امام شافعي مسلک قوي ګڼل پکار نه دي.

## د آزاد لپاره د مينځي سره د نکاح مسئله

وَيَجُوزُ تَزَوُّجُ الْأَمَةِ او جائز دي نکاح کول د مينځي سره مُسْلِمَةً كَانَتْ أَوْ كِتَابِيَّةً هغه که مسلمانه مينځه وي او که کتابي مينځه وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ لِلْحُرِّ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأَمَةٍ كِتَابِيَّةٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: جائز نه دي د آزاد لپاره چي هغه د کتابي مينځي سره نکاح وکړي لِأَنَّ جَوَازَ نِكَاحِ الْإِمَاءِ ضَرُورِيٌّ عِنْدَهُ ځکه د امام شافعي په نيز د مينځو سره د نکاح رواېښت د ضرورت پر بناء ثابت دی لِمَا فِيهِ مِنْ تَعْرِيضِ الْجُزْءِ عَلَى الرِّقِّ ځکه چي د مينځي سره په نکاح کولو کي خپل جزء پر غلامتوب وړاندي کول دي ايعني د مينځي سره د نکاح کولو مطلب "خپل بچي غلام جوړول" دي ا وَقَدِ انْدَفَعَتِ الضَّرُورَةُ بِالْمُسْلِمَةِ او دا ضرورت په مسلماني مينځي سره پوره سوانو ځکه به د کتابي مينځي

سره نکاح جائز نه وي؛ وَلِهٰذَا جُعِلَ طَوْلُ الْحُرَّةِ مَانِعًا مِنْهُ او له همدې کبله پر آزادي ښځي قدرت لرل د مینځي له نکاح څخه مانع ګرځول سوي دي وَعِنْدَنَا الْجَوَازُ مُطْلَقٌ او زموږ په نيز د نکاح روايښت مطلق دی لِإِطْلَاقِ الْمُقْتَضِي د مقتضیٰ د مطلقوالي په وجه ایعني ځکه چي د نکاح د آیتونو مقتضیٰ مطلق ده؛ وَفِيهِ او په دې کي ايعني د مینځي سره په نکاح کولو کي؛ اِمْتِنَاعٌ عَنْ تَحْصِيْلِ الْجُزْءِ الْحُرِّ د آزاد جزء له حاصلولو څخه منع کېدل دي لَا إِرْقَاقُهُ نه د هغه غلام جوړول وَلَهُ أَنْ لَا يُحَصِّلَ الْأَصْلَ او د خاوند لپاره جائز دي چي أصل حاصل نه کړي ایعني د هغه لپاره دا جائز دي چي په جماع سره بچی حاصل نه کړي بلکي عزل وکړي؛ فَيَكُوْنُ لَهُ أَنْ لَا يَحْصُلَ الْوَصْفَ نو د هغه لپاره به دا اهم؛ جائز وي چي وصف اآزاد والی؛ حاصل نه کړي.

**اللغات:** ﴿الْإِمَاء﴾ جمع د أُمَةٌ ده: مینځه. ﴿تَغْرِيْض﴾ د تفعيل مصدر دی: وړاندي کول. پیشول (اچول، غورځول). ﴿ضَرُوْرِيٌّ﴾ د ضرورت پر بناء، د مجبورۍ په وجه. ﴿الرِّق﴾ غلامتوب. ﴿طَوْل﴾ استطاعت (د آزادي ښځي سره د نکاح کولو طاقت). ﴿مُقْتَضِيْ﴾ تقاضا. ﴿إِرْقَاق﴾ د إفعال مصدر دی: غلام جوړول. ﴿الأَصْل﴾ مراد ځني بچی دی. ﴿الْوَصْف﴾ مراد ځني آزاد صفت والا بچی دی (یعني آزاد بچی).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د آزاد کس لپاره د مینځي سره د نکاح په روايښت او نه روايښت کي د فقهاؤ اختلاف دی، د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د آزاد کس لپاره د مسلماني مینځي سره نکاح کول صحيح دي، خو د کتابي مینځي سره نکاح کول صحيح او روا نه دي، امام مالک رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی، او همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله يو روايت دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د مینځي سره د نکاح روايښت د ضرورت په وجه ثابت دی، ځکه چي تر نکاح وروسته د آزاد خاوند او مینځي په جماع سره پيدا سوی کوچنی به د پلار جزء وي، او څرنګه چي د دې کوچني مور مینځه او مملوکه (رقيقه) ده، نو د "الْوَلَدُ يَتْبَعُ الْأُمَّ فِي الْحُرِّيَّةِ وِالرِّقِيَّةِ" د قاعدې پر بناء به دا کوچنی مملوک او رقيق (غلام) وي، او څرنګه چي د ده پلار آزاد او غير مملوک دی، نو په دې وجه د مینځي سره د آزاد کس په نکاح کولو کي د خپل جزء يعني د خپل بچي مملوکتوب (غلامتوب) لازميږي (يعني د مینځي د نکاح کولو مطلب دا دی چي له خپل جزء او له خپل بچي څخه غلام جوړول). او دا بالکل صحيح نه دی، خو څرنګه چي د مینځي سره نکاح

ضرورتاً ثابته ده، نو ځکه ضرورتاً موږ، د دې اجازه ورکړې ده، او دا ضرورت په مسلماني مينځې سره پوره کيږي، نو ځکه به صرف د مسلماني مينځې سره د نکاح کولو اجازه وي، او د کتابي مينځې سره به نکاح جائز نه وي، ځکه د ضرورت په باره کې قاعده دا ده چې: "الضَّرُوْرَةُ تُقَدَّرُ بِقَدْرِهَا" (يعني کوم چې شی چې ضرورتاً ثابت وي، هغه د ضرورت په اندازه ثابتيږي).

له همدې کبله امام شافعي رَحِمَهُ الله پر آزادي ښځې د قدرت لرلو په وخت کې د مينځې سره نکاح کول ناجائز او حرام ګڼلي دي، او د دې آيت په مفهومِ مخالف يې دليل نيولی دی: ﴿وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا أَنْ يَنْكِحَ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ فَمِنْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ مِنْ فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ﴾ [سورة النساء: ۲۵]، د دې آيت مفهومِ مخالف دا دی چې که څوک د آزادي ښځې پر نکاح قدرت لري، نو د هغه لپاره د مسلماني مينځې سره هم نکاح جائز نه ده.

**زموږ دليل**: زموږ د دليل حاصل دا دی چې په قرآنِ کريم کې د محرّماتو ښځو تر بيان وروسته په ﴿وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذٰلِكُمْ...(الخ)﴾ سره همدارنګه په ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ...(الخ)﴾ سره مطلقاً د نکاح کولو اجازه سوې ده، هغه که د آزادي ښځې سره وي او که د مينځې سره وي، د مسلماني ښځې سره وي او که د کتابي ښځې سره وي، لهذا د قرآن کريم دغه اطلاق او عموم د مسلماني ښځې سره خاصول او مقيد کول جائز او صحيح نه دي.

پاته سو دا چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د آيت په مفهومِ مخالف سره دليل نيولی دی، نو د هغه يو جواب دا دی چې زموږ د احنافو په نيز مفهومِ مخالف حجت نه دی، لهذا په دې سره د پورتني دوو آيتونو اطلاق مقيد کول صحيح نه دي، دويم جواب دا دی چې په دې آيت کې د افضل او اولیٰ بيان سوی دی، يعني پر آزادي ښځې د قدرت په وخت کې د مينځې سره نکاح کول افضل او غوره نه دي، لېکن که يې وکړي نو صحيح او روا دي، ناروا نه دي.

**وفيه امتناع الخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل دليل کې وويل چې د مينځې سره د نکاح مطلب "له خپل بچي څخه غلام جوړل" دي، نو د هغه جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې د مينځې سره د نکاح مطلب دا نه دی، بلکي مطلب يې د آزادي ښځې سره واده نه کول او له آزاد بچي څخه ځان منع کول دي، يعني هغه آزاد بچی حاصلول نه غواړي، او انسان ته دا حق او اجازه سته چې د وطي په وخت

کي عزل وکړي او بالکل له بچي څخه ځان وساتي، نو د دې حق او اجازه خو به په طريقه اولیٰ ورته وي چي هغه د آزاد صفت والا بچي حاصل نه کړي بلکي د غلام صفت والا بچي حاصل کړي، لهذا کله چي د هغه لپاره دا جائز دي، نو د کتابي مينځي سره به نکاح کول هم ورته جائز وي.

## پر آزادي ښځي د مينځي سره نکاح کول

وَلَا يَتَزَوَّجُ أَمَةً عَلَى حُرَّةٍ او نکاح دي نه کوي د مينځي سره پر آزادي ښځي [يعني پر آزادي ښځي دي مينځه نه په نکاح کوي] لِقَوْلِهِ ﷺ: لَا تُنْكَحُ الْأَمَةُ عَلَى الْحُرَّةِ ځکه چي نبي کريم فرمايلي دي: نه دي په نکاح کيږي مينځه پر آزادي ښځي وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ او دا حديث د خپل اطلاق په وجه حجت [او دليل] دی د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف فِي تَجْوِيزِهِ ذَلِكَ لِلْعَبْدِ په دې کي چي هغه دا صورت جائز ګڼي د غلام لپاره [چي پر آزادي ښځي مينځه په نکاح کړي] وَعَلَى مَالِكٍ فِي تَجْوِيزِهِ ذَلِكَ بِرِضَا الْحُرَّةِ او د امام مالک په خلاف حجت دی په دې کي چي هغه دا صورت جائز ګڼي د آزادي ښځي په رضا سره [يعني د هغه په نيز که د آزادي ښځي خوښه وي نو بيا خاوند پر هغې مينځه په نکاح کولای سي] وَلِأَنَّ لِلرِّقِّ أَثَرًا فِي تَنْصِيفِ النِّعْمَةِ او ځکه چي غلامتوب لره د نعمت په نيمولو کي اثر [او دخل] سته [يعني غلامتوب نعمت نيموي لکه څرنګه چي غلامتوب عقوبت او سزا هم کموي] عَلَى مَا نُقَرِّرُهُ فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ إِنْ شَاءَ اللهُ چي په کتابُ الطلاق کي به موږ انشاء الله دا ثابت کړو فَيَثْبُتُ بِهِ حِلُّ الْمَحَلِّيَّةِ فِي حَالَةِ الِانْفِرَادِ نو ثابتيږي به د غلامتوب په وجه د محل حلال کېدل د يوازي والي په حالت کي اد دې جملې مطلب دا دی چي د غلامتوب په وجه به د مينځي په حق کي نعمت په دې توګه نيم ګرځي چي که سړی منفرد وي يعني آزاده ښځه يې په نکاح کي نه وي نو د مينځي سره نکاح کول به د هغه لپاره حلال وي ] دُونَ حَالَةِ الِانْضِمَامِ نه په حالت د جمع کېدلو کي [يعني که د هغه نکاح کي آزاده ښځه وي، نو بيا به د مينځي سره نکاح کول د هغه لپاره حلال نه وي، او نه به پر يو ځای د آزادي ښځي او مينځي سره نکاح کول ورته حلال وي] وَيَجُوزُ تَزَوُّجُ الْحُرَّةِ عَلَيْهَا او جائز دي پر مينځي د آزادي ښځي سره نکاح کول لِقَوْلِهِ ﷺ: وَتُنْكَحُ الْحُرَّةُ عَلَى الْأَمَةِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي پر مينځي آزاده ښځه په نکاح کېدلای سي وَلِأَنَّهَا مِنَ الْمُحَلَّلَاتِ فِي جَمِيعِ الْحَالَاتِ او ځکه چي آزاده ښځه له حلالو ښځو څخه ده په ټولو حالاتو کي [يعني

په حالت دانفراد کې هم او په حالت دانضمام کې هم] إِذْلَا مُنَصِّفَ فِي حَقِّهَا ځکه چې دآزادې ښځې په حق کې هيڅ نيمونکی شی نشته [الکه دمينځې په حق کې چې غلامتوب نيمونکی دی].

**اللغات:** ﴿تَنْصِيْف﴾ نيمول، نيمايي کول. ﴿إِنْفِرَاد﴾ دإنفعال مصدر دی: يوازې کېدل (دلته يې مطلب دا دی چې سرې يوازې وي، په نکاح کې يې آزاده ښځه نه وي). ﴿إِنْضِمَام﴾ مخکنۍ صيغه ده: يوځای کېدل، جمع کېدل (مطلب يې دا دی چې دسرې په نکاح کې آزاده ښځه وي، يا هغه پريوه ځای آزاده او مينځه سره جمع کول غواړي).

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوې دي، اوله مسئله مختلف فيه ده، او دويمه مسئله له اختلاف څخه پاکه او متفق عليه ده.

(۱)... داولې مسئلې حاصل دا دی چې زموږ په نيز دخاوند لپاره (هغه که آزاد وي که غلام) دا جائز نه دي چې پر آزادې ښځې دمينځې سره نکاح وکړي، برابره ده آزاده ښځه راضي وي که نه وي.

دامام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که خاوند آزاد وي نو دهغه لپاره پر آزادې ښځې مينځه کول جائز نه دي، او که خاوند غلام وي نو دهغه لپاره پر آزادې ښځې مينځه کول جائز دي.

**دامام شافعي دليل:** دا دی چې پر آزادې ښځې مينځه په نکاح کول په دې وجه ناجائز دي چې کله خاوند آزاد وي نو په دې صورت کې دنکاح مانع ثابتيږي چې هغه دخپل جزء (بچي) غلام او رقيق جوړول دي، ليکن کله چې خاوند غلام دي نو دا مانع نه ثابتيږي، ځکه چې غلام دخپلو ټولو اجزاؤ سره رقيق او غلام دی، نو ځکه به دغلام لپاره پر آزادې ښځې دمينځې سره نکاح کول جائز وي.

دامام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې دآزادې ښځې رضا شرط ده، يعني که هغه په دې راضي وي نو دخاوند لپاره پر هغې مينځه په نکاح کول جائز دي، خاوند که غلام وي که آزاد وي، او که راضي نه وي نو بيا جائز نه دي.

**دامام مالک دليل:** دا دی چې پر آزادې ښځې دمينځې سره نکاح کول فقط دآزادې ښځې دحق په وجه ناجائز دي، ليکن کله چې آزاده ښځه په خپله دخپل حق پر ساقطولو راضي وي، نو بيا دناجائز کېدلو وجه ختمه سوه.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چې په عبارت ذکر سو يعني: "لَا تُنْكَحُ الْأَمَةُ عَلَى الْحُرَّةِ". په دې حديث کې په واضحه توګه پر آزادې ښځې دمينځې له نکاح څخه منع سوې ده، او څرنګه چې په دې حديث کې دخاوند دغلام والي يا آزاد والي، همدارنګه دآزادې ښځې درضا او نا راضي هيڅ ذکر نه دي سوی، نو په دې وجه دا حديث دامام شافعي او امام مالک دواړو په خلاف حجت او دليل دی.

**ولأن للرق إلخ**: زموږ عقلي دا دی چي څرنګه غلامتوب (رقيت) عقوبت (سزا) نيموي، همدارنګه نعمت هم نيموي. مثلاً د زنا په حد کي غلام ته د سلو دُرو پر ځای پنځوس دُرې سزا ورکول کيږي. او د شرابو په حد کي د اتيا دُرو پر ځای څلوېښت دُرې سزا ورکول کيږي، همدارنګه د هغه نعمت هم نيموي. مثلاً د آزاد لپاره څلور ښځي جائز دي، او د غلام لپاره فقط دوې ښځي جائز دي. آزاده ښځه په دريو طلاقو سره مُغلظه ګرځي او مينځه په دوو طلاقو سره مُغلظه ګرځي، نو کله چي رقيت (غلامتوب) د عقوبت په څير په نعمت کي هم خپل اثر کوي، نو په دې مسئله کي به هم هغه خپل اثر کوي لهذا د مينځي لپاره به فقط د انفراد په حالت کي د خاوند سره نکاح کول جائز وي، نه د انضمام په حالت کي. يعني سړی خو به يوازي د مينځي سره نکاح کولای سي، لېکن د مينځي او آزادي ښځي دواړو سره نکاح کول يا پر آزادي ښځي مينځه په نکاح کول به د هغه لپاره جائز او حلال نه وي.

او د دې په مقابل کي به هغه د انفراد په حالت کي هم د آزادي ښځي سره نکاح کولای سي او په حالت د انضمام کي (يعني چي مينځه يې په نکاح کي وي، نو په دې حالت کي) به هم د هغې سره نکاح کولای سي، لکه څرنګه چي په را روانه مسئله کي د دې وضاحت سوی دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي که له مخکي څخه مينځه ديو چا په نکاح کي وي، نو د هغه لپاره د آزادي ښځي سره د نکاح کولو اجازه سته. او دا مسئله د ائمه اربعه وو په نېز متفق عليه ده، ځکه چي په حديث کي د دې اجازه ورکول سوې ده، حديث دا دی: "وَتُنْكَحُ الْحُرَّةُ عَلَى الْأَمَةِ".

او عقلي دليل دا دی چي آزاده ښځه په ټولو حالاتو کي حلاله ده، د انضمام په حالت کي هم او د انفراد په حالت کي هم. يعني که مينځه په نکاح کي وي نو هم د آزادي ښځي سره نکاح حلاله ده، او که په نکاح کي نه وي نو هم نکاح ور سره حلاله ده، ځکه چي د آزادي ښځي په حق کي يو داسي منصّف (نيمونکی) شی نسته چي د هغې د نکاح نعمت ورنيم کړي، په خلاف د مينځي ځکه چي د هغې په حق کي نيمونکی شی سته چي هغه رقيّت (غلامتوب) دی.

## د آزادي ښځي په عدت (عده) کي د مينځي سره د نکاح کولو مسئله

| **فَإِنْ تَزَوَّجَ أَمَةً عَلَى حُرَّةٍ** که [يو سړي] نکاح وکړي د مينځي سره پر آزادي ښځي **فِي عِدَّةٍ مِنْ طَلَاقٍ بَائِنٍ أَوْ ثَلَاثٍ** [د آزادي ښځي] د طلاقِ بائن په عدت کي يا د دريو طلاقو [په عدت کي] **لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** ۞ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [د هغه نکاح] جائز نه ده **وَيَجُوزُ عِنْدَهُمَا** او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز |
| --- |

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۳۱۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۲۵]

جائز ده لِأَنَّ هٰذَا لَيْسَ بِتَزَوُّجٍ عَلَيْهَا ځکه چي دا پر آزادي ښځي نکاح کول نه دي ايعني دې ته "پر آزادي ښځي د مينځي په نکاح کول" نه وايي ا وَهُوَ الْمُحَرَّمُ او همدا حرام دي وَلِهٰذَا لَوْحَلَفَ لَا يَتَزَوَّجُ عَلَيْهَا همدا وجه ده که هغه قسم وکړي چي پر آزادي ښځي به نکاح نه کوي ايعني که داسي قسم واخلي چي پر آزادي ښځي به مينځه نه په نکاح کوم ا لَمْ يَحْنَثْ بِهٰذَا نو هغه په دغه نکاح سره نه حانث کيږي وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ نِكَاحَ الْحُرَّةِ بَاقٍ مِنْ وَجْهٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د آزادي ښځي نکاح اد عدت په زمانه کي هم ا من وجه پاته ده لِبَقَاءِ بَعْضِ الْأَحْكَامِ ځکه چي اعدت په زمانه کي ا د نکاح ځيني احکام پاته دي فَيَبْقَى الْمَنْعُ إِحْتِيَاطًا نو د احتياط لپاره به ا د عدت په زمانه کي ا د نکاح ممانعت اهم ا پاته وي بِخِلَافِ الْيَمِيْنِ په خلاف د قسم لِأَنَّ الْمَقْصُودَ أَنْ لَا يُدْخِلَ غَيْرَهَا فِي قِسْمِهَا ځکه چي اپه قسم سره د خاوند ا مقصد دا دی چي خاوند به د هغې په نوبت کي بله ښځه ايعني مينځه ا نه داخلوي.

**اللغات:** ﴿لَمْ يَحْنَثْ﴾ د سمع له باب څخه د جحد صيغه ده: حانث کېدل (حانثېدل) قسم ماتول. د قسم مخالفت کول. ﴿يَمِيْن﴾ قسم، سوګند، حلف، لوړه. ﴿قِسْم﴾ حصه، نوبت، وار.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو سړي خپلي آزادي ښځي ته طلاق بائن ورکړي يا درې طلاقه ورکړي، نو آيا اوس د هغه لپاره د دې آزادي مُطلّقه ښځي د عدت په زمانه کي د مينځي سره نکاح کول جائز دي که نه؟ په دې باره کي اختلاف دی. امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي جائز دي. او صاحبين فرمايي چي جائز نه دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د طلاقِ بائن يا طلاقِ ثلاث په وجه آزاده ښځه د دې سړي له نکاح څخه ووتله او ملک نکاح زائل سو، نو اوس که دا سړی د مينځي سره نکاح وکړي، نو دا به "پر آزادي ښځي د مينځي په نکاح کول" نه وي (يعني دې ته "پر آزادي ښځي د مينځي سره نکاح کول" نه وايي) او حرام همدغه دي، نو ځکه به د مينځي سره د هغه نکاح کول جائز وي.

**ولهذا لوحلف إلخ:** صاحبين د خپل دليل په تاييد کي يو مثال ذکر کوي، هغه دا چي که يو سړي قسم واخلي چي زه به پر خپلي آزادي ښځي مينځه نه په نکاح کوم، او بيا هغه دغه آزادي ښځي ته طلاقِ بائن يا طلاقِ ثلاث ورکړي او د هغې په عدت کي د مينځي سره نکاح وکړي، نو هغه په خپل قسم کي نه حانثيږي، له دې څخه هم معلومه سوه چي آزاده ښځه د هغه له نکاح څخه وتلې ده. لهذا که هغه د مينځي سره نکاح وکړي، نو دې ته "پر آزادي ښځي د مينځي په نکاح کول" نه وايي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي تر طلاق وروسته هم د دې ښځي نكاح مِنْ وَجْه (په يوه اعتبار سره) پاته ده. ځكه چي د نكاح ځيني احكام يعني نفقه، منع عن الخروج او داسي نور تر عدت ختميدلو پوري پاتيږي، لهذا څرنګه چي د مِنْ كُلِّ وَجْه نكاح پاتېدلو په صورت كي د مينځي سره نكاح كول ناجائز دي، همدارنګه به د مِنْ وَجْه نكاح پاتېدلو په صورت كي هم احتياطاً د مينځي سره نكاح كول ناجائز وي.

**بخلاف اليمين إلخ**: په دې سره صاحب د هدايې د صاحبينو د مثال جواب وركوي، فرمايي چي كله سړي قسم وكړي چي پر آزادي ښځي به مينځه نه په نكاح كوم، نو د دې مقصد دا دی چي د آزادي ښځي په واري او نوبت كي به مينځه نه شريكوم، لېكن كله چي دلته هغه (د مينځي سره تر نكاح مخكي) آزادي ښځي ته طلاق وركړی، او په طلاق سره يې د هغې نوبت ورختم كړی، نو اوس ښكاره خبره ده چي مينځه د هغې سره په نوبت كي نه شريكه كيږي، نو ځكه به دا سړی په خپل قسم كي نه حانث كيږي. (او بل دا چي په قسم كي عُرف معتبر دی، او په عُرف كي تر طلاقِ بائن يا طلاقِ ثلاث وروسته د مينځي سره نكاح كولو ته "تزوج الأمة على الحرة" نه وايي).

**راجح قول**: په پورتنی مسئله كي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وحرة على أمة لا يصح عكسه ولو أم ولد في عدة حرة ولو من بائن (الدر المختار ج:١، ص:٣١٦)، و قال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: قول الإمام راجح. لأنّ فيه احتياطاً. وهكذا ذكر الامام الكبير قاضيخان. [القول الراجح ج:١، ص:٢٢٥]

## د څو ښځو سره نكاح جائز ده؟

| |
|---|
| وَلِلْحُرِّ او آزاد سړي لره جائز دي أَنْ يَتَزَوَّجَ أَرْبَعًا مِنَ الْحَرَائِرِ وَالْإِمَاءِ چي نكاح وكړي د څلورو آزادو ښځو سره يا د څلور مينځو سره وَلَيْسَ لَهُ او د هغه لپاره [دا] جائز نه دي أَنْ يَتَزَوَّجَ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ چي تر دې له زياتو [ښځو] سره نكاح وكړي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: « فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ ځكه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: نو نكاح وكړئ! تاسي د هغو ښځو سره چي خوښي وي [يعني حلالي وي] تاسو ته مَثْنٰى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ » [النساء: ٣] د دوو دوو [ښځو] سره او د دريو دريو سره او د څلورو څلورو سره [تفسير كابلي] وَالتَّنْصِيْصُ عَلَى الْعَدَدِ يَمْنَعُ الزِّيَادَةَ عَلَيْهِ او د عدد صراحت پر دې زياتوب منع |

كوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَتَزَوَّجُ إِلَّا أَمَةً وَاحِدَةً او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نكاح دې نه كوي مگر د يوې مينځې سره لِأَنَّهُ ضَرُورِيٌّ عِنْدَهُ ځكه چې د مينځې نكاح د هغه په نېز د ضرورت پر بناء ثابته ده وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا تَلَوْنَا او د امام شافعي په خلاف هغه آيت حجت دی كوم چې موږ تلاوت كړی إِذِ الْأَمَةُ الْمَنْكُوحَةُ يَنْتَظِمُهَا اسْمُ النِّسَاءِ ځكه چې منكوحه مينځې ته [هم] د "نساء" نوم شامل دی [يعني ځكه چې منكوحه مينځه هم په نساء (ښځو) كې داخله ده] كَمَا فِي الظِّهَارِ لكه په ظهار كې.

**اللغات:** ﴿حَرَائِر﴾ جمع د حُرَّة ده: آزادې ښځې، ﴿طَابَ﴾ خوښېدل، غوره كېدل، ﴿مَثْنَى﴾ دوې دوې، ﴿ثُلَاث﴾ درې درې، ﴿رُبَاع﴾ څلور څلور، ﴿يَنْتَظِمُهَا﴾ د إفتعال مضارع ده: شاملېدل، په ترتيب كېدل، پېودل كېدل.

**تشريح:** په دې عبارت كې مصنف رَحِمَهُ الله د نكاح د شمېر په هكله بيان كړی دی چې انسان په يوه وخت كې د څو ښځو سره نكاح كولای سي، حاصل يې دا دی چې د احنافو په نېز د آزاد سړي لپاره د څلورو ښځو سره نكاح كول جائز دي، برابره ده هغه ټولې آزادې ښځې وي، يا ټولې مينځې وي، يا اول د دوو مينځو سره نكاح وكړي بيا د دوو آزادو ښځو سره، لنډ دا چې د هغه لپاره د څلورو ښځو سره نكاح كول جائز دي، لېكن تر څلورو د زياتو ښځو سره نكاح كول جائز نه دي.

دليل دا آيت دی: ﴿فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ ... (الخ)﴾، په دې آيت كې الله تعالىٰ مسلمانانو ته د څلورو ښځو سره د نكاح كولو اجازه وركړې ده، او د "رُبَاع" په لفظ سره يې د څلورو د شمېر صراحت كړی دی، نو ځكه به فقط د څلورو ښځو سره نكاح كول جائز وي، او تر څلورو زياتې ښځې به جائز نه وي.

او د ابن عمر په حديث كې هم له دې څخه منع سوې ده، حديث دا دی: "أَنَّ غِيْلَانَ بِنِ سَلَمَةَ الثَّقَفِيِّ أَسْلَمَ وَلَهُ عَشْرَ نِسْوَةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَسْلَمْنَ مَعَهُ. فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ ﷺ أَنْ يَتَخَيَّرَ مِنْهُنَّ أَرْبَعًا" (يعني د جاهليت په زمانه كې د غيلان بن سَلمه لس ښځې وې، لېكن تر اسلام راوړلو وروسته رسول الله ﷺ هغه ته فقط د څلورو ښځو د انتخابولو اجازه وركړه، او دا حكم يې وركړ چې پاتې ښځې له نكاح څخه وباسه!). له حديث څخه هم معلومه سوه چې تر څلورو زياتې ښځې په نكاح كول جائز نه دي. (بنايه، عنايه)

د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي پورتنی قانون د آزادو ښځو په هکله صحیح دی یعني سړی له څلورو آزادو ښځو څخه زیات د بلي ښځي سره نکاح نه سي کولای، لیکن په مینځو کي هغه دا قانون نه تسلیموي او فرمايي چي سړی تر یوې مینځي وروسته د بلي مینځي سره نکاح نه سي کولای، یعني په مینځو کي د هغه په نیز فقط د یوې مینځي سره د نکاح کولو اجازه سته، نه د څلورو سره.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چي د مینځو سره نکاح ضرورتاً ثابته ده (لکه مخکي چي په دې باره کي بحث تېر سو)، نو ځکه به د ضرورت په اندازه د مینځو سره نکاح جائز وي، او ضرورت پوره کیږي په یوې مینځي سره، نو ځکه به تر یوې له زیاتو مینځو سره نکاح جائز نه وي، لکه څرنګه چي د ضرورت په وخت کي دومره اندازه مردار حیوان خوړل جائز دي چي په هغه سره انسان ژوندی پاته سي، په ډک نس یا د خوند لپاره د هغه خوړل حرام دي.

**والحجة عليه:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل که څه هم مضبوط دی، خو موږ چي کوم آیت په دلیل کي پیش کړی دی هغه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، ځکه چي په هغه آیت کي د "نساء" لفظ ذکر سوی دی، او "نساء" چي څرنګه آزادو ښځو ته شامل دی، همدارنګه مینځو ته هم شامل دی، لکه څرنګه چي د کفارهٔ ظهار په دې آیت ﴿وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَائِهِمْ﴾ کي له "نساء" څخه آزادي ښځي او مینځي دواړه مراد دي، یعني که خاوند د آزادي ښځي سره ظهار وکړي نو هم د ظهار کفاره واجب ده، او که د مینځي سره ظهار وکړي نو هم د ظهار کفاره واجب ده.

## د غلام لپاره د څلورو ښځو سره د نکاح کولو حکم

وَلَا يَجُوْزُ لِلْعَبْدِ او جائز نه دي د غلام لپاره أَنْ يَتَزَوَّجَ أَكْثَرَ مِنْ اِثْنَتَيْنِ چي هغه نکاح وکړي تر دوو د زیاتو ښځو سره وَقَالَ مَالِكٌ: يَجُوْزُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز دي لِأَنَّهُ فِيْ حَقِّ النِّكَاحِ بِمَنْزِلَةِ الْحُرِّ عِنْدَهُ ځکه چي غلام د نکاح په حق کي د آزاد په درجه کي دی د امام مالک رَحِمَهُ الله په نیز حَتّٰى مَلَكَهُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلٰى تر دې چي غلام د مولیٰ له اجازت څخه بغیر [هم] د نکاح کولو ملکیت [اختیار] لري وَلَنَا: أَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ او زموږ دلیل دا دی: چي غلامتوب نیمونکی دی فَيَتَزَوَّجُ الْعَبْدُ اِثْنَتَيْنِ وَالْحُرُّ أَرْبَعًا لهذا غلام به [فقط] د دوو ښځو سره او آزاد کس به د څلورو ښځو سره نکاح کوي إِظْهَارًا لِشَرَفِ الْحُرِّيَّةِ د آزادۍ د شرافت [او ستروالي] د ښکاره کولو لپاره فَإِنْ طَلَّقَ

الْحُرُّ إِحْدَى الْأَرْبَعِ طَلَاقًا بَائِنًا او كه آزاد سړي په خپلو څلورو ښځو کي يوې ښځي ته طلاقِ بائن ورکړي لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ رَابِعَةً نو جائز نه دي د هغه لپاره چي نکاح وکړي د [بلي] څلورمي ښځي سره حَتّٰى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا تر دې چي د طلاق کړی سوي ښځي عدت تېر سي وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَهُوَ نَظِيرُ نِكَاحِ الْأُخْتِ فِي عِدَّةِ الْأُخْتِ او دا [نکاح] د خور په عدت کي د هغې د خور سره د نکاح کولو مثل [او مشابه] ده.

**اللغات:** ﴿حُرِّيَّة﴾ آزادي، ﴿إِحْدَى الْأَرْبَع﴾ يوه د څلورو، ﴿تَنْقَضِي﴾ د إنفعال مضارع ده: تېرېدل، ختمېدل، پوره کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د غلام د نکاح شمېر بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي زموږ په نېز د غلام لپاره فقط د دوو ښځو سره نکاح جائز ده. تر دوو د زياتو ښځو سره جائز نه ده. لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز د غلام لپاره هم د آزاد په څېر د څلورو ښځو سره نکاح جائز ده.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي د نکاح په حق کي غلام هم د آزاد په څېر دی، ځکه چي نکاح د انسانيت له خواصو څخه ده، او په انسانيت کي آزاد او غلام دواړه برابر دي، ځکه چي دواړه انسانان دي، همدا وجه ده چي غلام ته دا اختيار سته چي د خپل مالک له اجازې څخه بغير خپله نکاح وکړي.

**زموږ دليل:** دا دی چي دا خبره تر لمر سپينه ده چي رقيّت (غلامتوب) د عقوبت په څېر په نعمت کي هم اثر کوي، يعني لکه څرنګه چي عقوبت (سزا) نيموي همدارنګه نعمت هم نيموي. او نکاح هم يو نعمت دی، نو ځکه به د غلامتوب په دا نعمت هم نيم ګرځي، او د څلورو نيم دوه کيږي. نو ځکه به د غلام لپاره فقط د دوو ښځو سره نکاح کول جائز وي.

علامه عيني رَحِمَهُ الله پر دې موقع يوه مهمه خبره دا هم ليکلې ده چي " حقيقت دا دی چي په شريعت کي نعمتونه د مراتبو په اعتبار سره جلا او مختلف دي. مثلاً د رسولُ الله ﷺ رُتبه تر ټوله انسانيت لوړه ده، نو هغوی ته د نهو (٩) ښځو سره د نکاح کولو اجازه ورکول سوې وه. همدارنګه د غلام په مقابله کي د آزاد رُتبه لوړه او أشرفه ده، نو د آزادوالي د شرافت او لوړوالي د ښکاره کولو په خاطر به د غلام لپاره فقط دوې ښځي جائز وي. کنې د حُريّت (يعني د آزادوالي) شرافت او خصوصيت به ښکاره نه سي. او د حضرت عمر رضي الله عنه دا حديث "لَا يَتَزَوَّجُ الْعَبْدُ أَكْثَرَ مِنْ اِثْنَيْنِ" هم زموږ د مذهب تاييد کوي.

قوله: طلق الحرّ إلخ: مصنف رَحِمَهُ الله په دې عبارت سره يوه بله مسئله بيانوي چې هغه مخکې هم ضمناً تېره سوه، د مسئلې حاصل دا دی چې که آزاد سړي د څلورو ښځو سره نکاح کړې وي، او بيا هغه يوې ښځې ته طلاقِ بائن ورکړي، نو تر څو چې هغه بائنه مُطلّقه ښځه خپل عدت پوره نه کړي، تر هغه وخته پورې د دغه سړي لپاره د بلې ښځې سره نکاح کول جائز نه دي، کنې د ده په نکاح کې به پنځه ښځې جمع سي او دا ناروا دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ده لپاره د بلې ښځې سره نکاح کول جائز دي، ځکه چې د طلاقِ بائن په وجه هغه ښځه بالکل د ده له نکاح څخه ووتله، لهذا په دې صورت کې د پنځو ښځو اجتماع نه لازميږي.

مخکې د "جمع بين الأختين" په بحث کې چې د مُطلّقه ښځې په عدت کې د هغې د خور سره د نکاح کولو په هکله کومه مسئله ذکر سوه، دا مسئله هم د هغه مسئلې سره مشابه ده.

## د زناکارۍ حاملې سره د نکاح کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ تَزَوَّجَ حُبْلَى مِنْ زِنًا فرمايي: که [يو څوک] نکاح وکړي د داسې ښځې سره چې په زنا سره حامله [حملداره] وي جَازَ النِّكَاحُ نو [د هغه] دا نکاح جائز ده وَلَا يَطَؤُهَا حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا [ليکن] وطي دې نه ور سره کوي تر دې چې حمل وزېږوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ❁ او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ: النِّكَاحُ فَاسِدٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نکاح يې فاسده ده وَإِنْ كَانَ الْحَمْلُ ثَابِتَ النَّسَبِ او که حمل ثابتُ النسب وي فَالنِّكَاحُ بَاطِلٌ بِالْإِجْمَاعِ نو نکاح يې باطله ده په اجماع سره لِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّ الِامْتِنَاعَ فِي الْأَصْلِ لِحُرْمَةِ الْحَمْلِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په اصل کې د نکاح ممانعت د حمل د احترام [او درناوي] په وجه دی وَهٰذَا الْحَمْلُ مُحْتَرَمٌ او دا [د زنا] حمل [هم] د احترام قابل دی لِأَنَّهُ لَا جِنَايَةَ مِنْهُ ځکه چې د دې حمل له طرفه هيڅ جرم نسته [ځکه اصل مجرم خو زاني او زانيه ده] وَلِهٰذَا لَمْ يَجُزْ إِسْقَاطُهُ همدا وجه ده چې د دې حمل إسقاط [ساقطول] جائز نه دي وَلَهُمَا: أَنَّهَا مِنَ الْمُحَلَّلَاتِ بِالنَّصِّ د طرفينو دليل دا دی: چې دغه حامله زانيه له حلالو ښځو څخه ده د آيت په وجه [نو ځکه د هغې سره نکاح جائز ده] وَحُرْمَةُ الْوَطْئِ كَيْلَا يَسْقِيَ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ او وطي د دې لپاره [ور سره] حرامي دي چې د خاوند اوبه د بل چا کښت اوبه نه کړي وَالِامْتِنَاعُ فِي ثَابِتِ النَّسَبِ لِحَقِّ صَاحِبِ الْمَاءِ او په ثابتُ النسب کې د نکاح ممانعت د اوبو والا

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فى رد المحتار (ج:٢، ص:٣١۶). [القول الراجح ج:١، ص:٢۴۶]

[یعني داول خاوند] د حق په وجه دی وَلَا حُرْمَةَ لِلزَّانِيْ او زاني لره هيڅ احترام [او عزت] نسته انو ځکه په دزانيه ښځي سره نكاح جائز وي].

**اللغات:** ﴿حُبْلَى﴾ حامله (حملداره)، بلاربه، ﴿تَضَعَ﴾ حمل زېږول، بچی زېږول، ﴿إِمْتِنَاعٌ﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل، ځان نیول، ﴿جِنَايَةٌ﴾ جُرم، قصور، ﴿إِسْقَاطٌ﴾ دإفعال مصدر دی: حمل ساقطول، ضایع کول، ایله کول، ﴿يَسْقِيْ﴾ د ضرب مضارع ده: اوبه کول، سېرابول، ﴿زَرْعٌ﴾ کښت، فصل، کرهڼه (کرونده).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که یو سړي د داسي ښځي سره نکاح وکړي چي هغه په زنا سره حامله (حملداره) وي، نو اوس د دې دوه صورتونه دي: ① د هغې حمل به ثابتُ النسب وي. په دې توګه چي هغې ته خاوند طلاق ورکړی وي او هغه د طلاق په عدت (عده) کي وي او په دې دوران کي هغه د یو چا سره زنا وکړي او د زنا په وجه حامله سي (نو دا حمل ثابتُ النسب دی ځکه د عدت په زمانه کي چي حمل ښکاره سي نو د هغه نسب د خاوند (طلاق ورکونکي) سره ثابتیږي)، ② دویم صورت دا دی چي د هغې حمل به ثابت النسب نه وي.

که چیري اول صورت وي یعني حمل یې ثابتُ النسب وي، نو د ټولو امامانو په اتفاق د داسي ښځي سره نکاح کول حرام دي.

او که دویم صورت وي، یعني د حمل نسب یې ثابت نه وي، نو د داسي حاملې سره د نکاح کولو په باره کي د فقهاؤ اختلاف دی، له احنافو څخه طرفین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي د هغې سره نکاح کول جائز دي خو تر وضعُ الحمل (یعني د کوچني تر زېږولو) پوري به وطي نه ورسره کوي. امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي د هغې سره نکاح کول بالکل جائز نه دي، همدا د امام احمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله قول هم دی؛ لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نکاح هم ورسره جائز ده او وطي هم ورسره جائز دي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** قیاس دی، هغه دا چي څرنګه په أصل یعني ثابتُ النسب کي د حمل د احترام په وجه نکاح ممنوع ده، همدارنګه به په فرع یعني په غیرِ ثابتُ النسب حمل کي هم د حمل د احترام په وجه نکاح ممنوع وي، ځکه چي د ثابتُ النسب حمل په څېر دغه حمل هم له جرم او جنایت څخه پاک او بې قصوره دی، ځکه ټوله قصور خو د مور (زانیې) او زاني دی، همدا وجه ده چي د دې حمل إسقاط (ساقطول) صحیح نه دي، لهذا کله چي غیرِ ثابتُ النسب حمل هم محترم دی، نو ځکه به د داسي حاملې سره هم نکاح حرامه او ممنوع وي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي په قرآني محرّماتو کي د "حامله مِن الزنا" هيڅ ذکر نسته. يعني په قرآن کي چي د کومو محرّماتو ښځو بيان سوی دی، په هغوی کي د داسي حاملې هيڅ يادونه سوې نه ده. نو ځکه به هغه له حلالو ښځو شخه وي، او د "أُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ" په خاطر به د هغې سره هم نکاح کول صحيح او جائز وي.

او که څه هم په قرآني محرّماتو کي حامله ثابتُ النسب ذکر سوې نه ده، خو هغه بيا د دې آيت ﴿وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ﴾ په وجه تر وضعُ الحمل پوري په محرّماتو کي داخله ده. لهذا په دې هکله اعتراض کول پکار نه دي.

**وحرمة الوطئ إلخ**: دا ديو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چي کله "حامله من الزنا" له حلالو ښځو څخه ده، او د هغې سره نکاح جائز ده، نو بيا د هغې سره وطي کول ولي جائز نه دي حال دا چي تر نکاح وروسته فوراً وطي روا کيږي.

نو د دې په جواب کي صاحبِ د کتاب فرمايي چي د هغې سره وطي کول ځکه ناجائز او حرام دي چي انسان په خپلو اوبو (مني) سره د بل چا کښت اوبه نه کړي (يعني چي د داسي ښځي رحم ته د سړي اوبه نه ورسيږي کوم چي له بل چا څخه حامله ده)، ځکه چي نبي کريم ﷺ له دې څخه منع کړې ده، فرمايي: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلَا يَسْقِيَنَّ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ". په دې حديث کي د داسي ښځي له وطي څخه منع سوې ده چي هغه له بل چا څخه حامله وي.

**والامتناع في ثابت إلخ**: له دې ځايه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي غيرِ ثابتُ النسب حمل پر ثابتُ النسب حمل قياسول صحيح نه دی، ځکه چي په ثابت النسب حمل کي خو د حمل د احترام په وجه نکاح ممنوع نه ده، بلکي هلته د صاحبُ الماء يعني د اول خاوند د حق په وجه نکاح ممنوع ده، او څرنګه چي زاني د خپلي بدکارۍ په وجه د احترام هيڅ حق نه لري، نو ځکه د ده حمل پر ثابتُ النسب حمل قياسول بالکل صحيح نه دي.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی، کما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والفتوىٰ على قولهما، كما في القهستاني عن المحيط. (رد المحتار ج:٢، ص:٣١٦). [القول الراجح ج:١، ص:٢٤٦]

## د قيدي حاملې سره د نکاح کولو حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَ حَامِلًا مِنَ السَّبْيِ او که [يو سړی] نکاح وکړي ديوې قيدي حاملې ښځې سره [يعني چې هغه په دارالحرب کې نيول سوې او قيد کړی سوې وي او حملداره وي] فَالنِّكَاحُ فَاسِدٌ نو دا نکاح فاسده ده لِأَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ ځکه چې [د هغې] حمل ثابتُ النسب دی وَإِنْ زَوَّجَ أُمَّ وَلَدِهِ او که [مالک] د خپلې اُم ولد مينځې نکاح وتړي [د بل چا سره] وَهِيَ حَامِلٌ مِنْهُ حال دا چې مينځه له هغه [مالک] څخه حامله وي فَالنِّكَاحُ بَاطِلٌ نو [د هغې] نکاح باطله ده لِأَنَّهَا فِرَاشٌ لِمَوْلَاهَا ځکه چې هغه د خپل مالک فراش ده حَتَّى يَثْبُتَ نَسَبُ وَلَدِهَا مِنْهُ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ همدا وجه ده چې د هغې د بچې نسب ثابتيږي د نسب له دعوىٰ څخه بغير فَلَوْ صَحَّ النِّكَاحُ [ليکن] که نکاح صحيح [وګرځول] سي لَحَصَلَ الْجَمْعُ بَيْنَ الْفِرَاشَيْنِ نو د دوو فراشو جمع کېدل به لازم سي إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ مُتَأَكِّدٍ خو دا فراش مضبوط [او قوي] نه دی حَتَّى يَنْتَفِيَ الْوَلَدُ بِالنَّفْيِ مِنْ غَيْرِ لِعَانٍ همدا وجه ده چې بچی منتفي کيږي [د مالک] په نفي کولو سره بغير د لعان څخه فَلَا يُعْتَبَرُ مَا لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْحَبَلُ نو اعتبار به نه کيږي د دې فراش تر څو چې حمل ور سره متصل سوی نه وي [يعني تر څو چې اُم ولد حامله سوې نه وي، تر هغه وخته به د نکاح په ممانعت کې د هغې فراش معتبر نه وي او نکاح به ور سره جائز وي].

**اللغات:** ﴿السَّبْيِ﴾ قيدي (بندي)، محبوسه او بندي ښځه (په عربي ژبه کې عموماً د بندي سړي لپاره "أَسِيْر" استعماليږي، او د بندي ښځې لپاره "سَبْي" استعماليږي، جمع يې "سُبِيٌّ" راځي، او يو لفظ "السَّبِيّ" راځي دا هم قيدي او بندي ته وايي او د دې جمع بيا "سَبَايَا" راځي)، ﴿أُمِّ وَلَدِ﴾ (د هلک مور)، د کومې مينځې سره چې مالک (مولىٰ) وطي وکړي او د هغه په سبب له مينځې څخه بچی پيدا سي، او مالک د بچې د نسب دعوه کړې وي (چې دا زما زوی دی) نو داسې مينځې ته "أُمِّ ولد" وايي، ﴿فِرَاش﴾ بستر (بستره)، د دې لفظ معنىٰ مخکې تېره سوه، په دې عبارت او را روان عبارت کې له "فراش" څخه مراد هغه اُم ولد مينځه ده چې هغه د خپل بچې د نسب په ثابتولو کې د دعوه کولو ته محتاجه نه وي، بلکې بغير له دعوې څخه يې د بچې نسب د مالک سره ثابتيږي (ځکه چې يو ځل مالک د هغې د اول بچې د نسب دعوه کړې وي او د هغه زوي والي يې منلی وی، نو داسې مينځه د خپل مالک فراش کيږي، ليکن که له مالک څخه د مينځې بچی پيدا سوی نه وی او تر اوسه اُم ولد جوړه سوې نه وي، نو هغه د خپل مالک فراش کېدلای نه سي.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې (٢) مسئلې بيان سوي دي:

(١)... اوله مسئله دا ده که يو څوک د داسې حاملې (حملدارې) ښځې سره نکاح وکړي چې هغه مسلمانانو په دارُ الحرب کې نيولې وي او دارُ الاسلام ته يې را وستې وي، نو دا نکاح د ټولو امامانو په نېز فاسده ده؛ دليل يې دا دی چې د هغې ښځې د حمل نسب د حربي خاوند سره ثابت دی، او تاسو

مخکې ووېل چې د حمل د ثابتُ النسب کېدلو په صورت کې نکاح فاسدېږي. نو ځکه به دلته هم نکاح فاسدېږي.

(٢)... دويمه مسئله دا ده که يو مالک د خپلې أُم ولد مينځې سره وطي وکړي او هغه حامله سي. نو اوس مالک ته دا جائز نه دي چې د هغې نکاح د بل چا سره وکړي، او که يې وکړي نو نکاح باطله ده؛ ځکه چې دغه اُم ولد د خپل مالک فراش ده، همدا وجه ده چې د هغې د بچي نسب د مالک سره ثابتيږي (که څه هم مالک د بچي د نسب دعوه نه وکړي)، نو اوس که د اُم ولد نکاح د بل چا سره صحيح وګڼل سي نو "جمع بين الفراشين" به لازم او ثابت سي، ځکه چې هغه به د اُم ولد کېدلو په وجه د خپل مالک فراش هم وي، او د نکاح په وجه به د خاوند فراش هم وي، او "جمع بين الفراشين" باطله ده، ځکه چې د "جمع بين الفراشين" په وجه نسب شکمن کيږي، نو ځکه به نکاح هم باطله وي.

**إلا أنه غير متأكد إلخ**: په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې کله اُم ولد د خپل مالک فراش ده، نو بايد د غيرِ حمل په صورت کې هم د هغې نکاح باطله وای، ځکه چې د غيرِ حمل په صورت کې "جمع بين الفراشين" نه ثابتيږي.

د دې په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې اُم ولد که څه هم د خپل مالک فراش ده، خو مستحکم او مضبوطه فراش يې نه ده، همدا وجه ده که مالک د هغې د بچي نفي وکړي (يعني له نسب څخه يې انکار وکړي)، نو د لعان څخه بغير د هغې د بچی نسب منتفي کيږي، حال دا چې که خاوند او مالک د قوي فراش د بچي نفي وکړي نو د لعان کولو څخه بغير د هغې د بچی نسب نه متنفي کيږي، لهذا معلومه سوه چې دا فراش قوي نه دی، نو ځکه د دغه فراش د تقويت لپاره حمل ضروري وګرځول سو، يعني که اُم ولد حامله وي، نو د هغې فراش والي به قوي وي، او د بل چا سره به د هغې نکاح جائز نه وي، لېکن که هغه حامله نه وي، نو د هغې فراش والي به ناقص او ضعيف وي، او ضعيف فراش معتبر نه دی، نو ځکه به په دې صورت کې د بل چا سره د هغې نکاح جائز وي.

## د موطوئه (وطي کړل سوي) مينځې سره د نکاح کولو بيان

قَالَ: وَمَنْ وَطِئَ جَارِيَتَهُ ثُمَّ زَوَّجَهَا فرمايي: او کوم څوک چې د خپلې مينځې سره وطي وکړي بيا د هغې نکاح وکړي [د بل چا سره] جَازَ النِّكَاحُ نو نکاح يې جائز ده لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِفِرَاشٍ لِمَوْلَاهَا ځکه چې هغه مينځه د خپل مالک فراش نه ده فَإِنَّهَا لَوْ جَاءَتْ بِوَلَدٍ ځکه که هغه يو بچی وزېږوي لَا يَثْبُتُ نَسَبُهُ مِنْ غَيْرِ دَعْوَةٍ نو د هغه نسب نه ثابتيږي [د مالک سره] د نسب له دعوې څخه بغير إِلَّا أَنَّ عَلَيْهِ أَنْ يَسْتَبْرِئَهَا خو دا چې پر مالک مستحب دي چې په مينځې استبراء وکړي صِيَانَةً لِمَائِهِ د خپلو اوبو د حفاظت لپاره [يعني چې خپل نسب يې

خوندي پاته سي ا وَإِذَا جَازَ النِّكَاحُ او کله چي نکاح جائز ده فَلِلْزَوْجِ أَنْ يَطَأَهَا قَبْلَ الِاسْتِبْرَاءِ نو د خاوند لپاره جائز دي چي وطي ور سره وکړي تر استبراء مخکي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَقَالَ مُحَمَّدٌ❀: لَا أُحِبُّ لَهُ أَنْ يَطَأَهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زه د هغه لپاره نه خوښوم چي وطي ور سره وکړي حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا تر دې چي استبراء په وکړي ايعني زه تر استبراء مخکي د خاوند لپاره د مينځي سره وطي کول نه خوښوم ا لِأَنَّهُ احْتَمَلَ الشُّغْلَ بِمَاءِ الْمَوْلَى ځکه چي د مالک په اوبو سره ادمينځي د رحم ا د مشغولېدلو احتمال سته ايعني دا احتمال سته چي د مينځي رحم به د مالک په نطفه سره مشغول وي يعني د هغې په رحم کي به د مالک نطفې قرار نيولې وي او دا فَوَجَبَ التَّنَزُّهُ كَمَا فِي الشِّرَاءِ نو ځکه پاکي [او استبراء] ضروري ده لکه څرنګه چي [د مينځي] په رانيولو کي کيږي ايعني لکه کله چي مُشتري يوه مينځه رانيسي نو پر هغه استبراء کول ضروري دي. همدارنګه دلته...] وَلَهُمَا: أَنَّ الْحُكْمَ بِجَوَازِ النِّكَاحِ أَمَارَةُ الْفَرَاغِ دشيخينو دليل دا دی: چي د نکاح د جائز کېدلو حکم [د مينځي د رحم] د خالي والي علامه ده فَلَا يُؤْمَرُ بِالِاسْتِبْرَاءِ لَا اسْتِحْبَابًا وَلَا وُجُوبًا نو ځکه به د استبراء حکم نه کيږي نه د استحباب په توګه او نه د وجوب په توګه بِخِلَافِ الشِّرَاءِ په خلاف [د مينځي] د رانيولو لِأَنَّهُ يَجُوزُ مَعَ الشُّغْلِ ځکه چي [د مينځي] رانيول [د رحم] د مشغوليت په وخت کي [هم] جائز دي وَكَذَا إِذَا رَأَى امْرَأَةً تَزْنِي او همدارنګه که [څوک] يوه ښځه پر زنا کولو ووينې فَتَزَوَّجَهَا بيا د هغې سره نکاح وکړي حَلَّ لَهُ أَنْ يَطَأَهَا قَبْلَ أَنْ يَسْتَبْرِئَهَا عِنْدَهُمَا نو د هغه لپاره جائز دي چي تر استبراء مخکي وطي ور سره وکړي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أُحِبُّ لَهُ أَنْ يَطَأَهَا مَا لَمْ يَسْتَبْرِئْهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زه د هغه لپاره نه خوښوم چي تر استبراء مخکي د مينځي سره وطي وکړي وَالْمَعْنَى مَا ذَكَرْنَا او وجه [دليل] يې هغه دی کوم چي موږ [پر څه مخکي] ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿صِيَانَةً﴾ حفاظت، ساتنه، ژغورنه، ﴿اِسْتِبْرَاءُ﴾ له "بَرَاءة" څخه مشتق دی: د رحم د خالي والي د يقين لپاره د ښځي تر يوه حيض پوري درېدل ("يعني تر يوه حيض پوري د ښځي سره وطي نه کول د دې لپاره چي په يقيني توګه معلومه سي چي د ښځي رحم خالي دی او نس يې د بل چا په اُوبو سره مشغول نه دی"، دلته يې مطلب دا دی چي کله د چا په ملکيت کي مينځه راسي نو تر يوه حيض پوري دي وطي نه ور سره کوي، بلکي کله چي يې حيض راسي او بيا ختم سي نو وطي دي ور سره وکړي، چي په يقيني توګه معلومه سوي چي په نس کي يې د بل چا

❀ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار: وقول محمد رَحِمَهُ الله أقرب إلى الاحتياط وبه نأخذ (ج:٢، ص:٣١٧). [القول الراجح ج:١، ص:٢٤٧]

حمل نسته، ځکه د حيض راتلل د دې خبرې علامه ده چې په نس کې يې حمل نسته)، ﴿التَّنَزُّهُ﴾ د تفعّل مصدر دی: ځان ساتل، احتياط کول، ليرې کېدل. ﴿أَمَارَةٌ﴾ علامت (علامه)، نښه، نښاني، ﴿الشِّرَاءُ﴾ رانيول.

**يادونه:** د "أُمِّ وَلَد" او د "فِرَاش" معنیٰ د تېر عبارت په لغاتو کې وګورئ! په عبارت د پوهېدلو لپاره د دوی په معنیٰ پوهېدل ضروري دي.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي، او دواړې مختلف فيه دي:

(۱)...اوله مسئله دا ده که يو سړی د خپلې مينځې سره وطي وکړي، بيا د يو بل چا سره د هغې نکاح وکړي، نو زموږ په نېز د هغې نکاح جائز ده که څه هم استبراء نه وکړي، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې له يوه حيض څخه تر استبراء مخکې د هغې نکاح جائز نه ده، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې له دريو حيضو څخه تر استبراء مخکې د هغې نکاح جائز نه ده.

**زموږ دليل:** دا دی چې دا مينځه د خپل مالک فراش نه ده، ځکه چې د نسب له دعوې څخه بغير د مالک سره د هغې د بچې نسب نه ثابتيږي، لهذا کله چې دا ثابته سوه چې دا مينځه د مالک فراش نه ده، نو د دې نکاح به جائز وي، ځکه چې د نه جواز سبب فراش والی وو (يعني د بل چا سره د مينځې نکاح په دې سبب سره ناجائز وه چې هغه د خپل مالک فراش وه)، او هغه سبب دلته نسته، نو ځکه به يې د بل چا سره نکاح جائز وي، خو تر نکاح مخکې پر مالک استبراء کول مستحب دي، د دې لپاره چې د مالک اوبه محفوظه سي يعني نسب يې خوندي سي.

**وإذا جاز النكاح:** فرمايي کله چې زموږ په نېز نکاح صحيح او جائز سوه، نو آيا د خاوند لپاره تر استبراء مخکې وطي کول صحيح دي که نه؟ نو په دې باره کې اختلاف دی، شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې صحيح دي، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې هغه زما په نېز ښه کار نه دی.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې دا احتمال سته چې د هغې رحم به د مالک په اوبو (د مالک په حمل) مشغوله وي، لهذا د دې احتمال د ختمولو لپاره د استبراء په ذريعه د رحم خالي والي او پاکوالی معلومول ضروري دي، لکه څرنګه چې د مينځې د رانيولو په صورت کې تر وطي مخکې پر مُشتري استبراء کول ضروري دي، همدغسې په دې صورت کې هم وطي کول ښه کار نه دی، بلکې استبراء کول ضروري دي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې کله شريعت د بل چا سره د هغې نکاح جائز وګرځوله، نو دا پر دې خبره دليل دی چې د مينځې نس بالکل له حمل څخه خالي دی، لهذا کله چې رحم خالي دی، نو د استبراء حکم به هم نه ورته کيږي نه په استحبابي او نه په وجوبي توګه.

**بخلاف الشراء إلخ:** امام محمد رَحِمَهُ الله د مينځې پر شراء (رانيولو) قياس کړی وو، صاحب د کتاب په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي فرمايي چې پر شراء قياس کول صحيح نه دي، ځکه چې د شُغلِ رحم په

وخت كي (يعني كله چي د مينځي په نس كي حمل وي نو) هم مينځه خرڅول او رانيول جائز دي. نو د هغې خرڅول او رانيول د دې خبري نښه او علامت نه سي کېدلای چي د هغې نس له حمل څخه فارغ او خالي دی، نو ځکه د مينځي د رانيولو په صورت کي استبراء ضروري ده، لېکن د شغلِ رحم په وخت کي نکاح جائز نه ده، نو ځکه به د نکاح جواز د دې خبري علامت او نښه وي چي د هغې نس له حمل څخه خالي دی.

**وكذا إذا رأى إلخ:** (٢)... دويمه مسئله دا ده كه سړی يو ښځه پر زنا کولو ووينې او بيا د هغې سره نکاح وکړي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي هم د خاوند لپاره تر استبراء مخکي وطي کول صحيح دي، ځکه چي د نکاح جواز د دې خبري دليل دی چي د هغې رحم له حمل څخه خالي دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د زنا په وجه د شغل احتمال پيدا سو (يعني دا احتمال پيدا سو چي د زنا په وجه به د هغې په نس کي حمل وي) نو د دغه احتمال د ختمولو لپاره د هغه په نېز په يوه حيض سره استبراء کول واجب او ضروري دي. والله أعلم بالصواب

## نکاحِ متعه او نکاحِ مؤقت

**وَنِكَاحُ الْمُتْعَةِ بَاطِلٌ** او نکاحِ متعه باطله ده **وَهُوَ: أَنْ يَقُولَ لِامْرَأَةٍ** او نکاحِ متعه دا ده: چي سړی يوې ښځي ته ووايي **أَتَمَتَّعُ بِكِ كَذَا مُدَّةً بِكَذَا مِنَ الْمَالِ** چي زه ستا څخه نفع اخلم دومره موده [او] په دومره مال سره **وَقَالَ مَالِكٌ**●: **هُوَ جَائِزٌ** او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نکاحِ متعه جائز ده **لِأَنَّهُ كَانَ مُبَاحًا** ځکه چي [د اسلام په شروع کي] متعه روا وه **فَيَبْقَى إِلَى أَنْ يَظْهَرَ نَاسِخُهُ** نو [دغسي روا] به پاته وي تر هغه وخته پوري چي يو منسوخونکی دليل يې ښکاره سي **قُلْنَا: ثَبَتَ النَّسْخُ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ** موږ وايو: چي د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په اجماع سره نسخ ثابته ده **وَابْنُ عَبَّاسٍ صَحَّ رُجُوعُهُ إِلَى قَوْلِهِمْ** او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا رجوع [هم] صحيح [او ثابته] ده د صحابه وو [د قول] و طرف ته **فَتَقَرَّرَ الْإِجْمَاعُ** نو ځکه اجماع ثابته سوه **وَالنِّكَاحُ الْمُؤَقَّتُ بَاطِلٌ** او نکاحِ مؤقت [هم] باطله ده **مِثْلُ أَنْ يَتَزَوَّجَ امْرَأَةً بِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ إِلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** مثلاً [يو سړی] نکاح وکړي د يوې ښځي سره د دوو ګواهانو په ګواهۍ سره تر لسو ورځو پوري **وَقَالَ زُفَرُ: هُوَ**

● القول الراجح: قول الامام زفر رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: ومقتضى النظر أن يترجح قوله "أى قول زفر رَحِمَهُ الله" (فتح القدير ج:٣، ص:١٥٢)، وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: فى باب النفقة ذكر عشرين مسائل التى يفتى بها بقول زفر، قال فى نظمه: وأيضًا نكاحاً فيه توقيت مدة يصح، وذا التوقيت يجعل مرسلًا. وقال أيضًا: ثم رجح قول زفر رَحِمَهُ الله بصحة المؤقت على معنى أنه ينعقد مؤبدا ويلغو التوقيت..."إلخ" (رد المحتار ج:٢، ص:٣١٨). [القول الراجح ج:١، ص:٢٤٩)

صَحِيحٌ لَازِمٌ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نکاحِ مؤقت صحيح او لازم ده لِأَنَّ النِّكَاحَ لَا يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې نکاح په فاسدو شرطونو سره نه فاسديږي وَلَنَا: أَنَّهُ أَتَى بِمَعْنَى الْمُتْعَةِ او زموږ دليل دا دی: چې نکاحِ مؤقت د نکاحِ متعه په معنیٰ سره ده وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُودِ لِلْمَعَانِيْ او اعتبار په عقدونو کې معناګانو لره دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا طَالَتْ مُدَّةُ التَّأْقِيتِ أَوْ قَصُرَتْ او هيڅ فرق نشته په دې کې چې د تعيين موده اوږده وي يا کمه وي لِأَنَّ التَّأْقِيتَ هُوَ الْمُعَيِّنُ لِجِهَةِ الْمُتْعَةِ ځکه چې همدغه [د مودې] تعيين د متعې جهت [او معنیٰ] معلوموي وَقَدْ وُجِدَ او هغه موجود دی [په نکاحِ مؤقت کې].

**اللغات:** ﴿أَتَمَتَّعُ﴾ د تَفَعُّل له باب څخه واحد متکلم ماضي صيغه ده: فايده اخيستل، نفع حاصلول. ﴿مُؤَقَّت﴾ د ټاکلي وخت والا، د مقرّر وخت والا. ﴿التَّأْقِيْت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل، وخت متعينول (معلومول). ﴿عِبْرَة﴾ اعتبار، پند ونصيحت. ﴿عُقُوْد﴾ جمع د "عَقْدٌ" ده: معامله، تړون (يعني د بيع يا يوې بلې معاملې تړون کول). ﴿مَعَانِي﴾ جمع د "مَعْنٰى" ده: مفهوم، معنا. ﴿قَصُرَتْ﴾ د کرُم ماضي ده: کمېدل، لنډېدل، کوچنی کېدل.

**تشريح:** د اسلام په شروع کې له شرعي او ابدي نکاح څخه پرته د دوو نورو نکاحګانو رواج وو، لېکن وروسته اسلام دا دواړې نکاحګانې باطلې کړې، او د هغوی پر باطلېدلو د صحابه وو اجماع ثابته سوه. څرنګه چې دا دواړې هم د نکاح په نامه سره بلل کيږي، نو ځکه صاحب د کتاب دلته (په "کتاب النکاح" کې) د هغوی حقيقيت او حکم بيانوي.

**نکاحِ متعه:** دا ده چې سړی يو ښځې ته داسې ووايي: "أَتَمَتَّعُ بِكِ كَذَا مُدَّةً بِكَذَا مِنَ الْمَالِ" (يعني زه د دومره مال په عوض کې تر دومره ورځو پورې ستا څخه نفع اخيستل غواړم).

**نکاحِ مؤقت:** دا ده چې انسان ښځې ته داسې ووايي: "أَتَزَوَّجُكِ بِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ عَشَرَةَ أَيَّامٍ" (يعني زه د دوو ګواهانو په حضور کې تر لسو ورځو پورې ستا سره نکاح کوم).

**د نکاحِ متعه او مؤقت تر مينځ فرق:** په نکاحِ متعه او نکاحِ مؤقت کې صرف دا فرق دی چې په نکاحِ مؤقت کې به د "نکاح" يا د "تزويج" لفظ وو (مثلاً: أُنْكِحُكِ، يا أَتَزَوَّجُكِ)، لېکن نکاحِ متعه به د "تمتع" او "استمتاع" په لفظ سره تړل کېده، دويم فرق يې دا دی چې په نکاحِ مؤقت کې به دوه ګواهان شرط وو، لېکن نکاحِ متعه به له ګواهۍ څخه پرته هم تړل کېده.

تر دې تفصيل وروسته د عبارت حاصل دا دی چې د ټوله اُمت په اجماع او د ټولو فقهاؤ په اتفاق سره نکاحِ متعه باطله ده. صاحب د هدايې که څه هم د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دا جائز ګڼلې ده. لېکن د هدايې سترو شارحينو مثلاً علامه عيني، صاحب د فتح القدير او داسې نورو ويلي دي چې دا خبره صحيح نه ده چې د امام مالک په نيز متعه جائز ده، دا به يا د کاتب غلطي وي، يا به د مصنف سهوه وي.

لنډه دا چې د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک د نورو امامانو په څېر دی، يعني نکاحِ متعه که څه هم د اسلام په شروع کې جائز وه، لېکن د خيبر په ورځ نبي کريم ﷺ نکاحِ متعه او نکاحِ مؤقت د قيامت تر ورځې پورې حرامه وګرځوله، په خپله امام مالک رَحِمَهُ الله په "موطاء" کې په دې هکله دا حديث نقل کړی دی: "عَنْ عَلِيِ ابْنِ أَبِيْ طَالِبٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ نَهٰى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ وَعَنْ لُحُوْمِ الْحُمرِ الْأَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ" (يعني نبي کريم ﷺ د خيبر په ورځ له نکاحِ متعه او د کورني خره له غوښو څخه منع وکړه)، په دې حديث سره دوې خبرې ښکاره سوې: ① د نکاحِ متعه حرام والی، ② او دويمه خبره دا ښکاره سوه چې نکاحِ متعه د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز هم حرامه ده، ځکه د امام مالک رَحِمَهُ الله عادت شريفه دا دی چې خپل په "موطاء" کې هغه روايات بيانوي کوم چې د هغه د مذهب او مطلب مطابق وي، نو په مؤطا کې د دې روايت بيانول په خپله د دې خبرې دليل دی چې د امام مالک په نيز هم متعه حرامه ده.

او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا رضي الله عنهما که څه هم په شروع کې د متعې د حُرمت قائل نه وو، خو وروسته هغه هم له خپل قول څخه رجوع وکړه، او د متعې د حرمت قائل سو، لکه څرنګه چې ابن جابر ﷺ فرمايي: "أن ابْنَ عَبَّاسَ مَا خَرَجَ مِنَ الدُّنْيَا حَتّٰى رَجَعَ عَنْ قَوْلِهٖ فِي الصَّرْفِ وَالْمُتْعَةِ"، لهذا کله چې د هغه رجوع هم ثابته او صحيح ده، نو د متعې پر حرمت د صحابه وو اجماع ثابته سوه.

**والنكاح المؤقت باطل إلخ:** فرمايي چې د نکاحِ متعه په څېر نکاحِ مؤقت هم بالکل باطله ده، او پر دې هم د ائمه اربعه وو اتفاق دی، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز نکاحِ مؤقت جائز ده (او د توقيت شرط لغو او باطل دی او د همېشه لپاره نکاح منعقد کيږي).

**د امام زفر دليل:** دا دی چې نکاحِ مؤقت صحيح او لازمه ده، ځکه چې د نکاحِ غيرِ مؤقت په څېر دا هم يو نکاح ده، فقط په دې کې د "معلوم وخت" شرط لګېدلی دی، او د نکاح په هکله قاعده دا ده چې نکاح په فاسد شرط سره نه باطليږي، بلکې په خپله هغه فاسد شرط باطليږي، مثلاً که سړی پر دې شرط د يو ښځې سره نکاح وکړي چې "تر يوې مياشتې وروسته بيا زه تا ته هيڅکله طلاق نه

درکوم"، ښکاره خبره ده چي دا يو فاسد شرط دی، لېکن په دې سره نکاح نه باطلېږي، بلکي شرط باطلېږي او نکاح صحيح ده، او تر يوې مياشتي وروسته به هم خاوند ته د طلاق ورکولو حق وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي په نکاحِ مؤقت کي د متعې معنیٰ سته، ځکه چي د نکاحِ مؤقت مطلب همدا دی چي "زه يو څو ورځي ستا څخه نفع اخلم" او په عقودو کي معنیٰ لره اعتبار دی نه الفاظو لره، مثلاً که يو سړی يو چا ته ووايي چي" زما تر مرګ وروسته ته زما وکيل يې!"، نو تر مرګ وروسته هغه د دې سړي وصي ګرځي (ځکه چي تر مرګ وروسته د وکيل معنیٰ په وصي سره کيږي)، او که يو سړی يو چا ته ووايي چي "ته زما په ژوند کي زما وصي يې!" نو هغه د ده وکيل ګرځي؛ لهذا کله چي په عقودو کي معنیٰ ته اعتبار ورکول کيږي، او نکاحِ مؤقت هم يو عقد دی، او په هغې کي د متعې معنیٰ سته، او متعه حرامه ده، نو نکاحِ مؤقت به هم حرامه وي، ځکه چي متعه او مؤقت د معنیٰ په اعتبار سره متحد دي، نو د حکم په اعتبار سره به هم متحد وي.

**جواب:** د امام زفر د دليل جواب دا دی چي په نکاحِ مؤقت کي "معلوم وقت" فقط شرط نه دی، بلکي د ټوله ايجاب وقبول مدار پر دغه معلوم وخت دی، او خاص تر دغه معلوم وخت پوري ايجاب وقبول منعقد سوي دي؛ او ايجاب و قبول د نکاح رکن دی، نو کله چي په رکن کي د معلوم وخت په وجه فساد راغلی، نو نکاح به هم فاسديږي.

**ولا فرق بين إلخ:** صاحب د هدايې په دې عبارت سره د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له قول څخه احتراز کوي، هغه ويلي دي چي که په نکاحِ مؤقت کي داسي اوږد وخت (موده) ذکر سي چي تر هغه وخته پوري د انسان ژوندی پاتېدل ناممکن وي، مثلاً دوه سوه کاله ذکر کړي، نو بيا دا نکاح صحيح ده، ځکه چي په دې صورت کي به اوږد وخت د تأبيد او همېشتوب په معنیٰ سره وي، او څرنګه چي ابدي او غيرِ مؤقت نکاح صحيح ده، همدارنګه به دا نکاح هم صحيح وي.

صاحب د هدايې فرمايي چي دا قول صحيح نه دی، او د وخت په زياتولو يا کمولو سره په حکم کي هيڅ فرق نه راځي، ځکه چي د نکاحِ مؤقت د باطلېدلو وجه همدغه معلوم او محدود وخت دی، ځکه چي په دې سره په نکاح کي د مُتعې معنیٰ پيدا کيږي، نور که وخت دوه سوه کاله وټاکل سي او که درې سوه کاله وټاکل سي خو په دا ټاکلو سره وخت مؤقت او معلوم سو او په نکاح کي د مُتعې معنیٰ پيدا سوه، او نکاحِ متعه حرامه ده، نو ځکه به دا نکاح هم حرامه وي.

## په يوه عقد کي د دوو ښځو سره د نکاح کولو يو صورت

| |
|---|
| وَمَنْ تَزَوَّجَ اِمْرَأَتَيْنِ فِي عُقْدَةٍ وَاحِدَةٍ او که يو سړی په يوه عقد کي د دوو ښځو سره نکاح وکړي وَإِحْدَاهُمَا لَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا حال دا چي په هغو کي د يوې ښځي سره نکاح کول د دې سړي لپاره حلال نه وي (مثلاً |

رضاعي خور يې وي] صَحَّ نِكَاحُ الَّتِي يَحِلُّ نِكَاحُهَا نو صحيح سوه د هغه ښځي نکاح چي د هغې [سره د دې سړي] نکاح حلاله ده وَبَطَلَ نِكَاحُ الْأُخْرَىٰ او باطله سوه د بلي ښځي نکاح لِأَنَّ الْمُبْطِلَ فِي إِحْدَاهُمَا ځکه چي باطلونکی سبب فقط په يوې ښځي کي ستته بِخِلَافِ مَا إِذَا جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ فِي الْبَيْعِ په خلاف د هغه صورت چي [يو څوک] آزاد او غلام په بيع کي سره جمع کړي لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چي بيع په فاسدو شرطونو سره فاسديږي وَقَبُولُ الْعَقْدِ فِي الْحُرِّ شَرْطٌ فِيهِ [همدارنګه] په آزاد کي د عقد قبلول شرط دي په بيع کي [يعني د آزاد او غلام په بيع کي د بيع د عقد او ترون لپاره د آزاد رانيول هم شرط دي، او دا شرط فاسد دی] ثُمَّ جَمِيعُ الْمُسَمَّى لِلَّتِي يَحِلُّ نِكَاحُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بيا ټوله ټاکل سوی مهر [مهر مسمیٰ] د امام صاحب په نېز د هغه ښځي لپاره دی چي د هغې نکاح [د دې سړي سره] حلاله ده وَعِنْدَهُمَا يُقَسَّمُ عَلَى مَهْرِ مِثْلَيْهِمَا او د صاحبينو په نېز به مهرِ مسمیٰ د دواړو ښځو پر مهرِ مثل تقسيميږي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْأَصْلِ او دا د مبسوط مسئله ده.

**اللغات:** ﴿عَقْدَة﴾ يو عقد، يوه معامله، ﴿مُبْطِل﴾ د إفعال اسم فاعل دی: باطلونکی، ﴿مسمّٰی﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: نومول سوی، ټاکل سوی، مقرر سوی، مراد تري هغه مهر دی کوم چي د نکاح بندۍ (کوزدې) په وخت کي خاوند او ښځي سره ټاکلی وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی تر يوه عقد لاندي د دوو ښځو سره نکاح وکړي، او په هغو کي د ده لپاره فقط يوه ښځه حلاله وي او بله ورته حرامه وي، هغه که د نسبي قرابت په وجه حرامه وي او که د رضاعت يا داسي نورو اسبابو په وجه حرامه وي، نو د دې صورت حکم دا دی چي کومه يوه د هغه لپاره حلاله وي د هغې سره يې نکاح صحيح ده، او کومه يوه چي حرامه وي د هغې سره يې نکاح باطليږي.

دليل دا دی چي دلته مُبطل (باطلونکی سبب) فقط په يوه ښځه کي ستته، لهذا د هغه اثر به هم فقط د هغه يوې ښځي سره خاص وي او فقط د هغې نکاح به باطليږي، او د بلي نکاح به صحيح وي.

د دې په خلاف که يو څوک په بيع کي آزاد او غلام سره جمع کړي (يعني آزاد او غلام دواړه يو ځای خرڅ کړي)، نو په دې صورت کي د دواړو بيع باطليږي، نه د آزاد بيع صحيح کيږي او نه د غلام، په نکاح او بيع کي وجه د فرق دا ده چي بيع په شرطِ فاسد سره فاسديږي، او نکاح په شرطِ فاسد سره نه فاسديږي بلکي په خپله هغه شرط فاسديږي، لهذا کله چي بيع په شرطِ فاسد سره فاسديږي، او په دې بيع کي هم شرطِ فاسد ستته او هغه دا چي پر مُشتري د غلام د رانيولو سره د آزاد د رانيول هم شرط دي يعني هغه به يا دواړه رانيسي يا به دواړه پرېږدي، او دا فاسد شرط دی، ځکه چي آزاد د بيع محل نه دی، او هغه نه سي رانيول کېدای، نو ځکه به دا بيع باطليږي.

او د نکاح په مسئله کي که څه هم شرط فاسد سته چي هغه د حلالي ښځي سره د نکاح کولو لپاره پر دغه سړي د حرامي ښځي سره هم نکاح کول شرط دي، خو نکاح په شرط فاسد سره نه باطليږي، بلکي په هغه شرط باطليږي، نو ځکه به د هغه نکاح د حلالي ښځي سره صحيح کيږي او د حرامي ښځي سره به باطليږي.

**ثم جميع المسمىٰ إلخ:** د پورتنی مسئلې په ضمن کي يوه بله مسئله دا ده چي کله په دواړو ښځو کي فقط ديوې سره د سړي نکاح صحيح ده، نو اوس به ټاکل سوی مهر (مهر مسمىٰ) کومي ښځي ته ورکول کيږي، په دې باره کي اختلاف دی:

د امام صاحب رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي ټوله مهر مسمىٰ به هغه ښځي ته ورکول کيږي چي د هغې نکاح صحيح ده يعني حلالي ښځي ته به ورکول کيږي، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي مهر مسمىٰ به د دواړو ښځو پر مهر مثل تقسيميږي، مثلاً که د حلالي ښځي مهر مثل دوه زره (۲۰۰۰) درهمه وو، او د حرامي ښځي مهر مثل زر (۱۰۰۰) درهمه وو، او دغه سړي د دواړو مهر زر (۱۰۰۰) درهمه ټاکلی وو، نو اوس به له دغه زرو درهمو څخه دري سوه درو دېرش (۳۳۳) درهمه د حرامي ښځي وي، او پاته شپږ سوه شپږ شپېته (۶۶۶) درهمه به د حلالي ښځي وي، ځکه چي د هغې مهر مثل دوچنده دی، او که د دواړو مهر مثل دوه، دوه زره وو، نو بيا به د هري يوې حق پنځه سوه درهمه وي، مطلب دا چي مهر مسمىٰ (ټاکل سوی مهر) به پر دوی دواړو د خپل مهر مثل مطابق تقسيميږي.

**يادونه:** تر تقسيم وروسته به فقط حلالي ښځي ته خپل حق ورکول کيږي، حرامه ښځه به د دې حقداره نه وي، ځکه د هغې سره بالکل نکاح صحيح نه ده. (أثمار الهداية)

د صاحبينو دليل دا دی چي دغه سړي مهر مسمىٰ د دواړو ښځو په مقابله کي ذکر کړی دی، نو ځکه به د دواړو حق نيم نيم مهر کيږي، خو څرنګه چي ديوې ښځي نکاح فاسد ده، نو ځکه به مهر مسمىٰ د دواړو پر مهر مثل تقسيميږي (او د هري يوې سره چي د سړي نکاح صحيح ده، تر تقسيم وروسته به هغې ته د خپل مهر مثل مطابق مهر مسمىٰ ورکول کيږي).

د امام صاحب دليل دا دی چي کله دغه سړي مهر مسمىٰ د دواړو ښځو لپاره مهر وټاکی، نو ګواکي هغه ټوله مهر پر دواړو تقسيم کړی، خو څرنګه چي دويمه ښځه د نکاح محل نه ده يعني حرامه ده، نو ځکه به د هغې په حق کي تقسيم هم باطل وي، او کله چي تقسيم باطل سو، نو ټوله ټاکلی مهر يعني مهر مسمىٰ به فقط هغه ښځي ته ورکول کيږي چي د هغې سره د دغه سړي نکاح حلاله او جائز ده.

## د املاک مرسله او املاک مقيده سره اړوند يوه مسئله

**وَمَنِ ادَّعَتْ عَلَيْهِ اِمْرَأَةٌ** او پر کوم سړي چي يوه ښځه [دا] دعوه وکړي **أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا** چي هغه زما سره نکاح کړې ده **وَأَقَامَتْ بَيِّنَةً** او [پر خپله دعوه] ګواهان پېش کړي **فَجَعَلَهَا الْقَاضِيْ اِمْرَأَتَهُ** بيا قاضي دا ښځه د هغه

ماينه وكرځوي وَلَمْ يَكُنْ تَزَوَّجَهَا حال دا چې هغه د دې سره نكاح كړې نه وي وَسِعَهَا الْمُقَامُ مَعَهُ نو دغه ښځې لره ګنجايش شته د هغه سره د اوسېدلو [يعني هغې ته دا اجازه شته چې د هغه سره د اوسيږي] وَأَنْ تَدَعَهُ يُجَامِعُهَا او [د دې خبرې ګنجايش هم شته] چې ښځه هغه پرېږدي چې د دې سره جماع وكړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او [دا حكم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دى وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ يُوسُفَ أَوَّلًا او همدا د امام ابو يوسف اول قول دى وَفِي قَوْلِهِ الْآخَرِ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ *: لَا يَسَعُهُ أَنْ يَطَأَهَا او د امام ابو يوسف په دويم قول كې چې هغه د امام محمد قول دى [دا حكم ذكر سوى دى]: چې سړي لره ګنجايش نشته چې د هغې سره وطي وكړي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى لِأَنَّ الْقَاضِيَ أَخْطَأَ الْحُجَّةَ ځكه چې قاضي په حجت كې غلطي كړې ده إِذِ الشُّهُوْدُ كَذَبَةٌ ځكه چې ګواهان درواغجن دي فَصَارَ كَمَا إِذَا ظَهَرَ أَنَّهُمْ عَبِيْدٌ أَوْ كُفَّارٌ نو دا داسې سو لكه ګواهان چې غلامان يا كافران وخېږي [يعني د يوې معاملې په باره كې تر ګواهي وركولو وروسته معلومه سي چې ګواهان خو آزاد يا مسلمانان نه وه بلكې د يو څو غلامان يا كافران وه] وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ: أَنَّ الشُّهُوْدَ صَدَقَةٌ عِنْدَهُ د امام صاحب دليل دا دى: چې د قاضي په نيز خو ګواهان رښتوني دي وَهُوَ الْحُجَّةُ او همدا حجت [او دليل] دى لِتَعَذُّرِ الْوُقُوْفِ عَلٰى حَقِيْقَةِ الصِّدْقِ ځكه چې [د قاضي لپاره] د رښتياوالي په حقيقت خبرېدل ناممكن دي [يعني په حقيقي حال د قاضي واقف كېدل ستونزمن او ناممكن دي] بِخِلَافِ الْكُفْرِ وَالرِّقِّ په خلاف د كفر او غلامتوب لِأَنَّ الْوُقُوْفَ عَلَيْهِمَا مُتَيَسِّرٌ ځكه په دې دواړو خبرېدل آسانه دي وَإِذَا ابْتَنَى الْقَضَاءُ عَلَى الْحُجَّةِ او كله چې د فيصلې بنياد [دار ومدار] پر حجت دى وَأَمْكَنَ تَنْفِيْذُهُ بَاطِنًا بِتَقْدِيْمِ النِّكَاحِ او باطناً د دغه فيصلې نافذول ممكن [هم] دي د نكاح په مخكې منلو سره نَفَذَ قَطْعًا لِلْمُنَازَعَةِ نو نكاح به نافذيږي د جنګ [او شخړې] د ختمولو لپاره بِخِلَافِ الْأَمْلَاكِ الْمُرْسَلَةِ په خلاف د املاک مرسله وو لِأَنَّ فِي الْأَسْبَابِ تَزَاحُمًا ځكه چې [د هغوى] په اسبابو كې مزاحمت دى [يعني اسباب يې بېلابېل دي] فَلَا إِمْكَانَ نو ځكه [د هغوى د نافذولو] هيڅ امكان نشته وَاللهُ أَعْلَمُ او الله زيات خبر دى.

**اللغات:** ﴿إِدَّعَتْ﴾ د افتعال واحده مؤنثه غائبه ماضي صيغه ده: دعوه كول (دعوىٰ كول)، ﴿بَيِّنَة﴾ ګواهي، حجت او دليل، جمع: بَيِّنَات، ﴿وَسِعَهَا﴾ د سمع د باب ماضي ده: پراخېدل، ګنجايش

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن نجيم المصرى رَحِمَهُ الله: وذكر الفقيه ابو الليث أن الفتوىٰ علـى قولهما فى أصل المسئلة أعنى عدم النفاذ باطنا فيما ذكر. (البحرالرائق ج:۳، ص:۱۹۹). [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۵۱]

کېدل، ﴿الشُّهُوْد﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه، ګواهي ورکونکی (شاهدي اداء کونکی)، ﴿عَبِيْد﴾ واحد يې "عَبْد" راځي: غلام، ﴿مُتَيَسِّر﴾ د تفعّل اسمِ فاعل دی: آسان.

**تشريح:** که څه هم په دې عبارت کې صاحب د کتاب يوه مسئله بيان کړې ده، خو د هغې په ضمن کې يې دوې داسې نورې مهمې خبرې هم ذکر کړې دي کوم چې د پاملرنې او توجه وړ دي، لهذا د عبارت تر حل مخکې يو وار په هغوی ځان پوه کړئ! چې د عبارت په تشريح کې د څه ستونزې سره مخامخ نه سئ.

اوله خبره دا ده چې ملکيتونه يعني "أملاک" پر دوه قسمه دي: ① أملاکِ مُرسله، ② أملاکِ مُقيده.

**أملاکِ مُرسله:** هغه ملکيتونو ته وايي چې په هغوی کې د ملکيت سبب ذکر نه وي، مثلاً يو څوک دعوه وکړي چې دا غلام زما دی او سبب يې ذکر نه کړی چې دا غلام څنګه زما دی او څرنګه زما په ملکيت کې راغلی، يعني دا خبره ذکر نه کړې چې هغه ما رانيوی، يا يو چا په هديه (تحفه) کې راکړی، يا په وصيت يا وراثت سره مې په ملکيت کې راغلی، مطلب دا چې د ملکيت د سبب هيڅ يادونه نه وکړي. (د مُرسل معنیٰ ده: آزاد او پرېښوول سوی، څرنګه چې په أملاکِ مرسله کې د ملکيت د پراو بيلابيل اسباب کېدلای سي، نو ځکه "أملاکِ مرسله" يا "اسبابِ مرسله" ورته وايي).

**أملاکِ مقيده:** دې ته وايي چې په هغوی کې د ملکيت سبب ذکر سي، مثلاً يو سړی دعوه وکړي چې دا زما غلام دی او ما رانيولی دی، يا چا په هديه کې راکړی دی، يا داسې د ملکيت يو بل سبب ذکر کړي. (دې ته ځکه "أملاکِ مقيده" وايي چې په دوی کې دا قيد هم ذکر سوی وي چې په کوم سبب سره ملکيت ثابت سوی دی).

دويمه خبره دا ده چې "نفاذ" (يعني د قاضي حکم او فيصله نافذېدل) هم پر دوه قسمه دي: ① نفاذِ ظاهري، ② نفاذِ باطني.

**نفاذِ ظاهري:** په دنياوي اعتبار سره د يو حکم نافذېدل، مثلاً تر نکاح وروسته پر خاوند د ښځي نفقه لازمېدل او پر ښځي باندي خاوند ته د وطي قدرت حاصلېدل.

**نفاذِ باطني:** د الله تعالیٰ په نېز د يو حکم نافذېدل يعني د الله په نېز د يو حکم حلال والی ثابتېدل. (دا ټول تفصيلات په کفايه او عنايه کې خاص په همدغه ترتيب سره ذکر دي. په کوم ترتيب سره چې ماأحقر ذکر کړل).

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو ښځي پر يو سړي د دروغو دعوه وکړه او ويې ويل چې دا زما خاوند (مېړه) دی او هغه زما سره واده کړی دی، خاوند انکار وکړی، لېکن ښځي پر هغه ګواهان پېش کړل،

او قاضي صاحب ښځه ربښتوني وګڼله او د هغې په حق کې يې فيصله وکړه او د دغه سړي مابنه (زوجه) يې وګرځوله: نو امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې د قاضي دا فيصله به هم ظاهراً نافذيږي او هم باطناً، د ظاهراً مطلب دا چې اوس به هغه ښځه د دې سړي سره د ماينې (زوجې) په څير اوسېدلای سي او د باطناً مطلب دا چې دواړه به جماع هم سره کولای سي (لنډه دا چې د قاضي په دغه فيصلې سره ښځه د هغه حقيقي ماينه وګرځېدله)، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول هم داسې وو.

د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د قاضي دا فيصله به فقط ظاهراً نافذيږي، باطناً به نه نافذيږي، او ښځې ته به د سړي سره فقط د اوسېدلو اجازه وي، وطي او جماع کول به ورته جائز نه وي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم او آخري قول دی، او همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

**د امام محمد دليل:** د امام محمد او امام شافعي دليل دا دی چې کله ګواهان درواغجن او مکرجن دي، نو دا د قاضي غلطي ده چې د دوی ګواهي او شهادت يې دليل وشماری او په هغه سره يې دليل ونيوی، او په دليل او حجت کې غلطي کول باطني نفاذ منع کوي، نو ځکه به دلته هم د قاضي دا فيصله فقط ظاهراً نافذيږي يعني پر خاوند به فقط نفقه واجبيږي، او باطناً به نه نافذيږي يعني د سړي او ښځي لپاره به د وطي حلت نه ثابتيږي.

او دا مَسئله بالکل داسې ده لکه قاضي چې د دوو خلکو په ګواهي سره يوه فيصله نافذه کړي، وروسته معلومه سي چې ګواهان خو غلامان وو، يا کافران وو، نو په دې وخت کې د قاضي فيصله فقط ظاهراً نافذيږي، باطناً نه نافذيږي، لهذا په پورتنی مسئله کي به هم د قاضي فيصله فقط ظاهراً نافذيږي، ځکه چې ګواهان درواغجن او دوکه بازان دي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې قاضي د ظاهري حال مطابق فيصله کوي، او صداقت (رښتيا والي) يو باطني کار دی چې د هغه په حقيقت خبرېدل مشکل او ناممکن دي، او څرنګه چې دلته په ظاهري توګه ګواهان د قاضي مخته دي، نو ځکه به قاضي د ظاهري حال مطابق فيصله کوي، ځکه چې همدا د قاضي په نېز حجت او دليل دی، او تر حجت ثابتېدلو وروسته پر قاضي فيصله کول لازم دي، حتیٰ که تر حجت ثابتېدلو وروسته قاضي پر ځان فيصله لازم نه وګڼي نو د کفر بېره ور سره تړلې ده، او که يې پر ځان لازم وګڼي خو ټال مټال او تأخير پکښې وکړي نو فاسق ګرځي، لهذا کله چې دلته حجت ثابت سو، نو اوس به د قاضي فيصله هم ظاهراً نافذيږي او هم به باطناً نافذيږي، او د نفقې او سکونت سره به د وطي او جماع حِلت هم ثابتيږي.

**بخلاف الكفر إلخ**: په دې سره د امام محمد او امام شافعي د دليل جواب ورکوي چې دا مسئله د کفر او غلامتوب پر صورت قياسول صحيح نه دي، ځکه چې کفر او غلامتوب دومره ښکاره نښې او علامت دي چې په هغوی خبرېدل آسانه دي، لېکن په صداقت او رښتياوالي خبرېدل يو ستونزمن او مشکل کار دی، لهذا رښتياوالی او صداقت پر کفر او غلامتوب قياسول صحيح نه دي.

**وأمكن تنفيذه باطنا بتقديم إلخ**: په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې "قضاء" خو "د يو ثابت سوي شي ښکاره کولو او څرګندولو" ته وايي، "د غير ثابت شي ثابتولو" ته نه وايي، او په پورتنۍ مسئله کي خو بالکل نکاح ثابته نه ده بلکي سر تر پايه درواغ ده. نو بيا به باطناً څرنګه فيصله نافذيږي.

د همدې په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چې دلته به اقتضاءً نکاح مخکي منل کيږي. او د قاضي د فيصلې نوعيت به دا وي چې ګواکي قاضي مخکي د دوی نکاح وتړله او بيا يې ثابته کړه او د دوی په مينځ کي يې د نکاح فيصله وکړه. او د دې فايده به دا وي چې کله په دې توګه د سړي لپاره د وطي حلت ثابت سي. او وطي ور سره وکړي. نو بل وار چې کله هغه له ښځي څخه د وطي مطالبه کوي، نو ښځه به انکار نه سي کولای.

**بخلاف الأملاك المرسلة إلخ**: په پورتنۍ مسئله کي د ښځي دعوه د أملاک مقيده سره متعلق ده، ځکه چې ښځي دا دعوه کړې ده چې زه د نکاح په ذريعه د دغه سړي ښځه جوړه سوې يم، لهذا کله چې د هغې په دعوه کي سبب ذکر سوی دی، نو ځکه به هغه باطناً هم نافذيږي، او څرنګه په أملاک مرسله کي سبب ذکر سوی نه وي چې په کومه وجه دا شی زما په ملکيت کي راغلی دی، او دا ښکاره خبره ده چې د يو شي د ملکيت ډېر اسباب کېدلای سي، او په دې هکله يو معلومه فيصله نه سي کېدلای، نو همدې وجه به په أملاک مرسله کي د قاضي فيصله فقط ظاهراً نافذيږي، په باطني توګه نه سي نافذېدلای.

مثال يې دا دی چې که يو سړی په يو مينځي دعوه وکړي چې دا مينځه زما ده او د ملکيت سبب يې ذکر نه کړي چې په کوم سبب سره زما په ملکيت کي راغلې ده. او ګواهان هم پر خپله دعوه پېش کړي، نو د هغه په حق کي به د قاضي فيصله فقط ظاهراً نافذيږي نه باطناً، يعني مينځه خو به د هغه وي، لېکن هغه ته به د دې اجازه نه وي چې د مينځي سره وطي او جماع وکړي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# بَابٌ فِي الْأَوْلِيَاءِ وَالْأَكْفَاءِ

## (دا) باب په (بيان د) اولياؤ او اكفاؤ كي دی

**تشريح:** څرنګه چي د نکاح د روايښت او جواز لپاره د ښځي "حلت" (حلاله کېدل) شرط دي. همدارنګه د "ولي" او "كفو" وجود هم د نکاح لپاره شرط دی، خو څرنګه چي د ښځي حلت د ټولو په اتفاق شرط دی، او د ولايت او کفو په شرطيّت کي څه اختلاف دی، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د متفق عليه شرط بيان (يعني د محرّماتو او محلّلاتو بيان) مخکي وکړی، او تر هغه وروسته اوس د "ولايت" او "كفو" بيان کوي.

ښکاره دي وي چي "أَوْلِيَاء" جمع د "وَلِي" ده، "وَلِي" د "ولايت" څخه مشتق دی، د ولايت معنیٰ ده: "پر بل چا حکم نافذول" (او مشري کول)، څرنګه چي د نکاح ولي هم پر ښځي د نکاح حکم نافذوي، نو ځکه هغه ته "ولي" وايي، "أَكْفَاء" جمع د "كُفُو" ده چي د هغه معنیٰ ده: سيال (برابر)، مثل.

### که ښځه خپله نکاح په خپله وکړي؟ (حکم او اختلاف)

وَيَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْحُرَّةِ الْعَاقِلَةِ الْبَالِغَةِ بِرِضَاهَا او تړل کيږي نکاح د آزادي عاقلي بالغي ښځي د هغې په رضا سره وَإِنْ لَمْ يَعْقِدْ عَلَيْهَا وَلِيٌّ که څه هم ولي د هغې عقد کړی نه وي [يعني که څه هم ولي د هغې نکاح تړلې نه وي] بِكْرًا كَانَتْ أَوْ ثَيِّبًا هغه که باکره وي که ثيبه وي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ [دا حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [دی] په ظاهر روايت کي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَا يَنْعَقِدُ إِلَّا بِوَلِيٍّ له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [په غيرِ ظاهر روايت کي] نقل سوي دي: چي له ولي څخه بغير نکاح نه تړل کيږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز موقوفاً تړل کيږي وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَنْعَقِدُ النِّكَاحُ بِعِبَارَةِ النِّسَاءِ أَصْلًا او امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د ښځو په الفاظو [او جملو] سره بالکل نکاح نه تړل کيږي لِأَنَّ النِّكَاحَ يُرَادُ لِمَقَاصِدِهِ ځکه چي په نکاح سره د نکاح مقاصد مراديږي [يعني له نکاح کولو څخه مراد په خپله نکاح نه وي بلکي د نکاح مقاصد

وي] وَالتَّفْوِيْضُ إِلَيْهِنَّ مُخِلٌّ بِهَا او ښځو ته [د نکاح تړون] سپارل خلل را وستونکي دي په دې مقاصدو کې [يعني که ښځو ته د نکاح عقد او تړون وسپارل سي نو د نکاح په مقاصدو کې خلل او نقص راځي. ځکه چې ښځې ناقصات العقله دي] إِلَّا أَنَّ مُحَمَّدًا يَقُوْلُ: يَرْتَفِعُ الْخَلَلُ بِإِجَازَةِ الْوَلِيِّ خو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا خلل د ولي په اجازه سره پوره ته کيږي وَوَجْهُ الْجَوَازِ: أَنَّهَا تَصَرَّفَتْ فِي خَالِصِ حَقِّهَا او وجه د روايت دجواز دا ده: چې ښځې خالص په خپل حق کې تصرف کړی دی وَهِيَ مِنْ أَهْلِهِ او هغه د تصرف أهل هم ده لِكَوْنِهَا عَاقِلَةً مُمَيِّزَةً ځکه چې هغه د تميز کونکي عقل څښتنه ده وَلِهٰذَا كَانَ لَهَا التَّصَرُّفُ فِي الْمَالِ همدا وجه ده چې هغې لره په مال کې د تصرّف کولو اختيار سته وَلَهَا اخْتِيَارُ الْأَزْوَاجِ او [همدارنګه] هغې لره د خاوند د انتخابولو اختيار سته وَإِنَّمَا يُطَالَبُ الْوَلِيُّ بِالتَّزْوِيْجِ او له ولي څخه فقط په دې وجه د نکاح تړلو مطالبه کيږي كَيْ لَا تُنْسَبَ إِلَى الْوَقَاحَةِ چې ښځه د بې شرمۍ و طرف ته منسوبه نه سي ثُمَّ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ لَا فَرْقَ بَيْنَ الْكُفُؤِ وَغَيْرِ الْكُفُؤِ بيا په ظاهر روايت کې د کفو او غير کفو تر مينځ هيڅ فرق نسته وَلٰكِنْ لِلْوَلِيِّ الاِعْتِرَاضُ فِي غَيْرِ الْكُفْءِ ليکن ولي ته په غير کفو کې د اعتراض حق سته وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ فِي غَيْرِ الْكُفُؤِ او له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دی: چې په غير کفو کې [بالکل] نکاح جائز نه ده لِأَنَّ كَمْ مِنْ وَاقِعٍ لَا يُرْفَعُ ځکه چې ډير ځله واقع سوې پيښه [بيا] نه پورته کيږي [يعني زياتره وخت واقع سوې او تړل سوې نکاح بيا نه سي فسخ کېدلای] وَيُرْوٰى رُجُوْعُ مُحَمَّدٍ إِلٰى قَوْلِهِمَا او نقل سوې ده رجوع د امام محمد رَحِمَهُ الله د شيخينو رَحِمَهُمَا الله و قول ته.

**اللغات:** ﴿بِكْر﴾ پېغله، هغه ښځه چې د بکارت پرده يې خوندي پاته وي، ﴿ثَيِّب﴾ واده سوې ښځه، هغه ښځه چې د بکارت پرده ليرې سوې وي، ﴿تَفْوِيْض﴾ د تفعيل مصدر دی: سپارل، ﴿مُخِلّ﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: خلل اچونکی، نقصان راوستونکی، ﴿وَقَاحَة﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بې حيا کېدل، شرم ختمېدل، بې شرمي، ﴿كُفُو﴾ برابر، سيال، مثلاً که دوه کسان په نسب او کسب (پېشه) کې سره برابر وي نو يوه ته د هغه بل کفو وايي.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی که یو عاقله، بالغه او آزاده ښځه په خپله خوښه او رضا سره نکاح وکړي (هغه که ثیّبه وي که باکره وي)، نو د هغې د نکاح په جواز او روایېنت کې د امامانو اختلاف دی، په ظاهر روایت کې د شیخینو مسلک دا دی چې د هغې نکاح صحیح او جائز ده، خو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په غیرِ ظاهر روایت کې یو قول دا نقل سوی دی چې له ولي څخه بغیر د ښځې نکاح نه صحیح کیږي، هغه که بالغه وي او که صغیره وي، عاقله وي او که غیرِ عاقله وي.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې د هغې نکاح د ولي پر اجازې موقوفه ده، یعنې که ولي اجازه ورکړي، نو صحیح کیږي، کنې نه صحیح کیږي.

امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې د ښځو په عبارت او الفاظو سره بالکل نکاح نه تړل کیږي.

**دلیل:** د امام مالک او امام شافعي دلیل دا دی چې له نکاح څخه مقصود په خپله نکاح نه ده، بلکې له نکاح څخه مقصود د نکاح مقاصد دي مثلاً: سکونت، ګډ ژوند، په خپل مینځ کې مینه ومحبت او داسې نور، او څرنګه چې ښځې ناقصُ العقله او قلیلُ الفهمه دي، حرص او تلوار هم پکښې زیات دی، لهذا که هغو ته د نکاح کولو اختیار ورکول سي، نو د نکاح په مقاصدو کې به خلل واقع سي. نو ځکه به د هغو لپاره خپله نکاح په خپله کول صحیح او جائز نه وي.

**د امام محمد دلیل:** هم تقریباً د امام مالک او امام شافعي د دلیل په څیر دی، خو هغه دا اضافه هم کړې ده چې د ولي په اجازه ورکولو سره د نکاح په مقاصدو کې واقع کېدونکی خلل لیرې کیږي، ځکه ولي هغه وخت اجازه ورکوي چې په نکاح کې څه خلل نه ویني، کنې اجازه نه ورکوي.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چې دغه ښځې صرف په خپل حق کې تصرف کړی دی، او هغه د تصرف أهل هم ده (ځکه چې دومره عقل لري چې د ښه او بد تر مینځ توپیر وکړي)، همدا وجه ده چې هغه په خپل مال کې او د خاوند په انتخابولو کې اختیارمنه ده، یعنې هغې ته دا حق سته چې په خپل مال کې تصرّف وکړي او د ځان لپاره خاوند انتخاب کړي، لهذا په نکاح کې به هم د تصرّف کولو حق ورته حاصل وي، او خپله نکاح به په خپله کول د هغې لپاره صحیح وي.

**وإنما يطالب إلخ:** په دې سره د یو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې کله ښځه اختیارمنه او صرف په حق کې تصرف کونکې ده، نو بیا په څه وجه له ولي څخه د هغې د نکاح د تړلو مطالبه (غوښتنه) کیږي؟ هغې ته په خپله نکاح تړل پکار دي. نو د دې په جواب کې صاحب د هدایې فرمایي چې دا د دې لپاره چې خلک ښځې ته بې شرمه او بې حیا نه ووایي، ځکه چې د خلکو په

مجلسونو کي شرکت او بې باکي کول د ښځي لپاره شرم او پېغور ګڼل کيږي، کنې د ښځي لپاره په خپله نکاح تړل بالکل صحيح دي.

**ولا فرق بين إلخ**: ظاهر روايت دا دی چي د دې ښځي په حق کي د کفو او غير کفو هيڅ فرق نسته. يعني که آزاده، عاقله او بالغه ښځه خپله نکاح د خپل سيال سره وکړي او که د ناسيال سره يې وکړي. په دواړو صورتونو کي يې نکاح صحيح ده، لېکن په ناسيال (غير کفو) کي ولي ته د اعتراض کولو حق سته چي هغه د قاضي مخته اعتراض وکړي، بيا که قاضي ته د هغې نکاح نامناسبه معلومه سي نو نکاح دي ماته کړي، او که مناسبه يې وګڼي نو هغه دي صحيح وګرځوي.

له شيخينو څخه د حسن بن زياد يو روايت دا دی چي په غير کفو کي بالکل د ښځي نکاح نه صحيح کيږي، ځکه کله چي يو وار نکاح وتړل سي، نو بيا د قاضي لپاره د انصاف په رڼا کي د نکاح ماتول مشکل وي، همدارنګه د ښځي او ولي لپاره يې هم فسخ کول مشکل نه بلکي ناممکن وي (خصوصاً زموږ په زمانه کي چي هر طرف ته د ظلم او چالبازۍ سلطنت دی، او په هيڅ ځای کي هم قاضي نه تر سترګو کيږي)، نو غوره همدا ده چي په غير کفو کي د نکاح کولو دروازه بالکل بنده سي.

**ويروى رجوع إلخ**: د بدائع او داسي نورو کتابونو په يوه روايت کي ذکر سوي دي چي امام محمد رَحِمَهُ الله د شيخينو ظاهر روايت ته رجوع وکړه، يعني مخکي خو هغه د ولي پر اجازه نکاح موقوفه ګڼله، لېکن وروسته هغه له خپل دغه قول څخه ظاهر روايت ته رجوع وکړه چي د ولي له اجازې څخه بغير هم د ښځي نکاح بالکل صحيح ده.

## په نکاح کي د ښځي د رضامندۍ بيان

وَلَا يَجُوزُ لِلْوَلِيِّ او جائز نه دي د ولي لپاره إِجْبَارُ الْبِكْرِ الْبَالِغَةِ عَلَى النِّكَاحِ مجبوره کول د باکرې بالغې ښځي په نکاح باندي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لَهُ الِاعْتِبَارُ بِالصَّغِيرَةِ د هغه دليل پر صغيره قياس دی [يعني امام شافعي باکره بالغه پر کوچنۍ نجلۍ قياسوي] وَهٰذَا او دا ځکه [يعني دا قياس په دې وجه کوي] لِأَنَّهَا جَاهِلَةٌ بِأَمْرِ النِّكَاحِ لِعَدَمِ التَّجْرِبَةِ ځکه چي باکره [هم] د نکاح په معامله کي نا واقفه ده د [خپلي] بې تجربګۍ په وجه وَلِهٰذَا يَقْبِضُ الْأَبُ صَدَاقَهَا بِغَيْرِ أَمْرِهَا همدا وجه ده چي پلار قبضه کولای سي د هغې پر مهر د هغې له حکم [او اجازت] څخه بغير وَلَنَا: أَنَّهَا حُرَّةٌ مُخَاطَبَةٌ او زموږ دليل دا دی: چي هغه آزاده ده او په شرعي حکم مخاطبه ده فَلَا يَكُونُ لِلْغَيْرِ عَلَيْهَا

وِلَايَةٌ لهذا بل چا ته به پر هغې ولايت حاصل نه وي وَالْوِلَايَةُ عَلَى الصَّغِيْرَةِ لِقُصُوْرِ عَقْلِهَا او ولايت پر كوچنۍ نجلۍ د خپل كم عقلۍ په وجه ثابت دى وَقَدْ كَمُلَ بِالْبُلُوْغِ او هغه په بلوغت سره مكمل [بشپړ] سو بِدَلِيْلِ تَوَجُّهِ الْخِطَابِ په دې دليل چي هغې ته [د شريعت] خطاب متوجه سو فَصَارَ كَالْغُلَامِ نو [د هغې مجبوره كول] داسي سو لكه [بالغ] هلک ايعني د هغې مجبوره كول داسي دي لكه د بالغ هلک مجبوره كول] وَكَالتَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ او داسي سو لكه [د هغې] په مال كي [په زوره] تصرّف كول وَإِنَّمَا يَمْلِكُ الْأَبُ قَبْضَ الصَّدَاقِ بِرِضَاهَا دَلَالَةً او پلار خو دلالتاً د هغې په رضا سره [د هغې] پر مهر د قبضه كولو مالک كيږي وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ مَعَ نَهْيِهَا همدا وجه ده چي د هغې په منع كولو سره پلار د مهر نه مالک كيږي.

**اللغات:** ﴿إِجْبَار﴾ د افعال مصدر دى: مجبورول، په يو چا په زوره يو كار كول. ﴿صَدَاق﴾ مهر.

﴿قُصُوْر﴾ د نصر مصدر دى: ناقصېدل، كمېدل، عاجزه كېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي زموږ په نيز د ولي لپاره دا جائز نه دي چي بالغه باكره ښځه په نكاح باندي مجبوره كړي، او كه ولي داسي وكړي، نو نكاح به د هغې پر اجازه موقوفه وي، كه هغه نكاح ردّ كړي، نو نكاح باطليږي، كنې صحيح به وي، او كه هغه خاموشه (چپه) پاته سي. نو دا به د هغې له طرفه اجازه وي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز بالغه باكره ښځه پر نكاح مجبوره كول جائز دي.

**د امام شافعي دليل:** قياس دى، يعني امام شافعي بالغه ښځه پر صغيره (كوچنۍ نجلۍ) باندي قياسوي او فرمايي چي د دواړو علت مشترک كه نابلدتيا او بې تجربگي ده، يعني دوى دواړه په دغه ميدان كي څه تجربه نه لري او د نكاح په معاملاتو نابلده وي، ځكه چي دواړي د څه عملي كړنلاري سره مخامخ سوي نه وي، نو څرنگه چي د بې تجربگۍ او نابلدتيا په وجه صغيره پر نكاح مجبورول جائز دي، همدارنگه به كبيره باكره هم پر نكاح مجبورول جائز وي. د همدغه نابلدتيا او جهالت په وجه پلار د باكرې بالغې لور له اجازت څخه بغير د هغې پر مهر قبضه كولاى سي، لهذا په نفسِ جهالت كي بالغه باكره او صغيره دواړي سره برابري دي، نو په حكم كي به هم دواړي برابري وي.

**زموږ دليل:** دا دي چي دغه بالغه آزاده هم ده او په شرعي احكامو مخاطبه او مكلفه هم ده، نو په دې وجه به بل چا ته دا ولايت حاصل نه وي چي هغه مجبوره كړي.

**والولاية على إلخ**: په دې عبارت سره زمونږ له طرفه امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي چې بالغه پر صغیره قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې په صغیره کې د خپلې کم عقلۍ په وجه ولي ته د ولایت حق حاصل دی، لیکن کله چې صغیره بالغه سي او د شریعت په احکامو مکلفه سي، نو بیا د هغې عقل هم کامل سي، او هغه د بالغ هلک په څیر سي، او پر بالغ هلک هیڅا ته ولایت حاصل نه دی، لهذا پر آزادې بالغې ښځې به هم هیڅا ته ولایت حاصل نه وي.

او څرنګه چې بالغه ښځه په خپل مال کې اختیارمنه ده، او پلار په زوره د هغې په مال کې تصرف نه سي کولای، همداسې به د هغې نکاح هم په زوره نه سي کولای.

**وإنما يقبض إلخ**: په دې سره هم امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، هغه وویل چې پلار د باکرې بالغې ښځې له اجازت څخه بغیر د هغې پر مهر قبضه کولای سي، نو جواب ورکوي چې په دې صورت کې د هغې له طرفه دلالتاً اجازه سته، ځکه کله چې پلار د هغې پر مهر قبضه وکړي او هغه سکوت اختیار کړي هیڅ نه وایي نو دا د هغې له طرفه اجازه سوه، نو ځکه به د هغې له اجازت څخه بغیر پر مهر قبضه کول جائز وي، همدا وجه ده که هغه صراحتاً له دې څخه منع وکړي، نو بیا پلار ته دا جائز نه دي چې د هغې پر مهر قبضه وکړي.

## له ښځې څخه د نکاح د اجازت غوښتلو بیان

**قَالَ: وَإِذَا اسْتَأْذَنَهَا فَسَكَتَتْ** فرمایي: او کله چې ولي اجازه وغواړي له باکرې بالغې څخه او هغه چپه [خاموشه] سي **أَوْضَحِكَتْ** یا وخاندي **فَهُوَإِذْنٌ** نو دا [د هغې له طرفه د نکاح] اجازه ده **لِقَوْلِهِ** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1]: «**اَلْبِكْرُ تُسْتَأْمَرُفِي نَفْسِهَا** ځکه نبي کريم ﷺ فرمایلي دي: "چې له باکرې څخه به د هغې د ځان په هکله مشوره غوښتل کیږي **فَإِنْ سَكَتَتْ فَقَدْ رَضِيَتْ**» که هغه چپه پاته سي نو [پوه سه! چې] راضي ده" **وَلِأَنَّ جِهَةَ الرِّضَاءِ فِيهِ رَاجِحَةٌ** او ځکه چې په سکوت کې د رضامندۍ طرف غالب دی **لِأَنَّهَا تَسْتَحِيْ عَنْ إِظْهَارِ الرَّغْبَةِ** ځکه چې باکره [د نکاح] د خواهش په ښکاره کولو سره شرمیږي **لَا عَنِ الرَّدِّ** [خو] په انکار کولو سره نه [شرمیږي] **وَالضَّحِكُ أَدَلُّ عَلَى الرِّضَا مِنَ السُّكُوتِ** او خندا زیاته دلالت کونکې ده پر رضامندۍ د سکوت په مقابله کې **بِخِلَافِ مَا إِذَا بَكَتْ** په خلاف د هغه صورت

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم فی كتاب النكاح، باب استئذان الثّيب فی النكاح بالنطق...، حديث رقم:۶۴. وابو داؤد فـی كـتـاب النكاح، باب فی الاستيمار، حديث رقم:۲۰۹۲ - ۲۰۹۴ .

چي كله هغه وژاړي لِأَنَّهُ دَلِيلُ السُّخْطِ وَالْكَرَاهَةِ ځکه چي ژړا د ناراضۍ او ناخوښۍ دليل دی وَقِيْلَ: إِذَا ضَحِكَتْ كَالْمُسْتَهْزِئَةِ بِمَا سَمِعَتْ او ويل سوي دي: چي كله داسي وخاندي لكه هغه چي په اورېدل سوې خبره پسخند [ملنډي] وهونكې وي [يعني د پسخند او ملنډو په توګه وخاندي، نه په حقيقي توګه] لَايَكُوْنُ رِضًا نو دا خندا به [د هغې له طرفه] رضا نه وي [يعني داسي خندا به د ښځي د رضامندۍ دليل نه ګڼل كيږي] وَإِذَا بَكَتْ بِلَا صَوْتٍ او كله چي بغير له آواز څخه وژاړي [يعني فقط اوښكي يې را توى سي] لَمْ يَكُنْ رَدًّا نو دا ژړا به [د هغې له طرفه] انكار نه وي.

**اللغات:** ﴿إِسْتَأْذَنَ﴾ د استفعال ماضي ده: اجازه غوښتل، ﴿إِذْن﴾ اجازه، اجازت، ﴿تُسْتَأْمَرُ﴾ د استفعال له باب څخه واحده غائبه مضارع مجهوله ده: د حكم طلب كول، مشوره او اجازه غوښتل، ﴿السُّخْط﴾ السُّخُط، السَّخَط (درې سره لغات پكښي جائز دي): ناراضي، غصه، ﴿الكَرَاهَة﴾ نفرت، ناخوښي، ﴿مُسْتَهْزِئَة﴾ د استفعال د باب مؤنث اسم فاعل دی: ټوكماره، د پسخند او ملنډو په توګه خبره كونكې ښځه.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی كه د باكرې بالغې ښځي ولي له هغې څخه د نكاح اجازه وغواړي، او هغه چپه پاته سي يا وخاندي، نو دا چپ پاتېدل يا خندل د هغې د رضامندۍ او اجازې دليل دی، همدارنګه مُسكا هم د هغې د رضامندۍ دليل دی.

دليل د كتاب حديث دی چي په هغه كي رسولُ الله ﷺ د باكرې ښځي چپ پاتېدل د هغې رضامندي او اجازه ګڼلې ده. عقلي دليل دا دی چي په چپېدلو او خندلو كي د رضامندۍ طرف غالب دی، ځكه چي باكره ښځه د رضا او رغبت په ښكاره كولو سره شرميږي، خو له انكار كولو څخه نه شرميږي، لهذا كه هغه په نكاح نارضه وای، نو صفا انكار به يې كړی وای، لېكن انكار نه كول او چپېدل (سكوت) د هغې د رضامندۍ دليل دی. او خندا هم د رضامندۍ دليل دی؛ ځكه خندا او مُسكا په رضامندي باندي تر سكوت زيات دلالت كوي، ځكه چي په سكوت كي د غور او فكر احتمال هم سته (چي كېدای سي ښځه به د نكاح كولو او نه كولو په هكله فكر كوي)، خو په خندا كي دا احتمال نسته، ځكه خندا او مسكا فقط تر خوشالېدلو او راضي كېدلو وروسته صادرېږي. نو په دې وجه به خندا تر سكوت زيات د رضامندۍ او اجازت دليل وي.

لېكن د باكرې ښځي ژړل د رضامندۍ دليل نه دی، بلكي د ناخوښۍ او انكار دليل دی.

**وقيل إذا ضحكت:** يو قول دا دی چې كه تر اجازت غوښتلو وروسته باكره ښځه د استهزاء او پسخند په توګه وخاندي، نو دا د هغې د رضامندۍ دليل نه دی؛ ځكه چې پسخند او ملنډې وهل د ناخوښۍ او انكار دليل دی.

**وإذا بكت بلا صوت:** د باكرې ښځې ژړل د ناخوښۍ دليل دی، ليكن كه هغه بېله آوازه پټ وژاړي او فقط اوښكې يې وبهيږي، نو دا ژړا د ناخوښۍ او انكار دليل نه دی، بلكې د رضامندۍ او اجازت نښه ده، ځكه چې زياتره د مور وپلار، خوندو او ورونو پر بېلتون بېله اختياره د ښځې اوښكې بهيږي. نو دلته به هم د هغې ژړا پر دغه صورت حمل كيږي، بلكې ځينې وخت خو د ډېرې خوشحالۍ پر موقع هم اوښكې بهيږي، لهذا فقط اوښكې تويېدل او بې آوازه ژړل به د ناخوښۍ او انكار دليل نه شمارل كيږي.

## له ولي څخه بغير د بل چا د اجازت غوښتلو په وخت كې د ښځې د سكوت (چوپتيا) حكم

**قَالَ: وَإِنْ فَعَلَ هٰذَا غَيْرُ الْوَلِيِّ** فرمايي: او كه دا كار له ولي څخه بغير [بل څوک] وكړي **يَعْنِي اسْتَأْمَرَ غَيْرُ الْوَلِيِّ** يعني له ولي څخه بغير [بل څوک له باكرې څخه د نكاح] اجازه وغواړي **أَوْ وَلِيٌّ غَيْرُهُ أَوْلَى مِنْهُ** يا داسې ولي [د نكاح اجازه ځنې وغواړي] چې هغه تر بل ولي [ښځې ته] زيات نژدې وي **لَمْ يَكُنْ رِضًا** نو [په داسې وخت كې د باكرې ښځې] سكوت رضا نه ده **حَتَّى تَتَكَلَّمَ بِهِ** تر دې چې هغه په ژبه سره خپله رضامندي بيان كړي **لِأَنَّ هٰذَا السُّكُوتَ لِقِلَّةِ الِالْتِفَاتِ إِلَى كَلَامِهِ** ځكه چې دغه سكوت د توجّه د كمښت په وجه دی د هغه د خبرو وطرف ته [يعني دا باكره په دې وجه چپه ده چې هغه د غيرِ ولي خبري ته توجه نه كوي او هغه ته هيڅ اهميت نه وركوي] **فَلَمْ يَقَعْ دَلَالَةً عَلَى الرِّضَا** نو ځكه به دا سكوت [د هغې] پر رضامندي دليل نه وي **وَلَوْ وَقَعَ فَهُوَ مُحْتَمَلٌ** او كه [بيا هم] دليل [ومنل] سي نو دا احتمال لرونكی سكوت دی [يعني احتمالي سكوت دی] **وَالِاكْتِفَاءُ بِمِثْلِهِ لِلْحَاجَةِ** او پر داسې احتمالي سكوت د ضرورت په وجه اكتفاء كيږي **وَلَا حَاجَةَ فِي حَقِّ غَيْرِ الْأَوْلِيَاءِ** او د غيرِ وليانو په حق كې هيڅ ضرورت نسته **بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمُسْتَأْمِرُ رَسُولَ الْوَلِيِّ** په خلاف د هغه صورت چې كله اجازه غوښتونكی سړی د ولي قاصد [پيغام رسونكی] وي **لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَهُ** ځكه چې د ولي قاصد د ولي پر ځای ولاړ دی **وَتُعْتَبَرُ فِي الِاسْتِئْمَارِ تَسْمِيَةُ الزَّوْجِ عَلَى وَجْهٍ تَقَعُ بِهِ الْمَعْرِفَةُ** او معتبر دي په اجازه غوښتلو كې په داسې طريقه

سره د خاوند ذکر کول چې په هغه سره د خاوند [پوره] پېژندنه وسي ایعني اجازه غوښتونکي ته پکار دي چې د باکرې بالغې په مخکې د خاوند نوم او پوره تعارف بیان کړي| لِتَظْهَرَ رَغْبَتُهَا فِيهِ مِنْ رَغْبَتِهَا عَنْهُ ادا د دې لپاره| چې د خاوند په باره کې د هغې رُغبت [خواهش] د هغې له بې رغبتی څخه ښکاره [او جلا] سي وَلَا تُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْمَهْرِ او شرط نه دي [د اجازه غوښتولو په وخت کې] د مهر ذکر کول [تاکل] هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح قول دی لِأَنَّ النِّكَاحَ صَحِيحٌ بِدُونِهِ ځکه چې نکاح د مهر له ذکر کولو څخه بغیر [هم] صحیح ده.

**اللغات:** ﴿اِلْتِفَات﴾ د افتعال مصدر دی: توجه، پاملرنه، ﴿تَسْمِيَة﴾ د تفعیل مصدر دی: نوم اخیستل، نومول، ذکر کول (یادول)، ټاکل (مقرر کول)، ﴿وَجْه﴾ طریقه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که له ولي څخه بغیر یو بل څوک له باکرې بالغې ښځې څخه د نکاح اجازه وغواړي یا د نژدې قریب په وجود کې یو لیرې قریب (مثلاً د پلار په وجود کې ورور) اجازه ځني وغواړي، نو په دې دواړو صورتونو کې د باکرې بالغې خندا یا چوپتیا (سکوت) د هغې د رضامندی او اجازت دلیل نه دی، بلکې د رضا او اجازه ورکولو لپاره په ژبه صراحت کول ضروري دي، لکه د ثیّبې ښځې په باره کې چې هم دغه حکم دی.

دلیل دا دی چې د غیرِ ولي یا د لیري قریب د اجازه غوښتلو په جواب کې سکوت (چوپتیا) د غوږ نه نیولو او پام نه کولو دلیل دی، یعني دا ښځه په دې وجه چپه ده چې د هغه وخبري ته بالکل هیڅ توجه نه کوي او تر غوږ یې تېروي، نو ځکه به په دغه سکوت سره د ښځې پر رضامندی دلیل نیول صحیح نه وي، او کېدای شي هم د هغې سکوت د رضامندی دلیل ومنل سي، نو هم د ناراضی او ناخوښی احتمال پکښې سته، او داسې احتمالي دلیل او احتمالي جمله فقط د ضرورت په وخت کې دلیل منل کیږي او د ښځې له طرفه اجازه ګڼل کیږي، او د غیرولي په حق کې هیڅ ضرورت نسته، ځکه چې غیرِ ولي ته په صراحتاً اجازه ورکولو سره ښځه دومره نه شرمیږي څومره چې نژدې ولي ته په صراحتاً اجازه ورکولو سره شرمیږي، نو ځکه به د غیرِ ولي مخته سکوت د هغې د رضامندی دلیل نه منل کیږي.

لیکن که له باکرې نجلی څخه اجازت غوښتونکی د ولي قاصد (استازی) وي، نو په دې صورت کې د هغې سکوت او خندا د رضامندی دلیل منل کیږي، ځکه چې قاصد د ولي نائب او قائم مقام دی، نو ځکه به د دواړو حکم یو وي.

**وتعتبر في الاستيهار إلخ:** فرمايي چي په کوم وخت کي له باکرې ښځي څخه د نکاح اجازه غوښتل کيږي، نو د هغې مخته په پوره توګه د خاوند نوم او تعارف بيانول ضروري دي چي په پوره توګ هغې ته خاوند معلوم سي، ځکه چي ښځه ټوله ژوند د هغه سره تېروي، نو د خاوند پېژندل او د هغه ښېګڼه او خامي معلومول ضروري دي. او د تعارف او پېژندګلوی تر ذکر کولو وروسته دي د ښځي رغبت او خوښي ته وکتل سي چي آيا ښځه د هغه سره په واده کولو راضي ده، که نه. او بيا دي د هغې د رغبت مطابق فيصله وسي.

ليکن د اجازت غوښتلو په وخت کي د مهر يادونه کول او د مهر اندازه ذکر کول ضروري نه دي، له دې څخه بغير هم نکاح صحيح کيږي، خو که ذکر يې کړي نو ښه خبره ده. صحيح روايت همدا دی.

## د نکاح د خبر ورکولو په وخت کي د باکرې ښځي د سکوت حکم

وَلَوْزَوَّجَهَا او که ولي [ديو چاسره] د باکرې نکاح وکړي فَبَلَغَهَا الْخَبَرُ [او] بيا باکرې ته [د نکاح] خبر ورسيږي فَسَكَتَتْ او هغه چپه [خاموشه] سي فَهُوَعَلٰى مَا ذَكَرْنَا نو دا حکم د هغه تفصيل مطابق دی کوم چي موږ ذکر کړی لِأَنَّ وَجْهَ الدَّلَالَةِ فِي السُّكُوْتِ لَايَخْتَلِفُ ځکه چي په چوپتيا کي د دلالت وجه نه مختلف کيږي ثُمَّ الْمُخْبِرُاِنْ كَانَ فُضُوْلِيًّا بيا که خبر ورکونکی فضولي وي يُشْتَرَطُ فِيهِ الْعَدَدُ أَوِ الْعَدَالَةُ نو په هغه کي عدد يا عدالت شرط دی عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ ✿ په نېز د امام صاحب رَحِمَهُ الله خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله وَلَوْكَانَ رَسُوْلًا او که مُخبِر د ولي قاصد [پيغام رسونکی] وي لَايُشْتَرَطُ إِجْمَاعًا نو د ټولو په اتفاق [عدد او داسي نور] شرط نه دي وَلَهُ نَظَائِرُ او د دې [اختلاف] ډېر مثالونه سته وَلَوِاسْتَأْذَنَ الثَّيِّبَ او که [ولي] اجازه غواړي له ثيّبې ښځي څخه فَلَا بُدَّ مِنْ رِضَاهَا بِالْقَوْلِ نو ضروري دي د هغې قولي رضا مندي [يعني ثيّبه به په قول او خوله (ژبه) سره خپله رضا مندي ښکاره کوي، د هغې سکوت معتبر نه دی] لِقَوْلِهِ ﷺ ❶: الثَّيِّبُ تُشَاوَرُ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي

---

✿ القول الراجح: قول الامام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة فخر الدين قاضيخان رَحِمَهُ الله: فإن أخبرها فضولي لا بد من العدد أو العدالة (الخانية ج:۱، ص:۳۴۲)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۲۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۳]

❶ تخريج: أخرجه أحمد في مسنده، حديث رقم: ۷۱۳۱ في مسند أبي هريرة رضي الله عنه. و كنز العمّال، باب حرف النـون، حديث رقم: ۴۵۷۷۷.

دي: چي د ثيّبې سره به مشوره کيږي وَلِأَنَّ النُّطْقَ لَا يُعَدُّ عَيْبًا مِنْهَا او ځکه چي خبره کول ايعني په خوله رضامندي ښکاره کول] د ثيبې په حق کي عيب نه شمارل کيږي وَقَلَّ الْحَيَاءُ بِالْمُمَارَسَةِ او اد هغې] شرم [هم] کم دی د خاوند سره د يوځای کېدلو په وجه فَلَا مَانِعَ مِنَ النُّطْقِ فِي حَقِّهَا نو د هغې په حق کي له خبري کولو څخه هيڅ مانع نسته [لکه د باکرې په حق کي چي شرم مانع وو].

**اللغات:** ﴿فُضُوْلِي﴾ هغه کس چي نه ولي وي او نه د ولي قاصد وي (بلکي يو زايد او اضافي سړی وي). ﴿تُشَاوَرُ﴾ د مفاعلې مضارع مجهوله ده: مشوره کول (مشوره اخيستل). ﴿نُطْق﴾ د ضرب مصدر دی: خبري کول (په خوله خبري کول). ﴿مُمَارَسَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: مشق او تمرين کول، مهارت پيدا کول، کوښښ کول، دلته ځني مراد د خاوند سره يو ځای او سېدل (اختلاط) او د واده په معاملاتو کي مهارت او تجربه لرل دي.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي، د يوې مسئلې تعلق د باکرې ښځي سره دی، او د دويمي تعلق د ثيّبې ښځي سره دی.

(۱)... د اولي مسئلې حاصل دا دی چي که ولي د باکرې ښځي له اجازت څخه بغير د هغې نکاح د يو چا سره وکړي، بيا چي کله هغې ته د نکاح خبر ورسيږي، نو هيڅ نه وايي بلکي چپه پاته سي. نو په دې صورت کي هم هغه تفصيل دی کوم چي مخکي تېر سو، يعني که خبر ورکونکی (مُخبِر) ولي وي يا د ولي قاصد (استازی) وي، نو په دې صورت کي به د باکرې ښځي سکوت او ضحک (خندا) د هغې د رضامندۍ دليل وي، او ژړا به يې د انکار دليل وي، او که مُخبِر غيرِ ولي يا ليري قريب وي. نو په دې صورت کي به ښځه په ژبه سره د رضامندۍ خبره کوي، سکوت او ضحک به دليل نه منل کيږي.

دليل دا دی چي په سکوت (او ضحک) کي د رضامندۍ دليل مختلف نه دی. يعني څرنګه چي تر نکاح مخکي د اجازت غوښتلو په وخت کي د باکرې د شرم او حياء په وجه د هغې سکوت د رضامندۍ دليل وو، همدارنګه تر نکاح وروسته به هم د هغې سکوت د شرم او حياء په وجه د رضامندۍ او اجازت دليل وي، ځکه چي وجه د دلالت چي هغه شرم دی په دواړو صورتونو کي يو ډول سته، هيڅ فرق پکښي نسته.

**ثم المخبر الخ:** بيا که مُخبِر ولي نه وي يا د هغه قاصد نه وي، بلکي يو فضولي وي، نو په دې صورت کي د هغه د خبر د معتبر والي لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز عدد يا عدالت شرط دی. يعني خبر

ور کونکي به کم از کم دوه (فضوليان) وي، او که يو وي، نو هغه به عادل وي، کنې خبر به يې نه منل کيږي، لېکن د صاحبينو په نېز نه عدد شرط دی او نه عدالت شرط دی، يعني که مُخبر يو وي که دوه وي، عادل وي که غيرِ عادل وي، په هر صورت کي يې خبر معتبر دی.

او د دې اختلاف ډېر مثالونه سته، مثلاً که يو سړي خپل غلام د تجارت (کاروبار) اجازه ورکړې وي، او بيا بېرته هغه له تجارت څخه منع کړی، يا مثلاً يو څوک خپل وکيل معزوله کړي، نو که غلام ته د منع کېدلو خبر فضولي ورکړي، يا وکيل ته د عزل خبر فضولي ورکړي، نو د امام صاحب په نېز په دې کي عدد يا عدالت شرط دی، يعني که دوه فضوليان يا يو عادل فضولي د دې خبر ورکړي، نو غلام به له تجارت څخه منع کيږي، او وکيل به معزوليږي، او که داسي نه وي، نو بيا به يې خبر ته اعتبارنه ورکول کيږي، لېکن د صاحبينو په نېز هيڅ شرط هم نسته، په هر صورت کي د فضولي خبر معتبر دی، او په هر صورت کي به د فضولي په خبر سره غلام او وکيل خپل له کار څخه لاس اخلي.

ولو استأذن الثيب إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده که له ثيّبې بالغې ښځي څخه د نکاح اجازه وغوښتل سي، نو د هغې لپاره په خوله سره خپله رضامندي ښکاره کول ضروري دي، د هغې سکوت او ضحک به د رضامندۍ او اجازت دليل نه ګڼل کيږي، دليل دا حديث دی: "الثَّيِّبُ تُشَاوَرُ".

"تُشَاوَر" د مفاعلې د باب صيغه ده، او تاسو ته معلومه ده چي د مفاعلې د باب يوه اهمه خاصه اشتراک دی، او څرنګه چي اجازه غوښتونکی کس (سائل) د هغې سره د خبرو په ذريعه د نکاح مشوره کوي او اجازه ځني غواړي، نو دا به هم د خبرو په ذريعه هغه ته د "هو" يا "نه" مشوره ورکوي، چي له دواړو طرفو څخه اشتراک ثابت سي.

دويم عقلي دليل دا دی چي د ثيّبې لپاره د نکاح مشوره او اجازه ورکول خلک عيب هم نه ګڼي، ځکه چي د خاوند سره د اختلاط او ګډ اوسېدلو په وجه د هغې شرم کم سوی وي، او د باکرې سکوت صرف د دغه علت په وجه (يعني د شرم او حياء په وجه) د رضامندۍ دليل منل کيږي، او دغه علت د ثيبې په حق کي نسته، نو ځکه به د هغې په حق کي سکوت او داسي نور د رضامندۍ دليل نه منل کيږي، بلکي په خوله سره به نُطق کول ضروري وي.

## د بکارت زایلېدلو مختلف صورتونه او حکمونه

وَإِذَا زَالَتْ بَكَارَتُهَا بِوَثْبَةٍ أَوْ حَيْضَةٍ او کله چي زائل سي د ښځي [پرده د] بکارت په ټوپ سره یا په حیض سره أَوْ جِرَاحَةٍ أَوْ تَعْنِيسٍ یا په زخم سره یا د ډېر عمر بې واده والي په وجه فَهِيَ فِي حُكْمِ الْأَبْكَارِ نو هغه د باکرې په حکم کي ده [او د اجازه غوښتلو په وخت کي به د هغې سکوت رضامندي منل کیږي] لِأَنَّهَا بِكْرٌ حَقِيقَةً ځکه چي هغه په حقیقت کي باکره ده لِأَنَّ مُصِيبَهَا أَوَّلُ مُصِيبٍ لَهَا ځکه چي هغې ته رسېدونکی [خاوند] به اول رسېدونکي وي هغې لره [یعني د داسي ښځي سره وطي کونکی خاوند اول وار د هغې وطي کونکی دی، تر دې مخکي د هغې سره هیڅا وطي کړي نه دي] وَمِنْهُ الْبَاكُورَةُ وَالْبُكْرَةُ او له همدې "بکر" څخه دي: "باکورت" (اوله میوه) او "بُکرة" (اول سهار) [یعني باکورت او بُکره هم د بکر له مادې څخه دي] وَلِأَنَّهَا تَسْتَحْيِيْ لِعَدَمِ الْمُمَارَسَةِ او ځکه چي هغه حیا کوي د [خاوند سره] د نه یو ځای کېدلو په وجه [یعني تر دې مخکي هغه د هیڅ خاوند سره یو ځای سوې نه وي او د جنسي اړیکو سره مخامخ سوې نه وي. نو ځکه د هغې شرم او حیا د مخکي په څېر پاته وي] وَلَوْ زَالَتْ بَكَارَتُهَا بِزِنًا او که زائل سي د یوې ښځي [پرده د] بکارت په زنا سره فَهِيَ كَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ نو هغه هم د باکرې په حکم کي ده د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يُكْتَفٰى بِسُكُوتِهَا صاحبین او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چي د هغې په سکوت به اکتفا نه کیږي لِأَنَّهَا ثَيِّبٌ حَقِيقَةً ځکه چي هغه په حقیقت کي ثیبه ده لِأَنَّ مُصِيبَهَا عَائِدٌ إِلَيْهَا ځکه چي هغې ته رسېدونکی [خاوند] به دویم ځل رسېدونکی وي هغې لره [یعني د هغې سره وطي کونکی خاوند دویم وار د هغې وطي کونکی دي، ځکه تر دې مخکي زاني وطي ور سره کړي دي] وَمِنْهُ الْمَثُوبَةُ وَالْمَثَابَةُ وَالتَّثْوِيبُ او له همدغه [د ثَیِّب له مادې] څخه دي: "مثوبة" (ثواب) او "مثابة" (هغه ځای چي بار بار خلک ورته راځي) او "تثویب" (تر یوه ځل اعلان کولو وروسته بیا اعلان کول) وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ النَّاسَ عَرَفُوهَا بِكْرًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي خلکو هغه باکره ګڼلې ده فَيُعَيِّبُونَهَا بِالنُّطْقِ نو په نُطق سره به هغه عیبجنه وګڼي [یعني که هغه

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۲۸)، وكذا فــي الهنديــة (ج:۱، ص:۲۹).
[القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۴]

سکوت اختيار نه کړي بلکې په ژبه سره خپله رضامندي ښکاره کړي، نو خلک به يې ثيبه وګڼي ا فَتَمْتَنِعُ عَنْهُ نو ځکه به هغه له نطق څخه منع کيږي فَيُكْتَفٰى بِسُكُوْتِهَا او د هغې په سکوت به اکتفا کيږي كَيْلَا تَتَعَطَّلَ عَلَيْهَا مَصَالِحُهَا د دې لپاره چې د هغې مصالح [منافع] پر هغې معطل [او فوت] نه سي بِخِلَافِ مَا إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ أَوْ بِنِكَاحٍ فَاسِدٍ په خلاف د هغه صورت کله چې د هغې سره په شبهه يا په نکاحِ فاسد کې وطي ور سره سوي وي لِأَنَّ الشَّرْعَ أَظْهَرَهُ ځکه چې شريعت دا صورت ښکاره کړی دی حَيْثُ عَلَّقَ بِهِ أَحْكَامًا په دې توګه چې د دې صورت سره يې [د مهر او داسې نورو] احکام معلق کړي دي أَمَّا الزِّنَا فَقَدْ نُدِبَ إِلَى سَتْرِهِ پاته سوه زنا، نو د هغې پټول مستحب دي حَتّٰى لَوِاشْتُهِرَ حَالُهَا تر دې که د هغې ښځې حالت [يعني د هغې زنا کول] مشهوره سي لَا يُكْتَفٰى بِسُكُوْتِهَا نو [بيا] به د هغې په سکوت اکتفا نه کيږي.

**اللغات:** ﴿بَكَارَةٌ﴾ د پېغلتوب پرده، د بکارت پرده، ﴿وَثْبَةٌ﴾ د ضرب د باب اسم مرة دی: غورځېدل. ټوپ وهل، ﴿تَعْنِيْس﴾ د تفعيل مصدر دی: ډېر عمر بې واده کښېنستل (ډېر وخت بې واده پاتېدل)، ستی. کېدل، ﴿مُصِيْب﴾ د افعال اسم فاعل دی: رسېدونکی، نيونکی، حاصلونکی، ﴿بَاكُوْرَةٌ﴾ اوله مېوه (يعني د درختي هغه مېوه چې تر ټولو مخکې پخه سي)، د هر شي اول، جمع: بَوَاكِيْر، ﴿بُكْرَةٌ﴾ اول سهار (سهار وختي)، ﴿فَيُعِيْبُوْنَ﴾ له ضرب او تفعيل دواړو څخه راځي، د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: عيب لګول، ﴿تَتَعَطَّلَ﴾ د تفعّل مضارع ده: بېکاره کېدل، ځنډېدل، ختمېدل، ﴿وَطِي بِالشُّبْهَةِ﴾ دې ته وايي چې يو سړی د شپې او د تيارې په حالت کې پر پردۍ ښځې د خپلې ښځې (ماينې) ګومان وکړي او وطي ور سره وکړي، په شريعت کې د وطي بالشبهه سره ډېر احکام متعلق دي، يو دا چې دغه پردۍ ښځه به تر دريو حيضو پورې عدت تېروي، وطي کونکی به مهر ورکوي، که د دې وطي په وجه يو کوچنی پيدا سي، نو د هغه نسب به د وطي کونکي سره ثابتيږي، ﴿نِكَاحٌ فَاسِدٌ﴾ فاسده نکاح، مثلاً بېله ګواهانو نکاح وتړل سي، يا يو فاسد شرط پکښې ولګول سي، دې ته "فاسده نکاح" وايي.

**تشريح:** په دې عبارت کې هم دوې مسئلې بيان سوي دي، اوله مسئله متفق عليه ده او دويمه اختلافي ده.

(۱)... اوله مسئله دا ده که د يو ښځې د بکارت پرده د ټوپ وهلو په وجه زائله سي (وشکيږي)، يا د حيض په وجه، يا د زخم په وجه، يا د ډېر عمر بې واده کېدلو په وجه زائله سي، نو په دې ټولو صورتونو کې هغه ښځه د باکرې په حکم کې ده، يعني څرنګه چې مخکې د هغې سکوت او ضحک د رضامندۍ دليل وو، همدارنګه به اوس هم د هغې سکوت او ضحک د رضامندۍ دليل منل کيږي.

دلیل دا دی چې دا ښځه اوس هم په حقیقت کې باکره ده، ځکه چې د "باء، کاف، راء" په ماده کې د اولیّت معنیٰ سته، مثلاً "بُکره" اول سهار ته او "باکوره" هغه مېوې ته وایي چې اول پخه او تیاره سي. نو ځرنګه چې تر اوسه دغه ښځې ته هم چا لاس ور وړی نه دی او څوک چې هغه ته لاس ور وړي یعني وطي ور سره کوي، هغه به اول وطي کوونکی وي، نو د دغه اولیّت په سبب به اوس هم هغې ته باکره ویل کیږي.

دویم دلیل دا دی چې ځرنګه دغه ښځه مخکې په خوله او ژبه له اجازت ورکولو څخه شرمېدله، همدارنګه اوس هم شرمیږي، ځکه چې تر اوسه د هیڅا سرهٰ د هغې اختلاط راغلی نه دی، نو د سکوت سبب یعني شرم اوس هم پاته دی، نو ځکه به اوس هم هغه باکره وي او سکوت او ضحک به د هغې په حق کې د رضامندۍ دلیل منل کیږي.

**ولوزالت بكارتها بزنا إلخ:** (۲)... دویمه مسئله دا ده که د یو ښځې بکارت د زنا او بدکارۍ په وجه زائل سوی وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه هم د باکرې په حکم کې ده، لېکن د صاحبینو او د امام شافعي رَحِمَهُمُ الله په نېز هغه د ثیّبې په حکم کې ده، لهذا د اجازت غوښتلو په وخت کې به د هغې سکوت او ضحک د رضامندۍ او اجازت دلیل نه ګڼل کیږي، بلکې په خوله سره به اجازت ورکوي.

**دلیل:** د صاحبینو او د امام شافعي دلیل دا دی چې ثیّبه له "ثاء، یاء او باء" څخه را اخیستل سوی لفظ دی. او په دې ماده کې د رجوع او عود (راګرځېدلو) معنیٰ سته، مثلاً د نېک عمل بدله او ثواب ته "مثوبه" وایي، ځکه چې انسان ته د یو عمل ثواب رسېدل داسې دي لکه دویم ځل چې هغه عمل ورته حاصل سي، همدارنګه "مثابه" هغه ځای ته وایي چې خلک بار بار رجوع ورته کوي، لکه ځرنګه چې په قرآنِ کریم کې مکې مبارکې ته هم "مثابه" ویل سوي دي ځکه چې خلک بار بار د حج او عمرې لپاره مکې ته راځي. همدارنګه تثویب "اعلام بعد الاعلام" ته وایي.

لنډه دا چې د کومې ښځې بکارت په زنا سره زائل سي، هغه په حقیقت کې ثیبه ده، او د ثیبې په لفظ کې د رجوع او عود معنیٰ سته، نو تر زنا وروسته چې کله خاوند هغې ته ورسیږي یعني وطي ور سره وکړي، نو هغه راجع او عائد دی یعني د دې ښځې سره دویم وار وطي کوونکی دی، ځکه چې هغې مخکې هم یو وار وطي (زنا) کړې ده، نو ځکه به دا ثیبه وي، او د اجازت په هکله به د ثیبې احکام پر جاري کیږي.

**بخلاف ما إذا وطئت إلخ:** لېکن که د یو باکرې ښځې سره په شبهه وطي وسي یا په نکاحِ فاسد کې وطي ور سره وسي، نو هغه د ټولو په نېز ثیبه ګرځي؛ ځکه چې شریعت د داسې ښځې ثیابت ښکاره کړی دی او پر هغې یې د ثیبې احکام معلق کړي دي.

او پاته سوه زنا، نو حتی الإمکان پر زنا پرده اچول او پټول مستحب دي، همدا وجه ده چې کله د زنا راز ښکاره سي، او په خلکو کې مشهوره سي، نو په هغه وخت کې مورږ هم دا د بکارت د زوال سبب منو. او پر ښځې د ثیّبې حکم جاري کوو، یعني د هغې سکوت رضامندي او اجازه نه ګڼو. بلکې هغه به په خوله سره اجازه ورکوي.

## له نکاح څخه د ښځې د انکار حکم

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ او كه خاوند (باكرې ښځې ته) ووايي (يعني دعوه وكړي) بَلَغَكِ النِّكَاحُ فَسَكَتِّ چې تا ته د نكاح خبر ورسېدى او ته (په هغه وخت كې) چپه سوې! وَقَالَتْ: رَدَدْتُ او ښځه ووايي: چې ما انكار وكړى فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو قول به د ښځې معتبر وي وَقَالَ زُفَرُ: الْقَوْلُ قَوْلُهُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قول به د سړي معتبر وي لِأَنَّ السُّكُوتَ أَصْلٌ وَالرَّدَّ عَارِضٌ ځكه چې چپېدل أصل دى او انكار كول يو عارض دى فَصَارَ كَالْمَشْرُوطِ لَهُ الْخِيَارُ إِذَا ادَّعَى الرَّدَّ بَعْدَ مُضِيِّ الْمُدَّةِ نو داسي سو لكه هغه سړى چې تر مودت تېرېدلو وروسته د انكار دعوه وكړي چې د هغه لپاره خيار (اختيار) شرط وي وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّهُ يَدَّعِي لُزُومَ الْعَقْدِ وَتَمَلُّكَ الْبُضْعِ او موږ وايو: چې خاوند د عقد د لازمېدلو او د بضع د مالک كېدلو دعوه كوي وَالْمَرْأَةُ تَدْفَعُهُ او ښځه دا دعوه دفع كوي (يعني د دې انكار كوي) فَكَانَتْ مُنْكِرَةً نو هغه منكره سوه (او قول د منكر معتبر وي) كَالْمُودَعِ إِذَا ادَّعَى رَدَّ الْوَدِيعَةِ لكه امانت ساتونكى چې كله د امانت واپس كولو دعوه وكړي (نو هغه هم منكر وي او د هغه قول به معتبر وي) بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْخِيَارِ په خلاف د خيار د مسئلې لِأَنَّ اللُّزُومَ قَدْ ظَهَرَ بِمُضِيِّ الْمُدَّةِ ځكه چې (د عقد) لزوم د مودت د تېرېدلو په وجه ښكاره سو وَإِنْ أَقَامَ الزَّوْجُ الْبَيِّنَةَ عَلَى سُكُوتِهَا او كه خاوند د ښځې پر سكوت ګواهان وړاندې كړي ثَبَتَ النِّكَاحُ نو نكاح ثابته سوه لِأَنَّهُ نَوَّرَ دَعْوَاهُ بِالْحُجَّةِ ځكه چې هغه په دليل سره خپله دعوه مضبوطه كړه وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ بَيِّنَةٌ او كه د خاوند سره ګواهان نه وي فَلَا يَمِينَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو پر ښځې قسم ضروري نه دى د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَهِيَ مَسْأَلَةُ الِاسْتِحْلَافِ فِي الْأَشْيَاءِ السِّتَّةِ او دا په شپږو شيانو كې د قسم اخيستلو مسئله ده وَسَتَأْتِيكَ فِي الدَّعْوَى إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او هغه به په "كتاب الدعوىٰ" كې تا ته راسي، انشاء الله تعالىٰ.

**اللغات:** ﴿رَدَدْتُ﴾ د نصر له باب څخه د واحد متكلم مضارع صيغه ده: ردول، نه قبلول (انكار كول)، واپس كول. ﴿تَمَلُّك﴾ د تفعّل مصدر دى: مالک كېدل. ﴿بُضْع﴾ د ښځې شرمګاه، مراد ځني د زوجيّت حقوق دي. ﴿مُوْدَع﴾ د افعال اسم مفعول دى: چا ته چې امانت اېښوول سوى وي (امانت

ساتونکی)، ﴿مُفِيق﴾ د ضرب مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل، پوره کېدل، ﴿إِسْتِحْلَاف﴾ د استفعال مصدر دی: قسم څني اخيستل، له بل چا څخه د قسم مطالبه کول (قسم په اخيستل).

**تشريح**: د مسئلې تر صورت مخکي د "مُدَّعِي" او "مُدَّعٰى عليه" په تعريف او تفصيل ځان پوه کړئ! چي د مسئلې په تشريح کي د څه ستونزي سره مخامخ نه سئ.

څوک چي د "أصل" موافق دعوه وکړي، هغه ته "مُدَّعٰى عليه" وايي، او څوک چي د "أصل" مخالف دعوه وکړي هغه ته "مُدَّعِي" وايي. څوک چي "مُدَّعِي" وي نو پر هغه واجب دي چي د خپلي دعوې د ثبوت لپاره ګواهان پېش کړي، او که د هغه سره ګواهان نه وي، نو له "مُدَّعٰى عليه" څخه به قسم اخيستل کيږي، خو شپږ (۶) شيان داسي دي چي په هغوی کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له "مُدَّعٰى عليه" څخه قسم نه اخيستل کيږي، لېکن د صاحبينو او د ائمه ثلاثه وو په نېز به له "مُدَّعٰى عليه" څخه قسم اخيستل، چي له هغه شپږو شيانو څخه يو شی "نکاح" ده، او نور به د عبارت په آخر کي ذکر سي.

**صورت د مسئلې**: دا دی که يوه سړي بالغي باکرې ښځي ته وويل چي ستا ولي زما سره ستا نکاح کړې وه، او کله چي تا ته د نکاح خبر ورسېدی، په هغه وخت کي ته چپه وې، نو ځکه اوس ما او تا خاوند او ښځه (ماينه) يو، لېکن ښځي وويل چي ما د خبرېدلو په وخت کي فوراً ستا نکاح ردّ کړه، او زما او ستا په مينځ کي هيڅ نکاح نسته، او د يوه سره هم ګواهان نه وو، نو په دې صورت کي زموږ په نېز د ښځي قول معتبر دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د سړي قول معتبر دی.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي "سکوت" (چپېدل) أصل دی، ځکه چي سکوت "عدمِ کلام" ته يعني "کلام نه کولو" ته وايي، او په هر شي کي "عدم" يعني "نشتوالی او نه کول" أصل دی. او ردّ کول (انکار کول) عارض دی او د أصل خلاف دی، او دلته سړي (پر ښځي) د سکوت (کلام نه کولو) دعوه کړې ده (يعني چي تا ته کله د نکاح خبر ورسېدی، نو تا هيڅ کلام او خبره نه وکړه، بلکي سکوت دي اختيار کړی)، لهذا سړی مُدعیٰ عليه سو (ځکه چي هغه د أصل يعني د سکوت دعوه کوي)، او ښځه مُدعي سوه (ځکه چي هغه د نکاح د "ردّولو" دعوه کوي)، او تاسو ته معلومه ده چي که د مُدعي سره ګواهان نه وي، نو د مدعیٰ عليه (او متمسک بالأصل) قول به (د قسم سره) معتبر وي، او دلته سړی مدعیٰ عليه دی، نو ځکه به د هغه قول (د قسم سره) معتبر وي.

او دا مسئله داسي ده لکه مثلاً زيد چي له خالد څخه يو ښځه رانيسي او درې ورځي اختيار واخلي يعني د ځان لپاره درې ورځي اختيار شرط کړي چي که مي غوا خوښه سوه نو بيع به قبوله کړم کنې بيع به ردّ کړم. (کوم څوک چي د ځان لپاره اختيار شرط کړي، هغه ته "مشروط له الخيار" وايي، نو دلته زيد مشروط له الخيار دی) او کله چي درې ورځي تيري سي نو مشروط له الخيار (زيد) دعوه وکړي چي ما په دې دريو ورځو کي بيع ردّ کړې وه، او خالد ووايي چي ته چپ وې او په دغه مودت کي تا د بيع په هکله هيڅ خبره نه وه کړې، نو په دې مسئله کي به د خالد (بائع) قول معتبر وي او پر زيد (مشتري) به بيع لازم وي، ځکه چي خالد مدعیٰ عليه دی، ځکه چي هغه د سکوت (چپېدلو) دعوه کوي. نو همدارنګه به په پورتنۍ مسئله کي هم د سړي قول معتبر وي، ځکه چي هغه هم مدعیٰ عليه دی او د أصل (سکوت) دعوه کوي.

**زموږ دليل**: دا دی چي دلته سړی دا دعوه کړې ده چي نکاح وسوه او زه د بضع مالک سوم. او ښځه له دې څخه انکار کوي، يعني د "نکاح نه کېدلو" او د "بضع د نه مالک کېدلو" دعوه کوي، او د "نکاح نه کېدل" او د "بضع نه مالک کېدل" أصل دی (ځکه مخکي موږ وويل چي په هر شي کي "عدم" أصل دی)، لهذا ښځه مدعیٰ عليه سوه، او سړی مُدعي سو، او د مُدعي سره د ګواهانو د نه موجوديّت په وخت کي د مدعیٰ عليه قول معتبر وي، نو ځکه به دلته هم د ښځي قول معتبر وي.

او دا مسئله بالکل داسي ده لکه مثلاً زيد چي و خالد ته امانت کښېښودي چي دا د ځان سره وساته! (زيد ته "مُوْدِع" وايي يعني " امانت اېښوونکی" او د "امانت خاوند"، او خالد ته "مُوْدَع" وايي يعني "امانت ورته اېښوول سوی" او "د امانت ساتونکی")، بيا يو څو وخت وروسته زيد (د امانت خاوند) راسي او له خالد (مودَع) څخه د خپل امانت غوښتنه وکړي، لېکن هغه ورته ووايي چي ما تا ته خپل امانت درکړی دی. او زيد ووايي چي تا ماته نه دي راکړی، نو دلته به د خالد (مودَع) قول معتبر وي. ځکه چي هغه د ذمې د فراغت (يعني د غاړي خلاصېدلو) دعوه کوي (چي زما پر ذمه ستا امانت نسته هغه ما درکړی دی)، او د ذمې فراغت أصل دی لکه څرنګه چي همدا قاعده ده "الأَصْلُ فَرَاغُ الذِّمَّة". نو ځکه هغه مدعیٰ عليه سو، او زيد (د امانت خاوند) د ذمې د مشغوليت دعوه کوي (چي ستا پر ذمه اوس هم زما امانت پاته دی)، نو هغه مدعي سو، او قول د مدعیٰ عليه معتبر وي، نو څرنګه چي دلته د مدعیٰ عليه

او متمسک بالأصل (مودَع) قول معتبر دی، همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د مدعیٰ علیه او متمسک بالأصل (ښځې) قول معتبر وي.

**بخلاف مسألة الخيار إلخ:** دا د امام زفر رَحِمَهُ الله د قیاس جواب دی، حاصل یې دا دی چې دغه (پورتنۍ) مسئله د خیارِ شرط پر مسئلې قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې د خیارِ شرط په مسئله کې پر مشتري ځکه بیع لازم نه ده چې بائع د أصل (سکوت) دعوه کوي نو هغه مدعیٰ علیه سو. بلکې په دې وجه لازم ده چې کله د خیار مودت تېر سي نو په خپله بیع لازمیږي. او هلته مشتري تر دریو ورځو وروسته د بیع د ردّ ولو دعوه کړې ده (یعني د خیارِ شرط تر مودت وروسته هغه دعویٰ کړې ده چې مابیع ردّ کړې وه)، نو ځکه به نه د هغه قول معتبر وي او نه د بائع، ځکه چې بیع په خپله لازم سوه.

**وإن أقام الزوج إلخ:** او که په پورتنۍ مسئله کې سړی پر خپله دعوه (یعني د ښځې پر سکوت) ګواهان پېش کړي، نو بیا به فقط د سړي قول معتبر وي، ځکه چې هغه مُدعي دی، او ګواهان یې هم پېش کړه او په ګواهۍ سره یې خپله دعوه مضبوطه کړه.

لېکن که د خاوند سره ګواهان نه وي، نو له ښځې (مدعیٰ علیه) څخه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قسم نه اخیستل کیږي، ځکه چې دا د نکاح مسئله ده، او نکاح له هغو شپږو شیانو څخه یو شی دی چې په هغوی کې به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له مدعیٰ علیه څخه قسم نه اخیستل کیږي، او د صاحبینو او ائمه ثلاثه وو په نېز به قسم ځني اخیستل کیږي (او په دې مسئله کې راجح قول هم د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دی چې قسم به ځني اخیستل کیږي [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۵]).

شپږ شیان ټوله دا دي: ① نکاح، ② رجعت، ③ فَيئ فی الإیلاء، ④ استیلاء، ⑤ رِق، ⑥ ولاء، او علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله ټوله په دې شعر کې جمع کړي دي:

نِكَاحٌ وَفَيْئَةُ إِيْلَائِهِ وَرِقٌّ وَرَجْعٌ وَلَاءٍ نَسَبُ
وَدَعْوَى الْإِمَاءِ أُمُوْمِيَّةً فَلَيْسَ بِهَا مِنْ يَمِيْنٍ وَجَبْ

## د "ولي" تفصيلي بيان (کوم خلک د نکاح د ولايت حق لري؟)

وَيَجُوزُ نِكَاحُ الصَّغِيرِ وَالصَّغِيرَةِ او جائز ده نکاح د کوچني [هلک] او کوچنۍ [نجلۍ] إِذَا زَوَّجَهُمَا الْوَلِيُّ [په دې شرط] چې کله ولي د هغو نکاح کړې وي بِكْرًا كَانَتِ الصَّغِيرَةُ أَوْ ثَيِّبًا [برابره ده] صغيره که باکره وي او که ثيبه وي وَالْوَلِيُّ هُوَ الْعَصَبَةُ او "ولي" عصبه دی ايعني له ولي څخه عصبه مراد دی] وَمَالِكٌ يُخَالِفُنَا فِي غَيْرِ الْأَبِ او امام مالک رَحِمَهُ الله زموږ مخالف دی له پلار څخه بغير په نورو کې وَالشَّافِعِيُّ فِي غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله ازموږ مخالف دی] له پلار او نيکه څخه بغير په نورو کې وَفِي الثَّيِّبِ الصَّغِيرَةِ أَيْضًا او په ثيّبه صغيره کې هم [امام شافعي زموږ مخالف دی] وَجْهُ قَوْلِ مَالِكٍ: أَنَّ الْوِلَايَةَ عَلَى الْحُرَّةِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ د امام مالک رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چې پر آزادي ښځې ولايت د ضرورت په وجه ثابت دی وَلَا حَاجَةَ هُنَا لِانْعِدَامِ الشَّهْوَةِ او دلته د شهوت د نشتوالي په وجه هيڅ ضرورت نسته إِلَّا أَنَّ وِلَايَةَ الْأَبِ ثَبَتَتْ نَصًّا بِخِلَافِ الْقِيَاسِ خو د پلار ولايت خلافُ القياس په حديث سره ثابت دی وَالْجَدُّ لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ او نيکه [من کل وجه] د پلار په معنیٰ سره نه دی فَلَا يُلْحَقُ بِهِ نو ځکه به نيکه د پلار سره نه ملحق کېږي قُلْنَا: لَا بَلْ هُوَ مُوَافِقٌ لِلْقِيَاسِ موږ وايو: چې نه! بلکې ولايت د قياس موافق دی لِأَنَّ النِّكَاحَ يَتَضَمَّنُ الْمَصَالِحَ ځکه چې نکاح پر ډېرو مصلحتونو [او فوائدو] مشتمله ده وَلَا تَتَوَفَّرُ إِلَّا بَيْنَ الْمُتَكَافِئَيْنِ عَادَةً او عادتاً دا مصلحتونه په پوره توګه نه سي حاصلېدای مګر د دوو کفؤو په مېنځ کې وَلَا يَتَّفِقُ الْكُفْؤُ فِي كُلِّ زَمَانٍ او کفو هر وخت نه پيښېږي [يعني د ښځې لپاره برابره کفو هر وخت نه پيدا کېږي] فَأَثْبَتْنَا الْوِلَايَةَ فِي حَالَةِ الصِّغَرِ نو ځکه موږ ولايت ثابت کړی د کوچنيوالي په حالت کې إِحْرَازًا لِلْكُفْؤِ د کفو د حفاظت لپاره [چې کفو محفوظه پاته سي] وَجْهُ قَوْلِ الشَّافِعِيِّ: أَنَّ النَّظَرَ لَا يَتِمُّ بِالتَّفْوِيضِ إِلَى غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چې له پلار او نيکه څخه بغير بل چا ته [د ولايت] په سپارلو سره شفقت [او مصلحت] نه پوره کېږي لِقُصُورِ شَفَقَتِهِ وَبُعْدِ قَرَابَتِهِ د شفقت د کموالي او د قرابت د لېرې والي په وجه [يعني د پلار او نيکه له شفقت او قرابت څخه بغير د بل چا شفقت کم وي او قرابت يې لېري وي] وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ التَّصَرُّفَ

فِي الْمَالِ او له همدې کبله [دا بل څوک] مالک نه ګرځي په مال کي د تصرف کولو مَعَ أَنَّهُ أَدْنَى رُتْبَةً سره ددې چي مال د کمي درجې شی دی فَلِأَنْ لَا يَمْلِكَ التَّصَرُّفَ فِي النَّفْسِ نو څرنګه به مالک وګرځي په نفس کي د تصرف کولو وَإِنَّهُ أَعْلَى وَأَوْلَى حال دا چي نفس د لوړي درجې او غوره شی دی وَلَنَا: أَنَّ الْقَرَابَةَ دَاعِيَةٌ إِلَى النَّظَرِ او زموږ دلیل دا دی: چي قرابت د شفقت وطرف ته بلونکی دی [یعني قرابت د شفقت تقاضا کوي] كَمَا فِي الْأَبِ وَالْجَدِّ لکه په پلار او نیکه کي [چي قرابت د شفقت تقاضا کوي] وَمَا فِيهِ مِنَ الْقُصُورِ أَظْهَرْنَاهُ فِي سَلْبِ وِلَايَةِ الْإِلْزَامِ او په هغه [بل چا] کي چي د شفقت کومه کمي ده هغه موږ د ولایت اِلزام په سلبولو کي ښکاره کړې ده [یعني ددې بل چا د شفقت د کمښت علاج دا دی چي د هغه نکاح به لازم نه وي، بلکي تر بلوغت وروسته به نجلی ته د نکاح ماتولو اختیار وي] بِخِلَافِ التَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ په خلاف په مال کي د تصرف کولو فَإِنَّهُ يَتَكَرَّرُ ځکه چي [د مال] تصرف مکرّر کیږي [یعني بار بار په هغه کي تصرف کیږي] فَلَا يُمْكِنُ تَدَارُكُ الْخَلَلِ لهذا [په هغه کي] د خلل تلافي کول ممکن نه دی فَلَا تُفِيدُ الْوِلَايَةُ إِلَّا مُلْزِمَةً نو ځکه به فایده من نه وي دغه ولایت [د تصرّف فی المال] مګر د اِلزام په حالت کي وَمَعَ الْقُصُورِ لَا تَثْبُتُ وِلَايَةُ الْإِلْزَامِ او [د شفقت] د کمښت سره ولایتِ اِلزام نه ثابتیږي وَجْهُ قَوْلِهِ فِي الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ په دویمه مسئله کي د امام شافعي د قول دلیل دا دی أَنَّ الثِّيَابَةَ سَبَبٌ لِحُدُوثِ الرَّأْيِ چي ثیّبه کېدل د رایې د پیدا کېدلو سبب دی لِوُجُودِ الْمُمَارَسَةِ [د خاوند سره] د اختلاط کولو په وجه [یعني د میړه سره د اوسېدلو او یوځای کېدلو په وجه په ثیبه ښځه کي تجربه او رایه پیدا سوې وي] فَأَدَرْنَا الْحُكْمَ عَلَيْهَا تَيْسِيرًا نو ځکه موږ د آسانۍ په خاطر پر "ثیابت" حکم مبني کړی [یعني پر ثیبه کېدلو مو حکم جاري او نافذ کړی] وَلَنَا: مَا ذَكَرْنَا او زموږ دلیل هغه دی کوم چي موږ اخه مخکي] ذکر کړی مِنْ تَحَقُّقِ الْحَاجَةِ وَوُفُورِ الشَّفَقَةِ یعني د ضرورت ثابتېدل او د شفقت پوره کېدل [یعني زموږ دلیل دا دی چي په صغیر او صغیره کي د ولایت ضرورت سته او په پلار او نیکه کي شفقت کامل او پوره دی] وَلَا مُمَارَسَةَ تُحْدِثُ الرَّأْيَ بِدُونِ الشَّهْوَةِ او بېله شهوته اختلاط رایه نه پیدا کوي [یعني نجلی چي تر څو بالغه سوې نه وي نو د خاوند په اختلاط او اوسېدلو سره په هغې کي تجربه او رایه نه پیدا کیږي] فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى الصِّغَرِ نو ځکه به د حکم مدار پر کوچنیوالي وي ثُمَّ الَّذِي يُؤَيِّدُ كَلَامَنَا فِيمَا تَقَدَّمَ قَوْلُهُ

تشریح: ❶ بیا د نبي کریم ﷺ دا قول [هم] زموږ د مخکني کلام تایید کوي «اَلنِّکَاحُ إِلَی الْعَصَبَاتِ» چې نکاح د عصباتو و طرف ته ده [یعني نکاح به عصباتو ته سپارل کیږي] مِنْ غَیْرِ فَصْلٍ [دا حدیث] بغیر له څه تفصیل څخه [وارد سوی] دی وَالتَّرْتِیْبُ فِی الْعَصَبَاتِ فِی وِلَایَةِ النِّکَاحِ کَالتَّرْتِیْبِ فِی الْإِرْثِ او د نکاح په ولایت کې د عصباتو ترتیب د وراثت د ترتیب په څیر دی وَالْأَبْعَدُ مَحْجُوْبٌ بِالْأَقْرَبِ او لیرې عصبه [یعني لیرې ولي] به محروم کیږي د نژدې عصبې په وجه.

**اللغات:** ﴿عَصَبَة﴾ د میراث په تقسیم کې تر ذوی الفروضو وروسته د پاته مال وارثان. ﴿لَا تَتَوَفَّرُ﴾ د تَفَعُّل نفي صیغه ده: پوره کېدل، ډېر زیاتېدل. ﴿مُتَکَافِئَیْن﴾ د تفاعل د باب تثنیه اسم فاعل دی: دوه سیال خلک، دوه کسان چې په نسب او کسب (پېشه) کې سره برابر وي نو یوه ته د بل کفو ویل کیږي. ﴿لَا یَتَّفِقُ﴾ د افتعال د باب نفي صیغه ده: اتفاق کول، موافقت کول، یو کار پېښېدل. ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: ساتل، محفوظه کول (خوندي کول). ﴿النَّظَر﴾ مصلحت (ښېګڼه)، پالیسي، تدبیر، شفقت. ﴿وَلَایَةُ الإِلْزَام﴾ ولایتِ إلزام: د نکاح لازمېدلو ولایت، یعني تر نکاح ترلو وروسته د نکاح لازمېدل او د ماتېدلو اختیار یې ختمېدل دې ته "ولایتِ إلزام" وایي، او که تر بلوغت وروسته د نکاح د ماتېدلو اختیار وي نو هغه ته "ولایتِ اختیار" او "خیارِ بلوغ" وایي، په پلار او نیکه کې ولایتِ إلزام سته او په نورو ولیانو کې خیارِ بلوغ او ولایتِ إجبار سته، ولایتِ الزام نسته، د "ولایتِ إجبار" مطلب دا دی چې نورو ولیانو ته هم دا حق سته چې صغیر او صغیره پر نکاح مجبوره کړي. ﴿تَدَارُک﴾ د تفاعل مصدر دی: جبران، د خلل او نقصان تلافي کول، د نقصان بدله ورکول (د فوت سوي شي د نقصان عوض ورکول، حق ورپوره کول). ﴿مُمَارَسَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: مشق او تمرین کول، مهارت پیدا کول، کوښښ کول. دلته څنې مراد د خاوند سره یو ځای اوسېدل (اختلاط) او د دواده په معاملاتو کې مهارت او تجربه لرل دي. ﴿مَحْجُوْب﴾ د نصر اسم مفعول دی، حَجَبَ یَحْجُبُ حَجْبًا و حِجَابًا: پټول، منع کول، محرومول.

---

● تخریج: لم أجده ذکر الزیلعي فی هذا الحدیث، و لم یجده کثیر من المحققین. او صاحب د اثمار الهدایه هم وایي چې تر ډېر تحقیق وروسته مې دا حدیث پیدا نه کړی، خو دې ته مې نژدې یو دغه "أثر" پیدا کړی: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: إِذَا کَانَ الْعَصَبَةُ أَحَدُهُمْ أَقْرَبَ بِأُمٍّ فَهُوَ أَحَقُّ"، دا اثر هم زموږ د مسلک تائید کوي.

**تشریح:** په دې اوږده عبارت کې فقط دوې مسئلې بیان سوي دي: ① د ولایت حق کوم خلک لري،
② او د ولایت سبب څه شي دی؟ (یعني دا خلک پر کومو کسانو د ولایت حق لري) او دا دواړه مسئلې مختلف فیه دي.

(۱)... اوله مسئله دا ده چي زموږ په نېز هر ولي ته د ولایت حق سته، هغه که پلار وي که نیکه وي یا یو بل ولي وي، د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي له پلار څخه بغیر بل هیڅ ولي ته هم د ولایت حق نسته، هغه که نیکه وي یا بل ولي وي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي فقط پلار او انیکه ته د ولایت حق سته، له دوی څخه بغیر بل هیچا ته نسته.

(۲)... دویمه مسئله دا ده چي زموږ په نېز د ولایت د ثبوت سبب صِغر (کوچنیوالی) دی، برابره ده صغیره (کوچنۍ نجلۍ) باکره وي او که ثیبه وي، په هر صورت کي زموږ په نېز ولي ته پر صغیرې د ولایت حق سته، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ولایت سبب بکارت دی، نو د هغه په نېز ولي ته پر کبیره باکره او پر صغیره باکره د ولایت حق سته، لېکن پر صغیره ثیبه او کبیره ثیبه هغه د ولایت حق نه لري

**د امام مالک دلیل:** په اوله مسئله کي د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي پر آزاد انسان ولایت کول د ضرورت په وجه ثابت دي، او په صغیر او صغیره کي د شهوت د نشتوالي په وجه هیڅ ضرورت نسته، خو څرنګه چي حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه د حضرت عائشې رضي الله عنها نکاح صرف د شپږو کالو په عمر کي د نبي کریم ﷺ سره وکړه، او نبي کریم ﷺ هغه نکاح جائز وګڼله، نو ځکه په دې واقعې سره صرف پلار ته خلافُ القیاس پر لور د ولایت حق حاصل دی، نیکه ته د ولایت حق نسته، ځکه چي نیکه د پلار په معنیٰ سره نه دی، ځکه د پلار په مقابله کي د نیکه شفقت ناقص او کم وي، نو ځکه به نیکه او داسي نورو اولیاؤ ته د ولایت حق حاصل نه وي.

**جواب:** قلنا الخ: د امام مالک د دلیل جواب دا دی چي ولایت خلافُ القیاس ثابت نه دی، بلکي په پوره توګه د قیاس مطابق دی، ځکه چي نکاح پر ډېرو مصالحو او فوائدو مشتمله ده، مثلاً تناسل (بچي پیدا کېدل)، شهوت پوره کېدل او داسي نور، او دا فوائد عموماً د هغه خاوند او ښځي تر مینځ حاصلېدی سي چي دواړه یو د بل کفو او سیال وي، خو څرنګه چي په هره زمانه کي د کفو او سیال پیدا کېدل مشکل دي، نو ځکه د کفو د حفاظت او ساتني په خاطر موږ د کوچني والي په وخت کي پر صغیر او صغیره ولایت ثابت کړی، ځکه که د دوی تر بلوغ پوري انتظار وسي، نو شاید کفو به د لاسه ووځي، یا یوه بله ستونزه به مخته راسي.

**د امام شافعي دليل**: په اوله مسئله کي دامام شافعي دليل دا دی چي د ولايت دوار ومدار پر شفقت دی. او له پلار او نيکه څخه بغير په نورو وليانو کي شفقت او اُلفت ډېر کم وي، نو ځکه به له پلار او نيکه څخه بغير د بل ولي لپاره ولايت ثابت نه وي، همدا وجه ده چي له پلار او نيکه څخه بغير بل ولي ته د صغير او صغيره په مال کي د تصرّف کولو اجازه نسته، لهذا کله چي د مال په څير کمتره او معمولي شي کي بل ولي ته د تصرّف ولايت حاصل نه دی، نو د نفس په څير بهتره او اعلیٰ شي کي به هغه ته څرنګه ولايت حاصل سي !؟.

**زموږ دليل**: دا دی چي مطلقاً قرابت د شفقت او رحمت تقاضا کوي، او څرنګه چي له پلار او نيکه څخه بغير په نورو وليانو کي هم د ولايت سبب يعني قرابت موجود دی، نو ځکه به هغو ته هم د ولايت حق حاصل وي، پاته سوه دا خبره چي له پلار او نيکه څخه بغير په نورو وليانو کي شفقت کم وي، نو د دې کمښت علاج موږ داسي کوو چي پلار او نيکه ته خو "ولايتِ إلزام" او "ولايتِ إجبار" دواړه ورکوو، يعني د دوی تړل سوې نکاح به تر بلوغ وروسته صغير او صغيره بالکل نه سي ماتولای. او له پلار او نيکه څخه بغير نورو وليانو ته فقط "ولايتِ إجبار" ورکوو، يعني هغو ته خو به دا حق وي چي د صغير او صغيره نکاح په جبر (په زوره) وکړي، لېکن د هغو نکاح به لازمي او قطعي نه وي. بلکي صغير او صغيره ته به "خيارِ بلوغ" يعني تر بلوغ وروسته د نکاح ماتولو او فسخ کولو اختيار او حق حاصل وي.

**جواب**: **بخلاف التصرّف إلخ**: د امام شافعي د دليل جواب دا دی چي ولايتِ نکاح پر تصرف فی المال قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په مال کي مکرر تصرف کيږي، او لاس په لاس مال سره بدليږي، نو د صغير او صغيرې لپاره به تر بلوغ وروسته په مال کي د خلل او نقصان تلافي کول ممکن نه وي. ځکه چي د دوی تر بلوغ پوري به خدای خبر کومو خلکو او څومره خلکو ته د دوی مال رسېدلی وي، د دې معلومول او بيا د خلل تدارک او تلافي کول ناممکن دي، نو په دې وجه په تصرف فی المال کي فقط "ولايتِ إلزام" مُفيد دی (ځکه چي په مستقبل کي د خلل تدارک ممکن نه دی)، او مخکي موږ وويل چي له پلار او نيکه څخه بغير بل ولي ته "ولايتِ إلزام" حاصل نه دی، لهذا له پلار او نيکه څخه بغير به بل ولي ته د تصرف في المال ولايت هم حاصل نه وي.

**وجه قوله إلخ**: (۲) دويمه مسئله دا وه چي زموږ په نېز د ولايت سبب صغر دی او د امام شافعي په نېز بکارت دی.

**د امام شافعي دليل**: په دويمه مسئله کي د امام شافعي د دليل حاصل دا دی چي "ثيبه کېدل" (ثيبه والی) د رايي او تجربې د پيدا کېدلو سبب دی، يعني د خاوند سره د اختلاط او جنسي اړيکو په وجه

په ثيبه کې رايه پيدا سي او په پوره توګه په خپل نفع او نقصان پوه سي، نو پر ثيبې د ولايت کولو هيڅ ضرورت نسته هغه له ولايت څخه مستغني ده. نو ځکه موږ پر "ثيبه کېدلو" حکم ولګوی او دا مو ووېل چي تر ثيبه کېدلو وروسته به هيڅا ته پر نجلۍ ولايت حاصل نه وي. هغه که صغيره وي او که کبيره وي.

**زموږ دليل**: په دويمه مسئله کي زموږ دليل دا دی چي په صغير او صغيره کي د ولايت ضرورت هم ثابت دی، او په پلار او نيکه کي شفقت هم کامل دی، لهذا کله چي په صغير او صغيره کي د ولايت تقاضا کونکي شيان موجود دي، نو ځکه به پر دوی هم ولايت ثابتيږي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چي "په صغيره ثيبه کي د ممارست او اختلاط په وجه رايه او تجربه پيدا کيږي" دا خبره موږ نه منو، ځکه کله څه هم ممارست رايه او تجربه پيدا کوي خو بېله شهوته ممارست بېکاره دی رايه او تجربه نه سي پيدا کولای، او په صغيره کي خو هيڅ شهوت نسته، لهذا د هغې ممارست او عدم ممارست دواړه سره برابر دي، نو ځکه به د ولايت د ثبوت لپاره فقط صغر سبب منل کيږي، نه بکارت.

**ثم الذي يؤيد إلخ**: د دې عبارت تعلق د اولي مسئلې سره دی، نه د دويمي مسئلې سره، حاصل يې دا دی چي دا حديث "اَلنِّكَاحُ إِلَى الْعَصَبَاتِ" هم زموږ د دغه خبري تائيد کوي چي له پلار او نيکه څخه بغير نورو وليانو ته د ولايت حق سته، ځکه چي په دې حديث کي د پلار، نيکه او نورو عصباتو (وليانو) هيڅ فرق ذکر سوی نه دی، نو څرنګه چي پلار او نيکه ته ولايت حاصل دی. همدارنګه به نورو وليانو ته هم ولايت (ولايت إجبار) حاصل وي.

**والترتيب في العصبات إلخ**: فرمايي چي د نکاح د ولايت په سلسله کي به د عصباتو هغه ترتيب وي کوم چي په وراثت کي دي. يعني لکه څرنګه چي په وراثت کي اول زوی او لمسی نژدې ولي دی. بيا د پلار نمبر دی. همدارنګه به په نکاح کي هم د وليانو دغه ترتيب وي. خو بايد په ياد مو وي چي په نکاح کي به پلار او نيکه تر زوی او لمسي مخکي کيږي. او د نکاح کولو حق او ولايت به اول پلار او نيکه ته ورکول کيږي. او په نورو وليانو کي به ترتيب د وراثت په څير وي.

او د نژدې ولي (عصبه) په موجوديت کي به ليري ولي (عصبه) له ولايت څخه محروميږي. مثلاً که پلار موجود وي، نو تر هغه ليري ولي يعني نيکه به له ولايت څخه محروم وي، يعني د نجلۍ د نکاح کولو حق او ولايت به پلار ته حاصل وي. نيکه به له دې ولايت څخه بې برخي وي.

## ﴿د ټولو عصباتو شمېر او ترتيب په يوه نقشه کې﴾

په وراثت کې د عصباتو ترتيب په لاندې ډول دی:

| شمېر | عصبه بنفسه | شمېر | عصبه بنفسه |
|---|---|---|---|
| (۱) | زوی | (۱۰) | بيا په مور و پلار شريک اکا |
| (۲) | بيا لمسی | (۱۱) | بيا فقط په پلار شريک اکا |
| (۳) | بيا د زوی لمسی | (۱۲) | بيا په مور و پلار د شريک اکا زوی |
| (۴) | بيا پلار | (۱۳) | بيا فقط په پلار د شريک اکا زوی |
| (۵) | بيا نيکه | (۱۴) | بيا د پلار حقيقي اکا يعني چې په پلار او مور دواړو پې شريک وي |
| (۶) | بيا په مور و پلار شريک ورور (حقيقي ورور) | (۱۵) | بيا د پلار فقط په پلار شريک اکا |
| (۷) | بيا فقط په پلار شريک ورور | (۱۶) | بيا د پلار د حقيقي اکا زوی |
| (۸) | بيا په مور و پلار شريک وراره | (۱۷) | بيا د پلار فقط په پلار د شريک اکا زوی |
| (۹) | بيا فقط په پلار شريک وراره | 〃 | 〃 |

**يادونه:** په دې نقشه کې د عصباتو ترتيب بيان سوی دی، خو په نکاح کې به پلار او نيکه تر زوی او لمسي مخکې کيږي، لکه مخکې چې موږ وويل، نو په نکاح کې به اول د پلار نمبر وي، بيا به د نيکه نمبر وي، نور ترتيب به د نقشې مطابق وي يعني تر نيکه وروسته به د زوی نمبر وي.....إلی آخره.

## د پلار او نيکه د ولايت ځانګړتيا

قَالَ: فَإِنْ زَوَّجَهُمَا الْأَبُ وَالْجَدُّ نو که پلار او نيکه د هغوی دواړو نکاح وکړي [د يو چا سره] يَعْنِي الصَّغِيْرَ وَالصَّغِيْرَةَ يعني د کوچني [نابالغه هلک] او کوچنۍ [نابلغه نجلۍ] [نکاح وکړي د يو چا سره] فَلَا خِيَارَ لَهُمَا بَعْدَ بُلُوْغِهِمَا نو تر بلوغ وروسته هغوی دواړو ته [د نکاح ماتولو] اختيار نسته لِأَنَّهُمَا كَامِلَا الرَّأْيِ وَافِرَا الشَّفَقَةِ ځکه چې پلار او نيکه دواړه د پوره رايې او د بشپړ شفقت خاوندان دي فَيَلْزَمُ الْعَقْدُ بِمُبَاشَرَتِهِمَا نو عقد [د نکاح] به لازميږي د پلار او نيکه په کولو سره كَمَا إِذَا بَاشَرَاهُ بِرِضَاهُمَا بَعْدَ الْبُلُوْغِ لکه [په هغه صورت کې چې هم صغير او صغيرې ته اختيار نسته] کله چې پلار او نيکه تر بلوغت وروسته د هغوی په رضاء سره نکاح کړې وي وَإِنْ زَوَّجَهُمَا غَيْرُ الْأَبِ وَالْجَدِّ او که له پلار او

نيکه ځخه بغير بل ولي [مثلاً وروړ] د هغو نکاح وکړي فَلِكُلٍّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْخِيَارُ إِذَا بَلَغَ نو په هغوی کي هر يوه ته اختيار ستنه کله چي بالغ سي إِنْ شَاءَ أَقَامَ عَلَى النِّكَاحِ وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ که خوښه يې نو پر نکاح دي قائم پاته سي او که خوښه يې وي نو نکاح دي ماته کړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ ❁ او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَااللّٰه په نېز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: لَا خِيَارَ لَهُمَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي: چي هغوی دواړو ته [اوس هم] هيڅ اختيار نسته اعْتِبَارًا بِالْأَبِ وَالْجَدِّ په پلار او نيکه باندي په قياس کولو سره [يعني امام ابو يوسف بل ولي پر پلار او نيکه قياسوي] وَلَهُمَا: أَنَّ قَرَابَةَ الْأَخِ نَاقِصَةٌ او د طرفينو دليل دا دی: چي د وروړ قرابت کم دی وَالنُّقْصَانُ يُشْعِرُ بِقُصُوْرِ الشَّفَقَةِ او د قرابت کمښت د شفقت د کمښت خبر ورکوي فَيَتَطَرَّقُ الْخَلَلُ إِلَى الْمَقَاصِدِ عَسٰى نو [د نکاح] مقاصدو ته د خلل راتلل ممکن دي [يعني د شفقت د کمښت په وجه د نکاح په مقصد او منفعت کي خلل او نقصان راتلل ممکن دي] وَالتَّدَارُكُ مُمْكِنٌ بِخِيَارِ الْإِدْرَاكِ او د دې [خلل] تلافي ممکنه ده په خيار بلوغ سره وَإِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِيْ غَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ يَتَنَاوَلُ الْأُمَّ وَالْقَاضِيَ او [په متن کي] اله پلار او نيکه ځخه بغير په بل ولي کي د حکم مطلق کېدل مور او قاضي ته [هم] شامل دي هُوَ الصَّحِيْحُ مِنَ الرِّوَايَةِ همدا صحيح روايت دی لِقُصُوْرِ الرَّأْيِ فِيْ أَحَدِهِمَا ځکه چي له دغه دواړو ځخه په يوه کي د رايي کمي ده [چي هغه مور ده] وَنُقْصَانِ الشَّفَقَةِ فِي الْآخَرِ او په بل کي د شفقت کمي ده [چي هغه قاضي دی] فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به اختيار [خيار بلوغ] ورکول کيږي.

**اللغات:** ﴿فَيَتَطَرَّقُ﴾ د تفعّل مضارع ده: راتلل، لاره لټول. ﴿يُشْعِرُ﴾ د افعال مضارع ده: احساس ورکول، اطلاع او خبر ورکول. ﴿نُقْصَانٌ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کمي (کمښت).

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي، اوله مسئله پر ولايت إلزام متفرّع ده. او دويمه مسئله پر ولايت إجبار متفرّع ده.

(۱)... د اولي مسئلي حاصل دا دی چي پلار او نيکه ته د ولايت إجبار سره ولايت إلزام هم حاصل دي (د ولايت إجبار مختصر مطلب دا دی چي د پلار او نيکه تړل سوې نکاح په هغه ګړي نافذيږي

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَااللّٰه، كما ذكر فی رد المحتار (ج:۲، ص:۳۳۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۶]

لیکن تر بلوغ وروسته یې د ماتولو اختیار ستـه، او د ولایت إلزام مطلب دا دی چې د دوی نکاح لازمیږي تر بلوغ وروسته یې د ماتولو هیڅ اختیار نسته). نو که د صغیر او صغیرې نکاح پلار یا نیکه وکړې، نو دا نکاح لازمیږي، او تر بلوغ وروسته به صغیر او صغیرې ته د نکاح ماتولو هیڅ اختیار (خیارِ بلوغ) حاصل نه وي؛ دلیل دا دی چې اول خو پلار او نیکه ته ولایتِ إلزام حاصل دی. او بل دا چې د نورو ولیانو په نسبت د پلار او نیکه رایه پخه او شفقت یې کامل وي، ځکه چې د دوی په هکله دا خبره یقیني ده چې دوی د صغیره او صغیرې په حق کې هیڅ ډول بې پروايي او غفلت نه کوي، نو ځکه به د دوی نکاح هم نافذیږي او هم به لازمیږي، لکه څرنګه چې په هغه وخت کې هم د دوی نکاح لازمیږي، کله چې دوی تر بلوغ وروسته د صغیر او صغیرې نکاح د هغو په رضا او اجازه سره وکړي.

وإن زوجها غير الأب: (٢)... د دویمې مسئلې حاصل دا دی چې که له پلار او نیکه څخه بغیر بل ولي (مثلاً ورور) د صغیر او صغیرې نکاح وکړي، نو د طرفینو په نېز خو دا نکاح نافذیږي لیکن لازمیږي نه، او د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دغه بل ولي نکاح د پلار او نیکه په څیر هم نافذیږي او هم لازمیږي.

**د طرفینو دلیل**: دا دی چې د پلار او نیکه په مقابله کې د بل ولي (مثلاً د ورور) قرابت ناقص او کم دی، او ناقص قرابت د ناقص شفقت دلیل دی، ځکه کله چې قرابت کم وي، نو په شفقت کې هم کمي راځي، نو د شفقت د نقصان او کمښت په وجه د بل ولي په نکاح کې د خلل واقع کېدل ممکن دي (ځکه چې د شفقت د کمښت په وجه د هغه په هکله دا امکان سته چې هغه به له غفلت او سستي څخه کار واخلي او د صغیر او صغیرې نکاح به په نالائق ځای کې وکړي)، نو ځکه به د هغه نکاح فقط نافذیږي، خو لازمیږي به نه. او د دې خلل د تلافي او تدارک لپاره به صغیر او صغیرې ته خیارِ بلوغ ورکول کیږي. یعني که تر بلوغ وروسته د هغو دا نکاح خوښه سي نو خپله نکاح دې باقي پرېږدي. او که خوښه یې نه سي نو ماته دې یې کړي.

وإطلاق الجواب إلخ: په دې متن "وَإِنْ زَوَّجَهُمَا... فَلِكُلٍّ وَاحِدٍ...الخ" کې چې دا خبره ذکر سوه چې له پلار او نیکه څخه بغیر د بل ولي په نکاح کې صغیر او صغیرې ته دا حق سته چې تر بلوغ وروسته د هغه نکاح ماته کړي (یعني د خیارِ بلوغ حق ورته حاصل دی)، نو په دې عبارت "وإطلاق الجواب...إلخ" کې دا خبره بیانوي چې په دغه خیارِ بلوغ کې مور او قاضي هم شامل دي. یعني که دوی د صغیر او صغیرې نکاح وکړي، نو هغه خو نافذیږي، لېکن تر بلوغ وروسته به صغیر او صغیرې ته به دا حق او اختیار وي چې د مور او قاضي ترل سوې نکاح ماته کړي. همدا صحیح روایت دی.

صاحب د هدايې په "هو الصحيح" سره د امام صاحب له يو روايت څخه احتراز کړی دی. او هغه دا چې که قاضي د يوې يتيمې صغيرې نکاح وکړي، نو هغې ته د خيارِ بلوغ حق نه حاصليږي چې تر بلوغ وروسته نکاح ماته کړي، ځکه چې د قاضي ولايت د پلار د ولايت په څېر عام او تام (کامل) دی، او پلار ته ولايتِ إلزام حاصل دی يعني که هغه د صغير او صغيرې نکاح وکړي نو بيا صغير او صغيرې ته د خيارِ بلوغ حق نه حاصليږي بلکې د پلار نکاح پر هغو لازميږي، نو همدارنګه به قاضي (او مور) ته هم ولايتِ إلزام حاصل وي.

د صحيح روايت دليل دا دی چې د ولايتِ إلزام لپاره دوه شيان ضروري دي: ① کامله او پخه رايه، ② کامل شفقت، که دا دواړه شيان موجود وي نو ولايتِ إلزام حاصليږي، او که فقط يو شی موجود وي، نو فقط ولايتِ إجبار حاصليږي، او په قاضي کې فقط يو شی سته چې هغه کامله رايه ده کامل شفقت پکښې نسته، ځکه چې په هغه کې قرابت نسته. او په مور کې هم فقط يو شی سته چې هغه کامل شفقت دی او کامله رايه پکښې نسته، ځکه چې ښځې ناقصاتُ الفهمه دي، لهذا قاضي او مور ته به فقط ولايتِ أجبار حاصليږي، نه ولايتِ إلزام، يعني نکاح خو به يې نافذيږي، لېکن تر بلوغ وروسته به صغير او صغيرې ته د نکاح فسخ کولو (ماتولو) حق او اختيار حاصل وي.

## د "خيارِ بلوغ" بيان

وَيُشْتَرَطُ فِيهِ الْقَضَاءُ او په دې [خيارِ بلوغ سره د نکاح په ماتولو] کې [د قاضي] قضاوت شرط دی بِخِلَافِ خِيَارِ الْعِتْقِ په خلاف د خيارِ عتق لِأَنَّ الْفَسْخَ هٰهُنَا لِدَفْعِ ضَرَرٍ خَفِيٍّ ځکه چې دلته [په خيارِ بلوغ کې] د نکاح ماتېدل د پټ ضرر لېرې کولو لپاره دي وَهُوَ تَمَكُّنُ الْخَلَلِ او پټ ضرر د خلل ځای نيول دي [يعني له پټ ضرر څخه مراد هغه خلل دی چې د شفقت د نقصان په وجه په نکاح کې راغلی وي] وَلِهٰذَا يَشْمُلُ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى له همدې وجهې مذکر او مؤنث دواړو ته [خيارِ بلوغ] شامليږي [يعني دواړو ته خيارِ بلوغ حاصليږي] فَجُعِلَ إِلْزَامًا فِي حَقِّ الْآخَرِ لهذا دا [د خلل راتلل] به د بل ولي په حق کې إلزام [تهمت] منل کيږي فَيَفْتَقِرُ إِلَى الْقَضَاءِ نو ځکه به [په دې کې د قاضي] قضاوت ته ضرورت وي وَخِيَارُ الْعِتْقِ لِدَفْعِ ضَرَرٍ جَلِيٍّ او خيارِ عتق د ښکاره [واضح] ضرر د لېرې کولو لپاره دی وَهُوَ زِيَادَةُ الْمِلْكِ عَلَيْهَا او هغه پر مېنځې د ملک زياتېدل دي وَلِهٰذَا يَخْتَصُّ بِالْأُنْثٰى له همدې وجهې هغه د مؤنث سره خاص دی

فَاعْتُبِرَ دَفْعًا لهذا هغه به دفع مثل کیږي [د زيادةُ الملک لپاره] وَالدَّفْعُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى الْقَضَاءِ او دفع و قضاوت ته محتاج نه ده [يعني په دفع کي د قاضي فيصلې ته ضرورت نشته].

**اللغات:** ﴿قَضَاء﴾ د قاضي فيصله، قضاوت، ﴿فَسْخ﴾ د فتح مصدر دی: ماتول، ختمول، له منځه وړل، ﴿تَمَكُّن﴾ د تفعّل مصدر دی: ځای نيول، قرار نيول، قدرت حاصلول، ﴿يَفْتَقِرُ﴾ د افتعال مضارع ده: محتاج کېدل، اړېدل، ﴿خِيَارِ عِتْق﴾ منکوحه مينځه چي کله آزاده کړی سي، نو هغې ته د نکاح ماتولو اختيار حاصلیږي، همدغه اختيار ته "خيارِ عتق" وايي، ﴿جَلِي﴾ واضح، څرګند، روښانه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که صغير او صغيره وغواړي چي له پلار او نيکه څخه بغير د بل ولي نکاح فسخ (ماته) کړي (يعني که صغير او صغيره د خيارِ بلوغ په وجه خپل نکاح ماتول وغواړي) نو دا نکاح فقط د صغير او صغيره په ماتولو سره نه ماتيږي، بلکي دوی به د قاضي دربار ته ځي او د هغه په حکم او قضاء سره به نکاح ماتوي.

**بخلاف خيار العتق:** لېکن په خيارِ عتق کي د نکاح ماتولو لپاره د قاضي قضاوت ضروري نه دی، يعني که يوه مينځه د خپل مالک په نکاح کي وي بيا مالک هغه آزاده کړي، او تر آزادولو وروسته مينځه وغواړي چي نکاح ماته کړي، نو د هغې لپاره د قاضي دربار ته تلل او د هغه په قضاء (فيصلې) سره نکاح ماتول هيڅ ضروري نه دي، بلکي که هغه په خپله نکاح ماته کړي او مالک ته ووايي چي زه ستا سره نکاح ماتوم، نو د هغې نکاح ماته سوه.

د خيارِ بلوغ او خيارِ عتق په مينځ کي د فرق وجه څه ده؟ له دې څخه مخکي تاسي په دې قاعده ځان پوه کړئ! چي له خپل ځان څخه د ضرر دفع کولو لپاره د قاضي قضاء (فيصله) شرط نه ده، لېکن پر بل چا د إلزام (تهمت) لګولو لپاره د قاضي قضاء شرط ده، ځکه چي د إلزام دفع کول د قاضي منصب دی، د عامو خلکو کار نه دی.

نو د خيارِ بلوغ او خيارِ عتق په مينځ کي د فرق وجه دا ده چي په خيارِ بلوغ کي د پټ (خفي) ضرر د دفع کولو لپاره نکاح ماتيږي، يعني له پلار او نيکه څخه پرته د بل ولي د شفقت د کمښت او نقصان په وجه چي په نکاح کي کوم خلل واقع سوی دی، د هغه خلل د ليري کولو لپاره نکاح ماتيږي (دې ته پټ او خفي ضرر ځکه وايي چي دا واضح ضرر او غلطي نه ده، بلکي فقط د دې ضرر وهم سته چي د غه بل ولي به غلط او نا مناسبه ځای نکاح کړې وي نو ځکه دې ته خفي او وهمي ضرر وايي)، او څرنګه چي دا وهم او خفي ضرر د مذکر او مؤنث (نر او ښځي) دواړو په حق کي واقع کېدای سي، نو

ځکه به دا خيارِ بلوغ دواړو (يعني بالغ صغير، او بالغې صغيرې دواړو) ته ورکول کيږي. اوس چې تر بلوغ وروسته (په خيارِ بلوغ سره) صغير او صغيره د خفي ضرر په وجه د نکاح ماتول وغواړي. نو د دې مطلب دا دی چې صغير او صغيره پر ولي إلزام (او تهمت) لګوي چې زموږ ولي په نا مناسبه ځای کې زموږ نکاح کړې ده. او إلزام دفع کول د قاضي منصب دی، نو په دې وجه به په خيارِ بلوغ کې د نکاح د ماتولو لپاره د قاضي حکم او قضاء شرط او ضروري وي.

او په خيارِ عتق کې د واضح ضرر د ليرې کولو لپاره نکاح ماتيږي، ځکه چې د مينځې تر آزادولو مخکې مالک فقط د دوو طلاقو مالک وي، ليکن د هغې تر آزادولو وروسته د مالک ملکيت زيات سي او د دريو طلاقو مالک سي، او دا د مينځې په حق کې واضح ضرر دی (پټ او وهمي ضرر نه دی، لکه په خيارِ بلوغ کې چې د بل ولي په حق کې فقط د نامناسبه ځای وهم وو)، او څرنګه چې دغه واضح ضرر د مينځې په حق کې واقع کيږي د غلام په حق کې نه سي واقع کېدلای، نو ځکه به خيارِ عتق فقط مينځې ته ورکول کيږي. اوس چې تر بلوغ وروسته هغه د دغه واضح ضرر په وجه نکاح ماتول وغواړي نو بنکاره خبره ده چې په دې کې پر مالک هيڅ إلزام نسته بلکې په دې کې له خپل ځان څخه ضرر دفع کول دي، او مخکې موږ ويل چې له خپل ځان څخه د ضرر دفع کولو لپاره د قاضي قضاء شرط نه ده، نو ځکه به په خيارِ عتق کې د نکاح ماتولو لپاره د قاضي قضاء شرط او ضروري نه وي.

## په "خيارِ بلوغ" کې جهالت (ناخبرتيا) عذر نه دی

ثُمَّ عِنْدَهُمَا إِذَا بَلَغَتْ الصَّغِيرَةُ بيا د طرفينو په نيز چې کله صغيره بالغه سي وَقَدْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ په داسې حال کې چې په نکاح خبره وي فَسَكَتَتْ او چوپه سي [يعني په نکاح خبره وي او تر بلوغ وروسته سکوت اختيار کړي] فَهُوَ رِضًا نو دا [سکوت د هغې له طرفه] رضاء ده [يعني د هغې رضامندي به ګڼل کيږي] وَإِنْ لَمْ تَعْلَمْ بِالنِّكَاحِ او که په نکاح خبره نه وي فَلَهَا الْخِيَارُ نو هغې ته به [تر هغه وخته] اختيار وي حَتَّى تَعْلَمَ فَتَسْكُتَ تر دې چې [په نکاح] خبره سي او [بيا] چوپه سي شُرِطَ الْعِلْمُ بِأَصْلِ النِّكَاحِ په أصل نکاح باندې خبرېدل [ځکه] شرط کړی سو لِأَنَّهَا لَا تَتَمَكَّنُ مِنَ التَّصَرُّفِ إِلَّا بِهِ ځکه چې دا [صغيره بالغه] تصرف کولای نه سي مګر په خبرېدلو سره په اصل نکاح باندې وَالْوَلِيُّ يَتَفَرَّدُ بِهِ او ولي يوازې [هم] د هغې نکاح کولای سي فَعُذِرَتْ بِالْجَهْلِ نو دا [صغيره بالغه] به معذوره ګڼل کيږي [په نکاح] د ناخبرۍ په وجه وَلَمْ يُشْتَرَطِ الْعِلْمُ بِالْخِيَارِ او په "خيارِ بلوغ" خبرېدل [ځکه] شرط نه کړی سو لِأَنَّهَا تَتَفَرَّغُ لِمَعْرِفَةِ أَحْكَامِ الشَّرْعِ ځکه چې دا [صغيره] د شرعي احکامو د پېژندلو [زده کولو] لپاره

ځان فارغولای سي وَالدَّارُ دَارُ الْعِلْمِ او دارُ الإسلام د علم کور دی [یعني هر ځای د زده کړې ذرائع پکښې سته] فَلَمْ تُعْذَرْ بِالْجَهْلِ نو ځکه به معذوره نه ګڼل کیږي [په خیارِ بلوغ] د ناخبرۍ په وجه بِخِلَافِ الْمُعْتَقَةِ په خلاف د آزادي کړی سوي مینځې لِأَنَّ الْأَمَةَ لَا تَتَفَرَّغُ لِمَعْرِفَتِهَا ځکه چې مینځه د شرعي احکامو د پیژندني لپاره ځان نه سي فارغولای [ځکه چې هغه ټوله وخت د مالک په خدمت مشغوله وي] فَتُعْذَرُ بِالْجَهْلِ بِثُبُوتِ الْخِيَارِ نو ځکه به معذوره ګڼل کیږي په ثبوتِ خیار د ناخبرۍ په وجه [یعني که هغه په دې خبره نه وي چې زما لپاره خیارِ عتق ثابت دی نو په دې باره کي به هغه معذوره شمارل کیږي].

**اللغات:** ﴿لَا تَتَمَكَّنُ﴾ د تفعّل نفي صیغه ده: قدرت نه سي حاصلولای (یعني تصرف نه سي کولای)، ﴿يَتَفَرَّدُ﴾ د تفعّل مضارع ده: یوازي کېدل، یو کار یوازي کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د صاحبینو په نېز که صغیره له مخکي څخه خبره وي چي زما نکاح د چا سره سوې ده، او تر بلوغ وروسته هغه خاموشي (سکوت) اختیار کړي، نو دا سکوت به د هغې له طرفه رضامندي او اجازه شمارل کیږي، او بیا به هغې ته د نکاح ماتولو اجازه نه وي، او که هغه له مخکي څخه بالکل په دې خبره نه وي چي زما نکاح سوې ده او که نه، او په همدې ناخبرۍ کي بالغه سي، نو په دې صورت کي به تر هغه وخته د نکاح ماتولو او نه ماتولو اختیار (یعني خیارِ بلوغ) ورته حاصل وي تر څو چي هغه په أصل نکاح خبرېږي، نو کله چي هغه په أصل نکاح خبره سي او په هغه ګړي خاموشي (سکوت) اختیار کړي، نو دا به هم د هغې رضامندي او اجازه ګڼل کیږي، او تر دې وروسته به د هغې لپاره د نکاح ماتولو اجازه نه وي.

**شرط العلم بأصل إلخ:** فرمایي چي په أصل نکاح د خبرېدلو شرط په دې وجه صاحبینو لګولی دی، ځکه چي ولي یوازي په یوازي (یک تنها) د صغیرې د نکاح مالک دی، یعني د صغیرې له اجازت څخه بغیر او د هغې له خبرولو څخه بغیر هم د هغې نکاح کولای سي، او صغیرې ته هغه وخت خیارِ بلوغ حاصلیږي یعني هغه وخت د نکاح ماتولو او نه ماتولو تصرف کولای سي کله چي هغې ته معلومه وي چي زما نکاح د چا سره سوې ده، له علم او خبر څخه بغیر به هغې ته څرنګه خیارِ بلوغ او د تصرّف کولو حق حاصل سي !؟، لهذا په أصل نکاح تر خبرېدلو پوري به هغه معذوره ګڼل کیږي، او کله چي هم هغه په أصل نکاح خبره سي نو په هغه ګړي به هغې ته د خیارِ بلوغ حق حاصلیږي.

ولم يشترط العلم: فرمایي چې د صغیرې په حق کې خو د "علم بأصل النکاح" شرط ولګول سو. لېکن د "علم بخيار البلوغ" شرط نه ولګول سو، یعني که صغیره په دې خبره وي چې زما نکاح د فلانکي سره سوې ده لېکن په دې خبره نه وي چې تر بلوغ وروسته شریعت ما ته د خیارِ بلوغ حق راکړی دی، نو په داسي صورت کي به تر بلوغ وروسته د صغیرې سکوت رضامندي ګڼل کیږي او د هغې په سکوت سره به پر هغې نکاح لازمیږي او تر سکوت وروسته به هغې ته خیارِ بلوغ نه ورکول کیږي او په دې ناخبری سره به هغه معذوره نه ګڼل کیږي (حال دا چې په أصل نکاح د ناخبری په صورت کي صغیره معذوره ګڼل کیږي، او په هغه وخت کي د هغې سکوت رضامندي ګڼل کیږي کله چې هغه په أصل نکاح خبره سي، د دې څه وجه ده؟)، دا ځکه چې صغیره د دارُ الاسلام اوسېدونکې ده، او په دارُ الاسلام کي هر ځای د زده کړې او ښوونې ذرائع سته، او دغه ټول مسئلې په عامه توګه په دارُ الاسلام کي مشهوره وي، او د آزاد والي په وجه صغیره د داسي مسئلو د معلومولو لپاره ځان هم فارغولای سي، نو د دې باوجود که هغه غفلت او سستي اختیار کړي او دا مسئلې ځان ته معلومې نه کړي، نو معذوره به نه ګڼل کیږي، نو په دې وجه د هغې په حق کي د "علم بخيار البلوغ" شرط لګول سوی نه دی.

بخلاف المعتقة إلخ: د دې په خلاف که یوه مینځه آزاده سي، او هغه په دې خبره نه وي چې تر آزادی وروسته ما ته د نکاح ماتولو اختیار (خیارِ عتق) حاصل دی، نو د هغې سکوت به رضامندي نه ګڼل کیږي یعني که تر آزادېدلو وروسته هغه سکوت اختیار کړي نو دا به د هغې د رضامندی دلیل نه ګڼل کیږي (یعني د مالک سره به د هغې نکاح نه لازمیږي) بلکي د هغې سکوت به هغه وخت د رضامندی دلیل ګڼل کیږي کله چې هغه د خیارِ عتق په مسئله خبره سي، د دې وجه دا ده چې مینځه ټوله وخت د خپل مالک په خدمت او چوپړ کي مشغوله وي، نو ممکنه ده چې د دې مسئلو د معلومولو لپاره به یې وخت پیدا کړی نه وي، نو ځکه به معذوره ګڼل کیږي تر دې چې خبره سي، او تر خبرېدولو وروسته به هغې ته د "خیارِ عتق" حق ورکول کیږي، او د هغې سکوت او عدمِ سکوت ته به کتل کیږي.

## د "خیارِ بلوغ" د باطلېدلو صورتونه

ثُمَّ خِيَارُ الْبِكْرِ يَبْطُلُ بِالسُّكُوتِ بیا د باکرې خیار په چوپېدلو سره باطلیږي وَلَا يَبْطُلُ خِيَارُ الْغُلَامِ او د هلک خیار [تر هغه وخته] نه باطلیږي مَا لَمْ يَقُلْ رَضِيتُ تر څو چې نه ووایي: رَضِيتُ ازه په دې نکاح راضي یم! أَوْ يَجِيءُ مِنْهُ مَا يُعْلَمُ أَنَّهُ رِضًا یا [تر څو چې] د هغه له طرفه یو داسي شی [إقدام] واقع نه سي

چي له هغه څخه رضاء معلومه سي [چي هلک راضي دی] وَكَذٰلِكَ الْجَارِيَةُ إِذَا دَخَلَ بِهَا الزَّوْجُ قَبْلَ الْبُلُوغِ او همدارنګه د هغه [ثيبه] نجلۍ [خيار باطليږي] کله چي تر بلوغ مخکي خاوند په هغې دخول کړی وي اِعْتِبَارًا لِهٰذِهِ الْحَالَةِ بِحَالَةِ ابْتِدَاءِ النِّكَاحِ په قياسولو سره د دې حالت د نکاح د شروع پر حالت باندي وَخِيَارُ الْبُلُوغِ فِي حَقِّ الْبِكْرِ لَا يَمْتَدُّ إِلَى آخِرِ الْمَجْلِسِ او "خيار بلوغ" د باکرې په حق کي د مجلس تر آخره پوري نه اوږديږي وَلَا يَبْطُلُ بِالْقِيَامِ فِي حَقِّ الثَّيِّبِ وَالْغُلَامِ او د ثيبې او هلک په حق کي [له مجلس څخه] په ولاړېدلو سره نه باطليږي لِأَنَّهُ مَا ثَبَتَ بِإِثْبَاتِ الزَّوْجِ ځکه چي "خيارِ بلوغ" نه دی ثابت سوی د خاوند په ثابتولو سره بَلْ لِتَوَهُّمِ الْخَلَلِ بلکي د خلل [او ضرر] د وهم په وجه [ثابت سوی دی] فَإِنَّمَا يَبْطُلُ بِالرِّضَا نو ځکه به هغه په رضامندۍ سره باطليږي غَيْرَ أَنَّ سُكُوتَ الْبِكْرِ رِضًا خو د باکرې سکوت [هم] رضامندي ده بِخِلَافِ خِيَارِ الْعِتْقِ په خلاف د "خيارِ عتق" لِأَنَّهُ ثَبَتَ بِإِثْبَاتِ الْمَوْلَى ځکه چي "خيارِ عتق" د مالک په ثابتولو سره ثابت سوی دی وَهُوَ الْإِعْتَاقُ او هغه آزادول دي [يعني د مالک په آزادولو سره د مينځي لپاره خيارِ عتق ثابت سوی دی] فَيُعْتَبَرُ فِيهِ الْمَجْلِسُ نو ځکه به په هغه کي د مجلس اعتبار کيږي كَمَا فِي خِيَارِ الْمُخَيَّرَةِ لکه څرنګه چي د مُخيّرې ښځي په اختيار کي [د مجلس اعتبار کيږي].

**اللغات:** ﴿غُلَام﴾ هلک، ځوان، جمع: غِلْمَان، ﴿جَارِيَة﴾ نجلۍ (انجلۍ، جلۍ)، مينځه، جمع: جَارِيَات، ﴿لَا يَمْتَدّ﴾ د افتعال نفي صيغه ده: اوږدېدل، کشېدل، (غوړېدل).

**تشريح:** تر دې مخکي کي چي کوم دا خبره سوه: "وَلِهٰذَا يَشْمُلُ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى" (چي خيارِ بلوغ مذکر او مؤنث (نر او ښځي) دواړو ته حاصليږي) په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله پر هغه خبري درې مسئلې متفرع کوي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که باکرې نجلۍ (صغيرې) ته تر بلوغ وروسته د نکاح خبر ورسيږي چي زما نکاح د فلانکي سره سوې ده، نو په کوم مجلس کي چي نجلۍ په دې خبره سي، که په هغه مجلس کي چپه سي او سکوت اختيار کړي، نو دا سکوت به د هغې له طرفه رضامندي او اجازه ګڼل کيږي، او خيارِ بلوغ به يې ساقطيږي. (۲)... دويمه مسئله دا ده که هلک (صغير) ته تر بلوغ وروسته د نکاح خبر ورسيږي چي زما نکاح د فلانۍ نجلۍ سره سوې ده، نو د هغه په سکوت او چپيدلو سره به خيارِ

بلوغ نه ساقطيږي، د هغه خيارِ بلوغ به هغه وخت ساقطيږي کله چي په خوله سره ووايي "رَضِيْتُ" (يعني چي زه په دغه نکاح راضي يم) يا يو داسي إقدام وکړي چي په هغه سره د ده رضامندي ښکاره سي، مثلاً ښځي ته مهر ورکړي يا خلګو ته د ډوډۍ دعوت ورکړي يا مثلاً د ښځي سره جماع وکړي. لېکن که هغه په خوله سره يا په يو إقدام سره خپله رضامندي ښکاره نه کړي، نو د هغه خيارِ بلوغ به نه ختميږي، بلکي خيارِ بلوغ به يې تر اوسه پاته وي. (۳)... دريمه مسئله دا ده که يوه نابالغه نجلۍ د يو چا په نکاح کي وي او د هغه په وطي سره ثيّبه ګرځېدلې وي، او وروسته د هغه له نکاح څخه ووځي، بيا ولي د هغې نکاح په ناخبرۍ کي د بل چا سره وکړي او د نکاح خبر هغې ته تر بلوغ وروسته ورسيږي، نو په دې صورت کي به د هغې سکوت د رضامندۍ دليل نه ګڼل کيږي او فقط په سکوت سره به د هغې خيارِ بلوغ نه ساقطيږي ځکه چي هغه ثيّبه ده، بلکي خيارِ بلوغ به يې هغه وخت ساقطيږي کله چي په خوله سره ووايي چي "زه په دې نکاح راضي يم" يا يو داسي اقدام وکړي چي په هغه سره د هغې رضامندي معلومه سي، مثلاً د خاوند مهر قبول کړي يا داسي نور.

**دليل**: د دې ټولو مسئلو دليل قياس دی، يعني دا مسئلې د نکاح د ابتداء پر حالت باندي قياسول کيږي، يعني څرنګه چي له باکرې بالغې څخه د اجازه غوښتلو په وخت کي د هغې سکوت د رضامندۍ دليل ګڼل کيږي، همداسي به د باکرې صغيرې د خبرېدلو په وخت کي د هغې سکوت تر بلوغ وروسته د رضامندۍ دليل ګڼل کيږي. او خيارِ بلوغ به ځني ساقطيږي.

او لکه څرنګه چي له هلک او ثيبه نجلۍ څخه د اجازه غوښتلو په وخت کي د هغو سکوت د رضامندۍ دليل نه ګڼل کيږي بلکي په خوله سره به د رضامندۍ صراحت کوي، همداسي به د صغير هلک او صغيره ثيبې سکوت تر بلوغ وروسته د رضامندۍ دليل نه ګڼل کيږي او خيارِ بلوغ به يې نه ساقطيږي، بلکي هغوی به په خوله سره د رضامندۍ صراحت کوي يا يو داسي إقدام به کوي کوم چي پر رضامندۍ دلالت کوي.

**وخيار البلوغ في حق إلخ**: په دې عبارت کي يو بله مسئله بيانوي، هغه دا چي د باکرې په حق کي خيارِ بلوغ د مجلس تر آخره پوري نه پاتيږي، بلکي په کوم مجلس کي چي هغې ته د نکاح خبر ورسيږي نو په هغه مجلس کي به محض د هغې په سکوت سره د هغې خيارِ بلوغ ساقطيږي، همدارنګه که هغه مخکي په نکاح خبره وي نو په کوم مجلس کي چي هغه بالغه سي (يعني د حيض وينه ووينې)، نو د وينې تر ليدلو وروسته به محض د هغې په سکوت سره د هغې خيارِ بلوغ ساقطيږي.

لېکن د هلک او ثيّبې خيارِ بلوغ نه فقط دا چي تر مجلس تر آخره پوري پاتيږي، بلکي د مجلس تر ختمېدلو وروسته به هم د هغو خيارِ بلوغ نه ساقطيږي او تر هغه وخته به پاته وي تر څو چي په خوله سره د رضاء يا انکار صراحت نه وکړي.

**لانه ما ثبت...بخلاف خيار العتق إلخ**: په دې سره د پورتنۍ مسئلې عقلي دليل بيانوي، او د دليل په ضمن کې دوې قاعدې هم بيانوي، تاسو اول په قاعدو ځان پوه کړئ! ځکه چې دا عبارت څه مغلق دی، تر قاعدو وروسته به د دليل تشريح وسي: (۱) اوله قاعده دا ده چې که د نکاح ماتولو اختيار يو چا ته په خپله حاصل نه وي، بلکې د بل چا په ورکولو ورته حاصل سي، نو داسې اختيار فقط د مجلس تر آخره پورې پاتيږي، تر مجلس وروسته ساقطيږي، او که په مجلس کې دننه له داسې اختيار څخه اعراض وسي، نو په مجلس کې دننه هم ساقطيږي. ① د دې اول مثال دا دی چې مثلاً يوه مينځه د مالک په نکاح کې وي او بيا مالک هغه آزاده کړي، نو دا تاسې ته معلومه ده چې تر آزادېدلو وروسته هغې ته خيارِ عتق حاصليږي (يعنې د نکاح ماتولو اختيار ورته حاصليږي)، نو څرنګه چې دغه خيارِ عتق بل چا يعنې مالک ورکړی دی (ځکه چې هغه آزاده کړه)، نو ځکه به دا اختيار فقط د مجلس تر آخره پاته وي، که په مجلس کې دننه هغه نکاح ماته او فسخ کړي نو فسخ کول به يې صحيح وي، لېکن که مجلس ختم سي، نو بيا به د هغې دغه اختيار ختميږي او ساقطيږي. ② دويم مثال دا دی که خاوند ښځې ته د طلاق اختيار ورکړي (يعني "إِخْتَارِي نَفْسَكِ" ورته ووېل)، نو څرنګه چې دغه اختيار بل چا يعني خاوند ورکړی دی او په خپله هغې ته نه دي حاصل سوی، نو ځکه به دا اختيار تر همدغه مجلس پورې پاته وي، تر مجلس وروسته به هغې ته د طلاق اختيار نه وي.

(۲) دويمه قاعده دا ده چې کوم اختيار په خپله يو چا ته حاصل وي، د بل چا په ورکولو ورته حاصل نه وي، نو هغه د مجلس سره نه خاص کيږي، بلکې تر مجلس وروسته هم پاتيږي، لکه "خيارِ بلوغ" چې د بل چا په ورکولو سره نه حاصليږي، بلکې "د ضرر د وهم" د ليرې کولو لپاره په خپله حاصليږي (د ضرر له وهم څخه مراد دغه وهم دی چې شايد ولي به غلط او نامناسبه ځای نکاح کړې وي، نو د دې نقصان د ليرې کولو لپاره "اختيارِ بلوغ" په خپله حاصليږي)، نو په دې وجه به دغه اختيار تر مجلس وروسته هم پاته وي.

**دليل**: اوس د دليل تشريح دا ده چې ثيّبې ښځې ته خيارِ بلوغ د خاوند په ثابتولو او ورکولو سره نه دي حاصل سوی (همدارنګه هلک ته هم د بل چا په ورکولو سره نه دي حاصل سوی)، بلکې د دې وهم په وجه دوی ته خيارِ بلوغ حاصل دی چې شايد ولي به د دوی نکاح غلط ځای کړې وي او خلل به پکښې واقع سوی وي، نو ګواکې دغه اختيار "خيارِ بلوغ" دوی ته په خپله حاصل سوی او ثابت سوی دی، نو ځکه به تر مجلس وروسته هم اختيار ورته حاصل وي، او تر څو چې په خوله "رَضِيْتُ" نه ووايي، تر هغه وخته به يې اختيار نه ساقطيږي، او با کرې ته هم د بل چا په ثابتولو او ورکولو سره خيارِ بلوغ نه دي حاصل سوی، بلکې د پورتني وهم په وجه ورته حاصل دی، خو څرنګه

چې د باکرې سکوت د رضامندۍ دلیل دی، نو په دې وجه که هغه په کوم مجلس کې په نکاح خبره سي او تر خبرېدلو وروسته محض ساکته او خاموشه سي، نو په هغه مجلس کي دننه د هغې خیارِ بلوغ ساقطیږي، او تر مجلس وروسته به هغې ته د خیارِ بلوغ هيڅ حق حاصل نه وي، او هلک او ثیبې ته به تر مجلس وروسته هم د خیارِ بلوغ حق حاصل وي تر هغه وخته پوري کله چي په خوله سره خپله رضامندي ښکاره کړي.

**بخلاف خیار العتق إلخ:** په دې عبارت کي اوله قاعده او د اولي قاعدې اول مثال بیان سوی دی، یعني که یو چا ته بل څوک اختیار ورکړي یعني د بل چا په ورکولو سره اختیار ورته حاصل سي، نو هغه اختیار فقط د مجلس تر آخره پوري پاتیږي، څرنګه چي مینځي ته هم خیارِ عتق مالک ورکړی دی، نو ځکه به دغه اختیار "خیارِ عتق" فقط تر مجلس پوري محدود وي، تر مجلس وروسته به هغې ته "خیارِ عتق" حاصل نه وي.

**کما في خیار إلخ:** په دې عبارت کي دویم مثال بیان سوی دی، چي که خاوند ښځي ته د طلاق اختیار ورکړی، نو څرنګه چي دغه اختیار ښځي ته د بل چا (یعني د خاوند) په ورکولو سره حاصل دی، نو ځکه به دا اختیار فقط د مجلس تر آخره پوري پاته وي، تر مجلس وروسته به هغې ته د طلاق اختیار نه وي.

## په "خیارِ بلوغ" سره نکاح فسخ کول طلاق نه شمارل کیږي

ثُمَّ الْفُرْقَةُ بِخِيَارِ الْبُلُوغِ لَيْسَتْ بِطَلَاقٍ بیا په "خیارِ بلوغ" سره جلا کېدل [یعني په خیارِ بلوغ سره نکاح ماتول] طلاق نه دی لِأَنَّهُ يَصِحُّ مِنَ الْأُنْثَى ځکه چي دا فُرقت د ښځي له طرفه [هم] صحیح کیږي وَلَا طَلَاقَ إِلَيْهَا حال دا چي ښځي ته د طلاق اختیار نسته وَكَذَا بِخِيَارِ الْعِتْقِ لِمَا بَيَّنَّا همدارنګه په "خیارِ عتق" سره جلا کېدل [هم طلاق نه دی] د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ په خلاف د مخیّرې ښځي لِأَنَّ الزَّوْجَ هُوَ الَّذِي مَلَّكَهَا ځکه چي هغه [خپل] خاوند [د طلاق] مالکه کړې ده وَهُوَ مَالِكٌ لِلطَّلَاقِ او خاوند د طلاق مالک دی [یعني خاوند ته د طلاق ورکولو ملکیت حاصل]

**اللغات:** ﴿فُرْقَة﴾ جلا والی، جلا کېدل (فُرقت)، بېلېدل، بېلتون، ﴿مَلَّکَ﴾ د تفعیل ماضي ده: یو څوک د یو شي مالک جوړول، مالک کول.

**تشریح:** د مسئلې تر صورت مخکي د طلاق او فسخ نکاح په مطلب ځان پوه کړئ! د طلاق مطلب دا دی چي د خاوند او ښځي په مینځ کي نکاح وسي او تر هغه وروسته فُرقت او طلاق واقع سي، او د

فسخ نکاح (نکاح ماتولو) مطلب دا دی چي ګواکي دوی په مینځ کي بالکل له شروع څخه نکاح سوې نه ده.

**صورت د مسئلې**: دا دی که له پلار او نیکه څخه بغیر بل ولي د نجلۍ نکاح په کوچنیوالي کي د یو هلک سره کړې وي چي د هغه په وجه نجلۍ ته خیارِ بلوغ حاصل وي، او تر بلوغ وروسته هغه نجلۍ د خیارِ بلوغ په وجه نکاح ماته کړي (فسخ کړي)، نو دا ماتول به طلاق نه شمارل کیږي (یعني دا به نه ویل کیږي چي نجلۍ طلاق واخیستی، بلکي دا به ویل کیږي چي د هلک سره د هغې نکاح بالکل سوې نه ده).

دلیل دا دی چي څرنګه د خیارِ بلوغ په وجه نکاح ماتول او فُرقت اختیارول د نر له طرفه ثابتېدای سي همدارنګه د ښځي له طرفه هم ثابتېدای سي، او که دا ماتول طلاق وشمارل سي، نو د ښځي له طرفه به طلاق واقع سي او دا بالکل صحیح نه دي ځکه چي شریعت په هیڅ ځای کي هم ښځي ته د طلاق واقع کولو اختیار نه دي ورکړی، نو ځکه به دا طلاق نه شمارل کیږي بلکي فسخ نکاح به شمارل کیږي.

څرنګه چي د خیارِ بلوغ په وجه نکاح ماتول طلاق نه دی، نو د دې فایده او نتیجه په دوو صورتونو کي ښکاره کیږي:

①... اول دا چي که تر دخول مخکي نکاح ماته کړی سي (فسخ کړی سي)، نو پر خاوند هیڅ شی نه واجبیږي، که چیري دا ماتول طلاق وای، نو نیم مهر به واجبېدای، ځکه چي تر دخول مخکي په طلاق واقع کېدلو سره پر خاوند نیم مهر واجبیږي.

②... دویم دا چي که تر نکاح ماتولو (فسخ کولو) وروسته ښځه او خاوند بیا نکاح سره وکړي، نو تر دویمي نکاح وروسته به خاوند د دریو طلاقو مالک وي (ځکه چي د فسخ کولو او ماتولو مطلب دا دی چي مخکي بالکل نکاح نسوې نه ده)، که چیري دا ماتول طلاق وای، نو تر دویمي نکاح وروسته به خاوند د دوو طلاقو مالک وای، یعني ښځه به فقط په دوو طلاقو سره مغلظه ګرځېدای ځکه چي یو طلاق مخکي واقع سوی دی. نو په دې دوو نتیجو کي دا خبره څرګنده سوه چي دا ماتول طلاق نه دي بلکي فسخِ نکاح دي.

<u>وكذا بخيار العتق</u>: همدارنګه که د خیارِ عتق په وجه مینځه نکاح ماته کړي، نو دا ماتول به هم فسخ نکاح وي طلاق به نه وي، د مخکني دلیل په وجه، یعني که دا طلاق وشمارل سي، نو د ښځي له طرفه به طلاق واقع سي او دا بالکل صحیح نه دي.

**بخلاف المخيرة إلخ:** کومي ښځي ته چي خاوند ذ طلاق اختيار ورکړی وي هغې ته "مُخَـيَّرَة" وايي. که مُخيره ښځه ځان ته طلاق ورکړي، نو دا به طلاق شمارل کيږي. فسخ به نه شمارل کيږي؛ دليل دا دی چي دا طلاق که څه هم ظاهراً د ښځي له طرفه دی. خو په حقيقت کي د خاوند له طرفه دی. ځکه چي د طلاق اختيار او ملکيت هغې ته خاوند ورکړی دی. نو ګواکي طلاق د خاوند له طرفه واقع سو. نو ځکه به دا طلاق شمارل کيږي.

## په "خيارِ بلوغ" کي د توارث مسئله

| |
|---|
| **وَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا قَبْلَ الْبُلُوْغِ** او که مړ سي يو له خاوند او ښځي څخه مخکي تر بلوغ **وَرِثَهُ الْآخَرُ** نو بل به د هغه وارث کيږي **وَكَذَا إِذَا مَاتَ بَعْدَ الْبُلُوْغِ قَبْلَ التَّفْرِيْقِ** او همدارنګه [دا بل به وارث کيږي] کله چي يو مړ سي. تر بلوغ وروسته [د قاضي] له تفريق [جلا کولو] څخه مخکي **لِأَنَّ أَصْلَ الْعَقْدِ صَحِيْحٌ** ځکه چي أصل عقد [د نکاح] صحيح دی **وَالْمِلْكُ الثَّابِتُ بِهٖ** او ملکيت [د بضع] کوم چي په دغه أصل عقد سره ثابت دی **انْتَهٰى بِالْمَوْتِ** هغه په مرګ سره انتهاء ته ورسېدی [يعني په مرګ سره نور مضبوط سو، نو ځکه به وارث کيږي] **بِخِلَافِ مُبَاشَرَةِ الْفُضُوْلِيِّ** په خلاف د فضولي د [نکاح] کولو **إِذَا مَاتَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ قَبْلَ الْإِجَازَةِ** کله چي يو له خاوند او ښځي څخه مړ سي مخکي تر اجازه ورکولو [نو دا بل به د هغه مړه نه وارث کيږي] **لِأَنَّ النِّكَاحَ ثَمَّةَ مَوْقُوْفٌ** ځکه چي نکاح هلته [يعني د فضولي په صورت کي] موقوفه ده [د خاوند او ښځي پر اجازه] **فَيَبْطُلُ بِالْمَوْتِ** نو ځکه به په مرګ سره باطليږي **وَهٰهُنَا نَافِذٌ** او دلته [په اوله مسئله کي] نکاح نافذه [او ثابته] ده **فَيَتَقَرَّرُ بِهٖ** نو ځکه به په مرګ سره [نوره] ثابتيږي. |

**اللغات:** ﴿تَفْرِيْق﴾ د تفعيل مصدر دی: جلا کول، بېلول. د ښځي او خاوند تر مينځ فُرقت را وستل. ﴿إِنْتَهٰى﴾ انتهاء ته رسېدل، او که په صِله کي يې "عَنْ" رسي. نو معنیٰ يې د "منع کېدلو" راځي. ﴿ثَمَّةَ﴾ هلته.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که له پلار او نيکه څخه بغير بل ولي په کوچنيوالي کي د نجلۍ نکاح ديو هلک سره کړې وي او هغې ته خيارِ بلوغ حاصل وي. او نابېره هلک يا نجلۍ تر بلوغ مخکي مړه سي. يا تر بلوغ وروسته د قاضي تر تفريق مخکي يو مړ سي. نو کوم يو چي پاته سي هغه د مړه وارث کيږي. يعني که نجلۍ مړه سي نو هلک د هغې وارث کيږي. او که هلک مړ سي نو نجلۍ د هغه

وارثه کيږي: دليل دا دی چې د دوی أصل عقد (يعني أصل نکاح) خو صحيح وه او د أصل نکاح په وجه چې کوم ملکيت د دوی په خپل مينځ کي يو پر بله ثابت وو، مرګ هغه ملکيت انتهاء ورسوی يعني نوريې مستحکم او مضبوط کړی، ځکه چې تر مرګ وروسته د نکاح ماتېدلو امکان بالکل ختم سو. ("إِنْتَهٰى بِالْمَوْتِ": د دې جملې مطلب دا دی چې په مرګ سره هغه [د نکاح] ملکيت مستحکم او کامل سو. لکه موږ چې په پښتو کي هم وايو چې فلانکی سړی په دې کار کي انتهاء ته رسېدلی دی يعني ښه پکښې مستحکم او کامل دی).

**بخلاف مباشرة الخ**: فضولي هغه سړي ته وايي کوم چې نه ولي وي او نه اجازه ورکول سوې وي (له همدې کبله هغه ته فضولي وايي ځکه چې هغه يو فضول او زائد سړی وي، نه ولي وي او نه مُجاز وي)، نو که يو فضولي د کوچني هلک او نجلۍ نکاح سره کړې وي، نو ښکاره خبره ده چې تر بلوغ وروسته دغه نکاح د هلک او نجلۍ پر اجازه موقوفه ده، لېکن که تر اجازه ورکولو مخکي هلک يا نجلۍ مړه سي، نو يو به د بل نه وارث کيږي؛ دليل دا دی چې د فضولي نکاح د خاوند او ښځي (هلک او نجلۍ) دواړو پر اجازه موقوفه ده (يعني که دواړه اجازه ورکړي نو بيا د هغه نکاح نافذيږي او لازميږي، کنې باطليږي)، او څرنګه چې دلته يو له اجازه ورکولو څخه بغير مړ سوی دی نو ځکه نکاح باطليږي، او کله چې نکاح باطليږي، نو وراثت به هم نه پکښې جاري کيږي.

**وههنا نافذ الخ**: له دې څخه مراد مخکنی صورت (اوله مسئله) ده يعني کله چې يو بل ولي په کوچيني کي د هلک او نجلۍ نکاح کړې وي، نو د هغه نکاح ثابته او نافذه ده، موقوفه نه ده، نو ځکه به د يوه په مرګ سره نوره ثابتيږي او مضبوطيږي، او وراثت به پکښې جاري کيږي.

## د غلام، هلک او لېوني د ولايت حکم

| |
|---|
| قَالَ: وَلَا وِلَايَةَ لِعَبْدٍ فرمايي: چې د غلام لپاره ولايت نسته وَلَا صَغِيْرٍ وَلَا مَجْنُوْنٍ او نه د کوچني [هلک] او لېوني لپاره ولايت سته لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ عَلٰى أَنْفُسِهِمْ ځکه چې دوی ته پر خپلو ځانو [هم] ولايت نسته فَأَوْلٰى أَنْ لَا يَثْبُتَ عَلٰى غَيْرِهِمْ نو زياته غوره دا ده چې پر نورو يې [هم] ولايت ثابت نه سي وَلِأَنَّ هٰذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ او ځکه چې دغه [د نکاح] ولايت پر شفقت [او مصلحت] مبني دی وَلَا نَظَرَ فِي التَّفْوِيْضِ إِلٰى هٰؤُلَاءِ او دوی ته د ولايت په سپارلو کي شفقت [او مصلحت] نسته وَلَا وِلَايَةَ لِكَافِرٍ عَلٰى مُسْلِمٍ او نه يو کافر لره پر مسلمان ولايت سته لِقَوْلِهِ تَعَالٰى ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكَافِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا [النساء: ١٤١] او هيڅکله به نه وګرځوي الله ﷻ د |

کافرانو لپاره پر مؤمنانو هیڅ لاره وَلِهٰذَا لَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ له همدې وجهې د کافر ګواهي د مسلمان په خلاف نه قبليږي وَلَا يَتَوَارَثَانِ او نه یو د بل وارث کېدلای سي أَمَّا الْكَافِرُ فَيَثْبُتُ لَهُ وِلَايَةُ الْإِنْكَاحِ عَلَى وَلَدِهِ الْكَافِرِ کوم چي کافر دی نو د هغه لپاره د خپل کافر زوی د نکاح کولو ولایت ثابت دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چي الله تعالیٰ فرمایلي دي وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ [الأنفال: ۷۳] او کافران ځیني د ځینو ولیان [او دوستان] دي وَلِهٰذَا تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ عَلَيْهِ له همدې وجهې د کافر [پلار] ګواهي د کافر [زوی] په خلاف مقبوله ده [همدارنګه د یوه کافر ګواهي د بل کافر په خلاف مقبوله ده] وَيَجْرِي بَيْنَهُمَا التَّوَارُثُ او [همدارنګه] د دوی دواړو په مینځ کي وراثت جاري کیږي.

**اللغات:** ﴿نَظَرِيَّة﴾ پر شفقت بناء، پر مصلحت بناء، (شارحینو یې همدغه دوې معناوي کړې دي)،
﴿لَا يَتَوَارَثَان﴾ د تفاعل نفي صیغه ده: یو د بل وارث کېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي مختصراً په دې خبره ځان پوه کړئ! چي ولایت پر دوه قسمه دی: ① ولایت متعدیه، ② ولایت قاصره، د ولایت قاصره مطلب دا دی چي انسان ته فقط پر خپل ځان ولایت حاصل وي، او د ولایتِ متعدیه مطلب دا دی چي انسان ته له خپل ځان څخه بغیر پر نورو هم ولایت حاصل وي، ولایتِ قاصره أصل دی او ولایتِ متعدیه د هغه فرع ده، او قاعده دا ده چي تر څو أصل ثابت سوی نه وي، تر هغه وخته فرع نه ثابتیږي.

اوس د عبارت مطلب دا دی چي غلام، صغیر او مجنون ته پر بل چا ولایت (متعدیه) حاصل نه دی یعني دا ولایت نه لري چي د بل چا نکاح ور وکړي؛ دلیل دا دی چي دوی ته پر خپل ځان ولایت (قاصره) حاصل نه دی کوم چي أصل دی، نو پر نورو به ولایت (متعدیه) څنګه ورته حاصل سي کوم چي فرع ده، ځکه کله چي بالکل أصل موجود نه وي، نو فرع به څنګه موجوده سي.

دویم دلیل دا دی چي په نکاح کي د ولایت مدار پر شفقت او مصلحت دی، یعني د نکاح په ولي کي شفقت وي او چیري چي مصلحت او ښېګڼه وویني هلته د هلک یا نجلۍ نکاح کوي، او په غلام، کوچني او لېوني کي خو هیڅ شفقت او مصلحت نسته، ځکه کوچنی او لېونی خو بالکل مصلحت او شفقت نه لري، او غلام هم ټوله عمر په خدمت مشغوله وي او دې ته خلاص نه وي چي د مصلحت او شفقت ځای تلاش کړي.

**ولا ولاية إلخ:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي هیڅ کافر ته هم پر مسلمان د ولایت حق نسته؛ ځکه چي قرآنِ کريم په واضحه توګه دا اعلان کړی دی: "وَلَنْ يَجْعَلَ اللهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ

سَبِيْلًا"، له همدې وجهې د مسلمان په خلاف د کافر ګواهي نه قبليږي، همدارنګه نه کافر د مسلمان وارث کېدای سي او نه مسلمان د کافر وارث کېدای سي.

لېکن کافر ته پر خپل کافر زوی د نکاح ورکولو ولايت حاصل دی، او د خپل زوی په خلاف د هغه ګواهي هم معتبره او مقبوله ده، او يو د بل وارث کېدلای هم سي، ځکه چي قرآن کريم په دې آيت "وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ" سره د دوی په مينځ کي ولايت ثابت کړی دی، او پورتني درې سره شيان (يعني د نکاح ولايت، ګواهي او وراثت) د ولايت سره تعلق لري، نو ځکه به د کافر پلار او کافر زوی په حق کي او د يوه کافر او بل کافر په حق کي دغه درې سره شيان ثابت وي، او په دې کي د شريعت له طرفه هيڅ منع نسته.

## د غيرِ عصباتو د ولايت حکم (او په دې هکله د فقهاؤ اختلاف)

وَلِغَيْرِ الْعَصَبَاتِ مِنَ الْأَقَارِبِ وِلَايَةُ التَّزْوِيْجِ او په قريبانو کي د غيرِ عصباتو لپاره [هم] د نکاح ولايت ثابت دی عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ✿ په نيز د امام صاحب رَحِمَهُ الله مَعْنَاهُ: عِنْدَ عَدَمِ الْعَصَبَاتِ د دې مطلب دا دی: چي [کله] عصبات نه وي [او که عصبات وي، نو بيا غيرِ عصباتو لره ولايت نه ثابتيږي] وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی [يعني د امام صاحب مسلک پر استحسان مبني دی، يعني استحسان هم د دې تقاضا کوي] وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا تَثْبُتُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [په قريبانو کي د غيرِ عصباتو لپاره] ولايت نه ثابتيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت [هم] دی وَقَوْلُ أَبِيْ يُوسُفَ فِيْ ذَلِكَ مُضْطَرِبٌ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول په دې باره کي متردّد [نا څرګند] دی وَالْأَشْهَرُ أَنَّهُ مَعَ مُحَمَّدٍ او مشهوره دا ده چي هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی لَهُمَا مَا رَوَيْنَا د صاحبينو دليل هغه حديث دی کوم چي موږ روايت کړی [يعني: النِّكَاحُ إِلَى الْعَصَبَاتِ] وَلِأَنَّ الْوِلَايَةَ إِنَّمَا تَثْبُتُ او په دې وجه [هم] چي ولايت [ځکه] ثابتيږي صَوْنًا لِلْقَرَابَةِ عَنْ نِسْبَةِ غَيْرِ الْكُفْءِ تَا چي قرابت محفوظه سي د غير کفو له نسبت څخه [يعني د

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، وأبو يوسف رَحِمَهُ الله معه على الأصح، كما ذكر في فتح القدير (ج:۳، ص:۱۸۲)، وقال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: قول الامام استحسان، والاستحسان مقدم في الترجيح على القياس. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۸]

ولايت د ثبوت مقصد دا دی چي ولي خپل نسب او خپل قرابت له غيرِ کفو انسان څخه وساتي] وَإِلَى الْعَصَبَاتِ الصِّيَانَةُ او حفاظت [فقط] عصباتو لره دی [يعني له دغه نسبت څخه فقط عصبات خپل قرابت ساتي. ځکه چي د دې پوره جذبه په عصباتو کي سته] وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ الْوِلَايَةَ نَظَرِيَّةٌ د امام صاحب دليل دا دی چي ولايت پر شفقت [او مصلحت] مبني دي وَالنَّظَرُ يَتَحَقَّقُ بِالتَّفْوِيْضِ إِلَى مَنْ او شفقت و هغه کس ته د ولايت په سپارلو سره ثابتيږي هُوَ الْمُخْتَصُّ بِالْقَرَابَةِ الْبَاعِثَةِ عَلَى الشَّفَقَةِ چي هغه کس د داسي قرابت سره خاص وي کوم چي پر شفقت هڅونکی وي وَمَنْ لَا وَلِيَّ لَهَا او د کومي [آزادي کړی سوي] مينځي چي ولي نه وي يَعْنِي الْعَصَبَةَ مِنْ جِهَةِ الْقَرَابَةِ يعني عصبه د قرابت له لوري إِذَا زَوَّجَهَا مَوْلَاهَا الَّذِيْ أَعْتَقَهَا که چيري هغه مالک د هغې نکاح وکړي چي هغه دا مينځه آزاده کړې وي جَازَ نو اد هغه] نکاح جائز ده لِأَنَّهُ آخِرُ الْعَصَبَاتِ ځکه چي هغه آخر د عصباتو دی وَإِذَا عُدِمَ الْأَوْلِيَاءُ او کله چي [تول] وليان نيستي سي [مثلاً د يوې ښځي هيڅ ولي هم نه وي] فَالْوِلَايَةُ إِلَى الْإِمَامِ وَالْحَاكِمِ نو [په داسي صورت کي] به ولايت امام [خليفه] او حاکم لره وي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ [1] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي اَلسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ چي باچا [امامُ المسلمين] ولي دی د هغه کس چي هغه لره ولي نه وي.

**اللغات:** ﴿عَصَبَةٌ﴾ ذوی الفروضو ته له ميراث ورکولو څخه وروسته د پاته سوي ميراث وارثان (يعني تر ذوی الفروضو وروسته چي نور کوم قريبان د ميراث مستحق دي، هغو ته عصبه (عصبات) وايي). ﴿تَزْوِيْج﴾ نکاح تړل، نکاح ورکول، واده ورکول. ﴿مُضْطَرَب﴾ د افتعال اسم مفعول دی: متردّد، شکمن، نا ثرګند. ﴿صَوْن﴾ او صِيَانَة: د نصر مصدر دی: ساتل، حفاظت کول، خوندي کول. ﴿الْبَاعِثَة﴾ د فتح مؤنث اسم فاعل دی: هڅونکی، پارونکی، جذبه ورکونکی. ﴿سُلْطَان﴾ باچا، جمع: سَلَاطِيْن.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که د يوې ښځي عصبي قريبان (عصبات) نه وي، يا يې عصبات وي، خو ځای او درک يې معلوم نه وي، نو په داسي صورت کي به د کوم کس لپاره ولايت ثابتيږي. يعني څوک به د دې ښځي ولايت کوي؟

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب النكاح، باب في الولي، حديث رقم:۲۰۸۳.

په دې باره کې د امامانو اختلاف دی، امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې صورت کې به له عصباتو څخه بغير د نېځې نورو قريبانو لره ولايت ثابتيږي، مثلاً ماما، خاله، امه او داسې نور، د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک د استحسان مطابق دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې له عصباتو څخه بغير نورو قريبانو لره به ولايت نه ثابتيږي، همدا قياس دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک په دې باره کې مذبذب او ناڅرګند دی، خو مشهوره دا ده چې هغه هم د امام محمد رَحِمَهُ الله سره دی.

**د صاحبينو دليل:** مخکنی حديث دی: "اَلنِّكَاحُ إِلى العَصَبَات" (يعني د نکاح ولايت عصباتو لره دی)، د "النکاح" او د "العصبات" الف لام جنسي دی، مطلب يې دا دی چې جنس د نکاح و جنس د عصباتو لره منسوب دی او له عصباتو څخه بغير د بل قريب لپاره په نکاح کې دخل کول جائز نه دي.

د صاحبينو عقلي دليل دا دی چې ولايت د قرابت او خاندان (نسب) د حفاظت لپاره وي، (يعني ولي د دې لپاره ولايت کوي چې زما په خاندان کې غيرِ کفو انسان داخل نه سي)، او دا جذبه فقط په عصباتو کې سته چې زموږ په خاندان کې غير کفو کس داخل نه سي، له عصباتو څخه بغير بل قريب په دې خاص پروا نه کوي، نو ځکه به ولايت فقط عصباتو لره حاصل وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د ولايت مدار پر مصلحت (ښېګڼې) او شفقت دی، او شفقت په هر هغه قريب کې موجود وي چې په هغه کې داسې قرابت وي کوم چې د شفقت باعث او مُحرّک وي، نو په کوم چا کې چې داسې قرابت پيدا سي، هغه ته به ولايت حاصل وي او د نکاح کولو حق به لري، برابره ده هغه که عصبه وي او که غيرِ عصبه وي.

او د صاحبينو د حديث جواب دا دی چې صحيح ده! په دې حديث کې الف لام د جنس لپاره دی، خو د حديث شريف مطلب هغه نه دی کوم چې ستاسو په نېز دی، بلکې د حديث واضح او صحيح مطلب دا دی چې د عصباتو په موجودوالي کې به بل قريب ته د نکاح ولايت حاصل نه وي، أما که عصبات موجود نه وي نو بيا به نورو قريبانو د ولايت حق حاصل وي، او موږ هم د دې قائل يو.

<u>ومن لا ولی إلخ</u>: (۲)... دويمه مسئله دا ده که د آزادې کړې سوې مينځې هيڅ ولي نه وي، نه له عصباتو څخه او نه له نورو قريبانو څخه، بيا آزادونکی مالک د هغې نکاح وکړي (يعني کوم مالک چې هغه آزاده کړې وي هغه مالک يې د نکاح ولي جوړ سي) نو دا جائز دي، ځکه که عصبه نه وي، نو په آخر کې آزادونکی مالک د غلام او مينځې عصبه ګرځي، نو کله چې هغه عصبه دی، نو د نکاح ولايت به هم هغه ته حاصل وي.

وإذا عدم الأولياء إلخ: (۳)... دریمه مسئله دا ده که دیو ښځي هیڅ ولي نه وي، نه له عصبا تو څخه او نه له نورو قریبانو څخه، یا مثلاً د مینځي آزادونکی مالک هم نه وي، نو په داسي صورت کي د هغې د نکاح ولایت حاکم او امامُ المسلمین (خلیفه) لره ثابتیږي؛ دلیل دا حدیث دی: "السُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ" (یعني کوم څوک چي هیڅ ولي نه لري، د هغه ولي به باچا [امامُ المسلمین] وي). په عبارت کي له حاکم څخه مراد قاضي یا د امامُ المسلمین نائب دی، خو قاضي ته هغه وخت د نکاح ولایت ثابتیږي کله چي امامُ المسلمین د دې اختیار ور کړی وي.

## د نږدې ولي د غائبوالي په وخت کي د لیري لپاره د ولایت حکم

فَإِذَا غَابَ الْوَلِيُّ الْأَقْرَبُ غَيْبَةً مُنْقَطِعَةً نو کله چي غائب سي نږدې ولي د غیبتِ منقطعه په توګه جَازَ لِمَنْ هُوَ أَبْعَدُ مِنْهُ أَنْ يُزَوِّجَ نو جائز دي د لیري ولي لپاره چي [د صغیر یا صغیرې] نکاح وکړي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوزُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چي جائز نه دي لِأَنَّ وِلَايَةَ الْأَقْرَبِ قَائِمَةٌ ځکه چي د نږدې ولي ولایت [اوس هم] پاته دی لِأَنَّهَا ثَبَتَتْ حَقًّا لَهُ صِيَانَةً لِلْقَرَابَةِ ځکه چي دغه ولایت د قرابت د خوندي کولو لپاره د هغه حق ثابت سوی دی فَلَا تَبْطُلُ بِغَيْبَتِهِ نو د هغه په غائبوالي سره به نه باطلیږي وَلِهٰذَا لَوْ زَوَّجَهَا حَيْثُ هُوَ همدا وجه ده که نږدې ولي هلته د ښځي نکاح وکړي چیري هغه وي جَازَ نو جائز دي وَلَا وِلَايَةَ لِلْأَبْعَدِ مَعَ وِلَايَتِهِ او د نږدې ولي د ولایت په وخت کي لیري ولي لره [هیڅ] ولایت نسته وَلَنَا: أَنَّ هٰذِهِ وِلَايَةٌ نَظَرِيَّةٌ او زموږ دلیل دا دی: چي دا ولایت پر شفقت [او مصلحت] مبني دی وَلَيْسَ مِنَ النَّظَرِ التَّفْوِيضُ إِلَى مَنْ لَا يُنْتَفَعُ بِرَأْيِهِ او دا هیڅ شفقت [او مصلحت] نه دی چي نکاح وسپارل سي و داسي سړي ته چي د هغه له رایي څخه فایده اخیستل کېدای نه سي فَفَوَّضْنَاهُ إِلَى الْأَبْعَدِ نو ځکه موږ هغه لیري ولي ته وسپاری وَهُوَ مُقَدَّمٌ عَلَى السُّلْطَانِ او لیري ولي پر باچا مخکي وي كَمَا إِذَا مَاتَ الْأَقْرَبُ لکه څرنګه چي په هغه صورت کي [هم لیري ولي مخکي وي] کله چي نږدې ولي مړ سي وَلَوْ زَوَّجَهَا حَيْثُ هُوَ فِيهِ او که نږدې ولي هلته د ښځي نکاح وکړي چیري هغه وي مُنِعَ نو دا ممنوع دي [یعني د دې جواز موږ نه تسلیموو] وَبَعْدَ التَّسْلِيمِ نَقُولُ او تر تسلیمولو وروسته وایو [یعني که بیا هم هغه تسلیم کړو نو د هغه وجه موږ دا بیانوو] لِلْأَبْعَدِ بُعْدُ الْقَرَابَةِ وَقُرْبُ التَّدْبِيرِ

چي ليري ولي ته د قرابت ليري والی او د تدبير نږدېکت حاصل دی وَلِلْأَقْرَبِ عَكْسُهُ او نږدې ولي ته د دې برعکس ايعني د قرابت نږدېکت او د تدبير ليري والی ا حاصل دی فَنُزِّلَا مَنْزِلَةَ وَلِيَّيْنِ مُتَسَاوِيَيْنِ نو ځکه انږدې او ليري ولي ا دواړه د دوو مساوي وليانو په درجه کي سول ايعني دواړه په درجه کي برابر سول ا فَأَيُّهُمَا عَقَدَ نَفَذَ لهذا په دوی کي چي هريو عقد ا د نکاح ا وکړي هغه به نافذيږي وَلَا يُرَدُّ او نه به ردول کيږي.

**اللغات**: ﴿أَقْرَب﴾ د کرُم له باب څخه دا سمِ تفضيل صيغه ده: ډېر نږدې، ﴿غَيْبَة مُنْقَطِعَة﴾ په داسي توګه ورکېدل (غائبېدل) چي د مرګ او ژوند خبرېې چا ته نه وي (تفصيلي تعريف به يې په را روان عبارت کي ذکر سي). ﴿أَبْعَد﴾ دا هم د کرُم له باب څخه دا سمِ تفضيل صيغه ده: ډېر ليري، ﴿صِيَانَة﴾ د نصر د باب مصدر دی: ساتل، حفاظت کول، خوندي کول، ﴿نَظَرِيَّة﴾ پر شفقت بناء، پر مصلحت بناء. ﴿تَفْوِيْض﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سپارل.

**تشريح**: دا خو تاسو ته معلومه ده چي د نږدې ولي (أَقْرَب) د موجود والي په وخت کي ليري ولي (أَبْعَد) له ولايت څخه محروميږي، او ليري ولي ته هغه وخت د ولايت حق حاصليږي کله چي نږدې ولي نه وي (لکه مخکي چي دا خبره ضمناً ذکر سوه)، د دې عبارت مسئله پر همدغه خبره متفرّع ده، د مسئلې حاصل دا دی که د صغير يا د صغيرې نږدې ولي يو خوا ته ولاړ سي او د غيبت منقطعه په توګه غائب سي، يعني هيچا ته يې هم د مرګ او ژوند خبر نه وي، نو په داسي صورت کي د ليري ولي لپاره د صغير يا صغيرې نکاح کول صحيح او جائز دي. لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي جائز نه دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په داسي صورت کي باچا (امامُ المسلمين) لره د صغير يا صغيرې د نکاح کولو اجازه سته، د ليري ولي لپاره يې د هغو نکاح کول جائز نه دي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي د ولايت مقصد دا دی چي نسب او قرابت له غير کفو څخه وساتل سي او دا تر ټولو مخکي د نږدې ولي حق دی، نو تر څو چي هغه ژوندی وي د هغه د ولايت حق به هم ژوندی او باقي وي. او فقط د هغه په غائبوالي سره به د هغه ولايت نه ساقطيږي، همدا وجه ده که نږدې قريب هر څومره ليري وي او هر چيري چي وي د هغه لپاره د صغير يا صغيرې نکاح کول جائز دي. نو معلومه سوه چي د نږدې ولي د غائبوالي په وخت کي هم د هغه د نکاح ولايت باقي پاته دی. نو ځکه به د هغه د غائبوالي په وخت کي ليري ولي لره د نکاح ولايت نه حاصليږي او د هغه لپاره به دا جائز نه وي چي د صغير يا صغيرې نکاح وکړي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د نکاح ولايت د شفقت او مصلحت پر بناء دی يعني چي ولي په خپله رايه د شفقت او مصلحت پر بناء د صغير يا صغيرې د نکاح لپاره مناسب ځای تلاش کړي، او دا معلومه خبره ده چي کله ولي دومره ليري او غائب وي نو نه د هغه له رايي څخه استفاده کېدای سي او نه له هغه څخه د مناسب ځای د تلاشولو اميد کېدای سي، لهذا هغه ته ولايت سپارل د شفقت او مصلحت خلاف دي، نو ځکه به مجبوراً اوس ليري ولي ته دا حق ور کول کيږي، ځکه چي اوس هغه نږدې دی، نو هغه به د خپل مصلحت او شفقت پر بناء د نکاح بندوبست کوي.

**وهومقدم إلخ**: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول ردّ کوي، حاصل يې دا دی چي څرنګه د نږدې ولي د مړ کېدلو په صورت کي د ليري قريب حق د باچا له حق څخه مخکي دی، همداسي به د نږدې قريب په غائبوالي (نا موجود والي) کي هم د هغه حق د باچا تر حق مخکي وي او ولايت به هغه لره ثابت وي.

**ولوزوجها إلخ**: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل جواب ور کوي، حاصل يې دا دی چي موږ ستا دا خبره نه تسليموو چي "که نږدې ولي هر چيري وي د هغه لپاره د صغير يا صغيرې نکاح کول جائز دي" بلکي زموږ رايه دا ده چي نکاح يې صحيح نه ده، لهذا دا مسئله زموږ په خلاف په دليل کي وړاندي کول مناسب نه دي، او که بيا هم موږ دغه خبره تسليم کړو چي د غائبوالي په حالت کي د هغه نکاح کول صحيح دي نو د هغه وجه دا ده چي په نږدې ولي او ليري ولي دواړو کي يوه ښېګڼه هم سته او يوه خرابي هم سته، نو ځکه دواړه په درجه کي برابر سول، په ليري ولي کي د بُعْدِ قرابة خرابي سته (يعني قرابت يې ليري دی) خو د قُرْبِ تَدْبِيْر ښېګڼه هم پکښي سته (يعني د حاضر والي په وجه د شفقت او مصلحت پر بناء د نکاح تدبير او مناسب ځای د نکاح بندوبست کولای سي)، او په نږدې ولي کي که څه هم د قُرْبِ قرابة ښېګڼه سته خو د بُعْدِ تَدْبِيْر خرابي هم پکښي سته (ځکه چي غائب دی)، لهذا دواړه د يوې درجې سول، او قاعده دا ده چي که دوه وليان په درجه کي برابر وي، نو دواړو ته به يو ډول د ولايت حق حاصل وي، يعني په دواړو کي چي هر يو نکاح وکړي د هغه نکاح به نافذيږي او نه به ردول کيږي، نو په دې وجه به غائب نږدې قريب ته د ولايت حق حاصل وي او د هغه نکاح به جائز وي (نه په هغه وجه کوم چي تاسو [امام زفر] بيان کړۀ چي اوس هم د هغه د نکاح ولايت باقي پاته دی).

## د "غیبت منقطعه" تعریف

وَالْغَيْبَةُ الْمُنْقَطِعَةُ او غیبت منقطعه [دا دی] أَنْ يَكُوْنَ فِي بَلَدٍ لَا تَصِلُ إِلَيْهَا الْقَوَافِلُ فِي السَّنَةِ إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً چي ولي په داسي ښار کي وي چي هلته په [ټوله] کال کي فقط یو وار [د مسافرو] قافلې رسیږي وَهُوَ اخْتِيَارُ الْقُدُوْرِيِّ او همدا [قول] د امام قدوري رَحِمَهُ الله اختیار کړی سوی دی [یعني هغه اختیار کړی دی] وَقِيلَ: أَدْنٰى مُدَّةِ السَّفَرِ او ویل سوي دي: چي د سفر کمه موده [غیبت منقطعه] دی لِأَنَّهُ لَا نِهَايَةَ لِأَقْصَاهُ ځکه چي د سفر آخر لره هیڅ انتها نسته [یعني د سفر مودت پای نه لري] وَهُوَ اخْتِيَارُ بَعْضِ الْمُتَأَخِّرِيْنَ او دا [قول] ځیني متأخرینو اختیار کړی دی وَقِيلَ: إِذَا كَانَ بِحَالٍ يَفُوْتُ الْكُفُوُ بِاسْتِطْلَاعِ رَأْيِهِ او [دا هم] ویل سوي دي: چي کله ولي په داسي حال کي وي چي د هغه د رایې په معلومولو سره کفو فوتیږي وَهٰذَا أَقْرَبُ إِلَى الْفِقْهِ او دا [قول] فقهي ته زیات نژدې دی لِأَنَّهُ لَا نَظَرَ فِي إِبْقَاءِ وِلَايَتِهِ حِيْنَئِذٍ ځکه چي په داسي وخت کي د هغه د ولایت په باقي ساتلو کي هیڅ شفقت [او مصلحت] نسته.

**اللغات:** ﴿بَلَدٌ﴾ ښار، جمع: بِلَاد. ﴿نِهَايَةٌ﴾ انتهاء، پای. ﴿إِسْتِطْلَاعٌ﴾ د استفعال مصدر دی: رایه پوښتل، دیو چا رایه ځان ته معلومول.

**تشریح:** په مخکني عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د "غیبت منقطعه" سره اړوند مسئله بیان کړه، په دې عبارت کي د "غیبت منقطعه" تعریف بیانوي، او په تعریف کي یې څو أقوال وړاندي کوي:

①... یو قول دا دی که ولي له خپل ښار څخه داسي ښار او وطن ته ولاړ سي چي هلته د ولي له ښار څخه په ټوله کال کي فقط یو وار قافله ځي، نو داسي تګ ته "غیبت منقطعه" وایي، امام قدوري رَحِمَهُ الله همدا قول اختیار کړی دی.

②... دویم قول دا دی چي ولي داسي ښار ته ولاړ سي چي هغه د سفر د مودې په اندازه لیري وي (د ولي له ښار څخه)، یعني ولي تقریباً اته څلوېښت (۴۸) میله لیري اوسیږي، نو دې ته "غیبت منقطعه" وایي، ځیني متأخرینو همدا قول اختیار کړی دی، چي له هغو څخه څو دا دي: قاضي ابو علي نسفي، سعد بن معاذ، ابو عصمت مروزي، صدر الشهید او محمد بن راز رَحِمَهُمُ الله.

③... دریم قول دا دی چي که ولي دومره لیري اوسیږي چي هلته په تګ را تګ سره او د هغه د رایې په معلومولو سره د کفو د فوتېدلو خطره وي، نو په داسي صورت کي به پر ولي د "غیبت منقطعه"

حکم کیږي، ځکه چي د ولایت مقصد شفقت او مصلحت دی یعني چي ولي مناسب ځای او د کفو سره د صغیر نکاح وکړي، نو که د دومره لیري ولي لپاره ولایت پاته (باقي) وګڼل سي. نو دغه مصلحت او شفقت به فوت سي.

صاحب د هدایې دا قول فقه او فتویٰ ته زیات نژدې ګڼلی دی، په دې کي اشاره ده چي د هغه په نېز همدا قول نېز غوره او مختار دی.

**فایده:** څرنګه چي په اوسني وخت کي دنیا دومره ترقي کړې ده چي انسان په یو څو ساعتونو کي د کلونو سفر کولای سي، او په یو څو دقیقو کي د ټوله دنیا سره اړیکي نیولای سي، او د موبایل، ټیلیفون، انټرنیټ په ذریعه په یوه ثانیه کي هم دیو چا حال واحول او رایه پوښتلای سي، نو ځکه د اوسني زماني مطابق دویم قول (یعني د ځیني متأخرینو قول) اختیارول زیات غوره او مناسب دي، لکه څرنګه چي صاحب د فتح القدير او علامه عيني هم دغه قول مفتیٰ به ګڼلی دی. فقط والله أعلم

## د لېوني ښځي د ولایت د زیات حقدار بیان

وَإِذَا اجْتَمَعَ فِي الْمَجْنُونَةِ أَبُوهَا وَابْنُهَا او کله چي جمع سي د لېوني ښځي [د نکاح] په باره کي د هغې پلار او د هغې زوی فَالْوَلِيُّ فِي إِنْكَاحِهَا ابْنُهَا نو د هغې د نکاح کولو ولي به د هغې زوی وي فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ✿ د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په قول کي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: أَبُوهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د هغې پلار به [ولي] وي لِأَنَّهُ أَوْفَرُ شَفَقَةً مِنَ الْابْنِ ځکه چي پلار زیات شفقت لرونکی دی تر زوی وَلَهُمَا: أَنَّ الِابْنَ هُوَ الْمُقَدَّمُ فِي الْعُصُوبَةِ او د شیخینو دلیل دا دی: چي زوی په عصبه کېدو کي مخکي دی [یعني اوله عصبه زوی دی] وَهٰذِهِ الْوِلَايَةُ مَبْنِيَّةٌ عَلَيْهَا او دا [د نکاح] ولایت پر همدغه عصبه کېدلو مبني دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِزِيَادَةِ الشَّفَقَةِ او د شفقت زیاتوب لره اعتبار نسته كَأَبِ الْأُمِّ مَعَ بَعْضِ الْعَصَبَاتِ لکه د مور پلار [مورنی نیکه] د ځیني عصباتو سره [یعني لکه څرنګه چي ځیني لیري عصبات (لیري دا کازوی) تر مورني نیکه مخکي دی، حالانکي د مورني نیکه شفقت پر هغه زیات دی] وَاللّٰهُ أَعْلَمُ او الله تعالیٰ [په حقیقت د حال] زیات خبر دی.

**اللغات:** ﴿أَوْفَر﴾ د ضرب د باب اسم تفضیل دی: ډېر زیات، ډېر پوره. ﴿الْعُصُوبَة﴾ عصبه کېدل.

---

✿ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۴۳)، وكذا في الخانيــة (ج:۱، ص:۱۶۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۵۹]

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی که يو مجنونه ښځه مخکي د يو چا په نکاح کي وي او له هغه څخه يې زوی هم پيدا سوی وي، وروسته د هغه له نکاح څخه ووځي، او د هغې پلار هم ژوندی وي. نو اوس د هغې د ولايت لپاره دوه خلک دي: خپل پلار او خپل زوی، نو د هغې د دويم وار د نکاح کولو ولايت به چا ته حاصل وي؟

په دې باره کي د شيخينو مسلک دا دی چي د ولايت حق د هغې زوی ته حاصل دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د ولايت حق پلار ته حاصل دی.

**د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل**: دا دی چي په پلار کي د زوی په نسبت زيات شفقت سته، او د ولايت مدار هم پر شفقت دی، نو د شفقت د زياتوب په خاطر به ولايت پلار ته حاصل وي، نه وزوی ته.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي دا معلومه خبره ده چي تر ټولو مخکي د ولايت حقدار عصبات دي، او په عصبوالي کي زوی تر پلار مخکي دی، يعني زوی اوله عصبه ده، همدا وجه ده که بالفرض دغه ښځه مړه سي نو د هغې د مال نصف به زوی ته ورکول کيږي او د زوی په موجودوالي کي به پلار ته فقط سُدس ورکول کيږي، نو کله چي زوی په عصبوالي کي مخکي دی، او د نکاح د ولايت اصل مدار پر عصبيّت (عصوبت) دی، نو ځکه به د نکاح د ولايت حق زوي ته حاصل وي، نه و پلار ته.

**ولا معتبر إلخ**: د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چي په ولايت کي فقط د شفقت د موجود والي اعتبار کيږي، د زياتوب اعتبار يې نه کيږي، مثلاً که د يو ښځي مورنی نيکه موجود وي او د هغه ليري دا کا زوی (يعني دا کا د زوی، زوی) هم موجود وي، نو که څه هم د مورني نيکه شفقت تر هغه ډېر زيات دی، خو بيا به هم د نکاح په ولايت کي ليري دا کا زوی تر مورني نيکه مخکي وي، ځکه چي هغه په عصبه کي مخکي دی، نو معلومه سوه چي د نکاح په ولايت کي د شفقت د زياتوب اعتبار نه کيږي.

د دې بل جواب دا هم کېدای سي چي د شفقت زياتوب مورډ هم معتبر ګڼو خو هلته چي د عصوبت سره يې تصادم او ټکر نه راځي، لېکن که شفقت او عصوبت سره ټکر سي، نو په دې صورت کي مورډ عصوبت ته اعتبار ورکوو، او د شفقت زياتوب ته اعتبار نه ورکوو. (شارح عفی عنه)



# فَصْلٌ فِي الْكَفَاءَةِ

## (دا) فصل په (بيان د) كفائت (مساوات) كي دى

**تشريح:** څرنګه چې د ولي د ولايت د جواز لپاره كفائت شرط او ضروري دى، نو ځكه مصنف رَحِمَهُ الله د وليانو تر بيان وروسته متصلاً د كفائت حكم بيانوي.

د **كفاءة** لغوي معنىٰ ده: مساوات، برابري (سيالتوب)، او د "كفاءة فى النكاح" مطلب دا دى چې خاوند او ښځه په نسب او خاندان، كسب او پېشه، دين او جمال كي دواړه يو دبل سره برابر او مساوي وي.

### په نكاح كي د كفائت شرعي حيثيت

**اَلْكَفَاءَةُ فِي النِّكَاحِ مُعْتَبَرَةٌ** كفوه كېدل په نكاح كي معتبر دي [يعني په نكاح كي به د كُفُو اعتبار كيږي] قَالَ: ﷺ ❶ نبي كريم ﷺ فرمايلي دي أَلَا لَا يُزَوِّجُ النِّسَاءَ إِلَّا الْأَوْلِيَاءُ خبردار! د ښځو نكاح دي نه كوي مګر وليان وَلَا يُزَوَّجْنَ إِلَّا مِنَ الْأَكْفَاءِ او نه دي د ښځو نكاح كيږي مګر د كُفُو خلكو سره وَلِأَنَّ انْتِظَامَ الْمَصَالِحِ بَيْنَ الْمُتَكَافِئَيْنِ عَادَةً او په دې وجه [هم] چې په عامه توګه د مصلحتونو [او منافعو] انتظام د دوو برابرو كسانو تر مينځ وي لِأَنَّ الشَّرِيفَةَ تَأْبَىٰ أَنْ تَكُونَ مُسْتَفْرَشَةً لِلْخَسِيسِ ځكه چې شريفه ښځه انكار كوي چې د رذيله [ټيټ او كمتره] خاوند بستره جوړه سي [او تر هغه لاندي پريوځي] فَلَا بُدَّ مِنْ اعْتِبَارِهَا نو ځكه د كفائت اعتبار كول ضروري دى بِخِلَافِ جَانِبِهَا په خلاف د ښځي له طرفه لِأَنَّ الزَّوْجَ مُسْتَفْرِشٌ ځكه چې خاوند بستره جوړونكى دى [او پر ښځي د پاسه پرېوتونكى دى] فَلَا تَغِيظُهُ دَنَاءَةُ الْفِرَاشِ نو د بسترې رذالت [او ټيټوالى] خاوند نه په قهر كوي وَإِذَا زَوَّجَتِ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا مِنْ غَيْرِ كُفْئِهَا او كله چې ښځه د غير كفو سره خپله نكاح وكړي فَلِلْأَوْلِيَاءِ أَنْ يُفَرِّقُوا بَيْنَهُمَا نو وليانو لره دا حق سته چې د ښځي او خاوند په مينځ كي تفريق وكړي دَفْعًا لِضَرَرِ

---

تخريج: اخرجه دار قطنى فى كتاب النكاح، باب المهر، حديث رقم: ٣٥٥٩.

الْعَارِ عَنْ أَنْفُسِهِمْ له خپلو ځانو څخه د پېغور د ضرر ليرې کولو لپاره.

**اللغات:** ﴿مُتَكَافِئٍ﴾ د تفاعل اسمِ فاعل دی: يو د بل سيال (برابر)، ﴿تَأْبَى﴾ له فتح او ضرب دواړو څخه مضارع ده: په طبيعت کې ناخوښه ګڼل (نفرت کول)، انکار کول. ﴿مُسْتَفْرَشَة﴾ د استفعال د باب مونث اسمِ مفعول دی: فراش جوړه سوې (يعني ښځه د خاوند بستره وي او تر هغه لاندې پرېوځي، دلته ځني مراد "ماينه جوړېدل" دي)، ﴿مُسْتَفْرِش﴾ د استفعال مذکر اسمِ فاعل دی: فراش جوړونکی (يعني خاوند پر دغه بستره [ماينه] پرېوتونکی وي)، ﴿خَسِيْس﴾ د صفتِ مشبه صيغه ده: د کمي او ټيټي درجې سړی (کمتر)، کمينه، رذيل. ﴿لَا تَغِيْظُه﴾ د ضرب د باب نفي صيغه ده: په غصه کول، خپمول، په قهر کول. ﴿دَنَاءة﴾ رذالت (ټيټوب)، کمتوب. ﴿عَار﴾ پېغور، عيب، شرم.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې په نکاح کې به د کفائت (کفو کېدلو) اعتبار خامخا کيږي، د دې په تائيد کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دوه دليلونه ذکر کړي دي، يو نقلي دليل (حديث) دی او بل عقلي دليل دی.

د نقلي دليل حاصل دا دی چې نبي کريم ﷺ په دې حديث "أَلَا لَا يُزَوِّجُ...إلخ" کې د کفو ټينګار کړی دی چې بغير له کفو څخه دې د بل چا سره د ښځې نکاح نه تړل کيږي، نو ځکه به د کفو خيال ساتل ضروري وي، دا حديث د دومره درجې نه دی چې دليل په ونيول سي، ځکه چې د دې په سند کې يو راوي مُبشر بن عبيد هم دی چې هغه ډېر ضعيف او بې اعتباره راوي دی، دغه حديث ته نژدې يو بل حديث ترمذي او بيهقي روايت کړی دی چې د هغه راوي حضرت علي رضي الله عنه دی او د دليل لپاره زيات صحيح همدغه حديث دی: "عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ: يَا عَلِيُّ، ثَلَاثٌ لَا تُؤَخِّرْهَا: الصَّلَاةُ إِذَا آنَتْ، وَالجَنَازَةُ إِذَا حَضَرَتْ، وَالأَيِّمُ إِذَا وَجَدْتَ لَهَا كُفْؤًا" [ترمذي، حديث شمېره: ۱۷۱ او ۱۰۷۵]، (اې علي! په درې شيانو کې تأخير مه کوه: په لمانځه کې چې کله يې وخت راسي، په جنازه کې چې کله حاضره سي، او د نجلۍ په نکاح کې چې کله يې کفو پيدا سي)، له دې حديث څخه معلومه سوه چې په کفو کې نکاح کول او د کفو په نکاح کې تعجيل کول پکار دي.

**ولأن انتظام إلخ:** عقلي دليل دا دی چې په نکاح کې ډېر مصلحتونه او منافع دي، د مثال په توګه توالد او تناسل، د خاوند او ښځې تر مينځ د ميني، محبت او اطمينان ژوند او داسې نور. او دا مصلحتونه

هغه وخت په پوره توګه حاصلېدای سي کله چي خاوند او ښځه يو د بل کفو وي، ځکه چي ښځه د خاوند فراش (بستر) جوړېږي (او تر خاوند لاندي پرېوځي) او دا فطري خبره ده چي که ښځه له شريف او لوړ خانداني څخه وي نو هغه دا نه خوښوي چي د يو کمتره او سپک خاوند فراش جوړه سي بلکي داسي رشته او نکاح ډېره پر درنېږي، نو ځکه په نکاح کي د کفائت اعتبار کول ضروري دي.

**بخلاف جانبها إلخ**: د دې په خلاف د ښځي په طرف کي د کفائت اعتبار کول ضروري نه دي. يعني که خاوند له شريف خاندان څخه وي او ښځه د ټيټ او کمتره خاندان سره تعلق لري نو په دې کي هيڅ حرج نسته، ځکه چي خاوند د ښځي فراش نه جوړېږي (تر ښځي لاندي نه پرېوځي) بلکي هغه فراش جوړونکی دی، نو د ښځي کموالی او ټيټوالی پر هغه نه درنېږي.

**وإذا زوجت إلخ**: په دې عبارت کي د کفائت په اعتبار کولو باندي يوه مسئله تفريع کوي، حاصل يې دا دی که چيري يوه ښځه د غير کفو سره خپله نکاح وکړي، نو څرنګه چي د هغې دا کار د ولي په حق کي د پېغور او عيب سبب دی او هغه په دې سره شرم محسوسوي، نو ځکه ولي ته دا اجازه سته چي د قاضي په حکم سره د هغې نکاح ماته کړي، په دې شرط چي تر اوسه د دې ښځي کوچنی پيدا سوی نه وي، لېکن که کوچنی پيدا سوی وي، نو بيا يې نکاح نه سي ماتولای.

## په کفائت کي د به د کومو شيانو اعتبار کيږي؟

ثُمَّ الْكَفَاءَةُ تُعْتَبَرُ فِي النَّسَبِ بيا به د کفائت اعتبار کيږي په نسب کي [يعني په کفو کي به يو د نسب اعتبار کيږي] لِأَنَّهُ يَقَعُ بِهِ التَّفَاخُرُ ځکه چي په نسب سره فخر کيږي [او د فخر او لوړوالي ذريعه ګڼل کيږي] فَقُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ نو قريش [په خپل مينځ کي] يو د بل کفو دي وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ او عرب [په خپل مينځ کي] يو د بل کفو دي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ ﷺ [1] او اصل په دې باره کي د نبي ﷺ دا قول دی «قُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ بَطْنٌ بِبَطْنٍ "قريش ځيني د ځينو کفو دي يو بطن د بل بطن وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ قَبِيلَةٌ بِقَبِيلَةٍ او عرب ځيني د ځينو کفو دي يوه قبيله د بلي قبيلي وَالْمَوَالِي بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ رَجُلٌ بِرَجُلٍ» او عجم ځيني د ځينو کفو دي يو کس د بل کس" وَلَا يُعْتَبَرُ التَّفَاضُلُ فِيمَا بَيْنَ قُرَيْشٍ او د قريشو [په خپل مينځ کي] يو تر بل افضله کېدل معتبر نه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ [اوس] نقل کړی وَعَنْ مُحَمَّدٍ كَذَلِكَ او له امام محمد

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب النكاح، باب اعتبار الصفة في الكفاءة، باب: ۱۳۷۶۹.

رَحِمَهُ الله ځخه هم دغسي نقل سوي دي [چي د قریشو په خپل مینځ کي یو تر بله افضله کېدل معتبر نه دي]
إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَسَبًا مَشْهُورًا خو دا چي [په قریشو کي] یو مشهور نسب وي كَأَهْلِ بَيْتِ الْخِلَافَةِ لکه د
خلافت کورنی كَأَنَّهُ قَالَ تَعْظِيمًا لِلْخِلَافَةِ وَتَسْكِينًا لِلْفِتْنَةِ ګواکي امام محمد رَحِمَهُ الله د خلافت د
احترام کولو او د فتنې د آرامولو [او ختمولو] په غرض دا خبره کړې ده وَبَنُو بَاهِلَةَ لَيْسُوا بِأَكْفَاءَ لِعَامَّةِ
الْعَرَبِ او بنو باهله د عامو عربو کفو نه دي لِأَنَّهُمْ مَعْرُوفُونَ بِالْخَسَاسَةِ ځکه چي هغوی په رذالت سره
مشهوره دي.

**اللغات:** ﴿التَّفَاخُر﴾ د تفاعل اسمِ مصدر دی: یو پر بل فخر کول. فخر او وياړ ځرګندول. په یوشي نازېدل. ﴿مَوَالِي﴾ جمع د "مَوْلٰى" ده. مَوْلٰى آزاد کړی سوي غلام ته هم وایي او د غلام مالک ته هم وایي، همدارنګه نوري معناوي هم لري چي هغه دا دي: مددګار. محبت کونکی. ملګری. انعام ورکونکی، همسایه. مېلمه. شریک. قریب. دلته ځني مراد عجم دي یعني هغه څوک چي عرب نه وي. وجه تسمیه به يې په را روان عبارت کي ذکر سي. ﴿تَفَاضُل﴾ د تفاعل مصدر دی: یو پر بل افضل کېدل. ﴿تَسْكِين﴾ د تفعیل مصدر دی: آرامول. جوش کمول. ﴿خَسَاسَة﴾ د سمِع مصدر دی: رذالت (د لاندي او ټيټي درجې کېدل). ټيټتوب. کچه توب.

**تشریح:** له دې ځای ځخه صاحب د کتاب د هغو شیانو په بیان شروع کوي چي د احنافو په نېز به په هغوی کي د کفائت اعتبار کیږي. او هغه ټوله شپږ شیان دي: ① نسب. ② اسلام. ③ آزادي. ④ دین. ⑤ مال. ⑥ کسب و پېشه.

صاحب د کتاب تر ټولو مخکي په نسب کي د کفائت بیان کوي. فرمایي چي په کفو کي به د نسب اعتبار کیږي یعني د خاوند او ښځي دواړو نسب به سره نژدې، نژدې وي. داسي به نه وي چي د یوه نسب قریش وي او د بل نسب ډېر د کښتني درجې وي. د دې وجه دا ده چي خاوند او ښځه د حسب ونسب په لوړوالي سره یو پر بل فخر کوي. او په خپل نسب نازېدل او فخر کول د خلګو عادت دی. نو ځکه به د خاوند او ښځي نسبونه سره نژدې وي او یو به د بل کفو وي.

په دې باره کي زموږ نقلي دلیل د نبي کریم ﷺ دا حدیث دی چي (قریش په خپل مینځ کي یو د بل کفو دي. او له قریشو ځخه بغیر نور عرب یو قوم د بل قوم کفو دی. او ټوله عجم یو د بل کفو دي). په دې حدیث سره هم زموږ د مذهب تائید کیږي. لهذا په کفائت کي به د نسب اعتبار کیږي.

**ولا يعتبر إلخ:** په قریشو کې ستر پېغمبر نبي کريم ﷺ پيدا سوی دی، لهذا هغه يو ډېر محترم خاندان دی، نو ټوله قريش يو د بل کفو دي او په هغو کې يوه ته پر بل فضيلت او فوقيّت حاصل نه دی (د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز)، ځکه چې په پورتني حديث کې نبي کريم ﷺ ټوله قريش بغير له څه فضيلت څخه په خپل مينځ کې کفو ګڼلي دي، لهذا که له سيد او خليفه خاندان څخه يو کس د بل غيرِ سيد سره نکاح وکړي او هغه له قريشو څخه وي، نو په دې کې هيڅ حرج نسته.

**وعن محمد إلخ:** فرمايي چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه هم بعينهٖ همدا خبره نقل سوې ده چې قريش په خپل مينځ کې يو پر بل فضيلت نه لري، لېکن هغه د احترام او د فتنې وفساد د اختتام په غرض د قريشو خليفه خاندان تر نورو قريشو افضل ګڼلی دی، نو که د خليفه خاندان ښځه د بل داسي قريشي سره نکاح وکړي چې هغه د خلافت له خاندان څخه نه وي، نو د هغه ښځي ولي ته د نکاح ماتولو حق او اختيار سته. (لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په هيڅ صورت کې يوه ته پر بل فضيلت حاصل نه دی، او راجح قول هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دی [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۰])

**وبنو باهلة إلخ:** فرمايي چې "بنو باهِله" يعني "قيس بن غيلان" که څه هم عرب دي، خو د نورو عربو کفو نه دي؛ ځکه د هغو قبيله ډېر د لاندي درجې ده ، ځکه چې د هغو په باره کې دا خبره مشهوره ده چې د مردار سوي حيوانانو هډوکي جمع کوي او بيا يې پخوي او له هغوی څخه غوړي او مُو راباسي او بيا دغه مردار غوړي او مُو استعمالوي، نو دا ډېر مردار خور او د کښتي درجې قوم دی، نو ځکه به هغوی د نورو عربو کفو نه وي.

## ﴿د شعب، قبيله، بطن او د داسي نورو فرق﴾

عربي يو ډېره جامع ژبه ده، او د يوه شي لپاره عرب په لسګونو نومان استعمالوي، همدارنګه د قوم په باره کې هم دوی ډېر الفاظ استعمالوي، د مثال په توګه: ① شعب: د ډېرو قومونو او قبيلو مجموعه ته وايي، مثلاً ربيعه او مضر شعب دی، ② قبيله: دا تر شعب کوچنی وي، مثلاً کنانه قبيله ده. ③ عمارة: دا تر قبيلې کوچنی وي، مثلاً قريش عماره ده، ④ بطن: دا تر عمارې کوچنی وي، مثلاً قُصي بطن دی، ⑤ فخذ: له بطن څخه کوچنی وي، مثلاً هاشم فخذ دی. ⑥ فصيلة: دا له فخذ څخه کوچنی وي، مثلاً عباس فصيله ده.

## په عجمو کې د کفائت بیان

وَأَمَّا الْمَوَالِي او کوم چې عجم دي فَمَنْ كَانَ لَهُ أَبَوَانِ فِي الْإِسْلَامِ فَصَاعِدًا نو هغه عجمي کس چې د هغه دوه پلاره [یعني پلار او نیکه] په اسلام کې وي یا زیات [یعني چې د هغه دوه پښته یعني پلار او نیکه دواړه مسلمانان وي یا یې تر دوو زیات پښتونه مسلمانان وي یعني ور نیکه، تر نیکه او داسې نور] فَهُوَ مِنَ الْأَكْفَاءِ نو هغه له کفو خلکو څخه يَعْنِي لِمَنْ لَهُ آبَاءٌ فِيهِ یعني د هغه چا [کفو دی] چې په اسلام کې د هغه ډېر پلرونه [نیکه ګان] وي [یعني چې هغه له پخوانیو پښتونو څخه مسلمان را روان وي] وَمَنْ أَسْلَمَ بِنَفْسِهِ أَوْ لَهُ أَبٌ وَاحِدٌ فِي الْإِسْلَامِ او چا چې [یوازې] په خپله اسلام راوړی وي یا فقط د هغه یو پلار په اسلام کې وي [یعني فقط له یو پښت څخه مسلمان وي] لَا يَكُونُ كُفُوًا لِمَنْ لَهُ أَبَوَانِ فِي الْإِسْلَامِ نو داسې کس به د هغه سړي کفو نه وي چې د هغه پلار او نیکه [دواړه] په اسلام کې وي [د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز] لِأَنَّ تَمَامَ النَّسَبِ بِالْأَبِ وَالْجَدِّ ځکه چې په همدې پلار او نیکه سره نسب پوره کیږي وَأَبُو يُوسُفَ ❁ أَلْحَقَ الْوَاحِدَ بِالْمُثَنَّى او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله یو [پښت] د دوو [پښتونو] سره یو ځای کړی دی كَمَا هُوَ مَذْهَبُهُ فِي التَّعْرِيفِ لکه څرنګه چې [د سړي] په تعریف [پېژندګلوی] کې دا د هغه مذهب دی وَمَنْ أَسْلَمَ بِنَفْسِهِ او چا چې [یوازې] په خپله اسلام راوړی وي [یعني پلار یې مسلمان نه وي بلکې هغه نوی اسلام قبول کړی وي] لَا يَكُونُ كُفُوًا لِمَنْ لَهُ أَبٌ وَاحِدٌ فِي الْإِسْلَامِ نو داسې کس به د هغه سړي کفو نه وي چې د هغه یو پلار وي په اسلام کې لِأَنَّ التَّفَاخُرَ فِيمَا بَيْنَ الْمَوَالِي بِالْإِسْلَامِ ځکه چې د عجمو په خپل مینځ کې یو پر بل فخر کول په اسلام سره دی [ځکه چې د هغوی نسب ګډوډ او مختلط وي، نو د دوی په خپل مینځ کې به اسلام د فخر ذریعه ګڼل کیږي] وَالْكَفَاءَةُ فِي الْحُرِّيَّةِ نَظِيرُهَا فِي الْإِسْلَامِ او په آزادوالي کې کفو کېدل مشابه دي په اسلام کې د کفو کېدلو سره فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا په هغه ټولو صورتونو کې کوم چې [اوس] موږ ذکر کړل لِأَنَّ الرِّقَّ أَثَرُ الْكُفْرِ ځکه چې غلامتوب د کفر اثر دی وَفِيهِ مَعْنَى الذُّلِّ او [ځکه چې] په غلامتوب کې د ذلت [او ټیټوب] معنیٰ سته فَيُعْتَبَرُ فِي حُكْمِ الْكَفَاءَةِ نو ځکه به د کفائت په حکم کې د دې اعتبار کیږي.

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في فتح القدير (ج:٣، ص:١٩١)، وكذا في رد المحتار (ج:٢، ص:٣٤٦). [القول الراجح ج:١، ص:٢٦٢]

**اللغات:** ﴿مَوَالِي﴾ عجم، ناعرب، آزاد کړی سوی غلام (تفصيل به يې په تشريح کي ذکر سي)، ﴿فَصَاعِدًا﴾ او تر دې زيات، ﴿حُرِّيَّة﴾ آزادي، ﴿رِقّ﴾ غلامي (غلامتوب)، ﴿الذُّل﴾ ذِلت (ذليل توب)، مغلوبيت (ټيټتوب).

**تشريح:** په مخکني عبارت کي د عربو د کفائت بيان وسو، په دې عبارت کي د "موالي" يعني د عجمو د کفائت بيان سوی دی، "موالي" جمع د "مولیٰ" ده چي د هغه يوه معنیٰ ده "مددګار" او بله معنیٰ يې ده "آزاد کړی سوی غلام"، علامه کاکي رَحِمَهُ الله فرمايي چي عجمو ته ځکه "موالي" وايي چي هغو د عربو مدد او مرسته وکړه، يا ځکه چي عربو په زوره د هغو سيمي لاندي کړې او پر هغو يې قبضه وکړه نو ګواکي عربو هغوی يو ډول خپل غلامان جوړ کړل او بيا يې آزاد کړل، همدا د تاجُ الشريعة رَحِمَهُ الله تحقيق دی. (بنايه شرح هدايه)

تر دې وضاحت وروسته د مسئلې حاصل دا دی چي د عجمو نسب خلط ملط او ګډ وډ دی، نو د دوی په کفائت کي به د اسلام زيات اعتبار کيږي او د دوی په مينځ کي به اسلام د فخر ذريعه ګڼل کيږي، او د اسلام په باره کي دا قاعده په ياد لرئ! چي که د يو کس دوه پښته مسلمانان وي (يعني پلار او نيکه يې دواړه مسلمانان وي) هغه داسي دی لکه پخوانی مسلمان او هغه د پخواني مسلمان کفو دی (يعني د هغه مسلمان کفو دی چي پخواني ټولو پښتونو يې اسلام راوړی وي او له ډېر پخوا څخه هغه مسلمان را روان وي) او که د چا فقط يو پښت مسلمان وي (يعني فقط پلار يې اسلام راوړی وي او تر پلار مخکي يې نور پښتونه مسلمانان نه وي)، نو هغه د دوو پښتونو والا مسلمان سره نه برابرېږي (يعني د هغه مسلمان کفو نه دی چي پلار او نيکه يې دواړه مسلمانان وي يا له پخوا څخه مسلمان را روان وي، بلکي تر هغه کم دی)؛ د دې وجه دا ده چي نسب پر دوو پښتونو بشپړ ګرځي، ځکه په ټولنه کي د يو چا تعارف او پېژندنه په پلار او نيکه سره کيږي او تر نيکه پوري چي نسب صحيح او برابر وي نو هغه بنه خاندان ګڼل کيږي، نو ځکه به د دوو پښتونو والا مسلمان د ډېرو پښتونو والا مسلمان کفو وي، او د يوه پښت والا مسلمان به داسي نه وي.

**وأبويوسف إلخ:** امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د کوم چا يو پښت يعني پلار مسلمان وي هغه د پخواني مسلمان په درجه کي دی او پخواني مسلمان کفو دی؛ د دې وجه امام ابو يوسف دا بيانوي چي

په ګواهۍ (شهادت) او داسې نورو ځايونو کې د سړي تعارف او پېژندګلوي فقط د پلار په نامه سره کيږي يعني فقط د پلار د نوم په ذکر کولو سره هغه پېژندل کيږي او د نيکه د نوم ذکر کولو ته ضرورت نه وي، نو کله چې فقط په پلار سره د انسان تعارف کيږي، نو د پلار مسلمان کېدل به داسې وي لکه هغه چې پخوانی مسلمان وي؛ لېکن طرفين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په ګواهۍ کې د پلار د نامه سره د نيکه نوم ذکر کول هم ضروري دي ځکه ديو چا تعارف په پلار او نيکه سره بنه کيږي او بشپړ کيږي، نو ځکه د دوی په نېز ديوه پښت والا مسلمان د پخواني مسلمان په شير نه دی.

**ومن أسلم بنفسه إلخ**: فرمايي که څوک فقط په خپله مسلمان وي ( پلار يې مسلمان نه وي)، نو هغه د داسې کس کفو نه سي کېدای چې د هغه يو پښت مسلمان وي (يعني پلار يې هم مسلمان وي)، ځکه مخکې موږ ووېل چې د عجمو په کفائت کې به د اسلام اعتبار کيږي او اسلام به د فخر ذريعه ګڼل کيږي، او دا ښکاره خبره ده چې څوک فقط په خپله مسلمان وي هغه تر داسې کس ټيټ او کم دی چې د هغه يو پښت مسلمان وي نو ځکه به د هغه کفو نه وي، او د چا چې يو پښت مسلمان وي نو هغه به د داسې کس کفو نه دی چې د هغه دوه پښته مسلمانان وي.

**والکفاءة في الحرية إلخ**: د دې حاصل دا دی چې په کوم ترتيب سره په اسلام او کفر کې د کفو اعتبار کيږي، خاص د هغه ترتيب مطابق به په حُرّيت او غلامتوب (رِقيّت) کې هم د کفو اعتبار کيږي، يعني څوک چې له دوو پَښتونو څخه آزاد وي (يعني پلار او نيکه يې دواړه آزاد وي) نو هغه د داسې کس کفو دی چې هغه له ډيرو پَښتونو څخه آزاد را روان وي، او څوک چې له يوه پښت څخه آزاد وي هغه د داسې کس کفو نه دی چې هغه له دوو پښتونو څخه آزاد وي، او څوک چې فقط په خپله آزاد وي هغه د داسې کس کفو نه دی چې هغه له يوه پښت څخه آزاد وي (يعني پلار يې آزاد وي)؛ د دې وجه دا ده چې په رِقيّت کې هم د کفر اثر سته، او دا تاسې ته معلومه ده چې په کفر او اسلام کې کفائت نسته، لهذا په رقيّت او حُرّيت کې به هم کفائت نه وي، او بل دا چې په رِقيّت کې د ذلالت او ټيټتوب معنیٰ هم سته، نو ځکه به د دې خبرې اعتبار کيږي چې هغه له څومره پښتونو څخه د غلامتوب له قيد څخه آزاد سوی دی، کنې د حُرّيت او رِقيّت تر مينځ به هيڅ فرق را نه سي، حال دا چې د دوی په مينځ کې د ځمکې او آسمان فرق دی.

## په ديندارۍ کې د کفائت بيان

قَالَ: وَتُعْتَبَرُ أَيْضًا فِي الدِّيْنِ أَيْ الدِّيَانَةِ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: چې په دين کې به هم د کفائت اعتبار کيږي يعني په دينداري [نيک عملي] کې وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ [*] او دا د امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله [دواړو] قول دی هُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح ده اچې دا دواړو قول دی يوازې د امام صاحب قول نه دی] لِأَنَّهُ مِنْ أَعْلَى الْمَفَاخِرِ ځکه چې دا [ديندارې] د فخر لوړه ذريعه ده [يعني دينداري او نيک عملي د فخرونو سر ده او د خلکو په مينځ کې د فخر ستره ذريعه ګڼل کيږي] وَالْمَرْأَةُ تُعَيَّرُ بِفِسْقِ الزَّوْجِ فَوْقَ مَا تُعَيَّرُ بِضَعَةِ نَسَبِهِ او ښځې ته د خاوند پر فاسقوالي تر دې زيات پېغور ورکول کيږي څومره چې د خاوند د نسب پر ټيټوب ورکول کيږي امطلب دا چې د خاوند د نسب رذالت او ټيټوب د ښځې لپاره دومره شرم او پېغور نه وي څومره چې د خاوند فسق او بد عملي د هغې لپاره شرم او پېغور وي] وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا تُعْتَبَرُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [په کفائت کې به د ديندارۍ] اعتبار نه کيږي لِأَنَّهُ مِنْ أُمُورِ الْآخِرَةِ ځکه چې دا [ديندارې] د آخرت له أمورو څخه ده [يعني ديندارې د آخرت يو معامله ده او نکاح غالبًا د دنيا معامله ده] فَلَا تُبْتَنَى عَلَيْهِ أَحْكَامُ الدُّنْيَا لهذا پر هغه [أخروي أمورو] به دنياوي احکام نه بناء کيږي إِلَّا إِذَا كَانَ يُصْفَعُ خو دا چې کله خاوند په څپېړو وهل کيږي وَيُسْخَرُ مِنْهُ او ملنډې په وهل کيږي أَوْ يَخْرُجُ إِلَى الْأَسْوَاقِ سَكْرَانَ او يا د نشې په حالت کې د بازار و طرف ته وځي وَيَلْعَبُ بِهِ الصِّبْيَانُ او کوچنيان په هغه بازۍ کوي أنو په داسې صورت کې به د ديندارۍ اعتبار کيږي او داسې خاوند به د ښځې کفو نه وي] لِأَنَّهُ مُسْتَخَفٌّ بِهِ ځکه چې د دې [شيانو] په وجه هغه سپک [او رذيل] ګڼل کيږي.

**اللغات:** ﴿دِيَانَة﴾ نيک عملي، ديندارې، د دين د احکامو پابندي کول، ﴿مَفَاخِر﴾ جمع د "مَفْخَرَةٌ" ده: د فخر شی يا د فخر خبره (يعني داسې شی يا خبره چې په هغه فخر کيږي)، د فخر ذريعه، افعالِ حميده (ښه کارونه)، ﴿تُعَيَّر﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: پېغور او تانه ورکول، عيب

---

[*] القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله لأنه قول المتون، لكن افتى الفقهاء بقول محمد رَحِمَهُ الله، لأنه موافق بأحوال الزمان. قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وفي المحيط: الفتوىٰ على قول محمد رَحِمَهُ الله وهو موافق لاختيار السرخسي رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:٣، ص:١٩٢). [القول الراجح ج:١، ص: ٢٦٣]

لګول، ﴿فِسْق﴾ بې لاري، فاسقتوب، بې ديني، ﴿ضَعَة﴾ د کرُم د باب مصدر دی: ټیټېدل، دانی درجې والا کېدل (رذالت)، ﴿يُضْفَع﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده: په چکه وهل، په څپېړه وهل (څپېړه ور سره کول)، ﴿مُسْتَخَفٌ﴾ د استفعال د باب اسم مفعول دی: سپک ګڼل سوی، رذيل، خوار.

**تشريح: مسئله**: دا ده چې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به په کفائت کې د خاوند له طرفه د "دين" اعتبار هم کيږي، همدا صحيح دي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې له "دين" څخه مراد ديانت (دينداري) ده (يعني تقوىٰ، نېک عملي، طهارت [پاکيزه ګي]، ښه اخلاق)، ځکه که له دين څخه "اسلام" مراد کړی سي نو له اسلام څخه بغير خو بالکل د مسلمانانو نکاح نه صحيح کيږي، او له ديندارۍ څخه بغير صحيح کيږي خو وروسته به ولي ته د نکاح د ماتولو حق حاصل وي؛ په کفائت کي د ديندارۍ د اعتبار کولو دليل دا دی چې دينداري له هغو شيانو څخه يو اعلىٰ او ستر شی دی کوم چې د فخر ذريعه ګڼل کيږي، لکه څرنګه چې الله تعالىٰ فرمايلي دي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللهِ أَتْقَاكُمْ﴾ [سورة الحجرات:۱۳]، دويم دليل دا دی چې د خاوند د نسب د ټيټوالي په وجه چې خلک څومره پېغور او تانې ښځې ته ور کوي، د خاوند د فاسقوالي او بدکارۍ په وجه به تر هغه زيات پېغور او تانې ور کوي.

لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله په "ديندارۍ" کې د کفائت اعتبار نه دي کړی، هغه فرمايي چې تقوىٰ، نېک عملي او داسي نور شيان د آخرت سره تعلق لري، او په نکاح کي دنياوي اُمور او معاملات غالب دي، لهذا د آخرت اُمور به د دنيا د اُمورو لپاره شرط او ضروري نه ګرځول کيږي او د هغوی اعتبار به نه کيږي.

خو که د يو ښځې خاوند دومره په فسق او فجور مبتلا وي او دومره پکښې غرق وي چې خلک ملنډي په وهي او د هر چا چې خوښه وي څپېړه ور سره کوي، مثلاً د يو ښځې خاوند هر وخت په نشې مبتلا وي او چې د نشې په حالت کې را ووځي نو کوچنيان بازۍ په کوي او سپکاوی يې کوي، څرنګه چې دا ډېره د ذلالت خبره ده! او په دې سره هغه انتهايې خوار او سپک ګڼل کيږي!، نو ځکه داسي سړی د نېکي ښځې کفو کېدلای نه سي. لېکن په عامو حالاتو کې به (د امام محمد په نېز) د ديندارۍ اعتبار نه کيږي.

## په مال کي د کفائت بيان

قَالَ: وَ تُعْتَبَرُ فِي الْمَالِ فرمايي: چي په مال کي به [هم] د کفائت اعتبار کيږي وَهُوَ أَنْ يَكُوْنَ مَالِكًا لِلْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ او د مال مطلب دا دی چي خاوند به د مهر او نفقې [خرچې] مالک وي ايعني پر دواړو به قدرت لري] وَهٰذَا هُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په ظاهر روايت کي همدې ته اعتبار ورکول سوی دی حَتّٰى أَنَّ مَنْ لَّا يَمْلِكُهُمَا تر دې چي که څوک د دواړو مالک نه وي أَوْ لَا يَمْلِكُ أَحَدَهُمَا يا د يوه مالک نه وي لَا يَكُوْنُ كُفْئًا نو هغه به کفو نه وي لِأَنَّ الْمَهْرَ بَدَلُ الْبُضْعِ ځکه چي مهر د بضع بدل [عوض] دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِيْفَائِهٖ نو ځکه د هغه پوره اداء کول ضروري دي وَبِالنَّفَقَةِ قِوَامُ الْاِزْدِوَاجِ وَدَوَامُهٗ او د زوجيّت قرابت په نفقې سره قائم او دائم دی وَالْمُرَادُ بِالْمَهْرِ قَدْرُ مَا تَعَارَفُوْا تَعْجِيْلَهٗ او له مهر څخه مراد دومره اندازه [مهر] دی چي [تر نکاح ترلو وروسته] د هغه ژر اداء کول متعارف وي [يعني دومره مهر چي په عُرف کي خلک هغه ژر ورکوي] لِأَنَّ مَا وَرَاءَهٗ مُؤَجَّلٌ عُرْفًا ځکه چي له دې څخه بغير په عرف کي مؤجل دی [يعني له مهرِ مُعجّل څخه بغير چي نور کوم مهر دی هغه په عامه توګه د خلکو په عرف کي په ځنډ او تأخير سره ورکول کيږي] وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّهُ اعْتَبَرَ الْقُدْرَةَ عَلَى النَّفَقَةِ دُوْنَ الْمَهْرِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي هغه پر نفقې د قدرت لرلو اعتبار کړی دی، نه پر مهر لِأَنَّهٗ تَجْرِي الْمُسَاهَلَةُ فِي الْمَهْرِ ځکه چي په مهر کي نرمي جاري وي [يعني په عامه توګه د مهر په سلسله کي د سړي سره پلار او خسرګنی د نرمۍ معامله کوي] وَيُعَدُّ الْمَرْءُ قَادِرًا عَلَيْهِ بِيَسَارِ أَبِيْهِ او د پلار په مالدارۍ سره سړی پر مهر قدرتمن شمارل کيږي فَأَمَّا الْكَفَاءَةُ فِي الْغِنٰى او کوم چي په مالدارۍ [يعني د نصاب په مالک کېدلو] کي کفوه کېدل دي فَمُعْتَبَرَةٌ فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په قول کي هغه [هم] معتبر دي حَتّٰى إِنَّ الْفَائِقَةَ فِي الْيَسَارِ تر دې چي کومه ښځه په مالدارۍ کي لوړه وي [يعني د نصاب مالکه وي] لَا يُكَافِئُهَا الْقَادِرُ عَلَى الْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ نو داسي سړی د هغې کفو کېدای نه سي کوم چي پر مهر او نفقه قدرت لري [او د نصاب مالک نه وي] لِأَنَّ النَّاسَ يَتَفَاخَرُوْنَ بِالْغِنٰى ځکه چي خلک په مالدارۍ سره فخر کوي وَيَتَعَيَّرُوْنَ بِالْفَقْرِ او غريبي [مسکيني] عيب ګڼي وَقَالَ أَبُو

يُوسُفَ ۞: لَايُعْتَبَرُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [په كفائت كي به د مالداري] اعتبار نه كيږي لِأَنَّهُ لَاثَبَاتَ لَهُ ځكه مالدارتوب لره هيڅ قرار [او پايښت] نسته إِذِ الْمَالُ غَادٍ وَرَائِحٌ ځكه چي مال سهار او ماښام تلونكى او راتلونكى دى [يعني سهار به يو انسان مالدار وي ليكن ماښام ته به دېوالي وي، او سهار به يو انسان غريب وي ليكن ماښام ته به مالدار وي].

**اللغات:** ﴿نَفَقَة﴾ د خوراک او څښاک خرچه، د ژوند تېرولو خرچه (د ګزارې خرچه). ﴿بُضْع﴾ جمع يې "أَبْضَاع" راځي، لکه د "قُفْل" جمع چي "أَقْفَال" راځي: د دې لفظ څو معناوي دي: د ښځي فرج (شرمګاه)، جماع، د ښځي وادول او نکاح ور ترل، دلته ځني مراد د ښځي مقصودي غړى "شرمګاه" ده. ﴿إِزْدِوَاج﴾ د افتعال مصدر دى: نکاح کول، واده کول، د خاوند او ښځه سره جوړه کېدل (يو ځاى کېدل). (د خاوند او ښځي قرابت)، ﴿مُسَاهَلَة﴾ د مفاعلې مصدر دى: نرمي کول، نرم چلند کول، آساني کول. ﴿مَرْء﴾ سړى، ﴿يَسَار﴾ مالداري (مال لرنه)، شتمني، سرمايه داري، دا لفظ نوري معناوي هم لري يعني چپه طرف، آساني. ﴿غَادٍ﴾ د نصر د باب د اسمِ فاعل دى، غَدَا، يَغْدُو، غُدُوًّا: د سهار په وخت کي تلل يا راتلل (واپس کېدل)، د کثرتِ استعمال په وجه مطلق "تګ او راتګ" ته هم وايي هغه که په هر وخت کي وي. ﴿رَائِح﴾ دا هم د نصر د باب اسمِ فاعل دى: د ماښام په وخت کي راتلل يا تلل يا يو بل کار کول، دا باب هم د "غَدَا. يَغْدُو" په څېر ځيني وخت د مطلق "تګ او راتګ" په معنىٰ استعمالېږي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي په مال کي به هم د کفائت اعتبار کيږي، د مال مطلب دا دي چي خاوند به د مهر او نفقې قدرت لري، حتىٰ که خاوند د دواړو قدرت نه لري يا فقط د يوه قدرت لري نو هغه د فقيري ښځي هم کفو کېدلاى نه سي؛ پر مهر قدرت لرل (او د مهر مالک کېدل) ځکه ضروري دي چي مهر د ملکِ بضع بدل او عوض دى او خاوند د نکاح په ذريعه د مُبدل يعني د ښځي د بضع مالک کيږي نو په دې وجه پر خاوند لازم دي چي د تېوله بدل يعني د مهر مالک وي او د هغه پر اداء کولو قدرت لري، او څرنګه چي د خاوند او ښځي د زوجيّت قرابت پر نفقې موقوف او قائم دى، نو ځکه به د نفقې اعتبار هم په کفائت کي کيږي.

**والمراد إلخ:** د مهر په هکله چي اوس کومه خبره وسوه (چي خاوند به پر مهر قدرت لري)، له هغه څخه مهرِ مُعجّل مراد دى، نه مهرِ مؤجل. (مهرِ معجل [د تلوار مهر] هغه مهر ته وايي چي د نکاح د ترلو

---

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: الكفاءة في الغنى...الأصح أن ذلك لا يعتبر، لأن كثرة المال مذمومة (فتح القدير ج:۳، ص:۱۹۳)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۴۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۶۴]

په وخت کي د هغه ورکول په عُرف کي ضروري ګڼل کيږي، او کوم مهر چي وروسته ورکول کيږي هغه ته مهرِ مؤجل [ځنډني مهر] وايي).

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په غيرِ ظاهر روايت کي يو دا قول هم نقل سوی دی چي په کفائت کي به د مهر اعتبار نه کيږي، فقط د نفقې اعتبار به کيږي، ځکه چي د مهر په باره کي له نرمۍ څخه کار اخيستل کيږي او پلار د مالدارۍ په وجه هم خاوند پر مهر قدرتمن ګڼل کيږي، ځکه چي په عامه توګه پلار په مهر کي د زوی سره مرسته کوي خو په نفقه کي يې نه ورسره کوي.
صاحب د هدايې د نفقې مودت نه دي ذکر کړی نه دي چي څومره وخت پر نفقه قدرت لرل ضروري دي، نو په دې باره کي څلور قولونه دي: ① يو مياشت، ② دوې مياشتي. ③ شپږ مياشتي، ④ يو کال، خو غوره خبره دا ده چي که خاوند په کسب او کار سره ښځي ته نفقه ورکولای سي، نو هغه به پر نفقې قادر ګڼل کيږي او د ښځي کفو به وي.

**فأما الكفاءة إلخ**: پا ته سوه دا خبره چي په کفائت کي به د "غِنَىٰ" يعني د نصاب د مالک کېدلو اعتبار کيږي، که نه؟ د طرفينو مذهب دا دی چي اعتبار به يې کيږي، لهذا که يوه ښځه د نصاب مالکه وي نو داسي سړی د هغې کفو کېدلای نه سي کوم چي د نصاب مالک نه وي که څه هم پر نفقه او مهر قدرت لري، ځکه چي مالداري په دنيا کي د فخر علامت (نښه) ګڼل کيږي، او غريبي د ذِلت او سپکاوی علامت ګڼل کيږي.

لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په کفائت کي به د "غنى" اعتبار نه کيږي، ځکه چي مالداري دوام او بقاء نه لري سهار به انسان مالدار وي لېکن ماښام ته به غريب او ډېوالي وي، نو که په کفائت کي د داسي بې دوامه شي اعتبار وسي، نو د نکاح په معامله به کي حرج او ستونزه پيدا سي کوم چي مناسب نه دي، نو ځکه به د دې اعتبار نه کيږي.

## په کسب او پېشه کي د کفائت بيان

وَتُعْتَبَرُ فِي الصَّنَائِعِ او په کسبونو کي به [هم] د کفو اعتبار کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ* او دا [حکم] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي ذٰلِكَ رِوَايَتَانِ او له امام صاحب

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما قال في الهندية: صاحب الحرفة الدنيئة...إلى أن قال: لايكون كفوًا للعطار والبزاز والصراف، هو الصحيح (الهندية ج:١، ص:٢٩٢)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:١، ص:٣٤٢). [القول الراجح ج:١، ص:٢٦٢]

رَحِمَهُ الله څخه په دې هکله دوه روايتونه انقل سوي] دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ لَا تُعْتَبَرُ إِلَّا أَنْ تَفْحُشَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [په بل روايت کي] نقل سوي دي: چي [په کفائت کي به د کسب] اعتبار نه کيږي خو دا چي کسب ډېر ناوړه وي [يعني ډېر د لاندي درجې وي] كَالْحَجَّامِ وَالْحَائِكِ وَالدَّبَّاغِ لکه ښکر لګونکی او جولاګر او رنګرېز وَجْهُ الِاعْتِبَارِ: أَنَّ النَّاسَ يَتَفَاخَرُوْنَ بِشَرَفِ الْحِرَفِ د کفائت د اعتبار کولو دليل دا دی: چي خلک د کسب په ښه والي [او ستر والي] فخر کوي وَيَتَعَيَّرُوْنَ بِدَنَاءَتِهَا او د هغه سپکتوب [او ټيټوب] عيب ګڼي وَجْهُ الْقَوْلِ الْآخَرِ: أَنَّ الْحِرْفَةَ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ او د بل قول دليل دا دی: چي کسب يو لازمي شی نه دی وَيُمْكِنُ التَّحَوُّلُ عَنِ الْخَسِيْسَةِ إِلَى النَّفِيْسَةِ مِنْهَا او له رذيله [ټيټ] کسب څخه و غوره کسب ته نقل کېدل ممکن دي.

**اللغات:** ﴿الصَّنَائِعُ﴾ کسبونه، پېشې، کاريګرۍ. ﴿تَفْحُشُ﴾ د کرُم د باب مضارع ده: بدېدل، ناوړه کېدل، قبيح کېدل. ﴿حَجَّامٌ﴾ ښکر لګونکی (وينه ايستونکی)، ښاخک لګونکی. ﴿حَائِكٌ﴾ جولا، جولاګر (ټوکر اوبدونکی). ﴿دَبَّاغٌ﴾ د پوست او څرمني رنګونکی (د څرمني پخونکی). ﴿دَنَاءَةٌ﴾ سپکتوب، ټيټوب. ﴿خَسِيْسَةٌ﴾ د سمِع له باب څخه د صفت صيغه ده: رذيله، ټيټه. ﴿نَفِيْسَةٌ﴾ د کرُم له باب څخه د صفت صيغه ده: غوره، مرغوب، زړه ته نژدې.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به په کسب او پېشه کي هم د کفائت اعتبار کيږي، او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي: په يوه روايت کي هغه ويلي دي چي د کسب او پېشې اعتبار به کيږي او په بل روايت کي يې ويلي دي چي اعتبار به يې نه کيږي. او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم په غيرِ ظاهر روايت کي نقل سوي دي چي اعتبار به يې نه کيږي مګر په هغه وخت کي چي د سړي پېشه ډېره ټيټه او کم ارزښته وي، دمثال په توګه حجامت (ښکر لګول)، جولاګري (ټوکر او کپړه وودل)، يا دباغت (د څرمني رنګرېزي)، نو رنګرېز به د عطر فروش کفو نه وي.

په کسب کي د کفائت د اعتبار کولو دليل دا دی چي په خلکو کي په ښه کسب او پېشه د فخر ذريعه ګڼل کيږي او کمزورې پېشه د ذلت او سپکاوي نښه ګڼل کيږي.

**وجه القول الآخر إلخ:** او په کسب کي د کفائت د اعتبار نه کولو دليل دا دی چي کسب او پېشه د انسان د ژوند سره لازم نه دي چي هر وخت به انسان په هغه کي مشغول وي، بلکي نن که انسان په يو ټيټ

کسب کي مشغول وي نو سبا يو محترم کسب هم اختيارولای سي، لهذا کوم شی چي غير لازم وی د هغه اعتبار به نه کيږي، او په اوس وخت کي خو خلک ټيټ کسب نه بلکي غربيي د ځان لپاره ذلت او سپکاوی ګڼي او د ځان مالداره کولو لپاره هر ډول پېشه او کسب اختياروي که څه هم هغه ډېر سپک کسب وي.

## له خپل مهر څخه په کمه د نکاح کولو په صورت کي د ولي لپاره د اعتراض کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا تَزَوَّجَتِ الْمَرْأَةُ فرمايي: او کله چي ښځه [په خپله] نکاح وکړي وَنَقَصَتْ عَنْ مَهْرِ مِثْلِهَا او له خپل مهرِ مثل څخه مهر کم کړي فَلِلْأَوْلِيَاءِ الِاعْتِرَاضُ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [1] نو وليانو لره پر هغه ښځي د اعتراض حق سته د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حَتَّى يُتِمَّ لَهَا مَهْرَ مِثْلِهَا أَوْ يُفَارِقَهَا تر دې چي خاوند د هغې مهرِ مثل پوره کړي يا هغه پرېږدي وَقَالَا: لَيْسَ لَهُمْ ذَلِكَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي وليانو لره د اعتراض حق نسته وَهَذَا الْوَضْعُ إِنَّمَا يَصِحُّ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ او دا صورت د مسئلې صحيح کيږي د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول عَلَى اعْتِبَارِ قَوْلِهِ الْمَرْجُوعِ إِلَيْهِ فِي النِّكَاحِ بِغَيْرِ الْوَلِيِّ په اعتبار سره د امام محمد د هغه قول چي "د ولي له اجازې څخه بغير د نکاح [د مسئلې] په باره کي" هغه ته امام محمد رَحِمَهُ الله رجوع کړې ده وَقَدْ صَحَّ ذَلِكَ او د هغه رجوع صحيح ده وَهَذِهِ شَهَادَةٌ صَادِقَةٌ عَلَيْهِ او دا صورت د مسئلې د هغه پر رجوع رښتونې ګواهي ده لَهُمَا: أَنَّ مَا زَادَ عَلَى الْعَشَرَةِ حَقُّهَا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي کوم مهر چي پر لس درهمه زيات وي هغه د ښځي حق دی وَمَنْ أَسْقَطَ حَقَّهُ لَا يُعْتَرَضُ عَلَيْهِ او څوک چي خپل حق ساقط کړي نو پر هغه هيڅ اعتراض نه سي کېدلای كَمَا بَعْدَ التَّسْمِيَةِ لکه تر مهر ټاکولو وروسته [چي کله ښځه خپل مهر ساقط کړي او خاوند له مهر څخه بري کړي نو هيڅ ولي پر هغې اعتراض نه سي کولای] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْأَوْلِيَاءَ يَفْتَخِرُونَ بِغَلَاءِ الْمَهْرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي وليان د مهر په ګرانوالي [زياتوالي] فخر کوي وَيَتَعَيَّرُونَ بِنُقْصَانِهِ او د مهر کموالي [د ځانو لپاره] عيب او پېغور ګڼي فَأَشْبَهَ الْكَفَاءَةَ نو

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:١، ص:١٦٤). [القول الراجح ج:١، ص:٢٦٥]

دا د كفائت سره مشابه دي بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ بَعْدَ التَّسْمِيَةِ په خلاف د بري كولو تر مهر ټاكولو وروسته
[يعني په خلاف د دې چي تر مهر متعيّنولو وروسته ښځه خپل مهر ساقط كړي او خاوند بري كړي] لِأَنَّهُ لَا يُتَعَيَّرُ
بِهِ ځكه چي دا عيب [او پېغور] نه ګڼل

**اللغات:** ﴿نَقَصَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: كمېدل، خپل حق كمول، لږول، ﴿غَلَاء﴾ ګراني، قيمت لوړېدنه، ﴿إِبْرَا﴾ د افعال مصدر دی: بري كول، خپل حق معافول (بخښل)، ﴿تَسْمِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: ټاكل، متعيّنول، مقررول (مقرّر كول)، ذكر كول، نومول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو بالغي ښځي خپله نكاح د ولي له اجازت څخه بغير په خپله وكړه او خپل مهر يې له مهرِ مثل څخه كم وټاكی نو د هغې نكاح صحيح كيږي، خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د ښځي وليانو ته د مهر د كمښت په باره كي د اعتراض كولو حق حاصل وي چي د قاضي مخته اعتراض او شكايت وكړي، او د قاضي په حكم پر خاوند مهر پوره كړي، يا په هغه ښځي ته طلاق وركړي، لېكن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي وليانو ته د اعتراض كولو حق نه وي.

**وهذا الوضع إلخ:** د دې عبارت حاصل دا دی چي امام محمد رَحِمَهُ الله مخكي د ولي له اجازت څخه بغير د ښځي نكاح صحيح نه ګڼله (لكه څه مخكي چي ذكر سوه چي امام محمد داسي نكاح د ولي پر اجازت موقوفه ګڼي)، خو وروسته هغه له خپل دغه قول څخه رجوع وكړه او د نكاح د صحيح كېدلو قائل سو، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د متن مسئله هم د امام محمد رَحِمَهُ الله د رجوع ګواهي وركوي (چي رښتيا هم هغه رجوع كړې ده)، ځكه كه د هغه رجوع (رښتيا) نه ومنل سي نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره به د هغه يو ځای كېدل صحيح نه وي؛ ځكه چي د امام ابو يوسف په نېز د ولي له اجازت څخه بغير د ښځي نكاح صحيح كيږي او هغه ته به د اعتراض كولو هيڅ حق نه وي؛ لنډه دا چي په دې مسئله كي د صاحبينو په نېز د ښځي نكاح صحيح كيږي او وليانو ته به د اعتراض كولو هيڅ حق حاصل نه وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د دغه حديث "لَا مَهْرَ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ" په وجه لس درهمه مهر د شريعت حق دی، او تر دې زيات د ښځي حق دی، او كه څوک خپل حق په خپله ساقط كړي نو بل چا ته د اعتراض كولو هيڅ حق نه حاصليږي، نو همداسي به په دې مسئله كي هم وليانو ته د اعتراض هيڅ حق نه وي.

**كما بعد التسمية**: صاحبين د خپل دليل په تاييد کي يو مثال ذکر کوي او پر هغه قياس کوي فرمايي لکه څرنګه چي په هغه وخت کي هم وليانو ته د اعتراض حق نسته. کله چي ښځه خپل مهر تر مهرِ مثل زيات و تاکي، او بيا وروسته دا ټوله مهر ساقط او معاف کړي، نو کله چي د "إبراء عن الكل" په صورت کي وليانو ته د اعتراض حق نسته، نو د "إبراء عن البعض" په صورت کي به څنګه هغو ته د اعتراض حق حاصل وي!؟

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي وليان د خپلو ښځو په ګران مهر فخر کوي، په محفلونو کي په فخر سره د دې يادونه کوي او کم مهر شرم او عيب ګڼي، نو د فخر او عيب ګڼلو په وجه په کم مهر نکاح کول داسي سو لکه په غيرِ کفو کي نکاح کول، او د غيرِ کفو په صورت کي وليانو ته د اعتراض حق سته، نو د کم مهر په صورت کي به هم هغو ته د اعتراض حق وي.

**بخلاف الإبراء إلخ**: د صاحبينو د قياس جواب ورکوي. حاصل يې دا دی چي تر مهر ټاکولو وروسته د مهر سره د وليانو تعلق ختميږي او په هغه کي تصرف کول د ښځي کار وي، لهذا که تر ټاکلو وروسته يو ښځه خپل مهر معاف کړي نو په دې سره د ښځي او د هغې د وليانو نوم نور لوړيږي. کښته کيږي نه او دا د هغو لپاره شرم او عيب نه ګڼل کيږي بلکي په دې سره د هغو غاړه نوره جګيږي. نو څکه پر دې مسئلې قياس کول صحيح نه دي.

## په کم (لږ) مهر د کوچني هلک او انجلۍ د نکاح کولو بيان

**وَإِذَا زَوَّجَ الْأَبُ بِنْتَهُ الصَّغِيرَةَ** او کله چي نکاح وکړي پلار د خپلي کوچنۍ لور **وَنَقَصَ مِنْ مَهْرِهَا** او د هغې مهر [له مهرِ مثل څخه] کم کړي **أَوْ ابْنَهُ الصَّغِيرَ** يا دا چي پلار نکاح وکړي د خپل کوچني زوی **وَزَادَ فِي مَهْرِ امْرَأَتِهِ** او د هغه د ښځي مهر زيات کړي **جَازَ ذَلِكَ عَلَيْهِمَا** نو دا کمي او زياتوب پر دواړو جائز دی **وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ لِغَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ** او له پلار او نيکه څخه بغير د بل چا لپاره [داسي کول] جائز نه دي **وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ**❁ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [دی] **وَقَالَا: لَا يَجُوزُ الْحَطُّ وَالزِّيَادَةُ إِلَّا بِمَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ** او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کمي او زياتوب جائز نه دی مګر په دومره اندازه سره چي په هغه کي خلک غبنِ فاحش کوي [يعني په دومره مقدار سره چي خلک

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الهندية (ج:١، ص:٢٩٤)، وكذا في الخانية (ج:١، ص:١٦٦).
[القول الراجح ج:١، ص:٢٦٧]

هغه غبنِ فاحش او دوکه کښي] وَمَعْنٰى هٰذَا الْكَلَامِ او مطلب د دې کلام دا دی أَنَّهُ لَا يَجُوزُ الْعَقْدُ عِنْدَهُمَا چې د صاحبينو په نيز [بالکل] دغه عقد جائز نه دی لِأَنَّ الْوِلَايَةَ مُقَيَّدَةٌ بِشَرْطِ النَّظَرِ ځکه چې ولايت مقيد دی د شفقت [او مصلحت] په شرط سره فَعِنْدَ فَوَاتِهِ يَبْطُلُ الْعَقْدُ نو د شفقت د فوتېدلو په صورت کې به عقد باطلیږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْحَطَّ عَنْ مَهْرِ الْمِثْلِ لَيْسَ مِنَ النَّظَرِ فِي شَيْءٍ او دا ځکه چې له مهرِ مثل څخه [مهر] کمول هيڅ شفقت نه دی كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په بيع کې اچې په کم قيمت د صغير يا صغيرې يو شی خرڅول هيڅ شفقت او مصلحت نه دی] وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ ذٰلِكَ غَيْرُهُمَا او له همدې کبله له پلار او نيکه څخه بغير [بل څوک] د دې نه مالک کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلٰى دَلِيلِ النَّظَرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې حکم به د شفقت پر دليل دائر کيږي [يعني د حکم مدار به د شفقت او مصلحت پر دليل وي او پر هغه به حکم جاري کيږي] وَهُوَ قُرْبُ الْقَرَابَةِ او هغه د قرابت نژدېکت دی وَفِي النِّكَاحِ مَقَاصِدُ تَرْبُو عَلَى الْمَهْرِ او په نکاح کې انور هم] ډېر مقاصد [أهداف] سته چې هغه تر مهر بالا [او أهم] دي أَمَّا الْمَالِيَّةُ فَهِيَ الْمَقْصُودُ فِي التَّصَرُّفِ الْمَالِيِّ هر چې ماليّت دی نو په مالي تصرّف کې [فقط] هغه مقصود دی [يعني په بيع کې فقط مال مقصود دی، د نکاح په څير نور أهم مقاصد پکښې نشته] وَالدَّلِيلُ عَدِمْنَاهُ فِي حَقِّ غَيْرِهِمَا او د شفقت دليل موږ نيستي کړی [يعني پيدا مو نه کړی] له پلار او نيکه څخه بغير د بل چا په حق کې.

**اللغات:** ﴿حَطّ﴾ د نصر مصدر دی: کمول، کښته کول (کمېدل، کښته کېدل). ﴿يَتَغَابَنُ﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: دوکه او فرېب کښل، غبنِ فاحش کښل (که د يو شي قيمت دومره کم وي يا مثلاً يو مهر دومره کم وي چې خلک هغه بيخي کم وګڼي، يا دومره زيات وي چې خلک هغه بيخي زيات وګڼي او په عامه توګه خلک دومره زيات قيمت يا مهر نه ټاکي نو داسي معاملې ته "ما يتغابن الناس" وايي، مثلاً په يو علاقه کې د پسه بازاري قيمت سل [١٠٠] درهمه وي، اوس که يو څوک د هغه قيمت يو سل ولس [١١٠] درهمه ولګوي نو صحيح دي ځکه چې لس درهمه بيخي زيات نه ګڼل کيږي، لېکن که يو سل ودېرش [١٣٠] درهمه د هغه قيمت ولګوي، نو دېرش درهمه د هغه پر قيمت اضافه کول بيخي زيات ګڼل کيږي. نو دومره زيات توب ته "غبنِ فاحش" وايي او داسي سودا ته "ما يتغابن الناس" وايي)، ﴿نَظَر﴾ شارحينو د دې لفظ دوې معناوي کړې دي: شفقت، مصلحت (او شفقت او مصلحت يو د بل سره لازم او ملزوم دي. ځکه په چا کې چې شفقت نه

وي نو هغه د مصلحت طلب هم نه کوي، نو ځکه موږ دواړه سره پیوند کړي دي، د مصلحت معنیٰ ده: ښېګڼه، خیر خواهي او نېکه رایه)، ﴿تَرْبُو﴾ د نصر مضارع ده: زیاتېدل، لوړېدل، ﴿مَالِيَّة﴾ مال کېدل، مال والی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که پلار له مهرِ مثل څخه په کم مهر د خپلې لور نکاح وکړي، یا مثلاً له مهرِ مثل څخه په زیات مهر د خپل زوی نکاح وکړي، او دا کمي او زیاتوب هم معمولي نه وي بلکې ډېر زیات وي یعني د غبنِ فاحش له قبیلې څخه وي، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې که نکاح پلار او نیکه کړې وي نو نکاح صحیح کېږي، او که له پلار او نیکه څخه بغیر بل ولي نکاح کړې وي نو نه صحیح کېږي، لېکن صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که دا کمي او زیاتوب معمولي نه وي بلکې غبنِ فاحش وي نو نه صحیح کېږي او که معمولي وي یعني غبنِ یسیر وي نو صحیح کېږي.

څرنګه چې په متن کې له دغه جملې "لَا يَجُوزُ الْحَطُّ وَالزِّيَادَةُ" څخه دا وهم کېږي چې د صاحبینو په نېز خو اصل نکاح صحیح کېږي لېکن کمي او زیاتوب نه صحیح کېږي، نو په دې وجه صاحب د هدایې په "و معنٰی هذا الکلام" سره دا وهم لیرې کړی او دا یې ښکاره کړه چې د دې جملې مطلب دا دی چې بالکل د صاحبینو په نېز نکاح نه صحیح کېږي نو کمي او زیاتوب به څنګه صحیح سي!، همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مذهب دی چې دا نکاح نه صحیح کېږي.

**د صاحبینو دلیل**: دا دی چې پر هلک او نجلۍ (یعني پر صغیر او صغیرې) چې ولي ته کوم ولایت حاصل دی هغه په شفقت او مصلحت سره مقیّد دی، یعني که د ولي ولایت او تصرف پر شفقت او مصلحت مبني وو نو هغه به نافذ او صحیح وي کنې صحیح به نه وي، او په دې مسئله کې د غبنِ فاحش په وجه پلار خپل شفقت فوت کړی دی، او د شفقت په فوتېدلو سره ولایت هم فوتېږي، نو اوس یې مطلب دا سو چې پلار بغیر له ولایت څخه د هغو نکاح کړې ده، او له ولایت څخه بغیر نکاح باطلېږي، نو ځکه به دا نکاح هم باطلېږي: او شفقت په دې توګه فوت سوی دی چې د نجلۍ په مهرِ مثل کې ډېره کمي کول یا د هلک د ښځې په مهرِ مثل کې ډېر زیاتوب کول له شفقت څخه لیرې خبره ده او داسې ده لکه پلار چې د هلک یا نجلۍ یو شی په غبنِ فاحش سره یعني په ډېر کم قیمت سره خرڅ کړي یا د هغو لپاره په ډېر زیات قیمت سره یو شی رانیسي، نو دا د ټولو په نېز صحیح نه دي. نو دا نکاح به هم صحیح نه وي. همدا وجه ده که له پلار او نیکه څخه بغیر بل ولي داسې نکاح وکړي نو د ټولو په نېز نه صحیح کېږي، لهذا د پلار او نیکه داسې نکاح به هم نه صحیح کېږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې شفقت او مصلحت يو پټ شی دی او پر پټ شي حکم جاري کول ناممکن دي، نو ځکه به د شفقت پر دليل او علامت حکم جاري کيږي، او د شفقت دليل د قرابت قُرب (نژدېکت) دی، يعني شفقت او مصلحت په ډېر نژدې قريب کي موجود وي چې هغه پلار او نيکه دي، نو د قرابت د ډېر نژدېکت په وجه ظاهراً د پلار او نيکه په باره کي دا اُميد کېدای سي چې د دوی په نکاح کي به خامخا مصلحت او شفقت وي که څه هم په غبنِ فاحش سره يې نکاح کړې وي، نو ځکه به د شفقت او مصلحت پر دليل (قُرْبُ القَرَابة) حکم جاري کيږي، او په چا کي چې قُربِ قرابت نه وي، د هغه نکاح به نه صحيح کيږي.

او د صاحبينو دا قول چې ډېر زياتوب او ډېر کمتوب له شفقت څخه ليري خبره ده، نو د دې جواب دا دی چې په نکاح کي مهر مطلوب نه وي، بلکي له مهر څخه بغير نور هم غټ مصلحتونه او ستر أهداف په نکاح کي موجود وي، لکه: کفو کېدل، شريف خاندان او داسي نور، نو کېدای سي چې د خاوند د ډېر شرافت يا د کفو په وجه به پلار په کم مهر د خپلي لور نکاح د هغه سره کړې وي، يا د نجلی د ډېر شرافت يا کفو په وجه به پلار د خپل هلک نکاح په ډېر زيات مهر د هغې سره کړې وي (چي هسي نه دا نجلی د لاسه ووځي). او داسي زياتوب او کمتوب کامل شفقت او عينِ مصلحت دی.

**أما المالية إلخ:** په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي، هغو په خپل دليل کي وويل چې په ډېر کم يا په ډېر زيات مهر د هلک او نجلی نکاح کول داسي دي لکه په ډېر کم قيمت د هغو يو شی خرڅول يا په ډېر زيات قيمت د هغو لپاره يو شی رانيول، نو د دې جواب ورکوي فرمايي چې دا قياس مع الفارق دی؛ ځکه چې په بيع (خرڅولو او رانيولو) کي خاص مال مقصود وي او له مال څخه بغير بل غټ هدف او مقصد پکښي نه وي، نو که په بيع کي غبنِ فاحش وکړي نو بالکليه (په بشپړه توګه) به شفقت فوت سي، د دې په خلاف په نکاح کي له مال (مهر) څخه بغير نور هم غټ اهداف او مقاصد سته، لهذا نکاح پر بيع قياسول بالکل صحيح نه دي.

**والدليل عدمنا إلخ:** په دې سره هم صاحبينو ته جواب ورکوي، هغو وويل چې: "همدا وجه ده که له پلار او نيکه څخه بغير بل ولي داسي نکاح وکړي نو د ټولو په نيز نکاح نه صحيح کيږي". نو د دې جواب ورکوي فرمايي چې له پلار او نيکه څخه بغير په بل ولي کي د شفقت او مصلحت دليل (يعني قُربِ قرابت) نسته (نو ظاهراً د بل ولي له نکاح څخه د شفقت او مصلحت اُميد نه سي کېدای)، او مخکي موږ وويل چې حکم به د شفقت او مصلحت پر دليل جاري کيږي او هغه په بل ولي کي نسته، نو ځکه به په ډېر کم يا ډېر زيات مهر سره د هغه نکاح نه صحيح کيږي.

## د پلار لپاره د غلام يا مينځې سره د خپل بچي د نکاح کولو حکم

وَمَنْ زَوَّجَ ابْنَتَهُ وَهِيَ صَغِيرَةٌ عَبْدًا او څوک چي د خپلي نابالغي لور نکاح وکړي د يو غلام سره أَوْ زَوَّجَ ابْنَهُ وَهُوَ صَغِيرٌ أَمَةً يا د خپل نابالغ زوی نکاح وکړي د مينځې سره فَهُوَ جَائِزٌ نو دا نکاح جائز ده قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ أَيْضًا ❁ [مصنف رَحِمَهُ الله] فرمايي: او دا هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اجائز ده، لکه په تېره مسئله کي چي هم دهغه په نېز نکاح جائز وه] لِأَنَّ الْإِعْرَاضَ عَنِ الْكَفَاءَةِ لِمَصْلَحَةٍ تَفُوقُهَا ځکه چي له کفو څخه [د پلار] اعراض کول به د داسي مصلحت [ښېگڼي] لپاره وي کوم چي تر کفو [ډېر] لوړ وي وَعِنْدَهُمَا هُوَ ضَرَرٌ ظَاهِرٌ لِعَدَمِ الْكَفَاءَةِ او د صاحبينو په نېز دا [د غلام يا مينځې سره د خپل بچي نکاح کول] ښکاره نقصان دی د کفائت د نشتوالي په وجه فَلَا يَجُوزُ نو ځکه به دا نکاح جائز نه وي.

**اللغات:** ﴿إِعْرَاض﴾ د افعال مصدر دی: مخ اړول، توجه نه کول، ﴿تَفُوق﴾ د نصر مضارع ده: لوړېدل، پورته کېدل.

**تشريح:** دا مسئله د مخکني مسئلې د تعليل او دليل سره تعلق لري.

**صورت د مسئلې:** دا دی که پلار د خپلي کوچنۍ لور نکاح د غلام سره وکړي، يا د خپل کوچني زوی نکاح د مينځې سره وکړي، نو په دې باره کي اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم نکاح جائز ده، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه ده.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي په غيرِ کفو کي د پلار نکاح کول به د يو داسي مصلحت او ښېگڼي لپاره وي کوم چي له کفائت څخه لوړ او ګټمن وي، ځکه چي د پلار له قوي محبت او نژدې قرابت څخه دا اُميد کېدلای نه سي چي هغه د تاوان په ځای کي د خپل بچي نکاح وکړي، نو شايد دا مينځه يا غلام به يو داسي هنر لري چي هغه به په آزاد کس کي هم نه وي، نو ځکه به په غيرِ کفو کي د پلار نکاح جائز وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي په غيرِ کفو کي نکاح کول ښکاره تاوان دی، نو ځکه به دا نکاح جائز نه وي.

**يادونه:** که تر نکاح وروسته په تحقيق سره معلومه سي چي پلار د يولالچ يا جهالت په وجه نکاح کړې ده، نو قاضي ته د هغه د نکاح ماتولو او فسخ کولو حق سته، ځکه چي په تحقيق سره معلومه سوه چي څه مصلحت پکښې نسته. فقط والله أعلم وعلمه أتم

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الخانية (ج:۱، ص:۱۶۶)، وكذا في المدينة (ج:۱، ص:۲۹۲).
[القول الراجح ج:۱، ص: ۲۷۸]

# فَصْلٌ فِي الْوَكَالَةِ بِالنِّكَاحِ وَغَيْرِهَا

(دا) فصل په (بيان د) وكالت بالنكاح او غير وكالت کې دی

**تشريح:** څرنګه چې د وکيل تصرف د ولي د تصرف سره برابر دی، يعني (په نکاح کې) د دواړو تصرف نافذيږي، نو په دې اعتبار سره وکالت د ولايت يو قسم سو، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله تر "بَابُ الأَوْلِيَاء" لاندې په يو جلا فصل کې د وکالت بيان کوي.

**ضروري يادونه:** په دې باب کې له وکيل څخه مراد هغه کس دی چې بل چا د نکاح ترلو (کولو) حکم ورته کړی وي، مثلاً زيد خالد ته د نکاح کولو حکم کړی وي، نو خالد وکيل دی او زيد مُوَكِّل دی. او که څوک خپله نکاح په خپله وتړي او په خپله ايجاب وقبول وکړي، نو هغه ته أصيل وايي، او که ديو چا ولي د هغه نکاح وتړي مثلاً د لور نکاح پلار وتړي نو هغه ته ولي وايي، او که څوک نه ديو چا ولي وي او نه وکيل وي يعني د نکاح ترلو (کولو) حکم هم ورته سوی نه وي نو هغه ته فضولي وايي، ځکه چې هغه يو زائد او فضول کس دی د ولي له حکم څخه بغير پر خپل سر نکاح تړي.

د نکاح ترلو درې صورتونه دي: ① يو دا چې دواړو طرفونو ته أصيل وي، يعني سړی او ښځه دواړه أصيل وي، مثلاً سړی په خپله ايجاب وکړي او ښځه په خپله قبول وکړي، ② دويم دا چې دواړو طرفونو ته وکيل وي، مثلاً د سړي وکيل خالد وي، او د ښځې وکيل زيد وي، ③ د دواړو له طرفه يو وکيل وي، مثلاً ښځې هم خالد د نکاح وکيل جوړ کړی وي، او سړي هم، نو په دې صورت کې خالد د دواړو له طرفه ايجاب وقبول کولای سي، په نکاح کې دا صحيح دي چې له دواړو طرفونو څخه يو وکيل وي، لېکن په بيع کې صحيح نه دي.

## د اکا د لور سره د اکا د زوی د نکاح حکم

وَيَجُوزُ لِابْنِ الْعَمِّ او جائز دي د اکازوی لره أَنْ يُزَوِّجَ بِنْتَ عَمِّهِ مِنْ نَفْسِهِ چې د اکا د لور سره خپله نکاح په خپله او کړي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوزُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز نه دي وَإِنْ أَذِنَتِ الْمَرْأَةُ لِلرَّجُلِ او که يو ښځه اجازه ورکړي يو سړی ته أَنْ يُزَوِّجَهَا مِنْ نَفْسِهِ چې د هغې سره خپله نکاح وکړي ايعني حکم ورته وکړي چې زما نکاح ستا سره وتړه!ا فَعَقَدَ بِحَضْرَةِ شَاهِدَيْنِ نو هغه د دوو ګواهانو په

حضور کي نکاح وتړي جَازَ نو دا نکاح اجائز ده وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ امام زفر رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه ده لَهُمَا: أَنَّ الْوَاحِدَ لَا يُتَصَوَّرُ أَنْ يَكُونَ مُمَلِّكًا وَمُتَمَلِّكًا د دوی دليل دا دی: چي يو سړی [شخصِ واحد] مملک او متملک کېدلای نه سي ايعني داسي نه سي کېدای چي يو کس هم بل څوک د يو شي مالک جوړوي او هم په خپله د هغه مالک جوړېږي ا كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په بيع کي اچي هم دا حکم دی ا إِلَّا أَنَّ الشَّافِعِيَّ يَقُولُ: فِي الْوَلِيِّ ضَرُورَةٌ خو امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په ولي کي ضرورت سته لِأَنَّهُ لَا يَتَوَلَّاهُ سِوَاهُ ځکه چي له هغه څخه بغير [ابل څوک ا ولايت نه سي کولای وَلَا ضَرُورَةَ فِي الْوَكِيلِ او په وکيل کي هيڅ ضرورت نسته وَلَنَا: أَنَّ الْوَكِيلَ فِي النِّكَاحِ مُعَبِّرٌ وَسَفِيرٌ او زموږ دليل دا دی: چي وکيل په نکاح کي تعبير [ترجماني] کونکی او استازی دی وَالتَّمَانُعُ فِي الْحُقُوقِ دُونَ التَّعْبِيرِ او ممانعت په حقوقو کي دی نه په تعبير [ترجمانی ا کي وَلَا تَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَيْهِ او [د نکاح] حقوق د وکيل و طرف ته نه راجع کيږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ مُبَاشِرٌ ځکه چي [په بيع کي وکيل ا په خپله کار کونکی ايعني عاقد ا وي حَتَّى رَجَعَتِ الْحُقُوقُ إِلَيْهِ همدا وجه ده چي د بيع حقوق د هغه وطرف ته راجع کيږي وَإِذَا تَوَلَّى طَرَفَيْهِ نو کله چي هغه د نکاح د دواړو طرفونو [ايجاب و قبول ا ولي سو فَقَوْلُهُ: زَوَّجْتُ يَتَضَمَّنُ الشَّطْرَيْنِ نو د هغه دا قول: "زَوَّجْتُ" ازه (ستاسره) نکاح کوم ا به دواړو طرفونو ته شامل وي وَلَا يُحْتَاجُ إِلَى الْقَبُولِ او قبول ته به ضرورت نه وي.

**اللغات:** ﴿مُمَلِّک﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: مالک جوړونکی، مالک کونکی، مَلَّكَ يُمَلِّكُ تَمْلِيْكًا: يو څوک د يو شي مالک جوړول، مالک ګرځول، لکه په بيع کي چي بائع مشتري د مبيع مالک جوړوي، ﴿مُتَمَلِّک﴾ د تفعّل اسم فاعل دی: مالک جوړېدونکی، ﴿لَا يَتَوَلَّاهُ﴾ د تفعّل نفي صيغه ده: مشري کول، ولي جوړېدل، ﴿مُعَبِّر﴾ د تفعيل اسمِ فاعل دی: د يو شي مطلب بيانونکی کس، ترجمان، هغه کس چي د بل چا خبره نقل کوي، ﴿تَمَانُع﴾ د تفاعل مصدر دی: منافات، ممانعت، ﴿شَطْر﴾ نيمه حصه.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې جلا مسئلې بيان سوي دي، او دواړې اختلافي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که د يو نابالغي نجلۍ د اکا زوی د ګواهانو په حضور کي د نجلۍ سره خپله نکاح وکړي (وتړي)، نو زموږ په نېز دا نکاح جائز او صحيح ده. د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نېز هم جائز ده. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دا نکاح جائز نه ده.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که ښځه يو سړي خپل وکيل جوړ کړي چې زما نکاح ستا سره وکړه! (وتړه!). او بيا دغه سړي د دوو ګواهانو په حضور کي د ښځي سره خپله نکاح وکړي. نو زموږ په نيز دا نکاح هم جائز او صحيح ده. ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز دا نکاح جائز نه ده (يعني د دوی په نيز دا جائز نه دي چي فقط يو سړی خپل له طرفه أصيل جوړ سي او د ښځي له طرفه وکيل جوړ سي او فقط يو سړی د نکاح ايجاب او قبول دواړه وکړي).

**دليل**: د امام شافعي او امام زفر دليل دا دی چي دلته په دواړو مسئلو کي يو سړی هم مملک (مالک جوړونکی) دی او هم متملک (مالک کېدونکی) دی، يعني هغه په ايجاب سره بل څوک (ځان) د بضع مالک جوړوي او په قبول سره د بضع مالک کيږي مثلاً په اول مسئله کي دا کا زوی ولي دی او هغه خپله نکاح په خپله تړلې ده همدارنګه په دويمه مسئله کي سړي خپله نکاح په خپله تړلې ده نو په دوی دواړو کي هريو هم مملک سو او هم متملک، او دا صحيح نه دي چي يو سړی دي هم مملک (وکيل) وي او هم دي متملک (أصيل) وي، لکه په بيع کي چي دا صحيح نه دي يعني که يو سړی بل څوک ديوشي د خرڅولو وکيل (مملک) جوړ کړي نو وکيل په خپله دغه شی نه سي رانيولای او هغه د دې شي مالک کېدلای نه سي، نو څرنګه چي په بيع کي ديوه سړي مملک او متملک کېدل صحيح نه دي، همداسي به په نکاح کي هم دا صحيح نه وي، او که څوک داسي نکاح وکړي. نو د هغه نکاح به بالکل جائز نه وي.

<u>**إلا أن الشافعي إلخ**</u>: په دې سره دا راښيي چي په اوله مسئله کي خو امام شافعي رَحِمَهُ الله زموږ سره دی او د نکاح د جواز قائل دی، ليکن په دويمه مسئله کي د امام زفر رَحِمَهُ الله سره دی، نکاح ناجائز ګڼي او دليل يې هم ذکر کړی دی، د دې څه وجه ده؟ نو فرمايي چي په اوله مسئله کي د ضرورت په وجه امام شافعي رَحِمَهُ الله نکاح جائز ګڼي، ځکه چي دا کاله زوی څخه بغير بل داسي څوک نسته چي د نجلۍ ولي جوړ سي، او د دوی په خپل مينځ کي نکاح صحيح هم ده، لهذا که هغه په خپله د دې نجلۍ سره نکاح وکړي يعني د ځان له طرفه ايجاب وکړي او د نجلۍ له طرفه قبول وکړي، نو دا نکاح به ضرورتاً جائز او صحيح وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي په نکاح کي وکيل فقط د ناقل او ترجمان حيثيت لري، عاقد او د حقوقو ذمه وار نه وي (يعني د ښځي نکاح د خپل ځان سره نه تړي چي د نکاح حقوق د هغه وطرف ته راجع سي) بلکي کومه خبره چي موکِل غواړي، وکيل فقط هغه خبره رانقل کوي، د نکاح حقوق د هغه وطرف ته نه راجع کيږي. او ديوه سړي هم مملک کېدل او هم متملک کېدل هغه وخت ممنوع دي کله چي حقوق د هغه وطرف ته راجع کيږي او هغه عاقد (مباشر) وي، ليکن څرنګه چي په نکاح کي د وکيل وطرف ته

حقوق نه راجع کيږي، نو هغه فقط معبّر او ترجمان دی، او د تعبير او ترجمانۍ په حيثيت سره د يوه سړي مملک او متملک کېدل صحيح دي (يعني د تعبير په اعتبار سره د يوه سړي ايجاب او قبول دواړه کول صحيح دي)، نو ځکه به دلته په دواړو مسئلو کي نکاح صحيح وي.

**بخلاف البيع الخ**: په دې سره امام شافعي او امام زفر ته جواب ورکوي چي پر بيع قياس کول صحيح نه دي، ځکه چي په بيع کي وکيل معبّر او ترجمان نه وي بلکي په خپله عاقد (مباشر) وي او د بيع ټوله ذمه واري او ټوله حقوق هغه ته راجع کيږي، مثلاً که په مبيع کي يو عيب وي نو مشتري وکيل ته رجوع کوي، نو په دې وجه په بيع کي د يوه سړي مملک او متملک کېدل صحيح نه دي؛ لنډه دا چي په نکاح کي وکيل د تعبير او ترجمانۍ په اعتبار سره مملک او متملک ګرځي او دا صحيح دي. لېکن په بيع کي وکيل د حقوقو په اعتبار سره مملک او متملک ګرځي او دا جائز نه دي، نو ځکه نکاح پر بيع قياسول صحيح نه دي.

**وإذا تولى الخ**: فرمايي کله چي دا ثابته سوه چي يو سړی د نکاح د دواړو طرفونو (ايجاب او قبول) مالک کېدلای سي، نو د هغه دا قول "زَوَّجْتُ" به ايجاب او قبول دواړو ته شامل وي، او د ښځي قبول ته به ضرورت نه وي (يعني کله چي سړی فقط "زَوَّجْتُ" ووايي نو نکاح به نافذيږي او بل طرف يعني قبول ته به هيڅ ضرورت نه وي)، ځکه چي هغه د دواړو طرفونو مالک دی، نو د هغه يو کلام او يو عبارت به هم د دواړو کلامونو پر ځای درېږي.

## د فضولي د نکاح بيان

| |
|---|
| قَالَ [امام قدوري] فرمايي وَتَزْوِيجُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُمَا مَوْقُوفٌ او نکاح کول [ترل] د غلام او د مينځي د خپل مالک له اجازت څخه بغير موقوفه ده [يعني که غلام يا مينځه د مالک له اجازې څخه بغير خپله نکاح په خپله وکړي، نو د هغو نکاح د مالک پر اجازه موقوفه ده] فَإِنْ أَجَازَهُ الْمَوْلَى جَازَ نو که مالک اجازه ورکړي نو نکاح جائز ده وَإِنْ رَدَّهُ بَطَلَ او که هغه نکاح ردّ کړي نو نکاح باطله ده وَكَذَلِكَ لَوْ زَوَّجَ رَجُلٌ امْرَأَةً بِغَيْرِ رِضَاهَا او همداسي که يو سړی د يو ښځي نکاح وکړي [وتړي] د هغې له رضا [او اجازت] څخه بغير أَوْ رَجُلًا بِغَيْرِ رِضَاهُ يا هغه د يو سړي نکاح وکړي د هغه له رضا [او اجازت] څخه بغير [نو په دې صورت کي هم نکاح د ښځي يا د سړي پر اجازه موقوفيږي] وَهَذَا عِنْدَنَا او دا [د نکاح موقوفاً جائز کېدل] زموږ په نيز دي فَإِنَّ كُلَّ عَقْدٍ صَدَرَ مِنَ الْفُضُولِيِّ ځکه چي هر هغه عقد کوم چي له فضولي |

شخه صادر سوى وي وَلَهُ مُجِيْزٌ او د هغه عقد يو اجازه وركونكى [قبلونكى] وي اِنْعَقَدَ مَوْقُوفًا عَلَى الْإِجَازَةِ نو هغه منعقد كيږي په داسي حال كي چي پر اجازه به موقوف وي [يعني داسي عقد موقوفا صحيح كيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَصَرُّفَاتُ الْفُضُولِيِّ كُلُّهَا بَاطِلَةٌ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د فضولي ټوله تصرفات باطل دي لِأَنَّ الْعَقْدَ وُضِعَ لِحُكْمِهِ ځكه چي عقد د خپل حكم لپاره وضع سوى دى وَالْفُضُولِيُّ لَا يَقْدِرُ عَلَى إِثْبَاتِ الْحُكْمِ او فضولي د حكم پر ثابتولو قدرت نه لري فَيَلْغُو نو ځكه به [د هغه عقد لغو] او باطل] وي وَلَنَا: أَنَّ رُكْنَ التَّصَرُّفِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ او زموږ دليل دا دى: چي د تصرف ركن [يعني ايجاب وقبول] له خپل أهل شخه صادر سوي دي مُضَافًا إِلَى مَحَلِّهِ په داسي حال كي چي خپل محل ته منسوب [هم] دي [نو ځكه به نكاح منعقد او صحيح وي] وَلَا ضَرَرَ فِي انْعِقَادِهِ او د نكاح په منعقد كېدلو كي هيڅ تاوان [هم] نسته فَيَنْعَقِدُ مَوْقُوفًا نو ځكه به موقوفاً منعقد كيږي [يعني د أصل ناكح پر اجازه به موقوفه وي] حَتَّى إِذَا رَأَى الْمَصْلَحَةَ فِيهِ نو كه هغه په دې [نكاح] كي ښېګڼه ووېني يُنَفِّذُهُ نو نافذه به يې كړي [يعني اجازه به وركړي] وَقَدْ يَتَرَاخَى حُكْمُ الْعَقْدِ عَنِ الْعَقْدِ او كله نا كله د عقد حكم له عقد شخه ځنډيږي هم.

**اللغات**: ﴿عَقْد﴾ تړون، معامله (لكه نكاح، بيع او داسي نور)، ﴿مُجِيْز﴾ د افعال اسم فاعل دى: اجازه وركونكى، ﴿صَدَرَ﴾ د واحد مذكر غائب ماضي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو شخه راځي: حاصلېدل، واقع كېدل، صادرېدل، پيدا كېدل، ﴿يَتَرَاخَى﴾ د تفاعل مضارع ده: ځنډېدل، وروسته كېدل.

**تشريح**: په دې عبارت كي د فضولي سره متعلق يوه مسئله بيان سوې ده، د فضولي تعريف د فصل په تشريح كي ذكر سو.

**صورت د مسئلې**: دا دى كه غلام يا مينځه د خپل مالک له اجازت شخه بغير خپله نكاح وكړي، يا يو سړى د يو ښځي له اجازت او رضا شخه بغير د هغې سره نكاح وكړي او يا مثلاً ښځه له اجازت شخه بغير د سړي سره نكاح وكړي، نو په دې دواړو صورتونو كي خو زموږ په نيز نكاح صحيح كيږي، لېكن په اول صورت كي به د مالک پر اجازت موقوفه وي او په دويم صورت كي به د سړي يا د ښځي پر اجازت موقوفه وي. كه د دوى له طرفه اجازت وركول سي نو نكاح نافذيږي، كنې باطليږي: ځكه

چي زموږ په نيز قاعده دا ده چي "کوم عقد چي له فضولي څخه صادر سوی وي (يعني هغه يې ايجاب کړی وي)، او په هغه مجلس کي دايجاب قبلونکی کس موجود وي، برابره ده دغه قبلونکی که يو بل فضولي وي او که وکيل يا اصيل وي"، نو دا نکاح صحيح ده. خو د اصل ناکح پر اجازه موقوفه ده:

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د فضولي ټوله تصرفات (يعني ايجاب و قبول) باطل دي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي نکاح يو عقد دی، او عقد د حکم د ثبوت لپاره وضع سوی دی يعني په عقد يو حکم ثابتيږي (يعني که يو څوک د نکاح عقد او تړون وکړي نو سمدستي حکم يعني نکاح ثابتيږي)، او فضولي د عقد د حکم پر ثابتولو هيڅ قدرت نه لري، نو ځکه به د هغه تصرفات (ايجاب و قبول) لغو او باطل وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي ايجاب و قبول چي د کوم فضولي له طرفه صادر سوي دي هغه د ايجاب و قبول أهل دی يعني عاقل او بالغ انسان دی، او د چا نکاح چي کوي (تړي) هغه هم د نکاح محل ده ځکه چي هغه حلاله ښځه ده له محرماتو څخه نه ده، نو ځکه به دا نکاح موقوفاً صحيح وي. او موقوفاً د نکاح په صحيح کېدلو کي هيڅ نقصان هم نسته، ځکه که د اصل ناکح نکاح خوښه سي او په نکاح کي څه نقصان نه ويني نو اجازه به ورکوي، او که نقصان په کي ويني نو نکاح به رد کړي.

**وقد يتراخى حكم إلخ**: په دې عبارت سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي هغه وويل چي "فضولي د عقد د حکم پر ثابتولو قدرت نه لري"، نو په جواب کي فرمايي چي کله نا کله د عقد حکم د عقد له وخت څخه مؤخر کيږي (يعني ځنډول کيږي او سمدستي نه ثابتيږي)، لکه په خيار شرط سره چي څوک بيع وکړي نو په هغه کړي د بيع حکم نه ثابتيږي، بلکي د خيار شرط تر مودې (مثلاً تر دريو ورځو) پوري ځنډول کيږي، نو همدغسي دلته هم د فضولي د حکم ثبوت د أصل ناکح تر اجازت پوري مؤخر سوی دی، لهذا د دې په وجه به عقد نه باطليږي.

## د فضولي د نکاح يو بل صورت

| |
|---|
| **وَمَنْ قَالَ: أَشْهِدُوا أَنِّي قَدْ تَزَوَّجْتُ فُلَانَةً** او که يو سړي وويل: تاسي ګواهان سئ! [پر دې] چي ما د فلانۍ ښځي سره نکاح وکړه **فَبَلَغَهَا الْخَبَرُ** او بيا هغه ښځي ته خبر ورسېدی **فَأَجَازَتْ** نو هغې اجازه ورکړه [يعني نکاح يې قبوله کړه] **فَهُوَ بَاطِلٌ** نو [هم] دا نکاح باطله ده **وَإِنْ قَالَ آخَرُ: أَشْهِدُوا أَنِّي قَدْ زَوَّجْتُهَا مِنْهُ** [همدارنګه] که يو بل سړي وويل: تاسي ګواهان سئ! [پر دې] چي ما د فلانۍ ښځي نکاح د فلانکي سړي سره وکړه **فَبَلَغَهَا الْخَبَرُ** بيا هغه ښځي ته خبر ورسېدی **فَأَجَازَتْ** او هغې اجازه |

ورکړه ﴿جَازَ﴾ نو دا نکاح اجائز ده ﴿وَكَذٰلِكَ إِنْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ هِيَ الَّتِي قَالَتْ جَمِيْعَ ذٰلِكَ﴾ او همدارنګه که ښځه دغه [پورتنۍ] خبري وکړي انو هم نکاح باطله ده] ﴿وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ﴾ او دا [حکم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی ﴿وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: إِذَا زَوَّجَتْ نَفْسَهَا غَائِبًا﴾ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که ښځه خپله نکاح ديو غائب سړي سره وکړي ايعني هغه سړی دنکاح په مجلس کي حاضر نه وي] ﴿فَبَلَغَهُ﴾ بيا هغه ته خبر ورسيږي ﴿فَأَجَازَهُ﴾ او هغه دنکاح اجازه ورکړي ﴿جَازَ﴾ نو [نکاح] جائز ده ﴿وَحَاصِلُ هٰذَا﴾ او حاصل د دې [اختلاف کوم چي په مينځ دابو يوسف او طرفينو کي دی] دا دی ﴿أَنَّ الْوَاحِدَ لَا يَصْلُحُ فُضُوْلِيًّا مِنَ الْجَانِبَيْنِ، أَوْ فُضُوْلِيًّا مِنْ جَانِبٍ وَأَصِيْلًا مِنْ جَانِبٍ عِنْدَهُمَا﴾ ۞ چي د طرفينو په نيز يو کس [شخصِ واحد] د دې صلاحيت نه لري چي له دواړو طرفونو څخه فضولي جوړ سي. يا له يوه طرف څخه فضولي او له بل طرف څخه أصيل جوړ سي ﴿خِلَافًا لَهُ﴾ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله [د هغه په نيز شخصِ واحد د دې تولو صلاحيت لري].

**اللغات:** ﴿أَشْهِدُوْا﴾ د افعال له باب څخه د جمع مذکر امرِ حاضر صيغه ده: ګواه جوړول. د بل چا پر ځای ګواهي ورکول. ﴿لَا يَصْلُحُ﴾ د کرُم له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده: صلاحيت لرل (ورتيا لرل). لائق کېدل (لياقت).

**تشريح:** له فقهي قاعدو څخه يوه قاعده دا ده چي: "الأصل أنّ كل عقد له مجيز حال وقوعه توقف على الاجازة وإلّا لا" (يعني هر هغه عقد چي د هغه د وقوع په حالت کي د هغه يو مُجيز [اجازه ورکونکی] موجود وي، نو داسي عقد به [د هغه] پر اجازه موقوف کيږي. لېکن که د عقد د وقوع په حالت کي د هغه اجازه ورکونکی موجود نه وي، نو هغه به پر اجازه نه موقوف کيږي)، په تېر عبارت کي هم دا قاعده جاري سوې ده. او د دې عبارت مسئلې هم پر دغه قاعدې مبني دي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يوه سړي د دوو خلکو په مخکي وويل چي ما د فاطمې سره نکاح کړې ده تاسي دواړه پر دې خبره ګواهان سئ! حال دا چي فاطمه په هغه مجلس کي نه وه. او د هغې وکيل هم نه وو چي د هغې له طرفه په دې مجلس کي قبول وکړي، خو فاطمې ته چي کله د نکاح خبر ورسېدی نو هغې اجازه ورکړه. يا مثلاً يوې ښځي د دوو خلکو په مخکي وويل چي ما د خالد سره نکاح کړې ده

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۳۵۲)، وكذا في الهندية (ج:۱، ص:۲۹۹)، وكذا في البحر الرائق (ج:۳، ص:۲۲۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۲٦۹]

تاسي دواړه پر دې خبره ګواهان سئ! او خالد ته چې کله د نکاح خبر ورسېدی نو هغه اجازه ورکړه. نو د طرفينو په نيز په دې دواړو صورتونو کي نکاح باطله ده (يعني که سړی داسي نکاح وکړي او که ښځه، په دواړو صورتونو کي د طرفينو په نيز نکاح باطله ده). لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کي جائز ده (دليل به څه وروسته ذکر سي).

دويمه مسئله دا ده که يوه فضولي سړی د دوو ګواهانو په حضور کي وويل چي تاسو پر دې خبره ګواهان سئ! چي ما د خالد سره د فاطمې نکاح کړې ده (او خالد په هغه مجلس کي قبول وکړی او د نکاح اجازه يې ورکړه)، بيا فاطمې ته د نکاح خبر ورسېدی او هغې اجازه ورکړه. نو په دې صورت کي د ټولو په نيز نکاح صحيح کيږي.

دا دواړي مسئلې پر پورتنۍ قاعدې مبني دي چي که د عقد د وقوع په وخت کي مُجيز (اجازه ورکونکی) موجود وي نو عقد موقوفاً صحيح کيږي کنې نه صحيح کيږي. نو دلته هم په اوله مسئله کي د نکاح د وقوع په وخت کي ښځه په مجلس کي موجوده نه ده. نو ځکه به په اوله مسئله کي موقوفاً نکاح نه صحيح کيږي (بلکي باطليږي، نو تر مجلس وروسته که څه هم ښځه اجازه ورکړي هغه به هيڅ فايده نه کوي ځکه چي تر اجازې مخکي د هغې نکاح باطله سوه). او په دويمه مسئله کي خالد کوم چي أصيل دی هغه په مجلس کي موجود دی او قبول يې هم کړی دی (يعني د نکاح اجازه يې هم ورکړه). نو ځکه به په دويمه مسئله کي نکاح صحيح کيږي.

**وكذلك إلخ:** فرمايي که د سړي پر ځای ښځه پورتنۍ خبره وکړي يعني داسي ووای: "أشهدوا أني قد تزوجت فلاناً إلخ". نو په دې صورت کي هم د طرفينو په نيز نکاح نه صحيح کيږي (لکه مخکي چي موږ وويل). لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي نکاح صحيح کيږي.

**وحاصل هذا إلخ:** په دې عبارت سره دا راښيي چي د طرفينو او د امام ابو يوسف په مينځ کي دا اختلاف په اصل کي د دوی د نظريو پر اختلاف مبني دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله نظريه دا ده چي شخصِ واحد (يو کس) له يوه طرف څخه ولي او له بل طرف څخه فضولي جوړېدلای سي (لکه په پورتني صورت کي. يعني چي کله ښځه ووايي: "أشهدوا أني قد إلخ". نو په دې صورت کي ښځه د خپل ځان له طرفه أصيله ده او د سړي له طرفه فضولي ده). همدارنګه د هغه په نيز يو سړی له دواړو طرفونو څخه فضولي، يا له يوه طرف څخه فضولي او له بل طرف څخه ولي جوړېدلای سي، نو ځکه د هغه په نيز په پورتني صورتونو کي نکاح صحيح کيږي.

لېکن د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز شخصِ واحد داسي نه سي کولای، نو ځکه د دوی په نيز په پورتني صورتونو کي نکاح نه صحيح کيږي يعني برابره ده که سړی داسي وکړي او که ښځه داسي وکړي (په دې شرط چي په مجلس کي قبول کونکی سړی موجود نه وي).

## د دوو فضوليانو يا د فضولي او اصيل تر مينځ د نكاح د عقد حكم

وَلَوْجَرَى الْعَقْدُ بَيْنَ الْفُضُوْلِيَّيْنِ او كه عقد [د نكاح] جاري سي د دوو فضوليانو په مينځ کي أَوْ بَيْنَ الْفُضُوْلِيِّ وَالْأَصِيْلِ يا د يوه فضولي او يوه اصيل په مينځ کي جَازَ بِالْإِجْمَاعِ نو د ټولو په نيز اذا عقد د نكاح] جائز دی هُوَيَقُوْلُ: لَوْكَانَ مَأْمُوْرًا مِنَ الْجَانِبَيْنِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: كه فضولي له دواړو طرفونو څخه وكيل وای يَنْفُذُ نو د هغه عقد به نافذېدای فَإِذَا كَانَ فُضُوْلِيًّا يَتَوَقَّفُ لهذا كله چي هغه فضولي دی نو د هغه عقد به موقوف وي [يعني نكاح به يې موقوفا صحيح وي] وَصَارَ كَالْخُلْعِ وَالطَّلَاقِ وَالْإِعْتَاقِ عَلٰى مَالٍ او دا داسي سو لكه خلع كول او د مال په بدله کي طلاق ور كول او آزادول وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَوْجُوْدَ شَطْرُ الْعَقْدِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي [دلته] د عقد يوه حصه موجوده ده لِأَنَّهُ شَطْرٌ حَالَةَ الْحَضْرَةِ ځکه چي د موجوديّت په حالت کي هم دا د عقد يوه حصه ده [يعني كله چي خاوند او ښځه په مجلس کي موجود او حاضر وي نو هم ايجاب يا قبول د نكاح يوه حصه شمارل كيږي] فَكَذَا عِنْدَ الْغَيْبَةِ لهذا [د هغو] په غائبوالي کي به هم يوه حصه وي وَشَطْرُ الْعَقْدِ لَا يَتَوَقَّفُ عَلٰى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ او د عقد يوه حصه د مجلس پر دباندېني [حالت] نه موقوفه كيږي كَمَا فِي الْبَيْعِ لكه بيع کي اچي د عقد يوه حصه پر ما وراء د مجلس نه موقوفه كيږي] بِخِلَافِ الْمَأْمُوْرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ په خلاف د هغه سړي چي له دواړو طرفونو څخه وكيل وي لِأَنَّهُ يَنْتَقِلُ كَلَامُهُ إِلَى الْعَاقِدَيْنِ ځكه چي د هغه خبري د دواړو عقد كوونكو و طرف ته نقل كيږي وَمَا جَرٰى بَيْنَ الْفُضُوْلِيَّيْنِ عَقْدٌ تَامٌّ او كوم عقد چي د دوو فضوليانو تر مينځ جاري سوی وي هغه كامل [بشپړ] عقد دی وَكَذَا الْخُلْعُ وَأُخْتَاهُ او همدارنگه خلع او د خلع دوې خوندي هم كامل عقد دی اله دوو خوندو څخه مراد "طَلَاق عَلٰى مَال او عِتَاق عَلٰى مَال" دی] لِأَنَّهُ تَصَرُّفُ يَمِيْنٍ مِنْ جَانِبِهِ ځكه چي دا د سړي [خاوند] له طرفه د يمين [قسم] تصرف دی حَتّٰى يَلْزَمَ فَيَتِمَّ بِهِ تر دې چي دا [پر هغه] لازميږي او په هغه سره پوره كيږي هم [يعني د هغه په قول سره پوره كيږي، ځكه چي هغه داسي دی لكه قسم اخيستونكی او څوک چي قسم واخلي نو قسم محض په اخيستلو [ويلو] سره پوره كيږي او پر قسم اخيستونكي لازميږي].

**اللغات**: ﴿جَرٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جاري کېدل، واقع کېدل. ﴿إِعْتَاق﴾ د افعال مصدر دی: آزادول. ﴿شَطْرُ الْعَقْد﴾ نیمه حصه د عقد، یوه حصه د عقد (بیع، نکاح، طلاق او داسي نور عقدونه په خپل مینځ کي دوې حصې دي، یوه حصه یې ایجاب ده او بله یې قبول ده. کله چي دا دواړي حصې په مجلس کي واقع سي نو عقد تامیږي او که فقط یوه واقع سي نو عقد باطلیږي. او ایجاب یا قبول ته "شطر" یعني "یوه حصه" وایي). ﴿الحَضْرَة﴾ حاضري (حضور)، موجودیت (موجود والی). ﴿مَا وَرَاءَ الْمَجْلِس﴾ له مجلس څخه دباندي (بهر)، تر مجلس وروسته.

**تشريح**: په تېر عبارت کي تاسو ته دا مسئله ذکر سوه چي د طرفینو په نېز شخصِ واحد (یو کس) له دواړو طرفونو څخه فضولي نه سي جوړېدلای، لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز جوړېدلای سي. په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د دواړو دلیلونه ذکر کوي او یوه بله متفق علیه مسئله هم بیانوي.

مسئله دا ده که د دوو فضولیانو تر مینځ یا د یوه فضولي او د بل أصیل تر مینځ د نکاح عقد وسي (مثلاً خالد د زید له طرفه فضولي وي او عُمَر د فاطمې له طرفه فضولي وي، یو ایجاب وکړي او بل په دغه مجلس کي قبول وکړي)، نو د ټولو په نېز نکاح صحیح کیږي، ځکه چي په مجلس کي دننه یو فضولي قبول کونکی سو او شخصِ واحد له دواړو طرفونو څخه فضولي نه سو (او مخکي موږ وویل چي که په مجلس کي قبول کونکی کس موجود وي نو نکاح صحیح کیږي)، نو ځکه به دلته نکاح صحیح وي: همدارنګه که له یوه طرفه فضولي وي او له بل طرفه أصیل وي، یو ایجاب وکړي او بل په دغه مجلس کي قبول وکړي، نو هم د ټولو په نېز نکاح صحیح کیږي، ځکه چي دغه بل فضولي په مجلس کي قبول کونکی سو.

**وهويقول إلخ**: په دې سره د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د مخکنۍ مسئلې دلیل بیانوي، هغه وویل: که له دواړو طرفونو څخه شخصِ واحد فضولي وي او نکاح وتړي، نو هم نکاح صحیح کیږي. د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي که شخصِ واحد (یوه سړي) ته خاوند او ښځي دواړو د نکاح تړلو حکم کړی وي، یعني د دواړو له طرفه شخصِ واحد وکیل وي نو د هغه نکاح نافذیږي. لهذا څرنګه چي د هغه نکاح نافذیږي نو همداسي که له دواړو طرفونو څخه شخصِ واحد فضولي وي نو هم به نکاح موقوفاً نافذیږي او صحیح کیږي.

**وصار كالخلع إلخ**: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د خپل دلیل په تایید کي درې مثالونه ذکر کوي. یعني د "فضولي من الجانبين" مسئله پر درې شیانو قیاسوي: ① خلع، ② طلاق، ③ عتاق. یعني که خاوند ووایي چي ما د خپلي ښځي سره د پنځو سوو (۵۰۰) درهمو په عوض کي خلع وکړه. او ښځه

يې په مجلس کې موجوده نه وه، وروسته هغې ته د خلع خبر ورسېدی او هغې خلع قبوله کړه نو د ټولو په نېز خلع صحيح کيږي، حالانکې دلته يوازې خاوند په مجلس کې موجود دی. نو څرنګه چې دلته ديوه سړي په کلام سره خلع صحيح کيږي، نو همداسې ديوه فضولي په کلام سره نکاح هم صحيح کېدل پکار دي؛ او بل مثال دا دی که خاوند ووايي چې ما په پنځو سوو (۵۰۰) درهمو خپلې ښځې ته طلاق ورکړی دی، او هغه په مجلس کې نه وه، وروسته خبره سوه او د خاوند معامله او خبره يې قبوله کړه نو هغه بالاتفاق طلاقيږي او (۵۰۰) درهمه پر لازميږي، او بل مثال دا دی که مالک ووايي: ما غلام د پنځو سوو (۵۰۰) درهمو په عوض کې آزاد کړی، او غلام په مجلس کې نه وو، وروسته هغه خبر سو او د مالک خبره يې قبوله کړه نو هغه بالاتفاق آزاديږي او پر غلام (۵۰۰) درهمه لازميږي. نو څرنګه چې خلع، طلاق او عتاق ديوه سړي په کلام سره موقوفاً صحيح کيږي، نو همداسې به د فضولي من الجانبين نکاح هم موقوفاً صحيح کيږي.

ولهما أن الموجود إلخ: د طرفينو د دليل حاصل دا دی چې د نکاح عقد په ايجاب و قبول دواړو سره پوره کيږي، ځکه چې ايجاب د عقد يوه حصه ده او قبول يې بله حصه ده، کله چې دا دواړې حصې واقع سي نو نکاح پوره کيږي، او د فضولي من الجانبين په مسئله کې فقط يوه حصه يعني ايجاب واقع کيږي ځکه چې هغه له دواړو طرفونو څخه فضولي دی، په مجلس کې خاوند يا ښځه ور سره نسته چې قبول وکړي، نو د هغه دا کلام "أشهدوا أني قد تزوّجتُ" به "ايجاب" يعني د عقد يوه حصه وي، لکه څرنګه چې په هغه وخت کې هم دا کلام فقط د عقد يوه حصه کيږي کله چې ښځه او خاوند په مجلس کې موجود وي، لهذا د نه موجوديت په وخت کې به هم دا کلام د عقد يوه حصه (يعني ايجاب) وي، او د عقد يوه حصه د مجلس پر ماوراء نه موقوفه کيږي بلکې هر وخت چې مجلس ختم سي نو سملستي هغه عقد باطليږي، لکه د بيع په عقد کې چې کله ايجاب واقع سي لېکن قبول واقع نه سي نو بيع باطليږي (مثلاً يو څوک ووايي چې ما پر خالد دغه پُسه خرڅ کړی، او په هغه مجلس کې د خالد له طرفه څوک قبول نه وکړي، نو د مجلس پر ختمېدلو سملستي دغه د بيع عقد باطليږي، بيا که څه هم تر مجلس وروسته د خالد له طرفه قبول واقع سي، نو هم هغه لره هيڅ اعتبار نسته)، ځکه چې په مجلس کې فقط د عقد يوه حصه يعني ايجاب واقع سو، او د عقد يوه حصه پر ماوراء د مجلس نه موقوفه کيږي. نو همداسې کله چې د نکاح په عقد کې يوه حصه واقع سي او بله حصه واقع نه سي، نو هغه به هم باطليږي او پر ماوراء د مجلس به نه موقوفه کيږي.

بخلاف المأمور من الجانبين: په دې عبارت سره امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، هغه وويل چې "که له دواړو طرفونو څخه شخصِ واحد وکيل وي نو د هغه نکاح نافذيږي، نو همداسې به د

فضولي نکاح هم موقوفاً نافذيږي"، د جواب حاصل دا دی چې په نکاح کې وکيل فقط د مُعبِّر او ترجمان حيثيت لري (د عاقد او مُباشر حيثيت نه لري، لکه مخکې چې دا خبره ذکر سوه)، لهذا د وکيل کلام د دواړو عاقدَينو (سړي او ښځې) و طرف ته نقل کيږي (يعني د هغه يو کلام د دواړو د کلام [ايجاب و قبول] پر ځای درېږي)، نو ګواکې هغه د يوه له طرفه ايجاب وکړی او د بل له طرفه يې قبول وکړی، نو ځکه به د هغه نکاح نافذيږي؛ لېکن کله چې له دواړو طرفونو څخه شخصِ واحد فضولي وي نو فقط يوه حصه يعني ايجاب واقع کيږي، ځکه چې د هغه کلام د دواړو عاقدَينو و طرف ته نه نقل کيږي، نو ځکه به د هغه نکاح باطليږي.

**وما جرى بين إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د دوو فضوليانو پر عقد قياس کول هم صحيح نه دي، ځکه چې د دوو فضوليانو په مينځ کې واقع سوی عقد پر ايجاب او قبول داړو مشتمل وي، نو ځکه د هغو عقد (موقوفاً) کامل او پوره وي، لهذا پر هغه باندي غيرِ کامل (نابشپړ) عقد قياسول صحيح نه دي.

**وكذا الخلع وأختاه إلخ**: همدارنګه خُلع، طلاق على مال او عتاق على مال هم کامل او پوره عقد دی. لهذا د امام ابو يوسف لپاره د خپل دليل په تاييد کې دغه مسئلې پېښول او پر دې د "فضولي من الجانبين" مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې يو شی "ايجاب وقبول" دي او بل شی "يمين" (قسم) دی چې هغه ته "شرط" هم وايي (وروسته به دا خبره ذکر سي چې يمين ته شرط هم وايي)، د "ايجاب وقبول" په باره کې قاعده دا ده چې که ايجاب و قبول دواړه په يوه مجلس کې واقع سي نو عقد پوره کيږي او که فقط ايجاب واقع سي او مجلس ختم سي نو ايجاب باطليږي او چې ايجاب باطل سي نو عقد هم باطليږي (که څه هم تر مجلس وروسته قبول واقع سي)، همدارنګه که څوک تر ايجاب وروسته او تر قبول مخکې په هغه مجلس کې له خپلې خبرې څخه رجوع کول وغواړي نو رجوع کولای سي؛ او د "يمين" په باره کې قاعده دا ده چې کله "يمين" وويل سي نو په هغه مجلس کې د هغه قبول (قبلول) ضروري نه دي (يعني د يمين قبول د مجلس سره خاص نه دی)، بلکې تر مجلس وروسته هم د هغه قبول کېدای سي (ځکه چې يمين محض په ويلو سره پوره کيږي)، او که څوک په يمين کې له خپلې خبرې څخه رجوع کول وغواړي نو رجوع نه سي کولای ځکه چې دا قسم دی (او له قسم څخه څوک رجوع نه سي کولای)، او خاوند چې کله خلع وکړي نو د هغه خلع هم يمين ده، نو په دې وجه په مجلس کې د ښځې قبول ضروري نه دی بلکې تر مجلس وروسته هم د ښځې په قبول سره خلع صحيح کيږي، او طلاق على مال او عتاق على مال هم يمين دی ځکه چې دا دواړه هم

پر شرط مشتمل دي. لهذا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله لپاره دغه مثالونه او مسئلې په خپل دلیل کې پېشول او پر دې قیاس کول صحیح نه دي، ځکه چې دا قیاس مع الفارق دی.

خو که چیري ښځه خلع وکړي یعني ښځه ووایي چې ما له خاوند څخه د (٥٠٠) درهمو په عوض کې خلع وکړه، نو دا د هغې له طرفه معاوضه ده (په لنډه توګه دا چې خلع د ښځې له طرفه معاوضه ده، ځکه چې ښځې د (٥٠٠) درهمو په عوض کې له خاوند څخه طلاق واخیستی)، نو د ښځې خلع د بیع په څیر عقد سوه، یمین نه سوه، لهذا په دې صورت کې په مجلس کې دننه د خاوند قبول کول ضروري دي.

همدا حال د طلاق علی مال او عتاق علی مال دی، یعني که د خاوند له طرفه وي نو یمین دی، لهذا تر مجلس وروسته هم ښځه قبول کولای سي، او که د ښځې له طرفه وي نو د بیع په څیر دی، لهذا خاوند به په هغه (د ایجاب په) مجلس کې قبول کوي، کنې ایجاب باطلیږي.

**نور وضاحت:** د "حَتّٰی یَلْزَم" مطلب دا سو چې کله خاوند خلع وکړي یا طلاق علی مال او عتاق علی مال وکړي نو دا شیان پر هغه لازم سو، لهذا که تر کولو وروسته هغه بیرته له دې شیانو څخه رجوع کول وغواړي نو رجوع نه سي کولای، ځکه چې خلع او دا نور دوه شیان یمین دي او په یمین کې رجوع نه سي کېدلای بلکې هغه لازمیږي، د "فَيَتِمُّ بِهٖ" مطلب دا سو چې کله خاوند فقط داسې ووایي چې ما د دومره مال په عوض کې خلع وکړه، نو فقط په همدومره وینا سره یمین او شرط پوره کیږي بیا په مجلس کې د ښځې لپاره قبول کول ضروري نه دي، همدا د طلاق علی مال او عتاق علی مال حکم دی.

## د مؤکل په امر (حکم) کې د وکیل د تصرف کولو حکم

وَمَنْ أَمَرَ رَجُلًا او کوم څوک چې یو سړي ته [دا] حکم وکړي أَنْ يُزَوِّجَهُ امْرَأَةً چې د یو ښځې سره د هغه نکاح وکړي [یعني کوم څوک چې یو سړی د خپلې نکاح وکیل جوړ کړی چې د یو ښځې سره زما نکاح وکړه!] فَزَوَّجَهُ اثْنَتَيْنِ فِي عُقْدَةٍ نو هغه په یوه عقد کې د دوو ښځو سره د هغه نکاح وکړه لَمْ تَلْزَمْهُ وَاحِدَةٌ مِنْهُمَا نو په دې دواړو کې یوه [هم] پر هغه لازمه نه ده [یعني د یوې قبلول هم پر هغه لازم نه دي، بلکې د دواړو ښځو نکاح غیر صحیح ده او دواړې به پریږدي] لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى تَنْفِيذِهِمَا ځکه چې د دوی دواړو د نکاح نافذولو لره هیڅ صورت [او هیڅ لاره] نسته لِمُخَالَفَةِ [د وکیل] د مخالفت په وجه وَلَا إِلَى التَّنْفِيذِ فِي إِحْدَاهُمَا غَيْرَ عَيْنٍ او نه له دواړو څخه په یوې غیر متعینې ښځې کې د نکاح نافذولو لره هیڅ صورت [او دلیل] سته لِلْجَهَالَةِ د جهالت په وجه [ځکه چې غیر متعینه ښځه مجهوله وي] وَلَا إِلَى

التَّعْيِيْنِ او نه ديوې د متعينولو هيڅ صورت سته لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ دافضليت [ترجيح] د نشتوالي په وجه [يعني يوه پر بله هيڅ ترجيح نه لري] فَتَعَيَّنَ التَّفْرِيْقُ نو ځکه جلا کول متعين سو.

**اللغات:** ﴿يُزَوِّجُه﴾ د تفعيل مضارع ده، متعدني باب دی: (بل چا ته) واده ورکول. نکاح ورکول (نکاح ورترل)، ﴿عُقْدَة﴾ يو عقد (يو تړون)، ﴿تَنْفِيْذ﴾ د تفعيل مصدر دی: نافذول. جاري کول. ﴿غَيْرِ عَيْن﴾ نامعلوم، غيرِ معين، ﴿تَفْرِيْق﴾ د تفعيل مصدر دی: د دوو شيانو تر مينځ جدايي رواستل، جلا کول. عليحده کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد (مثلاً) خالد ته حکم وکړی (يعني خپل وکيل يې جوړ کړی) چې د فلانۍ ښځې سره زما نکاح وکړه!. او خالد ډېر اخلاص مندوو او په يوه ځل يې د دوو ښځو سره د زيد نکاح وتړله، نو په داسې صورت کې د يوې ښځې نکاح هم نه صحيح کيږي. او پر زيد د يوې ښځې قبلول هم ضروري نه دي، بلکې دواړې به له هغه څخه جلا کول کيږي او هغه به دواړې پرېږدي.

ځکه چې په عقلي توګه دلته درې احتمالات جوړيږي او درې سره باطل دي:

①... اول دا چې د دواړو ښځو نکاح نافذ کړی سي، دا احتمال ځکه باطل دی چې موکِل (زيد) وکيل (خالد) ته فقط د يوې ښځې سره د نکاح کولو حکم کړی وو، نه د يو درځن ښځو سره. نو د موکِل د حکم د مخالفت په وجه دا احتمال باطل دی.

②... دويم احتمال دا دی چې بغير له تعيين څخه فقط د يوې ښځې نکاح نافذ کړی سي، دا احتمال هم باطل دی، ځکه چې د دې هيڅ دليل او وجه نسته چې يوه ښځه مُتعيّنه کړی سي، ځکه که د غيرِ مُتعيّنې ښځې نکاح نافذ کړی سي (يعني تعيين يې نه وسي)، نو هغه خو مجهوله سوه. او د مجهولې ښځې نکاح د بيان پر شرط مُعلّقه ده (يعني د هغې نکاح هغه وخت صحيح کيږي چې په بيان سره د هغې جهالت ختم سي)، حالانکې ملک نکاح مُعلّق کول جائز نه دي.

③... دريم احتمال دا دی چې په دواړو ښځو کې يوه متعيّنه کړی سي او د هغې نکاح نافذ کړی سي، او دا احتمال هم ممکن نه دی، ځکه چې د يوې ښځې په متعيّنولو سره ترجيح بلا مرجح لازميږي، ځکه چې په اوليّت کې دواړې سره برابرې دي ځکه چې د دواړو سره په يوه وار نکاح سوې ده.

نو کله چې يو صورت هم ممکن نه دی، نو په آخر کې فقط همدغه صورت پاتـه سو چې د دواړو نکاح فسخ کړی سي او دواړې له موکِل (زيد) څخه جلا کړی سي.

## د پورتنی مسئلي يو بل صورت

وَمَنْ أَمَرَهُ أَمِيرٌ او چا ته چي يو مالدار [دولتمند] کس حکم وکړي [يعني د نکاح وکيل يې جوړ کړي] بِأَنْ يُزَوِّجَهُ امْرَأَةً چي ديو ښځي سره د هغه نکاح وکړي فَزَوَّجَهُ أَمَةً لِغَيْرِهِ نو هغه [وکيل] د بل چا د مينځي سره د مالدار نکاح وکړي جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو [دا] نکاح جائز ده د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز رُجُوعًا إِلَى إِطْلَاقِ اللَّفْظِ د لفظ اطلاق ته په کتلو سره [يعني ځکه چي أمير هغه ته د مطلق ښځي حکم کړی دی] وَعَدَمِ التُّهْمَةِ او د تهمت د نشتوالي په وجه وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ❁: لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يُزَوِّجَهُ كُفْوًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي نکاح جائز نه ده خو دا چي هغه [وکيل] د يو کفو [ښځي] سره د أمير نکاح وکړي لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يَنْصَرِفُ إِلَى الْمُتَعَارَفِ ځکه چي مطلق [ښځه] گرځول کيږي و متعارف ته وَهُوَ التَّزَوُّجُ بِالْأَكْفَاءِ او متعارف د کفو سره نکاح کول دي قُلْنَا: الْعُرْفُ مُشْتَرَكٌ موږ جواب ورکوو: چي عرف مشترک دی أَوْ هُوَ عُرْفٌ عَمَلِيٌّ يا هغه عرفِ عملي دی فَلَا يَصْلُحُ مُقَيِّدًا نو ځکه دا [مطلق] عرف د مقيد کيدلو صلاحيت نه لري وَذُكِرَ فِي الْوَكَالَةِ او [د مبسوط] په کتابُ الوکالة کي ذکر سوي دي أَنَّ اعْتِبَارَ الْكَفَاءَةِ فِي هٰذَا اسْتِحْسَانٌ عِنْدَهُمَا چي د کفو اعتبار کول په دې مسئله کي د صاحبينو په نيز استحسان دی لِأَنَّ كُلَّ أَحَدٍ لَا يَعْجِزُ عَنِ التَّزَوُّجِ بِمُطْلَقِ الزَّوْجِ ځکه چي هر څوک د مطلق ښځي له نکاح څخه عاجز نه دی [يعني هر څوک د مطلق ښځي سره د نکاح کولو قدرت لري، هيڅوک هم له دې څخه عاجز نه دی] فَكَانَتِ الِاسْتِعَانَةُ فِي التَّزَوُّجِ بِالْكُفُؤِ نو [دا أمير سړي له حکم څخه] به په کفو کي د نکاح کولو په هکله مرسته غوښتل [امراد] وي.

**اللغات:** ﴿أَمِيْر﴾ مالدار، حاکم، واکمن (دلته څخه مراد داسي مالدار سړی دی چي د آزادي کفو ښځي سره د نکاح کولو قدرت لري، يعني دومره مال لري چي د آزادي ښځي مهر په اداء کړي)، ﴿إِسْتِعَانَة﴾ د مدد طلب کول، مرسته غوښتل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که مالدار سړي يو څوک خپل د نکاح وکيل جوړ کړی او ورته ووايي ورېل چي د يو ښځي سره زما نکاح وکړه!، او هغه د يو مينځي سره د مالدار سړي نکاح وکړه، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا نکاح جائز ده او مالدار ته د اعتراض کولو حق نسته، ليکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز نه ده.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته مالدار سړي وکيل ته د مطلق ښځي سره د نکاح کولو حکم کړی دی (د آزادي ښځي تعيين يې نه دی کړی)، او په مطلق ښځه کي آزاده او مينځه دواړه داخلي دي، او بل دا چي دلته پر

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٣٥٢)، وكذا في البحر الرائق (ج:٣، ص:٢٤٧). [القول الراجح ج:١، ص:٢٧٠]

وکيل هيڅ تهمت هم نسته، ځکه چې هغه د خپلې مينځې سره نه بلکې د پردۍ مينځې سره د دغه أمير سړي نکاح کړې ده (که د خپلې مينځې سره يې د هغه نکاح کړې واى نو بيا پر وکيل دا تهمت کېداى سو چې شايد خپل مينځه يې پر مالک اړوله، يا شايد په دې کې د ده يوه فايده وه، لېکن په پردۍ مينځې کې دا تهمت هم نسته).

**د صاحبينو دليل**: دا دى چې صحيح ده أمير سړي د مطلق ښځې حکم کړى دى، او مطلق نقل کيږي و متعارف ته (يعني داسې معنىٰ ته نقل کيږي چې هغه په عرف عام کې جاري وي)، او عرف همدا دى چې آزاد انسان (بيا په ځانګړې توګه أمير انسان) د خپل کفو سره نکاح کوي، نو ځکه به دلته د مينځې سره د أمير سړي نکاح جائز نه وي.

**قلنا إلخ**: په دې عبارت سره د امام صاحب له طرفه صاحبينو ته دوه جوابونه ورکوي، يو دا چې عرف مشترک دى، يعني په عرف کې چې څرنګه خلک د آزادو ښځو سره نکاح کوي، همدارنګه د مينځو سره هم نکاح کوي لکه په مالداره خلګو کې چې همدغه رواج دى، لهذا کله چې عرف مشترک دى، نو فقط په آزادې ښځې سره عرف مقيدول صحيح نه دي، نو ځکه به د مينځې سره هم نکاح جائز وي. دويم جواب دا دى چې عرف پر دوه قسمه دى: ① عرف لفظى، ② عرف عملي، او تاسو (صاحبين) چې د کوم عرف يادونه کوى هغه عرف عملي دى (يعني په عملي اعتبار سره د خلګو عرف همدا دى چې خلک له مطلق ښځې څخه آزاده مرادوي)، لېکن د دغه أمير سړي وکيل ته د إطلاق (مطلق ښځې) حکم کړى دى، او إطلاق د عرف لفظي له قبيلې څخه دى (يعني د لفظ او لغت په اعتبار سره مطلق ښځه په عرف کې آزادې ښځې او مينځې دواړو ته ويل کيږي او دواړو ته شامليږي)، او عرف لفظي (مطلق) په عرف عملي سره مقيدول صحيح نه دي، ځکه چې تقييد د اطلاق مقابل دى، او د تقابل لپاره اتحاد د محل (د محل يو والى) شرط دى، او هغه دلته نسته، ځکه چې عرف عملي جلا شى دى او عرف لفظي جلا شى دى.

**وذکر في الوکالة إلخ**: د دې حاصل دا دى چې امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط په "کتَابُ الوکالة" کې هم د دغه مسئله بيان کړې ده، او په دې مسئله کې يې د کفو اعتبار مستحسن ګڼلى دى (يعني له مطلق ښځې څخه به استحساناً آزاده مراديږي)، او د استحسان دليل يې دا بيان کړى دى چې د مطلق ښځې سره پر نکاح کولو هر څوک قدرت لري. لېکن څوک چې بل چا ته نکاح سپاري او د خپلې نکاح وکيل يې جوړوي نو د دې مطلب دا وي چې د کفو ښځې او غوره ښځې سره زما نکاح وکړه!، لهذا د استحسان تقاضا دا ده چې دلته له مطلق ښځه ښځې آزاده او کفو ښځه مراد کړى سي، نو ځکه به د مينځې سره د دغه أمير سړي نکاح جائز نه وي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْمَهْرِ

## (دا) باب (په بیان) د ولور (کې دی)

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د هدایې د نکاح ارکان او شرائط بیان کړل، اوس له دې ځایه د نکاح حکم یعني مهر بیانوي، ځکه چې د يو شي حکم تر هغه وروسته ثابتیږي، نو د همدغه ترتیب په لحاظ سره صاحب د هدایې د مهر بیان د ارکانو او شرائطو تر بیان وروسته کړی دی.

**مهر په لغت او اصطلاح کې:** د مهر لغوي معنیٰ ده: "ښځې ته مهر (ولور) ورکول". او په اصطلاح کې هغه مال ته مهر وايي کوم چې د ښځې سره د نکاح کولو په وخت کې د هغې د ملکِ بضع په بدل کې تاکل کیږي.

د مهر اووه (۷) نومونه دي: ① صَدَاق، ② نِحْلَة، ③ أجر، ④ فَرِيْضَة ⑤ مَهْر. ⑥ عَلِيْقَة، ⑦ عَقْر. (اول څلور یعني "صداق، نحله، أجر، فریضه" په قرآن کې ذکر سوي دي او پاته درې په حدیث کې ذکر سوي دي).

### له مهر ټاکلو څخه بغیر د نکاح تفصیلي حکم

وَيَصِحُّ النِّكَاحُ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ فِيهِ مَهْرًا او صحیح ده نکاح که څه هم مهر پکښې ذکر نه کړی سي ایعني که څه هم د نکاح په وخت کې مهر نه وټاکل سي نو هم نکاح صحیح ده| لِأَنَّ النِّكَاحَ عَقْدُ انْضِمَامٍ وَازْدِوَاجٍ لُغَةً ځکه چې نکاح په لغت کې د یوځای کیدلو او جوړه کیدلو عقد دی ایعني د نکاح لغوي معنیٰ ده: (د خاوند او ښځې) سره یو ځای کیدل، جوړه کیدل| فَيَتِمُّ بِالزَّوْجَيْنِ نو په ایو ځای کیدلو| د خاوند او ښځې سره |دا عقد| پوره کیږي ثُمَّ الْمَهْرُ وَاجِبٌ شَرْعًا بیا مهر په شریعت کې واجب |سوی| دی إِبَانَةً لِشَرَفِ الْمَحَلِّ د محل د شرافت څرګندولو لپاره فَلَا يُحْتَاجُ إِلَى ذِكْرِهِ لِصِحَّةِ النِّكَاحِ نو ځکه د نکاح صحیح کیدلو لپاره د هغه ذکر کولو ته ضرورت نسته وَكَذَا إِذَا تَزَوَّجَهَا بِشَرْطِ أَنْ لَا مَهْرَ لَهَا او همدارنګه |نکاح صحیح ده په هغه صورت کې| کله چې |خاوند| د ښځې سره پر دې شرط نکاح وکړي چې د هغې لپاره به مهر نه وي |یعني د مهر نفي وکړي| لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ |اوس|

ذکر کړی [چې نکاح په لغت کې یو ځای کېدلو... ته وایي] وَفِيهِ خِلَافُ مَالِكٍ او په دې کې د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَأَقَلُّ الْمَهْرِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ او د مهر کمه اندازه لس [۱۰] درهمه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَا يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: کوم شی چې په بیع کې ثمن جوړول جائز وي يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ مَهْرًا لَهَا هغه شی د ښځې لپاره مهر جوړول [هم] جائز دي لِأَنَّهُ حَقُّهَا ځکه چې مهر د ښځې حق دی فَيَكُونُ التَّقْدِيرُ إِلَيْهَا نو د هغه اندازه کول [او ټاکل] به [هم] د ښځې لپاره وي [یعني کله چې مهر د ښځې حق دی نو د هغه تقدیر او تعیین به هم ښځې ته سپارل کیږي]

وَلَنَا: قَوْلُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ❶: وَلَا مَهْرَ أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا قول دی: چې د لسو درهمو څخه کم مهر نشته وَلِأَنَّهُ حَقُّ الشَّرْعِ وُجُوبًا او ځکه چې مهر د شریعت واجب کړی سوی حق دی إِظْهَارًا لِشَرَفِ الْمَحَلِّ د محل د شرافت څرګندولو لپاره فَيَتَقَدَّرُ بِمَا لَهُ خَطَرٌ نو په داسي شي سره به اندازه کیږي چې هغه لره [په شریعت کې] اهمیت [ارزښت] وي وَهُوَ الْعَشَرَةُ او هغه لس درهمه دي اِسْتِدْلَالًا بِنِصَابِ السَّرِقَةِ د غلا پر نصاب باندې په قیاس کولو سره.

**اللغات:** ﴿لَمْ يُسَمِّ﴾ د تفعیل د باب جحد صیغه ده: نومول، متعیّنول، ټاکل، ذکر کول. ﴿اِنْضِمَام﴾ د انفعال مصدر دی: یو ځای کېدل، جمع کېدل، ﴿اِزْدِوَاج﴾ د افتعال مصدر دی: نکاح کول، واده کول، د خاوند او ښځې سره جوړه کېدل (یو ځای کېدل)، ﴿إِبَانَة﴾ د افعال مصدر دی: څرګندول، ښکاره کول، ﴿أَقَلّ﴾ کم، (کم ازکم، لږ تر لږه)، ﴿تَقْدِيْر﴾ د تفعیل مصدر دی: اندازه کول، مقرر کول، ﴿خَطَر﴾ احترام، عظمت، حیثیت، اهمیت (ارزښت)، ﴿سَرِقَة﴾ غلا.

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده چې د مهر له تعیین او ټاکلو څخه بغیر هم نکاح جائز ده؛ د دې عقلي دلیل دا دی چې د نکاح لغوی معنیٰ ده: "انضمام" (یو ځای کېدل)، نو فقط د خاوند او ښځې په یو ځای کېدلو سره دغه معنیٰ پوره کیږي. نو ځکه به له مهر ټاکلو څخه بغیر فقط په ایجاب و قبول سره هم نکاح صحیح کیږي. او بل دلیل یې دا دی چې په دې آیت "فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ...الخ"[سورة النساء:۳] کې مطلق د نکاح حکم سوی دی، د مهر ذکر

❶ تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب النكاح، باب المهر، حديث رقم: ۳۵۵۹.

نه دي سوی، اوس که موږ د نکاح صحیح کېدلو لپاره د مهر ذکر کول او ټاکل ضروري وګڼو، نو پر کتابُ الله به زیاتوب راسي کوم چي صحیح نه دی، نو په دې حواله سره هم د نکاح د صحیح کېدلو لپاره د مهر ټاکل او ذکر کول ضروري نه دي.

**ثم المهر إلخ:** په دې سره دیو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي مهر خو په شریعت کي واجب دی، نو له هغه څخه بغیر څنګه نکاح صحیح کیږي؟ د جواب حاصل دا دی چي مهر د نکاح د صحت (صحیح کېدلو) لپاره نه دي واجب سوی، بلکي د بضع د شرافت او ارزښت د ښکاره کولو لپاره واجب سوی دی چي بضع یو ډېر قیمتي او ارزښتناکه شی دی، نو ځکه د نکاح د صحت لپاره د هغه ذکر کول شرط او ضروري نه دي.

**وكذا إذا تزوّجها إلخ:** فرمايي لکه څرنګه چي د مهر نه ذکر کولو په صورت کي نکاح صحیح کیږي، همدارنګه د مهر نفي کولو په صورت کي هم نکاح صحیح کیږي (یعني که د نکاح په وخت کي وویل سي چي دا ښځه بې مهره ده [مهر نه ورکوي]، او د هغې سره د خاوند نکاح مُقته وتړل سي، نو هم نکاح جائز کیږي). ځکه چي په دې صورت کي هم د خاوند او ښځي په یو ځای کېدلو سره د نکاح معنیٰ "انظمام او ازدواج" پوره کیږي.

خو په دې مسئله کي د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمايي چي د مهر نفي کولو په صورت کي نکاح نه صحیح کیږي؛ دلیل یې دا دی چي نکاح د بیع په څېر عقد معاوضه دی، نو څرنګه چي بیع د ثمن په نفي کولو سره باطلیږي، همدارنګه نکاح هم د مهر په نفي کولو سره باطلیږي (ځکه چي ثمن هم عوض دی او مهر هم عوض دی).

موږ دا جواب ورکوو چي نکاح پر بیع قیاسول صحیح نه دي، ځکه چي په بیع کي اَحَدُ العِوَضَيْن د بیع رکن دی، او د رکن په نفي کولو سره شی منتفي کیږي، لېکن مهر خو نه د نکاح رکن دی او نه د نکاح شرط دی، لهذا څرنګه چي د مهر نه ذکر کولو په صورت کي نکاح صحیح کیږي، همدارنګه به د مهر په نفي کولو سره هم نکاح صحیح کیږي.

## ﴿ د مهر اندازه ﴾

(۲)... دویمه مسئله دا ده چي مهر به څومره ټاکل کیږي؟ نو په دې باره کي تفصیل دا دی چي د مهر په زیاته اندازه کي د هیڅ اختلاف نسته، هر څومره مهر چي وټاکل سي د هغه اداء کول به واجب وي، لېکن د کمي اندازې په هکله یې د فقهاؤ اختلاف دی: د احنافو په نېز د مهر کمه اندازه لس (۱۰) درهمه دي یعني تر لس درهمه کم مهر معتبر نه دی، لهذا که دیو ښځي مهر تر لس درهمه کم کېښښول

سي نو بیا به هم هغې ته لس درهمه ورکول کیږي. د امام مالک رَحِمَهُ الله په نیز د مهر کمه اندازه درې درهمه یا دیوه دینار څلورمه حصه ده. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز د مهر د کمي اندازې هیڅ حد هم نشته لکه د مهر زیاته اندازه چې هیڅ حد نه لري. بلکې د هغه په نیز هر هغه شی مهر جوړېدای سي کوم چې په بیع کې ثمن جوړېدای سي که څه هم د اوسپنې ګوتمۍ وي (په دې شرط چې ښځه په راضي وي)، علامه عیني رَحِمَهُ الله د نورو فقهاؤ أقوال هم نقل کړي دي چې د ځینو په نیز د مهر کمه اندازه پنځه درهمه او د ځینو په نیز څلوېښت او د ځینو په نیز شل درهمه دي، او د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په څېر دی، او د مدینې د فقهاؤ میلان هم ودغه طرف ته دی.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې مهر خالص د ښځې حق دی ځکه چې مهر فقط د هغې د بضع په مقابله کې ورکول کیږي، لهذا د مهر د تعیین او ټاکلو اختیار به هم د ښځې وي. او بل چا ته به د هغه د تعیین حق او اختیار نه وي.

**زموږ دلیل**: زموږ یو دلیل خو د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حدیث دی: "وَلَا مَهْرَ أَقَلَّ مِنْ عَشْرَةٍ". یعنې تر لس درهمه کم مهر معتبر نه دی، او عقلي دلیل دا دی چې مهر شریعت د بضع د شرافت او ارزښت څرګندولو لپاره واجب کړی دی نو مهر د شریعت حق سو، لهذا مهر به دومره اندازه ټاکل کیږي چې هغه په شریعت کې ارزښت (اهمیت) لري، نو موږ چې کله عقل په کار واچوی او فکر مو وکړی نو معلومه سوه چې تر ټولو آخر لس درهمه اهمیت او ارزښت لري. د غلا په نصاب باندې په قیاس کولو سره، یعنې د غلا نصاب شریعت همدومره اندازه ټاکلی دی. یعنې که یو څوک لس درهمه غلا کړي نو د دې په عوض کې به د هغه لاس پرېکول کیږي، او بضع هم د لاس په څېر یو اندام دی بلکې دا یو أهم اندام دی، نو ځکه به د هغه کمه اندازه مهر هم لس درهمه وي، او تر لسو کمو درهمو لره به اهمیت او اعتبار نه وي.

## تر لسو درهمو د کم مهر ټاکلو حکم

وَلَوْسَمّٰى أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ او که خاوند [د ښځې لپاره] تر لس درهمه کم مهر وټاکي فَلَهَا الْعَشَرَةُ عِنْدَنَا نو دهغې لپاره به لس درهمه وي زموږ په نیز [یعنې لس درهمه به ورکول کیږي] وَقَالَ زُفَرُ: لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغې لپاره به مهر مثل وي لِأَنَّ تَسْمِيَةَ مَا لَا يَصْلُحُ مَهْرًا كَانْعِدَامِهِ ځکه ټاکل د هغه شي کوم چې د مهر جوړېدلو صلاحیت نه لري هغه داسي دی لکه نه ټاکل ایعنې په مهر کې د هغه شي ټاکل داسي دي لکه بالکل چې مهر ټاکل سوی نه وي] وَلَنَا: أَنَّ فَسَادَ هٰذِهِ التَّسْمِيَةِ لِحَقِّ

الشَّرْعِ او زموږ دليل دا دی: چي د دې تاکلو فساد د شريعت د حق په وجه دی [يعني تر لس درهمه کم مهر د شريعت د حق په وجه فاسد دی] وَقَدْ صَارَ مَقْضِيًّا بِالْعَشَرَةِ او هغه پوره سو په لسو درهمو سره فَأَمَّا مَا يَرْجِعُ إِلَى حَقِّهَا او کوم [مهر] چي د ښځي و حق ته راجع کيږي فَقَدْ رَضِيَتْ بِالْعَشَرَةِ نو هغه په لسو درهمو راضي سوه لِرِضَاهَا بِمَا دُونَهَا ځکه چي هغه د لسو څخه په کمو درهمو [هم] راضي ده وَلَا مُعْتَبَرَ بِعَدَمِ التَّسْمِيَةِ او د [مهر] نه تاکلو لره هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّهَا قَدْ تَرْضَى بِالتَّمْلِيكِ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ تَكَرُّمًا ځکه چي کله نا کله تکرماً [د عزت لپاره] ښځه بغير له عوضه [هم] په مالک جوړولو راضي کيږي [يعني ځيني وخت ښځه تکرماً دې ته تياريږي چي له مهر څخه بغير خاوند د خپلي بضع مالک جوړ کړي] وَلَا تَرْضَى فِيهِ بِالْعِوَضِ الْيَسِيرِ او په دې باره کي په لږ عوض [هم] نه راضي کيږي وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که خاوند هغې ته طلاق ورکړي مخکي تر دخول په هغې سره تَجِبُ خَمْسَةٌ عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ نو پنځه [۵] درهمه مهر واجبيږي زموږ د دريو علماؤ رَحِمَهُمُ الله په نيز وَعِنْدَهُ تَجِبُ الْمُتْعَةُ او په نيز د امام زفر رَحِمَهُ الله متعه واجبيږي كَمَا إِذَا لَمْ يُسَمِّ شَيْئًا لکه [په هغه صورت کي چي متعه واجبيږي کله] چي هيڅ مهر تاکل سوی نه وي.

**اللغات:** ﴿تَسْمِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: مقرر کول، تاکل، متعين کول (متعيّنول)، ذکر کول. ﴿مَقْضِيًّا﴾ د ضرب د باب اسمِ فاعل دی: اداء کړی سوی، پوره کړی سوی. ﴿تَكَرُّمًا﴾ د تفعّل مصدر دی: احترام، شرافت. ﴿يَسِيْر﴾ د صفت مشبه صيغه ده: لږ، په آسانۍ سره اداء کېدونکی شی.

**تشريح:** صاحب د هدايې په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان کړي دي او دواړي مختلف فيه دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که د نکاح په وخت کي د ښځي مهر تر لس درهمه کم وتاکل سي نو بيا هم زموږ په نيز پر خاوند لس درهمه واجبيږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي پر خاوند د ښځي مهر مثل واجبيږي هغه که هر څومره وي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي هر هغه شی او هر هغه مقدار کوم چي د مهر جوړېدلو صلاحيت (ورتيا) نه لري، هغه په مهر کي تاکل او نه تاکل دواړه سره برابر دي (يعني هغه په مهر کي تاکل او ذکر کول داسي دي لکه نه تاکل او نه ذکر کول)، او د مهر نه تاکلو په صورت کي پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي، لهذا په دې مسئله کي به هم پر هغه مهرِ مثل واجبيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې تر لس درهمه کم مهر ټاکل ځکه صحيح نه دي چې هغه د شريعت حق دی، لهذا د شريعت حق پوره کيږي په لسو درهمو سره. نو ځکه به پر خاوند پوره لس درهمه ورکول واجب وي، او پاتې سو د ښځې حق (يعني د لسو درهمو څخه زايد مهر) نو هغه هم په دې صورت کې په لسو درهمو سره پوره کيږي، ځکه کله چې هغه تر لسو په کمو درهمو راضي ده، نو په لسو خو به بيخي راضي وي. لنډه دا چې په مهر کې د شريعت او ښځې دواړو حق سته (لس درهمه د شريعت حق دی، او تر لسو درهمو وروسته د ښځې حق دی)، نو د دواړو مراعات کول ضروري دي، او دلته په لسو درهمو کې د دواړو مراعات سوی دی، د شريعت حق خو ښکاره دی چې لس درهمه دی، او تر لسو درهمو زايد که څه هم د ښځې حق دی، خو هغه چې کله تر لسو درهمو په کمه راضي سوه نو تر لسو په زايدو درهمو کې يې خپل حق په خپله خوښه ساقط کړی، او ښځې ته د دې پوره اختيار سته (چې په خپله خوښه او رضا سره خپل حق ساقط کړي).

**ولا معتبر الخ**: په دې عبارت سره امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي هغه ويل چې تر لسو درهمو کم مهر ټاکل داسي دي لکه بالکل چې مهر ټاکل سوی نه وي، نو په جواب کې ورته وايي چې دا قياس صحيح نه دی، ځکه په ټاکلو او نه ټاکلو کې فرق دی، ځکه چې کله نا کله داسي کيږي چې ښځه (او دهغې خاندان) د خپل عزت د زياتوالي لپاره (يا د داسي بل مقصد لپاره) ټوله مهر معاف کوي او له څه عوض څخه بغير خاوند د خپلي بضع مالک جوړوي او په کم مهر هم نه راضي کيږي (ځکه د هغې عزت په دې کې وي چې ټوله مهر معاف کړي)، لهذا که ښځه بالکل مهر نه وټاکي بلکې د ټوله مهر په معافولو راضي وي نو له دې څخه دا خبره نه لازميږي چې په لسو درهمو هغه راضي کيږي، لېکن په پورتني صورت کې هغه پر کم مهر راضي ده، نو په لسو درهمو خو به بيخي راضي کيږي، نو ځکه به په دې صورت کې پر خاوند لس درهمه واجب وي او مهرِ مثل به نه پر واجبيږي.

**ولو طلقها قبل الدخول**: (٢)...له دويمي مسئلې څخه مخکې دا مختصره قاعده په ذهن کې وساتئ! چې که خاوند خپلي ښځې ته تر دخول مخکې طلاق ورکړي نو پر خاوند نيم مهر واجبيږي (دا قاعده به په را روان عبارت کې هم ذکر سي)، حاصل د مسئلې دا دی که يو سړی تر لسو درهمو په کم مهر نکاح وکړي او بيا تر دخول او جماع مخکې ښځې ته طلاق ورکړي، نو څرنګه چې زموږ په نيز تر لسو د کمو درهمو په صورت کې مهر بيرته لس درهمه ټاکل کيږي، نو ځکه به پر دې سړي پنځه درهمه واجب وي، ځکه چې د طلاق قبل الدخول په صورت کې نيم مهر واجبيږي (لکه اوس چې موږ قاعده ذکر کړه)، خو څرنګه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز تر لسو درهمو کم مهر داسي دی لکه بالکل چې مهر ټاکل سوی نه وي، نو ځکه د هغه په نيز متعه واجبيږي، ځکه قاعده دا ده چې کله مهر

نه وي تاکل سي او تر دخول مخکې طلاق واقع سي، نو متعه واجبيږي، نو ځکه به دلته هم متعه واجبيږي. (د متعې پوره بيان به انشاء الله څه وروسته ذکر سي).

## ﴿ مهرِ فاطمي ؟ (او د اوسني حساب مطابق د هغه اندازه) ﴾

که وس او طاقت وي نو مهرِ فاطمي مستحب دی، ځکه چې د ګران پيغمبر ﷺ د بيبيانو مهر هم "مهرِ فاطمي" يعني پنځه سوه درهمه (۵۰۰) وو لکه څرنګه چې په مسلم شريف کې د دې ذکر سوی دی. زموږ د اوس وخت په حساب سره پنځه سوه (۵۰۰)درهمه يو سل و يو دېر (۱۳۱) تولې سپين زر کيږي، او د ګرام په حساب سره پنځلس سوه دېرش (۱۵۳۰) ګرامه سپين زر کيږي، او د روپۍ يا افغانۍ حساب تاسو خپله ولګوئ چې زموږ په سيمو کې اوس يوه توله سپين زر څومره کلداري يا څومره افغانۍ قيمت لري، بيا هغه ته په (۱۳۱)تولو کې ضرب ورکړئ، يا د ګرام په اندازه حساب ورته وکړئ، نو مهرِ فاطمي به تاسو ته معلوم سي.

### د مهر د استحکام (مظبوطېدو) اسباب

وَمَنْ سَمّٰى مَهْرًا عَشَرَةً فَمَا زَادَ او څوک چې لس درهمه يا تر دې زيات مهر وټاکي فَعَلَيْهِ الْمُسَمّٰى إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا نو پر هغه ټاکل سوی مهر واجب دی که چيري په ښځې دخول وکړي يا ځني مړ سي لِأَنَّهُ بِالدُّخُولِ يَتَحَقَّقُ تَسْلِيمُ الْمُبْدَلِ ځکه چې د دخول په وجه د مبدل [بضع] سپارل ثابتيږي وَبِهِ يَتَأَكَّدُ الْبَدَلُ او د مبدل [بضع] په سپارلو سره بدل [مهر] مظبوطيږي وَبِالْمَوْتِ يَنْتَهِي النِّكَاحُ نِهَايَتَهُ او په مرګ سره نکاح خپل انتهاء ته رسيږي وَالشَّيْءُ بِانْتِهَائِهِ يَتَقَرَّرُ وَيَتَأَكَّدُ او شی خپل انتهاء ته په رسېدلو سره نور ثابتيږي او مظبوطيږي فَيَتَقَرَّرُ بِجَمِيعِ مَوَاجِبِهِ نو ځکه به دغه نکاح د خپلو ټولو احکامو سره ثابتيږي وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا وَالْخَلْوَةِ او که خاوند هغه ښځې ته تر دخول او خلوت مخکې طلاق ورکړي فَلَهَا نِصْفُ الْمُسَمّٰى نو د هغې لپاره به د ټاکل سوي مهر نيمه حصه وي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ [سورة البقرة: ۲۳۷] د الله تعالىٰ د دې قول په وجه: ﴿وإن طَلَّقْتُمُوهُنَّ...(الخ)﴾ وَالْأَقْيِسَةُ مُتَعَارِضَةٌ او [په دې مسئله کې] قياسونه سره متعارض دي فَفِيهِ تَفْوِيتُ الزَّوْجِ الْمِلْكَ عَلٰى نَفْسِهِ بِاخْتِيَارِهِ ځکه چې په دې کې [يعني په طلاق قبل الدخول او طلاق قبل الخلوة کې] د خاوند په خپل اختيار سره پر خپل ځان د ملکيت فوتول سته [يعني تر دخول او خلوت مخکې په طلاق ورکولو سره ګواکې خاوند په خپل اختيار سره خپل د نکاح ملکيت ساقطوي]

وَفِيْهِ عَوْدُ الْمَعْقُوْدِ عَلَيْهِ إِلَيْهِ سَالِمًا او په همدغه [طلاق قبل الدخول او طلاق قبل الخلوة] كي و ښځي ته [د خپل] معقود عليه [بضع] روغ رمټ واپس کېدل هم سته [يعني د طلاق قبل الدخول والخلوة په صورت کي ښځي ته خپله بضع صحيح سالمه رسيږي] فَكَانَ الْمَرْجِعُ فِيهِ النَّصَّ نو [د قياسونو د تعارض په وجه] به په دې باره کي مرجع نص وي [يعني آيت ته به رجوع کيږي] وَشَرَطَ أَنْ يَكُوْنَ قَبْلَ الْخَلْوَةِ او امام قدوري رَحِمَهُ الله د "طلاق قبل الخلوة" شرط [ځکه] لګولی دی لِأَنَّهَا كَالدُّخُوْلِ عِنْدَنَا ځکه چي خلوت زموږ په نيز د دخول په شان دی عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى چي [وروسته] به موږ انشاء الله تعالیٰ دې بيان وکړو.

**اللغات:** ﴿سَمَّى﴾ د تفعيل ماضي ده: مقرر کول، ټاکل، متعين کول. ﴿نِهَايَة﴾ آخر، پای، انجام. ﴿أَقْيِسَة﴾ جمع د قِيَاسٌ ده: قياسونه.

**تشريح:** په دې عبارت کي هم دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړی د يو ښځي سره په لسو يا تر لسو په زياتو درهمو نکاح وکړي، او بيا د هغه ښځي سره جماع وکړي (يعني دخول په وکړي)، (يا خلوتِ صحيحه ور سره وکړي)، يا هغه ښځه مړه سي، نو په دې ټولو صورتونو کي پر خاوند پوره ټاکل سوی مهر واجبيږي، دليل دا دی چي مهر خو محض په عقد (نکاح تړلو) سره واجبيږي، لېکن د مهر د استحکام او مظبوطۍ لپاره له دې دريو شيانو څخه يو شی ضروري دی: ① دخول، ② د ښځي يا د خاوند مرګ، ③ خلوتِ صحيحه.

تر دخول وروسته په دې وجه مهر مضبوط او مستحکم کيږي ځکه چي په دخول سره د مُبدل يعني د بضع تسليم ثابتيږي، او څرنګه چي مهر د دغه بضع بدل دی، نو ځکه به د مُبدل يعني د بضع تر تسليم وروسته د بدل يعني د مهر ورکول ضروري وي.

او په مرګ سره د مهر مظبوطېدلو وجه دا ده چي په مرګ سره نکاح انتهاء ته رسيږي او قاعده دا ده "اَلشَّيْءُ يَتَقَرَّرُ بِانْتِهَائِه" (يعني يو شی چي کله انتهاء ته ورسيږي نو نور هم مضبوط او ثابت سي)، خلاصه دا چي په مرګ سره نکاح نوره هم مظبوطيږي (ځکه تر مرګ مخکي د دې امکان وي چي خاوند به ښځي ته طلاق ورکړي، لېکن په مرګ سره دا امکان هم ختم سي او د نکاح معامله نوره مضبوطه او پخه سي)، لهذا کله چي نکاح مظبوطيږي، نو د هغې ټوله احکام به هم مظبوطيږي، او مهر هم د نکاح له احکامو څخه يو حکم دی، نو ځکه به هغه هم ثابتيږي او مضبوطيږي، او پر خاوند به د ټوله مهر ورکول واجب وي (په خلوت سره د مهر د استحکام بحث به وروسته ذکر سي).

**وإن طلقها قبل إلخ**: (۲)... دويمه مسئله (کوم چي ديو قاعدې حيثيت لري) دا ده چي که خاوند تر دخول او خلوت مخکي ښځي ته طلاق ورکړي، نو په دې صورت کي پر خاوند د تاکل سوي مهر نيمه حصه واجبيږي. دا مسئله بالکل واضحه ده. دليل يې دا آيت دی: ﴿إِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ﴾ [سورة البقرة، ۲۳۷].

**والأقيسة متعارضة إلخ**: په دې عبارت کي دا خبره بيانوي چي په دغه دويمه مسئله کي دوه قياسونه سره متعارض دي: ①... يو قياس دا دی چي دلته خو خاوند په خپل اختيار سره ښځي ته طلاق ورکړی دی او خپل ملکيت يې فوت کړی دی، نو په دې کي د ښځي څه قصور دی؟ لهذا هغې ته به خپل پوره مهر ورکول کيږي، ②...او دويم قياس دا دی چي ښځي ته خو خپله بضع صحيح سالمه ورسيده، او خاوند خو بالکل د هغې بضع ته لاس هم ور وړی نه دی، لهذا پر خاوند به هيڅ شی هم نه واجبيږي، نو کله چي دلته دوه قياسونه يو د بل سره معارض سول، نو موږ د آيت و طرف ته رجوع وکړه، او آيت په داسي صورت کي نيم مهر واجب کړی دی، نو ځکه موږ هم نيم مهر واجبوو.

**وشرط أن إلخ**: د دې حاصل دا دی چي زموږ په نيز خلوتِ صحيحه هم د دخول په درجه کي دی، نو ځکه امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې مسئله کي د "قبل الدّخول" په څير د "قبل الخلوة" شرط هم لګولی دی، خلوتِ صحيحه د ښځي سره داسي خلوت ته وايي چي په هغه کي له وطي څخه هيڅ مانع نه وي، نو په داسي خلوت سره هم مهر مظبوطيږي چي د دې بحث به انشاء الله وروسته راسي.

## له مهر څخه بغير د نکاح کولو په صورت کي د مهرِ مثل حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا او که [يو سړی] نکاح وکړي د ښځي سره او د هغې لپاره مهر نه و تاکي أَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى أَنْ لَا مَهْرَ لَهَا يا پر دې شرط نکاح ور سره وکړي چي د هغې لپاره به مهر نه وي فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا نو د ښځي لپاره به مهرِ مثل وي که چيري خاوند په هغې دخول وکړي يا مړ سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجِبُ شَيْءٌ فِي الْمَوْتِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مرګ په صورت کي به هيڅ شی نه واجبيږي وَأَكْثَرُهُمْ عَلَى أَنَّهُ يَجِبُ فِي الدُّخُولِ او زياتر شوافع پر دې خبره دي چي د دخول په صورت کي به [مهرِ مثل] واجبيږي لَهُ: أَنَّ الْمَهْرَ خَالِصُ حَقِّهَا د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي مهر خالص د ښځي حق دی

فَتَتَمَكَّنُ مِنْ نَفْيِهِ ابْتِدَاءً كَمَا تَتَمَكَّنُ مِنْ إِسْقَاطِهِ انْتِهَاءً نو ځکه به ښځه په شروع کې ايعني تر مهر تاکل کېدلو مخکې] هم د مهر پر نفي کولو قدرت لري لکه څرنګه چې په آخر کې [يعني د مهر تاکل کېدو وروسته] د مهر پر ساقطولو [معافولو] قدرت لري وَلَنَا: أَنَّ الْمَهْرَ وُجُوْبًا حَقُّ الشَّرْعِ عَلَى مَا مَرَّ او زموږ دليل دا دی: چې مهر د وجوب په توګه د شريعت حق دی [يعني د شريعت د حق په توګه واجب کړی سوی دی] لکه مخکې چې [خبره] تېره سوه وَإِنَّمَا يَصِيْرُ حَقُّهَا فِيْ حَالَةِ الْبَقَاءِ او هغه په حالت د بقاء [انتهاء] کې د ښځې حق جوړېږي فَتَمْلِكُ الْإِبْرَاءَ دُوْنَ النَّفْيِ لهذا ښځه به افقط په حالت د بقاء کې د مهر] د ساقطولو ملکيت [اختيار] لري، لېکن [په حالت د ابتداء کې د مهر] د نفي کولو ملکيت به نه لري [په دې جمله کې له "إبراء" څخه مراد د بقاء په حالت کې د مهر ساقطول او معافول دي، او له "نفي" څخه مراد د شروع په حالت کې د مهر ساقطول دي] وَلَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا او که خاوند ښځې ته تر دخول مخکې طلاق ورکړي فَلَهَا الْمُتْعَةُ نو د هغې لپاره به متعه وي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَمَتِّعُوْهُنَّ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهُ [سورة البقرة: ۲۳۶] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسي [طلاق کړی سوو] ښځو ته متعه ورکړئ! [او] پر مالدار سړي د خپل وس مطابق [متعه لازم ده] ثُمَّ هٰذِهِ الْمُتْعَةُ وَاجِبَةٌ بيا دا متعه واجب ده رُجُوْعًا إِلَى الْأَمْرِ د امر و طرف ته په رجوع کولو سره [يعني ځکه چې په قرآن کې د متعې حکم د امر په صيغه سره ذکر سوی دی يعني "مَتِّعُوْهُنَّ"] وَفِيْهِ خِلَافُ مَالِكٍ او په دې کې د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی.

**اللغات**: ﴿نَفْي﴾ د نکاح په شروع کې (ابتداءً) له مهر څخه انکار کول (ابتداءً مهر ساقطول). ﴿إِبْرَاء﴾ د مهر تر لازمېدلو وروسته خاوند له مهر څخه بري کول (يعني بقاءً مهر ساقطول)، معافول. مهر وربخښل. ﴿تَتَمَكَّن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: قدرت لرل (وس درلودل).

**تشريح**: په دې عبارت کې هم دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړی د مهر له ذکر کولو او ټاکلو څخه بغير د يو ښځې سره نکاح وکړي (يعني د نکاح په وخت کې د مهر هيڅ ذکر نه وکړي). يا د نکاح په وخت کې د مهر نفي وکړي (يعني ووايي چې زه ښځې ته مهر نه ورکوم او ښځه هم په دې راضي وي)، نو په دې دواړو صورتونو کې د هغه نکاح صحيح ده، او تر جماع وروسته يا د هغه تر مرګ وروسته پر هغه مهرِ مثل واجبيږي، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک دی. د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که خاوند مهر ټاکلی نه وي او تر جماع (دخول) کولو مخکې مړ سي نو پر هغه هيڅ شی هم نه واجبيږي. او که تر جماع کولو وروسته مړ سي، نو د زياتره شوافعو رايه دا ده چې مهرِ مثل پر واجبيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي مهر د ښځي د بضع بدل دی، نو ځکه مهر خالص د هغې حق دی، او څرنګه چي ښځه خپل دغه حق "مهر" انتهاءً (يعني تر تاکل کېدلو وروسته) ساقطولای سي، همداسي ابتداءً (له شروع څخه) هم د هغه نفي کولای سي، لهذا کله چي له شروع څخه مهر نه وټاکل سي او تر دخول مخکي خاوند مړ سي، نو پر هغه به مهر نه واجبيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي مهر اول د شريعت حق دی کوم چي په دې آيتونو سره واجب سوی دی: "قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِيْ أَزْوَاجِهِمْ ...الخ" [الأحزاب: ٥٠]، "أَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ ...الخ" [سورة النساء: ٢٤]، او د شريعت حق د نکاح په شروع کي (يعني تر مهر ټاکلو مخکي) معتبر دی، او د ښځي د مهر حق انتهاءً دی (يعني تر مهر ټاکلو وروسته د ښځي حق د مهر سره متعلق کيږي)، لهذا ښځه خپل دغه حق "مهر" صرف انتهاءً ساقطولای سي، لېکن ابتداءً يې نه سي ساقطولای (ځکه چي ابتداءً د مهر سره د ښځي حق متعلق نه وي)، نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره صحيح نه ده چي ښځه ابتداءً هم مهر نفي کولای او ساقطولای سي، ځکه که دا خبره ومنل سي نو دا به د ښځي له خپل حق څخه تجاوز کول وي کوم چي شرعاً ناروا دي.

ولو طلقها إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده که خاوند پورتنۍ ښځي ته (يعني داسي ښځي ته چي د هغې مهر يې ټاکلی نه وي يا د مهر نفي يې کړي وي) تر دخول مخکي طلاق ورکړي، نو په دې صورت کي پر خاوند د دغه ښځي متعه واجبيږي، دليل دا آيت دی: "لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً وَمَتِّعُوْهُنَّ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِين". "فَرِيْضَة" مهر ته وايي (لکه د باب په شروع کي چي موږ د مهر په نومونو کي ذکر کړه)، او "تَفْرِضُوْا" عطف دی پر "لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ"، نو د آيت شريف مطلب دا سو چي که تاسي له مهر ټاکلو څخه بغير او تر لاس ور وړلو (جماع کولو) مخکي ښځو ته طلاق ورکړی نو په دې کي هيڅ حرج نسته، او تر طلاق وروسته هغو ته متعه ورکړئ!).

متعه زموږ په نيز واجب ده او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز مستحب ده؛ د امام مالک دليل دا دی چي متعه ورکونکي ته الله تعالیٰ "مُحْسِن" ويلي دي يعني په پورتني آيت کي ذکر سوه چي "حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْن"، او مُحسن متنفل او متطوع ته وايي (يعني داسي کس ته وايي کوم چي نفلي او غيرِ لازمي کار کوي)، نو معلومه سوه چي متعه واجب او لازم نه ده بلکي مستحب ده.

زموږ دليل او د امام مالک رَحِمَهُ الله جواب دا دی چي په پورتني آيت کي "مَتِّعُوْا" د امر صيغه ده او امر د وجوب لپاره راځي، همدارنګه په پورتني آيت کي تر "الْمُحْسِنِيْن" مخکي د "حَقًّا" او "عَلىٰ" الفاظ هم پر وجوب او لزوم دلالت کوي، او پاتـه سو "مُحسنين" نو هغه د متطوعين په معنیٰ سره نه دی، بلکي له

"مُحسنين" څخه مراد هغه خلک دي چي واجب (متعه) هم اداء کوي او د احسان په توګه ښځي ته نور زايد شی هم ورکوي، لهذا په "مُحسنين" سره دليل نيول صحيح نه دي.

## د مُتعي د مقدار بيان

وَالْمُتْعَةُ ثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا او متعه درې جامې دي د هغې اطلاق کړی سوي ښځي ا د مثل د لباس څخه [يعني د طلاق ورکړل سوي ښځي حالت به کتل کيږي که هغه له مالداري کورنۍ څخه وي نو نوري مالداري ښځي چي څرنګه لباس او کالي اغوندي، هغې ته به هم د هغه مطابق درې جامې په متعه کي ورکول کيږي.

او که له غريبي کورنۍ څخه وه نو د غريبو ښځو لباس ته به کتل کيږي...] وَهِيَ دِرْعٌ وَخِمَارٌ وَمِلْحَفَةٌ او اهغه درې جامې] قميص، پروني او څادر دي وَهٰذَا التَّقْدِيرُ مَرْوِيٌّ عَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عَبَّاسٍ او دغه اندازه له حضرت عائشې او حضرت ابن عباس رضي الله عنهم څخه روايت سوې ده وَقَوْلُهُ مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يُعْتَبَرُ حَالُهَا او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا" اشاره ده و دې طرف ته چي [په متعه کي به] د ښځي د حالت اعتبار کيږي وَهُوَ قَوْلُ الْكَرْخِيِّ فِي الْمُتْعَةِ الْوَاجِبَةِ او همدا قول د امام کرخي رَحِمَهُ الله دی په واجبه متعه کي لِقِيَامِهَا مَقَامَ مَهْرِ الْمِثْلِ ځکه چي متعه د مهرِ مثل قائم مقام ده وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ حَالُهُ [لېکن] صحيح دا ده چي د خاوند د حالت اعتبار به کيږي عَمَلًا بِالنَّصِّ په آيت باندي په عمل کولو سره وَهُوَ قَوْلُه تَعَالَىٰ: عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ [سورة البقرة: ۲۳۶] او هغه د الله تعالیٰ دا فرمان دی: "عَلَى الْمُوسِعِ...الخ" ثُمَّ هِيَ لَا تُزَادُ عَلَى نِصْفِ مَهْرِ مِثْلِهَا بيا به متعه نه پر نيم مهرِ مثل زياتيږي وَلَا تَنْقُصُ عَنْ خَمْسَةِ دَرَاهِمَ او نه به تر پنځو درهمو کميږي وَيُعْرَفُ ذٰلِكَ فِي الْأَصْلِ او دا [مسئله] په مبسوط کي [تاسي ته] معلومېدای سي [يعني د دې مسئلې پوره تفصيل او دليل په مبسوط کي بيان سوی دی، هلته په رجوع کولو سره به تاسي ته پوره مسئله معلومه سي]

**اللغات:** ﴿دِرْع﴾ زغره، د ښځي قميص، "دِرْعُ الْمَرْأَةِ أَيْ قَمِيْصُهَا". [المعجم الوسيط، المصباح المنير].

﴿خِمَار﴾ پروني (پوړنی)، ﴿مِلْحَفَة﴾ په اصل کي روجايي ته وايي (يعني هغه څادر کوم چي پر کټ هواريږي)، همدا رنګه اوږد او پلن پروني ته هم وايي. کېدای سي چي له دې څخه به هغه غټ څادر (پروني) مرادي وي چي په ژمي، دوبي يا داسي نورو وختونو کي ښځه کار ځني اخلي (لکه زموږ په ځينو سيمو کي چي ښځو ته د واده په سامان کي داسي څادر ورکول کيږي او په "ګډلی" يا

"ګلډي" سره نومول کيږي)، ﴿مُوْسِع﴾ د إفعال اسم فاعل دی: مالدار، شتمن، هغه کس چي د زيات مال خاوند وي، ﴿مُقْتِر﴾ دا هم د إفعال اسم فاعل دی: تنګ لاسی، هغه کس چي د کم (لږ) مال خاوند وي.

**تشريح**: په تېر عبارت کي ذکر سوه چي خاوند به ښځي ته متعه ورکوي، په دې عبارت کي د متعې تعريف کوي، فرمايي چي متعه درې جامو (کپړو) ته وايي: ① قميص (کميس)، ② پروني، ③ اوږد څادر (کوم چي تر پروني ډېر اوږد وي)، د دې دريو جامو تعيين له حضرت عائشې او حضرت ابن عباس رضي الله عنهم څخه نقل سوی دی.

بيا په دې باره کي اختلاف دی چي په معته کي به د خاوند د حالت اعتبار کيږي، که د ښځي؟ د امام قدوري له ظاهري عبارت "من كسوة مثلها" څخه دا معلوميږي چي د ښځي د حالت اعتبار به کيږي (يعني که ښځه له مالداري کورنۍ څخه وي نو اعلیٰ درجه جامې به ورکول کيږي او که له غريبي کورنۍ څخه وي نو ادنیٰ درجه جامې به ورکول کيږي او که له متوسطي کورنۍ څخه نو أوسطه درجه جامې به ورکول کيږي)، امام کرخي رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی؛ د دې قول دا دی چي متعه د مهرِ مثل قائم مقام ده، او په مهرِ مثل کي د ښځو د حالت اعتبار کيږي، نو د هغه په قائم مقام کي به هم د ښځو د حالت اعتبار کيږي.

خو زموږ په نېز صحيح قول دا دی چي د خاوند د حالت اعتبار به کيږي؛ دليل دا دی چي په دې آيت "عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ" کي په ښکاره توګه سړی ذکر سوی دی، نه ښځه (ځکه چي د "قَدَرُهٗ" ضمير مذکر ته راجع دی)، لهذا آيت پرېښوول او په قياس او علّت سره دليل نيول صحيح نه دي، همدا د ابو بکر رازي قول دی او صاحب د هدايې اختيار کړی دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله صحيح قول هم دغه دی.

**ثم هي إلخ**: په دې عبارت سره دا راښيي چي د دغه متعې قيمت به نه د ښځي له نيم مهر مثل څخه زيات وي او نه به تر پنځو درهمو کم وي (يعني دا متعه به د دې ښځي تر نصف مهرِ مثل نه زياته وي او نه به تر پنځو درهمو کمه وي، دا خبره په مبسوط کي ذکر سوې ده)، د ښځي تر نيم مهر مثل به په دې وجه زياته نه وي، ځکه چي مهرِ مسمیٰ له مهرِ مثل څخه قوي دی، او د مهرِ مسمیٰ په صورت کي که يو خاوند (تر دخول مخکي) خپلي ښځي ته طلاق ورکړي، نو پر هغه د مهرِ مسمیٰ نصف واجبيږي، او تر نصف زيات نه پر واجبيږي، نو کله چي په "أَقْوٰى" يعني په مهرِ مسمیٰ کي تر نيم

زيات مهر نه واجبيږي، نو په "أُدْنىٰ" يعني په مهرِ مثل کي خو به په طريقه اولیٰ تر نيم مهرِ مثل زيات نه متعه نه واجبيږي.

او تر پنځو درهمو به ځکه متعه کمه نه وي چي متعه د ښځي د بضع بدل دی او هيڅ عوض هم تر لسو درهمو کم نه وي، نو ځکه به لس درهمه د پوره بضع عوض وي (لهذا متعه بايد تر لسو درهمو کمه نه وای)، خو څرنګه چي د طلاق قبل الدخول په صورت کي بضع صحيح سالم پاتيږي، نو ځکه به اوس د هغې فقط نيم عوض (پنځه درهمه) واجبيږي.

## تر نکاح وروسته د مهر ټاکلو حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا او که [يوسړی] نکاح وکړي د يو ښځي سره او د هغې لپاره [د نکاح په وخت کي] مهر نه وټاکي ثُمَّ تَرَاضَيَا عَلَى تَسْمِيَةٍ بيا دواړه راضي سي [د مهر] پر ټاکلو فَهِيَ لَهَا إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا نو دا [ټاکل سوی مهر] به د ښځي وي که چيري سړی په هغې دخول وکړي يا مړ سي [يعني د سړي تر دخول يا مرګ وروسته به ټوله ټاکل سوی مهر ښځي ته ورکول کيږي] وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او که هغه تر دخول مخکي ښځي ته طلاق ورکړي فَلَهَا الْمُتْعَةُ نو د هغې لپاره به متعه وي وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ الْأَوَّلِ نِصْفُ هٰذَا الْمَفْرُوْضِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اول قول مطابق به [د ښځي لپاره] د دغه ټاکل سوي مهر نصف [نيمه حصه] وي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ مَفْرُوْضٌ ځکه چي دا ټاکل سوی [مهر] دی فَيَتَنَصَّفُ بِالنَّصِّ نو د [دې] آيت په وجه به نيم ګرځي [فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ] وَلَنَا: أَنَّ هٰذَا الْفَرْضَ تَعْيِيْنٌ لِلْوَاجِبِ بِالْعَقْدِ او زموږ دليل دا دی: چي دا فرض [ټاکل] د هغه واجب [مهر] تعيين دی کوم چي د عقد په ذريعه واجب سوی دی وَهُوَ مَهْرُ الْمِثْلِ او هغه مهرِ مثل دی وَذٰلِكَ لَا يَتَنَصَّفُ او مهرِ مثل نيمبدلای نه سي فَكَذَا مَا نُزِّلَ مَنْزِلَتَهُ نو همداسي [هغه مهر به هم نيمبدلای نه سي] کوم چي د مهرِ مثل په درجه کي دی [يعني کوم چي د هغه قائم مقام دی، مراد ځني تر عقد (نکاح) وروسته ټاکل سوی مهر دی] وَالْمُرَادُ بِمَا تَلَا او مراد په هغه آيت سره کوم چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله تلاوت کړی دی [يعني په "فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ" کي له "فرض" ځخه مراد] الْفَرْضُ فِي الْعَقْدِ فرض فی العقد دی [يعني هغه ټاکل ځني مراد دي کوم چي د عقد (يعني د نکاح)

په وخت کې وي] إِذْ هُوَ الْفَرْضُ الْمُتَعَارَفُ ځکه چې هغه فرض [تاکل] متعارف دي [يعني په عرف کې مشهور هماغه تاکل دي کوم چې دنکاح په وخت کې وي].

**اللغات:** ﴿تَرَاضَيَا﴾ د تفاعل له باب څخه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: يو له بل څخه راضي کېدل. ﴿مُفْرُوْض﴾ د ضرب له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده: مقرر کړې سوی، تاکل سوی. ﴿يَتَنَصَّفُ﴾ د تفعّل مضارع ده، لازمي باب دی: نيمېدل، (نيم کېدل، نيمايي کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد (مثلاً) د فاطمې سره نکاح وکړي او د نکاح په وخت کې هيڅ مهر نه وټاکي، بيا تر نکاح وروسته دواړه په خپله رضا سره پنځه سوه درهمه مهر وټاکي، نو اوس که زيد د فاطمې سره جماع وکړي يا زيد مړ سي، نو په دې دواړو صورتونو کې پر زيد ټاکل سوی مهر واجبيږي يعني فاطمې ته به پنځه سوه درهمه ورکوي (متعه يا مهرِ مثل نه پر واجبيږي).

لېکن که زيد تر جماع (دخول) مخکې فاطمې ته طلاق ورکړي، نو په دې صورت کې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر هغه متعه واجبيږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې صورت کې پر خاوند نيم ټاکل سوی مهر (۲۵۰ درهمه) واجبيږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول هم دی، او همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم قول د طرفينو د قول په څير دی.

**دليل:** د امام شافعي، امام مالک او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله (د اول قول) دليل دا دی چې کله دلته تر نکاح وروسته خاوند او ښځه (زيد او فاطمه) پر ټاکل سوي اندازه د مهر راضي سوه، نو دا مهر د مهرِ مسمیٰ په څير سو، او د مهرِ مسمیٰ په صورت کې که تر دخول مخکې ښځې ته طلاق ورکول سي، نو د دې آيت: "فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ [سورة البقرة:۲۳۷]" په وجه پر خاوند نيم مهرِ مسمیٰ واجبيږي. نو په دغه پورتني صورت کې به هم پر خاوند (زيد) نيم مهر واجبيږي، او متعه به نه پر واجبيږي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې مهرِ مسمیٰ هغه مهر ته وايي کوم چې د نکاح په وخت کې ټاکل کيږي، لېکن په پورتني صورت کې له مهر ټاکلو څخه بغير نکاح سوې ده، نو په دې وجه پر خاوند (زيد) مهرِ مثل واجب سو، او تر نکاح وروسته چې خاوند او ښځه په کومه اندازه راضي سوي دي هغه د دغه واجب سوي مهرِ مثل تعيين او ټاکل دي (يعني ګواکي دوی هغه مهرِ مثل وټاکی کوم چې واجب سو)، او په مهرِ مثل کې تنصيف نه سي کېدلای (يعني مهرِ مثل نيمول کېدای نه سي). لهذا د مهرِ مثل چې کوم قائم مقام دی (يعني تر نکاح وروسته ټاکل سوی مهر) نو په هغه کې هم تنصيف نه

سي کېدلای، او کله چې په هغه کې تنصيف نه سي کېدلای نو متعه به واجبيږي، او که متعه واجب نه سي نو خاوند به په نقصان کې واقع سي ځکه چې بغير له څه فايدې (يعني بغير له دخول او جماع څخه) پنځه سوه درهمه ورکول د هغه لپاره غټ نقصان دی.

والمراد إلخ: په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د آيت جواب ورکوي. نو فرمايي چې له "نِصۡفُ مَا فَرَضۡتُمۡ" څخه د مفروض (يعني د هغه ټاکل سوي مهر) نصف مراد دی کوم چې د نکاح په وخت کې ټاکل کيږي، ځکه چې هغه معروف دی، او وجه يې دا ده چې دغه آيت مطلق دی او له مطلق څخه متعارف مراديږي، او متعارف (او معروف) هغه مهر دی کوم چې د نکاح په وخت کې ټاکل کيږي، نه هغه مهر کوم چې تر نکاح وروسته ټاکل کيږي، لهذا له دې آيت څخه به د متعارف مهر تنصيف مراد وي، نه د هغه مهر تنصيف کوم چې تر نکاح وروسته ټاکل سوی وي.

## پر ټاکل سوي مهر د زياتوب کولو حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي فَإِنۡ زَادَهَا فِي الۡمَهۡرِ بَعۡدَ الۡعَقۡدِ که چيري [خاوند] د ښځي لپاره په مهر کي زياتوب وکړه تر عقد [نکاح] وروسته لَزِمَتۡهُ الزِّيَادَةُ نو دا زياتوب پر هغه لازم سو خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله وَسَنَذۡكُرُهُ فِي زِيَادَةِ الثَّمَنِ وَالۡمُثۡمَنِ إِنۡ شَاءَ اللهُ او دا به موږ انشاء الله د ثمن او مبيع د زياتوب په بحث کي ذکر کړو وَإِذَا صَحَّتِ الزِّيَادَةُ او کله چي زياتوب صحيح سو تَسۡقُطُ بِالطَّلَاقِ قَبۡلَ الدُّخُولِ نو د طلاق قبل الدخول په وجه به دا [زياتوب] ساقطيږي وَعَلَى قَوۡلِ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا تَتَنَصَّفُ مَعَ الۡأَصۡلِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اول قول مطابق به د أصل مهر سره دا [زايد مهر] هم نصف ګرځي لِأَنَّ النِّصۡفَ عِنۡدَهُمَا يَخۡتَصُّ بِالۡمَفۡرُوضِ فِي الۡعَقۡدِ ځکه چي نصف د طرفينو په نېز نيم د مفروض فی العقد سره خاص دی [يعني کوم مهر چي د عقد په وخت کي وټاکل سي د طرفينو په نېز "نيمول" د هغه سره خاص دي يعني فقط هغه نيمول کېدای سي، مفروض بعد العقد نه سي نيمول کېدای] وَعِنۡدَهُ الۡمَفۡرُوضُ بَعۡدَهُ كَالۡمَفۡرُوضِ فِيهِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز مفروض بعد العقد داسي دی لکه مفروض فی العقد [يعني د ابو يوسف په نېز هغه مهر کوم چي تر عقد وروسته ټاکل سوی وي داسي دی لکه د عقد په وخت کي چي ټاکل سوی وي] عَلَى مَا مَرَّ لکه مخکي چي [دا مسئله] تېره سوه وَإِنۡ حَطَّتۡ عَنۡهُ مِنۡ مَهۡرِهَا او که ښځه له خاوند څخه خپل مهر کم کړي صَحَّ الۡحَطُّ نو [د هغې] کمول صحيح دي لِأَنَّ

| |
|---|
| اَلْمَهْرَحَقُّهَا ځکه چې مهر د ښځې حق دی وَالْحَطُّ يُلَاقِيهِ حَالَةَ الْبَقَاءِ او کمول يو ځای کيږي د مهر سره په حالت د بقاء کې ايعني دغه کمول ښځه تر عقد وروسته کوي نه د عقد په شروع کې، نو ځکه به د دغې کمول صحيح وي ا. |

**اللغات:** ﴿ثَمَن﴾ قيمت، نرخ، ﴿مُثَمَّن﴾ قيمت لرونکی شی، مبيع، ﴿حَطَّتْ﴾ د نصر له باب څخه باضي ده: کښته کېدل، پرېښوول، کمول، (ساقطول).

**تشريح:** په دې عبارت کې ديوې مسئلې دوې حصې بيان سوي دي: (۱)... د مسئلې اوله حصه دا ده که خاوند د عقد (نکاح) په وخت کې د ښځې مهر مثلاً پنځه سوه درهمه ټاکلي وي او تر عقد وروسته دوه سوه (۲۰۰) درهمه نور پر زيات کړي (چې په دې سره ټول مهر ۷۰۰ درهمه سي)، او ښځه هغه زياتوب قبول کړي، نو زموږ په نېز داسي زياتوب صحيح دی او پر خاوند د هغه اداء کول لازم دي، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله مسلک دی، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز نه پر مهر زياتوب کول صحيح دي او نه پر خاوند د هغه اداء کول لازم دي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی.

په ثمن او مبيع کې هم دغه اختلاف دی، يعني زموږ په نېز د مشتري لپاره په ثمن کې زياتوب کول صحيح دي همدارنګه د بائع لپاره په مبيع کې زياتوب کول صحيح دي، لېکن د امام زفر او امام شافعي په نېز صحيح نه دي، د دې پوره بحث او دليلونه به په "کتابُ البيوع" کې راسي، خو د آسانی لپاره موږ دلته هم د هغو دليلونه ذکر کوو.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې د خاوند دغه زياتوب مستقلاً هبه ده (يعني دغه زيات سوی مهر داسي دی لکه خاوند چې له نوي سره ښځې ته هبه ورکړي)، نو ځکه به دا د أصل عقد (يعني د أصل مهر) سره نه يو ځای کيږي، ځکه چې أصل مهر عوض دی (د بضع)، او هبه يو زايد احسان دی (د ښځې سره)، نو د دواړو په معنیٰ کې هيڅ مساوات نسته، لهذا دا زايد مهر به د أصل عقد سره نه يو ځای کيږي.

**زموږ دليل:** دا آيت دی: "وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا [سورة النساء: ۲۴]"، په دغه آيت کې په ښکاره توګه ذکر سوي دي چې د مهر تر ټاکلو وروسته په هغه کې کمي يا زتوب کول هيڅ پروا نه لري او دا صحيح دي، نو ځکه زموږ په نېز دغه زياتوب صحيح دی.

**وإذا صحت الزيادة إلخ:** د دې عبارت حاصل دا دی چې کله په پورتني صورت کې (يعني د مهر زياتوب په صورت کې) خاوند تر دخول مخکي ښځې ته طلاق ورکړي نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اول قول

مطابق به په زياتوب کي هم تنصيف کيږي لکه څرنګه چي په أصل يعني په مهرِ مسمی کي تنصيف کيږي (يعني لکه څرنګه چي دغه ښځي ته به د أصل يعني د اول ټاکل سوي مهر [ ۵۰۰ درهمو] نصف ورکول کيږي همدارنګه به د زياتوب يعني دوو سوو درهمو نصف هم ورکول کيږي، لنډه دا چي د طلاق قبل الدخول په صورت کي به دغه ښځي ته د امام ابو يوسف په نيز (۳۵۰) درهمه ورکول کيږي کوم چي د (۷۰۰) نصف دی).

په دې باره کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هغه دليل دی کوم چي په تېر عبارت کي ذکر سو يعني د هغه په نيز هغه دواړه مهرونه سره برابر دي کوم چي د عقد (نکاح) په وخت کي ټاکل سوی وي او کوم چي تر عقد وروسته ټاکل سوی وي (په بله وينا دا چي مفروض فی العقد او مفروض بعد العقد مهرونه دواړه د امام ابو يوسف په نيز سره برابر دي)، يعني په دواړو کي د هغه په نيز تنصيف کېدلا سي (د دې آيت په وجه: "فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ").

د طرفينو مسلک دا دی چي فقط په مفروض فی العقد کي تنصيف کېدلای سي، په مفروض بعد العقد کي تنصيف نه سي کېدلای؛ ځکه په دې آيت "فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ" کي چي کوم حکم سوی دی هغه د متعارف مفروض سره خاص دی، او متعارف مفروض فی العقد دی. نو تنصيف به هم د هغه سره خاص وي (لکه د تېر عبارت په آخر کي چي تر "والمراد إلخ" لاندي دغه خبره په تفصيل سره ذکر سوه).

وإن حطت عنه إلخ: (۲)... د مسئلې دويمه حصه دا ده که ښځه تر عقد وروسته خپل مهر څه کم کړي، نو دا کمي صحيح ده، ځکه په شروع کي که څه هم د مهر سره د شريعت حق متعلق وي (چي تر لس درهمه به يې کم نه ټاکي)، لېکن وروسته د بقاء په حالت کي (يعني تر عقد او تر مهر ټاکلو وروسته) د مهر سره د ښځي حق متعلق کيږي، نو ځکه وروسته د ښځي لپاره په مهر کي کمي يا زياتوب کول صحيح دي، بلکي کمي خو هلته پر پرېږده! د ټوله مهر معافول (إبراء) هم د ښځي لپاره صحيح دي.

## د خلوت صحيحه بيان

وَإِذَا خَلَا الرَّجُلُ بِامْرَأَتِهِ او کله چي خلوت وکړي خاوند د خپلي ښځي سره [يعني کله چي خاوند په تنهايي کي د خپلي نوي ښځي سره يو ځای سي] وَلَيْسَ هُنَاكَ مَانِعٌ مِنَ الْوَطْءِ او هلته هيڅ مانع [خنډ] نه وي له وطي څخه ثُمَّ طَلَّقَهَا بيا طلاق ورکړي فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ نو د هغې لپاره به پوره مهر وي [يعني په داسي صورت کي به خاوند ښځي ته ټوله مهر ورکوي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهَا نِصْفُ الْمَهْرِ او امام شافعي

رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغې لپاره به نيم مهر وي لِأَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ إِنَّمَا يَصِيرُ مُسْتَوْفًى بِالْوَطْءِ ځکه چې معقود عليه ايعني بضع| په وطي سره حاصلول کيږي فَلَا يَتَأَكَّدُ الْمَهْرُ دُونَهُ لهذا له وطي څخه بغير به [تول] مهر نه ثابتيږي وَلَنَا: أَنَّهَا سَلَّمَتْ الْمُبْدَلَ او زموږ دليل دا دی: چې ښځې مبدل ايعني بضع، خاوند ته| وسپارله حَيْثُ رَفَعَتِ الْمَوَانِعَ ځکه چې هغې اد وطي تول| موانع ليرې کړل وَذٰلِكَ وُسْعُهَا او همدا د هغې وس وو فَيَتَأَكَّدُ حَقُّهَا فِي الْبَدَلِ نو ځکه به د هغې حق په بدل |مهر| کې ثابتيږي اِعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ په بيع باندې په قياس کولو سره.

**اللغات:** ﴿خَلَا﴾ د نصر له باب څخه د واحد مذکر غائب، ماضي صيغه ده. خَلَا يَخْلُوْ خَلْوَةً: په تنهايي کې د يو چا سره يو ځای کېدل، خلوت کول، ګوښه کېدل. ﴿مُسْتَوْفًى﴾ د استفعال اسمِ مفعول دی: په پوره توګه حاصل سوی شی. اِسْتَوْفَى يَسْتَوْفِيْ اِسْتِيْفَاءً: له يو چا څخه په بشپړه توګه خپل حق اخيستل. يو شی حاصلول (تر لاسه کول). ﴿سَلَّمَت﴾ د تفعل له باب څخه د واحد مؤنث غاب ماضي صيغه ده: سپارل، تسليمول. ﴿مَوَانِع﴾ جمع د مَانِعٌ: منع کونکی، خنډ، بنديز. ﴿وُسْع﴾ وس، اختيار، طاقت (قدرت).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د خپلې ښځې سره خلوت صحيحه وکړي او د خلوت په دوارن کې له وطي څخه هيڅ مانع نه وي، تر دې وروسته خاوند ښځې ته طلاق ورکړي. نو زموږ پر خاوند پوره مهر واجبيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز نيم مهر واجبيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې مهر د بضع بدل دی، نو تر څو چې بضع حاصله کړی سوې نه وي، تر هغه وخت پورې به بدل يعني مهر نه لازميږي. او بضع (علی وجه الکمال) په وطي سره حاصلول کيږي، لهذا بغير له وطي څخه به ټول مهر نه واجبيږي. او د خلوت په وجه به ښځې ته فقط نيم مهر ورکول کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې په خلوت صحيحه سره ښځې د وطي ټول موانع يې ختم کړل او خپله بضع يې هغه ته وسپارله. او همدغه د ښځې په وس کې وه، وروسته کاروايي خو د خاوند په لاس کې ده، نو کله چې ښځې هغه ټول شيان پوره کړل کوم چې د هغې په وس کې وه او خپله بضع يې په پوره توګه هغه ته وسپارله، نو ځکه به د هغې بدل "يعني مهر" هم په پوره توګه واجبيږي، ځکه که ښځه له دې څخه محرومه کړی سي نو دا به ډېره د نا انصافۍ خبره وي.

لکه کله چي بائع مشتري ته مبيع وسپاري، لېکن مشتر مبيع نه واخلي او بيا مبيع هلاک سي.
نو پر مشتري د هغه قيمت لازميږي، نو همداسي به دلته هم پر خاوند مهر لازميږي.

زموږ د مذهب تاييد د دارِ قطني په دې حديث سره هم کيږي: "مَنْ كَشَفَ خِمَارَ اِمْرَأَةٍ أَوْ نَظَرَ إِلَيْهَا وَجَبَ الصُّدَاقُ. دَخَلَ بِهَا أَوْ لَمْ يَدْخُل" (يعني څوک چي له ښځي څخه پروني ليري کړي يا په شهوت سره ورته وګوري نو پر هغه ټوله مهر واجب دی، برابره ده هغه دخول په وکړي. که نه)، او خلفاء راشدينو به هم په خلوتِ صحيحه سره ټوله مهر واجب ګرځوی، او دا فيصله به يې کوله: "أَنَّ مَنْ أَغْلَقَ بَابًا أَوْ أَرْخَى سِتْرًا فَقَدْ وَجَبَ الْمَهْرُ وَوَجَبَتِ الْعِدَّةُ" (يعني څوک چي دروازه بنده کړي يا پرده وځړوي، نو پر هغه مهر واجبيږي او پر ښځي عدت واجبيږي). (عيني ج۴، ص:۶۶۸)

## د خلوت د موانعو بيان

وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مَرِيْضًا او که يو له خاوند او ښځي څخه ناروغه وي أَوْ صَائِمًا فِي رَمَضَانَ يا [يو] په رمضان کي روژتي وي [يعني فرضي روژه يې نيولې وي] أَوْ مُحْرِمًا بِحَجٍّ فَرْضٍ أَوْ نَفْلٍ أَوْ بِعُمْرَةٍ يا د فرضي يا نفلي حج يا د عمرې احرام تړونکی وي أَوْ كَانَتْ حَائِضًا يا ښځه حايضه وي فَلَيْسَتِ الْخَلْوَةُ صَحِيحَةً نو [په دې صورتونو کي] خلوت صحيح نه دی حَتّٰى لَوْ طَلَّقَهَا تر دې که خاوند هغې ته طلاق ورکړي كَانَ لَهَا نِصْفُ الْمَهْرِ نو د هغې لپاره به نيم مهر وي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءَ مَوَانِعُ ځکه چي دا شيان منع کوونکي دي [له وطي څخه] أَمَّا الْمَرَضُ فَالْمُرَادُ مِنْهُ مَا يَمْنَعُ الْجِمَاعَ کوم چي مرض دی نو مراد له هغه څخه داسي مرض دی چي جماع [وطي] منع کوي أَوْ يَلْحَقُهُ بِهٖ ضَرَرٌ يا [د جماع له کبله] په هغه مرض سره ده ته [نور] ضرر رسيږي وَقِيْلَ: مَرَضُهٗ لَا يَعْرَى عَنْ تَكَسُّرٍ وَفُتُوْرٍ او ويل سوي دي: چي د سړي ناروغي د اندامونو له کمزورۍ او کهالۍ څخه خالي نه وي [يعني په هر مرض کي د سړي بدن او اندامونه کمزوري او کهاله وي خصوصاً د تناسل اندام (ذکر) نو په جماع کي پوره خوند نه ورته محسوسيږي] وَهٰذَا التَّفْصِيلُ فِي مَرَضِهَا او همدا تفصيل د ښځي په مرض کي [هم] دی وَأَمَّا صَوْمُ رَمَضَانَ لِمَا يَلْزَمُهٗ مِنَ الْقَضَاءِ وَالْكَفَّارَةِ او کوم چي د رمضان روژه ده نو هغه ځکه [مانع د وطي ده] چي د هغې [د ماتولو] په وجه په پر روژتي قضا او کفاره [دواړه] لازميږي وَالْإِحْرَامُ لِمَا يَلْزَمُهٗ مِنَ الدَّمِ وَفَسَادِ النُّسُكِ

وَالْقَضَاءِ او احرام ځکه [مانع دوطي دی] چي د دې [د فاسدولو] په وجه پر هغه دم او د عبادت فساد او [د حج] قضاء لازميږي وَالْحَيْضُ مَانِعٌ طَبْعًا وَشَرْعًا او حيض په طبعي توګه او شرعي توګه [دواړو] مانع [د وطي] دی وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا صَائِمًا تَطَوُّعًا او که يو د خاوند او ښځي روژتي وي فَلَهَا الْمَهْرُ كُلُّهُ نو د ښځي لپاره به ټوله مهر وي لِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهُ الْإِفْطَارُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ فِي رِوَايَةِ الْمُنْتَقَى ځکه چي [په دې صورت کي] له څه عذر څخه بغير د روژتي لپاره روژه ماتول روا دي د منتقیٰ په روايت کي وَهٰذَا الْقَوْلُ فِي الْمَهْرِ هُوَ الصَّحِيحُ او د مهر په باره کي همدا قول صحيح دی وَصَوْمُ الْقَضَاءِ وَالْمَنْذُورِ كَالتَّطَوُّعِ فِي رِوَايَةٍ او قضائي او نذر سوې روژه د نفلي روژې په څير ده په يوه روايت کي لِأَنَّهُ لَا كَفَّارَةَ فِيهِ ځکه چي په هغه کي کفاره نسته وَالصَّلَاةُ بِمَنْزِلَةِ الصَّوْمِ او لمونځ د روژې په څير دی فَرْضُهَا كَفَرْضِهِ وَنَفْلُهَا كَنَفْلِهِ د هغه فرض د فرضي روژې په څير دي او نفل يې د نفلي روژې په څير دي.

**اللغات:** ﴿تَكَسُّر﴾ د تفعل مصدر دی: ماتېدل (مراد ځني د ذکر [تناسلي اندام] کمزوري او مړوالی دی)، ﴿فُتُور﴾ د نصر مصدر دی: کمېدل، سړېدل، سست کېدل، کهالېدل (مراد ځني د شهوت سړېدل او د اندامونو کهالت دی).

**تشريح:** په دې عبارت کي د هغو شيانو تفصيلي بيان کوي کوم چي په خلوت کي د وطي مانع ګڼل کيږي چي د هغوی په وجه بيا پر خاوند پوره مهر نه واجبيږي، د آساني لپاره تاسو مختصراً دا په ياد لرئ! چي موانع پر پنځه قسمه دي: ① مانعِ حقيقي، ② مانعِ طبعي، ③ مانعِ شرعي، ④ مانعِ حسي، ⑤ مانعِ طبعي شرعي، د مانعِ حقيقي مثال مرض دی، او مانعِ طبعي دا دی چي د ښځي د فرج خوله بنده سي يا ښځه په داسي بې هوله مرض مبتلا وي چي طبيعتِ سليمه بالکل د هغې له جماع کولو څخه نفرت او انکار کوي، مانعِ شرعي دا دی چي خاوند يا ښځي د فرضي حج احرام تړلی وي، مانعِ حسي دا دی چي د خاوند او ښځي د خلوت کي دريم کس هم موجود وي يا د ستر او پردې انتظام نه وي، او مانعِ طبعي شرعي دا دی چي ښځه په حيض کي وي، ځکه ښکاره خبره ده چي د حيض د وينو او د حيض د ګندګۍ په وجه طبيعتِ سليمه د حائضه ښځي له جماع څخه نفرت کوي نو په دې وجه حيض مانعِ طبعي سو، او مانع شرعي ځکه دی چي الله تعالیٰ په دې آيت "وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ" کي د حيض په حالت کي له جماع کولو څخه منع کړې ده.

وأما المرض إلخ: له دې ځایه صاحب د کتاب د ټولو موانعو تفصیل بیانوي، نو فرمایي چې مرض مانع دی، خو له مرض څخه هغه مرض مراد دی کوم چې له جماع څخه مانع وي یا په جماع کولو سره نور زیاتیږي او ښځه یا سړی نور په تکلیف کیږي [مثلاً د سړي یا د ښځې په شرمګاه کې زخم یا پړسوب وي] مطلق مرض ځنې مراد نه دی، او د ځینو قول دا دی چې د سړي مرض مطلقاً مانع دی، ځکه چې د مطلق مرض او ناروغۍ په وجه د انسان بدن سُست، کهاله او خوار ځواکه وي او عموماً د مریض اندامونه ستړي او ستومانه وي او تناسلي اندام (ذکَر) یې هم پوره کار نه کوي؛ او په وطي او جماع کې خوند هغه وخت محسوسیږي کله چې په بدن او طبیعت کې نشاط او چسپاندي وي. نو ځکه به مطلق مرض د وطي مانع وي، همدا قول علامه عیني او صدرُ الشریعه اختیار کړی دی.

وهٰذا التفصیل: فرمایي چې د ښځې په مرض کې هم هغه تفصیل دی کوم چې د سړي د مرض په هکله اوس ذکر سو، یعنې که د هغې مرض له جماع څخه مانع وي، یا یې په جماع سره مرض نور زیاتیږي او ښځه نوره په تکلیف کیږي، نو بیا به دغه مرض د وطي مانع شمارل کیږي، کنې نه به شمارل کیږي.

وأما صوم: او فرضي روژه (یعنې د رمضان روژه) هم د وطي (او خلوت صحیحه) مانع ده، ځکه که په فرضي روژه کې جماع وسي نو د سختې ګناه سره قضاء او کفاره هم واجبیږي، او ښکاره خبره ده چې په دې شیانو کې زیات حرج او تکلیف دی، نو ځکه به فرضي روژه هم د وطي مانع وي.

وأما الإحرام إلخ: او د فرضي او نفلي حج احرام او د عمرې احرام هم د وطي مانع دي، ځکه که چیرې د احرام په حالت کې جماع وسي نو حج هم فاسدیږي او پر احرام تړونکي دم یعنې قرباني (اوښ یا پسه) هم واجبیږي او د حج قضاء هم پر واجبیږي، ښکاره خبره ده چې په دې شیانو کې هم ډېر سخت حرج او تکلیف سته، نو ځکه به احرام هم مانع د وطي وي. او څرنګه چې حیض په هر اعتبار سره د نفرت حالت دی او فطرت سلیمه حائضه ښځې ته لاس ور وړل هم نه خوښوي، او قرآن کریم هم په دغه حالت کې له جماع څخه منع کړې ده، نو ځکه به حیض هم د وطي مانع وي.

وإن کان إلخ: له دې ځایه د فرضي او نفلي روژې فرق بیانوي، او دې ته اشاره کوي چې مونږ ځکه د فرضي روژې قید لګولی دی چې نفلي روژه مانع د وطي نه ده، او که د سړي یا ښځې نفلي روژه وي او په هغه حالت کې خلوت وکړي نو هغه به خلوت صحیحه وي او د دخول قائم مقام به وي او تر دې خلوت وروسته که سړی ښځې ته طلاق ورکړي نو پر هغه به ټوله مهر لازم وي، ځکه چې د حاکم

شهید ابو الفضل د کتاب (منتقیٰ) مطابق د نفلي روژې په حالت کي بېله عذره روژه ماتول روا دي. او د مهر په باره کي دا قول صحيح دی.

د "وهذا القول في المهر صحيح" واضح مطلب دا دی چي د ټوله مهر د وجوب په هکله خو د منتقیٰ روایت صحیح دی، لېکن په دې باره کي چي نفلي روژه د وطي مانع نه ده د منتقیٰ روایت صحیح نه دی، ځکه چي ځیني علماؤ نفلي روژه هم د وطي او خلوتِ صحیحه مانع ګڼلې ده. (والله أعلم بحقيقة الحال)

**وصوم القضاء إلخ:** د قضائي او نذري روژې په باره کي دوه روایتونه دي: ① ... یو روایت دا دی چي دغه روژې هم مانع د وطي او مانعِ د خلوتِ صحیحه دي، ② ... دویم رایت دا دی چي مانع نه دي: د اول روایت دلیل دا دی چي که څه هم د قضائي او نذري روژې په ماتولو سره کفاره نه واجبیږي خو انسان په ګناهکاره کیږي لکه د رمضان د روژې په ماتولو سره چي انسان ګناهکاره کیږي، نو ځکه به دا روژې هم د رمضان د روژې په څېر د خلوتِ صحیحه مانع وي.

او د دویم روایت دلیل دا دی چي که څه هم دا روژې د رمضان د روژې سره د ګناه په لزوم کي برابري دي، خو د کفارې د وجوب په حواله سره د رمضان روژه پر دوی غالبه ده. لهذا په دواړو کي فرق راغلی، نو ځکه به د رمضان روژه مانع د خلوتِ صحیحه وي. لېکن قضائي او نذري روژه به د دې مانع نه وي. لنډه چي د اول روایت قائلینو ګناه ته کتلي دي چي د رمضاني روژې په څېر د دې روژو په ماتولو کي هم ګناه ده، او د دویم روایت قائلینو کفارې ته کتلي دي.

**والصلاة إلخ:** فرمایي چي لمونځ هم د روژې په څېر دی. یعني لکه څرنګه چي فرضي روژه مانع د وطي او مانع د خلوتِ صحیحه ده، همدارنګه فرضي لمونځ هم مانعِ د وطي او خلوت صحیحه دی. او څرنګه چي نفلي روژه مانع د وطي او خلوتِ صحیحه نه ده، همدارنګه که د نفلي لمانځه په حالت کي د ښځي سره د سړي خلوت وشي. نو دا به هم خلوتِ صحیحه وي او مانع د وطي به نه ګڼل کیږي.

## د مجبوب او عنین د خلوت بیان

| |
|---|
| وَإِذَا خَلَا الْمَجْبُوْبُ بِامْرَأَتِهِ او کله چي ذکر پرېکړی سوی [مقطوعُ الذکر] خلوت وکړي د خپلي ښځي سره ثُمَّ طَلَّقَهَا بیا طلاق ورکړي فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ ✿ نو د هغې لپاره به پوره مهر [واجب] وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا: عَلَيْهِ نِصْفُ الْمَهْرِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: |

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٣٧٠)، وكذا في الخانيــة (ج:١، ص:١٨٢). [الفوز الراجح ج:١، ص:٢٧٢]

چي پر هغه [مقطوعُ الذكر] به نيم مهر وي لِأَنَّهُ أَعْجَزُ مِنَ الْمَرِيضِ ځکه چي هغه تر مريض زيات بې وسه دی بِخِلَافِ الْعِنِّينِ په خلاف د عنين [يعني هغه کس چي پر جماع قدرت نه لري] لِأَنَّ الْحُكْمَ أُدِيْرَ عَلَى سَلَامَةِ الْآلَةِ ځکه چي حکم د آلې پر روغوالي دائر کيږي [يعني ځکه چي د حکم مدار د آلې پر سلامتيا دی] وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ الْمُسْتَحَقَّ عَلَيْهَا التَّسْلِيمُ فِي حَقِّ السَّحْقِ د امام صاحب دليل دا دی: چي پر ښځي سپارل [د بضع] واجب دی د مُږلو په حق [يعني پر ښځي د مږلو لپاره خاوند ته د بضع سپارل واجب دي] وَقَدْ أَتَتْ بِهِ او هغې دا [کار] کړی دی [نو ځکه به د هغې لپاره پوره مهر وي].

**اللغات:** ﴿مَجْبُوْب﴾ هغه سړی چي ذَکَر (تناسلي) اندام يې پرېکړی سوی وي. ﴿عِنِّيْن﴾ هغه سړی چي پر جماع قدرت نه لري (نامرده سړی). ﴿سَحْق﴾ مُږل، له مساحقت څخه دی (أحسن الهداية). ما وجدته في القواميس بهذا المعنى.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره ځان پوه کړی چي "مَجْبُوْب" هغه سړي ته وايي کوم چي ذَکَر نه لري يعني ذکر يې پرېکړی سوی او ختم سوی وي. او "عِنِّيْن" هغه سړي ته وايي چي د ډېر بوډاتوب يا د ډېري کمزورۍ په وجه پر جماع قدرت نه لري خو د دې امکان وي چي پر جماع به قدرت پيدا کړي.

حاصل د عبارت دا دی چي که مجبوب د خپلي ښځي سره خلوت وکړي (او له مجبوبيّت څخه بغير بل مانع د وطي نه وي) او بيا ښځي ته طلاق ورکړي، نو د امام صاحب په نېز به پر دغه مجبوب ټوله مهر واجبيږي، ځکه چي د هغه دا خلوت، خلوت صحيحه دی. لېکن صاحبين فرمايي چي دا خلوت فاسده دی او مانع د وطی دی، لهذا په دې صورت کي به پر مجبوب فقط نيم مهر واجبيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي مجبوب تر مريض هم زيات عاجزه دی، ځکه چي مريض کله نا کله پر جماع قدرت لري، لېکن مجبوب پر جماع هيڅ قدرت نه لري (ځکه چي هغه گرسره آله نه لري نو جماع به په څه شي وکړي)، او مرض د خلوت صحيحه مانع دی، نو مجبوبيت خو به په طريقه اولیٰ د خلوت صحيحه مانع وي، لهذا د هغه دا خلوت به خلوت فاسده شمارل کيږي، نه خلوت صحيحه.

او د عنين مسئله له دې څخه جلا ده او د هغه خلوت، خلوت صحيحه دی، ځکه چي د هغه آله صحيح سالمه ده او د حکم دارومدار پر آله دی، نو د خلوت کولو په صورت کي به پر هغه پوره مهر واجبيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي مهر د ښځي حق دی، نو مهر به هغه وخت کمول کيږي کله چي د ښځي له طرفه څه کمي او بې پروايي وسي، او موږ وينو چي دلته د ښځي له طرفه هيڅ کمي نسته. ځکه پر ښځي فقط دا کار لازم دی چي د مړلو په حق کي خاوند ته خپله بضع وسپاري (يعني چي خاوند ته پر خپلي بضع [شرمګاه] د ځان مړلو اجازه ورکړي)، او هغې دا کار پوره کړی دی (ځکه چي هغې د خاوند "مجبوب" له مړلو او د خاوند له مچولو او بيد بډلو څخه هيڅ انکار کړی نه دي. نو داسي سو لکه خپله بضع چي يې هغه ته وسپارله)، نو ځکه به د عنين په څير د مجبوب خلوت هم خلوت صحيحه وي.

## په خلوت سره د عدت واجبېدلو بيان

قَالَ: وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ فِي جَمِيْعِ هٰذِهِ الْمَسَائِلِ اِحْتِيَاطًا اِسْتِحْسَانًا فرمايي: چي پر ښځي عدت [عده] واجب دی په دغه ټوله [د خلوت سره اړوند] مسئلو کي احتياطاً د استحسان په توګه لِتَوَهُّمِ الشُّغْلِ ځکه چي د رحم د مشغولتيا وهم سته وَالْعِدَّةُ حَقُّ الشَّرْعِ وَالْوَلَدِ او عدت د شريعت او کوچني حق دی فَلَا يُصَدَّقُ فِيْ اِبْطَالِ حَقِّ الْغَيْرِ لهذا د بل چا د حق د باطلولو په هکله به د هيچا خبره نه منل کيږي بِخِلَافِ الْمَهْرِ په خلاف د مهر لِأَنَّهُ مَالٌ لَا يُحْتَاطُ فِيْ اِيْجَابِهٖ ځکه چي مهر داسي مال دی چي په واجبولو کي يې احتياط نه کيږي وَذَكَرَ الْقُدُوْرِيُّ فِيْ شَرْحِهٖ او امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپله شرح کي [دا] ذکر کړي دي أَنَّ الْمَانِعَ اِنْ كَانَ شَرْعِيًّا چي مانع [د وطي] که چيري شرعي وي [لکه روژه او حيض] تَجِبُ الْعِدَّةُ نو عدت واجبيږي لِثُبُوْتِ التَّمَكُّنِ حَقِيْقَةً حقيقتاً [پر وطي] د قدرت ثابتېدلو په وجه [يعني ځکه چي په دې صورت کي حقيقتاً پر وطي د انسان قدرت وي] وَاِنْ كَانَ حَقِيْقِيًّا كَالْمَرَضِ وَالصِّغَرِ او که [مانع د وطي] حقيقي وي لکه مرض او کوچنيوالی [نابالغتوب] لَا تَجِبُ نو [عدت] نه واجبيږي لِانْعِدَامِ التَّمَكُّنِ حَقِيْقَةً حقيقتاً د قدرت د نشتوالي په وجه.

**اللغات**: ﴿الشُّغل﴾ د فتح د باب اسمِ مصدر دی: مشغوليت (رحم په بچي مشغولېدل، يعني ښځه حامله کېدل)، ﴿لَا يُصَدَّق﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي صيغه ده: تصديق کول، تاييد کول، د يو سړي سره د هغه خبره منل، ﴿اِيْجَاب﴾ د افعال مصدر دی: واجبول.

**تشريح:** په دې عبارت کي بيان سوې مسئله د جامع صغير ده، حاصل يې دا دی چي مخکي د خلوت په هکله کوم صورتونه بيان سول يعني: خلوت صحيحه، خلوت فاسده، يا د مجبوب او عنين خلوت، په دې ټولو صورتونو کي تر طلاق وروسته د رحم د مشغوليت د احتمال په وجه پر ښځي عدت واجب دی (يعني که خاوند محض د ښځي سره خلوت وکړي او هيڅ دخول په ونه کړي او بيا هغې ته طلاق ورکړي، نو تر طلاق وروسته پر دغه ښځي عدت تېرول واجب دي، برابره ده خلوت صحيحه يې ور سره کړی وي، که خلوت فاسده)، او دا د عدت واجبېدل احتياطاً د استحسان په توګه دي (يعني خلافُ القياس دي)، ځکه د قياس تقاضا خو دا ده چي په دې صورتونو کي دي بالکل عدت نه واجبيږي، ځکه خلوت فاسده خو بالکل د دخول قائم مقام نه دی، او خلوت صحيحه که څه هم د دخول قائم مقام دی خو کله چي هغه وطي ور سره کړې نه دي او قبل الدخول يې طلاق ورکړی دی نو په دې وجه پر ښځي عدت واجبول هيڅ معنیٰ نه لري او د قياس بالکل مخالف دي. نو معلومه سوه چي په دې صورتونو کي عدت واجبېدل د قياس له رويه صحيح نه دي، خو دلته به د احتياط لپاره قياس پرېښوول کيږي او استحساناً به پر ښځي عدت واجبيږي، او همدا صحيح دي، ځکه چي د دغه مسئلې په شان نوري هم ډيري مسئلي سته چي په هغوی کي قياس پرېښوول کيږي او په استحسان عمل کيږي.

**دليل:** د دليل حاصل دا دی چي د خلوت په صورت کي د رحم د مشغوليت وهم او احتمال سته. يعني شايد هغه به وطي او دخول کړی وي او رحم ته به د سړي مني ورغلي وي يا شايد د دباندي له طرفه د معمولي مږلو په وجه به د هغه مني بهيدلي وي او رحم ته به رسېدلي وي، ځکه کله چي دوه شوقيان سره يو ځای سي نو د دغه خبري پوره احتمال سته (او په مجبوب [مقطوع الذکر] کي هم دغه احتمال سته چي هغه به خپل مقطوع ذکر د ښځي د شرمګاه سره لګولی وي او په مږلو او زور لګولو سره به د هغه مني راوتلي وي او رحم ته به رسېدلي وي). لهذا کله چي د خلوت په ټولو صورتونو کي د رحم د مشغوليت وهم ستم، نو احتياط په همدې کي دی چي پر ښځي عدت واجب سي.

**والعدة حق الشرع إلخ:** د دې حاصل دا دی چي د عدت د وجوب په باره کي به د ښځي يا د خاوند دا خبره نه منل کيږي چي "ما وطي نه دي ور سره کړې"، بلکي په هر حالت کي به عدت واجبيږي، يعني که څه هم خاوند او ښځه دا خبره وکړي چي "موږ خو خلوت کړی دی ليکن يو بل مو ته لاس هم ور وړی نه دی، جماع خو هلته پرېږده!"، نو د هغو دا ډول خبرو ته به نه کتل کيږي. بلکي په هر صورت کي به پر ښځي عدت واجب وي، ځکه چي عدت د شريعت او کوچني دواړو حق دی، د شريعت حق خو ځکه دی چي که خاوند او ښځه عدت ساقطول وغواړي نو دوی بالکل عدت نه سي

ساقطولای. او د کوچني حق د هغه حديث په وجه دی کوم چي مخکي ذکر سو يعني: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَسْقِيْ مَاؤُهُ زَرْعَ غَيْرِهٖ" (په دې حديث کي د داسي حاملې ښځي له وطي څخه منع سوې ده چي هغه له بل [مخکني خاوند] څخه حامله وي، نو د خلوت په صورت کي هم له بل څخه د حامله کېدلو وهم او احتمال وي. او د دې حديث أصل مقصد د کوچني د نسب لحاظ کول دي چي د دويم خاوند په اوبو سره د هغه نسب شکمن نه سي، نو معلومه سوه چي عدت د کوچني حق هم دی)، لهذا کله چي عدت د دواړو حق دی، نو اوس به د هغه د ساقطولو په باره کي د هيچا خبره نه منل کيږي هغه که ښځه وي او که خاوند وي، ځکه قاعده دا ده چي د بل چا د حق د باطلولو او ساقطولو په باره کي به د هيچا د خبري اعتبار نه کيږي.

بخلاف المهر إلخ: په دې سره ديو اعتراض جواب ور کوي، اعتراض دا دی چي کله په خلوتِ صحيحه او فاسده دواړو کي عدت واجب دی، نو په دواړو کي مهر هم پوره واجبول پکار دي. حال دا چي تاسي په خلوتِ صحيحه کي پوره مهر واجب کړی لېکن په خلوتِ فاسده کي مو نيم مهر واجب کړی دی؟ د دې په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي په دوی کي د فرق وجه دا ده چي مهر مال دی. او د مال په واجبېدلو کي د احتياط ضرورت نه وي، بلکي پر احتياط او استحسان د ضرورت په وخت کي عمل کيږي. لهذا چيري چي ضرورت سته (يعني د عدت په واجبېدلو کي) نو هلته موږ پر احتياط عمل کوو. او چيري چي ضرورت نسته (يعني د مهر په واجبېدلو کي) نو هلته قياس پر خپل حال پرېږدو او پر احتياط او استحسان عمل نه کوو

وذكر القدوري إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله چي د امام کرخي د کتاب "مختصرُ الكرخي" کومه شرح ليکلې ده په هغه کي امام قدوري رَحِمَهُ الله د عدت د وجوب او نه وجوب په هکله په مانعِ شرعي او مانعِ حقيقي کي فرق کړی دی او ليکلي يې دي چي که د وطي مانع شرعي وي لکه فرضي روژه يا حيض نو بيا به په خلوت سره عدت واجبيږي ځکه په دې صورت کي د رحم د مشغوليت احتمال سته. ځکه چي په داسي صورت کي خاوند حقيقتاً د وطي کولو قدرت لري، صرف په شرعي توګه مانع د وطي موجود دی. او که مانع حقيقي وي مثلاً د سړي ذکر پرېکړی سوي وي يا نجلۍ نابالغه او ډېره کوچنۍ وي، يا سړی نابالغه وي (يعني هلک وي) چي د نابالغتوب په وجه وطي نه سي کولای. نو په دې صورت کي به عدت واجبيږي، ځکه په دې صورتونو کي د رحم د مشغوليت امکان نسته. ځکه

چې دغه خاوند حقيقتاً د وطي کولو قدرت نه لري (يعني په حقيقت کې داسې خاوند وطي نه سي کولای)، نو ځکه به د مانعِ حقيقي په صورت کې په خلوت سره عدت نه واجبيږي.

## کومه طلاق سوې ښځه (مُطلقه) د متعې حقداره ده؟

قَالَ: وَتُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا لِمُطَلَّقَةٍ وَاحِدَةٍ [امام قدوري] فرمايي: او مستحب ده متعه د هرې مطلقې [طلاق سوې ښځې] لپاره خو نه د يوې مطلقې لپاره وَهِيَ الَّتِي طَلَّقَهَا الزَّوْجُ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او دا هغه مطلقه ده چې خاوند تر دخول [جماع] مخکې طلاق ورکړی وي وَقَدْ سَمَّى لَهَا مَهْرًا او د هغې لپاره يې [د نکاح په وخت کې] مهر [هم] ټاکلی وي [نو داسې مطلقې ته متعه ورکول مستحب هم نه دي بلکې د هغې لپاره نيم مهر واجب دی] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا لِهٰذِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هرې مطلقې لپاره متعه واجب ده لِأَنَّهَا وَجَبَتْ صِلَةً مِنَ الزَّوْجِ ځکه چې متعه د خاوند له طرفه د صلې [او احسان] په توګه واجب سوې ده لِأَنَّهُ أَوْحَشَهَا بِالْفِرَاقِ ځکه چې خاوند ښځه په جلا کولو سره په وحشت [او غم] سره مبتلا کړه إِلَّا أَنَّ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ نِصْفَ الْمَهْرِ طَرِيقَةُ الْمُتْعَةِ خو په دې صورت کې نيم مهر د متعې په توګه واجب دی لِأَنَّ الطَّلَاقَ فَسْخٌ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ ځکه چې طلاق په دې حالت کې فسخ دی وَالْمُتْعَةُ لَا تَتَكَرَّرُ او متعه نه مکرره کيږي [يعني په متعه کې تکرار او دوه ځلې نسته] وَلَنَا: أَنَّ الْمُتْعَةَ خَلَفٌ عَنْ مَهْرِ الْمِثْلِ فِي الْمُفَوَّضَةِ زموږ دليل دا دی: چې په مفوضه کې متعه د مهرِ مثل خليفه [نائب] ده لِأَنَّهُ سَقَطَ مَهْرُ الْمِثْلِ وَوَجَبَتِ الْمُتْعَةُ ځکه چې مهرِ مثل ساقط سو او متعه واجب سوه [يعني د مهرِ مثل د سقوط په بدله کې متعه واجب سوې ده] وَالْعَقْدُ يُوجِبُ الْعِوَضَ او عقد عوض واجبوي فَكَانَ خَلَفًا نو ځکه به دا متعه [د مهر] خليفه وي وَالْخَلَفُ لَا يُجَامِعُ الْأَصْلَ او خليفه خو نه د أصل سره جمع کېدای سي وَلَا شَيْئًا مِنْهُ او نه د أصل د يو جزء سره [جمع کېدای سي] فَلَا تَجِبُ مَعَ وُجُوبِ شَيْءٍ مِنَ الْمَهْرِ نو د لږ مهر د وجوب سره به هم متعه نه واجبيږي وَهُوَ غَيْرُ جَانٍ فِي الْإِيحَاشِ او طلاق ورکونکی [خاوند] مجرم نه دی په وحشت اچولو کې [يعني په دې سره هغه جنايتکار او مجرم نه دی چې ښځه يې په وحشت مبتلا کړه] فَلَا تَلْحَقُهُ الْغَرَامَةُ بِهِ لهذا د طلاق په وجه به هغه ته تاوان هم نه لاحقيږي [يعني کله چې هغه په طلاق ورکولو کې مجرم نه دی نو د طلاق په وجه به پر هغه هيڅ جرمانه هم نه لازميږي] فَكَانَ مِنْ بَابِ الْفَضْلِ نو دا متعه به د احسان [او ښېګڼې] له قبيلې څخه وي.

**اللغات:** ﴿أَوْحَشَ﴾ د افعال ماضي ده: يو څوک په وحشت او بېره مبتلا کول، ترهول. ﴿فِرَاق﴾ د نصر او ضرب له باب څخه اسم مصدر دی: جلا کول، جدايي، عليحده کې. ﴿جَانٍ﴾ د ضرب د باب اسمِ فاعل دی، په اصل کې جَانِيٌ وو: جنايتکار، مجرم، ګنهکار. ﴿الْغَرَامَة﴾ د سمع له باب څخه اسمِ مصدر دی: تاوان، جرمانه.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې د متن په اوله جمله يعني په "وَتُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا مُطَلَّقَةً وَاحِدَةً" کې دوه إشکالونه (خنډونه) دي: ①... اول إشکال دا دی چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په "لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ" کې "كُلّ" د "مُطَلَّقَةٍ" و طرف ته مضاف کړی دی او "مُطَلَّقَةٍ" نکره دی، او قاعده دا ده چې کله لفظ د "كُلّ" نکرې ته مضاف سي نو عموم فايده کوي، لهذا د جملې د اولې حصې معنیٰ دا سوه چې د هر ډول طلاق سوي ښځې لپاره متعه مستحب ده. هغه که مدخوله وي او که غيرِ مدخوله وي، مسمیٰ لها وي (يعني د هغې لپاره مهر ټاکل سوي وي) او که غيرِ مسمیٰ لها وي (يعني مهر ورلره ټاکل سوی نه وي)، حال دا چې د مُفَوَّضې ښځې لپاره (يعني د داسې طلاق سوي ښځې لپاره چې هغه غيرِ مدخول بها او غيرِ مسمیٰ لها وي) متعه مستحب نه ده بلکې واجب ده، لهذا امام قدوري رَحِمَهُ الله چې مطلقاً متعه مستحب ګرځولې ده، دا صحيح نه دي.

②... دويم اشکال دا دی چې تر "لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ" وروسته د "إِلَّا مُطَلَّقَةً وَاحِدَةً" استثناء سوې ده او دا استثناء عن نفسه ده، ځکه په مبسوط کې ذکر سوي دي چې کومې ښځې ته خاوند تر دخول مخکې طلاق ورکړي او د هغې لپاره يې مهر ټاکلی وي نو د هغې لپاره هم متعه مستحب ده. نو د ټولې جملې معنیٰ دا سوه چې "د هرې ښځې لپاره متعه مستحب ده مګر د يوې مُطلقې لپاره مستحب ده او هغه دا چې خاوند تر دخول مخکې طلاق ورکړی وي او د هغې لپاره يې مهر ټاکلی وي" نو دا استثناء عن نفسه سوه او داسې ده لکه څوک چې ووايي "ما ته خالد راغلی مګر خالد" او دا ډول استثناء باطله ده. لهذا د امام قدوري رَحِمَهُ الله پورتنۍ استثناء هم صحيح نه ده.

شارحينو د امام قدوري رَحِمَهُ الله له طرفه د دې دواړو إشکالونو جواب ورکړی دی. علامه اترازي رَحِمَهُ الله په جواب کې فرمايلي دي چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دغه جملې مطلب دا دی چې: "تُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ سِوَى الَّتِيْ تَقَدَّمَ ذِكْرُهَا وَهِيَ الَّتِيْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ وَقَبْلَ التَّسْمِيَةِ فَإِنْ

مُتْعَتَهَا وَاجِبَةٌ إِلَّا لِمُطَلَّقَةٍ وَاحِدَةٍ وَهِيَ الَّتِيْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخول بَعْدَ التَّسْمِيَةِ فإِنَّ مُتْعَتَهَا لَيْسَتْ بِوَاجِبَةٍ وَلَا مُسْتَحَبَّةٍ". نو په دې توګه به عبارت بالکل صحيح سي او دواړه إشکالونه به ختم سي.

دويم جواب دا دی چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل شرح کي په ځيني صور تونو کي متعه مستحب ګرځولې ده او په ځينو صورتونو کي يې واجب ګرځولې ده. لهذا په "لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ" کي خو واقعي استحباب مراد دی لېکن په "إِلَّا مُطَلَّقَةً وَاحِدَةً" کي استحباب نه بلکي وجوب مراد دی. يعني له "إِلَّا مُطَلَّقَةً احِدَةً" څخه مراد غيرِ مدخول بها غيرِ مسمىٰ لها مُطلقه (يعني مفوّضه) ده. نو إشکال ختم سو او استثناء صحيح سوه. ځکه چي د "لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ" او "إِلَّا مُطَلَّقَةً وَاحِدَةً" په معنىٰ کي توپير او تغاير راغلی.

ځيني حضراتو په جواب کي ويلي دي چي په دې اوله جمله کي له کاتب څخه سهوه سوې ده ځکه أصلاً د "وَقَدْ سَمّٰى لَهَا" پر ځای "وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا" وو.

يو بل جواب ستاسو په حاشيه کي هم ذکر سوی دی، تاسي هغه هم کتلای سي.

**حاصل د عبارت**: علامه اترازي چي د اولي جملې کوم مطلب بيان کړی دی هغه ډېر أسهل او واضح دی نو د هغه د تحقيق مطابق د عبارت حاصل دا دی چي زموږ په نېز د مُطلّقه (طلاق سوي ښځي) لپاره متعه مستحب ده ما سوا له هغه مُطلقې څخه چي خاوند تر دخول کولو او مهر ټاکولو مخکي طلاق ورکړی وي (يعني مُفوّضه وي) نو د هغې لپاره متعه واجب ده خو هغه مُطلّقه چي خاوند تر دخول مخکي طلاق ورکړی وي او د هغي لپاره يې مهر ټاکلی وي (يعني هغه مُطلقه غيرِمدخول بها مسمىٰ لها وي) نو د هغې لپاره متعه نه واجب ده او نه مستحب ده بلکي د هغې لپاره نيم مهر واجب دی.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د هري مطلّقې لپاره متعه واجب ده. لېکن د مطلقه غيرِ مدخول بها مسمى لها لپاره متعه مستحب ده (يعني داسي ښځي ته به د امام شافعي په نېز نيم مهر هم ورکول کيږي او استحباباً به متعه هم ورکول کيږي نه وجوباً. خو زموږ په نېز به فقط نيم مهر ورکول کيږي او د متعې نوم به هم نه اخيستل کيږي).

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي خاوند د طلاق ورکولو په وجه ښځه په وحشت او پرېشاني سره مبتلا کړه، او له خپل ځان څخه يې جلا کړه (نو دا ګواکي د هغه له طرفه يو جرم سو)، نو ځکه موږ د ښځي د وحشت ختمولو په خاطر او په خاوند کي د غمخوارۍ پيدا کولو په غرض د احسان په توګه پر خاوند متعه واجب ګرځوو. خو څرنګه چي د مطلقه غيرِ مدخول بها مسمىٰ لها لپاره نيم مهر واجب دی (ځکه د هغې لپاره خو مهر ټاکل سوی دی او قاعده دا ده چي که تر دخول مخکي ښځي ته طلاق ورکول سي او د هغې لپاره مهر ټاکل

سوي وي نو هغې ته به د متعې په توګه نيم مهر ورکول کيږي، پوره مهر به نه ورکول کيږي، ځکه چي د دخول د نشتوالي په وجه د هغې بضع صحيح سالمه پاته سوه)، نو کله چي د هغې لپاره نيم مهر د متعې په توګه واجب دی نو اوس که موږ متعه هم واجب کړو، نو د متعې په وجوب کي به تکرار راسي، او هغې ته به دوه ځله متعه ورکول سي، حال دا چي په متعه کي تکرار نه راځي.

**زموږ دليـل**: دا دی چي نکاح د بيع په څير د معاوضې عقد دی لهذا په نکاح کي عوض (بدل) ضروري دی (لکه په بيع کي چي ضروري دی چي هغه ته په بيع کي ثمن وايي او په نکاح کي مهر ورته وايي) خو څرنګه چي عوض د معوض (مبدل) په مقابله کي وي، او په نکاح کي معوض (يعني بضع) فقط يوه ده. نو ځکه به عوض (مهر) هم يو واجبيږي او يو ډول به واجبيږي. او همداسي به د عوض نائب (يعني د مهر نائب چي هغه متعه ده) هم يوه واجبيږي، نو نتيجه دا سوه چي عوض او د هغه نائب (يعني مهر او متعه) به دواړه يوځای نه واجبيږي، او کوم چي مفوضه ښځه ده (يعني مطلقه غيرِمدخول بها او غير مسمیٰ لها)، نو ښکاره خبره ده چي د هغې لپاره نه مهر تاکل سوی دی او نه د هغې لپاره د دخول د نشتوالي په وجه مهر مثل اجب دی، نو اوس به د هغې لپاره خامخا متعه واجبيږي ځکه چي د متعې له وجوب څخه بغير بله چاره نسته، او دا متعه د هغې په حق کي د مهرِ مثل نائبه ده (ځکه چي متعه د مهر نائبه ده او مهر أصل دی)، او د نائب په باره کي قاعده دا ده چي نه هغه د أصل سره جمع کېدای سي او نه د أصل د جزء سره، لهذا په هغه ټولو صورتونو کي به متعه نه واجبيږي چي په هغوی کي مهر واجب سوی وي که څه هم معمولي غوندي وي، مثلاً د مطلقه مدخول بها غيرِ مسمیٰ لها لپاره د دخول په وجه مهرِ مثل واجب دی، د مطلقه غيرِ مدخول بها مسمیٰ لها لپاره د مهر تاکلو په وجه نيم مهر واجب دی، نو ځکه به د دغه مطلقه ښځو لپاره متعه نه واجبيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا قول به هم صحيح نه وي چي مطلقاً متعه واجب ده.

**وهوغير إلخ**: صاحب د هدايې په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، فرمايي چي خاوند مجرم ګرځول او د وحشت د جرم په وجه پر خاوند متعه واجبول صحيح نه دي، ځکه چي شريعت په خپله خاوند ته د طلاق اجازه ورکړې ده حتیٰ په ځينو صورتونو کي يې طلاق مستحب ګرځولی دی (مثلاً کله چي ښځه نافرمانه وي يا لمونځ پرېښوونکی وي...)، نو ځکه به خاوند په دې سره نه مجرم کيږي چي هغه ښځي ته طلاق ورکړی او ښځه يې په وحشت او پرېشانی سره مبتلا کړه، لهذا کله چي هغه مجرم نه دی نو متعه به هم پر واجب نه وي بلکي فقط مستحب به وي، او همدا صحيح ده، او د وجوب قول په هيڅ صورت کي صحيح نه دی مګر د ضرورت او مجبورۍ په وخت کي، مثلاً ښځه مفوّضه وي (يعني مطلقه غيرِ مدخول بها غيرِ مسمیٰ لها وي)، ځکه چي د هغې په حق کي د متعې له وجوب څخه بغير بله هيڅ چاره نسته.

## د مُخې بيان (د ښځې په بدله کې ښځه ورکول)

وَإِذَا زَوَّجَ الرَّجُلُ بِنْتَهُ او کله چې يو څوک نکاح وکړي اديو سړي سره] د خپلې لور ايعني يو څوک خپله لور بل کس ته په نکاح ورکړي] عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْمُتَزَوِّجُ بِنْتَهُ أَوْ أُخْتَهُ پر دې شرط چې دا خاوند [يعني دغه بل سړی] به خپله لور يا خور هغه ته په نکاح ورکوي لِيَكُوْنَ أَحَدُ الْعَقْدَيْنِ عِوَضًا عَنِ الْآخَرِ د دې لپاره چې يو د دواړو عقدونو عوض سي له هغه بل څخه ايعني د دې لپاره داسي کوي چې يوه نکاح د بلې نکاح عوض سي او مهر له مينځ څخه وغورځول سي، کوم ته چې زموږ په اصطلاح مخې وايي] فَالْعَقْدَانِ جَائِزَانِ نو دواړو عقدونه جائز دي وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا مَهْرُ مِثْلِهَا او په دې دواړو ښځو کې به د هرې يوې لپاره مهرِ مثل وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: بَطَلَ الْعَقْدَانِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دواړه عقدونه باطل دي لِأَنَّهُ جَعَلَ نِصْفَ الْبُضْعِ صَدَاقًا وَالنِّصْفَ مَنْكُوْحَةً ځکه چې [هر عاقد] نيمه بضع مهر وګرځوله او نيمه يې منکوحه وګرځوله [يعني نيمه بضع يې مهر وټاکله او نيمه يې د نکاح په توګه هغه بل عاقد ته ورکړه] وَلَا اشْتِرَاكَ فِي هٰذَا الْبَابِ او په دې باب کې اشتراک نسته فَبَطَلَ الْإِيْجَابُ نو ايجاب باطل سو [او د ايجاب په باطلېدلو سره ټوله عقد باطليږي] وَلَنَا: أَنَّهُ سَمّٰى مَا لَا يَصْلُحُ صَدَاقًا او زموږ دليل دا دی: چې [هر عاقد] داسي شی [په مهر کې] وټاکی کوم چې د مهر جوړېدلو صلاحيت [وړتيا] نه لري فَيَصِحُّ الْعَقْدُ نو عقد به صحيح وي وَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ او مهرِ مثل به واجب وي كَمَا إِذَا سَمَّى الْخَمْرَ وَالْخِنْزِيرَ لکه په هغه صورت کې [چې هم عقد صحيح کيږي کله] چې شراب او خنزير [په مهر کې] وټاکي وَلَا شَرِكَةَ بِدُوْنِ الِاسْتِحْقَاقِ او بغير له استحقاق څخه هيڅ اشتراک نه ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿زَوَّجَ﴾ د تفعيل ماضي ده، متعدي باب دی: د بل چا نکاح ورکول، واده ورکول. ﴿مُتَزَوِّج﴾ د تفعّل اسمِ فاعل دی، لازمي باب دی: په خپله نکاح کونکی، واده کونکی. ﴿سَمّٰى﴾ د تفعيل ماضي ده: ټاکل، مقرر کول. ﴿خَمْر﴾ شراب.

**تشريح**: په دې عبارت کې د "نکاح شِغَار" حکم بيان سوی دی چې هغه ته زموږ په اصطلاح "د مخې نکاح" وايي، "شِغَار" له "شُغُوْر" څخه را اخيستل سوی لفظ دی، د "شُغور" معنیٰ ده: "

ختمول، او خالي کول"، څرنګه چې د مخې نکاح هم له مهر څخه خالي وي او په هغه کې یوه بضع د بلې بضع عوض ګرځول کیږي او مهر پکښې ختمول کیږي، نو ځکه هغه ته "شِغَار" وایي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نیز د شغار نکاح جائز او صحیح ده (او په نکاح کې به دواړو ښځو ته مهرِ مثل ورکول کیږي، ځکه په کومه نکاح کې چې مهر نه وټاکل سي، نو په هغه کې مهرِ مثل لازمیږي لکه مخکې چې دا مسئله ذکر سوه)، لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز دا نکاح بالکل باطله ده، همدا مسلک د امام احمد او امام مالک رَحِمَهُمَا الله دی (یعني د ټولو ائمه ثلاثه وو په نیز نکاحِ شغار باطله ده).

**دلیل**: ائمه ثلاثه په خپل دلیل کې دوه حدیثونه ذکر کوي (خو نه پوهیږم چې ولې صاحب د هدایې یو هم نه دي ذکر کړی)، یو خو هغه حدیث دی کوم چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روایت کړی دی چې "نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَنِ الشِّغَار"، او بل حدیث دا دی: "لَا شِغَارَ فِي الْاِسْلَام"، دا دواړه د نکاحِ شغار د حُرمت په باره کې صریح دلیلونه دي او دواړه په واضحه توګه دا اعلان کوي چې په اسلام کې شغار او مخې بالکل جائز نه ده.

**لأنهٔ جعل إلخ**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دلیل دا دی چې کوم څوک په دې شرط خپله لور بل چا ته ورکړي چې هغه به خپله لور ماته راکوي، نو دا داسي دي لکه د هري یوې نیمه بضع چې مهر جوړه سي او نیمه بضع یې منکوحه جوړه سي (په بله وینا دا چې د مخې په نکاح کې د هري ښځې نیم بدن عوض [مهر] جوړیږي او نیم بدن یې معوض جوړیږي، یعني د هري ښځې یوه حصه [یعني نیمه بضع] د هغه بلې ښځې مهر ګرځي او بله حصه [یعني دویمه نیمه بضع] یې د خاوند په نکاح کې راځي) او دې ته اشتراک وایي، ځکه چې په یوه ښځه کې پلار او خاوند دواړو حصه واخیستله، یعني پلار یې نیمه بضع د بلې ښځې په مهر کې ورکړه او پاته نیمه بضع یې د خاوند په نکاح کې راغله، او په بضع کې اشتراک صحیح نه دی (او دا داسي ده لکه یوه ښځه چې د دوو خلګو سره نکاح وکړي چې هغه بالکل صحیح نه دي)، نو ځکه به د شغار نکاح هم صحیح نه وي.

**زموږ دلیل**: دا دی چې د مخې په نکاح کې له دواړو طرفو څخه داسي شی مهر ټاکل کیږي کوم چې د مهر جوړېدلو صلاحیت نه لري، او قاعده دا ده چې کوم شی د مهر جوړېدلو صلاحیت نه لري که هغه په مهر کې وټاکل سي نو مهرِ مثل واجبیږي او نکاح صحیح کیږي، مثلاً که شراب یا خنزیر مهر وټاکل سي نو نکاح صحیح کیږي لیکن د خنزیر یا شرابو پر ځای مهرِ مثل واجبیږي، نو همداسي به دلته هم نکاح صحیح او جائز وي او مهرِ مثل به واجب وي.

**ولا شركة إلخ:** په دې جمله سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې اشتراک هغه وخت ثابتيږي، کله چې بضع د مهر جوړېدلو صلاحيت ولري، لېکن بضع د مهر جوړېدلو استحقاق او صلاحيت نه لري، نو ځکه به اشتراک هم نه ثابتيږي، لهذا کله چې اشتراک نه ثابتيږي، نو په مهر کې د بضع د نه ذکر کولو شرط به فاسد شرط وي، او په فاسد شرط سره نکاح نه باطليږي، بلکې په خپله هغه فاسد شرط باطليږي (لکه مخکې چې دا قاعده تېره سوه). نو ځکه به د شغار نکاح صحيح وي او پر خاوند به مهر مثل واجب وي.

**د نقلي دليل جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديثونو جواب دا دی چې په دغه حديثونو کې له نکاح څخه منع نه ده سوې، بلکې د شغار د لغوي مفهوم او معنیٰ څخه منع سوې ده، او دې طرف ته اشاره سوې ده چې کله تاسو نکاح کوی نو د شغار او مخې شکل مه اختياروئ چې ورروسته د مهر مثل ستونزه او داسې نورې ستونزې واقع نه سي بلکې صفا او سيده نکاح کوئ او د نکاح په وخت کې مهر ټاکئ؛ نو معلومه سوه چې که له مهر ټاکلو څخه بغير نکاح وسي نو هم صحيح ده او باطله نه ده. لکه د جمعې تر اذان وروسته چې له بيع څخه منع سوې ده، نو په هغه وخت کې هم نفسِ بيع ممنوع نه ده بلکې ممانعت د جمعې د اذان په وخت کې دی.

## د مهر په بدله کې د خدمت کولو حکم (يعني خدمت د ښځې مهر جوړول)

| |
|---|
| وَإِنْ تَزَوَّجَ حُرٌّ امْرَأَةً عَلَى خِدْمَتِهِ إِيَّاهَا سَنَةً او که يو آزاد کس نکاح وکړي د يوې ښځې سره پر دې شرط چې دغه آزاد کس به د هغې خدمت کوي يو کال أَوْ عَلَى تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ يا پر دې شرط چې قرآن به [هغې ته] ور ښيي فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو د ښځې لپاره به خپل مهرِ مثل [واجب] وي ايعني د دې شيانو په بدله کې به پر خاوند د هغې مهرِ مثل واجب وي، د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيزا وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: لَهَا قِيمَةُ خِدْمَتِهِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د هغې لپاره به د دې آزاد کس د خدمت قيمت [واجب] وي وَإِنْ تَزَوَّجَ عَبْدٌ امْرَأَةً بِإِذْنِ مَوْلَاهُ عَلَى خِدْمَتِهِ سَنَةً او که يو غلام نکاح وکړي د يو ښځې سره پر دې شرط |

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فى رد المحتار (ج:۲، ص:۳۶۱، ۳۶۲)، وكذا فى الخانية (ج:۱، ص:۱۷۴)، وقال الاستاذ المفتى غلام قادر النعماني: القول الراجح قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله لكنّ المتأخرين افتوا على جواز الاستيجار على تعليم القرآن فيصح النكاح على تعليم القرآن عند المتأخرين، ولها قيمة الخدمة وأجرة التعليم، لا التعليم فقط، لأنه ليس بمال. [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۷۲]

چي غلام به د هغې خدمت کوي يو کال جَازَ نو [دا نکاح] جائز ده وَلَهَا خِدْمَتُهُ او د ښځي لپاره به د دې غلام خدمت [واجب] وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَهَا تَعْلِيمُ الْقُرْآنِ وَالْخِدْمَةُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغې لپاره به د قرآن ورښوول [واجب] وي او [د آزاد او غلام] په دواړو صورتونو کي به خدمت [واجب] وي لِأَنَّ مَا يَصْلُحُ أَخْذُ الْعِوَضِ عَنْهُ بِالشَّرْطِ ځکه کوم شی چي د دې صلاحيت لري چي په شرط سره د هغه عوض اخيستل کېدای سي [يعني پر کوم شي چي عوض اخيستل کېدای سي] يَصْلُحُ مَهْرًا عِنْدَهُ نو هغه د مهر [جوړېدلو] صلاحيت لري د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز لِأَنَّ بِذَلِكَ تَتَحَقَّقُ الْمُعَاوَضَةُ ځکه چي په دې [عوض اخيستلو] سره معاوضه ثابتيږي وَصَارَ كَمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى خِدْمَةِ حُرٍّ آخَرَ بِرِضَاهُ او دا داسي سو لکه خاوند چي د يو ښځي سره پر دې شرط نکاح وکړي چي يو بل آزاد کس به [د هغې] خدمت کوي په خپله رضا سره أَوْ عَلَى رَعْيِ الزَّوْجِ غَنَمَهَا يا په دې شرط چي خاوند به د هغې پسونه څروي [پووي] وَلَنَا: أَنَّ الْمَشْرُوعَ هُوَ الِابْتِغَاءُ بِالْمَالِ او زموږ دليل دا دی: چي [په نکاح کي] مشروع د مال په ذريعه [د بضع] طلب کول دي وَالتَّعْلِيمُ لَيْسَ بِمَالٍ او تعليم مال نه دی وَكَذَلِكَ الْمَنَافِعُ عَلَى أَصْلِنَا او همدارنګه زموږ د قاعدې مطابق منافع [يعني د آزاد خاوند خدمت] هم مال نه دي وَخِدْمَةُ الْعَبْدِ ابْتِغَاءٌ بِالْمَالِ [خو] د غلام خدمت ابتغاء بالمال دي [يعني د غلام خدمت په حقيقت کي د مال په ذريعه د بضع غوښتل دي] لِتَضَمُّنِهِ تَسْلِيمَ رَقَبَتِهِ ځکه چي د هغه خدمت شامل دی د خپلي رقبې و تسليمولو ته [يعني ګواکي په خدمت سره غلام ښځي ته خپله غاړه وسپارله، او غلام مال دی، نو ګواکي مال يې ورته وسپاری] وَلَا كَذَلِكَ الْحُرُّ او آزاد [خاوند] داسي نه دی وَلِأَنَّ خِدْمَةَ الزَّوْجِ الْحُرِّ لَا يَجُوزُ اسْتِحْقَاقُهَا بِعَقْدِ النِّكَاحِ او په دې وجه [هم] چي د آزاد خاوند خدمت داسي شی دی چي په عقد نکاح سره [ښځه] د هغه حقداره کېدل جائز نه دي لِمَا فِيهِ مِنْ قَلْبِ الْمَوْضُوعِ ځکه چي په دې سره موضوع چپه اوړي بِخِلَافِ خِدْمَةِ حُرٍّ آخَرَ بِرِضَاهُ په خلاف د بل آزاد کس د خدمت په خپله رضا سره لِأَنَّهُ لَا مُنَاقَضَةَ ځکه چي [په دې صورت کي] هيڅ تناقض سته وَبِخِلَافِ خِدْمَةِ الْعَبْدِ او په خلاف د غلام د خدمت لِأَنَّهُ يَخْدُمُ مَوْلَاهُ مَعْنًى ځکه هغه په حقيقت کي د

خپل مالک خدمت کوي حَيْثُ يَخْدُمُهَا بِإِذْنِهِ وَبِأَمْرِهِ ځکه چې هغه د مالک په اجازه او حکم سره د ښځې خدمت کوي وَبِخِلَافِ رَعْيِ الْأَغْنَامِ او په خلاف د پسود څرولو [پوولو] لِأَنَّهُ مِنْ بَابِ الْقِيَامِ بِأُمُوْرِ الزَّوْجِيَّةِ ځکه چې هغه د کورني کارونو د اداء کولو له باب څخه دي [يعني پسونه پوول د سړي د خپل کور يو کار دی، خدمت او چوپړ نه دی] فَلَا مُنَاقَضَةَ نو [په دې کې هم] هيڅ تناقض نشته عَلٰى أَنَّهُ مَمْنُوْعٌ فِيْ رِوَايَةٍ سره د دې چې په يوه روايت کې دا ممنوع [هم] دي [چې پسونه پوول په مهر کې وټاکل سي].

**اللغات:** ﴿يَصْلُحُ﴾ د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده، له کرُم، نصر او فتح ټولو بابونو څخه راځي: صلاحيت لرل، ورتيا لرل. ﴿رَعْيٌ﴾ د فتح د باب مصدر دی: پوول (څرل)، وزې او پسونه (رمه) وبنو ته بيول. ﴿إِبْتِغَاءٌ﴾ د افتعال مصدر دی: غوښتل، طلب کول. ﴿مُنَاقَضَةٌ﴾ د مفاعلې مصدر دی: تناقض، يو شی د بل شي برعکس کېدل (مخالف کېدل).

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که يو آزاد سړي د يو ښځې سره نکاح وکړي او د ښځې خدمت مهر جوړ کړي يعني ښځې ته ووايي چې "زه يو کال ستا خدمت کوم، همدا زما له طرفه مهر دی"، يا دا چې د قرآن ور ښوول مهر جوړ کړي، نو نکاح جائز ده، خو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي پر خاوند مهرِ مثل واجب دی (يعني ښځې ته به مهرِ مثل ورکوي)، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ټوله کال د خدمت چې (په بازار کي) څومره قيمت لري، هغومره قيمت پر خاوند واجب دی (يعني هغومره قيمت به ښځې ته په مهر کي ورکوي).

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو غلام د خپل مالک په اجازه د يو ښځې سره نکاح وکړي، او د يوه کال خدمت د ښځې مهر وټاکي، نو دا نکاح هم جائز ده، خو پر هغه زموږ په نېز مهرِ مثل نه واجبيږي، بلکې همدا يو کال خدمت به د ښځې مهر وي، نو يو کال به د ښځې خدمت کوي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که خاوند آزاد وي او که غلام وي، په دواړو صورتونو کي هغه شی پر واجبيږي کوم چې يې په مهر کي ټاکلی وي، هغه که د قرآن تعليم (ښوونه) وي او که د ښځې خدمت وي، همدا د امام احمد او امام مالک رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

**دليل:** د امام شافعي او نورو دليل دا دی چې نکاح د بيع په څېر عقد معاوضه دی (يعني د معاوضې عقد دی چې يو طرف ته عوض [مهر] پکښې ورکول کيږي او بل طرف ته معوض [بضع] ورکول کيږي، لکه په بيع کي چې هم دغه معامله ده)، نو ځکه به هر داسي شی مهر جوړول او په مهر کي

تاکل صحيح وي چي پر هغه عوض اخيستل کېداى سي (يعني چي د هغه په بدله کي عوض اخيستل صحيح وي)، او څرنګه چي د خدمت او د قران د تعليم په بدله کي عوض اخيستل صحيح دي، نو ځکه به دا په مهر کي تاکل او مهر ځني جوړول هم صحيح وي.

او دا مسئله داسي ده لکه ديو بل آزاد سړي خدمت په مهر کي تاکل (مثلاً خاوند ښځي ته ووايي چي فلانى کس به يو کال ستا خدمت کوي او همدا ستا مهر دى، او فلانى کس په دې راضي وي)، يا د ښځي پسونه او رمه پوول (څرول) په مهر کي تاکل، او دا بالاتفاق صحيح دي، نو خدمت او د قرآن تعليم به هم په مهر کي تاکل صحيح وي، دا د امام شافعي او نورو قياس دى.

**زموږ دليل**: دا دى چي د دې آيت "أَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ [سورة النساء:۲۴]" په وجه په نکاح کي فقط ابتغاء بالمال (يعني فقط د مال په ذريعه د بضع غوښتل او د بضع طلب کول) مشروع او صحيح دي، او د قرآن تعليم مال نه دى، همدارنګه زموږ د اُصولو مطابق منافع يعني خدمت هم مال نه دى، ځکه چي د مال کېدلو لپاره تر دوو زمانو (يعني د حال او استقبال تر زمانو) پوري پاته کېدل او موجود ېدل ضروري دي، لېکن خدمت که څه هم د حال په زمانه کي موجود وي لېکن په را روانه زمانه کي دا معدوم او نيستي وي، نو خدمت به هم مال نه وي، لهذا کله چي دغه شيان مال نه دي، نو په مهر کي به د هغوى تاکل او مهر ځني جوړول هم صحيح نه وي، کنې د قرآني حکم مخالفت به لازم سي کوم چي په هيڅ صورت کي صحيح نه دى، او کله چي د هغوى مهر جوړول صحيح نه دي، نو په مهر کي به د هغوى په تاکلو سره مهرِ مثل لازميږي، ځکه مخکي ذکر سوه چي په نکاح کي د داسي شي په تاکلو سره مهرِ مثل لازميږي کوم چي د مهر جوړېدلو صلاحيت نه لري، نو ځکه زموږ په نېز په دې صورتونو کي مهرِ مثل واجب دى.

**وخدمة العبد إلخ**: دا ديو اشکال جواب دى، اشکال دا دى چي کله خدمت مال نه دى، نو بيا د غلام خدمت څرنګه د ښځي مهر جوړېدى سي، نو د دې جواب ورکوي چي د غلام د خدمت مطلب دا دى چي غلام خپله غاړه (رقبه) ښځي ته وسپارله، او د غلام غاړه مال دى (يعني غلام په خپله مال دى، لهذا د غلام د خدمت مطلب دا سو چي هغه ښځي ته مال وسپارى)، لهذا د "ابتغاء بالمال" معنىٰ د غلام په خدمت کي موجوده سوه، نو ځکه به د غلام لپاره خپل خدمت په مهر کي تاکل او مهر ګرځول صحيح وي، د دې په خلاف د آزاد سړي غاړه مال نه دى، نو ځکه هغه خپله غاړه ښځي ته نه سي سپارلاى، لهذا د هغه په خدمت کي د "ابتغاء بالمال" معنىٰ فوت سوه، نو ځکه به د آزاد لپاره خپل خدمت مهر په مهر کي تاکل صحيح نه وي.

**ولأن خدمة الزوج إلخ:** دا دویم دلیل دی چې ښځه د دې لپاره وي چې د خاوند خدمت وکړي ځکه الله تعالیٰ خاوند ته د "اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ [سورة النساء: ٣٤]" په آیت سره د مالک او بادار درجه ورکړې ده او همدا د نکاح موضوع ده. نو که ښځه باداره جوړه سي او خاوند د هغې په خدمت بوخت سي. نو قلب د موضوع به لازم سي، یعني دغه د نکاح موضوع به چپه سي او معامله به د دې برعکس سي. نو په دې وجه هم ښځه د آزاد خاوند د خدمت حقداره کېدای نه سي.

**بخلاف خدمة إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قیاس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې که بل آزاد کس په خپله رضا د ښځي خدمت کوي نو په دې کي قلب د موضوع نسته. ځکه د بل چا خدمت کول د خاوند توب (مېړه توب) خلاف نه دي بلکي د خپلي ښځي خدمت کول د خاوندتوب خلاف دي، نو ځکه د بل آزاد کس خدمت په مهر کي تاکل څه حرج نه لري. لهذا پر دې د خاوند خدمت قیاسول صحیح نه دي.

**وبخلاف خدمة العبد إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د غلام خاوند خدمت د آزا خاوند پر خدمت قیاسول هم صحیح نه دي، ځکه چې غلام د مالک په اجازه او حکم سره د خپلي ښځي خدمت کوي، نو د غلام لپاره د ښځي خدمت کول په حقیقت کي د مالک خدمت کول دي، لهذا په دي صورت کي هم قلبِ موضوع نه سته، ځکه چې دلته غلام په حقیقت کي د مالک خادم دی، نه د ښځي.

**بخلاف رعي الأغنام إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د خاوند خدمت د رمې پر پوولو قیاسول هم صحیح نه دي، ځکه چې رمه پوول (څرول) په حقیقت کي خدمت نه دی بلکي د کور له کارونو څخه یو کار دی، همدا وجه ده چې د رمې په منافعو کي خاوند او ښځه دواړه سره شریک دي، که چیري دا خدمت وای نو فقط ښځه به د رمې منافعو مستحقه وای، حالانکي داسي نه ده. لهذا کله چې د رمې په پوولو کي د خدمت معنیٰ نسته (یا خو ضمناً سته)، نو ځکه پر هغه د خالص خدمت صورت قیاسول صحیح نه دي.

**على أنه إلخ:** د رمې د پوولو ذویم جواب دا هم کېدای سي چې د مبسوط او جامع صغیر د روایت مطابق د رمې پوول په هیڅ صورت کې هم په مهر کي تاکل صحیح نه دي. علامه عیني او صاحب د فتح القدیر هم دغه روایت ته صحیح ویلي دي، نو دې روایت ته په کتلو سره بالکل د امام شافعي رَحِمَهُ الله قیاس صحیح نه دی.

## په پورتني صورت کې د احنافو اختلاف

ثُمَّ عَلٰی قَوْلِ مُحَمَّدٍ تَجِبُ قِيمَةُ الْخِدْمَةِ بيا د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول د خدمت قيمت واجبيږي لِأَنَّ الْمُسَمّٰی مَالٌ ځکه چې ټاکل سوی شی ايعني خدمت د هغه په نېز] مال دی إِلَّا أَنَّهُ عَجَزَ عَنِ التَّسْلِيمِ لِمَكَانِ الْمُنَاقَضَةِ خو د مناقضت په وجه خاوند اد غاړي] له سپارلو څخه عاجز دی فَصَارَ كَالتَّزَوُّجِ عَلٰی عَبْدِ الْغَيْرِ نو داسي سو لکه د بل چا پر غلام نکاح کول ايعني لکه د بل چا غلام په مهر کي ټاکل] وَعَلٰی قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله پر قول مهرِ مثل واجبيږي لِأَنَّ الْخِدْمَةَ لَيْسَتْ بِمَالٍ ځکه چې خدمت مال نه دی إِذْ لَا تُسْتَحَقُّ فِيهِ بِحَالٍ ځکه چې په نکاح کي په هيڅ حال کي هم د خدمت استحقاق کېدای نه سي فَصَارَ كَتَسْمِيَةِ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ نو داسي سو لکه [په مهر کي] د شراب او خنزير ټاکل وَهٰذَا لِأَنَّ تَقَوُّمَهُ بِالْعَقْدِ لِلضَّرُورَةِ او دا [د مهرِ مثل واجبېدل] په دې وجه دي چي په عقدِ [اجاره] کي د خدمت قيمتداره کېدل د ضرورت په وجه دي فَإِذَا لَمْ يَجِبْ تَسْلِيمُهُ بِالْعَقْدِ نو کله چي په نکاح کي د خدمت سپارل واجب نه سو [يعني ممکن نه دی] لَا يَظْهَرُ تَقَوُّمُهُ نو [په نکاح کي] به د هغه متقوم کېدل هم نه ښکاره کيږي فَيَبْقَی الْحُكْمُ عَلَی الْأَصْلِ نو حکم به پر خپل أصل پاتيږي وَهُوَ مَهْرُ الْمِثْلِ او هغه مهر مثل دی.

**اللغات:** ﴿الْمُسَمّٰی﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: ټاکل سوی، مقرر کړی سوی. ﴿تَقَوُّم﴾ د تفعّل مصدر دی: قيمتداره کېدل (قيمت لرل)، قيمت ورکول (قيمت لګول).

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې خبره ځان پوه کړئ! چي دغه عبارت د هغه عبارت سره مناقض او متصادم دی کوم چي مخکي بيان سو يعني د: "وَلَنَا أَنَّ الْمَشْرُوعَ إِنَّمَا هُوَ الإِبْتِغَاءُ...(الخ)" سره (کوم چي په تېر عبارت کي بيان سو)، او وجه د تناقض يې دا ده چي که په "وَلَنَا" کي امام محمد رَحِمَهُ الله داخل وي، نو بيا دلته (په دغه عبارت کي) په "ثُمَّ عَلٰی قَوْلِ مُحَمَّدٍ...(الخ)" سره جلا د هغه د قول بيانولو ته ضرورت نسته. او که په "وَلَنَا" کي هغه داخل نه وي، نو بيا هلته (په تېر عبارت کي) د "لَنَا" پر ځای "لَهُمَا" ذکر کول پکار وو چي ضمير فقط طرفينو ته راجع سوي وای او د امام محمد رَحِمَهُ الله نه داخلېدل څرګند سوي وای.

لېکن علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله د دې په جواب کې ويلي دي چې امام محمد رَحِمَهُ الله هم د قرآن تعليم مال نه ګڼي نو په دې حواله سره هغه په "لَنَا" کې داخل دی، خو خدمت مال ګڼي نو په دې حواله سره هغه په "لَنَا" کې داخل نه دی، نو ځکه له دې ځايه په "ثُمَّ عَلٰی قَوْلِ مُحَمَّدٍ...(الخ)" سره د امام محمد او د طرفينو د أقوالو جلا، جلا تشريح کوي.

د تشريح حاصل دا دی چې د خدمت د مهر جوړولو په صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر خاوند د خدمت قيمت واجب دی يعني د خدمت قيمت به د ښځې مهر وي. نو د خاوند خدمت که څه هم (د هغه په نېز) مال دی، خو د قلبِ موضوع په وجه يې غلام له سپارلو څخه عاجز دی (يعني د موضوع چپه کېدلو په وجه غلام خاوند پر دې قادر نه دی چې خپل خدمت [مال] هغې ته وسپاري، يعني د هغې خدمت وکړي) نو ځکه به پر هغه د دې قيمت واجب وي، لکه کله چې خاوند د يو بل چا غلام په مهر کې و ټاکي او بيا هغه غلام نه سي ور کولای، نو په هغه صورت کې هم قيمت واجبيږي. ځکه قاعده دا ده چې کله څوک د ټاکل سوي شي له ور سپارلو څخه عاجز سي، نو پر هغه د شي قيمت لازميږي.

**وعلى قول أبي حنيفة إلخ**: د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې مهرِ مثل واجبيږي. ځکه چې د دې آيت "أَنْ تَبْتَغُوْا بِأَمْوَالِكُمْ" په وجه "ابتغاء بالمال" شرط ده. او خدمت مال نه دی. نو ځکه به په دې صورت کې پر هغه مهرِ مثل واجبيږي.

خدمت ځکه مال نه دی چې په مال کې استحقاق کې جاري کېدای سي، لېکن ښځه د قلبِ موضوع په وجه په هيڅ صورت کې د خدمت مستحقه کېدای نه سي، او دا مسئله داسي ده لکه په مهر کې چې شراب او خنزير و ټاکل سي. نو مهرِ مثل واجبيږي (ځکه چې مسلمان په هيڅ صورت کې د شراب او خنزير مستحق کېدای نه سي. لهذا د مسلمان په حق کې شراب او خنزير د مهر جوړېدلو صلاحت نه لري. نو څرنګه چې په دې صورت کې مهرِ مثل واجبيږي)، همداسي به دلته هم مهرِ مثل واجبيږي.

**وهذا لأن تقومها إلخ**: دا د يو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې په مهر کې د خدمت ټاکلو په صورت کې د شيخينو په نېز ځکه مهرِ مثل واجبيږي چې د آزاد خدمت مالِ متقوم نه دی (يعني د هغه خدمت هيڅ قيمت نه لري)، نو کله چې د هغه خدمت مالِ متقوّم نه دی، نو بيا ولې آزاد سړی د خدمت لپاره په مزدوری او اُجرت سره نيول کيږي؟، نو د دې جواب ورکوي چې له يو چا څخه په اجاره خدمت او کار اخيستل انساني ضرورت دی، نو د اجارې په عقد کې د آزاد کس خدمت متقوم کېدل

صرف د خلګو د ضرروت په وجه دي، لهذا چيرې چې د خدمت په عوض کې أجرت او مزدوري تاکل کيږي نو فقط هلته به هغه متقوم (قيمتداره) وي، لېکن د نکاح په عقد کې د دې ورکول واجب نه دي نو په نکاح کې به خدمت متقوم هم نه وي، لهذا په نکاح کې به د خدمت حکم پر خپل أصل پاتېږي. او أصل (يعني قاعده) دا وه چې که داسې شی په مهر کې وتاکل سي کوم چې قيمت نه لري نو بيا مهرِ مثل واجبيږي، نو ځکه به دلته هم مهرِ مثل واجبيږي، نه خدمت.

## که ښځه خپل مهر خاوند ته هبه کړي او بيا طلاق واقع سي؟

فَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى أَلْفٍ او که [يو سړي] نکاح وکړه د يو ښځې سره د زرو درهمو په عوض کې فَقَبَضَتْهَا وَوَهَبَتْهَا لَهُ او ښځې هغه زر درهمه قبضه کړل او هغه يې [بيرته] خاوند ته هبه کړل ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا بيا خاوند تر دخول مخکې هغې ته طلاق ورکړی رَجَعَ عَلَيْهَا بِخَمْسِمِائَةٍ نو خاوند به رجوع کوي پر ښځې په پنځو سوو درهمو سره [يعني خاوند به پنځه سوه (۵۰۰) درهم له ښځې څخه واپس اخلي] لِأَنَّهُ لَمْ يَصِلْ إِلَيْهِ بِالْهِبَةِ عَيْنُ مَا يَسْتَوْجِبُهُ ځکه چې د هبې په ذريعه خاوند ته بعينه هغه شی نه ورسېدی کوم چې يې خاوند حقداره دی لِأَنَّ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيْرَ لَا تَتَعَيَّنَانِ فِي الْعُقُوْدِ وَالْفُسُوْخِ ځکه چې درهمونه او ديناونه په متعيّنولو سره نه متعين کيږي په عقدونو او فسخو کې وَكَذَا إِذَا كَانَ الْمَهْرُ مَكِيْلًا أَوْ مَوْزُوْنًا أَوْ شَيْئًا آخَرَ فِي الذِّمَّةِ همدارنګه کله چې مهر کَيلي يا وزني شی وي يا يو بل شی وي په ذمه کې لِعَدَمِ تَعَيُّنِهَا ځکه چې دا شيان [په عقودو کې] نه متعين کيږي فَإِنْ لَمْ تَقْبِضِ الْأَلْفَ او که ښځې پر زرو درهمو قبضه نه وکړه حَتَّى وَهَبَتْهَا لَهُ تر دې چې [بغير له قبضې څخه يې] خاوند ته هبه کړل ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا بيا خاوند هغې ته تر دخول مخکې طلاق ورکړی لَمْ يَرْجِعْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ بِشَيْءٍ نو په دوی کې به يو پر بل د هيڅ شي رجوع نه کوي [يعني په دې صورت کې ښځه او خاوند يو له بل څخه هيڅ شی واپس اخيستلای نه سي] وَفِي الْقِيَاسِ يَرْجِعُ عَلَيْهَا بِنِصْفِ الصَّدَاقِ او د قياس تقاضا دا ده چې خاوند به پر ښځې په نيم مهر سره رجوع کوي [يعني هغه به نيم مهر له ښځې څخه واپس واخلي] وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ سَلِمَ الْمَهْرُ لَهُ بِالْإِبْرَاءِ ځکه چې د ښځې د بري کولو په وجه د خاوند مهر سالم پاته سو فَلَا تَبْرَأُ عَنَا

يَسْتَحِقُّهُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ لهذا ښځه له هغه نيم مهر څخه بري کېداى نه سي چي تر دخول مخکي د طلاق ورکولو په وجه خاوند د هغه مستحق سوى دى وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ وَصَلَ إِلَيْهِ عَيْنُ مَا يَسْتَحِقُّهُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ د استحسان دليل دا دى: چي خاوند ته بعينه [خاص] هغه حق رسېدلى دى چي د طلاق قبل الدخول په خاوند د هغه حقدار وو وَهُوَ بَرَاءَةُ ذِمَّتِهِ عَنْ نِصْفِ الْمَهْرِ او هغه له نيم مهر څخه د هغه د ذمې فارغېدل [دغاړي خلاصېدل] دي وَلَا يُبَالِي بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ عِنْدَ حُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ او پروا به نه کيږي د سبب په اختلاف [بدلون] د مقصد حاصلېدلو په وخت کي.

**اللغات:** ﴿وَهَبَتْ﴾ د فتح د باب ماضي ده: هبه کول، ډالۍ کول، په وړيا توګه ورکول (مفت ورکول)، ﴿يَسْتَوْجِبْ﴾ د استفعال مضارع ده: مستحق کېدل، لازم او ضروري ګڼل. ﴿مَكِيْلًا﴾ کيلي شى (هغه شى چي په پيمانه سره خرڅول کيږي)، ﴿مَوْزُوْن﴾ وزني شى (هغه شى چي په وزن او تول سره خرڅول کيږي)، ﴿إِبْرَاء﴾ د افعال مصدر دى: بري کول، معافول، ﴿لَا يُبَالِي﴾ د مفاعلې له باب څخه د نفي صيغه ده، بَالَى يُبَالِي مُبَالَاةً: پروا کول (پروا لرل).

**تشريح:** په دې عبارت کي د يوې مسئلې دوه صور تونه بيان سوي دي: (۱)... اول صورت دا دى که زيد مثلاً د زر (۱۰۰۰) درهمه مهر په عوض کي د فاطمې سره نکاح وکړه او فاطمې ته زر درهمه ورسېدل (يعني هغې قبضه پر وکړه) او بيا فاطمې بېر ته خپل مهر يعني زره درهمه زيد ته هبه کړل او بيا زيد تر دخول مخکي فاطمې ته طلاق ورکړى، نو اوس به په دې صورت خاوند يعني زيد له ښځي (فاطمې) څخه پنځه سوره (۵۰۰) درهمه نور غواړي.

دليل دا دى چي د زرو درهمو په عوض کي نکاح سوې وه، خو څرنګه چي تر دخول مخکي طلاق واقع سو، نو اوس به خاوند ته فقط د نيم تاکل سوي مهر (يعني د ۵۰۰ درهمو) د ادواپس اخيستلو حق وي، ځکه چي د طلاق قبل الدخول په صورت کي ښځه د دې آيت "فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ" له رويه د نيم مهر حقداره کيږي، نو ځکه به په دې صورت کي خاوند له ښځي څخه نيم مهر واپس اخلي. او پاته سوه د زرو درهمو هبه کول، نو د مهر سره د هغه هيڅ تعلق نسته. لهذا د خاوند نيم مهر به له هغه څخه نه شمارل کيږي. ځکه که څه هم ښځي خاص هغه دراهم خاوند ته ورکړي دي. لېکن د عقد په کولو او د عقد په فسخ کولو کي درهم او دينار په متعېنولو سره نه متعېن کيږي، لهذا دا به نه ويل کيږي چي خاص هغه دراهم يې خاوند ته هبه کړي دي (ځکه چي هبه هم يو

عقد دی)، بلکي دا به ويل کيږي چي ښځي خپل له ځانه عليحده زر درهمه خاوند ته ور کړي دي، لهذا کله چي يې خاص هغه زر درهمه نه دي ور کړي، نو خاوند ته هغه نيم مهر نه دي رسېدلی د کوم نيم مهر چي هغه حقدار سو (په قبل الدخول طلاق ور کولو سره)، نو ځکه به خاوند له ښځي څخه پنځه سوه (٥٠٠) درهمه واپس اخلي.

وکذا أذا کان إلخ: د دې حاصل دا دی چي که له درهمو څخه بغير يو کَيلی شی مثلاً غنم، وريجې يا داسي بل شی په مهر کي ټاکل سوي وي، يا وزني شی مثلاً اوسپنه او داسي نور په مهر کي ټاکل سوي وي، او پورتنی صورت مينځ ته راسي، نو په هغه صورت کي به خاوند له ښځي څخه نيم ټاکل سوی شی اخلي، ځکه څرنګه چي درهم او دينار په متعينولو سره نه متعين کيږي، همدارنګه کيلي او وزني شی هم په متعينو لو سره پر ذمه نه متعين کيږي، لهذا کوم حکم چي د درهم او دينار په صورت کي جاري کيږي، هغه حکم به په دې صورت کي هم جاري کيږي، او له هبې څخه بغير به خاوند نور نيم ټاکل سوی شی له ښځي څخه واپس اخلي.

(٢)... د مسئلې دويم صورت دا دی چي که ښځي [فاطمې] پر ټاکل سوي مهر يعني پر زرو (١٠٠٠) درهمه قبضه نه وکړه، او بغير له قبضې څخه يې مهر خاوند [زيد] ته هبه کړی، بيا خاوند [زيد] هغې ته قبل الدخول طلاق ور کړی، نو څه حکم دی؟

فرمايي چي په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبينو مسلک دا دی چي خاوند او ښځه يو له بل څخه خلاص دي، او يوه ته هم له بل څخه د هيڅ شي د اخيستلو حق نسته، همدا د استحسان تقاضا ده، لېکن د قياس تقاضا دا ده چي په دې صورت کي به هم خاوند له ښځي څخه نيم ټاکل سوی مهر اخلي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک هم دی، د قياس او د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي ښځي خاوند له مهر څخه بري کړی (يعني بغير له قبضې څخه يې مهر "١٠٠٠ درهمه" هغه ته هبه کړل نو ګواکي هغه يې معاف کړی)، لهذا دا داسي سو لکه له خپل ځانه چي يې عليحده زر درهمه خاوند ته هبه کړي وي، لهذا دغه زر درهمه له هغه نيم مهر (يعني ٥٠٠ درهمو) څخه جلا دي کوم چي يې خاوند د طلاق قبل الدخول په وجه مستحق سو، نو ځکه به (د قياس له رويه) په دې صورت کي له ښځي څخه نيم مهر واپس اخيستل کيږي.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا دی چي د طلاق قبل الدخول په وجه چي خاوند د کوم نيم مهر مستحق دی، د ښځي په بري کولو سره هغه مهر خاوند ته ورسېدی، يعني کله چي ښځي له قبضه کولو څخه بغير خاوند له ټوله مهر څخه بري کړی، نو د بري کولو په وجه په دې مهر کي هغه نيم مهر هم راغلی کوم چي د طلاق قبل الدخول په وجه خاوند د هغه مستحق وو (ځکه د ښځي په

بري کولو سره خاوند له ټوله مهر څخه بري سو، لهذا له دغه نيم مهر څخه خو به په طريقه اولىٰ بري وي)؛ او که څوک اعتراض وکړي چې خاوند خو د طلاق قبل الدخول په سبب سره د دغه نيم مهر مستحق سوی وو لېکن ور ته حاصل سو په بل سبب سره يعني د ښځي د بري کولو په سبب سره، لهذا کله چې سبب بدل سو نو د خاوند حق (نيم مهر) باقي پاتېدل پکار دي (او له ښځي څخه واپس اخيستل پکار دي)؟، د دې په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي "ولا يبالي باختلاف السبب..." يعني د مقصود د حصول په وخت کي به د سبب په اختلاف او بدلون هيڅ پروا نه کيږي، نو دلته هم مقصود خاوند ته د نيم مهر رسېدل دي او د ښځي غاړي خلاصېدل دي لهذا که دغه مقصود په هر سبب سره حاصل سي په هغه به پروا نه کيږي، بلکي نظر او توجه به مقصود ته وي (او دا مقصود د ښځي په بري کولو سره حاصل سو، ځکه چي د ښځي په بري کولو سره نيم مهر نه، بلکي ټوله مهر خاوند ته ورسېدی، لهذا اوس د اعتراض هيڅ ضرورت نسته).

او دا مسئله بالکل داسي ده لکه پر خالد چي د زيد سل (۱۰۰) روپۍ قرض باندي وي، بيا زيد له خالد څخه دوه سوه (۲۰۰) روپۍ قرض کړي (نو اول خالد ۱۰۰ روپۍ د زيد قرضداره وو، لېکن اوس بيا زيد د خالد ۲۰۰ روپۍ قرضداره سو)، نو اوس زيد داسي هم کولای سي چي خالد ته دوه سوه روپۍ ورکړي او خپل پخوانی قرض يعني سل روپۍ جلا ځني واخلي، او داسي هم کولای سي چي فقط سل روپۍ ورکړي او سل روپۍ خپل پخوانی قرض شمار کړي، دا دواړه صورتونه سره برابر دي که په هر صورت سره زيد ته خپل پخوانی قرض ورسيږي هغه به صحيح وي او په دې باره کي به هيڅ جنجال او اعتراض نه کيږي، لهذا کله چي کار جوړيږي نو په سبب به هيڅ پروا نه کيږي، او خاوند بايد دا هم په ياد ولري چي د زياتو حرص کول په ګټه نه پرېوځي!.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْ قَبَضَتْ خَمْسَمِائَةٍ او که ښځي پر پنځه سوه [درهمو] قبضه وکړه ثُمَّ وَهَبَتِ الْأَلْفَ كُلَّهَا الْمَقْبُوضَ وَغَيْرَهُ بيا يې قبضه کړي او نا قبضه کړي ټوله زر درهمه [خاوند ته] هبه کړل أَوْ وَهَبَتِ الْبَاقِيَ يا يې پاته [پنځه سوه درهم] هبه کړل ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا بيا خاوند هغې ته تر دخول مخکي طلاق ورکړی لَمْ يَرْجِعْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا عَلَىٰ صَاحِبِهِ بِشَيْءٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو په دوی [خاونده او ښځه] کي يو هم

---

❁ القول الراجح: قول أبى حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر فى البحر الرائق (ج:۳، ص:۲۷۷)، وكذا فى الهندية (ج:۱، ص:۳۱۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷۴]

پر خپل ملکري د هيڅ شي رجوع نه سي کولای د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا: رَجَعَ عَلَيْهَا بِنِصْفِ مَا قَبَضَتْ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي خاوند به پر ښځي د قبضه کړی سوو [درهمو] په نصف سره رجوع کوي اعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ پر کُل باندي د بعض په قياسولو سره وَلِأَنَّ هِبَةَ الْبَعْضِ حَطٌّ او ځکه چي د بعضو [درهمو] هبه کول کمول دي فَيَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ نو ځکه به د أصل عقد سره لاحقيږي [يو ځای کيږي] وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ مَقْصُوْدَ الزَّوْجِ قَدْ حَصَلَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د خاوند مقصد حاصل سو وَهُوَ سَلَامَةُ نِصْفِ الصَّدَاقِ بِلَا عِوَضٍ او هغه بېله عوضه د نيم مهر سالم پاتېدل دي [يعني هغه ته د نيم مهر رسېدل دی] فَلَا يَسْتَوْجِبُ الرُّجُوْعَ عِنْدَ الطَّلَاقِ لهذا د طلاق په وخت کي به هغه د رجوع [بالنصف] حقدار نه وي وَالْحَطُّ لَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ فِي النِّكَاحِ او [مهر] کمول په نکاح کي د أصل عقد سره نه لاحقيږي أَلَا تَرٰى أَنَّ الزِّيَادَةَ فِيهِ لَا تَلْتَحِقُ آيا ته نه ګوري! چي په نکاح کي [د مهر] زياتوب [هم] د أصل عقد سره نه لاحقيږي حَتّٰى لَا تَتَنَصَّفُ همدا وجه ده چي د زياتوب تنصيف نه کيږي [يعني همدا وجه ده چي په زيات کړی سوي مهر کي نيموالی نه جاري کيږي].

**اللغات:** ﴿حَطّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: کمول (ساقطول)، پرېښوول. ﴿صَدَاق﴾ او الصِّدَاق: مهر، جمع: أَصْدِقَة. ﴿لَا يَسْتَوْجِب﴾ د استفعال مضارع ده: مستحق کېدل، لازم او ضروري ګڼل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د مهر هبه کولو يو بل صورت بيانوي، حاصل يې دا دی که زيد د فاطمې سره د زرو درهمو په عوض کي نکاح وکړه، او فاطمې پر پنځو سوو درهمه قبضه وکړه او هغه بيرته يې زيد ته هبه کړل، او پاته غيرِ مقبوضه پنځه سوه دراهم (يعني کوم چي تر اوسه زيد ور کړي نه وه او فاطمې قبضه پر کړې نه وه هغه پنځه سوه درهم) يې هم زيد ته هبه کړل يعني ټوله زر درهمه يې زيد ته هبه کړل، يا يې صرف قبضه سوي درهم ور ته هبه کړل، بيا تر دخول مخکي زيد فاطمې ته طلاق ورکړی، نو اوس په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د خاوند او ښځي حق يو له بل ځخه ختم سو، او يوه ته هم له بل ځخه د هيڅ شي د اخيستلو حق نسته.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دې صورت کي خاوند له ښځي ځخه د مقبوضه دراهمو د نصف يعني د دوه نيم سوو (۲۵۰) درهمو د اخيستلو مستحق دی.

**د صاحبينو دليل**: قياس دی، يعني پر تېره مسئله قياس کوي، هغه دا چي کله ښځه پر ټولو زرو درهمو قبضه وکړي او بيا يې خاوند ته هبه کړي، نو څرنګه چي په هغه صورت کي خاوند ته له ښځي څخه د نصف يعني د پنځو سوو (۵۰۰) درهمو د اخيستلو حق سته، همدارنګه کله چي ښځه د زرو پر نصف (يعني پر پنځو سوو) قبضه وکړي او هغه بيا خاوند ته هبه کړي، نو دلته به هم خاوند ته د مقبوضه پنځوو سوو د نصف يعني د دوه نيم سوو (۲۵۰) د اخيستلو حق وي.

**ولأن إلخ**: په دې سره د صاحبينو دويم دليل بيانوي، حاصل يې دا دی چي کله ښځي له زرو درهمو څخه پنځه سوه غيرِ مقبوضه دراهم هبه کړل، نو دا به داسي ګڼل کيږي چي له أصل مهر څخه يې پنځه سوه دراهم کم کړل او ټوله مهر پنځه سوه درهمه پاته سو (يعني د غيرِ مقبوضه دراهمو هبه کول د ښځي له طرفه "حَطّ" يعني کمول دي)، او "حَط" د أصل عقد سره لاحقيږي، نو ګواکي خاوند له شروع څخه پر مقبوضه پنځه سوو دراهمو نکاح کړې ده، يعني ټوله مهر همدا پنځه سوه درهم دي، او دلته طلاق قبل الدخول په وجه ښځه د نيم مهر يعني د دوه نيم سوو حقداره ده، نو ځکه به خاوند له هغې څخه دوه نيمه سوه (۲۵۰) درهم واپس اخلي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د خاوند مقصود او مطلوب دا دی چي بېله عوضه هغه ته نيم مهر صحيح سالم حاصل سي، او دلته د هبې په ذريعه تر طلاق مخکي د هغه مقصود حاصل سوی دی، نو ځکه به تر طلاق وروسته هغه ته هيڅ شی نه ورکول کيږي، او د دې مثال بالکل داسي دی لکه زيد چي له خالد څخه د يوې مياشتي لپاره سل (۱۰۰) روپۍ په قرض واخلي، نو که زيد تر يوې مياشتي مخکي د خالد قرض اداء کړي، نو ښکاره خبره ده چي تر يوې مياشتي وروسته خالد ته بيا د قرض غوښتلو حق نسته، ځکه چي د خالد مقصود يعني قرض اخيستل تر ټاکلي مودت (يوې مياشتي) مخکي حاصل سو، نو همدارنګه په پورتنۍ مسئله کي هم تر طلاق مخکي د خاوند مقصود حاصل سوی دی. لهذا تر طلاق وروسته بيا هغه د مطالبې کولو هيڅ حق نسته.

**والحط إلخ**: په دې سره د صاحبينو د دليل جواب ورکوي، هغو ويل چي "حَطّ" يعني "په مهر کي کمي کول" به د أصل عقد سره لاحقيږي، نو د دې په جواب کي فرمايي چي که تر نکاح وروسته په مهر کي کمي يا زياتوب وسي نو هغه د أصل عقد سره نه لاحقيږي، همدا وجه ده که تر دخول مخکي طلاق واقع سي، نو د نکاح په وخت کي چي کوم مهر ټاکل سوی وي د هغه نصف (نيم) پر خاوند لازميږي، او وروسته چي کوم مهر زيات کړل سي د هغه نصف نه پر لازميږي. مثلاً که د نکاح په وخت کي زر درهمه مهر وټاکل سو، او تر نکاح وروسته بيا خاوند دوه سوه درهمه نور پر زيات کړل (چي ټوله مهر ۱۲۰۰ درهمه سو)، او بيا تر دخول مخکي طلاق واقع سو. نو فقط د دې زرو درهمو

نصف پر لازمیږي، او وروسته چې یې کوم دوه سوه درهمه زیات کړي وو دهغو نصف یعني سل درهمه نه پر لازمیږي، ځکه چې وروستنی زیاتوب او کمې د اصل مهر سره نه لاحقیږي. نو همدارنګه دلته چې ښځې په هبه کولو سره کوم پنځه سوه دراهم کم کړي دي هغه به د اصل عقد سره نه لاحقیږي او خاوند ته به د هغه پنځو سوو د نصف اخیستلو حق نه وي.

## په پورتنۍ مسئله کې د احنافو اختلاف

وَلَوْ كَانَتْ وَهَبَتْ أَقَلَّ مِنَ النِّصْفِ او که ښځې تر نیم کم مهر [خاوند ته] هبه کړی وَقَبَضَتِ الْبَاقِيَ او پر پاته [مهر] یې قبضه وکړه فَعِنْدَهُ يَرْجِعُ عَلَيْهَا إِلَى تَمَامِ النِّصْفِ ❁ نو د امام صاحب په نیز به خاوند پر ښځې د نیم مهر تر پوره کېدلو پورې رجوع کوي وَعِنْدَهُمَا بِنِصْفِ الْمَقْبُوضِ او د صاحبینو په نیز به د قبضه کړی سوي [مهر] په نصف سره رجوع کوي وَلَوْ كَانَ تَزَوَّجَهَا عَلَى عَرَضٍ او که [یو سړي] د ښځې سره د یو سامان په عوض کې نکاح وکړه فَقَبَضَتْ أَوْ لَمْ تَقْبِضْ او ښځې پر [سامان] قبضه وکړه یا یې قبضه نه پر وکړه فَوَهَبَتْ لَهُ بیا یې هغه [سامان] خاوند ته هبه کړی ثُمَّ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا بیا خاوند هغې ته تر دخول مخکې طلاق ورکړی لَمْ يَرْجِعْ عَلَيْهَا بِشَيْءٍ نو [اوس] خاوند پر هغې په هیڅ شي سره رجوع نه سي کولای وَفِي الْقِيَاسِ وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ: يَرْجِعُ عَلَيْهَا بِنِصْفِ قِيمَتِهِ او په قیاس کې دي او همدا قول د امام زفر رَحِمَهُ الله دی: چې خاوند به پر هغې د سامان په نیم قیمت سره رجوع کوي لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ رَدُّ نِصْفِ عَيْنِ الْمَهْرِ ځکه چې په دې صورت کې د عین مهر نصف واپس کول واجب دي عَلَى مَا مَرَّ تَقْرِيرُهُ لکه مخکې چې د دې بحث تېر سو وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّ حَقَّهُ عِنْدَ الطَّلَاقِ سَلَامَةُ نِصْفِ الْمَقْبُوضِ مِنْ جِهَتِهَا د استحسان دلیل دا دی: چې د خاوند حق د طلاق ور کولو په وخت کې د ښځې له طرفه د قبضه کړی سوي [شي] نصف سالم پاتېدل دي وَقَدْ وَصَلَ إِلَيْهِ او دغه نصف خاوند ته رسېدلی دی وَلِهَذَا لَمْ يَكُنْ لَهَا دَفْعُ شَيْءٍ آخَرَ مَكَانَهُ له همدې کبله ښځې ته د قبضه کړی سوي [شي] پر ځای د بل شي د ور کولو اختیار نسته [یعني همدا وجه ده چې د ښځې لپاره دا

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۷۴)، وكذا فـي الهندية (ج:۱، ص:۳۱۶).
[القول الراجح ج:۱، ص: ۲۷۵]

اختيار نسته چي له مقبوض شي څخه بغير خاوند ته بل شی ورکړي] بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْمَهْرُ دَيْنًا په خلاف د هغه صورت کله چي کله مهر دَين وي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَتْ مِنْ زَوْجِهَا او په خلاف د هغه صورت کله چي ښځه هغه [سامان] پر خپل خاوند خرڅ کړي لِأَنَّهُ وَصَلَ إِلَيْهِ بِبَدَلٍ ځکه چي [اوس] هغه خاوند ته د بدل په ذريعه ورسېدی.

**اللغات:** ﴿أَقَلّ﴾ د ضرب د باب اسمِ تفضيل دی: کم، (کمتر)، ﴿عَرَض﴾ سامان، اسباب، جمع: عُرُوْض، ﴿دَيْن﴾ پور، قرض، جمع: قُرُوْض.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... د اولي مسئلې حاصل دا دی چي مثلاً د فاطمې مهر زر (۱۰۰۰) درهمه وو، او فاطمې له هغه څخه پر اووه سوه (۷۰۰) درهمو قبضه وکړل او پاته درې سوه (۳۰۰) درهم يې خاوند ته هبه کړل، بيا خاوند تر دخول مخکي هغې ته طلاق ورکړی، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي خاوند به دومره درهم له فاطمې څخه واپس اخلي چي نيم مهر پوره سي، يعني دوه سوه (۲۰۰) درهم به خاوند له هغې څخه واپس اخلي، او صاحبين فرمايي چي د مقبوضه دراهمو نصف (يعني درې نيم سوه ۳۵۰ درهم) به واپس ځني اخلي. د صاحبينو دليل مخکي تېر سو چي هبه "حط" دی او هغه به د أصل عقد سره يو ځای کيږي، نو ښځي چي کله درې سوه درهم هبه کړل، نو ګواکي له أصل مهر (زر درهمو) څخه يې درې سوه درهم کم کړل او أصل مهر ۷۰۰ پاته سو، او ښځي هم پر ۷۰۰ قبضه وکړه نو ګواکي پر ټوله مهر يې قبضه وکړه، او د دخول قبل الطلاق په صورت کي ښځه د نيم مهر مستحق کيږي او نور به خاوند ته ورکول کيږي، نو ځکه به په دې صورت کي (۳۵۰) د هغې حق وي او (۳۵۰) به خاوند له هغې څخه واپس اخلي.

د امام صاحب دليل دا دی چي د طلاق قبل الدخول په صورت کي خاوند ته نصف يعني نيم مهر رسېدل پکار دي، هغه که په هره ذريعه سره وي، يعني که د هبې په ذريعه سره وي او که د رجوع يعني د واپس اخيستلو په ذريعه سره وي، او دلته ښځي تر نصف کم يعني درې سوه درهم خاوند ته د هبې په ذريعه ورکړي دي نو پاته دوه سوه درهم به د رجوع په ذريعه ځني اخلي، چي نصف بشپړ سي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که زيد د زينب سره نکاح وکړه او په مهر کي يې سامان يا داسی بل شی وټاکی چي په متعينولو (ټاکلو) سره متعين کيږي، او زينب تر قبضه کولو مخکي يا وروسته هغه سامان زيد ته هبه کړی، بيا زيد هغې ته تر دخول مخکي طلاق ورکړی، نو په دې صورت کي زيد

استحساناً پر زينب د هيڅ شي رجوع نه سي کولای، يعني استحسانا هيڅ شی واپس نه سي ځني اخيستلای.

خو د قياس له رويه دلته هم د زيد لپاره د دغه سامان د نيم قيمت اخيستلو حق ستته. او همدا امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دی، د هغه دليل دا دی چي د طلاق قبل الدخول په وجه خاوند د نيم تاکل سوي مهر د واپس اخيستلو مستحق دی، او په هبه کي د هغه د نيم مهر حق داخل نه دی، ځکه چي د هبې مطلب دا دی چي ښځه له مهر څخه جلا خپل له ځانه يو شی ورکوي، نو د خاوند د نيم مهر (سامان) حق هغسي پاته سو (خو څرنګه چي ښځه د نيم سامان پر ورکولو قدرت نه لري)، نو ځکه به د سامان نيم قيمت خاوند ته واپس ورکوي.

**وجه الاستحسان الخ:** د استحسان دليل دا دی چي د طلاق قبل الدخول په وخت کي د خاوند حق دا دی چي پر څومره شي (سامان) چي ښځي قبضه کړې ده، د ښځي له طرفه د هغه نصف خاوند ته ورسيږي (يعني نصف مقبوض خاوند ته ورسيږي)، او خاوند ته د هبې په ذريعه تر طلاق مخکي تو له مهر رسېدلی دی نصف خو هلته پر پرېږده! نو کله چي تر طلاق مخکي د خاوند مقصد حاصل سوی دی، نو اوس تر طلاق وروسته د هغه لپاره د هيڅ شي حق نسته.

**ولهذا لم الخ:** د دې حاصل دا دی چي څرنګه خاوند د طلاق په وخت کي د نصف مقبوض حقدار دی، (يعني پر کوم مهر چي ښځي قبضه کړې وي، د هغه د نصف حقدار دی، برابره ده مهر که سامان وي يا درهم او دينار وي)، نو که مهر سامان وي او هغه موجود وي، نو بيا ښځي ته د سامان پر ځای د بدل شي د نصف ورکولو اختيار نسته، لأن العرض مما يتعين.

**بخلاف الخ:** دلته له دَيْن څخه مراد درهم او دينار دي کوم چي په متعينولو سره نه متعين کيږي، نو که مهر مثلاً زر (۱۰۰۰) درهمه وي او ښځه قبضه پر وکړي او بيا هغه زر درهمه خاوند ته هبه کړي، نو څرنګه چي درهم په متعينولو سره نه متعين کيږي، نو دا به ګڼل کيږي چي ښځي خپل له ځانه نور درهم خاوند ته هبه کړي دي، د خاوند درهم يې نه دي ور ته هبه کړي، نو ځکه به د خاوند لپاره پر نيم مهر د رجوع کولو حق وي چي له ښځي څخه نيم مهر واپس واخلي.

**وبخلاف الخ:** د دې حاصل دا دی چي که ښځه هغه تاکل سوی سامان پر خاوند خرڅ کړي، بيا خاوند هغې ته طلاق قبل الدخول ورکړي، نو په دې صورت کي به خاوند له ښځي څخه د سامان نيم قيمت اخلي، ځکه که څه هم په دې صورت کي خاوند ته خپل هغه شی (سامان) رسېدلی دی. خو هغه له ښځي څخه رانيولی دي (يعني د رانيولو په ذريعه ور ته رسېدلی دی)، حال دا چي دلته د تاکل سوي

مهر (سامان) نصف بېله عوضه مفت خاوند تـه رسېدل پکار دي، ځکه چې د طلاق قبل الدخول په وخت کې خاوند د نيم مهر مستحق کېږي، نو ځکه به خاوند د دغه مهر (سامان) نيم قيمت واپس ځني اخلي.

## په پورتنۍ مسئله کې د احنافو د اختلاف يو بل صورت

وَلَوْتَزَوَّجَهَاعَلٰى حَيَوَانٍ او که [يو سړي] د يو ښځې سره د حيوان په عوض کې نکاح وکړه أَوْعُرُوْضٍ فِي الذِّمَّةِ يا يې پر [اخپله] ذمه د ثابت سوي سامان په عوض کې نکاح [ور سره] وکړه فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ نو [په دې صورت کې] هم دغه حکم دی [چې خاوند به پر ښځې د هيڅ شي رجوع نه کوي، يعني په دې صورت کې خاوند له ښځې څخه هيڅ شی واپس نه سي اخيستلای] لِأَنَّ الْمَقْبُوْضَ مُتَعَيَّنٌ فِي الرَّدِّ ځکه کوم شی چې يې قبضه کړی دی هغه په رد [واپس کولو] کې متعين دی وَهٰذَا لِأَنَّ الْجَهَالَةَ تُحُمِّلَتْ فِي النِّكَاحِ او دا ځکه چې په نکاح کې [معمولي] جهالت زغمل کېږي [برداشت کېږي] فَإِذَا عُيِّنَ يَصِيْرُكَأَنَّ التَّسْمِيَةَ وَقَعَتْ عَلَيْهِ نو کله چې [د ورکولو په وخت کې] قبضه کړی سوی شی متعين سو نو داسې سو لکه پر هغه چې تسميه واقع سوه [يعني ګواکې دغه مقبوض شی په مهر کې ټاکل سوی وو].

**اللغات**: ﴿حَيَوَان﴾ څاروی، ﴿عُرُوْض﴾ جمع د عَرَضٌ ده: سامان (غيرِ نقود)، ﴿تُحُمِّلَتْ﴾ د تفعّل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: برداشت کول، زغمل، ﴿عَيَّن﴾ د تفعيل ماضي ده: متعين کول (معلومول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زيد د ظريفې سره نکاح وکړه او يو حيوان (مثلاً آس، اوښ يا داسې بل حيوان) يې مهر جوړ کړی، يا يې يوه جامه (کپړه) مهر جوړ کړی او پر خپل ځان يې دا مهر واجب کړي (مطلب دا چې ټاکلی او متعيّن حيوان يا جامه مهر جوړ نه کړی، يعني د نکاح په وخت کې متعين حيوان يا جامه موجوده نه وه بلکې زيد وويل چې زه به په مهر کې آس يا اوښ او داسې نور درکوم، يا زه به په مهر کې مثلاً بخمل جامه درکوم) ، او ظريفې دغه ټاکل سوی شی (تر قبضه کولو مخکې يا وروسته) خاوند تـه هبه کړی، بيا زيد ظريفې تـه قبل الدخول طلاق ورکړی، نو په دې صورت کې هم زموږ په نېز خاوند (زيد) له ښځې (ظريفې) څخه هيڅ شی واپس نه سي اخيستلای. او نکاح يې صحيح ده.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په مهر کې د حيوان يا سامان ټاکل بالکل صحيح نه دي او په داسې صورت کې هغه مهرِ واجبوي، او په دې باره کې له امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله څخه دوه روايتونه

دي: ① نکاح صحيح ده او خاوند ته د رجوع حق سته، ② د ټاکل سوي شي د جهالت په وجه نکاح بالکل فاسده ده.

لنډه دا چي زموږ په نېز په پورتني صورت کي نکاح صحيح ده او پر خاوند د مينځوی درجې حيوان يا د مينځوی درجې جامه واجب ده. او کله چي ښځي (ظريفې) دغه شی (حيوان يا جامه) قبضه کړی او هغه يې بيرته خاوند ته هبه کړی، نو خاوند ته عينِ مقبوض حاصل سو (يعني هغه ته خپل شی ور ورسېدی پر کوم چي ښځي قبضه کړې وه)، نو ځکه به هغه ته (تر طلاق وروسته) له ښځي څخه د هيڅ شي د واپس اخيستلو حق نه وي (ځکه چي تر طلاق مخکي خپل مقصود هغه ته ورسېدی)، او که ښځي دغه شی قبضه نه کړی بلکي بغير له قبضې څخه يې خاوند ته هبه کړی، نو په دې صورت کي هم خاوند ته خپل شی ورسېدی، ځکه خاوند چي په ذهن کي کوم شی (يعني کوم حيوان يا جامه) ښځي ته په مهر کي ورکوي، ښځي خاص هغه شی خاوند ته هبه کړی، نو ځکه به په دې صورت کي هم خاوند ته د هيڅ شي د اخيستلو حق نه وي.

**وهٰذا لأن الجهالة إلخ:** فرمايي چي په پورتني صورت کي (يعني کله چي د نکاح په وخت کي حيوان يا سامان متعين نه کړی سي، نو په دې صورت کي) په دې وجه نکاح صحيح کيږي چي د نکاح په باب کي جهالت برداشت کېدای سي (زغمل کېدای سي)، لېکن په بيع کي نه سي برداشت کېدای، يعني که په بيع کي حيوان نه وټاکل سي (يعني متعين او معلوم نه کړی سي)، نو بيع نه صحيح کيږي، لېکن په نکاح کي داسي کول صحيح دي ځکه چي په نکاح کي لږ غوندي جهالت زغمل کېدای سي. او په کوم وخت کي چي خاوند دا حيوان يا سامان ښځي ته ورکوي نو په هغه وخت کي حيوان يا سامان متعين کيږي او دا به ويل کيږي چي همدغه حيوان يا سامان په مهر کي ټاکل سوي او متعين سوي وو، لهذا کله چي د ورکولو په وخت کي حيوان يا سامان متعين سو او بيرته خاوند ته د هبې په ذريعه ورکړی سو، نو اوس به خاوند ته له ښځي څخه نور د هيڅ شي د اخيستلو حق نه وي.

## د مهر سره د يو شرط لګولو بحث

وَإِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى أَلْفٍ عَلَى أَنْ لَا يُخْرِجَهَا مِنَ الْبَلْدَةِ او که [يو چا] د ښځي سره نکاح وکړه د زرو درهمو په عوض کي پر دې شرط چي هغه به دا ښځه له ښار څخه دباندي نه باسي أَوْ عَلَى أَنْ لَا يَتَزَوَّجَ عَلَيْهَا أُخْرَى يا پر دې شرط چي پر هغې به بله ښځه نه په نکاح کوي فَإِنْ وَفَّى بِالشَّرْطِ فَلَهَا الْمُسَمَّى نو که خاوند شرط پوره کړي نو بيا به د ښځي لپاره ټاکل سوی مهر وي لِأَنَّهُ صَلُحَ مَهْرًا ځکه چي [په دې صورت کي] هغه ټاکل سوی مهر د مهر [جوړېدلو] صلاحيت لري وَقَدْ تَمَّ رِضَاهَا بِهِ او په هغه د

ښځي رضامندي [خوښي] هم پوره سوې وه [یعني په هغه ټاکل سوي مهر ښځه هم راضي وه] وَإِنْ تَزَوَّجَ عَلَيْهَا أُخْرَى أَوْ أَخْرَجَهَا [خو] که خاوند پر هغې بله ښځه په نکاح کړه یا یې هغه اله ښار څخه بهر [ویستله فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو د هغې لپاره به مهرِ مثل وي لِأَنَّهُ سَمّٰى مَا لَهَا فِيهِ نَفْعٌ ځکه چي خاوند دومره اندازه مهر ټاکلی وو چي په هغه کي د ښځي فایده وه فَعِنْدَ فَوَاتِهِ يَنْعَدِمُ رِضَاهَا بِالْأَلْفِ نو د فایدې په فوتېدلو سره به پر زرو درهمو د ښځي رضامندي هم ختمیږي فَيُكَمَّلُ مَهْرُ مِثْلِهَا نو د هغې مهرِ مثل به پوره کیږي كَمَا فِي تَسْمِيَةِ الْكَرَامَةِ وَالْهَدِيَّةِ مَعَ الْأَلْفِ لکه [په مهر کي] د زرو درهمو سره د عزت [احترام] او تحفه ورکولو یادونه کول [یعني لکه د مهر سره د عزت او سوغات ورکولو شرط هم لګول].

**اللغات:** ﴿كَرَامَة﴾ د کرُم د باب اسمِ مصدر دی: عزت، احترام (إعزاز او تکریم).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید د زینب سره نکاح وکړه او د هغې مهر یې زر درهمه وټاکی. او دا شرط یې هم ولګوی چي تا (زینب) به له ښار څخه بهر نه باسم یا پر تا به بله ښځه نه کوم، نو دا نکاح صحیح ده، که څه هم له ښار څخه نه ایستل یا بل واده نه کول فاسد شرط دی، ځکه چي دا له مشروع او روا کار څخه منع کېدل دي، خو بیا هم دا نکاح صحیح ده، ځکه چي مخکي تاسو وویل چي نکاح په شروط فاسده وو سره نه فاسدیږي، نو ځکه به دغه نکاح صحیح وي.

اوس که خاوند (زید) خپل شرط پوره کړی (یعني په ټوله ژوند کي یې زینب بهر نه ویستله یا یې پر هغې بله ښځه نه وکړه)، نو هغې (زینب) ته به مهرِ مسمیٰ (یعني ټاکل سوی مهر کوم چي زر درهمه وو) ورکول کیږي، برابره ده دغه مهر مسمیٰ د هغې له مهرِ مثل څخه کم وي او که زیات وي؛ دلیل دا دی چي خاوند (زید) یو داسي شی او داسي اندزه (زر درهمه) مهر ټاکلی دی چي په هغه کي د مهر جوړېدلو صلاحیت (وړتیا) سته. او ښځي (زینب) هم هغه قبول کړی دی او په هغه راضي سوې ده، نو اوس به هغه مقدار د هغې (زینب) لپاره مهر وي، هغه که تر مهرِ مثل کم وي او که زیات وي.

**وإن تزوج عليها إلخ:** او که خاوند (زید) شرط پوره نه کړی او ښځه (زینب) یې له ښار څخه بهر ویستله یا یې پر هغې بل واده وکړی، نو اوس به دې ته کتل کیږي چي د ښځي مهرِ مثل د هغې له مهرِ مسمیٰ (ټاکلي مهر) څخه کم دی که زیات دی او که ور سره برابر دی، که یې مهرِ مثل زیات وو تر مهرِ مهرِ مسمی (یعني تر زرو درهمو)، نو د هغې لپاره به مهرِ مثل وي (یعني خاوند به تر ټاکلي مهر زیات نور دراهم هم ورکوي چي د ښځي مهرِ مثل پوره سي)؛ دلیل دا دی چي ښځه فقط د خپلي فایدې لپاره له

مهرِ مثل څخه په کم مهر راضي سوې وه، ځکه پر ښځي بل واده نه کول ښکاره فايده ده چي هغه به د بَنْ له ورځني جنجالونو او جګړو څخه په أمن وي، او پردي (أجنبي) ځای ته نه تلل بلکي په خپل ښار کي مستقيم اوسېدل هم د ښځي لپاره فايده ده، نو د همدغه فايدلو په وجه ښځه په کم مهر راضي سوې وه، لېکن کله چي خاوند شرط پوره نه کړی (او د ښځي دغه فايدې حاصله نه کړه) نو اوس پر مهرِ مسمیٰ (يعني پر زرو درهمو) د ښځي رضامندي فوت سوه، ځکه قاعده دا ده چي "إِذَا فَاتَ الشَّرْطُ فَاتَ الْمَشْرُوْطُ"، نو ځکه به اوس ښځي ته خپل مهرِ مثل ورکول کيږي.

كما في تسمية إلخ: لکه څرنګه چي په هغه صورت کي هم ښځي ته خپل مهرِ مثل ورکول کيږي کله چي خاوند د ښځي سره پر دې شرط په زرو درهمو (مثلاً) نکاح کړې وي چي خاوند به د هغې عزت کوي او سخت کارونه به نه په کوي يا د تاکل سوي مهر باوجود به هغې ته جامه يا بل شی هم په هديه او تحفه کي ورکوي، او بيا خاوند خپل شرط پوره نه کړي، نو که په دې صورت کي د ښځي مهرِ مثل تر زرو درهمو (مهرِ مسمیٰ) زيات وو، نو هغه پر خاوند واجبيږي او ښځي ته به ورکول کيږي، نو همداسي به په پورتني صورت کي که د ښځي مهرِ مثل تر زر درهمه (مهرِ مسمیٰ) زيات وو، نو هغه به ورکول کيږي، لېکن که ور سره برابر وو يا کم وو، نو مهرِ مسمیٰ به ورکول کيږي.

## په مهر کي د مشروط زياتوب بحث

وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلَى أَلْفٍ إِنْ أَقَامَ بِهَا او که [يو چا] د ښځي سره پر زرو درهمو نکاح وکړه په دې شرط که ښځه يې په ښار کي ساتله [او بهر يې له ښار څخه نه بېوله] وَعَلَى أَلْفَيْنِ إِنْ أَخْرَجَهَا او پر دوو زرو درهمو که هغه يې [له ښار څخه] بهر ويستله فَإِنْ أَقَامَ بِهَا نو که خاوند هغه په ښار کي وساتله فَلَهَا الْأَلْفُ نو د هغې لپاره به زر درهمه وي وَإِنْ أَخْرَجَهَا [لېکن] که [له ښار څخه] يې بهر ويستله فَلَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ نو [په دې صورت کي] به د هغې لپاره مهرِمثل وي لَا يُزَادُ عَلَى الْأَلْفَيْنِ وَلَا يُنْقَصُ عَنِ الْأَلْفِ چي هغه به نه پر دوو زرو درهمو زياتول کيږي او نه به پر زرو درهمو کمول کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ۞ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: اَلشَّرْطَانِ جَمِيْعًا جَائِزَانِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۳۷۵)، وكذا في الهندية (ج:۱، ص:۳۰۷). [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۷۶]

فرمايي: چې دواړه شرطونه جائز دي حَتّٰى كَانَ لَهَا الْأَلْفُ إِنْ أَقَامَ بِهَا وَالْأَلْفَانِ إِنْ أَخْرَجَهَا تر دې چې د ښځې لپاره به زر درهمه وي كه خاوند ښځه په ښار كې وساتله او دوه زره [درهمه] به وي كه يې بهر ويستله وَقَالَ زُفَرُ: اَلشَّرْطَانِ جَمِيْعًا فَاسِدَانِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دواړه شرطونه فاسد دي وَيَكُوْنُ لَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا لَا يُنْقَصُ مِنْ أَلْفٍ وَلَا يُزَادُ عَلٰى أَلْفَيْنِ او د هغې لپاره به [په دواړو صورتونو كې] مهرِ مثل وي چې هغه به نه تر زرو كمول كيږي او نه به تر دوو زرو زياتول كيږي وَأَصْلُ الْمَسْأَلَةِ فِي الْإِجَارَاتِ او د دې مسئلې أصل [او دليل] په "كتابُ الاجارات" كې دى فِي قَوْلِهٖ: إِنْ خِطْتَهُ الْيَوْمَ فَلَكَ دِرْهَمٌ وَإِنْ خِطْتَهُ غَدًا فَلَكَ نِصْفُ دِرْهَمٍ كوم چې د مصنف رَحِمَهُ الله په دې قول كې ذكر سوى دى: كه تا نن دا كپړه [جامه] وګنډله [جوړه كړه] نو ستا لپاره به يو [پوره] درهم وي او كه دې سبا وګنډله نو ستا لپاره به نيم درهم وي وَسَنُبَيِّنُهَا فِيْهِ إِنْ شَاءَ اللهُ او دا به انشاء الله موږ په "كتابُ الاجارات" كې بيان كړو.

**اللغات**: ﴿أَقَامَ﴾ د افعال ماضي ده: اقامت كول، په ښار كې اوسېدل، كله چې د دې باب په صله كې يې "باء" راسي، نو متعدي ګرځي او معنىٰ يې راځي: په بل چا اقامت كول، په ښار كې أوسول (استوګن كول)، ﴿خِطْتَ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مذكر مخاطب صيغه ده، خَاطَ يَخِيْطُ خَيْطًا: كالي ګنډل (كالي جوړول)، "خَيَّاط" له همدغه باب څخه دى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه خالد د زينب سره نكاح وكړه او په نكاح كې يې دا خبره شرط كړه چې په دغه ښار كې ستا مهر زر درهمه دى او له ښار څخه دباندې ستا مهر دوه زره درهمه دى (يعني كه ما په دغه ښار كې ته ساتلې نو مهر زر درهمه دركوم او كه له ښار څخه مې وېستلې نو دوه زره درهمه دركوم)، نو په دې مسئله كې دا امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز فقط اول شرط صحيح دى او دويم شرط فاسد دى، نو كه خاوند ښځه په هغه ښار كې ساتله نو پر هغه زر درهمه واجب دي (يعني ښځې ته به زر درهمه وركوي لكه څرنګه چې هغه ويلي وو)، خو كه خاوند ښځه له ښار څخه وېستله نو پر خاوند د ښځې مهرِ مثل واجب دى او هغه د "أَلْفَيْن" شرط فاسد دى، او بايد ستاسي دا خبره په ياد وي چې په دې صورت كې به د ښځې مهرِ مثل به نه تر زرو درهمو كمول كيږي او نه به تر دوو زرو درهمو زياتول كيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې دواړه شرطونه صحيح او جائز دي، نو که خاوند ښځه په هغه ښار کې ساتله، نو پر هغه زر درهمه واجبيږي، او که ښځه يې له ښار څخه وېستله او بل ځای ته يې بوتله، نو بيا پر هغه دوه زره درهمه واجبيږي او ښځې ته به دوه زره درهمه په مهر کې ورکوي.

امام زفرر رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې مسئله کې دواړه شرطونه فاسد دي، او په دواړو صورتونو کې پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي او د دې خبرې خيال به ساتل کيږي چې مهرِ مثل به نه تر زرو درهمو کمول کيږي او نه به تر دوو زرو زياتول کيږي، همدا د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

وأصل المسئلة إلخ: فرمايي چې په دې مسئلې کې د اختلاف بنياد د "كِتَابُ الإِجَارَات" مسئله ده او هغه دا ده که يو چا خياط (درزي) ته وويل چې که تا (مثلاً) نن له دغه کپړو څخه کالي را جوړ کړل نو يو درهم مزدوري درکوم او که دي سبا را جوړ کړل نو دوه درهمه مزدوري درکوم، نو په دې مسئله کې د امام صاحب په نېز اول شرط جائز دی او دويم شرط فاسد دی، او د صاحبينو په نېز دواړه شرطونه جائز دي، او د امام زفر په نېز دواړه شرطونه فاسد دي.

صاحب د هدايې دلته فقط د "كِتَابُ الإِجَارَات" حواله ورکړې ده او د امامانو دليلونه يې نه دي ذکر کړي، خو ستاسو د فايدې په غرض موږ له فتح القدير، بنايه او عنايه څخه په لنډه توګه د دوی دليلونه ذکر کوو:

**د امام زفر دليل:** دا دی چې په دې مسئلې کې خاوند د يوه شي (يعني د يوې بضع) په مقابله کې دوه مختلف شيان (زر او دوه زره) په شرط کې ټاکلي دي، او دا معلومه نه ده چې په دواړو به کې خاوند کوم شرط پوره کړي، نو په دغه ټاکلو (تسميه) کې جهالت راغلی، او په تسميه کې د جهالت راتللو په صورت کې مهرِ مثل واجبيږي، نو دلته به هم په دواړو صورتونو کې مهر مثل واجبيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې په دې مسئله کې دواړه ذکر سوي شرطونه مُقَيّد دي، نو کوم شرط چې هم خاوند پوره کړي، په هغه کې به د ښځې فايده وي، لهذا دواړه شرطونه صحيح دي نو د يوه شرط فاسدولو ته هم ضرورت نسته، او څرنګه به فاسد کړی سي حال دا چې په حديث کې په واضحه توګه دا خبره ذکر سوې ده چې "الْمُسْلِمُوْنَ عِنْدَ شُرُوْطِهِمْ"، يعني د مسلمانانو د خپل مينځ شرطونه معتبر دي او د هغه مطابق به حکم کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې دلته اول شرط په دې وجه صحيح دی چې د اول شرط په وخت کې د هغه سره هيڅ معارض نه وو (او د معارض د نشتوالي په وجه هيڅ جهالت نه وو) نو د نه جهالت په وجه به اول شرط صحيح وي او د هغه اعتبار به کيږي، خو کله چې خاوند دويم شرط هم ذکر کړی، نو

اول شرط د هغه سره معارض سو او په تسمیه کې جهالت پیدا سو. او څرنګه چې دغه جهالت د دویم شرط په وجه پیدا سوی دی، نو د فساد تعلق به هم د دویم شرط سره خاص وي او فقط دویم شرط به فاسد وي، نو څکه مونږ وایو چې په دویم شرط کې به مهرِ مثل واجب وي او په اول شرط کې به مهر مسمیٰ (ټاکل سوی مهر) واجب وي.

## په دوو (مختلف القیمة) غلامانو کې نامعلوم غلام په مهر کې ټاکل (حکم او اختلاف)

وَلَوْتَزَوَّجَهَا عَلٰى هٰذَا الْعَبْدِ أَوْ عَلٰى هٰذَا الْعَبْدِ او که [یو سړي] د ښځې سره پر دې غلام یا پر دې غلام نکاح وکړه فَإِذَا أَحَدُهُمَا أَوْكَسُ خو په هغوی کې یو غلام د ادنیٰ [الاندې] درجې وو [یعني قیمت یې کم وو] وَالْاٰخَرُ أَرْفَعُ او بل د اعلیٰ [اوچت] درجې وو فَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَقَلَّ مِنْ أَوْكَسِهِمَا نو که د ښځې مهرِ مثل په دې دواړو غلامانو کې له ادنیٰ درجې غلام څخه [هم] کم وو فَلَهَا الْأَوْكَسُ نو د هغې لپاره به د ادنیٰ درجې غلام وي [یعني هغې ته به خاوند ادنیٰ غلام په مهر کې ورکوي] وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ أَرْفَعِهِمَا او که [د ښځې مهرِ مثل] په دوی کې له اعلیٰ درجې غلام څخه زیات وو فَلَهَا الْأَرْفَعُ نو د هغې لپاره به د اعلیٰ درجې غلام وي وَإِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا او که [د ښځې مهرِ مثل] د اعلیٰ او ادنیٰ غلام په مینځ کې وو فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو [په دې صورت کې] به د هغې لپاره مهرِ مثل وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ✿ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی وَقَالَا: لَهَا الْأَوْكَسُ فِيْ ذٰلِكَ كُلِّهِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې په دې ټولو صورتونو کې به د ښځې لپاره د ادنیٰ درجې غلام وي فَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا او که خاوند تر دخول مخکې ښځې ته طلاق ورکړی فَلَهَا نِصْفُ الْأَوْكَسِ فِيْ ذٰلِكَ كُلِّهِ بِالْإِجْمَاعِ نو د هغې لپاره به په دغه ټولو صورتونو کې د ادنیٰ غلام نصف [یعني نیم قیمت] وي لَهُمَا: أَنَّ الْمَصِيْرَ إِلٰى مَهْرِ الْمِثْلِ لِتَعَذُّرِ إِيْجَابِ الْمُسَمّٰى د صاحبینو دلیل دا دی: چې د مهرِ مثل وطرف ته رجوع د ټاکل سوي مهر د ایجاب [واجبولو] د ناممکنوالي په وجه کیږي [یعني مهرِ مثل ته هغه وخت رجوع کیږي کله چې د مهرِ مسمیٰ واجبول او په هغه عمل کول ناممکن وي] وَقَدْ أَمْكَنَ إِيْجَابُ الْأَوْكَسِ

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۷۶)، وكذا في الخانية (ج:۱، ص:۱۷۴).
[القول الراجح ج:۱، ص:۲۷۸]

او [دلته] د ادنیٰ درجې غلام واجبول ممکن دي إِذِ الْأَقَلُّ مُتَيَقَّنٌ ځکه چي کم يقيني وي انو د کمي درجې والا غلام متيقن دی] فَصَارَ كَالْخُلْعِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ نو دا د خلع او د مال په بدله کي د آزادولو په شير سو وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْمُوجِبَ الْأَصْلِيَّ مَهْرُ الْمِثْلِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي اصلي موجب [واجبېدونکی] مهرِ مثل دی إِذْ هُوَ الْأَعْدَلُ ځکه چي هغه د انصاف مهر دی [ځه کمي يا زياتوب نه پکښي کيږي ځکه چي په هغه کي د ښځي د خاندان هَمْ مثله ښځو ته کتل کيږي او د هغوی د مهر مطابق مهرِ مثل ټاکل کيږي] وَالْعُدُولُ عَنْهُ عِنْدَ صِحَّةِ التَّسْمِيَةِ او له مهرِ مثل څخه عدول کول [فقط] د تسميې [ټاکلو] د صحيح والي په وخت کي کيږي وَقَدْ فَسَدَتْ لِمَكَانِ الْجَهَالَةِ او [په دې مسئله کي] د جهالت په وجه تسميه فاسده سوه [انو ځکه به مهرِ مثل واجبيږي] بِخِلَافِ الْخُلْعِ وَالْإِعْتَاقِ عَلَى مَالٍ په خلاف د خلع او د مال په بدله کي د آزادولو لِأَنَّهُ لَا مُوجِبَ لَهُ فِي الْبَدَلِ ځکه چي د هغه لپاره په بدل کي هيڅ موجب نسته إِلَّا أَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ إِذَا كَانَ أَكْثَرَ مِنَ الْأَرْفَعِ خو کله چي د ښځي مهرِ مثل تر اعلیٰ غلام زيات وي فَالْمَرْأَةُ رَضِيَتْ بِالْحَطِّ نو [په دې صورت کي] هغه په خپله [له مهرِ مثل څخه] په کمولو راضي ده [انو ځکه به اعلیٰ غلام لازميږي] وَإِنْ كَانَ أَنْقَصَ مِنَ الْأَوْكَسِ او که [د ښځي مهرِ مثل] تر ادنیٰ غلام کم وي فَالزَّوْجُ رَضِيَ بِالزِّيَادَةِ نو خاوند [پر مهرِ مثل] په زياتوب کولو راضي دی [انو ځکه به ادنیٰ غلام لازميږي] وَالْوَاجِبُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ فِي مِثْلِهِ الْمُتْعَةُ او په داسي صورت کي تر دخول مخکي د طلاق په وجه مُتعه واجبيږي وَنِصْفُ الْأَوْكَسِ يَزِيدُ عَلَيْهَا فِي الْعَادَةِ او د ادنیٰ غلام قيمت په عامه توګه تر مُتعې زيات وي فَوَجَبَ لِاعْتِرَافِهِ بِالزِّيَادَةِ نو په زياتوب سره د خاوند د اقرار [او رضا] په وجه [نيم ادنیٰ غلام] واجب کړی سو.

**اللغات:** ﴿أَوْكَس﴾ د ضرب له باب څخه اسمِ تفضيل دی: کمتر، کمي درجې والا، مراد ځني کم قيمته غلام دی، ﴿مَهْرِ الْمِثْل﴾ د نجلۍ د خاندان د ښځو يعني د اکا د لور، امه، او خور لپاره چي څومره مهر ټاکل سوي وي، هغه ته مهرِ مثل وايي، ﴿مَعِيْدْ﴾ د ضرب له باب څخه مصدرِ ميمي دی: رجوع کول، راګرځېدل، ﴿أَعْدَل﴾ د کرُم له باب څخه اسمِ تفضيل دی، عَدُلَ يَعْدُلُ عَدَالَةً: عدل کول، انصاف کول، ﴿عُدُوْل﴾ د

ضرب له باب څخه مصدر دی، عَدَلَ يَعْدِلُ عَدْلًا و عُدُوْلًا: واپس کېدل، رجوع کول، مخ گرځول، لیري کېدل.

**تشریح**: دا عبارت که څه هم اوږدی خو په دې کي بیان سوې مسئلې ډېره آسانه ده.

**مسئله**: دا ده که يو سړي ديو ښځي سره نکاح وکړه او ښځي ته يې ووېل چي په دغه دوو غلامانو کي يو غلام په مهر کي درکوم (يعني غلام يې متعين نه کړی چي خاص دغه غلام درکوم)، او وروسته معلومه سوه چي په دواړو کي يو غلام د اعلیٰ درجې دی (يعني قيمت يې زيات دی، مثلاً پنځه سوه ۵۰۰ درهمه دی)، او بل د ادنیٰ درجې (اُوْ کَس) دی (يعني قيمت يې تر هغه بل غلام کم دی، مثلاً درې سوه ۴۰۰ درهمه دی، نو دلته مهر متعين نه سو بلکي د دوو غلامانو په مينځ کي واقع سو، لهذا په مهر کي جهالت راغلی. او کله چي په مهر کي جهالت راسي نو مهرِ مثل لازمیږي) نو په دې صورت کي (هم) د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د ښځي د مهر دارومدار به د هغې پر مهرِ مثل وي يعني دې به کتل کيږي چي د ښځي مهرِ مثل د کوم غلام سره موافق او نژدې دی نو هغه غلام به پر خاوند لازمیږي.

يعني که د ښځي مهرِ مثل تر اعلیٰ غلام زيات وو، نو اعلیٰ غلام به په مهر کي ورکوي (مهرِ مثل به ځکه نه ورکوي چي ښځه تر مهرِ مثل په کمه يعني په اعلیٰ غلام [۵۰۰] راضي ده)، او که د ښځي مهرِ مثل تر ادنیٰ درجې (اُوْ کَس) غلام هم کم وو نو هغه به په مهر کي ښځي ته ورکوي (ځکه په دې صورت کي خاوند په ادنیٰ غلام [۳۰۰] راضي دی)، او که د ښځي مهرِ مثل د ادنیٰ او اعلیٰ په مينځ کي وو (مثلاً څلور سوه ۴۰۰ درهمه وو)، نو په دې صورت کي به مهرِ مثل ورکول کيږي (د دې لپاره چي نه د خاوند رعايت وسي او نه د ښځي).

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دې درېو سره صورتونو کي به ښځي ته د ادنیٰ درجې غلام (يعني اُوْکس غلام) ورکول کيږي، هغه که د ښځي تر مهرِ مثل کم قيمت والا وي که زيات قيمت والا وي او که د دواړو په مينځ وي، په هر صورت کي به ادنیٰ غلام ورکول کيږي.

**لهما إلخ**: د صاحبينو تر دليل مخکي دا قاعده په ياد لرئ! چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د بضع بدلِ اصلي "مهرِ مثل" دی، او د تسميې د صحت په وخت کي له هغه څخه عدول کول صحيح دي (يعني که مهر صحيح او معلوم و ټاکل سي نو په داسي وخت کي د ښځي د فايدې په خاطر له مهرِ مثل څخه عدول کېدای سي)، او د صاحبينو په نېز د بضع بدلِ اصلي "مهرِ مسمیٰ" دی، نو تر څو چي پر مهرِ مسمیٰ عمل کول ممکن وي تر هغه وخته د دوی په نېز د مهرِ مثل و طرف ته عدول نه سي کېدای.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي دلته مهرِ مسمیٰ اصل دی، نو تر څو چي پر أصل عمل کول ممکن وي تر هغه وخته به د بدل يعني د مهرِ مثل و طرف ته نه رجوع نه کيږي، او په دې مسئله کي د ادنیٰ غلام په ورکولو سره پر أصل يعني پر مسمیٰ عمل کول ممکن دي، ځکه د هغه ورکول يقيني دي، او که بالفرض اعلیٰ غلام ورکول سي نو بيا هم ادنیٰ د هغه په ضمن کي راځي، نو ځکه به د مهرِ مثل و طرف ته رجوع نه کيږي بلکي ادنیٰ غلام به پر هغه لازم وي، او دا مسئله بالکل داسي ده لکه يو څوک چي خپلي ښځي ته ووايي: زه په دې دوو غلامانو کي پر يوه غلام ستا سره سره خلع کوم (يعني غلام متعين نه کړي) او په هغوی کي يو غلام اعلیٰ وي او بل ادنیٰ وي، نو په دې صورت کي د ټولو په نېز ادنیٰ غلام واجبيږي، يا مثلاً مالک خپل غلام ته ووايي چي زه تا په دې دوو غلامانو کي د يوه غلام په بدله کي آزادوم، نو په صورت کي هم ادنیٰ غلام واجبيږي (يعني هغه غلام به په دې دواړو غلامانو کي د ادنیٰ غلام قيمت خپل مالک ته ورکوي)، نو همداسي به د مهر په مسئله کي هم ادنیٰ غلام واجبيږي او ښځي ته به ادنیٰ غلام ورکول کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي د عدل او انصاف له رويه مهرِ مثل د بضع بدل اصلي دی (ځکه چي په مهرِ مثل کي د ښځي د خاندان رعايت کيږي، ځکه مهرِ مثل هغه مهر ته وايي کوم چي د ښځي د خاندان د ښځو د مهر سره مطابق وي)، او له مهرِ مثل څخه د تسميې د صحت په صورت کي د ښځي د فايدې په خاطر عدول کېدای سي، او دلته د دوو غلامانو په وجه (يعني د خاوند د دې خبري په وجه چي يا دا غلام درکوم يا دا غلام درکوم) په مهر کي شک او جهالت پيدا سوی دی او د شک په وجه د مهر تسميه فاسديږي، نو ځکه به مهرِ مسمیٰ ته رجوع هم نه کيږي بلکي بدلِ اصلي يعني مهرِمثل به واجبيږي، ځکه چي په مهرِ مثل کي انصاف دی، هيڅ کمي او زياتوب نه قبلوي (ځکه چي په هغه کي د خاندان رعايت کيږي).

**بخلاف الخلع إلخ**: د صاحبينو د قياس جواب ورکوي چي دغه مسئله پر خلع او پر إعتاق علی مال قياسول صحيح نه دي، ځکه چي د بدليت په حواله سره د هغوی هيڅ موجبِ اصلي نسته (يعني په خلع او إعتاق علی مال کي له مخکي څخه هيڅ شی متعين نه دی لکه په مهر کي چي مهرِ مثل متعين دی، نو که په مهر کي تعيّن او تسميه نه وي نو فوراً د مهرِ مثل و طرف ته رجوع کيږي، خو د خلع او إعتاق علی مال هيڅ موجبِ اصلي نسته، نو کله چي خاوند ووايي چي زه په دې دوو غلامانو کي پر يوه غلام ستا سره خلع کوم، نو په تسميه کي د جهالت په وجه بيرته د غلام و طرف ته رجوع کيږي، نو ځکه هلته د ادنیٰ درجې غلام واجبيږي، ځکه چي هغه متيقن دی).

لهذا پر خلع او پر إعتاق علی مال قياس کول صحيح نه دي.

**إلا أن مهر المثل إلخ:** په دې سره د يو إشكال جواب وركوي، إشكال دا دی چې كله د امام صاحب په نېز مهرِ مثل أعْدَل او د بضع بدلِ اصلي دی. نو بيا په دغه دريو صورتونو كي مهرِ مثل واجبېدل پكار دي، برابره ده مهرِ مثل كه تر اعلیٰ غلام زيات وي كه تر ادنیٰ غلام كم وي او كه د دواړو په مينځ كي وي. حالانكي د امام صاحب په نېز دا صحيح نه دي، آخر د دې وجه څه ده؟ نو د دې په جواب كي صاحب د كتاب فرمايي چې دلته ښځه په خپله په اعلیٰ غلام (او د خپل حق په كمېدلو) راضي ده نو ځكه به د مهرِ مثل پر ځای هغه واجبيږي، او همدارنګه د ادنیٰ غلام په صورت كي خاوند په خپله د ادنیٰ غلام په وركولو (او د خپل حق په كمولو) راضي دی، لنډه دا چې كله په دغه صورتونو كي خپله صاحبُ الحق په خپل حق كي په تغيّر او تبدّل كولو راضي دی نو بيا دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله د أصول سره ټكر نه دی. لهذا په دې باره كي اعتراض كول صحيح نه دي.

**والواجب في الطلاق إلخ:** په دې سره هم د يو إشكال جواب وركوي، إشكال دا دی چې كله په دغه صورتونو كي د امام صاحب په نېز مهرِ مثل واجب دی، نو كه چيري خاوند ښځي ته په دې صورتونو كي تر دخول مخكي طلاق وركړي نو متعه واجبېدل پكار دي، حالانكي زموږ د ټولو امامانو په نېز دلته نيم ادنیٰ غلام واجبيږي، د دې څه وجه ده؟

نو صاحب د كتاب جواب وركوي چې د طلاق قبل الدخول په صورت كي خو متعه واجبېدل پكار دي، لېكن په عامه توګه د نيم ادنیٰ غلام قيمت تر متعې (يعني تر دريو ۳ جامو) زيات وي. او خاوند په خپله په دې زياتوب راضي دی او په مهر كي يې د غلام په ټاكلو سره د دې اقرار كړی دی، لهذا موږ هم د ښځي د فايدې په خاطر دلته متعه پرېږدو او د ادنیٰ غلام (أوْكَس) نصف واجبوو. همدا وجه ده كه د يو ښځي يا د يو ځای متعه د ادنیٰ غلام تر نصف زياته وي، نو بيا زموږ په نېز په هغه صورت كي متعه واجبيږي، د ادنیٰ غلام نصف نه واجبيږي.

## له صفت بيانولو څخه بغير يو حيوان په مهر كي ټاكل (حكم او اختلاف)

**وَإِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى حَيَوَانٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ** او كه [يو سړي] د ښځي سره پر يو نا ستايلي حيوان نكاح وكړه [يعني په مهر كي يې يو حيوان وټاكی او د هغه وصف (صفت) يې بيان نه كړی] **صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ** نو تسميه ايعني د هغه ټاكل] صحيح دي **وَلَهَا الْوَسَطُ مِنْهُ** او د ښځي لپاره به د أوسطي درجې حيوان وي ايعني په دې صورت كي به خاوند ښځي ته د مينځنۍ درجې حيوان وركوي] **وَالزَّوْجُ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهَا ذٰلِكَ وَإِنْ**

شَاءَ أَعْطَاهَا الْقِيمَةَ او خاوند اختيار من دی که وغواړي نو هغه حيوان دي ورکړي او که وغواړي نو د هغه قيمت دي ورکړي قَالَ: مَعْنٰى هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ أَنْ يُسَمِّيَ جِنْسَ الْحَيَوَانِ دُوْنَ الْوَصْفِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د دې مسئلې مطلب دا دی چې خاوند د حيوان جنس ذکر کړي، نه وصف بِأَنْ يَّتَزَوَّجَهَا عَلٰى فَرَسٍ أَوْ حِمَارٍ په دې توګه چې خاوند د ښځې د آس يا د خره پر جنس نکاح وکړي أَمَّا إِذَا لَمْ يُسَمِّ الْجِنْسَ ليکن که [د حيوان] جنس ذکر نه کړي بِأَنْ يَّتَزَوَّجَهَا عَلٰى دَابَّةٍ په دې توګه چې د ښځې سره پر يو څاروي نکاح وکړي لَا تَجُوْزُ التَّسْمِيَةُ نو [په داسې صورت کې] تسميه جائز نه ده وَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ او مهرِ مثل واجبيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيْعًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې مهرِ مثل واجبيږي لِأَنَّ عِنْدَهُ مَا لَا يَصْلُحُ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ لَا يَصْلُحُ مُسَمًّى فِي النِّكَاحِ ځکه د هغه په نېز چې کوم شی په بيع کې د ثمن [جوړېدلو] صلاحيت نه لري هغه په نکاح کې د مهر [جوړېدلو] صلاحيت نه لري إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُعَاوَضَةٌ ځکه چې له بيع او نکاح څخه هر يو معاوضه ده [يعني په هر يوه کې د عوض د راکړې ورکړې معامله کيږي] وَلَنَا: أَنَّهُ مُعَاوَضَةُ مَالٍ بِغَيْرِ مَالٍ او زموږ دليل دا دی: چې نکاح په غيرِ مال سره د مال معاوضه ده فَجَعَلْنَاهُ الْتِزَامَ الْمَالِ ابْتِدَاءً نو موږ په شروع کې نکاح [د] "التزامُ المال" [له جملې څخه] وګرځوله حَتّٰى لَا يَفْسُدَ بِأَصْلِ الْجَهَالَةِ تر دې چې هغه په أصل [او فاحش] جهالت سره هم نه فاسديږي كَالدِّيَةِ وَالْأَقَارِيرِ لکه ديت او اقرارونه [چې په أصل جهالت سره نه فاسديږي] وَشَرَطْنَا أَنْ يَّكُوْنَ الْمُسَمّٰى مَالًا وَسَطُهُ مَعْلُوْمٌ او موږ دا شرط [هم] ولګوی چې مسمیٰ به داسې مال وي چې د هغه أوسط معلوم وي [يعني چې د هغه أوسطه درجه معلومېدای سي] رِعَايَةً لِلْجَانِبَيْنِ چې د دواړو طرفونو [خاوند او ښځې] رعايت وسي وَذٰلِكَ عِنْدَ إِعْلَامِ الْجِنْسِ او دغه شرط د جنس د معلومېدلو په وخت کې ثابتيږي [يعني أوسط د جنس په معلومېدلو سره معلوميږي] لِأَنَّهُ يَشْتَمِلُ عَلَى الْجَيِّدِ وَالرَّدِيءِ وَالْوَسَطِ ځکه چې جنس پر ښه [اعلیٰ درجې] او بد [ادنیٰ درجې] مشتمل وي وَالْوَسَطُ ذُوْ حَظٍّ مِنْهُمَا او أوسط [أوسطه درجه] له دواړو څخه حصه داره وي بِخِلَافِ جَهَالَةِ الْجِنْسِ په خلاف د جنس د جهالت لِأَنَّهُ لَا وَسَطَ

لَهٗ لِاخْتِلَافِ مَعَانِي الْأَجْنَاسِ ځکه چي جنس لره هيڅ أوسط نه وي د أجناسو د معناګانو د مختلف کېدلو په وجه [يعني هر جنس بېله معنىٰ لره نو کله چي جنس معلوم نه وي نو أوسط به څرنګه معلوم سي. ځکه چي جنسونه ډېر دي] وَبِخِلَافِ الْبَيْعِ او په خلاف د بيع لِأَنَّ مَبْنَاهُ عَلَى الْمُضَايَقَةِ وَالْمُمَاكَسَةِ ځکه چي د بيع دار ومدار پر تنګوالي او ټال مټال کولو دی أَمَّا النِّكَاحُ فَمَبْنَاهُ عَلَى الْمُسَامَحَةِ او کوم چي نکاح ده نو د هغې دار ومدار پر آسانۍ [او نرمي کولو] دی وَإِنَّمَا يَتَخَيَّرُ لِأَنَّ الْوَسَطَ لَا يُعْرَفُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ او خاوند ته به ځکه [د قيمت] اختيار ورکول کېږي چي أوسط فقط په قيمت سره پېژندل کېدای سي فَصَارَتْ أَصْلًا فِي حَقِّ الْإِيفَاءِ نو د پوره کولو [اداء کولو] په حق کي قيمت أصل سو وَالْعَبْدُ أَصْلٌ تَسْمِيَةً او غلام د تسميې [ټاکلو] په اعتبار سره أصل دی فَيَتَخَيَّرُ بَيْنَهُمَا نو ځکه به خاوند لره د دې دواړو [أوسط او قيمت] په مينځ کي اختيار وي.

**اللغات**: ﴿وَسَط﴾ د مينځوې درجې شی، ﴿مُعَاوَضَةُ مَالٍ بِغَيْرِ مَالٍ﴾ د غيرِ مال په بدله کي مال، لکه څرنګه چي په نکاح کي داسي کيږي، ځکه چي يو طرف ته خاوند پر ځان مال لازموي او بل طرف د ښځي بضع وي کوم چي مال نه دی، او په بيع کي "معاوضةُ المال بالمال" ده (په بيع کي چي کوم شی قيمت وي د هغه جنس، نوع او صفت ټوله معلومول ضروري دي کنې بيع فاسديږي، لېکن په نکاح کي معمولي غونډي جهالت برداشت کېدای سي چي په تشريح کي به د دې تفصيل هم ذکر سي)، ﴿اِلْتِزَامُ الْمَالِ﴾ پر خپل ځان يو شی لازمول. مثلاً د يو چا لپاره پر خپل ځان د مال يا د يو شي اقرار کول (دغه اقرار په جهالت کامله سره هم نه فاسديږي، مثلاً که زيد اقرار وکړي چي پر ما د خالد يو شی باندي دی، او د ښي جنس بيان نه کړي او نه يې نوع بيان کړي، نو هم د هغه اقرار صحيح دی، خو تر اقرار وروسته به له هغه څخه پوښتل کيږي چي له "شي" څخه ستا مراد څه دی)، ﴿أَقَارِيْر﴾ جمع د إِقْرَارٌ ده: اقرار (يعني پر خپل ځان د يو چا لپاره د مال اقرار کول)، ﴿إِعْلَام﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول، اطلاع ورکول، ﴿مُضَايَقَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: تنګي کول (يو د بل سره تنګي او سختي کول)، ﴿الْمُمَاكَسَة﴾ دا هم د مفاعلې مصدر دی: ټال مټال کول، ټال متول کول، (څوک په حيلو او طمعو کنبپاسل، په اسره کول)، يو تر بله سره نيول، ﴿مُسَامَحَة﴾ دا هم د مفاعلې مصدر دی: نرمي کول، ښه او نرم چلند کول (يو د بل سره نرمي او آساني کول).

**تشريح**: د مسئلې تر صورت مخکي دا خبره په ياد لرئ! چي په عبارت کي له جنس څخه مراد د حيوان نوع ده لکه څرنګه چي همدا د فقهاؤ اصطلاح ده چي د هغوی په نېز د أهلِ منطق جنس د نوع په درجه کي دی.

**صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي دیو ښځې سره نکاح وکړه او په مهر کې یې یو حیوان مقرر کړی (چې دا حیوان به دړکوم) او د حیوان جنس یې بیان کړی (چې مثلاً غوا به وي. یا آس به وي او داسې نور)، خو د حیوان صفت یې بیان نه کړی (چې د اعلیٰ درجې غوا به وي. یا د أوسط یا د ادنیٰ درجې غوا به وي)، نو زموږ په دا تسمیه (یعني په دې توګه د مهر ټاکل) صحیح دي او نکاح هم صحیح او جائز ده، او پر خاوند د أوسط (مینځوی) درجې غلام لازمیږي یعني هغه غلام چې د قیمت په اعتبار سره نه اعلیٰ وي او نه ادنیٰ وي، او هغه ته دا اختیار هم سته که د أوسط غلام قیمت ورکوي او که په خپله أوسط غلام ورکوي. همدا مسلک د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دی.

**معنٰی هذه إلخ** صاحب د هدایې فرمایي چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله د قول مطلب همدغه دی چې خاوند د حیوان جنس بیان کړي که څه هم صفت یې بیان نه کړي، لېکن که جنس یې هم بیان نه کړي او مطلق حیوان ذکر کړی، نو دا تسمیه نه صحیح کیږي (یعني په دې توګه د مهر ټاکل نه صحیح کیږي) او په دې صورت کې مهرِ مثل واجبیږي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دواړو صورتونو کې (یعني که جنس بیان سوی وي او که نه وي) مهرِ مثل واجبیږي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې کوم شی چې په بیع کې د ثمن جوړېدلو صلاحیت نه لري، هغه په نکاح کې د مهر جوړېدلو صلاحیت هم نه لري (ځکه نکاح هم د بیع په څېر د معاوضې عقد دی). او غیرِ موصوف حیوان (یعني چې د هغه صفت نه وي بیان سوی) په بیع کې ثمن نه سي جوړېدلای. نو په نکاح کې به هم غیرِ موصوف حیوان مهرِ مسمیٰ نه سي جوړېدلای (یعني د هغه تسمیه او په مهر کې د هغه ټاکل به فاسد او غیرِ صحیح وي)، او د تسمیې د فساد په صورت کې (یعني کله چې په مهر کې غیرِ صحیح شی وټاکل سي. نو په داسې صورت کې) مهرِ مثل واجبیږي. نو ځکه به دلته په دواړو صورتونو کې مهرِ مثل واجبیږي. هغه که خاوند د حیوان جنس بیان کړی وي او که نه وي.

**زموږ دلیل:** دا دی چې صحیح ده! نکاح د معاوضې عقد دی. خو څرنګه چې په ابتداء او شروع کې خاوند بېله عوضه پر ځان مال لازموي. نو د ابتداء له رویه نکاح معاوضةُ المال بغیر المال ده (یعني معاوضةُ المال بالجسم) ده. لنډه دا چې نکاح د "التزامُ المال" معامله ده (یعني خاوند بېله عوضه پر خپل ځان مال لازموي او د مال اقرار کوي)، او "التزامُ المال" په کامل جهالت سره هم نه فاسدیږي (یعني د صفت نه بیانولو په صورت کې هم نه فاسدیږي) نو ځکه به په جهالت سره مهر هم نه فاسدیږي، لکه څرنګه چې په دیت کې شریعت سل (۱۰۰) اوښان لازم کړي دي، خو د هغوی صفت

یې بیان کړی نه دي بلکې دأوسطو اوښانو په ورکولو سره دیت اداء کیږي. یا مثلاً زید اقرار وکړي چې پر ما د خالد دوه پسونه باندې دی او د پسونو صفت بیان نه کړي نو بیا هم د زید اقرارصحیح دي او د أوسطي درجې پسونه پر هغه لازم دي، نو همدارنګه نکاح هم په ابتداء کې "التزامُ المال" ده. نو ځکه به هغه هم د ټاکلي حیوان له صفت بیانولو څخه بغیر صحیح وي.

**وشرطنا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې په متن کې دا شرط ولګول سو چې په مهر کې به ټاکل سوی مال او شی داسې وي چې د هغه أوسط معلومېدلای سي د دې لپاره چې د خاوند او ښځې دواړو رعایت وسي، او أوسط هغه وخت معلومېدای سي چې د هغه جنس بیان کړی سي، ځکه چې جنس پر ټولو درجو مشتمل وي یعني اعلیٰ درجې، أوسط درجې او ادنیٰ درجې ټولو ته جنس شامل وي. او أوسط درجه له أعلیٰ څخه کمه او له ادنیٰ څخه زیاته ده نو له دواړو څخه یې حصه اخیستې ده (یعني أوسط درجه د اعلیٰ په نسبت ادنیٰ ده او د ادنیٰ په نسبت اعلیٰ ده)، نو په مهر کې به د یو مال ټاکل هغه وخت صحیح وي کله چې د هغه جنس معلوم کړی سي.

**د دلیل خلاصه**: دا سوه چې نکاح خو په ابتدء کې "التزامُ المال" ده او په انتهاء کې "معاوضه" ده. د "التزامُ المال" تقاضا دا ده چې په أصل او کامل جهالت سره دي هم نکاح فاسده نه سي، لکه اقرار چې "التزامُ المال" دی او هغه په اصل جهالت سره بالکل نه فاسدیږي. او د معاوضې تقاضا دا ده چې نکاح دي په لږ غوندې (معمولي) جهالت سره (یعني د صفت په نه بیانولو سره) دي هم فاسده سي. لکه بیع چې په معمولي جهالت سره هم فاسدیږي. نو موږ د نکاح د دواړوطرفونو اعتبار کوو او دا حکم کوو چې په کامل او فاحش جهالت (أصل جهالت) سره خو به نکاح فاسدیږي. لېکن د خفیف او معمولي جهالت په صورت کې (یعني د صفت نه بیانولو په صورت کې) به نکاح صحیح او جائز وي.

**بخلاف جهالة الجنس إلخ**: فرمایي که جنس (یعني نوع) بیان نه کړی سي نو بیا أوسط نه سي معلومېدای، ځکه چې په ډېر جنسونو کې به د کوم جنس أوسط را ویستل سي!؟، مثلاً خاوند ښځې ته ووایي چې په مهر کې یو څاروی درکوم، نو په څاروي کې خو غوا، ګامېښه، آس، خر او پسه ټوله داخل دي، نو د کوم یوه أوسط به را ویستل سي، ځکه چې د یوه او بل په أوسط کې تعلق او واسطه نسته، لهذا د جنس نه بیانولو په صورت کې تسمیه (د هغه شي ټاکل) نه صحیح کیږي. او په داسې صورت کې مهر مثل واجبیږي.

**بخلاف البیع إلخ**: د امام شافعي د قیاس جواب ورکوي چې نکاح پر بیع قیاسول صحیح نه دي. ځکه چې د بیع بنیاد پر تنګی، جنجال او ټال مټال کولو دی. او هر عاقد په بیع کې ډېر وخت تېرول نه

غواړي بلکي له سودا او بيع څخه ژر خلاصون غواړي، ځکه چي بيا د مشتري يا بائع له طرفه د ټال متال کولو خطره سته، د دې په خلاف په نکاح کي نرمي او همښتوب وي، نو ځکه په نکاح کي معمولي جهالت برداشت کېدای سي، لېکن په بيع کي معمولي جهالت هم برداشت کېدلای نه سي، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

**وإنما يتخير إلخ**: په دې سره د يو مقدّر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله په پورتنی مسئله کي خاوند غوا يا مثلاً آس په مهر کي وټاکی نو دا مهرِ مسمیٰ سو (ځکه کوم شی چي په مهر کي وټاکل سي نو هغه ته مهرِ مسمیٰ وايي)، او قاعده دا ده چي تر څو د مهرِ مسمیٰ اداء کول ممکن وي نو د هغه قيمت به نه ورکول کيږي، نو بيا تاسي ولي دا خبره کوئ چي خاوند ته اختيار دی که (د أوسطي درجې) حيوان ورکوي او که د هغه قيمت ورکوي؟

د جواب حواصل دا دی چي مورږ مطلق حيوان نه، بلکي د أوسطي درجې حيوان مو واجب کړی دی، او أوسط حيوان په خپل قيمت سره پېژندل کيږي، ځکه چي د کوم حيوان قيمت نه أعلیٰ وي او نه ادنیٰ وي هغه به أوسط حيوان وي، نو څرنګه چي أوسط حيوان په قيمت سره پېژندل کيږي نو د ورکولو په اعتبار سره قيمت أصل سو، او د مهر ټاکلو په وخت کي حيوان ټاکل سوی دی نو د ټاکلو په اعتبار سره حيوان هم أصل سو، نو ځکه به خاوند ته د دواړو اختيار وي.

**يادونه**: که تاسو په "وَالْعَبْدُ أَصْلٌ تَسْمِيَةً الخ" کي غور وکړی نو معلومه به سي چي د "والعَبْدُ" پر ځای "وَالْحَيَوَانُ" ذکر کېدل پکار دي، ځکه چي په متن کي "إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَىٰ حَيَوَانٍ" ذکر سوي دي، يا د دې جواب دا دی چي صاحب د هدايې د مثال په توګه "وَالْعَبْدُ" ذکر کړی دی، او په ځيني نسخو کي "وَالْعَيْنُ" ذکر سوی دی، نو د هغه جواب هم دغه دی چي د مثال په توګه يې داسي ذکر کړي دي. والله أعلم بحقيقة الحال

## له صفت بيانولو څخه بغير کپړه (ټوکر) يا يو کيل او وزني شی په مهر کي ټاکل

**وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَىٰ ثَوْبٍ غَيْرِ مَوْصُوْفٍ** او که [يو سړي] د ښځي سره پر نا ستايلي کپړې [ټوکر] نکاح وکړه [يعني د کپړې نوع او صفت يې بيان نه کړی] **فَلَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ** نو د ښځي لپاره به مهرِ مثل وي **وَمَعْنَاهُ: ذَكَرَ الثَّوْبَ وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهِ** او د دې مطلب دا دی: چي خاوند فقط د ثوب [کپړې] لفظ ذکر کړی او پر هغه يې [د نوع او صفت] زياتوب نه وکړی **وَوَجْهُهُ أَنَّ هٰذِهِ جَهَالَةُ الْجِنْسِ** او د دې وجه دا ده

چي دغه د جنس جهالت دی إِذِ الثِّيَابُ أَجْنَاسٌ ځکه چي د کپړې ډېر جنسونه دي وَلَوْ سَمّٰى جِنْسًا بِأَنْ قَالَ: هَرَوِيٌّ او که [د کپړې] جنس يې ذکر کړی [يعني] داسي يې وويل: چي هروي کپړه [په مهر کي درکوم] يَصِحُّ التَّسْمِيَةُ نو تسميه [د مهر تاکل] صحيح دي وَيُخَيَّرُ الزَّوْجُ لِمَا بَيَّنَّا او خاوند ته به اختيار ورکول کيږي [يعني خاوند ته به د أوسط او قيمت په مينځ کي اختيار وي] د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَكَذَا إِذَا بَالَغَ فِي وَصْفِ الثَّوْبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او همدارنګه [به خاوند ته اختيار وي] کله چي د کپړې په وصف کي مبالغه وکړي، د ظاهر روايت مطابق لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځکه چي کپړه له "ذواتُ الامثال" څخه نه ده وَكَذَا إِذَا سَمّٰى مَكِيْلًا أَوْ مَوْزُوْنًا وَسَمّٰى جِنْسَهٗ دُوْنَ صِفَتِهٖ او همدارنګه [به خاوند ته اختيار وي] کله چي هغه کَيلي يا وزني شی مهر وټاکي او د هغه جنس بيان کړي [خو] صفت يې بيان نه کړي وَإِنْ سَمّٰى جِنْسَهٗ وَصِفَتَهٗ لَا يُخَيَّرُ او که [خاوند] د هغه جنس او صفت [دواړه] بيان کړي نو هغه ته به اختيار نه ورکول کيږي لِأَنَّ الْمَوْصُوْفَ مِنْهُمَا يَثْبُتُ فِي الذِّمَّةِ ثُبُوْتًا صَحِيْحًا ځکه له کَيلي او وزني شي څخه موصوف په صحيح [او پوره] توګه په ذمه کي ثابتيږي [يعني په کيلي او وزني شي کي چي د هر يوه صفت بيان کړی سي نو هغه پوره توګه دانسان پر ذمه ثابتيږي او په ثبوت صحيح سره انسان د هغه ذمه واره کيږي].

**اللغات**: ﴿ذَوَاتُ الْأَمْثَالِ﴾ جمع د "ذَاتُ الْمِثْل" ده: داسي شي ته ويل کيږي چي که هغه له يو چا څخه هلاک سي نو پر ده د هغه شي مثل واجبيږي، قيمت يې نه واجبيږي (يعني مالک ته به د هغه شي مثل ورکوي، نه قيمت)، لکه وريجي يا غنم که له يو چا څخه هلاک سي نو د هغه په بدله کي غنم او وريجي پر لازميږي، ځکه چي غنم د غنمو مثل او مشابه دي او وريجي د وريجو مثل دي، او د دې شيانو قيمت نه پر لازميږي، او په دې کي به د اعلیٰ يا ادنیٰ غنمو او وريجو اعتبار نه کيږي. ذوات القيم: جمع د "ذَاتُ الْقِيْمَة" ده: داسي شي ته وايي چي که له يو چا څخه هلاک سي نو پر ده د هغه شي قيمت لازميږي او مثل يې نه پر لازميږي، لکه کپړه يا حيوان چي له يو چا څخه هلاکه سي نو د هغه په بدله کي هغسي کپړه يا حيوان نه پر لازميږي بلکي د کپړې يا حيوان بازاري قيمت پر لازميږي، داسي شيانو ته "ذوات القيم" وايي.

**تشريح**: په دې عبارت کي د يوې مسئلې سره اړوند څو جزئونه بيان سوي دي: (١)... د مسئلې اول جزء دا دی چي که يو سړي نکاح وکړه او کپړه يې مهر جوړ کړه (چي زه به ښځي ته په مهر کي کپړه ورکوم يعني فقط جنس (کپړه) يې بيان کړه) خو د کپړې نوع يې بيان نه کړه (چي بخمل به ورکوم يا داسي د کپړې بل قسم به ورکوم). نو په دې صورت کي د ټولو امامانو په نيز مهرِ مثل واجبيږي (او

تسمیه فاسدیږي): د دې وجه دا ده چې د کپړې بېلا بېل أنواع او قسمونه دي او د کپړې (ثوب) لفظ ټولو ته شاملیږي. نو داسې سو لکه په نکاح کې چې مطلق ځاروی (حیوان) ذکر کړي. نو په ټاکل سوي شي کې (یعني په تسمیه کې) جهالت راغلی، لهذا تسمیه به فاسده وي او مهر مثل به واجب وي (ځکه مخکې تاسې وویل چې د تسمیې د فساد په صورت کې مهرِ مثل واجبیږي).

**ولو سمّٰی جِنْسًا إلخ:** (۲)... د مسئلې دویم جزء دا دی که خاوند د کپړې نوع هم بیان کړه (چې مثلاً بخمل به ورکوم. یا هَروي یا مَروي کپړه به ورکوم) نو په دې صورت کې تسمیه صحیح ده. او خاوند لره به د أوسط مسمیٰ (ټاکل سوې کپړې) یا د هغې د قیمت اختیار وي (یعني هغه به اختیار من وي که د مینځوې درجې بخمل یا هَروي یا مَروي جامه ښځې ته په مهر کې ورکوي او که د هغه قیمت ورکوي). دلیل هغه دی کوم چې مخکې تېر سو. چې أوسطه درجه په قیمت سره پېژندل کیږي.

**وکذا إذا بالغ إلخ:** او که خاوند د کپړې په صفت کې مبالغه وکړه یعني د کپړې نوع یې هم بیان کړه. او د هغې پنهوالی، اوږدوالی او پلنوالی یې ټوله بیان کړل. نو د ظاهر روایت مطابق په دې صورت کې هم خاوند لره اختیار دی که د أوسط درجې کپړه په مهر کې ورکوي او که د هغې قیمت ورکوي؛ د دې وجه دا ده چې کپړه له ذواتُ الأمثال څخه نه ده بلکې له ذواتُ القیم څخه ده. همدا وجه که کپړه هلاکه سي نو د هغې قیمت لازمیږي، لهذا کله چې کپړه له ذواتُ القیم څخه ده. او د هغې أوسطه درجه په قیمت سره معلومیږي. نو ځکه به خاوند لره د قیمت ورکولو اختیار هم وي.

که څه هم له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چې په مبالغه کولو سره کپړه د ذواتُ الأمثال درجې ته رسیږي، نو ځکه به خاوند خاص هغه کپړه ورکوي د قیمت ورکولو اختیار نه لري، خو دا غیرِ ظاهر روایت دی کوم چې د ظاهر روایت په مقابل کې څه اعتبار نه لري.

**وکذا إذا سمّٰی إلخ:** (۳)... د مسئلې بل جزء دا دی که خاوند کیلي یا وزني شی مهر جوړ کړی او د هغه جنس یې بیان کړی (مثلاً غنم، یا وریجې، یا اوسپنه) خو صفت یې بیان نه کړی، نو په دې صورت کې به خاوند لره د أوسط مسمیٰ او د هغه د قیمت اختیار وي (ځکه چې کیلي یا وزني شیان د کپړې په څېر له ذواتُ القیم څخه دی)، لېکن که خاوند د کیلي یا وزني شي د جنس سره صفت هم بیان کړی نو بیا هغه ذوات الأمثال وګرځېدی او د خاوند پر ذمه په پوره توګه ثابت سو (ځکه کیلي یا وزني شی په صفت بیانولو سره کما حقهٗ او په بشپړه توګه پر ذمه ثابتیږي). نو اوس به خاص د هغه شي أوسط په مهر کې ورکوي د قیمت ورکولو هیڅ اختیار نه لري.

## شراب يا خنزير په مهر کې ټاکل

فَإِنْ تَزَوَّجَ مُسْلِمٌ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ او که يو مسلمان [د ښځې سره] پر شرابو يا پر خنزير نکاح وکړه فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ نو نکاح جائز ده وَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا او د ښځې لپاره به مهر مثل وي لِأَنَّ شَرْطَ قَبُولِ الْخَمْرِ شَرْطٌ فَاسِدٌ ځکه چې د شرابو د قبلولو شرط فاسد شرط دی فَيَصِحُّ النِّكَاحُ وَيَلْغُو الشَّرْطُ نو نکاح به صحيح وي او شرط به لغو [فاسد] وي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ يَبْطُلُ بِالشُّرُوطِ الْفَاسِدَةِ ځکه چې بيع په فاسدو شرطونو سره باطليږي لٰكِنْ لَمْ تَصِحَّ التَّسْمِيَةُ ليکن [په دې صورت کې] تسميه [د مهر ټاکل] صحيح نه سو لِمَا أَنَّ الْمُسَمّٰى لَيْسَ بِمَالٍ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ ځکه چې ټاکل سوی شی [يعني شراب او خنزير] د مسلمان په حق کې مال نه دی فَوَجَبَ مَهْرُ الْمِثْلِ نو ځکه مهر مثل واجب سو.

**اللغات:** ﴿يَلْغُوْ﴾ د نصر مضارع ده: لغو کېدل، باطلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مسلمان په مهر کې خنزير يا شراب وټاکي، نو د هغه نکاح صحيح ده او ښځې ته به د خنزير يا شرابو پر ځای مهر مثل ورکوي: نکاح يې ځکه صحيح ده چې که څه هم خاوند د خنزير يا د شرابو د قبلولو شرط لګولی دی (کوم چې فاسد شرط دی). خو څرنګه چې نکاح په شروط فاسده وو سره نه فاسديږي، نو ځکه د دغه فاسد شرط هيڅ أثر پر نکاح نه پرېوځي او نکاح هغسې پاتيږي. خو د يو مسلمان په حق کې د خنزير د يا د شرابو تملک او تمليک (يعني د خنزير يا شرابو مالک کېدل يا بل څوک د هغوی مالک کول) ناممکن دي، نو ځکه په مهر کې د هغوی ټاکل صحيح نه دي (يعني د هغوی تسميه صحيح نه ده) او د تسميې د نه صحيح کېدلو په صورت کې مهر مثل واجبيږي، نو ځکه به دلته هم مهر مثل واجبيږي.

**بخلاف البيع إلخ:** فرمايي چې څرنګه د بيع بنياد پر تنګۍ دی، نو ځکه بيع په شرط فاسد و سره فاسدېږي. نو که يو مسلمان شراب يا خنزير په بيع کې د ثمن په توګه وټاکل، نو بيع فاسديږي. لېکن د نکاح دارومدار پر مسامحت او نرمۍ دی، نو ځکه نکاح په شرط فاسد سره نه فاسديږي.

## د هغه صورت تفصيلي بيان چي کله مشارٌ إليه بالکل د مهر جوړېدلو صلاحيت نه لري

فَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً عَلَىٰ هٰذَا الدَّنِّ مِنَ الْخَلِّ او که [يو سړي] د يو ښځي سره د سرکې پر دغه خُم نکاح وکړه فَإِذَا هُوَ خَمْرٌ خو هغه شراب وختل [يعني معلومه سوه چي هغه سرکه نه ده بلکي شراب دي] فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو د هغې لپاره به مهرِ مثل وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا: لَهَا مِثْلُ وَزْنِهِ خَلًّا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د هغې لپاره به د خُم د وزن په اندازه سرکه وي [يعني په خُم کي چي څومره سرکه راتلی سي، هغومره سرکه به ښځي ته ورکوي] وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَىٰ هٰذَا الْعَبْدِ او که هغه د ښځي سره پر غلام نکاح وکړه فَإِذَا هُوَ حُرٌّ خو هغه آزاد وختی يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ❁ نو مهرِ مثل واجبېږي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: تَجِبُ الْقِيمَةُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي قيمت واجبېږي لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ أَطْمَعَهَا مَالًا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي هغه [خاوند] ښځي ته د مال طمع ورکړه [يعني د مال (غلام) په لالچ يې راضي کړه] وَعَجَزَ عَنْ تَسْلِيمِهِ لېکن له ور سپارلو څخه يې عاجز سو فَتَجِبُ قِيمَتُهُ نو ځکه به د هغه قيمت واجبېږي أَوْ مِثْلُهُ إِنْ كَانَ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ يا به يې مثل واجبېږي که چي هغه [تاکل سوی مال] له ذوات الأمثال څخه وي كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ الْمُسَمَّىٰ قَبْلَ التَّسْلِيمِ لکه څرنګه چي په هغه صورت کي [قيمت واجبېږي] چي له ور سپارلو څخه مخکي تاکل سوی غلام هلاک سي وَأَبُو حَنِيفَةَ يَقُولُ: اِجْتَمَعَتِ الْإِشَارَةُ وَالتَّسْمِيَةُ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [دلته] اشاره او تسميه دواړه سره جمع سوي دي فَتُعْتَبَرُ الْإِشَارَةُ نو اعتبار به د اشارې کيږي لِكَوْنِهَا أَبْلَغَ فِي الْمَقْصُودِ ځکه چي اشاره په مقصود کي زياته بليغه [رسېدلې] ده وَهُوَ التَّعْرِيفُ او مقصود تعريف [او پېژندګلوي] ده فَكَأَنَّهُ تَزَوَّجَ عَلَىٰ خَمْرٍ أَوْ حُرٍّ نو ګواکي خاوند [د ښځي سره] پر شرابو يا پر آزاد کس نکاح وکړه وَمُحَمَّدٌ يَقُولُ:

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر فی الخانية (ج:١، ص:١٧٤)، وكـذا فـی الهندية (ج:١، ص:٣١١).
[القول الراجح ج:١، ص: ٢٧٨]

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فی فتح القدير (ج:٣، ص:٢٤٠)، وكذا فی الخانيـة (ج:١، ص:١٧٤).
[القول الراجح ج:١، ص:٢٧٨٠]

الْأَصْلُ أَنَّ الْمُسَمّٰى إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ الْمُشَارِ إِلَيْهِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: قاعده دا ده چې که مسمیٰ [تاكل سوى شى] د هغه شي له جنس څخه وي كوم ته چې اشاره سوې ده [يعني كه مسمیٰ د مشار اليه له جنس څخه وي] يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ نو [په دې صورت كې] عقد د مشار اليه سره متعلق كيږي لِأَنَّ الْمُسَمّٰى مَوْجُودٌ فِي الْمُشَارِ إِلَيْهِ ذَاتًا ځكه چې [په دې صورت كې] مسمیٰ د ذات په اعتبار سره په مشار اليه كې موجود وي وَالْوَصْفُ يَتْبَعُهُ او وصف د ذات تابع كيږي وَإِنْ كَانَ مِنْ خِلَافِ جِنْسِهِ او كه مسمیٰ د مشار اليه له جنس څخه خلاف وي [يعني له مشار اليه څخه يې جنس جلا وي] يَتَعَلَّقُ بِالْمُسَمّٰى نو [په دې صورت كې] عقد د مسمیٰ سره متعلق كيږي لِأَنَّ الْمُسَمّٰى مِثْلٌ لِلْمُشَارِ إِلَيْهِ ځكه چې [په دې صورت كې] مسمیٰ د مشار اليه مثل وي وَلَيْسَ بِتَابِعٍ لَهُ او د هغه تابع نه وي وَالتَّسْمِيَةُ أَبْلَغُ فِي التَّعْرِيفِ او تسميه په تعريف كې زياته بليغه ده مِنْ حَيْثُ أَنَّهَا تُعَرِّفُ الْمَاهِيَّةَ په دې حيثيت سره چې هغه د ماهيت تعريف [پېژندګلوي] كوي وَالْإِشَارَةُ تُعَرِّفُ الذَّاتَ [ليكن] اشاره د ذات تعريف كوي أَلَا تَرٰى أَنَّ مَنِ اشْتَرٰى فَصًّا عَلٰى أَنَّهُ يَاقُوْتٌ آيا ته نه ګورې! چې كه يو څوک پر دې شرط يو غمى رانيسي چې هغه ياقوت دى [يعني په دې نامه يو غمى رانيسي چې دا د ياقوتو غمى دى] فَإِذَا هُوَ زُجَاجٌ خو هغه ښيښه وي لَا يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ نو [په دې صورت كې] عقد نه منعقد كيږي د جنس د مختلف كېدلو په وجه وَلَوِ اشْتَرٰى عَلٰى أَنَّهُ يَاقُوْتٌ أَحْمَرُ او كه هغه پر دې شرط غمى رانيسي چې هغه سور ياقوت دى فَإِذَا هُوَ أَخْضَرُ خو هغه زرغون ياقوت وي يَنْعَقِدُ الْعَقْدُ لِاتِّحَادِ الْجِنْسِ نو عقد منعقد كيږي د جنس د يو والي په وجه وَفِي مَسْأَلَتِنَا الْعَبْدُ مَعَ الْحُرِّ جِنْسٌ وَاحِدٌ او زموږ په دې مسئله كې غلام د آزاد سره يو جنس دى لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَنَافِعِ په منافعو كې د لږ توپير په وجه وَالْخَمْرُ مَعَ الْخَلِّ جِنْسَانِ او شرب د سركې سره دوه جلا جنسونه دي لِفُحْشِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَقَاصِدِ په مقصدونو كې د ډېر توپير په وجه.

**اللغات**: ﴿الدَّنّ﴾ خُم، غټ منګى، لوى خاورين لوښى چې پخوا به خلكو سركه يا اوبه يا شراب په كې ساتل، ﴿أَطْمَعَ﴾ د افعال ماضي ده: طمع وركول، لالچ وركول، ﴿تَعْرِيْف﴾ د تفعيل مصدر دى:

ور پېژندل. ﴿تَسْمِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: ټاکل، نوم اخيستل، مقررول، ذکر کول (بيانول). ﴿مُشَارٌ إِلَيْه﴾ د کوم شي وطرف ته چي اشاره وسي. ﴿مَاهِيَة﴾ حقيقت، اصليت. ﴿فَصّ﴾ غمی. ﴿يَاقُوت﴾ يو قسم قيمتي ډبره ده. ﴿زُجَاج﴾ شيشه، ښيښه. ﴿تَفَاوُت﴾ د تفاعل مصدر دی: توپير، فرق.

**تشريح**: په دې عبارت کي ذکر سوې مسئله ديو فقهي قاعدې سره تعلق لري. قاعده دا ده: "إِذَا اجْتَمَعَتِ الْإِشَارَةُ وَالْعِبَارَةُ تُعْتَبَرُ الْإِشَارَةُ دُوْنَ الْعِبَارَة" يعني کله چي اشاره (يعني په اشاره سره يو شی [په مهر کي] ټاکل) او عبارت (يعني تسميه، يعني د خولې په الفاظو سره يو شی ټاکل) سره جمع سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً د اشارې اعتبار کيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً د تسميې اعتبار کيږي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که "مسمیٰ" د "مشارٌ اليه" له جنس څخه وي (يعني که "ټاکل سوی شی" د هغه شي له جنس څخه وي "کوم ته چي اشاره سوې ده")، نو بيا به د اشارې اعتبار کيږي او که مسمیٰ (ټاکل سوی شی) د مشارٌ اليه (کوم شي ته چي اشاره سوې ده) له جنس څخه نه وي بلکي جنس يې بدل وي، نو بيا به د مسمیٰ اعتبار کيږي.

**اوس عبارت ته ګورئ!** په عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که يو سړي ديو ښځي سره د نکاح کولو په وخت کي يو خُم ته اشاره وکړه او وې ويل چي د سرکې دغه خُم ستا مهر دی (يعني په مهر کي دغه يو خُم سرکه درکوم)، لېکن کله چي وکتل سوه نو هغه خُم د سرکې پر ځای په شرابو ډک وو، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر خاوند مهر مثل واجبيږي (يعني ښځي ته به مهرِ مثل ورکوي) او د صاحبينو په نېز پر خاوند د هغه خُم په اندازه سرکه واجبيږي (يعني ښځي ته به يو خُم سرکه ورکوي).

(۲)... دويمه مسئله دا ده که زيد (مثلاً) د زينب سره د نکاح کولو په وخت کي يو کس ته اشاره وکړه چي دا غلام ستا مهر دی. لېکن وروسته معلومه سوه چي هغه (مسمیٰ) کس غلام نه دی بلکي آزاد دی. نو د طرفينو په نېز په دې صورت کي پر خاوند (زيد) مهرِ مثل واجبيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر هغه د غلام قيمت واجبيږي.

**د امام ابو يوسف دليل**: څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مطلقا د مسمیٰ (تسميې) اعتبار کوي نو د هغه دليل دا دی چي خاوند ښځي ته د مال لالچ او طمع ورکړه او د مال په طمع يې نکاح ته اماده کړه. لېکن کله چي په اوله مسئله کي د سرکې پر ځای شراب وه او په دويمه مسئله کي غلام آزاد

وختي نو په دې وجه خاوند د هغه مطموع مال پر اداء کولو قادر نه سو (یعني د کوم مال طمع چې یې ښځې ته ورکړې وه [چې هغه په اوله مسئله کي سرکه ده او په دویمه مسئله کي غلام دی] مسلمان خاوند د هغه پر ورکولو قدرت نه لري بلکي له دې څخه عاجز دی: ځکه چي شراب او آزاد مال نه دي او د مهر جوړېدلو صلاحیت نه لري). نو اوس که دغه مال له ذواتُ الأمثال څخه وو نو د هغه مثل به پر واجب وي، او که له ذواتُ القیم څخه وو نو د هغه قیمت به پر واجب وي. لهذا په اوله مسئله کي به پر هغه د خُم په اندازه سرکه واجب وي: ځکه چي سرکه له ذواتُ الأمثال څخه ده، او په دویمه مسئله کي به د غلام قیمت پر واجب وي: ځکه چي غلام له ذواتُ القیم څخه دی. لکه څرنګه چي په هغه وخت کي هم قیمت پر واجبیږي کله چي هغه واقعي غلام وي او له ورسپارلو څخه مخکي هلاک سي، او په داسي صورت کي مهرِ مثل نه واجبیږي، نو همداسي به په دویمه مسئله کي هم غلام واجبیږي، نه مهرِ مثل.

**د امام صاحب دلیل** : امام صاحب رَحِمَهُ الله مطلقاً اشاره معتبره ګڼي، نو د هغه د دلیل حاصل دا دی چي په دواړو مسئلو کي اشاره او تسمیه سره جمع سوي دي (یعني په اوله او دویمه مسئله کي د اشارې په اعتبار سره مهر شراب او آزاد کس دی او د تسمیې [تاکلو] په اعتبار سره سرکه او غلام دی) او کله چي اشاره او تسمیه دواړه سره جمع سي او د دواړو مطلب جلا وي نو د اشارې اعتبار به کیږي: ځکه چي اشاره پر مقصود یعني د یو شي پر تعریف او پېژندګلوۍ زیات دلالت کوي، ځکه چي اشاره د "وضعُ الید علی الشئ" له قبیلې څخه ده (یعني پر یو شي لاس ایښول او یو شي ته ګوته نیول) او ښکاره خبره ده چي په لاس ایښولو سره یو شی بالکل د بل شي له احتمال څخه پاکیږي او همدا مقصود دي. نو ځکه به په هر صورت کي د اشارې اعتبار کیږي هغه که مسمیٰ د اشارې له جنس څخه وي او که نه وي.

لنډه دا چي کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اشاره معتبره ده، نو په اوله مسئله کي مشار الیه شراب دي او په دویمه مسئله کي آزاد کس دي، نو داسي سو لکه له شروع څخه چي خاوند آزاد او شرابو ته اشاره کړې وي او هغه یې په مهر کي ټاکلي وي، او په داسي صورت کي مهرِ مثل واجبیږي (ځکه چي دا دواړه مال نه دي)، نو همداسي به په پورتنۍ دوو مسئلو کي هم مهرِ مثل واجبیږي.

**د امام محمد دلیل** : ومحمد یقول إلخ: د امام محمد رَحِمَهُ الله اُصول مخکي تېر سو چي که مسمیٰ د مشار الیه له جنس څخه وي نو بیا به اشاره معتبره وي او د عقد تعلق به د اشارې سره وي، او که مسمیٰ د مشار الیه له جنس څخه نه وي نو بیا به مسمیٰ معتبر وي او د عقد تعلق به د مسمیٰ سره وي. (امام محمد ځکه فقط د مسمیٰ د جنس اعتبار کوي چي د هغه په نېز تسمیه پر تعریف او پېژندګلوۍ زیات دلالت کوي، نه اشاره: وجه به یې وروسته بیان سي. اوس تاسو د هغه دلیل ته ګورئ!)

د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي په اوله مسئله کي مسمیٰ د مشار اليه له جنس څخه نه دی (مسمیٰ سرکه ده او مشار اليه شراب دي؛ او جنس د حقيقت يو والي ته وايي او دلته د دواړو جنسونه سره جلا دي)، ځکه چي شراب جلا شی دی او سرکه جلا شی دی، شراب حرام دي او سرکه حلاله ده. شراب څوک نشه کوي او سرکه څوک نه نشه کوي بلکي نوريې تازه کوي. نو ديوه او بل په مقصد او جنس کي ډېر تفاوت دی، لهذا کله چي دلته (په اوله مسئله کي) د مسمیٰ او مشار اليه دواړو جنس سره جلا دی، نو ځکه به د مسمیٰ يعني د سرکې اعتبار کيږي او عقد به د هغې سره متعلق وي. خو څرنګه چي (په اوله مسئله کي) مسمیٰ (سرکه) نسته، نو ځکه به د هغې مثل پر خاوند واجبيږي؛ ځکه چي سرکه له ذواتُ الأمثال څخه ده.

او په دويمه مسئله کي مسمیٰ (غلام) د مشار اليه (آزاد) له جنس څخه دی، ځکه چي جنس د حقيقت يو والي ته وايي، او د دواړو حقيقت يو دی چي هغه "انسان" دی، او د دواړو په منافعو کي ډېر تفاوت نسته (نو ګواکي غلام د ذات "انسان والي" په اعتبار سره په آزاد کي موجود او د هغه تابع دی).

نو کله چي مسمیٰ د مشار اليه له جنس څخه سو، نو ځکه به د مشار اليه اعتبار کيږي، خو څرنګه چي مشار اليه آزاد دی، مال نه دی (او د مهر جوړېدلو قابل نه دی) نو ځکه به په دويمه مسئله کي پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي.

**والتسمية أبلغ إلخ**: د امام محمد رَحِمَهُ الله د اُصول په ضمن کي موږ وويل چي د امام محمد په نېز تسميه پر تعريف زيات دلالت کوي او تسميه په پېژندګلوۍ کي زياته بليغه ده، په دې عبارت کي د هغه وجه بيانوي، تر هغه مخکي يو وار تاسي په "ذات" او "ماهيت" ځان پوه کړئ! **ذات**: کوم شی چي په خارج کي موجود وي او د هغه طرف ته اشاره کېدلای سي نو په منطق کي هغه شي ته "ذات" وايي. **ماهيت**: د کوم شي چي فقط نوم واخيستل سي او حقيقت يې بيان کړی سي نو دغه حقيقت ته "ماهيت" وايي (نو دلته په مسمیٰ کي [يعني په سرکه او غلام کي] ماهيت دی ځکه چي خاوند فقط د هغوی نوم اخيستی دی او حقيقت [يعني جنس] يې بيان کړی دی. او په اشاره [يعني په شراب او آزاد] کي ذات دی، ځکه چي په خارج کي هغوی موجود دي او خاوند اشاره ورته کړې ده).

نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز تسميه ځکه له اشارې څخه زيات پر تعريف دلالت کوي چي په تسميه سره د يو شي د ماهيت (حقيقت) تعريف کيږي (يعني په تسميه او نوم اخيستلو سره د يو شي ماهيت پېژندل کيږي چي هغه څه شي دی)، او په اشاره سره فقط د ذات (او خارج) تعريف کيږي. او د ماهيت تعريف د ذات له تعريف څخه اولیٰ او غوره دی، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله د

دواړو جنس سره جلا وي نو په دې وخت کې به تسميه معتبره وي (ځکه چې حقيقت د ذات تابع نه سي جوړېدلای) او د عقد تعلق به د تسميې او ماهيت سره وي، او که داسې نه وي نو بيا به اشاره معتبره وي او د عقد تعلق به د اشارې سره وي.

**ألا ترى أن إلخ**: په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله د أصول مطابق يو مثال بيانوي، مثال دا دی چې که يو څوک يو غمی رانيسي او په دې شرط يې رانيسي چې هغه ياقوت دی لېکن هغه ښيښه وي، نو عقد (بيع) فاسديږي، ځکه مسمیٰ ياقوت دی او اشاره د ښيښې و طرف ته وسوه، او د دې دواړو جنس سره جلا دی. نو ځکه به د عقد تعلق د مسمیٰ (ياقوت) سره وي، او دلته ياقوت نسته، نو ځکه به بيع فاسده وي.

او که يو غمی په دې شرط رانيسي چې هغه سُور دی لېکن هغه زرغون وي، نو عقد (بيع) صحيح کيږي، ځکه چې د دواړو جنس يو دی، فقط په صفت کې يې فرق دی، نو ځکه به د عقد تعلق د مشار اليه (زرغون غمي) سره وي او صحيح به وي، خو څرنګه چې دلته د احمريت (سُور والي) وصف نسته، نو په دې وجه به مشتري ته د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم

## که دوه غلامان په مهر کې وټاکل سي او په هغوی کې يو آزاد ثابت سي (حکم او اختلاف)

فَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلٰى هٰذَيْنِ الْعَبْدَيْنِ او که [يو سړي] نکاح وکړه د ښځې سره پر دې دوو غلامانو فَإِذَا أَحَدُهُمَا حُرٌّ لېکن په هغو کې يو آزاد وختی فَلَيْسَ لَهَا إِلَّا الْبَاقِي إِذَا سَاوٰى عَشَرَةَ دَرَاهِمَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ۞ نو د ښځې لپاره به فقط پاته [غلام] وي په دې شرط چې [د هغه قيمت] د لسو درهمو سره برابر وي [او تر لسو درهمو کم نه وي] لِأَنَّهُ مُسَمًّى ځکه چې هغه [په مهر کې] ټاکل سوی دی [يعني دا باقي غلام مهر مسمیٰ دی] وَوُجُوْبُ الْمُسَمّٰى وَإِنْ قَلَّ يَمْنَعُ وُجُوْبَ مَهْرِ الْمِثْلِ او مسمیٰ که څه هم کم وي د مهرِ مثل واجبېدل منع کوي وَقَالَ أَبُوْ يُوسُفَ: لَهَا الْعَبْدُ وَقِيمَةُ الْحُرِّ لَوْ كَانَ عَبْدًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د ښځې لپاره به [يو باقي] غلام وي او [بل به] د آزاد قيمت وي که هغه غلام فرض کړی سي لِأَنَّهُ أَطْمَعَهَا سَلَامَةَ الْعَبْدَيْنِ ځکه چې خاوند ښځې ته د دوو غلامانو د سلامتيا طمع ورکړه

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٣٨٠)، وكذا في الخانية (ج:١، ص:١٧٤).
[القول الراجح ج:١، ص:٢٨١]

وَعَجَزَعَنْ تَسْلِيمِ أَحَدِهِمَا او په هغوی کي د يوه له ور سپارلو څخه عاجزه سو فَتَجِبُ قِيمَتُهُ نو [ځکه] به د هغه قيمت واجبيږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی لَهَا الْعَبْدُ الْبَاقِي إِلَى تَمَامِ مَهْرِ مِثْلِهَا إِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَكْثَرَ مِنْ قِيمَةِ الْعَبْدِ چي د ښځي لپاره به پاته غلام وي د مهر مثل تر پوره کېدلو پوري. که چيري د هغې مهرِ مثل د غلام تر قيمت زيات وي لِأَنَّهُمَا لَوْ كَانَا حُرَّيْنِ يَجِبُ تَمَامُ مَهْرِ الْمِثْلِ عِنْدَهُ ځکه که چيري هغه دواړه [غلامان] آزاد وي نو د امام محمد په نيز پوره مهرِ مثل واجبيږي فَإِذَا كَانَ أَحَدُهُمَا عَبْدًا نو کله چي په دواړو کي يو غلام وي يَجِبُ الْعَبْدُ إِلَى تَمَامِ مَهْرِ الْمِثْلِ نو هم به د مهرِ مثل تر پوره کېدلو پوري غلام واجبيږي.

**اللغات:** ﴿سَاوَى﴾ د مفاعلې ماضي ده: برابرېدل، مساوي کېدل، ﴿مسمّٰى﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: ټاکل سوی، ﴿أَطْمَعَ﴾ د افعال ماضي ده: طمع ورکول، لالچ ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د نکاح په وخت کي دوو غلامانو ته اشاره وکړه او ښځي ته يې وويل چي په دغه دوو غلامانو نکاح در سره کوم (يعني دا دواړه غلامان ستا مهر دی)، وروسته معلومه سوه چي په دواړو کي يو آزاد دی او بل غلام دی. نو په دې مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي که د غلام قيمت لس درهمه وي نو فقط هغه يو غلام پر خاوند واجب دی، او که قيمت يې تر لس درهمه کم وي نو هغه دې خاوند ور پوره کړي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دلته خاوند تسميه او اشاره دواړه سره جمع کړي دي، او په داسي صورت کي اشاره معتبره وي، خو ځرنګه چي د آزاد والي په وجه په يوه مشار اليه کي اشاره معدومه ده، نو ځکه به هغه له عقد څخه خارج وي، او پاته مشار اليه (يو غلام) به مهر جوړېږي؛ ځکه چي هغه د مشار اليه تر څنګ مسمىٰ هم دی، او د مسمىٰ د وجوب په صورت کي مهرِ مثل نه واجبيږي؛ ځکه چي مهرمثل د مسمىٰ بدل دی، او بدل او مبدل يو ځای نه سي سره جمع کېدلای. نو ځکه به يوازي هغه غلام واجب وي، په دې شرط چي قيمت يې تر لس درهمه کم نه وي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي پر خاوند غلام هم واجب دی او د آزاد قيمت هم پر واجب دی، يعني آزاد به په غلام فرض کيږي او د قيمت اندازه به يې معلومول کيږي، څومره قيمت چي يې را ووځي هغومره قيمت هم پر خاوند واجب دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي خاوند ښځي ته ـ دوو غلامانو طمع او لالچ ورکړی دی او د دوو غلامانو په طمع يې ښځه پر نکاح راضي کړې ده، خو څرنګه چي خاوند ديوه دآزادوالي په وجه دهغه له ورسپارلو څخه عاجز دی، نو ځکه به د هغه قيمت واجب وي.

او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي (او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دی) چي پر خاوند غلام واجب دی د مهرِ مثل تر پوره کېدلو پوري، يعني که د دې يوه غلام قيمت د ښځي د مهرِ مثل په اندازه وي نو يوازي همدا غلام پر هغه واجب دی، لېکن که د هغه قيمت د ښځي تر مهرِمثل کم وي مثلاً د ښځي مهرِ مثل زر (۱۰۰۰) درهمه وي او د غلام قيمت اته سوه (۸۰۰) درهمه وي نو خاوند به ښځي ته د غلام سره دوه سوه (۲۰۰) درهمه نور ورکوي چي د هغې مهرِ مثل پوره سي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي که دغه دواړه غلامان آزاد وای نو بيا به پر خاوند پوره مهرِمثل واجب وای، لهذا کله چي دلته په هغو کي صرف يو آزاد دی نو هم به پر خاوند د مهرِ مثل تر پوره کېدلو پوري يو غلام واجب وي، يعني که په دغه يوه غلام سره د ښځي مهرِ مثل پوره کېدی نو ښه خبره ده! او د دې غلام ورکول به داسي وي لکه مهرِ مثل ورکول، لېکن که په غلام سره د ښځي مهرِ مثل نه پوره کېدی نو يو څه خوشمړي به نوري ورکوي چي مهرِ مثل يې پوره سي (او که مهرِ مثل د غلام تر قيمت هم کم وي، نو بيا د غلام قيمت غوره دی).

## په نکاحِ فاسد کي تر تفريق وروسته د مهر احکام

وَإِذَا فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ قَبْلَ الدُّخُولِ او کله چي قاضي د ښځي او خاوند تر مينځ په نکاحِ فاسد کي تر دخول مخکي تفريق وکړي فَلَا مَهْرَ لَهَا نو د ښځي لپاره به مهر نه وي لِأَنَّ الْمَهْرَ فِيهِ لَا يَجِبُ بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ لِفَسَادِهِ ځکه چي مهر په نکاحِ فاسد کي محض په عقد سره نه واجبيږي، د عقد د فساد په وجه وَإِنَّمَا يَجِبُ بِاسْتِيفَاءِ مَنَافِعِ الْبُضْعِ بلکي [په نکاحِ فاسد کي] د بضع د منافعو په حاصلولو سره مهر واجبيږي وَكَذَا بَعْدَ الْخَلْوَةِ او همدارنګه [په نکاحِ فاسد کي] تر خلوتِ [صحيحه] وروسته هم مهر نه واجبيږي لِأَنَّ الْخَلْوَةَ فِيهِ لَا يَثْبُتُ بِهَا التَّمَكُّنُ ځکه په نکاحِ فاسد کي په خلوت سره قدرت [پر وطي] نه ثابتيږي فَلَا تُقَامُ مَقَامَ الْوَطْءِ نو ځکه به خلوت د وطي نه قائم مقام کيږي فَإِنْ دَخَلَ بِهَا او که خاوند په ښځي دخول وکړي فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا لَا يُزَادُ عَلَى الْمُسَمَّى عِنْدَنَا نو د هغې لپاره به مهرِ مثل وي چي هغه به زموږ په نېز پر مهرِ مسمیٰ نه زياتول کيږي خِلَافًا

لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْبَيْعِ الْفَاسِدِ هغه دا [نکاحِ فاسد] پر بیعِ فاسد قیاسوي وَلَنَا: أَنَّ الْمُسْتَوْفىٰ لَيْسَ بِمَالٍ او زمونږ دلیل دا دی: چې حاصل سوی شی [یعني بضع] مال نه دی وَإِنَّمَا يَتَقَوَّمُ بِالتَّسْمِيَةِ بلکي هغه خو [د مهر] په ټاکلو سره قیمتداره کیږي [یعني بضع هغه وخت مال ګرځي کله چې یې په عوض کي مهر وټاکل سي] فَإِذَا زَادَتْ عَلىٰ مَهْرِ الْمِثْلِ لهذا کله چې تسمیه [ټاکل سوی مهر] پر مهرِ مثل زیات سي لَمْ تَجِبِ الزِّيَادَةُ نو زیاتوب به نه واجبیږي [یعني تر مهرِ مسمیٰ به زیات مهر ښځي ته نه ورکول کیږي] لِعَدَمِ صِحَّةِ التَّسْمِيَةِ ځکه چې تسمیه صحیح نه ده وَإِنْ نَقَصَتْ لَمْ تَجِبِ الزِّيَادَةُ عَلَى الْمُسَمّٰى او که تسمیه اله مهرِ مثل ا څخه کمه سي نو هم به پر مسمیٰ زیاتوب نه واجبیږي لِانْعِدَامِ التَّسْمِيَةِ ځکه چې [تر دې زیاته] تسمیه نسته بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بیع لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوِّمٌ فِي نَفْسِهِ ځکه چې بیع [یعني په بیع کي بدل] بذاتهٖ متقوم [قیمتداره] مال وي فَيَتَقَدَّرُ بَدَلُهُ بِقِيمَتِهِ نو د هغه بدل به په خپل قیمت سره اندازه کیږي وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ او [په نکاح فاسد کي تر تفریق وروسته] پر ښځي عدت واجب دی إِلْحَاقًا لِلشُّبْهَةِ بِالْحَقِيقَةِ فِي مَوْضِعِ الِاحْتِيَاطِ د حقیقي نکاح سره د شبهةُ النکاح په لاحقولو سره د احتیاط په ځایونو کي وَتَحَرُّزًا عَنِ اشْتِبَاهِ النَّسَبِ او د نسب له اشتباه [او شک] څخه د ځان ساتلو لپاره.

**اللغات:** ﴿فَرَّقَ﴾ د تفعیل ماضي ده: یو له بل څخه بېلول، جلا کول. ﴿مُجَرَّد﴾ محض، فقط، یوازي. ﴿إِسْتِيْفَاء﴾ په پوره توګه (حق) اخیستل، په پوره توګه حاصلول. ﴿بُضْع﴾ د ښځي فرج (شرمګاه)، جمع یې "أَبْضَاع" راځي لکه د "قُفْل" جمع چې "أَقْفَال" راځي. ﴿التَّمَكُّن﴾ د تفعّل مصدر دی: قدرت پیدا کول. ﴿مُسْتَوْفىٰ﴾ د استفعال اسمِ مفعول دی: په پوره توګه حاصل سوی شی. مراد ځني "بضع" او "د بضع منافع" دي. ﴿يَتَقَوَّمُ﴾ د تفعّل مضارع ده: قیمتداره کېدل، د قیمت خاوند جوړېدل (قیمتي کېدل).

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي دیو ښځي سره نکاحِ فاسد (فاسده نکاح) وکړه. مثلاً له ګواهانو څخه بغیر یې دیو ښځي سره نکاح وکړه. یا یې خپلي ښځي ته طلاق ورکړی او بیا یې د هغې په عدت کي د هغې د خور سره نکاح وکړه. یا یې د څلورمي ښځي په عدت کي د پنځمي ښځي سره نکاح وکړه. یا داسي یو بل صورت یې اختیار کړی چې په هغه سره نکاح فاسدیږي، او بیا په دې

صورت کي خاوند تر اوسه په ښځي دخول کړی نه وو چي د قاضي په حکم سره د دوی په مينځ کي تفريق واقع وسو او خاوند او ښځه يو له بل څخه جلا کړی سوه، نو په دې صورت کي پر خاوند هيڅ مهر نه واجبيږي او ښځي ته به يوه ذره مهر هم نه ورکوي؛ دليل يې دا دی چي په نکاحِ فاسد کي محض په عقد (يعني محض د نکاح په تړون) سره مهر نه واجبيږي ځکه چي عقد (تړون) فاسد دی، بلکي مهر د بضع د منافعو په حصول سره (يعني په دخول او وطي) سره واجبيږي، او دليل دا حديث دی: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ. فَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا الْمَهْرُ لِمَا اسْتَحَلَّ مِنْ فَرْجِهَا" (يعني کومه ښځه چي د خپل ولي له اجازې څخه بغير نکاح وکړي نو د هغې نکاح باطله ده، ليکن که خاوند په هغې دخول وکړي نو د هغې لپاره به مهر وي، په دې وجه چي خاوند د هغې شرمګاه حلاله وګڼله)، له دې حديث څخه معلومه سوه چي په باطله او فاسده نکاح کي مهر فقط په دخول سره واجبيږي، نه په عقد او خلوت سره.

**وکذا بعد الخلوة إلخ**: مخکي ذکر سوه چي که څوک د خپلي ښځي سره خلوتِ صحيحه وکړي نو دغه خلوت د وطي قائم مقام کيږي او د دې په وجه پر هغه د ښځي مهر واجبيږي، ليکن څرنګه چي د نکاحِ فاسد ښځه په حقيقت کي خپله ښځه نه ده، نو ځکه به د هغې سره خلوتِ صحيحه کول د وطي نه قائم مقام کيږي، لهذا کله چي په نکاحِ فاسد کي د ښځي سره خلوتِ صحيحه د وطي قائم مقام نه دی، نو د هغه په وجه به مهر هم نه واجبيږي (ځکه چي مهر په هغه خلوت سره واجبيږي کوم چي د وطي او دخول قائم مقام وي).

**فإن دخل بها إلخ**: ليکن که خاوند په نکاحِ فاسد کي د ښځي سره وطي وکړي او دخول په وکړي، نو بيا زموږ په نيز د مخکني حديث په وجه پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي، خو دا مهرِ مثل به پر مهرِ مسمیٰ (تاکل سوي مهر) نه زياتول کيږي، لنډه دا چي په مهرِ مثل او مهرِ مسمیٰ کي چي کوم يو کم وي هغه پر خاوند واجبيږي، مثلاً که د نکاح په وخت کي پنځه سوه درهمه تاکل سوي وي او مهرِ مثل د ښځي شپږ سوه وي نو پنځه سوه درهم واجبيږي، او که د نکاح په وخت کي پنځه سوه درهمه تاکل سوي دي او مهرِ مثل يې څلور سوه وي نو څلور سوه واجبيږي. (اثمار الهداية ج،۴، ص،۲۱۳)

خو امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په هر صورت کي مهرِ مثل واجبيږي هغه که هر څومره تر مهرِ مسمیٰ زيات وي؛ د هغه دليل دا دی چي کله يو څوک فاسده بيع وکړي نو پر هغه د مبيع (بازاري) قيمت واجبيږي هغه که هر څومره زيات وي، نو همداسي به نکاح هم وي چي که څوک فاسده نکاح

وکړي او بضع استعمال کړي نو پر هغه به خاص دبضع قيمت (مهرمثل) واجبيږي هغه که هر څومره وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي په نکاحِ فاسد کي په دخول سره مهر واجبيږي؛ ځکه چي مستوفیٰ يعني بضع دمبيع په څير مُتقوّم (قيمت لرونکی) مال نه دی، او بضع هغه وخت مُتقوّم مال ګرځي کله چي د نکاح په وخت کي د بضع په عوض کي مهر وټاکل سي، خو څرنګه چي دغه نکاح فاسده ده (او په فاسده نکاح کي په دخول سره مهرِ مثل واجبيږي) نو ځکه به اوس د بضع تقوّم په مهرِ مثل سره وي، او څرنګه چي تسميه هم فاسده ده، نو ځکه به مهرِ مثل تر مسمیٰ نه زياتول کيږي (يعني تر مسمیٰ به زيات مهر نه ورکول کيږي).

او که تسميه (مهرِ مسمیٰ) له مهرِ مثل څخه کم وي او مهرِ مثل زيات وي نو د مهرِ مثل د پوره کولو لپاره به نور زيات مهر ښځي ته نه ورکول کيږي؛ ځکه چي تر مسمیٰ د زيات مهر لپاره تسميه معلومه ده (يعني دغومره مهر ټاکل سوی دی او تر دې يو ذره هم نه دي زيات کړی سوی) نو څرنګه به زياتوب صحيح سي، او بله خبره دا ده چي کله ښځه په مهرِ مسمیٰ (کوم چي تر مهرِ مثل کم دی) راضي ده نو ګواکي د خپل حق په کمولو راضي ده (او د خپل حق په کمولو کي پر ښځي هيڅ اعتراض نه سي کېدای).

بخلاف البيع إلخ: د امام زفر رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي چي په بيع کي مبيع په خپله مال دی، او داسي نه ده لکه بضع چي په مال جوړولو سره مال جوړيږي، نو ځکه به د بيع د فساد په صورت کي (د بازار) په قيمت سره به د مبيع اندازه لګول کيږي او هغه به ورکول کيږي، لهذا په بيع باندي نکاح قياسول صحيح نه دي.

وعليها العدة إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله خاوند په نکاحِ فاسد کي د قاضي له تفريق څخه مخکي په ښځي دخول وکړي نو احتياطاً تر تفريق وروسته پر ښځي عدت واجبيږي ځکه چي د حقيقي او صحيح نکاح په څير په نکاحِ فاسد کي هم د نکاح شبه سته، او قاعده دا ده چي د احتياط په ځايونو کي شبه د حقيقت پر ځای دريږي او پر شبهي د حقيقت حکم جاري کيږي. نو څرنګه چي په حقيقي نکاح کي تروطي (دخول) وروسته په تفريق يا طلاق سره پر ښځي عدت واجبيږي، همدارنګه به په نکاح فاسد کي هم عدت واجبيږي چي په احتياط عمل وسي او نسب له شبهي څخه وساتل سي او د نبي کريم ﷺ له دغه وعيد څخه هم په أمن سي: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَسْقِيَنَّ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ".

## په نکاحِ فاسد کې د عدت شروع کېدلو وخت

وَيُعْتَبَرُ ابْتِدَاؤُهَا مِنْ وَقْتِ التَّفْرِيقِ او د عدت ابتداء د تفريق له وخت څخه معتبره ده لَا مِنْ آخِرِ الْوَطَآتِ نه له آخري وطي څخه هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهَا تَجِبُ بِاعْتِبَارِ شُبْهَةِ النِّكَاحِ ځکه چې عدت د شبهِ نکاح په اعتبار سره واجبيږي وَرَفْعُهَا بِالتَّفْرِيْقِ او دا شبهه [د نکاح] په تفريق سره ختميږي وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا او د ښځې د بچي نسب به [د خاوند سره] ثابتيږي لِأَنَّ النَّسَبَ يُحْتَاطُ فِي إِثْبَاتِهِ إِحْيَاءً لِلْوَلَدِ ځکه چې د نسب په ثابتولو کې احتياط کيږي د بچي د ژوندي ساتلو لپاره فَيَتَرَتَّبُ عَلَى الثَّابِتِ مِنْ وَجْهٍ نو پر من وجه ثابت سوي نکاح به [هم] نسب مرتب کيږي وَتُعْتَبَرُ مُدَّةُ النَّسَبِ مِنْ وَقْتِ الدُّخُوْلِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د دخول له وخت څخه د نسب د مودې اعتبار کيږي وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدغه فتویٰ ده لِأَنَّ النِّكَاحَ الْفَاسِدَ لَيْسَ بِدَاعٍ إِلَيْهِ ځکه چې نکاحِ فاسد د دخول وطرف ته بلونکې نه ده وَالْإِقَامَةُ بِاعْتِبَارِهٖ او قائم مقام کېدل [د نکاح پر ځای د وطي] په همدغه اعتبار سره دي [چې نکاح به د وطي وطرف ته داعي او بلونکې وي].

**اللغات:** ﴿التَّفْرِيْق﴾ د تفعيل مصدر دی: جلا کول (د خاوند او ښځې په مينځ کې طلاق واقع کول)، ﴿إِحْيَاء﴾ د إفعال مصدر دی: ژوندی ساتل (ژوندی لرل)، ژوند ور کول، ﴿دَاعٍ﴾ د نصر اسمِ فاعل دی: را بلونکی، راغوښتونکی.

**تشريح:** په تېر عبارت کې دا مسئله بيان سوه چې که په نکاحِ فاسد کې خاوند د ښځې سره وطي وکړي نو د نسب د ساتنې په خاطر احتياطاً پر ښځې عدت واجبيږي، په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د عدت واجبېدلو د وخت په باره کې بيان کوي، فرمايي چې د صحيح قول مطابق په نکاحِ فاسد کې پر ښځې تر تفريق وروسته عدت واجبيږي، يعني په کومه ورځ چې قاضي د ښځې او خاوند تر مينځ تفريق وکړي، نو له هغه ورځې څخه د ښځې عدت شروع کيږي، له آخري وطي څخه نه شروع کيږي (يعني په کومه ورځ چې خاوند آخري وطي ورسره کړې وي له هغه ورځې څخه يې عدت نه شروع کيږي) لکه څرنګه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی، صاحب د هدايې د "هُوَ الصَّحِيْح" په قيد سره د هغه له قول څخه احتراز کړی دی. نو د مسئلې صورت دا دی چې که يو سړي په نکاحِ فاسد کې يوه مياشته مخکې د ښځې سره وطي کړې وي او بيا تر هغه (يوې مياشتې) وروسته قاضي د دوی په مينځ کې تفريق وکړي، نو د دغه ښځې عدت د تفريق له ورځې څخه (يعني تر آخري وطي يوه مياشته

وروسته) شروع کيږي، له آخري وطي څخه (يعني يوه مباشته مخکي) نه شروع کيږي: دليل دا دی چي په نکاحِ فاسد کي د نکاح شبهه سته او عدت د دغه شبهي په وجه واجبيږي او دغه شبهه په تفريق سره ختميږي، نو ځکه به عدت هم له تفريق څخه شروع کيږي.

**ويثبت إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که په نکاحِ فاسد کي ښځه د خاوند په وطي سره حامله سي، نو د دې ښځي د کوچني نسب د همدغه خاوند سره ثابتيږي؛ دليل دا دی چي د کوچني د پالني او تربيت کولو او د هغه د ژوندي ساتلو لپاره د نسب په ثابتولو کي احتياط کيږي؛ ځکه که د دې خاوند سره د کوچني نسب ثابت نه سي، نو کوچنی به بې نسبه پاته سي او د هغه د روزني او پالني لپاره به څوک نه وي نو په دې توګه به هغه ضائع سي، لهذا کومه نکاح چي فقط من وجه ثابته وي (لکه نکاحِ فاسد چي من وجه ثابته ده) نو په هغه سره به هم نسب ثابتيږي، د دې لپاره چي کوچنی بې نسبه پاته نه سي.

**وتعتبر إلخ**: په نکاحِ صحيح کي چي له کوم وخت څخه نکاح ترل سوې وي له هغه وخت څخه د کوچني نسب ثابتيږي، ليکن په نکاحِ فاسد کي به د دخول له وخت څخه د کوچني نسب ثابتيږي، دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی، ليکن شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د نکاحِ صحيح په څير به په نکاحِ فاسد کي هم د نکاح له وخت څخه د کوچني نسب ثابتيږي، نو که د نکاحِ فاسد له وخت څخه شپږ مياشتي وروسته کوچنی پيدا سي ليکن د دخول له وخت څخه يې شپږ مياشتي نه پوره کيږي، نو د شيخينو په نيز (د دې خاوند سره د کوچني) نسب ثابتيږي او د امام محمد په نيز نه ثابتيږي، او فتوىٰ هم د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول ده، او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قياس صحيح نه دی، ځکه چي په نکاحِ صحيح کي وطي حلال او روا دي او نکاحِ صحيح د وطي و طرف ته داعي او بلونکې نکاح ده، نو په دې وجه به هغه د وطي قائم مقام منل کيږي او د نکاح له وخت څخه به په هغه (نکاحِ صحيح) کي نسب ثابتيږي، ليکن په نکاحِ فاسد کي وطي حرام او ناروا دي او هغه د وطي و طرف ته بلونکې نکاح نه ده، نو هغه به د وطي قائم مقام هم نه وي، لهذا په هغه (نکاحِ فاسد) کي به فقط د وطي او دخول له وخت څخه نسب ثابتيږي.

## د مهرِ مثل بيان

قَالَ: وَمَهْرُ مِثْلِهَا يُعْتَبَرُ بِأَخَوَاتِهَا وَعَمَّاتِهَا وَبَنَاتِ أَعْمَامِهَا فرمايي: او د ښځي مهرِ مثل به قياسول کيږي د هغې پر خوندو او امه ګانو او د اکا پر لونو لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ: لَهَا مَهْرُ مِثْلِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ فِيهِ وَلَا شَطَطَ د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دې قول په وجه: چي د ښځي لپاره به د خپلو ښځو په څير مهر وي چي نه به په هغه کي څه کمي کيږي او نه څه زياتوب وَهُنَّ أَقَارِبُ الْأَبِ او هغه اخپلي ښځي ا د پلار نژدې قريباني دي وَلِأَنَّ الْإِنْسَانَ مِنْ جِنْسِ قَوْمِ أَبِيهِ او ځکه چي انسان د خپل پلار د

قوم له جنس څخه وي وَقِيْمَةُ الشَّيْءِ إِنَّمَا تُعْرَفُ بِالنَّظَرِ فِي قِيْمَةِ جِنْسِهِ او د شي قيمت د هغه د جنس په قيمت کي په نظر [او غور] کولو سره معلوميږي وَلَا يُعْتَبَرُ بِأُمِّهَا وَخَالَتِهَا إِذَا لَمْ تَكُونَا مِنْ قَبِيْلَتِهَا او د ښځي پر مور او خاله به [د هغې] مهر نه قياسول کيږي که چيري هغوی د ښځي له قبيلې څخه نه وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَإِنْ كَانَتِ الْأُمُّ مِنْ قَوْمِ أَبِيْهَا بِأَنْ كَانَتْ بِنْتَ عَمِّهِ ليکن که مور د ښځي د پلار له قوم څخه وي په دې توګه چي د پلار د اکا لور وي فَحِيْنَئِذٍ يُعْتَبَرُ بِمَهْرِهَا نو په دې وخت کي به [د ښځي مهر] د مور پر مهر قياسول کيږي لِمَا أَنَّهَا مِنْ قَوْمِ أَبِيْهَا ځکه چي [په دې صورت کي] مور د هغې د پلار له قوم څخه ده وَيُعْتَبَرُ فِي مَهْرِ الْمِثْلِ أَنْ تَتَسَاوَى الْمَرْأَتَانِ او اعتبار به کيږي په مهر کي د دې چي دواړي ښځي به برابري وي فِي السِّنِّ وَالْجَمَالِ وَالْمَالِ وَالْعَقْلِ وَالدِّيْنِ وَالْبَلَدِ وَالْعَصْرِ په عمر، ښايست، عقل، دين، ښار او زمانه کي لِأَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ هٰذِهِ الْأَوْصَافِ ځکه چي د دې اوصافو په بدلېدو سره مهرِ مثل هم بدليږي وَكَذَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الدَّارِ وَالْعَصْرِ او همدارنګه د ملک او زمانې په بدلېدلو سره هم مهرِ مثل بدليږي قَالُوا: وَيُعْتَبَرُ التَّسَاوِيْ أَيْضًا فِي الْبَكَارَةِ فقهاء فرمايي: چي په بکارت کي هم برابري ضروري ده لِأَنَّهُ يَخْتَلِفُ بِالْبَكَارَةِ وَالثُّيُوْبَةِ ځکه چي په باکره کېدلو او ثيبه کېدو سره هم مهرِ مثل بدليږي.

**اللغات:** ﴿عَمَّات﴾ جمع د "عَمَّة" ده: امه (د پلار خور)، ﴿أَعْمَام﴾ جمع د "عَمٌّ" ده: اکا (د پلار ورور)، ﴿وَكَس﴾ د ضرب مصدر دی، وَكَسَ يَكِسُ وَكْسًا: کمېدل، لږېدل، ﴿شَطَط﴾ دا هم د ضرب مصدر دی، شَطَّ يَشِطُّ شَطًّا وَ شَطَطًا: زياتوب کول، له حد څخه تجاوز کول، ﴿أَقَارِب﴾ جمع د "أَقْرَب" ده: ډېر نژدې، مراد څني د انسان نژدې قريبان او خپلوان دي، او د "قَرِيْب" جمع بيا "أَقْرِبَاء" راځي، ﴿الدَّار﴾ کور، دلته څني مراد ملک او هيواد دی، او کله نا کله دارُ الاسلام او دارُ الحرب څني مراديږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز به د ښځي مهرِ مثل د ښځي د خاندان پر هغه ښځو قياسول کيږي چي د هغو نسبت د پلار و طرف ته کيږي، مثلاً خور، امه، د اکا لور او داسي نور، نو د هغو مهرونه چي څومره وي د هغه مطابق به د ښځي مهر ټاکل کيږي، او همدې ته "مهر مثل" وايي. او په دې باره کي زموږ حجت د حضرت ابن مسعود رَضِيَ الله قول دی کوم چي په کتاب ذکر سو يعني: "لَهَا مَهْرُ مِثْلِ نِسَائِهَا" او په دې سره موږ په دې توګه دليل نيسو چي په دې کي د ښځي نسبت د

خپلو ښځو (نسائها) و طرف ته سوي دی، او څرنګه چې په نسب کي د پلار اعتبار کيږي نو له خپلو ښځو څخه به مراد هغه ښځي وي چې د هغو نسبت د ښځي د پلار و طرف ته کيږي او د هغو مهرونه به د ښځي د مهرِ مثل لپاره أصل او بنياد ګڼل کيږي.

عقلي دليل دا دی چې پلار ته منسوبه ښځي د پلار د قوم له جنس څخه وي، او دا ښکاره خبره ده چې که څوک د يو شي قيمت معلومول غواړي نو هغه به د دغه شي د جنس قيمت ته ګوري، نو همداسي به د ښځي د مهر معلومولو لپاره هم د هغه ښځو ومهر ته کتل کيږي کوم چې د پلار وطرف ته منسوبه وي.

ولا تعتبر الخ: فرمايي که د يو ښځي مور او خاله د پلار له خاندان څخه نه وي نو د دې ښځي مهرِ مثل به د هغو پر مهرونو نه قياسول کيږي؛ د مخکني دليل په وجه، يعني د يو شي قيمت د هغه په جنس سره معلوميږي او دلته په جنس کي تغير او اختلاف دی، او که د ښځي مور يا خاله د پلار له خاندان څخه وي مثلاً د پلار د اکالور وي، نو په دې صورت کي قياسول کېدای سي او د مور يا خاله مهر د ښځي لپاره مهرِ مثل جوړېدای سي.

ويعتبر الخ: فرمايي چې په مهرِ مثل کي به د دې اعتبار هم کيږي چې دغه دواړي ښځي به په اوو (٧) شيانو کي سره مساوي او برابري وي: ① عمر، ② ښکلا، ③ مال، ④ عقل، ⑤ دين، ⑥ ښار، ⑦ زمانه، ځکه چې د دغه شيانو په اختلاف او تفاوت سره په مهر کي هم تفاوت راځي، ځکه چې د پېغلو ښځو مهر د زړو ښځو تر مهر زيات وي، همدارنګه که يوه ښځه د افغانستان وي او بله د عربستان وي نو د دواړو په مهر کي ډېر فرق وي، همدارنګه که د دوو ښځو زمانه سره جلا وي، نو هم يې په مهر کي فرق راځي.

قالوا ويعتبر الخ: له پورتني اوو (٧) شيانو څخه بغير د ځينو علماؤ په نيز په بکارت او ثيوبت کي هم مساوات ضروري دی، يعني دواړي ښځي به باکرې وي يا دواړي به ثيّبې وي؛ د دې وجه دا ده چې د باکرې مهر هم د ثيّبې په مقابله کي زيات وي او په ثيوبت سره د بضع په قيمت کي ډېر بدلون راځي، نو ځکه به په دې کي هم برابري او مساوات ضروري وي.

## د مهر د ضمانت اخيستلو بيان

وَإِذَا ضَمِنَ الْوَلِيُّ الْمَهْرَ او کله چې ولي [د ښځې لپاره] د مهر ضامن سي صَحَّ ضَمَانُهُ نو د هغه ضمان [ضامن کېدل] صحيح دي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الِالْتِزَامِ ځکه چې هغه پر خپل ځان [د يو شي] د لازمولو أهل دی [ځکه چې عاقل او بالغ دی] وَقَدْ أَضَافَهُ إِلَى مَا يَقْبَلُهُ [همدارنګه] هغه د داسي شي وطرف ته ضمان منسوب کړی دی کوم چې ضمان قبلوي فَيَصِحُّ نو ځکه به [د هغه] ضمان صحيح وي ثُمَّ الْمَرْأَةُ بِالْخِيَارِ فِي مُطَالَبَتِهَا زَوْجَهَا أَوْ وَلِيَّهَا بيا ښځي ته اختيار دی له خپل خاوند څخه په مطالبه کولو کي يا له خپل ولي څخه [په مطالبه کولو کي] اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْكَفَالَاتِ پر ټولو کفالاتو باندي په قياس کولو سره وَيَرْجِعُ الْوَلِيُّ إِذَا أَدَّى عَلَى الزَّوْجِ إِنْ كَانَ بِأَمْرِهِ او ولي به پر خاوند رجوع کوي کله چې مهر اداء کړي [په دې شرط] که چيري د هغه په حکم سره وي [يعني که چيري ولي د خاوند په حکم سره د مهر ضامن سوی وي او مهر يې اداء کړی وي، نو تر اداء کولو وروسته به د خپل حق د طلب لپاره خاوند ته رجوع کوي] كَمَا هُوَ الرَّسْمُ فِي الْكَفَالَةِ لکه څرنګه چې په کفاله کي همدا دستور [او قانون] دی وَكَذَلِكَ يَصِحُّ هَذَا الضَّمَانُ وَإِنْ كَانَتْ الزَّوْجَةُ صَغِيرَةً او همدارنګه دا ضمان صحيح دی که څه هم واړه کوچنۍ نجلۍ [نابالغه] وي بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الْأَبُ مَالَ الصَّغِيرَةِ وَضَمِنَ الثَّمَنَ په خلاف د هغه صورت کله چې پلار د کوچنۍ نجلۍ مال خرڅ کړي او [د هغې لپاره] د ثمن ضامن سي لِأَنَّ الْوَلِيَّ سَفِيرٌ وَمُعَبِّرٌ فِي النِّكَاحِ ځکه چې ولي په نکاح کي استازی او ترجمان وي وَفِي الْبَيْعِ عَاقِدٌ وَمُبَاشِرٌ او په بيع کي عقد کونکی او په خپله کار کونکی وي حَتَّى تَرْجِعَ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ وَالْحُقُوقُ إِلَيْهِ همدا وجه ده چې [په بيع کي] ذمه واري او حقوق [ټوله] د هغه وطرف ته راجع کيږي وَيَصِحُّ إِبْرَاؤُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او صحيح دي د ولي [پلار] بري کول د طرفينو په نيز [يعني د طرفينو په نيز دا صحيح دي چې پلار مشتري له ثمن څخه بري کړي] وَيَمْلِكُ قَبْضَهُ بَعْدَ بُلُوغِهِ او د صغير تر بلوغت وروسته هم هغه [پلار] پر ثمن د قبضه کولو ملکيت لري فَلَوْ صَحَّ الضَّمَانُ يَصِيرُ ضَامِنًا لِنَفْسِهِ نو [اوس] که ضمان صحيح سي نو هغه [پلار] به د خپل ځان ضامن وګرځي وَوِلَايَةُ قَبْضِ الْمَهْرِ لِلْأَبِ بِحُكْمِ الْأُبُوَّةِ او د مهر د قبضې ولايت د پلاروالي په توګه دی لَا بِاعْتِبَارِ أَنَّهُ عَاقِدٌ نه په دې اعتبار سره چې هغه عاقد دی أَلَا تَرَى

أَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْقَبْضَ بَعْدَ بُلُوْغِهَا آيا ته نه گورې! چې د صغيرې تر بلوغت وروسته هغه [پلار] پر مهر د قبضه کولو ملکيت نه لري فَلَا يَصِيرُ ضَامِنًا لِنَفْسِهِ نو ځکه به هغه [د نکاح په صورت کې] د خپل ځان ضامن نه گرځي.

**اللغات:** ﴿ضَمِنَ﴾ د سمع ماضي ده: ضامن کېدل، ذمه وار کېدل، ذمه واري اخيستل، ضمانت کول، ﴿اِلْتِزَام﴾ د افتعال مصدر دی: خپل په غاړه اخيستل، پر ځان لازمول، ﴿مُبَاشِر﴾ د مفاعلې اسم فاعل دی: په خپله يو کار کول، مراد ځني "په خپله بيع او سودا کونکی" دی، ﴿عُهْدَة﴾ ذمه واري، ﴿إِبْرَاء﴾ د افعال مصدر دی: بري کول، معافول، بخښل (يو چا ته په وړيا او مفته توگه يو شی ور کول).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی که ولي د يو سړي سره د خپلې بالغې لور نکاح وکړه او د هغه سړي (خاوند) له طرفه يې د مهر ور کولو ذمه واري واخيستله (او سينه يې وټکول چې مهر زه در کوم)، نو دغه ذمه واري او ضمان صحيح دی، دليل يې دا دی چې ولي عاقل او بالغ دی او پر خپل ځان د يو شي د لازمولو (التزامُ المال) أهل دی، او هغه د داسې شي (مهر) ذمه واري اخيستې ده او د داسې شي (مهر) ضمان يې قبول کړی دی کوم چې ضمانت قبلوي ځکه چې هغه شی (يعني مهر) دَين دی او دَين ضمانت او کفالت قبلوي، نو ځکه به د ولي لپاره د مهر ذمه واري (ضمان) اخيستل صحيح وي.

لهذا کله چې د ولي ضمان صحيح دی، نو اوس به ښځې ته اختيار وي که وغواړي نو له خاوند څخه دې د مهر مطالبه وکړي او که وغواړي نو له کفيل او ضامن (پلار) څخه دې د مهر مطالبه وکړي، لکه څرنگه چې په کفالت کې هم دغه حکم دی چې "مکفول لهٗ" له کفيل څخه هم مطالبه کولای سي او له "أصيل" څخه يې هم کولای سي، همدارنگه په دې مسئله کې هم ښځې ته له خاوند او کفيل دواړو څخه د مهر غوښتلو حق سته. بيا که ولي د خاوند په حکم او خواست سره د مهر ضامن جوړ سوی وي او ښځې ته يې مهر ور کړی وي، نو وروسته به هغه له خاوند څخه خپلې پيسې واپس اخلي، لکه څرنگه چې په کفالت کې هم داسې کيږي چې که کفيل د أصيل په حکم سره قرض اداء کړي، نو وروسته هغه ته دا حق سته چې له أصيل څخه خپلې پيسې واپس واخلي، همداسې دلته هم دغه حکم دی.

**وکذا يصح إلخ:** فرمايي که ښځه نابالغه (صغيره) وي او د خاوند له طرفه د مهر ور کولو ضامن سي، نو دا هم صحيح دي، لېکن که پلار د خپلې نابالغې لور مال خرڅ کړي او د مشتري له طرفه د ثمن ور کولو

ضامن سي، نو دا ضمان صحيح نه دی، خلاصه دا چې د خاوند له طرفه د خپلې نابالغې لور لپاره د مهر ضامن کېدل صحيح دي، خو د مشتري له طرفه د نابالغي لور لپاره د ثمن ضامن کېدل صحيح نه دي.

په دې دواړو صورتونو کې د فرق وجه دا ده چې د نکاح او د بيع په ولي کې فرق دی، په نکاح کې ولي د نکاح کونکي له طرف فقط استازی (سفير) او ترجمان وي (يعني فقط د هغه خبره را نقل کوي، او اصل ذمه په خپله نکاح کونکی وي)، د دې په خلاف د بيع ولي او د بيع وکيل سفير او ترجمان نه وي، بلکې هغه په خپله ذمه وار او په خپله عاقد وي، همدا وجه ده چې د بيع ټول حقوق د هغه و طرف ته راجع کيږي، او فقط له هغه څخه د ثمن ورکولو يا د مبيع ور سپالو مطالبه کيږي، لهذا کله چې د نکاح وکيل محض د سفير او ترجمان حيثيت لري، نو اوس که هغه د خپلې لور لپاره د مهر ورکولو ضامن سي نو دا به "ضمانُ الشئِ لنفسه" نه وي بلکې "لِغيرهٖ" به وي کوم چې صحيح او جائز دی، لېکن که په بيع کې پلار د ثمن ورکولو ضامن او وکيل سي، نو دا به "ضمان الشئ لنفسه" وي کوم چې صحيح نه دی، ځکه چې په بيع کې ټول حقوق د وکيل و طرف ته راجع کيږي، نو په دې وجه د بيع په صورت کې د پلار ضامن کېدل صحيح نه دي خو د نکاح په صورت کې صحيح دي.

**ويصح إبراؤه**: په دې عبارت سره د دې خبره وضاحت کوي چې په بيع کې وکيل (پلار) په خپله عاقد او مباشر وي، همدا وجه ده که د کوچنۍ نجلۍ پلار د هغې له طرفه مشتري له ثمن څخه بري او معاف کړي نو دا صحيح دي، ځکه څرنګه چې عاقد ته د ثمن اخيستلو حق سته، همدرنګه هغه ته له ثمن څخه د بري کولو حق هم سته، او څرنګه چې د بيع وکيل په خپله عاقد دی نو هغه به د لور يا د زوی تر بلوغت وروسته هم هغه د ثمن قبضه کولو مالک وي، نو اوس که مور د لور يا د زوی له طرفه د پلار د ثمن ضمانت اخيستل صحيح وګڼو، نو ښکاره خبره ده چې دا به "ضمانُ الشئ لنفسه" وي، کوم چې ناجائز او حرام دی.

**و ولاية قبض إلخ**: په دې عبارت سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې څرنګه د بيع وکيل پر ثمن د قبضه کولو ملکيت او اختيار لري او د هغه لپاره د ثمن ورکولو ضمانت (ذمه واري) اخيستل صحيح نه دي، همدارنګه پلار هم په نکاح کې د نابالغي لور پر ثمن د قبضه کولو ملکيت لري، نو بيا ولي د هغه لپاره د مهر ضمانت اخيستل صحيح دي، آيا دا "ضمان الشئ لنفسه" نه دی؟

د دې په جواب کې صاحب د کتاب فرمايي چې د پلار لپاره د نابالغي لور پر مهر د قبضه کولو ملکيت په دې وجه نه دی چې هغه عاقد او نکاح کونکی دی بلکې په دې وجه د هغه لپاره دغه ملکيت ثابت دی چې هغه پلار دی (يعني د پلار والي په وجه د هغه لپاره دغه ملکيت ثابت دی)؛ ځکه که چيري د عاقد والي په وجه هغه لره دا ملکيت ثابت وای نو د لور تر بلوغت وروسته به هم د هغه لپاره دا ملکيت ثابت او باقي وای، حال دا چې تر

بلوغت وروسته پلار لره پر مهر د قبضه کولو هیڅ حق نسته بلکې په خپله به لور د دې حقداره وي، نو معلومه سوه چې د پلار قبضه د پلار والي په اعتبار سره ده، نه د عاقد والي په اعتبار سره، نو ځکه به د هغه ملکیت او ضمان "ضمان الشئ لغیره" وي. نه "ضمان الشئ لنفسه".

## له مهر ورکولو څخه مخکې احکام

قَالَ: وَلِلْمَرْأَةِ أَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا فرمايي: او ښځې لره دا اختيار سته چې خپل ځان منع کړي اله خاوند څخه؛ حَتَّى تَأْخُذَ الْمَهْرَ تر دې چې [ټوله] مهر واخلي وَتَمْنَعَهُ أَنْ يُخْرِجَهَا أَيْ يُسَافِرَ بِهَا او [دا اختيار هم ورلره سته] چې خاوند منع کړي چې هغه دا [ښځه] دباندي وباسي يعني سفر په وکړي لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهَا فِي الْبَدَلِ د دې لپاره چې په بدل کي د هغې حق متعين سي كَمَا تَعَيَّنَ حَقُّ الزَّوْجِ فِي الْمُبْدَلِ لکه په مبدل [بضع] کي چې د خاوند حق متعين سوی دی وَصَارَ كَالْبَيْعِ او دا د بيع په څير سو وَلَيْسَ لِلزَّوْجِ أَنْ يَمْنَعَهَا او خاوند لره دا اختيار نسته چې ښځه منع کړي مِنَ السَّفَرِ وَالْخُرُوجِ مِنْ مَنْزِلِهِ وَزِيَارَةِ أَهْلِهَا له سفر څخه او د کور له وتلو څخه او د خپلي کورنۍ له ملاقات څخه حَتَّى يُوَفِّيَهَا الْمَهْرَ كُلَّهُ أَيْ الْمُعَجَّلَ تر دې چې هغې ته ټوله مهر ورپوره کړي، يعني مهر معجّل لِأَنَّ حَقَّ الْحَبْسِ لِاسْتِيفَاءِ الْمُسْتَحَقِّ ځکه چې د منع کولو حق د مستحق [يعني د بضع] د حاصلولو لپاره دی وَلَيْسَ لَهُ حَقُّ الِاسْتِيفَاءِ قَبْلَ الْإِيفَاءِ او تر مهر پوره کولو مخکې خاوند لره [د بضع] د حاصلولو حق نسته [نو بيا به د څه شي لپاره ښځه منع کوي!] وَلَوْ كَانَ الْمَهْرُ كُلُّهُ مُؤَجَّلًا او که مهر ټوله مؤخر [او ځنډنی] وي لَيْسَ لَهَا أَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا نو د ښځې لپاره دا اختيار نسته چې خپل ځان [اله خاوند څخه] منع کړي لِإِسْقَاطِهَا حَقَّهَا بِالتَّأْجِيلِ ځکه چې په مؤخر کولو [او وخت ورکولو] سره هغې خپل حق ساقط کړی كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په بيع کي [چې د ثمن په مؤخر کولو سره د بائع حق ساقطيږي] وَفِيهِ خِلَافُ أَبِي يُوسُفَ او په دې کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَإِنْ دَخَلَ بِهَا فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✽ او که [خاوند] په ښځې دخول وکړي نو هم دغه حکم دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [يعني د هغه په نيز

✽ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٣٨٩)، وكذا في مجمع الأنهر (ج:١، ص:٣٥٩)، وكذا في البحر الرائق (ج:٣، ص:٣١٠). [القول الراجح ج:١، ص: ٢٨٢]

ښځي ته تر يوه وار دخول وروسته هم دا اختيار سته چي خپل ځان له خاوند څخه منع کړي] وَقَالَا: لَيْسَ لَهَا أَنْ تَمْنَعَ نَفْسَهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي [په دې صورت کي] ښځي لره دا اختيار نسته چي خپل ځان منع کړي وَالْخِلَافُ فِيمَا إِذَا كَانَ الدُّخُولُ بِرِضَاهَا او [دا] اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي دخول د ښځي په رضا سره وي حَتَّى لَوْ كَانَتْ مُكْرَهَةً أَوْ كَانَتْ صَبِيَّةً أَوْ مَجْنُونَةً تر دې که ښځه [پر دخول] مجبوره کړی سوې وي يا هغه کوچنۍ [نابالغه] وي يا لېونۍ وي لَا يَسْقُطُ حَقُّهَا فِي الْحَبْسِ بِالِاتِّفَاقِ نو د منع کولو په باره کي بالاتفاق د هغې حق نه ساقطيږي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْخَلْوَةُ بِهَا بِرِضَاهَا او پر همدغه اختلاف دي د ښځي په رضا د هغې سره خلوت کول وَيَبْتَنِي عَلَى هٰذَا اِسْتِحْقَاقُ النَّفَقَةِ او پر همدغه اختلاف د نفقې حقداره کېدل [هم] مبني دي لَهُمَا: أَنَّ الْمَعْقُودَ عَلَيْهِ كُلَّهُ قَدْ صَارَ مُسَلَّمًا إِلَيْهِ بِالْوَطْأَةِ الْوَاحِدَةِ أَوْ بِالْخَلْوَةِ د طرفينو دليل دا دی: چي په يوه [وار] وطي يا خلوت سره ټوله معقود عليه [بضع] خاوند ته وسپارل سوه وَلِهٰذَا يَتَأَكَّدُ بِهَا جَمِيْعُ الْمَهْرِ او له همدې کبله په دې [يوه وار وطي يا خلوت کولو] سره ټوله مهر مؤکد کيږي فَلَمْ يَبْقَ لَهَا حَقُّ الْحَبْسِ نو ځکه [اوس] د ښځي لپاره د منع کولو حق پاته نه سو كَالْبَائِعِ إِذَا سَلَّمَ الْمَبِيْعَ لکه بايع چي کله [مشتري ته] مبيع وسپاري [نو د هغه لپاره هم د مبيع د منع کولو حق نه پاتيږي] وَلَهُ: أَنَّهَا مَنَعَتْ مِنْهُ مَا قَابَلَ الْبَدَلَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي ښځي له خاوند څخه هغه شی [وطي] منع کړی کوم چي د بدل مقابل دی لِأَنَّ كُلَّ وَطْأَةٍ تَصَرُّفٌ فِي الْبُضْعِ الْمُحْتَرَمِ ځکه چي هري وطي په محترمه بضع کي تصرف کول دي فَلَا يُخْلَى عَنِ الْعِوَضِ إِبَانَةً لِخَطَرِهِ نو د بضع د احترام [عظمت] د څرګندولو لپاره به هري وطي له بدل څخه نه خالي کيږي وَالتَّأَكُّدُ بِالْوَاحِدَةِ لِجَهَالَةِ مَا وَرَاءَهَا او په يوه [وار] وطي سره د مهر مؤکد کېدل د هغه د وروستنۍ [وطؤو] د جهالت په وجه دي [يعني ځکه چي تر اول وار وطي وروسته نوري وطي مجهوله دي چي نور به څومره وطي وسي] فَلَا يَصْلُحُ مُزَاحِمًا لِلْمَعْلُوْمِ نو ځکه به هغه [مجهولي وطي] د معلومي وطي مزاحم [مقابل] جوړېدای نه سي ثُمَّ إِذَا وُجِدَ آخَرُ وَصَارَ مَعْلُوْمًا بيا چي کله نوري وطي په وجود کي راسي او معلومي سي تَحَقَّقَتِ الْمُزَاحَمَةُ نو مزاحمت به ثابت سي وَصَارَ

الْمَهْرُ مُقَابَلًا بِالْكُلِّ او مهر به د ټولو مقابل سي كَالْعَبْدِ إِذَا جَنَىٰ جِنَايَةً لكه غلام چي كله يو جنايت وكړي يُدْفَعُ كُلُّهُ بِهَا نو د دغه [يوه] جنايت په بدله كي به ټوله غلام وركول كيږي ثُمَّ إِذَا جَنَىٰ جِنَايَةً أُخْرَىٰ وَأُخْرَىٰ بيا چي كله دويم وار او دريم وار [بيا] جنايت وكړي يُدْفَعُ بِجَمِيعِهَا نو د هغوى ټولو [جنايتونو] په بدل كي به [همدا يو غلام] وركول كيږي وَإِذَا أَوْفَاهَا مَهْرَهَا نَقَلَهَا إِلَىٰ حَيْثُ شَاءَ او كله چي خاوند ټوله مهر اداء كړي نو چيري چي وغواړي ښځه هلته بېولای سي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ [الطلاق: ۶] ځكه چي الله تعالىٰ فرمايلي دي: و أوسوئ! ښځي چيري چي تاسي أوسيږئ! وَقِيلَ: لَا يُخْرِجُهَا إِلَىٰ بَلَدٍ غَيْرِ بَلَدِهَا او ويل سوي دي: چي ښځه له خپل ښار څخه بغير بل ښار ته نه سي ايستلای لِأَنَّ الْغُرْبَةَ تُؤْذِي ځكه چي پرديسه [بېګانه] ښځه په تكليف كيږي وَفِي قُرَى الْمِصْرِ الْقَرِيبَةِ لَا تَتَحَقَّقُ الْغُرْبَةُ او د ښار په نژدې كلو [او أطرافو] كي پرديسي [بېګانه توب] نه متحقق كيږي.

**اللغات:** ﴿يُوَفِّيْ﴾ د تفعيل مضارع دہ: په پوره توګه وركول (اداء كول)، ﴿حَبْس﴾ د ضرب مصدر دی: بندول، قيدول، منع كول، راګرځول، حفاظت كول، ﴿تأجِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاكل، مهلت وركول (وخت وركول)، ﴿إِبَانَة﴾ د افعال مصدر دی: څرګندول، ښكاره كول، ﴿خَطَر﴾ او "خَطِر" عظمت، احترام، د مرتبې لوړ والی، ﴿التَّأَكُّد﴾ د تفعّل مصدر دی: مظبوطېدل، ټينګېدل (پخېدل)، ﴿مُزَاحِم﴾ د مفاعلې اسم فاعل دی: مُقَابل (مقابله كونكی)، ټنګونكی، ﴿جَنَىٰ﴾ د ضرب ماضي دہ: جرم كول، ګناه كول، ﴿قُرَىٰ﴾ جمع د "قَرْيَةٌ" دہ: د ښار د أطرافو كلي، بانډه (يعني صحرايي كلي او علاقه كوم چي ښار ته نژدې وي)، ﴿غُرْبَة﴾ د كرُم مصدر دی: پرديسي، جلا وطني (بېګانه توب، پردی توب).

**تشريح:** په دې اوږده عبارت كي د مهر سره اړوند يو څو مسئلې ذكر سوي دي چي هغه به انشاء الله په ترتيب سره تشريح كړل سي، تر تشريح مخكي تاسي مختصراً په دې خبره ځان پوه كړئ! چي د ښځي مهر به يا معجّل يا به مؤجّل وي (معجّل اد تلوار (نغد) مهر) هغه مهر ته وايي چي د نكاح تړلو په وخت كي د هغه فوراً وركول ضروري وي، او كوم مهر چي وروسته وركول كيږي او د وروسته اداء كولو شرط پكښي وي، هغه ته مهرِ مؤجل [ځنډنی مهر] وايي). د مهرِ معجّل په صورت كي چي تر

ځو ښځې ته ټوله مهر رسېدلی نه وي تر هغه وخته ښځې ته دا اختيار سته چې خاوند له وطي او جماع څخه منع کړي، همدارنګه ښځې ته دا اختيار هم سته چې د خاوند سره هيڅ ځای هم ولاړه نه سي او د خاوند سره يو ځای له سفر کولو څخه انکار وکړي؛ دليل دا دی چې نکاح د مُبادلې (معاوضې) عقد دی، يعني بضع ګواکي مبيع ده او مهر بدل (عوض) دی، نو دا د ښځې حق دی چې د بضع په بدل کې اول هغې ته مهر ورسيږي، او تر رسېدلو مخکې خاوند له وطي او داسې نورو څخه منع کړي. لکه په بيع کې چې هم تر ثمن رسېدلو مخکې بائع له مشتري څخه مبيع منع کولای سي.

**وليس للزوج الخ**: دريمه مسئله دا ده چې تر څو خاوند ښځې ته مهر معجل ور پوره کړی نه وي تر هغه وخته ښځه نه له دباندې وتلو څخه منع کولای سي او نه يې له سفر کولو څخه منع کولای سي او نه يې له دې څخه منع کولای چې هغه خپلې کورنۍ ته ولاړه سي او د خپلو قريبانو زيارت او ملاقات وکړي؛ دليل دا دی چې خاوند لره د حبس (منع کولو او راګرځولو) حق له مستحق (بضع) څخه د انتفاع په خاطر مشروع سوی دی، يعني په کور کې د ښځې راګرځولو او له دباندې څخه د منع کولو وجه دا ده چې خاوند د هغې سره وطي وکړي، او تر مهر ورکولو مخکې خاوند لره د وطي هيڅ حق نسته، نو ځکه به هغه ته حقُ الحبس (د منع کولو او راګرځولو حق) هم نه وي.

**ولوکان المهر الخ**: دريمه مسئله دا ده که د مهر معجّل پر ځای د ښځې مهر مؤجل وي. نو بيا د ښځې حقُ الحبس ختميږي، يعني نه خاوند له وطي څخه منع کولای سي او نه د هغه له سفر څخه انکار کولای سي؛ دليل دا دی چې کله ښځه په خپله په تأجيل (يعني د مهر په ځنډولو) راضي سوه. نو هغې په خپله خپل حق ساقط کړی، نو موږ ځوک يو چې هغې ته د حبس حق ورکړو او خاوند په انتظار مړ کړو.

لکه څرنګه چې په بيع کې هم که بائع د پيسو (ثمن) په تأجيل راضي سي، نو بيا هغه ته د مبيع د حبس (منع کولو) حق نسته. همدارنګه به د مهرِ مؤجل په صورت کې هم چې کله ښځه په تأجيل راضي سوه، نو هغې ته به د "حبس" (له وطي او سفر څخه د منع کولو) هيڅ حق نه وي. او دا د ائمه ثلاثه وو مسلک هم دی.

او په دې کې د امام ابويوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمايي چې څرنګه د مهرِ معجّل په صورت کې ښځې لره د "حبس" حق سته همدارنګه به د مهرِ مؤجل په صورت کې هم هغې لره د "حبس" حق سته؛ د هغه دليل دا دی چې محض په نکاح سره د خاوند حق د ښځې په بضع کې ثابت سو، او ملک بضع له بدل او عوض څخه خالي نه وي، لهذا له بدل (مهر) ورکولو څخه به مخکې په هر صورت کې ښځې لره د "حبس" حق وي.

وإن دخل بها إلخ: په دې عبارت سره دا خبره بيانوي چې که د مهرِ معجّل په صورت ښځه په خپله رضا سره خاوند ته د وطي او دخول اجازه ورکړي او خاوند د هغې سره وطي وکړي، نو په داسي صورت کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ښځي د "حبس" حق نه ساقطيږي، بلکي هغې لره به دا اختيار وي چي بل وار خاوند له وطي او سفر څخه منع کړي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي تر يوه وار وطي کولو وروسته د ښځي د "حبس" حق ساقطيږي، بيا هغې لره دا اختيار نسته چي خاوند له وطي او داسي نورو څخه منع کړي، دا اختلاف په هغه صورت کي دی چي ښځه په خپله رضا سره خاوند ته د وطي اجازه ورکړي، لېکن که خاوند په زور او جبر د هغې سره وطي کړي، يا نجلۍ نابالغه وي، يا مجنونه وي، نو د امام صاحب او صاحبينو په اتفاق سره د ښځي د "حبس" حق نه ساقطيږي. اختلاف فقط د بالغي ښځي د رضا په صورت کي دی.

د امام صاحب او صاحبينو دا اختلاف په خلوت کي هم دی، يعني که د ښځي په رضا سره خاوند د هغې سره خلوت صحيحه وکړي، نو د صاحبينو په نېز د ښځي د "حبس" حق ساقطيږي، او د امام صاحب په نېز نه ساقطيږي، او ښځي ته به دا حق وي چي بل وار خاوند له وطي څخه منع کړي.

ويبتني على هذا إلخ: د نفقې د حقداره کېدلو دارومدار هم پر دغه اختلاف دی، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز که ښځه تر دغه وطي وروسته له دويم وار وطي څخه خاوند منع کړي، نو بيا به هم خاوند ښځي ته په دغه موده کي نفقه او خرچه ورکوي؛ ځکه چي "حبس" (منع کول) د ښځي خپل حق دی، لهذا په دې سره به هغه نافرمانه نه ګڼل کيږي او له نفقې څخه به نه محروموله کيږي، خو څرنګه چي د صاحبينو په نېز د يوه وار وطي په وجه د ښځي د "حبس" حق ساقط سو، نو که تر دې وروسته دا ښځه خاوند له وطي څخه منع کړي نو په دې سره هغه نافرمانه کيږي او سرکښه به ګڼل کيږي، او نافرماني ښځي ته نفقه نه ورکول کيږي، لهذا هغې ته به هم نفقه نه ورکول کيږي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي په يوه وار وطي کولو سره يا په خلوت صحيحه سره ښځي خپله ټوله معقود عليه يعني بضع خاوند ته وسپارله، همدا وجه ده چي په يوه وار (اول وار) وطي يا خلوت صحيحه کولو سره ټوله مهر واجبيږي، که چيري د دويم وار وطي په مقابله کي مهر وای نو په اولي وطي سره به ټوله مهر نه واجبېدای، لهذا کله چي ښځي خپله ټوله بضع خاوند ته وسپارله، نو ځکه به اوس هغې لره د "حبس" او منع کولو حق نه وي، لکه څرنګه چي کله بائع تر ثمن اخيستلو مخکي

مشتري ته مبيع وسپاري، نو بيا د ثمن اخيستلو لپاره مبيع نه سي منع کولای، نو همدارنګه به دلته هم ښځه دبضع تر ورسپارلو وروسته خاوند له وطي څخه نه سي منع کولای.

**د امام صاحب دليل:** د امام صاحب د دليل حاصل دا دی چې تر مرګه پورې چې څومره وطي کيږي، مهر د هغوی ټولو بدل او عوض دی، خو دا معلومه نه ده چې تر اولي وطي به وروسته څومره وطي نوري وسي (يعني دا خبره معلومه نه ده چې تر دې وروسته به خاوند د هغې سره څومره وطي کړي) نو ځکه په اول ځل کې ټوله مهر فقط د هغه اولي وطي بدل ګرځول کيږي، بيا چې کله دويم ځل وطي وسي نو بيا دغه مهر د دواړو وطؤو بدل ګرځي، او کله چې دريم ځل وطي وسي نو بيا دغه مهر د دريو سره وطؤو بدل ګرځي، لنډه دا چې مهر د ټولو وطؤو بدل دی او په هري وطي کې د مهر څه حصه سته، ځکه چې بضع يو محترم شی دی، نو د هغه د عظمت او احترام څرګندولو لپاره د هر تصرف او وطي په مقابله کې د مال او بدل لازمېدل ضروري دي. او دلته چې خاوند کله د ښځي سره اول وار وطي وکړې نو هغه يې د ښځي په اجازه او رضا سره وکړې، خو په دويم وار کې د ښځي رضا او اجازه نسته، لهذا اوس چې کله هغه دويم وار وطي کول وغواړي نو ښځي ته دا حق سته چې د دويم وار وطي په بدل کې مهر طلب کړي او خاوند له نورو وطوو څخه منع کړي؛ د دې په خلاف مبيع چې کله مشتري ته سپارل کيږي نو په اول وار پوره مبيع ور سپارل کيږي، نو اوس به څرنګه بائع د ثمن لپاره مبيع منع کړي! هغه خو يې په اول ځل ورسپارلې ده، نو په دې وجه په بيع کې تر ور سپارلو وروسته بائع لره د مبيع منع کولو هيڅ حق نسته.

<u>والتأكد بالواحدة إلخ</u>: په دې سره د صاحبينو د دليل جواب ورکوي. د جواب حاصل دا دی چې په يوه وار وطي سره ټوله مهر ځکه مؤکد کيږي چې تر هغه وروسته وطي معلومي نه دي (چې څومره وطي به نوري وسي)، او مجهول د معلوم مزاحم کېدلای نه سي، لهذا وروستنی وطي به هم د دغه اول وار وطي مزاحم کېدلای نه سي، نو ځکه به ټوله مهر د دغه اول وار وطي بدل وي او په هغه سره به مؤکد کيږي، بيا چې کله دويم وار وطي وسي او په وجود کې راسي (يعني معلومي سي)، نو دغه موجوده او معلومه وطي د مخکني (اول وار) وطو مقابل سي، نو مهر د دغه دويم وار وطي لپاره هم بدل واقع سي. بيا چې کله دريم او څلورم ځل الی آخره وطي وسي او معلومي سي، نو مهر د هري وطي لپاره بدل واقع سي. د دې مثال داسي دی لکه غلام چې يو وار جنايت وکړي نو پر مالک واجب دي چې د هغه جنايت په بدل کې به ټوله غلام ورکوي، او که غلام لس واره جنايت وکړي نو هم به دغه يو غلام د ټولو جنايتونو په بدل کې ورکوي، همدارنګه به مهر هم په اول وار کې فقط د يوې وطي بدل وي، او

وروسته چې شومره وطي کیږي نو مهر به د هغوی بدل واقع کیږي. لنډه دا چې د هري راتلونکي وطي په بدل کي د مهر څه حصه سته. نو ځکه به تر مهر ورکولو مخکي د ښځي لپاره له راتلونکي وطي څخه د "حبس" او منع کولو حق هم وي.

**وإذا أوفاها إلخ**: د دې حاصل دا دی چي په سفر د ښځي بېول هغه وخت ممنوع دي کله چي خاوند ټوله مهر اداء کړی نه وي. لېکن کله چي هغه ټوله مهر اداء کړي نو بيا يې په سفر بېولای سي او له خپل ښار څخه يې ايستلای سي، که څه هم د ښځي خوښه نه وي او انکار کوي. دليل دا آيت دی: "أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم... الخ" (چيري چي تاسي اووسئ، هلته ښځي أوسوئ!) يعني که تاسي په سفر کي ياست! نو ښځي هم په سفر کي د ځان سره اوسولای سي؛ خو فقيه ابو الليث رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ښځي له رضا څخه بغير خاوند هغه بل ښار ته نه سي بېولای: ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "وَلَا تُضَارُّوهُنَّ...الخ" (يعني ښځي په ضرر او تکليف سره مه مبتلا کوئ!)، او په بل ښار کي ښځه کي د نابلدتيا او بېګانه توب په وجه په تکليف کيږي، نو ځکه د ښځي له رضا څخه بغير بل ښار ته د هغې بېول جائز نه دي.

**وفي قرى المصر إلخ**: د دې حاصل دا دی چي د ښار أطراف او هغه کلي او علاقې چي ښار ته څرمه (د څلوېښتو ميلو په اندزه کي دننه) وي، په هغوی کي دومره نابلدتيا او بېګانه توب نه محسوسيږي او ښځه ډېره نه په تکليف کيږي ځکه چي ښار ته نژدې وي، لهذا خاوند دا سي علاقو او أطرافو ته ښځه له خپلي رضا څخه بغير بېولای سي.

## په مهر کي د ښځي او خاوند د اختلاف بيان

قَالَ الامام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي ا فرمايي **وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً** او څوک چي د يو ښځي سره نکاح وکړي **ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الْمَهْرِ** بيا خاوند او ښځه د مهر په باره کي اختلاف وکړي **فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمَرْأَةِ إِلَى تَمَامِ مَهْرِ مِثْلِهَا** نو د مهر مثل تر پوره کېدلو پوري به د ښځي قول معتبر وي **وَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ فِيمَا زَادَ عَلَى مَهْرِ الْمِثْلِ** او کوم مقدار چي پر مهرِ مثل زيات سي په هغه کي به د خاوند قول معتبر وي **وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا** او که خاوند ښځي ته تر دخول مخکي طلاق ورکړي **فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ فِي نِصْفِ الْمَهْرِ** نو د نيم مهر په باره کي به د خاوند قول

معتبر وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ ۞: الْقَوْلُ قَوْلُهٗ قَبْلَ الطَّلَاقِ وَبَعْدَهٗ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تر طلاق مخکې او وروسته [په دواړو صورتونو] کې به د خاوند قول معتبر وي إِلَّا أَنْ يَأْتِيَ بِشَيْءٍ قَلِيْلٍ خو دا چې خاوند ډېر لږ مقدار ذکر کړي وَمَعْنَاهُ مَالَا يُتَعَارَفُ مَهْرًا لَهَا او د دې [لږ مقدار] مطلب دا دی چې امنومره لږ مقدار] په عرف کې د دغه ښځې مهر کېدلای نه سي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده [يعني همدا صحيح روايت دی] لِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّ الْمَرْأَةَ تَدَّعِي الزِّيَادَةَ وَالزَّوْجُ يُنْكِرُ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې ښځه د زياتوب دعویٰ کوي او خاوند [د هغه] انکار کوي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِيْنِهٖ او قول د منکر معتبر وي د هغه د قسم سره إِلَّا أَنْ يَأْتِيَ بِشَيْءٍ يُكَذِّبُهُ الظَّاهِرُ فِيْهِ خو دا چې خاوند داسې لږ مقدار ذکر کړي چې ظاهري حالت په هغه کې خاوند دروغجن ګڼي وَهٰذَا لِأَنَّ تَقَوُّمَ مَنَافِعِ الْبُضْعِ ضَرُوْرِيٌّ او دا [د خاوند قول به] ځکه [معتبر وي] چې د بضع د منافعو متقوم کېدل د ضرورت پر بناء دي [يعني بضع د ضرورت په وجه متقوم دء] فَمَتٰى أَمْكَنَ إِيْجَابُ شَيْءٍ مِنَ الْمُسَمّٰى نو تر څو چې له مسمیٰ [ټاکل سوي مهر] څخه د يو مقدار واجبول ممکن وي لَا يُصَارُ إِلَيْهِ نو د مهرِ مثل و طرف ته به رجوع نه کيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْقَوْلَ فِي الدَّعَاوٰى قَوْلُ مَنْ يَشْهَدُ لَهُ الظَّاهِرُ او د طرفينو دليل دا دی: چې په دعواوو کې د هغه کس قول معتبر وي چې د هغه په حق کې ظاهري حالت ګواهي ورکوي وَالظَّاهِرُ شَاهِدٌ لِمَنْ يَشْهَدُ لَهُ مَهْرُ الْمِثْلِ او ظاهري حالت د هغه کس په حق کې ګواه دی چې د هغه لپاره مهرِ مثل ګواهي ورکوي [يعني چې د هغه قول د مهرِ مثل موافق وي] لِأَنَّهٗ هُوَ الْمُوْجَبُ الْأَصْلِيُّ فِيْ بَابِ النِّكَاحِ ځکه چې د نکاح په باب کې مهرِ مثل أصلي مُوجَب دی وَصَارَ كَالصَّبَّاغِ مَعَ رَبِّ الثَّوْبِ إِذَا اخْتَلَفَا فِيْ مِقْدَارِ الْأَجْرِ او دا داسې سو لکه د جامو رنګولو والا د جامو د مالک سره کله چې دوی د مزدورۍ په مقدار کې اختلاف وکړي يُحَكَّمُ فِيْهِ قِيْمَةُ الصَّبْغِ نو په هغه کې به د رنګ قيمت حَکَم [فيصله کونکی] جوړول کيږي [يعني په دغه اختلاف کې به د رنګ پر بازاري قيمت فيصله کيږي] ثُمَّ ذَكَرَ هٰهُنَا أَنَّ بَعْدَ الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ الْقَوْلُ قَوْلُهٗ فِيْ نِصْفِ الْمَهْرِ بيا امام محمد رَحِمَهُ الله دلته [په متن کې] ذکر کړه چې تر طلاق قبل الدخول وروسته به د نيم مهر په باره کې د خاوند قول معتبر وي وَهٰذَا رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ وَالْأَصْلِ او دا د جامع صغير او مبسوط روايت دی وَذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الْكَبِيْرِ أَنَّهٗ يُحَكَّمُ

---

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فی رد المحتار (ج:۲، ص:۳۹۳)، وكذا فـــی الخانيـــة (ج:۱، ص:۱۸۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۴]

مُتْعَةُ مِثْلِهَا [لیکن] په جامع کبیر کي امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي د دا ډول ښځي متعه به حَکَم [فیصله منده] جوړول کیږي وَهُوَ قِيَاسُ قَوْلِهِمَا او همدا د طرفینو د قول قیاس [او تقاضا] ده لِأَنَّ الْمُتْعَةَ مُوْجَبَةٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ كَمَهْرِ الْمِثْلِ قَبْلَهُ ځکه چي متعه تر طلاق وروسته مُوجَب ده لکه مهرِ مثل چي تر طلاق مخکي مُوجَب دی فَتُحَكَّمُ كَهُوَ نو متعه به هم د مهرِ مثل په څیر فیصله منده جوړول کیږي وَوَجْهُ التَّوْفِيقِ او [په روایت د جامعِ کبیر او روایت د جامعِ صغیر او مبسوط کي] د موافقت صورت دا دی أَنَّهُ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْأَصْلِ فِي الْأَلْفِ وَالْأَلْفَيْنِ چي په مبسوط کي امام محمد رَحِمَهُ الله مسئله په زرو [درهمو] او دوو زرو [درهمو] کي فرض کړې ده وَالْمُتْعَةُ لَا تَبْلُغُ هٰذَا الْمَبْلَغَ فِي الْعَادَةِ او متعه په عامه توګه دغه مقدار ته نه رسیږي ابلکي ډېره کمه او ارزانه وي] فَلَا يُفِيْدُ تَحْكِيْمُهَا نو متعه به فیصله منده جوړول فایده نه کوي [یعني په دې صورت کي پر متعه فیصله کول د ښځي لپاره فایده نه کوي، ځکه چي هغه کم قیمته ده] وَوَضَعَهَا فِي الْجَامِعِ الْكَبِيْرِ فِي الْمِائَةِ وَالْعَشَرَةِ او په جامع کبیر کي امام محمد رَحِمَهُ الله مسئله په لسو او سلو [درهمو] کي فرض کړې ده وَمُتْعَةُ مِثْلِهَا عِشْرُوْنَ او د داسي ښځي متعه [یعني په عامه توګه متعه] شل [درهمه] وي فَيُفِيْدُ تَحْكِيْمُهَا نو [په دې صورت کي] متعه فیصله منده جوړول فایده کوي [ځکه چي په دې صورت کي مهر کم دی] وَالْمَذْكُوْرُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ سَاكِتٌ عَنْ ذِكْرِ الْمِقْدَارِ او په جامعِ صغیر کي ذکر سوی صورت د مقدار له ذکر څخه چپ [خاموش] دی فَيُحْمَلُ عَلَى مَا هُوَ الْمَذْكُوْرُ فِي الْأَصْلِ نو هغه به حمل کیږي پر هغه صورت کوم چي په مبسوط کي ذکر سوی دی وَشَرْحُ قَوْلِهِمَا فِيْمَا "إِذَا اخْتَلَفَا فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ" او د طرفینو د قول تشریح په هغه صورت کي "کله چي خاوند او ښځه د نکاح د پاته والي په حالت کي اختلاف وکړي" دا ده أَنَّ الزَّوْجَ إِذَا ادَّعَى الْأَلْفَ وَالْمَرْأَةَ الْأَلْفَيْنِ چي کله خاوند د زرو [درهمو] دعوىٰ وکړي او ښځه د دوو زرو [درهمو] دعوىٰ وکړي فَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَلْفًا أَوْ أَقَلَّ نو که د ښځي مهرِ مثل زر [درهمه] یا تر دې کم وي فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول به د خاوند معتبر وي وَإِنْ كَانَ أَلْفَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ او که مهرِ مثل دوه زره یا تر دې زیات وي فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو قول به د ښځي معتبر وي وَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ فِي الْوَجْهَيْنِ او په دواړو صورتونو کي چي کوم یو هم [پر خپل قول] ګواهي پېش کړي تُقْبَلُ نو د هغه ګواهي به قبلیږي وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او که په اول صورت کي دواړه ګواهي پېش کړي تُقْبَلُ بَيِّنَتُهَا نو د ښځي ګواهي به قبلیږي لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الزِّيَادَةَ ځکه چي د هغې ګواهي زیاتوب ثابتوي وَفِي الْوَجْهِ

الثَّانِي بَيِّنَتُهُ او په دويم صورت کې به د خاوند ګواهي [قبليږي] لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْحَطَّ ځکه چې د هغه ګواهي کمي ثابتوي وَإِنْ كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ او که د ښځې مهر مثل پنځلس سوه [۱۵۰۰] وي تَحَالَفَا نو دواړه به قسمونه اخلي وَإِذَا حَلَفَا يَجِبُ أَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ او کله چې دواړه قسمونه واخلي نو همدا پنځلس سوه واجبيږي هٰذَا تَخْرِيجُ الرَّازِيِّ دا د امام [ابو بکر جصاص] رازي رَحِمَهُ الله تخريج ده وَقَالَ الْكَرْخِيُّ او امام [ابو الحسن] کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي يَتَحَالَفَانِ فِي الْفُصُوْلِ الثَّلَاثَةِ چې خاوند او ښځه به په دريو سره صورتونو کې قسم اخلي ثُمَّ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ بَعْدَ ذٰلِكَ بيا به مهر مثل فيصله مند جوړول کيږي.

**اللغات:** ﴿لَا يُتَعَارَفُ﴾ د تفاعل د باب نفي مجهوله صيغه ده: متعارف کېدل. يعني (يو شي) په عرف کې رواج کېدل، ﴿تَدَّعِيْ﴾ د افتعال مضارع ده: دعوه کول، دعویٰ کول (د حاکم او قاضي په مخکې له بل چا څخه د خپل حق غوښتنه کول)، ﴿تَقَوُّمٌ﴾ د تفعّل مصدر دی: قيمتداره کېدل، (قيمتي کېدل، قيمت والا جوړېدل)، ﴿دَعَاوٰی﴾ جمع د "دَعْوٰی" ده: (د محکمې) دعوه ګاني، دعواوي، ﴿صَبَّاغٌ﴾ رنګرېز (جامه رنګونکی)، ﴿يُحَكَّمُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: فيصله مند جوړول (فيصله کونکی جوړول)، دريمګړی جوړول، حَکَم جوړول، يو چا ته د فيصلې لپاره يو شی سپارل، حَكَم: فيصله مند (فيصله کونکی)، قاضي. ﴿وَجْهٌ﴾ صورت، شکل، طريقه، ﴿يَتَحَالَفَانِ﴾ د تفاعل مضارع ده: يو تر بله قسم اخيستل (قسم کول).

**تشريح:** په دې اوږده عبارت کې صاحب د کتاب د مهر د مقدار او تعيين په هکله زموږ د امامانو مذهبونه بيان کړي دي، خو څرنګه چې (دلته) په مذهب او دليل کې ډېره فاصله او ليري والي دی، نو ځکه به موږ انشاء الله په مُرتّب انداز سره د عبارت تشريح وکړو.

**صورت د مسئلې:** دا دی که تر نکاح وروسته خاوند او ښځه د مهر د مقدار په باره کې اختلاف وکړي. يعني خاوند ووايي چې زما او ستا نکاح پر زرو (۱۰۰۰) درهمو سوې وه او ښځه ووايي چې پر دوو زرو (۲۰۰۰) درهمو نکاح سوې وه، نو په داسي صورت کې به د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز تر مهرِ مثل پورې د ښځې خبره منل کيږي او له مهرِ مثل څخه د زيات مقدار په باره کې به د خاوند خبره منل کيږي، همدارنګه که خاوند ښځې ته په دغه صورت کې تر دخول مخکې طلاق ورکړي (نو دا خو تاسې ته معلومه ده چې د طلاق قبل الدخول په وخت کې فقط نيم مهر واجبيږي) نو د طرفينو په نېز به د (دغه) نيم مهر په باره کې د خاوند خبره منل کيږي، او څومره مقدار چې خاوند بيانوي، ښځې ته به هغومره ورکول کيږي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د خاوند او ښځې اختلاف که تر طلاق مخکې وي او که وروسته وي، په هر صورت کې به د خاوند خبره منل کيږي او په دې مسئله کې به ښځې ته هيڅ اختيار نه ورکول کيږي، ها! که خاوند د مهر مقدار بيخي لږ بيانوي، او معلومه سي چې په هغومره مقدار داسي ښځه د چا سره

نکاح نه کوي، نو په داسي صورت کي به د ښځي خبره منل کيږي او د خاوند خبري ته به اعتبار نه ورکول کيږي.

**ثم قليل:** د بيخي لږ مقدار په باره کي د شارحينو اختلاف دی، د ځينو شارحينو رايه دا ده چي له دې څخه تر لس درهمه کم مقدار مراد دی، او د ځيني نورو فقهاؤ ميلان ودې طرف ته دی چي له دې څخه دومره مقدار مراد دی چي په هغومره مقدار د داسي ښځي سره نکاح کېدای نه سي، همدا راجح قول دی، صاحب د هدايې هم دې ته صحيح ويلي دي او په فتاوىٰ قاضي خان او بدائع الصنائع کي هم دغه قول صحيح ګڼل سوی دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** په پورتني مسئله کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي ښځه د زياتوب دعوىٰ کوي او خاوند د زياتوب انکار کوي، نو که د ښځي سره بينه وي نو د هغې قول به معتبر وي، کنې د قسم سره به د خاوند قول معتبر وي، ځکه قاعده دا ده چي "البَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ"، يعني ګواهي پر مدعي (دعوىٰ کونکي) ده چي هغه به پر خپل قول ګواهان پېشوي، او که د هغه سره ګواهان نه وي، نو بيا به د منکر (انکار کونکي) قول د قسم سره معتبر وي. خو که خاوند بيخي لږ مقدار مهر بيانوي او ظاهري حال د هغه تکذيب کوي چي داسي ښځه پر دومره کم مهر راضي کېدای نه سي، نو په دې صورت کي به د ښځي خبره منل کيږي؛ ځکه قاعده دا ده چي: "أَنَّ مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالْقَوْلُ قَوْلُـه" يعني ظاهري او ښکاره حالت چي د چا موافق وي، نو قول به د هغه معتبر وي.

**وهٰذا لأن تقوم إلخ:** په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل علت بيانوي، فرمايي چي اصل خبره دا ده چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز مهرِ مسمىٰ (ټاکل سوی مهر) اصل دی او مهرِ مثل د هغه فرع او تابع دی، او څرنګه چي د بضع د منافعو متقوم کېدل (قيمتداره کېدل) د ضرورت او مجبورۍ په وجه دي (يعني څرنګه چي د بضع د احترام او عظمت په خاطر مجبوراً د بضع په بدل کي مال لازميږي)، نو ځکه تر څو چي د هغه په مقابله کي پر اصل يعني پر مهرِ مسمىٰ عمل کول او د هغه واجبول ممکن وي تر هغه وخته به د فرع يعني د مهرِ مثل و طرف ته رجوع نه کيږي، او څرنګه چي دلته له بيخي کم مقدار څخه بغير په نور مقدار کي پر مهرِ مسمى عمل او فيصله کول ممکن دي، نو ځکه به د خاوند خبره منل کيږي، خو څرنګه چي د بيخي کم او لږ مقدار په صورت کي فيصله کول مشکل دی، نو ځکه به په هغه صورت کي د ښځي خبره منل کيږي او پر مهرِ مثل به فيصله کيږي.

**د صاحبينو دليل: ولهما أن القول إلخ:** تر دليل مخکي تاسي دا خبره په ياد لرئ! چي څرنګه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز مهرِ مسمىٰ اصل دی، همدارنګه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مهرِ مثل اصل او بنياد دی، لهذا تر څو چي ممکنه وي، نو د دوی په نيز به د مهرِ مثل و طرف ته رجوع کيږي، او څرنګه چي پورتني مسئله مختلف فيها او پر دعوه مبني ده، او په "دعاوىٰ" (دعواوو) کي د هغه کس خبره منل کيږي چي ظاهري حالت د هغه

موافق وي. او په دې مسئله کې ظاهري حالت د هغه کس موافق دی چې د هغه قول د مهرِ مثل موافق وي (ځکه د خاوند او د ښځې د اختلاف پر مهال ظاهري حالت مهر مثل دی. ځکه چې د نکاح په باب کې اصلي موجب همدا مهر مثل دی).

لهذا د ښځې پر مهرِ مثل به فیصله کیږي چې د هغې مهرِ مثل څومره دی. که چیرې د ښځې مهرِ مثل زر (۱۰۰۰) درهمه یا تر دې کم وي، نو بیا به د خاوند خبره منل کیږي (د زرو درهمو په دعویٰ کې). او که مهرِ مثل دوه زره (۲۰۰۰) درهمه یا تر دې زیات وي، نو په دې صورت کې به د ښځې قول معتبر وي (ځکه چې ظاهري حالت د ښځې ګواهي ورکوي). او د خاوند او ښځې د غه اختلاف داسې دی لکه د رنګرېز او د کپړې د مالک په مینځ کې چې پر اُجرت (مزدورۍ) اختلاف راسي، مثلاً د کپړې مالک د پنځو درهمو دعویٰ کوي او رنګرېز د لسو درهمو نغرې وهي، نو په دې صورت کې به د هغه کس په حق کې فیصله کیږي چې د هغه قول د رنګولو د قیمت سره موافق وي، یعني د بازار قیمت (نرخ) به حَکَم جوړول کیږي، نو د بازار قیمت چې د چا موافق وي د هغه په حق کې به فیصله کیږي.

**ثم ذكر ههنا الخ:** په دې سره دا رابښيي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په اقوالو کې تعارض دی: ځکه چې د امام محمد په مبسوط او جامعِ صغیر کې خو دا بیان سوي دي چې د طلاق قبل الدخول په صورت کې به د نیم مهر په باره کې د خاوند قول معتبر وي او ښځې ته به هغومره مقدار نیم مهر ورکول کیږي څومره مقدار چې خاوند بیانوي او متعه به نه ورکول کیږي (لکه څرنګه چې دلته یعني د هدایې په متن کې هم د جامعِ صغیر او مبسوط عبارت را نقل کړی سوی دی[◆])، خو په جامعِ کبیر کې (کوم چې د امام محمد بل تصنیف دی) ذکر سوي دي چې په دې صورت کې به ښځې ته متعه ورکول کیږي او د خاوند خبره به نه منل کیږي، او قیاس هم د دې تقاضا کوي؛ ځکه کله چې د هغه په نېز مهرِ مثل أصل او بنیاد دی، نو تر دخول وروسته خو به مهرِ مثل لازمیږي او که تر دخول مخکې طلاق واقع سي، نو ښځې ته به متعه ورکول کیږي، لهذا په پورتنۍ مسئله کې هم ښځې ته متعه ورکول پکار دي او د خاوند خبره منل پکار نه دي[◆◆].

**یادونه:** په دې عبارت: "لأَنَّ الْمُتْعَةَ مُوْجَبَةٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ كَمَهْرِ الْمِثْلِ قَبْلَه" کې تسامح ده، عبارت داسې کېدل پکار دي: "لِأَنَّ الْمُتْعَةَ مُوْجَبَةٌ بَعْدَ الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ كَمَهْرِ الْمِثْلِ بَعْدَ الدُّخُوْل" یعني که تر دخول مخکې طلاق واقع سي نو متعه لازمیږي، لکه تر دخول وروسته چې طلاق واقع سي نو مهرِ مثل لازمیږي.

---

◆ د جامع صغیر عبارت دا دی: "محمد عن يعقوب عن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله في رجلٍ تزوّج امرأة ثم اختلفا في المهر، قال: القول قول المرأة إلى مهرِ مثلها، والقول قول الزوج فيما زاد، وإن طلقها قبل الدخول بها، فالقول قوله في نصف المهر وهو قول محمد رَحِمَهُ الله، و قال ابو يوسف رَحِمَهُ الله : القول قوله بعد الطلاق وقبله إلا أن يأتي بشيئ قليل". (جامع صغير، باب في المهور ص:۱۷۹)

◆◆ د جامعِ کبیر عبارت دا دی: "رجلٌ طلّق امرأته و لم يدخل بها، فاختلفا في المهر، فالقول في نصف المهر قولها إلى متعة مثلها [لأنها لو قالت: لم يسم لي مهرا كان لها المتعة]، وقال ابو يوسف في هذا كله القول قول الزوج إلا أن يأتي بشيئ [مستنكر جدًا]، وقال محمد في ذالك بقول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله . (جامع كبير، باب من النكاح فيما ينقص من الصداق وما يزيد ص:۹۲)

"فَتُحَكِّمُ كَمُوَ" يعني تر دخول مخکې د طلاق واقع کېدلو په صورت کې د متعې فيصله کول داسې دي لکه تر دخول وروسته د مهر مثل فيصله کول.

**ووجه التوفيق إلخ:** په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله د اقوالو تعارض ليرې کوي، فرمايي په مبسوط او جامع صغير کې چې کوم دا قول دی چې د خاوند خبره به منل کيږي، د هغه وجه دا ده چې امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط او جامع صغير کې د مسئلې صورت داسې فرض کړی او وضع کړی دی چې ښځه د دوو زرو (۲۰۰۰) درهمو مهر دعوه وکړي او خاوند ووايي چې مهر يو زر (۱۰۰۰) دراهم دي، او بيا تر دخول مخکې طلاق واقع سي، نو په دې صورت کې خو خاوند په خپله خوله نيم مهر يعني پنځه سوه درهم ورکول غواړي، او په عامه توګه د متعې د دريو کپړو قيمت پنځه سوه درهم نه وي (بلکې تر دې ډېر کم وي)، لهذا په دې صورت کې د خاوند د خبرې په منلو کې د ښځې فايده ده، نو ځکه به دلته د متعې واجبېدلو پر ځای د خاوند خبره منل کيږي او پنځه سوه درهمه به ښځې ته ورکول کيږي.

او په جامع کبير کې امام محمد رَحِمَهُ الله د مسئلې صورت داسې فرض کړی دی چې ښځه د سلو (۱۰۰) درهمو دعوه وکړي او خاوند وايي چې مهر لس (۱۰) درهمه ټاکل سوی دی، او د ادنیٰ درجې متعه تر شلو (۲۰) درهمو کمه نه وي، نو په دې صورت کې په متعه ورکولو کې د ښځې فايده ده، ځکه که د خاوند خبره ومنل سي، نو د لسو درهمو نصف يعني پنځه درهم به ښځې ته ورکول کيږي، او په پنځه درهمه خو د متعې کپړې هم نه کيږي، لهذا د شلو درهمو په متعه کې د ښځې فايده ده.

**والمذكور في الجامع إلخ:** او په جامع صغير کې د مسئلې د صورت فرضولو او وضع کولو لپاره مقدار نه دی ذکر سوی بلکې په دې باره کې د جامع صغير عبارت ساکت دی، لهذا په مبسوط کې چې کوم د زرو او دوو زرو مقدار ذکر سوی دی، د جامع صغير روايت به پر هغه حمل کيږي؛ ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په کتابو کې تر ټولو معتمد او أصح کتاب "مبسوط" دی.

**وشرح قولهما إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د طرفينو د قول او د هغو د مسلک پوره تشريح دا ده چې که د خاوند او ښځې دغه اختلاف تر طلاق مخکې د نکاح په حالت کې واقع سي او خاوند د زرو درهمو دعویٰ کوي، لېکن ښځه د دوو زرو درهمو دعویٰ کوي، نو په دې صورت کې به پر مهر مثل فيصله کيږي او مهر مثل چې د چا مطابق وي د هغه خبره به منل کيږي، لهذا که مهر مثل زر درهمه وي يا تر دې کم وي، نو د خاوند خبره به منل کيږي (ځکه چې په دې صورت کې مهر مثل د خاوند د قول او حالت موافق دی)، او که مهر مثل دوه زره درهمه يا تر دې زيات وي، نو د ښځې خبره به منل کيږي (ځکه چې په دې صورت کې مهر مثل د ښځې د قول او حالت موافق دی).

او که خاوند يا ښځه پر خپل قول ګواهان پېش کړي، نو په دواړو صورتونو کې (يعني برابره ده مهر مثل د خاوند د قول موافق وي او که د ښځې، په دواړو صورتونو کې) به د هغه ګواهي او قول منل کيږي.

**وإن أقاما إلخ:** په دې سره دا را ښيي چې که په پورتنۍ مسئله کې خاوند او ښځې دواړو پر خپل قول ګواهان پېش کړل، نو په اول صورت کې (يعني چې مهرِ مثل د خاوند د قول او حالت موافق وي) د خاوند ګواهي به منل کيږي، او په دويم صورت کې (يعني چې مهرِ مثل د ښځې د قول او حالت موافق وي) د ښځې ګواهي به منل کيږي؛ دليل يې دا دی چې په ګواهي سره هغه شی ثابتيږي کوم چې د ظاهر خلاف وي (يعني د ښکاره او ظاهري حالت خلاف وي، لهذا دلته به د هغه چا ګواهي منل کيږي چې د هغه ګواهي د ظاهري حالت يعنې د مهرِ مثل خلاف وي)، او څرنګه چې په اول صورت کې د ښځې قول د ظاهر خلاف دی، نو ځکه به د هغې ګواهي منل کيږي، او په دويم صورت کې د خاوند قول د ظاهر خلاف دی، نو ځکه به په دويم صورت کې د خاوند ګواهي منل کيږي.

ليکن که د ښځې مهرِ مثل پنځلس سوه (١٥٠٠) درهمه وو، يعني په خاوند او ښځه کې د هيچا د قول سره مهرِ مثل نه موافق کېدی بلکې د دواړو قولونو په مينځ کې وو، نو په دې صورت کې به خاوند او ښځه دواړه قسمونه اخلي؛ ځکه چې په داسې صورت کې ښځه د زياتوب دعوىٰ کوي او د کمتوب انکار کوي، او خاوند د کمتوب دعوىٰ کوي او د زياتوب انکار کوي، لنډه دا چې دلته په دواړو کې هر يو مدعی هم دی او منکر هم دی، نو ځکه به دواړه قسمونه اخلي، لهذا کوم يو چې له قسم څخه انکار وکړي د هغه خبره به نه منل کيږي او د قسم اخيستونکي خبره به منل کيږي، ها! که دوی دواړه قسمونه واخلي، نو همدا پنځلس سوه درهمه واجبيږي، زر درهمه خو د تسميې او تاکلو په توګه واجبيږي چې خاوند او ښځه دواړه د هغه پر تاکلو متفق دي (يعني زر درهمه هر يو مني)، او پنځه سوه درهمه د مهرِ مثل په توګه واجبيږي، دا د امام ابو بکر جصاص رازي رَحِمَهُ الله تحقيق او تخريج ده.

ليکن امام ابو الحسن کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دريو سره صورتونو کې (يعني که مهر مثل د ښځې د قول موافق وي، که د خاوند د قول موافق وي او که د دووارو په مينځ کې وي، په دې دريو سره صورتونو کې) به له خاوند او ښځې دواړو څخه قسمونه اخيستل کيږي، او تر قسم اخيستلو وروسته به پر مهرِ مثل فيصله کيږي؛ ځکه چې پر أصل تسميه (يعني د زرو درهمو پر تاکلو) دواړه متفق دي، او د تسميې د صحيح والي په وخت کې د مهرِ مثل و طرف ته رجوع نه سي کېدلای، ليکن کله چې دواړه قسمونه واخلي، نو بيا تسميه (زر درهمه تاکل) ستونزمن او متعذر سي، نو ځکه به تر قسم وروسته د هغه چا په حق کې فيصله کيږي چې مهرِ مثل د هغه د قول موافق يا ور نژدې وي (او که يو له قسم څخه انکار وکړي، نو ښکاره خبره ده چې د قسم اخيستونکي په حق کې به فيصله کيږي).

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْكَانَ الاِخْتِلَافُ فِي أَصْلِ الْمُسَمّٰى او كه د خاوند او ښځې اختلاف په اصل مسمىٰ [تاكل سوي مهر] كې وي [مثلاً خاوند ووايي: مهر بالكل تاكل سوى نه دى او ښځه ووايي: تاكل سوى دى] يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ بِالْإِجْمَاعِ نو [په دې صورت كې] مهرِ مثل واجبيږي [زموږ د امامانو] په اتفاق سره لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ عِنْدَهُمَا ځكه چې د طرفينو په نيز هغه أصل دى وَعِنْدَهُ تَعَذَّرَ الْقَضَاءِ بِالْمُسَمّٰى او د امام ابو يوسف په نيز پر مهرِ مسمىٰ فيصله كول مشكل دي فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځكه به مهرِ مثل ته رجوع كيږي وَلَوْكَانَ الاِخْتِلَافُ بَعْدَ مَوْتِ أَحَدِهِمَا او كه اختلاف د يوه تر مرګ وروسته وي [يعني د ښځې يا د خاوند تر مرګ وروسته په مهر كې د مړي د وارثانو او د ژوندي اختلاف واقع سي] فَالْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي حَيَاتِهِمَا نو په دې [صورت] كې جواب [او حكم] داسې دى لكه د خاوند او ښځې په ژوند كې چې كوم جواب وو لِأَنَّ اعْتِبَارَ مَهْرِ الْمِثْلِ لَا يَسْقُطُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا ځكه چې د مهر مثل اعتبار د يوه په مرګ سره نه ساقطيږي وَلَوْكَانَ الاِخْتِلَافُ بَعْدَ مَوْتِهِمَا فِي الْمِقْدَارِ او كه اختلاف د خاوند او ښځې تر مرګ وروسته د مهر په مقدار كې وي فَالْقَوْلُ قَوْلُ وَرَثَةِ الزَّوْجِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو [په دې صورت كې] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د خاوند د وارثانو قول معتبر دى وَلَا يُسْتَثْنَى الْقَلِيْلُ او ده هغه په نيز [به لږ مقدار به [هم] نه جلا كيږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ الْقَوْ قَوْلُ الْوَرَثَةِ إِلَّا أَنْ يَأْتُوا بِشَيْئٍ قَلِيلٍ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز [هم] د خاوند د وارثانو قول معتبر دى خو دا چې هغوى ډېر لږ مقدار ذكر كړي [يعني د امام ابو يوسف په نيز به لږ مقدار جلا كيږي] وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ الْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په دې [صورت] كې جواب داسې دى لكه د ژوند په حالت كې چې كوم جواب دى وَإِنْ كَانَ فِي أَصْلِ الْمُسَمّٰى او كه په أصل مسمىٰ كې اختلاف وي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ الْقَوْلُ قَوْلُ مَنْ أَنْكَرَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه كس قول معتبر دى كوم چې د مسمىٰ انكار كوي فَالْحَاصِلُ أَنَّهُ لَا حُكْمَ لِمَهْرِ الْمِثْلِ عِنْدَهُ

---

❁ القول الراجح: قول أبى حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر فى رد المحتار (ج:۲، ص:۳۹۳)، وكذا فى الخانية (ج:۱، ص:۱۸۳).
[القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۵]

بَعْدَ مَوْتِهِمَا خلاصه دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خاوند او ښځي تر مرګ وروسته مهرِ مثل لره هیڅ حکم نسته [یعني د دوی تر مرګ وروسته به پر مهرِ مثل فیصله نه کیږي] عَلٰی مَا نُبَيِّنُهٗ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ لکه وروسته چې به مونږ انشاء الله د دې [دلیل] بیان کړو.

**اللغات:** ﴿مسمّٰی﴾ د تفعیل اسم مفعول دی: ټاکل سوی، مقرر سوی. ﴿تَعَذَّر﴾ د تفعل ماضي ده: مشکل کېدل، ستونزمن کېدل.

**تشریح:** په تېر عبارت کي دا صورت په تفصیل سره بیان سو چې کله خاوند او ښځه د مهر پر تعیین او تسمیه (ټاکل کېدلو) متفق وي، فقط دمهر په مقدار کي د دوی اختلاف وي. او په دې عبارت کي د مسئلې دا صورت بیان سوی دی چې کله په اصل مسمیٰ یعني په تعیین او تسمیه کي اختلاف وي یعني خاوند ووایي چې د نکاح په وخت کي مهر بالکل ټاکل سوی نه دی او ښځه ووایي چې ټاکل سوی دی، نو څرنګه چې دلته په اصل مسمیٰ او د مهر په ټاکل کېدلو کي اختلاف دی. نو ځکه د ټولو په نېز مهرِ مثل واجبیږي (ځکه مخکي دا خبره ذکر سوه چې که د نکاح په وخت کي مهر نه وټاکل سي نو پر خاوند مهرِ مثل واجبیږي)؛ د طرفینو په نېز خو ځکه په دې مسئله کي مهرِ مثل واجبیږي چې د دوی په نېز مهرِ مثل أصل دی. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز که څه هم مهرِ مسمیٰ (ټاکل سوی مهر) أصل دی او مهرِ مثل د هغه فرع او تابع دی. خو څرنګه چې په دې مسئله کي په تسمیه او ټاکل کېدلو کي اختلاف دی نو پر مهر مسمیٰ به څرنګه فیصله وسي! او پر خاوند به څرنګه هغه واجب کړی سي!، نو ځکه به د فرع یعني د مهرِ مثل و طرف ته رجوع کیږي او هغه به پر خاوند واجبیږي.

**ولو کان الاختلاف إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که په خاوند او ښځه کي یو مړ سي او په مهر کي د ژوندي او د مړه د وارثانو اختلاف راسي، هغه که د مهر په مقدار کي وي او که په أصل مسمیٰ کي وي. نو په دواړو صورتونو کي هغه حکم دی کوم چې د خاوند او ښځي د ژوند د اختلاف په صورت کي دی.

یعني که په اصل مسمیٰ کي د وارثانو او د ژوندي (خاوند یا ښځي) اختلاف راسي، نو تر دخول وروسته د ټولو په نېز مهرِ مثل واجبیږي او تر دخول مخکي (که طلاق واقع سي نو) د ټولو په نېز متعه واجبیږي: او که د مهر په مقدار کي یې اختلاف راسي، نو تر دخول وروسته د طرفینو په نېز به پر مهرِ مثل فیصله کیږي او تر دخول مخکي به په هر حال کي د خاوند خبره منل کیږي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز به په هر صورت کي د خاوند خبره منل کیږي او د هغه پر قول به فیصله کیږي (لکه په تېر عبارت کي چې دا صورت په تفصیل سره بیان سو).

ولو كان الاختلاف إلخ: او كه خاوند او ښځه دواړه مړه سي او تر مرګ وروسته د دوی د وارثانو په مېنځ كي د مهر د مقدار په هكله اختلاف راسي، د خاوند وارثان (مثلاً) د زرو درهمو دعوىٰ كوي او د ښځي وارثان د دوو زرو درهمو دعوىٰ كوي، نو په دې صورت كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مطلقاً د خاوند د وارثانو قول معتبر دی او د هغو پر قول به فيصله كيږي. كه څه هم هغوی د ډېر لږ مقدار دعوه كوي؛ ځكه چي هغوی د زياتوب منكري دي، او د مدعي سره د بينې د نشتوالي په صورت كي د منكر قول او خبره د قسم سره منل كيږي، نو ځكه به د خاوند د وارثانو خبره منل كيږي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هم د خاوند د وارثانو قول معتبر دی او د هغو خبره به منل كيږي، خو هغه د لږ مقدار استثناء كوي، يعني كه د خاوند وارثانو د ډېر لږ مقدار دعوىٰ وكړه. نو په دې صورت كي به د ښځي د وارثانو خبره منل كيږي.

امام محمد رَحِمَهُ الله دا صورت د خاوند او ښځي د ژوند پر حالت قياسوي او فرمايي چي څرنګه د خاوند او ښځي د ژوند په حالت كي د دوی په خپل اختلاف سره پر مهرِ مثل فيصله كيږي، همدارنګه به د وارثانو د اختلاف په صورت كي هم پر مهرِ مثل فيصله كيږي.

وإن كان في أصل إلخ: د دې حاصل دا دی كه د خاوند او ښځي تر مرګ وروسته وارثانو په اصل مسمىٰ كي اختلاف وكړي، مثلاً د خاوند وارثان ووايي چي د نكاح په وخت كي بالكل مهر ټاكل سوی نه وو، او د ښځي وارثان ووايي چي مهر ټاكل سوی وو، نو په دې صورت كي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه كس د وارثانو قول معتبر دی چي هغوی د أصل مسمىٰ منكر وي؛ ځكه چي فراغِ ذمه (يعني پر ذمه هيڅ مهر نه واجبېدل) أصل دي، او څوک چي د أصل دعوىٰ كوي نو قول به د هغه معتبر وي، او په دې صورت كي به پر مهرِ مثل فيصله نه كيږي؛ ځكه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د خاوند او ښځي تر مرګ وروسته پر مهرِ مثل فيصله كول نه تسليموي، لېكن د طرفينو په نيز په دې صورت كي هم مهرِ مثل واجبيږي او ائمه ثلاثه هم د دې قائل دي او همدا مفتىٰ به قول دی، دليل به انشاء الله وروسته ذكر سي، فانتظروا إني معكم من المنتظرين.

## د غير مسمىٰ لهٔ خاوند يا ښځې د مرګ په صورت کې د مهر حکم

وَإِذَا مَاتَ الزَّوْجَانِ او کله چې خاوند او ښځه [دواړه] مړه سي وَقَدْ سَمّٰى لَهَا مَهْرًا حال دا چې خاوند د ښځې لپاره مهر ټاکلی وي فَلِوَرَثَتِهَا أَنْ يَأْخُذُوا ذٰلِكَ مِنْ مِيرَاثِ الزَّوْجِ نو د ښځې وارثانو لره دا حق سته چې هغه [ټاکل سوی مهر] د خاوند له ميراث څخه واخلي وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا او که خاوند د ښځې لپاره مهر ټاکلی نه وي فَلَا شَيْءَ لِوَرَثَتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د ښځې وارثانو لره هيڅ شي نسته [يعني په دې صورت کې د امام صاحب په نيز د هغو لپاره د دې هيڅ حق نسته چې د خاوند له ميراث څخه ټاکل سوی مهر واخلي] وَقَالَا*: لِوَرَثَتِهَا الْمَهْرُ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو کې به د ښځې وارثانو لره مهر وي مَعْنَاهُ الْمُسَمّٰى فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ وَمَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهِ الثَّانِيْ يعني په اول صورت کې به [د ښځې وارثانو لره] مهرِ مسمىٰ او په دويم صورت کې به مهرِ مثل وي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّ الْمُسَمّٰى دَيْنٌ فِي ذِمَّتِهِ کوم چې اول صورت دی نو هغه ځکه چې مهرِ مسمىٰ د خاوند پر ذمه قرض دی وَقَدْ تَأَكَّدَ بِالْمَوْتِ او د مرګ په وجه هغه [نور] مؤکد سو فَيُقْضٰى مِنْ تَرِكَتِهِ نو [ځکه] به هغه د خاوند له ميراث څخه اداء کيږي إِلَّا إِذَا عُلِمَ أَنَّهَا مَاتَتْ أَوَّلًا خو دا چې کله معلومه سي چې ښځه اول مړه سوې ده فَيَسْقُطُ نَصِيبُهُ مِنْ ذٰلِكَ نو د خاوند حصه به د ښځې له ميراث څخه ساقطيږي وَأَمَّا الثَّانِيْ فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا أَنَّ مَهْرَ الْمِثْلِ صَارَ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِ كَالْمُسَمّٰى او کوم چې دويم صورت دی نو [په هغه کې] د صاحبينو د قول وجه دا ده چې مهرِ مثل د خاوند پر ذمه قرض دی لکه مهرِ مسمىٰ [چې د خاوند پر ذمه قرض وو] فَلَا يَسْقُطُ بِالْمَوْتِ نو په مرګ سره به هغه [مهرِ مثل] نه ساقطيږي كَمَا إِذَا مَاتَ أَحَدُهُمَا لکه [په هغه صورت کې چې مهرِ مثل نه ساقطيږي] کله چې له خاوند او ښځې څخه يو مړ سي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ مَوْتَهُمَا يَدُلُّ عَلٰى انْقِرَاضِ أَقْرَانِهِمَا او د امام صاحب دليل دا دی: چې د خاوند او ښځې مرګ د هغو د همعصرو [او همزولو] پر فنا کېدلو دلالت کوي فَبِمَهْرِ مَنْ يُقَدِّرُ الْقَاضِيْ مَهْرَ الْمِثْلِ نو د چا په مهر سره به قاضي [د ښځې] مهرِ مثل اندازه کړي!؟

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۳۹۳)، وكذا في الهندية (ج:۱، ص:۳۲۱).
[القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۶]

**اللغات**: ﴿وَرَثَة﴾ جمع د "وَارِثٌ" ده: وارثان، ميراث خواره، ﴿دَيْن﴾ قرض، پور، ﴿أَقْرَان﴾ جمع د "قِرْنٌ" ده: هم ځيره. همزولي. هممعصره (هَمْ عصره)، ﴿إِنْقِرَاض﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل، فنا كېدل، د ځمكي له سره وركېدل، ﴿يُقَدِّر﴾ د تفعيل مضارع معلومه ده: اندازه كول، مقررول.

**تشريح**: په دې عبارت كي ديوې مسئلې دوه صورتونه بيان سوي دي، اول صورت متفق عليه دی. دويم صورت مختلف فيه دی، متفق عليه صورت دا دی چي كه زيد او ظريفې نكاح سره وكړه او زيد د نكاح په وخت كي (مثلاً زر درهمه) مهر هم وټاكي. خو زيد په خپل ژوند كي هغه اداء نه كړی او بيا دواړه مړه سول، نو په دې صورت كي د امام صاحب او صاحبينو په اتفاق د ښځي وارثانو لره دا حق سته چي د خاوند له تركې او ميراث څخه د ښځي مهر (زر درهمه) واخلي.

لېكن كه خاوند (زيد) د ښځي (ظريفې) لپاره مهر ټاكلی نه وو او د مهر په نامه يې وروسته څه شی هغې ته وركړي هم نه وو او بيا دواړه مړه سول، نو په دې صورت كي هم د صاحبينو په نېز د ښځي وارثانو لره د خاوند له ميراث څخه د مهر اخيستلو حق سته، خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغو لره د دې هيڅ حق نسته (دا مختلف فيه صورت دی).

**د صاحبينو دليل**: څرنګه چي په (متفق عليه او مختلف فيه) دواړو صورتونو كي صاحبين د ښځي د وارثانو لپاره د مهر اخيستلو حق ثابتوي، نو ځكه اول د دوی دليل بيان سوی دی. دوی فرمايي چي د ښځي وارثانو ته په اول (متفق عليه) صورت كي د مهر مسمىٰ (ټاكل سوي مهر) د وركولو وجه دا ده چي ټاكل سوی مهر د خاوند پر ذمه دَين (قرض) وو. او خاوند په خپل ژوند كي ښځي ته تر دخول مخكي طلاق هم نه دي وركړی چي په هغه كي څه كمي راسي. او د خاوند په مرګ سره هغه ټاكل سوی مهر نور مؤكد او مظبوط سو. نو ځكه به د نور قرضونو په څېر به دغه قرض هم د هغه له ميراث څخه اداء كيږي.

خو كه دا معلومه سي چي ښځه اول مړه سوې وه او بيا خاوند مړی سوی وو، نو په دې صورت كي به له ټاكل سوي مهر (۱۰۰۰) درهمه څخه د خاوند د ميراث حصه را ګرځول كيږي او پاته مهر به د ښځي وارثانو ته وركول كيږي، مثلاً كه د ښځي اولاد هم وو نو د زرو (۱۰۰۰) درهمو ربع (څلورمه حصه) يعني دوه نيم سوه (۲۵۰) درهمه به له مهر څخه را ګرځول كيږي او پاته اووه نيم سوه (۷۵۰) درهمه به د ښځي وارثانو ته وركول كيږي، او كه د ښځي اولاد نه وو. نو نصف (۵۰۰ درهم) به له مهر څخه را ګرځول كيږي او پاته (۵۰۰ درهم) به د ښځي وارثانو ته وركول كيږي. (ځكه كله چي ښځه اولاد لري او بيا ښځه مړه سي، نو په دې صورت كي به د ښځي د ميراث ربع خاوند ته وركول كيږي، او كه هغه اولاد نه لري. نو بيا به نصف وركول كيږي)

او د صاحبينو په نيز په دويم (مختلف فيه) صورت کي د ښځي وارثانو ته د مهرِ مثل ورکولو وجه دا ده چي څرنګه مهرِ مسمىٰ د خاوند پر ذمه دَين (قرض) وي، همداسي به مهرِ مثل هم د هغه پر ذمه دَين (قرض) وي، او مهرِ مثل چي څرنګه د يوه (يعني د خاوند يا د ښځي) د مرګ په صورت کي نه ساقطيږي، همداسي به د دواړو د مرګ په صورت کي به هم هغه نه ساقطيږي.

**د امام صاحب دليل:** د امام صاحب د دليل حاصل دا دی چي د ښځي مهرِ مثل د هغې د هممعصره او هَمْ عُمره ښځو په مهر سره اندازه کيږي او معلوميږي، خو کله چي ښځه او خاوند مړه سي او له دې دنيا څخه کوچ وکړي نو داسي سو لکه په دې دنيا کي چي د هغو هممعصره او همعُمره ښځي هم ختمي او نيستي سوې، نو اوس به د دغه وفات سوي ښځي مهرِ مثل د کومي ښځي د مهر سره اندازه کيږي او قاضي به د کومي ښځي پر مهر قياس او فيصله کوي!؟ لنډه دا چي اوس د قاضي لپاره د هغې مهرِ مثل معلومول مشکل دي، نو ځکه به په دې صورت کي مهرِ مثل نه واجبيږي. (د انصاف خبره دا ده چي په دې مسئله کي د صاحبينو مسلک او د هغو دليل قوي دی)

## د خاوند له طرفه ښځي ته د ورکول سوي شي په حيثيت کي د اختلاف بيان

وَمَنْ بَعَثَ إِلَى امْرَأَتِهِ شَيْئًا او که يو سړي خپلي ښځي ته يو شی واستوی فَقَالَتْ: هُوَهَدِيَّةٌ نو ښځي ووېل: چي هغه هديه ده وَقَالَ: الزَّوْجُ هُوَمِنَ الْمَهْرِ او خاوند ووېل: چي هغه له مهر څخه دی فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ نو قول به د خاوند معتبر وي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُمَلِّكُ ځکه چي هغه مالک جوړونکی دی ايعني د هغه له طرفه ښځه د دې شي مالکه سوې دها فَكَانَ أَعْرَفَ بِجِهَةِ التَّمْلِيْكِ نو هغه به د مالک کولو په جهت ښه خبر وي كَيْفَ وَأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ يَسْعٰى فِي إِسْقَاطِ الْوَاجِبِ او څنګه به داسي نه وي چي ظاهري حالت هم دا دی چي هغه به د واجب په ساقطولو کي کوشش کوي قَالَ: إِلَّا فِي الطَّعَامِ الَّذِي يُؤْكَلُ فرمايي: مګر نه په هغه خوراک کي چي خوړل کيږي فَإِنَّ الْقَوْلَ قَوْلُهَا ځکه چي اپه هغه کي ا د ښځي قول معتبر دی وَالْمُرَادُ مِنْهُ مَا يَكُوْنُ مُهَيَّأً لِلْأَكْلِ او له خوراک څخه مراد هغه خواړه دي کوم چي د خوړلو لپاره تيار سوي وي لِأَنَّهُ يَتَعَارَفُ هَدِيَّةً ځکه چي د هغه هديه کېدل متعارف دي ايعني په عرفِ عام کي تيار سوی خوراک د هديې او تحفې په توګه استول کيږي ا فَأَمَّا فِي الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ لېکن په غنمو او اُوربشو کي به د خاوند قول معتبر وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَقِيْلَ: مَا يَجِبُ عَلَيْهِ مِنَ الْخِمَارِ وَالدِّرْعِ وَغَيْرِهِمَا او وېل سوي دي: کوم شيان چي پر خاوند واجب وي يعني پوړنی، قميص او داسي نور لَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْتَسِبَهُ مِنَ الْمَهْرِ انو ا د خاوند لپاره جائز نه دي

چې هغه شیان له مهر څخه شمار کړي لِأَنَّ الظَّاهِرَ يُكَذِّبُهُ ځکه چې ظاهري حالت د خاوند تکذیب کوي
[یعني په دې صورت کې ظاهري حالت هغه درواغجن ګڼي].

**اللغات:** ﴿هدِيَّة﴾ تحفه، سوغات، ډالۍ، ﴿مُمَلِّك﴾ د تفعیل اسم فاعل دی: مالک جوړونکی، ﴿أَعْرَف﴾ د ضرب له باب څخه د اسم تفضیل صیغه ده: زیات پېژندونکي، زیات په خبر (ښه خبر)، ﴿جِهَة﴾ طرف، طرز، طریقه، ﴿خُف﴾ اوربشي، ﴿الدِّرْع﴾ قمیص (کمیس)، ﴿يُكَذِّبُ﴾ د تفعیل مضارع معلومه ده: درواغجن کول، درواغجن ګڼل، درواغو ته منسوب کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي خپلې ښځې ته یو شی ور واستوی، بیا ښځې خاوند ته وویل چې دا شی تا ما ته د هدیې په نیت را استولی دی او خاوند وویل چې نه! بلکې دا ستا د مهر یوه حصه ده، نو په دې صورت کې به د خاوند خبره منل کیږي؛ ځکه چې هغه په خپله مُمَلِّک (مالک جوړونکی) دی او د تملیک په جهت او نوع ښه خبر دی، نو د تملیک چې کوم جهت هغه وټاکي پر هغه به فیصله کیږي.

دویمه خبره دا ده چې ظاهري حالت هم د خاوند موافق دی؛ ځکه پر یو انسان چې کله یو شی واجب وي نو ښکاره خبره ده چې هغه به د دې واجب د اداء کولو او له خپلې غاړې څخه د هغه د ساقطولو کوښښ کوي، داسې نه سې کېداى چې څوک واجب پرېږدي او د هغه پر ځای د تطوع او احسان (هدیې) لاره اختیار کړي، نو ظاهري حالت هم د دې ګواهي ورکوي چې خاوند دغه شی ښځې ته د مهر لپاره ورکړی دی، نو ځکه به د هغه خبره منل کیږي.

**قال إلا في الطعام إلخ:** د دې حاصل دا دی چې که خاوند ښځې ته داسې شی ور واستوی چې په هغه کې د هدیې علامت او نښه موجوده وه، نو بیا به د ښځې خبره منل کیږي؛ ځکه چې قرینه د ښځې موافق ده، مثلاً خاوند ښځې ته تیار سوی خوراک، سور کړی چرګ یا داسې بل شی واستوی چې هغه دوام نه لري، او بیا خاوند وویل چې دا ستا د مهر یوه حصه ده لېکن ښځې وویل چې دا هدیه ده، نو په دې صورت کې به د ښځې خبره منل کیږي؛ ځکه چې په عرفِ عام کې دا ډول شیان په هدیه کې استول کیږي، خو که خاوند هغې ته داسې شی واستوی چې هغه دوام لري لکه غنم، جوار، اوربشې، نو بیا به د خاوند خبره منل کیږي او هغه به له مهر څخه شمارل کیږي؛ ځکه چې په عرفِ عام کې د هدیې او تحفې په توګه د داسې شیانو د ورکولو رواج نسته، او بل دا چې ظاهري حالت هم د خاوند موافق دی.

او د ځینې حضراتو رایه دا ده چې کوم شیان تر نکاح وروسته پر خاوند واجبیږي لکه د ښځې کپړې، پوړنې، قمیص، که چېرې خاوند له هغه شیانو څخه یو شی ښځې ته ور واستوي او ووایې چې دا مهر دی لېکن ښځه ووایي چې دا هدیه ده، نو د ښځې خبره به منل کیږي؛ ځکه چې دلته ظاهري حالت د خاوند مخالف دی او په دې شیانو کې د هدیې نښه موجوده ده، نو ځکه به اوس د هغه خبره نه منل کیږي، خو که خاوند یو اضافي شی ور واستوی کوم چې له واجبو شیانو څخه نه وي، نو بیا به د خاوند خبره منل کیږي او هغه شی به مهر شمارل کیږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

# فَصْلٌ (فِي بَيَانِ أَحْكَامِ أَنْكِحَةِ الْكُفَّارِ)

## (دا) فصل (د کفارو د نكاح ګانو په بيان کې) دی

**تشريح:** ځرنګه چې نکاح په يوه اعتبار سره عبادت دی او په بل اعتبار سره معامله ده، او کفار په معاملاتو کې د مسلمانانو تابع دي، نو ځکه صاحب د کتاب اول د أصل يعني د مسلمانانو د نکاح احکام بيان کړل او تر هغه وروسته اوس د فرع يعني د کفارو د نکاح احکام او مسائل بيانوي (ځکه چې أصل تر فرع مخکې وي).

### که کافر په دار الاسلام کې مردار (حيوان) په مهر کې وټاکي يا له مهر ځخه بغير نكاح وكړي؟ (حکم او اختلاف)

وَإِذَا تَزَوَّجَ النَّصْرَانِيُّ نَصْرَانِيَّةً عَلَى مَيْتَةٍ أَوْ عَلَى غَيْرِ مَهْرٍ او کله چې نصراني سړی ديو مردار [حيوان] په عوض کې يا له مهر ځخه بغير د نصراني ښځې سره نكاح وكړي وَذَلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ او دا د هغو په دين [او عقيده] کې جائز وي فَدَخَلَ بِهَا أَوْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا [او] بيا نصراني په هغې دخول وكړي يا تر دخول مخکې طلاق ورکړي أَوْ مَاتَ عَنْهَا يا ځني مړ سي [يعني هغه مړ سي او ښځه يې پاته سي] فَلَيْسَ لَهَا مَهْرٌ نو د هغې لپاره به [هيڅ] مهر نه وي وَكَذَلِكَ الْحَرْبِيَّانِ فِي دَارِ الْحَرْبِ او په دار الحرب کې د دوو حربيانو هم دغه حکم دی وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَهُوَ قَوْلُهُمَا فِي الْحَرْبِيَّيْنِ او همدا د دوو حربيانو په باره کې د صاحبينو قول [هم] دی وَأَمَّا فِي الذِّمِّيَّةِ فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا إِنْ مَاتَ عَنْهَا أَوْ دَخَلَ بِهَا او کوم چې ذميه ښځه ده نو د هغې لپاره به مهر مثل وي که چيري خاوند ځني مړ سي يا دخول په وکړي وَالْمُتْعَةُ إِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا يا به [د هغې لپاره] متعه وي که چيري خاوند تر دخول مخکې هغې ته طلاق ورکړي وَقَالَ زُفَرُ: لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْحَرْبِيَّيْنِ أَيْضًا امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د دوو حربيانو په صورت کې به هم د ښځې

❁ القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله، کما ذکر فی رد المحتار (ج:۲، ص:۳۹۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۸]

لپاره مهر مثل وي لَهٗ: أَنَّ الشَّيْءَ مَا شَرَعَ ابْتِغَاءَ النِّكَاحِ إِلَّا بِالْمَالِ دهغه دليل دا دی: چي شريعت [فقط] د مال په ذريعه دبضع طلب کول مشروع [او روا] ګرځولي دي وَهٰذَا الشَّيْءُ وَقَعَ عَامًّا او دا شريعت عام واقع سوی دی [يعني زموږ شريعت د هر کس لپاره عام دی] فَيَثْبُتُ الْحُكْمُ عَلَى الْعُمُوْمِ نو [د هغه] حکم به هم په عمومي توګه ثابتيږي وَلَهُمَا: أَنَّ أَهْلَ الْحَرْبِ غَيْرُ مُلْتَزِمِيْنَ أَحْكَامَ الْإِسْلَامِ او د صاحبينو دليل دا دی: چي حربيان د اسلامي احکامو پابند نه دي [يعني هغوی زموږ د اسلامي احکامو ذمه واري نه اخلي او پر ځان يې نه لازموي لکه څرنګه چي يې ذميان پر ځان لازموي] وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ مُنْقَطِعَةٌ لِتَبَايُنِ الدَّارِ او د دار [حکومت] د تفاوت په وجه [پر هغو] د إلزام [لازمولو] ولايت هم نسته انو ځکه به پر حربيانو زموږ احکام لازم نه وي] بِخِلَافِ أَهْلِ الذِّمَّةِ لِأَنَّهُمُ الْتَزَمُوا أَحْكَامَنَا فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى الْمُعَامَلَاتِ كَالرِّبَا وَالزِّنَا په خلاف د ذميانو ځکه چي دوی زموږ هغه احکام پر ځان لازم کړي دي کوم چي د معاملاتو و طرف ته راجع وي [يعني کوم چي د معاملاتو سره تعلق لري] لکه سود او زنا وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ مُتَحَقِّقَةٌ لِاتِّحَادِ الدَّارِ او د دار ديو والي په وجه [پر هغو] ولايت إلزام هم ثابت دی وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ أَهْلَ الذِّمَّةِ لَا يَلْتَزِمُوْنَ أَحْكَامَنَا فِي الدِّيَانَاتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي ذميان د دين په باره کي زموږ احکام پر ځان نه لازموي وَفِيمَا يَعْتَقِدُوْنَ خِلَافَهُ فِي الْمُعَامَلَاتِ او په هغه معلاماتو کي [هم زموږ احکام پر ځان نه لازموي] چي په هغه کي د هغو عقيده زموږ په خلاف وي وَوِلَايَةُ الْإِلْزَامِ بِالسَّيْفِ وَبِالْمُحَاجَّةِ او ولايت د إلزام يا په توره سره ثابتيږي يا د دليل په ذريعه په مغلوبه کولو سره وَكُلُّ ذٰلِكَ مُنْقَطِعٌ عَنْهُمْ بِاعْتِبَارِ عَقْدِ الذِّمَّةِ او د عقد ذمه په وجه دغه دواړه شيان له هغو څخه منقطع دي فَإِنَّا أُمِرْنَا بِأَنْ نَتْرُكَهُمْ وَمَا يَدِيْنُوْنَ ځکه چي موږ ته د دې حکم سوی دی چي هغوی پر خپل دين عمل کولو ته پرېږدو [يعني موږ ته د دې خبري حکم سوی دی چي موږ دوی او خپل دين سره پرېږدو] فَصَارُوا كَأَهْلِ الْحَرْبِ نو دوی د حربيانو په څير سو بِخِلَافِ الزِّنَا لِأَنَّهُ حَرَامٌ فِي الْأَدْيَانِ كُلِّهَا په خلاف د زنا ځکه چي هغه په ټولو دينونو [او مذهبونو] کي حرامه ده وَالرِّبَا مُسْتَثْنًى عَنْ عُقُودِهِمْ او سود د ذميانو له عقودو څخه مستثنیٰ دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: إِلَّا مَنْ أَرْبٰى فَلَيْسَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ عَهْدٌ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: مګر څوک چي د سود معامله وکړي نو زموږ او د هغه تر مينځ هيڅ عهد [او

ژباړه] نسته ﴿وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: أَوْعَلٰى غَيْرِ مَهْرٍ﴾ او په جامع صغير کې د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: "أَوْ عَلٰى غَيْرِ مَهْرٍ" [کوم چې د هدايې متن هم دی] يَحْتَمِلُ نَفْيَ الْمَهْرِ وَيَحْتَمِلُ السُّكُوتَ [دا قول] د مهر د نفي او سکوت دواړو احتمال لري وَقَدْ قِيلَ: فِي الْمَيْتَةِ وَالسُّكُوتِ رِوَايَتَانِ او ويل سوي دي: چې د مردار [حيوان] او د سکوت اختيارولو په باره کې دوه روايته دي وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْكُلَّ عَلَى الْخِلَافِ [خو] صحيح دا ده چې ټوله صورتونه پر اختلاف دي.

**اللغات**: ﴿مَيْتَة﴾ مردار سوی حيوان، مرداره (يعني هغه حيوان چې په خپل مرګ مړ سوي وي، صاحب د مصباح يې داسې تعريف کړی دی: وَالْمَيْتَةُ مِنَ الْحَيَوَانِ مَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ). ﴿اِبْتِغَاء﴾ د افتعال مصدر دی: طلب کول، غوښتل، ﴿تَبَايُن﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل، ﴿محاجة﴾ د مفاعلې مصدر دی: د حجت او دليل په ذريعه مغلوبه کول، ﴿يَدِيْنُوْن﴾ د ضرب مضارع ده: عقيده لرل (اعتقاد).

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکې دا خبره په ياد لرئ! چې په متن کې د "نصراني" او "نصرانيةٌ" قيد اتفاقي دی، يعني د ټولو اهل ذمه (ذميانو) همدغه حکم دی کوم چې د نصراني سړي او نصراني ښځې دی.

په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي او دواړې اختلافي دي: (۱)... د اولې مسئلې حاصل دا دی که يو نصراني سړي (يعني ذمي) په دارُ الاسلام کې د مردار سوي حيوان په عوض کې د يو نصراني ښځې سره نکاح وکړه، يا يې له څه مهر څخه بغير نکاح ور سره وکړه او حال دا چې په دغه صورت کې د دوی په مذهب او عقيده کې نکاح جائز هم وه، بيا هغه په ښځې دخول وکړی، يا يې تر دخول مخکې طلاق ورکړی، يا هغه مړ سو او ښځه پاته سوه (او دا مسئله زموږ دار القضاء ته پېش کړی سوه)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دغه ټولو صورتونو کې پر نصراني سړي هيڅ شی واجب نه دی، يعني نصراني ښځې ته به د خاوند له طرفه هيڅ مهر نه ورکول کېږي. صاحبين او امام زفر رَحِمَهُمُ الله فرمايي چې پر دغه سړي مهرِ مثل واجب دی، همدا د ائمه ثلاثه وو رَحِمَهُمُ الله مسلک دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که په دار الحرب کې يوه حربي سړي د مردار حيوان په عوض کې يا بېله مهره د يو حربي ښځې سره نکاح وکړه، بيا هغه په ښځې دخول وکړی، يا يې تر دخول مخکې طلاق ورکړی، يا هغه مړ سو او ښځه پاته سوه (او دا فيصله زموږ دار القضاء ته راوړل سوه)، نو په دې

صورت کي د امام صاحب او صاحبینو په نېز پر حربي سړي مهر نه واجبېږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم پر هغه مهرِ مثل واجبېږي.

**د امام زفر دلیل**: دا دی چي په شریعتِ اسلامي کي د بضع او نکاح طلب کول فقط د مال په ذریعه مشروع او روا دي، الله تعالیٰ فرمایلي دي: "أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ ...إلخ" او دا حکم عام دی، ځکه چي زموږ شریعت د هر یوه لپاره عام او تام دی، نو د هغه احکام به هم عام او تام وي او د "قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيْعًا" په روی سره به هر یو د هغه مخاطب وي، همدارنګه نکاح من وجه د معاملاتو له قبیلې څخه ده (یعني په یوه اعتبار سره معامله ده) او په معاملاتو کي د مسلمانانو په څېر کفار هم د شریعت مخاطب دي، او څرنګه چي په دغه صورتونو کي (یعني په مردار حیوان باندي د نکاح کولو په صورت کي یا بېله مهره د نکاح کولو په صورت کي) پر مسلمان مهرِ مثل واجبېږي، همدارنګه به پر نصراني (ذمي) او حربي هم مهرِ مثل واجبېږي او ښځي ته به مهرِ مثل ورکول کېږي. (ځکه د "إِنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيْعًا" مطلب دا ښکاري چي د دغه شریعت احکام د کفارو لپاره هم دي).

**د صاحبینو دلیل**: د صاحبینو د دلیل حاصل دا دی چي د شریعت په احکامو هغه کسان مکلّف او مخاطب دي چي هغو د اسلامي احکامو التزام کړی وي (او پر ځان یې لازم کړي وي چي هغوی ذمیان دي)، او څرنګه چي دار الحرب جلا حکومت دی او حربي فقط د یو څو وخت لپاره دار الاسلام ته راغلی دی، لهذا هغه د اسلامي احکامو التزام نه دی کړی، نو ځکه به پر حربیانو زموږ د شریعت احکام نه لازمېږي؛ پاته سوه ذمیان نو هغه خو زموږ د دارُ الاسلام په سایه کي اوسېږي، نو د دې اوسېدلو په وجه هغو پر ځان زموږ د شریعت هغه احکام لازم کړي دي او د هغه احکامو ذمه واري یې اخیستې ده کوم چي د معاملاتو سره تعلق لري، لکه سود او زنا (ځکه کله چي کفار ذمیان وګرځي نو هغوی د مسلمانانو سره د دغه شیانو عهد او تړون کوي او د دې ذمه واري اخلي، لهذا که چیري ذمي زنا وکړي نو پر هغه به حد جاري کېږي او که هغه د سود معامله کوي نو دې ته به نه پرېښوول کېږي، ځکه چي دا دارُ الاسلام دی)، او د دارُ الاسلام په وجه پر هغه ولایتِ الزام (د لازمولو ولایت) هم ممکن دی، لهذا کله چي د هغو په حق کي التزام او الزام دواړه شیان موجود دي، نو ځکه به پر هغو هم د مسلمانانو په څېر مهرِ مثل واجبېږي.

**د امام صاحب دلیل**: د امام صاحب د دلیل حاصل دا دی چي اهلِ ذمه (ذمیانو) د دیني معاملاتو په باره کي زموږ احکام پر ځان نه دي لازم کړي یعني زموږ د دیني احکامو د منلو ذمه واري نه ده اخیستي، همدارنګه په دنیوي معاملاتو کي چي د کومو شیانو په باره کي د هغو دیني عقیده جلا وي هغه یې هم پر ځان نه دي لازم کړي او د هغه د منلو ذمه واري نه ده اخیستې، نو ځکه په دې باره کي موږ د خپل شریعت فیصله پر هغو نه سو نافذولای؛ او موږ صرف په دوه ډوله پر ذمیانو فیصله نافذولای سو: یاد

توري په ذريعه، يا د خپل شرعي دليل او بحث و مباحثې په ذريعه د هغو په مغلوبه کولو سره، او د ذمي والي د عقد په وجه موږ له دغه دواړو څخه منع سوي يو؛ ځکه چي موږ ته حکم سوی دی چي هغوی پر خپل دين پرېږدو (اُمِرْنَا بِتَرْكِهِم. الحديث)، نو ځکه به ذمي هم د مهر په معامله کي د حربي په څېر وي.

بخلاف الزنا إلخ: په دې سره د صاحبينو د قول جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي پر زنا قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه چي زنا يو داسي دروند جرم دی چي په ټولو أديانو کي حرام دی، نو ذميانو ته د زنا سزا ورکول د هغو د خپل دين په وجه دي، نه د اسلامي احکامو د مکلف کېدلو په وجه. او پاته سوه د سود مسئله نو هغه د ذمي والي له عقد څخه مستثنیٰ ده، ځکه نبي کريم ﷺ په واضحه توګه فرمايلي دي چي څوک د سود کاروبار کوي زموږ او د هغه په مينځ کي هيڅ عهد او عقد نسته، لهذا کله چي د سود مسئله د ذمي والي له عقد څخه مستثنیٰ ده، نو پر سود باندي هم قياس کول صحيح نه دي.

وقوله إلخ: د متن په دې قول "أوْ علىٰ غير مهر" کي دوه احتماله دي: ① يو دا چي خاوند بالکل د مهر نفي کړي وي (چي مهر نه درکوم)، ② دويم دا چي خاوند او ښځي بالکل مهر ذکر کړی نه وي، يعني د مهر په باره کي يې سکوت اختيار کړی وي، په ظاهر روايت کي ذکر سوي دي چي د مهر د نفي په صورت کي هم د امام صاحب په نيز پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي، لېکن د سکوت په صورت کي هيڅ شی نه پر واجبيږي. دويم قول دا دی چي د مردار سوي حيوان او د سکوت په باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: ① يو دا چي پر خاوند مهرِ مثل واجبيږي (يعني که نصراني خاوند يو مردار حيوان په مهر کي وټاکي يا د مهر په باره کي چپ پاته سي، نو د امام صاحب يو روايت دا دی چي پر هغه مهرِ مثل واجبيږي)، ② بل روايت دا دی چي هيڅ شی نه پر واجبيږي.

خو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي صحيح روايت دا دی چي په ټولو صور تونو کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی هغه که ① په مهر کي مردار حيوان ټاکل سوي وي ② او که خاوند د مهر نفي کړي وي ③ او که د مهر په باره کي يې سکوت اختيار کړی وي، نو امام صاحب په نيز پر خاوند هيڅ شی نه واجبيږي او د صاحبينو په نيز مهرِ مثل پر واجبيږي.

## که ذمي د خنزیر یا د شرابو په عوض کې نکاح وکړي او بیا مسلمان سي؟ (حکم او اختلاف)

وَإِنْ تَزَوَّجَ الذِّمِّيُّ ذِمِّيَّةً عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ که چیرې ذمي د یو ذمي ښځې سره د شرابو یا د خنزیر په عوض کې نکاح وکړي ثُمَّ أَسْلَمَا أَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا بیا دواړه اسلام راوړي یا یو د دوی اسلام راوړي فَلَهَا الْخَمْرُ وَالْخِنْزِيرُ نو د [ذمي] ښځې لپاره به شراب او خنزیر وي وَمَعْنَاهُ: إِذَا كَانَا بِأَعْيَانِهِمَا او د دې مطلب دا دی: چې کله شراب او خنزیر معیّن [او معلوم] وي وَالْإِسْلَامُ قَبْلَ الْقَبْضِ او [د دهغو] اسلام راوړل [د شرابو او خنزیر] تر قبضه کولو مخکې وي وَإِنْ كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا [لېکن] که شراب او خنزیر معیّن نه وي فَلَهَا فِي الْخَمْرِ الْقِيمَةُ وَفِي الْخِنْزِيرِ مَهْرُ الْمِثْلِ نو د شرابو په صورت کې به د ښځې لپاره قیمت وي او د خنزیر په صورت کې به مهرِ مثل وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ✿ : لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې په دواړو صورتونو کې به د هغې لپاره مهرِ مثل وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَهَا الْقِيمَةُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چې په دواړو صورتونو کې به د هغې لپاره قیمت وي وَجْهُ قَوْلِهِمَا: أَنَّ الْقَبْضَ مُؤَكِّدٌ لِلْمِلْكِ فِي الْمَقْبُوضِ لَهُ د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د قول دلیل دا دی چې قبضه په مقبوض شي کې ملک مؤکد کوي فَيَكُونُ لَهُ شِبْهٌ بِالْعَقْدِ نو قبضه به یو ډول د عقد سره مشابه وي فَيَمْتَنِعُ بِسَبَبِ الْإِسْلَامِ كَالْعَقْدِ او د اسلام په وجه سره به د عقد په څېر قبضه [هم] ممنوع وي وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَا بِغَيْرِ أَعْيَانِهِمَا او دا داسې سو لکه [شراب او خنزیر] چې غیرِ معیّن وي وَإِذَا الْتَحَقَتْ حَالَةُ الْقَبْضِ بِحَالَةِ الْعَقْدِ او کله چې د قبضې حالت د عقد د حالت سره لاحق سو فَأَبُو يُوسُفَ يَقُولُ: لَوْ كَانَا مُسْلِمَيْنِ وَقْتَ الْعَقْدِ نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې که زوجین د عقد په وخت کې مسلمانان وي يَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ وَقْتَ الْعَقْدِ وَقْتَ الْعَقْدِ نو مهرِ مثل واجبیږي فَكَذَا هٰهُنَا نو همدارنګه

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، وكذا في الدر المختار (ج:۲، ص:۴۰۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸۹]

به دلته هم [مهرِ مثل واجبيږي] وَمُحَمَّدٌ يَقُولُ: صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ لِكَوْنِ الْمُسَمّٰى مَالًا عِنْدَهُمْ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [دلته] د ذميانو په نېز د مسمىٰ [تاكل سوي شي] د مال كېدلو په وجه د مهر تسميه [تعيين] صحيح ده إِلَّا أَنَّهُ امْتَنَعَ التَّسْلِيمُ لِلْإِسْلَامِ لېكن د اسلام په وجه د هغه ور سپارل ممنوع دي فَتَجِبُ الْقِيمَةُ نو ځكه به قيمت به واجبيږي كَمَا إِذَا هَلَكَ الْعَبْدُ الْمُسَمّٰى قَبْلَ الْقَبْضِ لكه څرنګه چې تر قبضې مخكې تاكل سوى غلام هلاک سي انو هم قيمت واجبيږي] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْمِلْكَ فِي الصَّدَاقِ الْمُعَيَّنِ يَتِمُّ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په مهرِ مُعيّن كې محض په عقد سره ملک پوره كيږي وَلِهٰذَا تَمْلِكُ التَّصَرُّفَ فِيهِ او له همدې كبله ښځه په هغه كې د تصرّف كولو مالكه ده وَبِالْقَبْضِ يَنْتَقِلُ مِنْ ضَمَانِ الزَّوْجِ إِلٰى ضَمَانِهَا او په قبضه كولو سره هغه ملک د خاوند له ضمان څخه د ښځې و ضمان ته نقل كيږي وَذٰلِكَ لَا يَمْتَنِعُ بِالْإِسْلَامِ او دا د اسلام په وجه سره ممنوع دي كَاسْتِرْدَادِ الْخَمْرِ الْمَغْصُوبَةِ لكه د غصب كړل سوو شرابو واپس اخيستل [چې داسلام په وجه سره ممنوع نه دي] وَفِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ الْقَبْضُ يُوجِبُ مِلْكَ الْعَيْنِ او په مهرِ غيرِ مُعيّن كې قبضه د عين [شرابو او خنزير] ملكيت ثابتوي [او په دې كې محض په عقد سره ملک نه پوره كيږي] فَيَمْتَنِعُ بِالْإِسْلَامِ نو ځكه به دا د اسلام په وجه ممنوع وي بِخِلَافِ الْمُشْتَرٰى لِأَنَّ مِلْكَ التَّصَرُّفِ فِيهِ إِنَّمَا يُسْتَفَادُ بِالْقَبْضِ په خلاف د رانيول سوي شي، ځكه چې د تصرف ملک خو په هغه كې په قبضه سره حاصليږي وَإِذَا تَعَذَّرَ الْقَبْضُ فِي غَيْرِ الْمُعَيَّنِ او كله چې په مهرِ غيرِ معين كې قبضه ناممكنه سوه لَا تَجِبُ الْقِيمَةُ فِي الْخِنْزِيرِ نو د خنزير په صورت كې به قيمت نه واجبيږي لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ ځكه چې خنزير له ذواتُ القيم څخه دی فَيَكُونُ أَخْذُ قِيمَتِهِ كَأَخْذِ عَيْنِهِ نو د هغه اخيستل به داسې وي لكه په خپله د خنزير اخيستل وَلَا كَذٰلِكَ الْخَمْرُ لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ او شراب داسې نه دي ځكه چې هغه له ذواتُ الأمثال څخه دي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ جَاءَ بِالْقِيمَةِ قَبْلَ الْإِسْلَامِ آيا ته نه ګورې! چې كه خاوند تر اسلام راوړلو مخكې قيمت اداء كړي تُجْبَرُ عَلَى الْقَبُولِ فِي الْخِنْزِيرِ دُونَ الْخَمْرِ نو ښځه به په خنزير كې د قيمت پر قبلولو مجبورول كيږي، نه په شرابو كې وَلَوْ طَلَّقَهَا

قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا او که چیرې خاوند تر دخول مخکې ښځې ته طلاق ورکړي فَمَنْ أَوْجَبَ مَهْرَالْمِثْلِ أَوْجَبَ الْمُتْعَةَ نو چا چې مهر مثل واجب کړی دی هغه [په دې صورت کې] متعه واجبوي وَمَنْ أَوْجَبَ الْقِيْمَةَ أَوْجَبَ نِصْفَهَا او چا چې قيمت واجب کړی دی هغه د قيمت نصف [نيم قيمت] واجبوي.

**اللغات:** ﴿مُؤَكِّد﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: مضبوطونکی (ټينګونکی، پخونکی)، ﴿يَمْتَنِعُ﴾ د افتعال مضارع ده: منع کېدل (ممنوع کېدل)، ناممکن کېدل، ﴿صَدَاق﴾ مهر، ﴿إِسْتِرْدَاد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل، ﴿تَعَذَّرَ﴾ د تفعل ماضي ده: ناممکن کېدل، مشکل کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو ذمي کس د معلومو شرابو يا د معلوم خنزير په عوض کې د يو ذمي ښځې سره نکاح وکړي (يعني په مهر کې معلوم شراب يا معلوم خنزير وټاکي چې خاص دغه درکوم)، بيا د مهر تر ورکولو او اخيستلو مخکې دواړه مسلمانان سي، يا په دواړو کې يو مسلمان سي، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دغه ذمي ښځې لپاره هغه ټاکل سوي معلوم شراب يا معلوم خنزير واجبيږي يعني ذمي کس به ښځې ته هغه ورکوي، او که چيرې ذمي په مهر کې معلوم شراب يا خنزير نه وټاکي بلکې هسې ديو نا ټاکل سوي (غير معيّن) شراب يا خنزير په عوض کې نکاح ور سره وکړي، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې د غيرِ معيّنو شرابو په صورت کې د ذمي ښځې لپاره د هغه شرابو قيمت واجبيږي او د غيرِ معيّن خنزير په صورت کې د ښځې لپاره مهرِ مثل واجبيږي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې (برابره ده شراب يا خنزير معيّن وي او که غيرِ معيّن وي) په دواړو صورتونو کې د ښځې لپاره مهرِ مثل واجبيږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دواړو صورتونو کې د ښځې لپاره د شرابو يا د خنزير قيمت واجبيږي.

**د صاحبينو دليل: وجه قولهما الخ:** له دې ځای څخه صاحب د کتاب د امام ابو يوسف او امام محمد دواړو مشترک دليل بيانوي، که څه هم د دوی په خپل مينځ کې اختلاف دی، خو صاحب د کتاب ځکه د دواړو لپاره مشترک او يو دليل بيانوي چې دوی دواړه په هيڅ صورت کې هم د ښځې لپاره عينِ شراب يا عينِ خنزير نه واجبوي، هغه که معين وي او که غيرِ معين وي.

نو فرمايي د صاحبينو دليل دا دی چې قبضه د ملکيت لپاره مؤکّده ده (يعني د ښځې په قبضه کولو سره ملکيت نور مؤکد او مستحکم ګرځي)، همدا وجه ده چې که دغه ټاکل سوی شی هغه وخت هلاک سي چې ښځې لا قبضه کړی نه وي، نو هغه د خاوند له مال څخه هلاک شمارل کيږي او پر خاوند د هغه مثل واجبيږي که چيرې هغه له ذوات الأمثال څخه وي، او که هغه له ذواتُ القيم څخه وي نو قيمت پر واجبيږي، او که هغه د ښځې تر قبضه کولو وروسته هلاک سي نو د ښځې له مال څخه هلاک شمارل کيږي، او همدارنګه د امام

صاحب په نېز تر قبضه کولو مخکې پر ښځې په مهر کې زکاة نه واجبیږي او تر قبضه کولو وروسته پر ښځې زکاة واجبیږي، لهذا کله چې قبضه د ملک لپاره مؤکده ده نو قبضه د عقد سره مشابه سوه (یعني قبضه کول داسې سو لکه عقد کول) ځکه چې قبضه او عقد دواړه په ملکیت کې مؤثر دي، نو څرنګه چې تر اسلام وروسته ابتداءً د عقد په وجه د شرابو تملیک (یعني یو چا ته شراب ورکول او هغه د هغې مالک جوړول) او د خنزیر تملیک ممنوع او نا روا دی، همدارنګه تر اسلام وروسته پر شرابو یا پر خنزیر قبضه کول هم ممنوع ده، او څرنګه چې د غیرِ معیّنو شرابو یا د غیرِ معیّن خنزیر په صورت کې د یو مسلمان لپاره د هغه تملیک او قبضه (ورکول او اخیستل) ممنوع دي، همدارنګه د هغوی تر معیّن کېدلو وروسته هم د هغوی تملیک او قبضه ممنوع دي، نو کله چې قبضه د عقد سره مشابه سوه او د عینِ شرابو یا عینِ خنزیر ورکول (تملیک) ممنوع سو، نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چې که دوی دواړه (ذمي او ذمیه) پر شرابو یا پر خنزیر د عقد کولو په وخت کې مسلمانان وای نو مهرِ مثل به واجبېدی، لهذا کله چې اوس د قبضه کولو په وخت کې مسلمانان دي نو اوس به هم مهرِ مثل واجبیږي. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې په مهر کې د خنزیر او شرابو ټاکل (تسمیه) صحیح ده؛ ځکه چې د ذمیانو په نېز دغه شیان مال دی، خو څرنګه چې د اسلام په وجه د دې شیانو ورکول (تملیک) ممنوع دي، نو ځکه به د هغوی قیمت واجبیږي، لکه څرنګه چې په هغه وخت کې هم قیمت واجبیږي کله چې په مهر کې غلام وټاکل سي او هغه تر قبضه کولو مخکې هلاک سي، نو همدارنګه به دلته هم د خنزیر یا شرابو قیمت واجبیږي.

**د امام صاحب دلیل**: دا دی چې مِلک (ملکیت) په مهرِ معیّن کې په نفسِ عقد سره پوره کیږي (یعني په مهرِ مُعیّن کې محض په عقد سره د ښځې ملکیت ثابتیږي)؛ ځکه چې مِلک پر دوه قسمه دی: ملکِ رقبه او ملکِ تصرف، او په مهر معین کې د ښځې لپاره تر قبضې مخکې دواړه ملکونه ثابت دي، همدا وجه ده چې ښځه د مهرِ معیّن تر قبضه کولو مخکې په هغه کې د هر ډول تصرف کولو حق او اختیار لري او که تر قبضه کولو مخکې هغه (مهرِ معیّن) هلاک سي نو هغه د ښځې له ملک څخه هلاک شمارل کیږي. نه د خاوند له ملک څخه؛ خلاصه دا چې په مهرِ معین کې قبضه د ملک لپاره مؤکده نه ده. پاته سو دا سوال چې بیا د قبضې څه فایده ده؟، نو صاحب د هدایې په جواب کې فرمایي چې د قبضې په ذریعه دغه ملک د خاوند له ضمان څخه وځي او د ښځې ضمان ته نقل کیږي، او دا انتقال د اسلام په وجه ممنوع نه دی (یعني مسلمان کېدل که څه هم د خنزیر او شرابو د تملیک لپاره مانع دي خو د مِلک د انتقال لپاره مانع نه دي)، مثلاً له یو ذمي څخه یو چا شراب غصب کړه او تر هغه وروسته ذمي مسلمان سو، نو اوس د دغه مسلمان ذمي لپاره له غاصب څخه هغه مغصوب شراب اخیستل جائز دي، ځکه چې دا د مِلک تجدید نه دی بلکې د ملک استرداد او د ضمان انتقال دی چې له هغه څخه اسلام مانع نه دی.

د دې په خلاف په مهرِ غیرِ معین کې محض په عقد سره د ښځې ملکیت نه ثابتیږي، نو ځکه به هلته قبضه د ملک لپاره مؤکده او موجبه نه وي او تر اسلام وروسته به قبضه ممنوع وي؛ ځکه چې اسلام د شرابو او خنزیر له تملیک او قبضه دواړو څخه مانع دی.

**بخلاف المشتري إلخ:** علامه عيني رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي "المشتري" د راء په فتحه او کسره دواړو سره ويل کېداى سي، که په فتحه سره وويل سي نومطلب به يې دا وي چي په معين مهر کي خو په محض په عقد سره ملک ثابتيږي نو ځکه هلته اسلام له قبضې څخه مانع نه دی، لېکن که يو ذمي کس شراب يا خنزير رانيسي يا يې خرڅ کړي او تر قبضې مخکي اسلام راوړي، نو په دې صورت کي اسلام له قبضې او ملک دواړو څخه مانع دي، ځکه چي په بيع او شراء کي محض په عقد سره ملک نه ثابتيږي، بلکي هلته په قبضه سره ملک ثابتيږي، حال دا چي د اسلام په وجه سره قبضه ممنوع ده.

لنډه دا چي کله دا خبره ثابته سوه چي په مهر معين کي محض په عقد سره د ښځي ملک ثابتيږي، نو اوس که چيري د ښځي مهر خنزير وي نو پر خاوند به د هغې مهر مثل واجب وي او ښځي ته به مهر مثل ورکوي د خنزير قيمت به نه ورکوي؛ ځکه چي خنزير له ذواتُ القيم څخه دی، نو د هغه قيمت ورکول او اخيستل خاص د خنزير د ورکولو او اخيستلو په څير دي او د يو مسلمان لپاره داسي کول صحيح نه دي، او که د ښځي مهر شراب وي، نو پر خاوند به د شرابو قيمت واجب وي او هغې ته به د شرابو قيمت ورکوي؛ ځکه چي شراب له ذواتُ الامثال څخه دي، نو د هغه قيمت ورکول او اخيستل خاص د شرابو د ورکولو او اخيستلو په څير نه دي.

**ألا ترىٰ إلخ:** په دې عبارت سره صاحب د هدايې د دغه خبري نور وضاحت بيانوي چي خنزير له ذواتُ القيم څخه دی او شراب له ذواتُ الامثال څخه دی، فرمايي که د يو ښځي مهر خنزير وي او تر اسلام مخکي خاوند هغې ته قيمت ورکول وغواړي نو ښځه به د قيمت پر اخيستلو مجبوروول کيږي؛ ځکه چي خنزير اصلاً له ذواتُ القيم څخه دی، لېکن که مهر شراب وي او تر اسلام مخکي خاوند هغې ته د شرابو قيمت ورکول وغواړي، نو په دې صورت کي ښځه د شرابو د قيمت پر اخيستلو نه سي مجبوروول کېداى؛ ځکه چي شراب له ذواتُ الامثال څخه دي، نه له ذواتُ القيم څخه.

**ولو طلقها إلخ:** فرمايي که په دغه مسئله کي خاوند تر دخول مخکي ښځي ته طلاق ورکړي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر خاوند متعه واجبيږي؛ ځکه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مهر مثل واجب کړی وو. او څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله قيمت واجب کړی وو، نو ځکه د هغه په نيز پر خاوند د قيمت نصف (يعني نيم مهر) واجبيږي، ځکه چي تر دخول مخکي د طلاق په وجه سره نيم مهر لازميږي.



# بَابُ نِكَاحِ الرَّقِيْقِ

(دا) باب (په بيان کې) د غلام د نکاح دی

**تشريح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب د آزاد مسلمان د نکاح مسئلې په تفصيل سره بيان کړې، اوس په دې باب کې د غلام د نکاح مسئلې په تفصيل سره بيانوي، ځرنګه چې د غلامانو په نسبت په آزادو خلکو کې اسلام غالب وي، نو ځکه يې د آزاد کس د نکاح بيان د غلام (رقيق) د نکاح تر بيان مخکې کړی.

او د نصراني او نصرانيه تر فصل وروسته د دې باب د ذکر کولو وجه دا ده چې رِقيت (غلامتوب) د کفر له آثارو او علاماتو څخه دی، او ځرنګه چې أثر تر مؤثر وروسته په وجود کې راځي، نو په دې وجه يې دا باب د نصراني او نصرانيه تر فصل وروسته کړی. والتفصيل في البناية وفتح القدير (ج:۲. ص:۹۶۹).

**رقيق:** رقيق غلام او مملوک ته وايي. پر واحد، تثنيه او جمع ټولو باندې يې اطلاق کيږي.

## د غلام او مينځې د نکاح بيان

لَا يَجُوزُ نِكَاحُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ إِلَّا بِإِذْنِ مَوْلَاهُمَا جائز نه ده نکاح د غلام او د مينځې مګر د خپل مالک په اجازت سره وَقَالَ مَالِكٌ: يَجُوزُ لِلْعَبْدِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د غلام لپاره [د مالک له اجازت څخه بغير] نکاح جائز ده لِأَنَّهُ يَمْلِكُ الطَّلَاقَ فَيَمْلِكُ النِّكَاحَ ځکه چې هغه د طلاق ملکيت [او اختيار] لري نو د نکاح ملکيت به هم لري وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ فَهُوَ عَاهِرٌ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: کوم غلام چې د خپل مالک له اجازت څخه بغير نکاح وکړي نو هغه بد کاره [زنا کاره] دی وَلِأَنَّ فِي تَنْفِيذِ نِكَاحِهِمَا تَعْيِيبَهُمَا او په دې وجه [هم] چې د غلام او مينځې د نکاح په نافذولو کې د دوی عيبجن کول دي إِذِ النِّكَاحُ عَيْبٌ فِيهِمَا ځکه چې نکاح د دوی په حق کې عيب ده فَلَا يَمْلِكَانِهِ بِدُونِ إِذْنِ مَوْلَاهُمَا نو ځکه به دوی د خپل مالک له اجازت څخه بغير د نکاح ملکيت نه لري وَكَذَلِكَ الْمُكَاتَبُ او همدارنګه مکاتب غلام [هم د مالک له اجازت څخه

بغير د نكاح كولو ملكيت نه لري) لِأَنَّ الْكِتَابَةَ أَوْجَبَتْ فَكَّ الْحِجْرِفِي حَقِّ الْكَسْبِ ځکه چي عقد کتابت انقطا (د کسب اکتي) په حق کي د بنديز ليري کول لازم کړي دي فَبَقِيَ فِي حَقِّ النِّكَاحِ عَلٰى حُكْمِ الرِّقِّ نو ځکه به د نکاح په حق کي مکاتب خپل د غلامتوب پر حکم پاته وي وَلِهٰذَا لَا يَمْلِكُ الْمُكَاتَبُ تَزْوِيْجَ عَبْدِهٖ وَيَمْلِكُ تَزْوِيْجَ أَمَتِهٖ همدا وجه ده چي مکاتب د خپل غلام د نكاح كولو ملكيت نه لري [لېكن] د خپلي مينځي د نكاح كولو ملكيت لري لِأَنَّهٗ مِنْ بَابِ الْاِكْتِسَابِ ځکه چي اخپله مينځه يو چا ته په نكاح وركول) د ګټي له باب څخه دي [ځکه په دې سره هم مال ډېرېږي] وَكَذَا الْمُكَاتَبَةُ لَا تَمْلِكُ تَزْوِيْجَ نَفْسِهَا بِدُوْنِ إِذْنِ الْمَوْلٰى وَتَمْلِكُ تَزْوِيْجَ أَمَتِهَا او همدارنګه مکاتبه مينځه د مالک له اجازت څخه بغير د خپل ځان د نكاح كولو ملكيت نه لري [لېكن] د خپلي مينځي د نكاح كولو ملكيت لري لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] بيان کړی وَكَذَا الْمُدَبَّرُ وَأُمُّ الْوَلَدِ او همدارنګه مدبر غلام او اُم ولد مينځه [هم د مالک له اجازت څخه بغير د نكاح ملكيت نه لري] لِأَنَّ الْمِلْكَ فِيْهِمَا قَائِمٌ ځکه چي په دوی کي [هم] د مالک ملکيت موجود دی.

**اللغات**: ﴿عَاهِر﴾ بدکاره، زاني (زناکاره)، ﴿تَنْفِيْذ﴾ د تفعيل مصدر دی: نافذول، ﴿تَعْيِيْب﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: عيبجن کول، خرابول، ﴿فَكّ﴾ د نصر مصدر دی: يو شی سره جلا کول، ليري کول، خلاصول، ﴿الحِجْر﴾ بنديز، ممانعت، پابندي، ﴿رِقّ﴾ غلامي، غلامتوب، ﴿تَزْوِيْج﴾ د تفعيل مصدر دی: نكاح وركول (واده وركول، نكاح تړل).

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي په دې خبره ځان پوه کړئ! چي په متن کي "لَا يَجُوْزُ" د "لَا يَنْفُذُ" په معنیٰ سره دی، ځکه چي د صحيح قول مطابق د غلام او مينځي نكاح د مالک (مولیٰ) له اجازت څخه بغير جائز ده خو نافذه نه ده، بلکي د مالک پر اجازت موقوفه ده، يعني که مالک اجازت ورکړي نو نافذيږي او که اجازت نه ورکړي نو نه نافذيږي.

حاصل دا چي د مالک له اجازت څخه بغير د مينځي نكاح د ټولو امامانو په اتفاق نه نافذيږي؛ ځکه چي د مينځي د بضع منافع د مالک ملکيت دی او د مالک له اجازت څخه بغير د هغه په ملکيت کي هيچا ته د تصرف کولو حق نسته، نو ځکه به د مالک له اجازت څخه بغير د مينځي نكاح صحيح

او نافذ نه وي، او پاتـه سو غلام نو د هغه په باره کې د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی. هغه فرمايي چـي د مالک له اجازت څخه بغير د غلام نکاح نافذيږي. لېکن د احنافو په نېز نه نافذيږي.

**د امام مالک دليل**: دا دی چي غلام د طلاق ملکيت لري (يعني ښځي تـه د مالک له اجازت څخه بغير طلاق ورکولای سي) او طلاق د نکاح سبب دی، او کوم څوک چي د سبب مالک وي نو هغه به خامخا د مُسبّب (نکاح) مالک هم وي، په بله وينا دا چي طلاق د نکاح رفع کولو (ختمولو) تـه وايي. او کوم څوک چي د يو شي د رفع کولو او ختمولو مالک وي نو هغه بـه د دغه شي د اثبات او ايجاد هم مالک وي.

**زموږ دليل**: زموږ نقلي دليـل د حضـرت جابر ﷺ دا حديث دی: "أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ... فَهُوَ عَاهِرٌ" (يعني کوم غلام چي د خپل مالک له اجازت څخه بغير نکاح وکړي نو هغه بدکاره او زناکاره دی)، په دې حديث کي د مالک لـه اجازت څخـه بغيـر نکـاح کـونکي غـلام تـه زناکـاره ويـل سـوي. لهـذا د دې حديث په خلاف په قيـاس عمـل کـول او د مالک له اجازت څخه بغيـر د غـلام نکـاح نافـذول صحيح نه دي.

او زموږ عقلي دليـل دا دی چي غـلام او مينځـه د خپـل مالـک د خدمت او اطاعت لپاره وي. اوس که موږ د مالک له اجازت څخه بغير د هغو نکاح صحيح او نافذ وګرځوو نو اولاً خو دا مقصد فوتيږي. دويم دا چي د غلامانو په حق کـي نکـاح عيـب هـم ده؛ ځکـه چـي خلـک پـر واده والا غـلام بانـدي مُجـرّد غلام ته ترجيح ورکوي (يعني کوم غلام چي واده نه لري او مُجرّد وي نو خلک هغه تـر واده والا غـلام ډېر خوښوي)، نو په دې وجه هم د مالک له اجازت څخه بغير د غلامانو نکـاح صـحيح او نافـذ ګرځـول (او د مالک لـه اجـازت څخـه بغيـر هغـو تـه د نکـاح پـه وجـه د خپـل ځـان د عيبجـن کولـو اجـازه ورکـول) صحيح نه ښکاري.

**وكذا المكاتب الخ**: فرمايي چي څرنګه د رقيـق (مطلق غلام) لپاره د مالک له اجازت څخه بغيـر نکـاح کول صحيح نه دي، همدارنګه د مکاتب، مدبر او اُمّ ولد لپاره داسي کول صحيح نه دي او د دوی نکاح هم د مالک لـه اجـازت جڅخـه بغيـر نـه نافـذيږي؛ ځکـه چـي د عقـد کتابـت پـه وجـه ځکـه مکاتـب لـره د کسـب او ګټي اجازت ورکول سوی دی چي هغه په دې سره خپـل حُريـت حاصل کړي (يعني چي ګټـه وکړي او هغه مالک ته ورکړي او خپل ځان آزاد کړي) اوس که مکاتب ته د نکاح اجازت ورکـول سـي. نو د هغه ټوله ګټه به د ښځي په مهر، نفقه او نورو کي مصرف سي او د عقد کتابت مقصد به فـوت سـي. نو ځکه د مالک له اجازت څخه بغير د مکاتب نکاح صحيح او نافذ نـه ده. همدا وجـه ده چـي د مکاتـب لپاره دا جائز نه دي چي خپل د غلام نکاح وکړي؛ ځکـه چـي پـه دې صـورت کـي بـه هـم د خپـل غـلام د

ښځې ته وله مصرفونه مکاتب برداشتوي او د هغه په وجه به دې ته نه خلاصیږي چې د عقد کتابت مقصد پوره کړي او خپل ځان په آزادۍ سره مشرف کړي.

لېکن مکاتب د خپلې مینځې نکاح کولای سي؛ ځکه په دې کې د مکاتب نفع او فایده ده، ځکه چې په دې کې هغه ته د خپلې مینځې مهر په لاس ورځي او د نفقې او داسې نورو پیسې بچت کیږي چې دا به په بدل کتابت کې د هغه سره ډېره مرسته وکړي. لنډه دا چې د خپل ځان یا د غلام لپاره نکاح کول د مکاتب په حق کې نقصان مند دي، نو ځکه د هغه لپاره داسې کول جائز نه دي، لېکن د خپلې مینځې نکاح کول د هغه لپاره فایده من دي، نو ځکه د هغه لپاره د دې اجازت سته.

وكذا المدبر الخ: څرنګه چې مدبر او اُمّ ولد هم د خپل مالک مملوک وي یعنې په هغو کې د خپل مالک ملکیت موجود او باقي وي، نو ځکه د هغو حکم هم د مطلق غلام او مکاتب په څېر دی، او د مطلق غلام او مکاتب نکاح د مالک له اجازت څخه بغیر نه نافذیږي، نو همداسې به د مدبر او اُم ولد نکاح هم نه نافذیږي.

## د غلام مهر پر چا واجب دی؟

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ او کله چې غلام د خپل مالک په اجازت سره نکاح وکړي فَالْمَهْرُ دَيْنٌ فِي رَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهِ نو مهر به د غلام په رقبه [غاړه] کې دَین [قرض] وي او هغه به د مهر په بدله کې خرڅول کیږي لِأَنَّ هٰذَا دَيْنٌ وَجَبَ فِي رَقَبَةِ الْعَبْدِ لِوُجُودِ سَبَبِهِ مِنْ أَهْلِهِ ځکه چې دا یو قرض دی کوم چې له خپل أهل څخه د سبب موجودېدلو [صادرېدلو] په وجه د غلام په رقبه کې واجب سوی دی وَقَدْ ظَهَرَ فِي حَقِّ الْمَوْلَى او دا قرض د مالک په حق کې ښکاره سو لِصُدُورِ الْإِذْنِ مِنْ جِهَتِهِ ځکه چې اجازت د هغه له طرفه صادر سوی دی فَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ دَفْعًا لِلْمَضَرَّةِ عَنْ أَصْحَابِ الدُّيُونِ نو له قرض غوښتونکو څخه د ضرر لیري کولو به لپاره دغه قرض د غلام د رقبې سره متعلق کیږي كَمَا فِي دَيْنِ التِّجَارَةِ لکه د تجارت په قرض کې [چې هم داسې کیږي] وَالْمُدَبَّرُ وَالْمُكَاتَبُ يَسْعَيَانِ فِي الْمَهْرِ وَلَا يُبَاعَانِ فِيهِ او مدبر او مکاتب به [په خپله] په مهر کې کوښښ کوي او د مهر په بدله کې به دوی نه خرڅول کیږي لِأَنَّهُمَا لَا يَحْتَمِلَانِ النَّقْلَ مِنْ مِلْكٍ إِلَى مِلْكٍ مَعَ بَقَاءِ الْكِتَابَةِ وَالتَّدْبِيرِ ځکه چې دادوی دواړه د کتابت او تدبیر د پاته والي سره له یوه ملکیت څخه بل ملکیت ته د نقل کېدلو احتمال نه لري فَيُؤَدَّى مِنْ كَسْبِهِمَا لَا مِنْ نَفْسِهِمَا نو مهر به د دوی له ګټې څخه اداء کیږي، نه د دوی له ذات څخه.

**اللغات:** ﴿دَيْن﴾ قرض، پور. ﴿رَقَبَة﴾ غاړه، د مملوک کس ذات (د غلام ذات). ﴿صُدُوْر﴾ د نصر مصدر دی: وارد بدل، راتلل، صادر بدل. ﴿إِذْن﴾ اجازت (اجازه). ﴿جِهَة﴾ طرف، اړخ (سمت). ﴿مَضَرَّة﴾ ضرر،

نقصان (تاوان)، ﴿أَصْحَابُ الدُّيُوْنِ﴾ قرضونو والا (هغه چي پر بل چا يې قرض باندي وي، خپل د قرض غوښتونكي)، ﴿يَسْعَيَانِ﴾ د فتح له باب څخه د تثنيه مذكر غائب صيغه ده: كوښښ كول، هڅه كول (خواري كارل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه يو غلام د خپل مالک په اجازت سره نكاح وكړي، نو مهر پر غلام واجبيږي، او د مهر د اداء كولو لپاره به هغه خرڅول كيږي؛ ځكه چي د مهر د وجوب سبب نكاح ده، او نكاح له خپل اهل يعني د عاقل او بالغ كس څخه صادره سوې ده او د مالک په اجازه سره يې كړې ده، نو دا نكاح صحيح ده، لهذا كله چي نكاح صحيح ده نو مهر به هم ثابت وي او د غلام پر ذمه او رقبه به واجب وي، او كوم دَين (قرض) چي د غلام پر رقبه واجب وي، غلام به د هغه په بدل كي خرڅول كيږي، نو ځكه به د غه غلام هم د مهر د اداء كولو لپاره خرڅول كيږي (ځكه چي مهر هم د خاوند پر ذمه دَين او قرض وي).

**والمدبر الخ:** د دې حاصل دا دی چي په مدبر او مكاتب كي د آزدۍ شبهه راغلې وي او څه نا څه آزاد سوي دي، لهذا كله چي دوی د خپل مالک په اجازت سره نكاح وكړي، نو د مهر په بدل كي دوی نه سي خرڅول كېدای او نه له يوه ملكيت څخه بل ملكيت ته نقل كېدای سي، بلكي د دوی له كټمي څخه به مهر اداء كيږي، لَا مِنْ نَفْسِهِمَا (يعني نه د دوی په خرڅولو سره).

## د مالک له اجازت څخه بغير د نكاح كونكي غلام بحث

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ او كه چيري غلام د خپل مالک له اجازت څخه بغير نكاح وكړه فَقَالَ الْمَوْلَى: طَلِّقْهَا أَوْ فَارِقْهَا او مالک [ورته] وويل: چي هغې ته طلاق وركړه! يا يې پرېږده! فَلَيْسَ هٰذَا بِإِجَازَةٍ نو دا به [د مالک له طرفه غلام ته] اجازه نه وي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الرَّدَّ ځكه چي دا [جمله] د ردّ [انكار] احتمال لري لِأَنَّ رَدَّ هٰذَا الْعَقْدِ وَمُتَارَكَتَهُ يُسَمّٰى طَلَاقًا وَمُفَارَقَةً ځكه چي د دغه عقد [نكاح] ردولو او پرېښوولو ته د طلاق او مفارقت نوم وركول كيږي وَهُوَ أَلْيَقُ بِحَالِ الْعَبْدِ الْمُتَمَرِّدِ او دا د سركښه غلام د حال سره زيات لائق [هم] دي أَوْ هُوَ أَدْنٰى يا دا چي ردول د كمي درجې دي [يعني سپک او آسانه دي] فَكَانَ الْحَمْلُ عَلَيْهِ أَوْلٰى نو پر هغه به حمل كول ډېر غوره وي وَإِنْ قَالَ: طَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً تَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او كه مالک وويل: چي ښځي ته داسي طلاق وركړه! چي [په هغه كي] ته د رجعت مالک يې [يعني طلاق رجعي وركړه!] فَهٰذَا إِجَازَةٌ نو دا به اجازه وي لِأَنَّ الطَّلَاقَ الرَّجْعِيَّ لَا يَكُونُ إِلَّا فِي نِكَاحٍ صَحِيحٍ ځكه

چې طلاقِ رجعي فقط په صحيح نکاح کې [واقع] کېدای سي فَتَتَعَيَّنُ الْإِجَازَةُ نو ځکه به اجازت متعين کېږي [يعنې دا جمله به پر اجازت حمل کېږي].

**اللغات**: ﴿مُتَارَكَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: يو د بل پرېښوول (يو تر بله پرېښوول)، ﴿مُفَارَقَة﴾ دا هم د مفاعلې مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل، ﴿أَلْيَق﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: زيات لايق، زيات مناسب، ﴿مُتَمَرِّد﴾ د تفعّل اسمِ فاعل دی: سرکښ، نافرمانه، ﴿تَطْلِيْقَة﴾ د تفعيل مصدر دی: يو وار طلاق ورکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام د خپل مالک له اجازت څخه بغير نکاح وکړه او کله چې مالک ته خبر ورسېدی، نو هغه غلام ته ووېل: "طَلِّقْهَا" (ښځې ته طلاق ورکړه!) يا "فَارِقْهَا" (ښځه پرېږده! او له خپل ځان څخه يې جلا کړه!)، نو مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا دواړه جملې به د نکاح پر اجازت نه حمل کېږي (او دا به نه ګڼل کېږي چې مالک خپل غلام ته د نکاح اجازه ورکړه چې زما له طرفه اجازه ده او ستا نکاح نافذ ده لهذا ته خپلې ښځې ته طلاق ورکړه! او هغه پرېږده!، بلکې دا جملې به پر ردّ حمل کېږي چې زما له طرفه اجازه نسته لهذا ستا نکاح صحيح او نافذ نه ده)؛ ځکه که څه هم په دې جملو کې د اجازت او ردّ (انکار) دواړو احتمال سته، لېکن د ردّ اړخ غالب دی؛ ځکه چې طلاق او مفارقت په اصطلاح کې د نکاح ردولو او د نکاح پرېښوولو ته وېي، او څرنګه چې د مالک له اجازت څخه بغير نکاح کول د غلام له طرفه سرکښي او نافرماني ده، نو د سرکښۍ او نافرمانۍ په سزا کې مناسب دا ده چې د مالک قول پر ردّ او انکار حمل کړی سي.

أو هو أدنى الخ: دويم علت او دليل دا دی چې د مالک قول يعنې "طَلِّقْهَا" يا "فَارِقْهَا" پر ردّ باندې حمل کول اولیٰ دي ځکه چې ردّ "د نکاح له ثبوت څخه انکار کولو" ته وايي او طلاق او مفارقت "د نکاح تر ثبوت وروسته د نکاح رفع کولو او ختمولو" ته وايي، او اُصول دا دی چې "الدَّفْعُ أَسْهَلُ مِنَ الرَّفْعِ" (يعنې د يو د شي د رفع کولو په مقابله کې د هغه دفع کول او ردول آسانه دي)، نو ځکه به دلته هم پر "سهل" عمل کېږي او له "طَلِّقْهَا" يا "فَارِقْهَا" څخه به دفع يعنې ردّ او انکار مراديږي.

ولو قال الخ: فرمايي که مالک د "طَلِّقْهَا" سره د "تَطْلِيْقَةً رَجْعِيَّةً يا تَطْلِيْقَةً تَمْلُكُ الرَّجْعَةَ" جمله هم زياته کړي (يعنې غلام ته وايي چې داسې طلاق ورکړه! چې بيا هغې ته رجعت کېدای سي)، نو په دې صورت کې به د مالک دا قول پر اجازت حمل کېږي (او دا به ګڼل کېږي چې په دې سره مالک خپل غلام ته د نکاح اجازت ورکړی، لهذا د هغه نکاح به صحيح او نافذ وي)؛ ځکه چې د طلاقِ

رجعي اجازت ورکول و دې طرف ته اشاره کوي چې مالک د هغه نکاح نافذوي او د نکاح اجازت ورکوي، ځکه چې رجعت فقط په صحيح نکاح کې کېدای سي (لندې دا چې د دغه جملې مطلب دا دی چې اول صحيح نکاح وکړه! بيا طلاق رجعي ورکړه!)، نو کله چې په دې جمله کې د نکاح د نفاذ او اجازت وطرف ته اشاره سته، نو ځکه به دا د مالک پر اجازت حمل کيږي او د غلام نکاح به صحيح او نافذ وي.

## د مالک تر اجازت وروسته د "نکاح فاسد" کولو غلام حکم

وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ: تَزَوَّجْ هَذِهِ الْأَمَةَ او څوک چې خپل غلام ته وواېي: د دې مينځې سره نکاح وکړه! فَتَزَوَّجَهَا نِكَاحًا فَاسِدًا او غلام د هغه مينځې سره نکاح فاسده وکړي وَدَخَلَ بِهَا او په هغې دخول [هم] وکړي فَإِنَّهُ يُبَاعُ فِي الْمَهْرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ نو [په دې صورت کې] به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مهر په بدله کې غلام خرڅول کيږي وَقَالَا: يُؤْخَذُ مِنْهُ إِذَا أُعْتِقَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د غلام تر آزادېدلو وروسته به له هغه څخه مهر اخيستل کيږي وَأَصْلُهُ: أَنَّ الْإِذْنَ بِالنِّكَاحِ يَنْتَظِمُ الْفَاسِدَ وَالْجَائِزَ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله أصول دا دی: چې د هغه نېز د نکاح اجازت نکاحِ فاسد او نکاحِ جائز دواړو ته شامليږي فَيَكُونُ هَذَا الْمَهْرُ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلَى نو ځکه به [د هغه په نېز] دا مهر د مالک په حق کې ظاهر وي وَعِنْدَهُمَا يَنْصَرِفُ إِلَى الْجَائِزِ لَا غَيْرُ او د صاحبينو په نېز اجازت فقط نکاحِ فاسد ته راجع کيږي فَلَا يَكُونُ ظَاهِرًا فِي حَقِّ الْمَوْلَى نو ځکه به دا مهر د مالک په حق کې ظاهر نه وي فَيُؤَاخَذُ بِهِ بَعْدَ الْعَتَاقِ لهذا تر آزادۍ وروسته به له خاوند څخه د هغه مطالبه کيږي لَهُمَا: أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ النِّكَاحِ فِي الْمُسْتَقْبَلِ الْإِعْفَافُ وَالتَّحْصِينُ د صاحبينو دليل دا دی: چې د نکاح مقصود په مستقبل کې پاک لمنې او د فرج ساتل دي وَذَلِكَ بِالْجَائِزِ او دا په نکاحِ جائز سره کېدای سي وَلِهَذَا لَوْ حَلَفَ لَا يَتَزَوَّجُ يَنْصَرِفُ إِلَى الْجَائِزِ همدا وجه ده که يو څوک د نکاح نه کولو قسم وکړي نو [د هغه] قسم نکاحِ جائز ته راجع کيږي [او نه فاسد ته نه راجع کيږي] بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّ بَعْضَ الْمَقَاصِدِ حَاصِلٌ په خلاف د بيع ځکه چې [په بيع کې] ځيني مقاصد حاصل دي وَهُوَ مِلْكُ التَّصَرُّفَاتِ او هغه ځيني

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۴۰۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۰]

مقاصد] د تصرفاتو مالک کېدل دی وَلَهُ: أَنَّ اللَّفْظَ مُطْلَقٌ او د امام صاحب دليل دا دی: چي [دلته] لفظ [د تزوج] مطلق دی فَيَجْرِي عَلَى إِطْلَاقِهِ نو هغه به پر خپل اطلاق جاري کيږي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه په [لفظ د] بيع کي [چي هم داسي کيږي] وَبَعْضُ الْمَقَاصِدِ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ حَاصِلٌ او ځيني مقاصد په نکاحِ فاسد کي [هم] حاصل دي كَالنَّسَبِ وَوُجُوبِ الْمَهْرِ وَالْعِدَّةِ عَلَى اعْتِبَارِ وُجُودِ الْوَطْءِ لکه نسب، مهر او د وطي کېدلو په اعتبار سره د عدت واجبېدل وَمَسْأَلَةُ الْيَمِينِ مَمْنُوعَةٌ عَلَى هٰذِهِ الطَّرِيقَةِ او پر دې طريقه د قسم مسئله ممنوع ده [يعني موږ دا نه تسليموو چي د نکاح نه کولو قسم فقط د نکاحِ جائز وطرف ته راجع کيږي].

**اللغات**: ﴿تَزَوَّجْ﴾ د تفعّل له باب څخه د أمرِ حاضر صيغه ده: نکاح کول، واده کول. ﴿إِعْفَافْ﴾ د افعال مصدر دی: پاک لمنی کول (پاک لمنی ساتل)، ﴿تَحْصِيْن﴾ د تفعيل مصدر دی: محفوظ ساتل (خوندي ساتل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که مالک خپل غلام ته د نکاح اجازت ورکړي او هغه ته ووايي چي د فلانی ميرمنی سره خپله نکاح وکړه!، او غلام د هغه ميرمنی سره نکاح وکړي خو د نکاحِ صحيح پر ځای نکاح فاسد ور سره وکړي او په ښځي دخول هم وکړي (او دا تاسي ته معلومه ده ده چي په دخول کولو سره د ښځي مهر نور مؤکّد کيږي)، نو په دې صورت کي به د امام صاحب په نيز د مهر اداء کولو لپاره غلام خرڅول کيږي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په داسي صورت کي به د مهر اداء کولو لپاره غلام نه خرڅول کيږي، بلکي د غلام تر آزادوالي پوري به د مهر انتظار کيږي او تر آزادېدلو وروسته به له غلام څخه د مهر مطالبه کيږي.

په اصل کي دا اختلاف د امام صاحب او صاحبينو پر خپلو أصولو مبني دی، ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لفظ د "تزوّج (يعني د نکاح لفظ)" نکاحِ صحيح او نکاحِ فاسد دواړو ته شامليږي. او د صاحبينو په نيز دا لفظ فقط نکاحِ صحيح ته شامليږي، نه نکاحِ فاسد ته، لهذا کله چي د صاحبينو په نيز په دغه لفظ کي د نکاحِ فاسد هيڅ احتمال نسته، نو دلته به د مالک اجازت نکاحِ فاسد ته شامل نه وي، نو ځکه به د نکاحِ فاسد په مهر کي غلام نه خرڅول کيږي، بلکي کله چي هغه آزاد سي نو بيا به ښځه د مهر مطالبه ځني کوي او خپل مهر به ځني اخلي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د نكاح مقصد دا دی چي خپل فرج له ناجائزو كارونو څخه وساتل سي او عفّت (پاک لمني) حاصله كړی سي او وطي حلال وګرځي. او دا مقصد په صحيح نكاح سره حاصليږي، نو ځكه به د مالک قول فقط نكاحِ صحيح ته شامل وي او نكاحِ فاسد ته به شامل نه وي؛ لكه څرنګه چي يو څوک قسم وكړي چي "زه نكاح نه كوم"، نو له دې څخه صحيح نكاح مراديږي، نو كه هغه فاسده نكاح وكړي، په خپل قسم كي نه حانث كيږي، نو څرنګه چي د نكاح نه كولو په قسم كي نكاحِ فاسد نه شامليږي، همداسي به په پورتنۍ مسئله كي هم هغه نه شامليږي.

**بخلاف البيع الخ:** ليكن كه مالک خپل غلام ته د بيع اجازت وركړي، نو دا اجازت بيعِ صحيح او بيعِ فاسد دواړو ته شامليږي؛ ځكه چي د بيع ځيني مقاصد په بيعِ فاسد سره هم حاصليږي. مثلاً په مبيع كي د تصرف مالک كېدل، د مبيع آزادول يا هبه كول. نو په دې وجه د بيع اجازت بيعِ فاسد ته هم شامليږي، خو په نكاحِ فاسد سره د نكاح مقصد نه حاصليږي، نو ځكه به د نكاح اجازت فقط نكاحِ صحيح ته شامليږي او نكاحِ فاسد به له دې څخه مستثنىٰ وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي د مالک له طرف څخه د "تزوّج" (نكاح) لفظ مطلق ويل سوی دی نو د "المطلق يجري علىٰ إطلاقه" د قاعدې په وجه به دا لفظ نكاحِ صحيح او نكاحِ فاسد دواړو ته شامليږي لكه څرنګه چي بيع دواړو ته شامليږي؛ ځكه چي په نكاحِ فاسد سره هم ځيني مقاصد حاصليږي، مثلاً كه په نكاحِ فاسد كي د وطي په نتيجه كي كوچنی پيدا سي نو د هغه نسب د خاوند سره ثابتيږي، همدارنګه د ښځي لپاره مهر لازميږي، او كه طلاق واقع سي نو عدت لازميږي. نو ځكه به د نكاح او تزوّج لفظ نكاحِ فاسد ته هم شامليږي او د نكاحِ فاسد د مهر په بدله كي به هم غلام خرڅول كيږي.

**ومسألة اليمين الخ:** په دې سره د صاحبينو د قياس جواب وركوي، حاصل د جواب دا دی چي مونږ دا خبره نه تسليموو چي د نكاح نه كولو قسم فقط نكاحِ صحيح ته شامليږي او فقط په نكاحِ صحيح سره به قسم كونكی حانث كيږي، بلكي په نكاحِ فاسد سره هم هغه حانثيږي، او كه بيا هم مونږ دا تسليم كړو چي دغه قسم فقط نكاحِ صحيح ته شامليږي، نو هم زمونږ پر نظريه باندي څه اثر نه پرېوځي؛ ځكه چي نكاح او قسم هر يو جلا حيثيت لري، ځكه د قسم دار ومدار پر عرف دی او نكاح داسي نه ده، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

## د مأذون، مديون غلام د نکاح حکم

وَمَنْ زَوَّجَ عَبْدًا مَأْذُونًا لَهُ مَدْيُونًا امْرَأَةً او څوک چي د خپل مأذون قرضداره غلام نکاح د يو ښځي سره وکړي جَازَ نو دا جائز دي وَالْمَرْأَةُ أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ فِي مَهْرِهَا او ښځه به د مهر په هکله د قرض غوښتونکو سره برابره شريکه وي وَمَعْنَاهُ: إِذَا كَانَ النِّكَاحُ بِمَهْرِ الْمِثْلِ او د دې مطلب دا دی: چي کله نکاح د مهرِ مثل په عوض کي وي وَوَجْهُهُ أَنَّ سَبَبَ وِلَايَةِ الْمَوْلَى مِلْكُهُ الرَّقَبَةَ او [د قرض غوښتونکو سره د ښځي د شريکېدلو] وجه دا ده چي د مالک د ولايت سبب د هغه د رقبې مالک کېدل دي [يعني د مالک د ولايت سبب ملکِ رقبه دی] عَلَى مَا نَذْكُرُهُ چي [وروسته] به موږ د دې بيان وکړو وَالنِّكَاحُ لَا يُلَاقِي حَقَّ الْغُرَمَاءِ بِالْإِبْطَالِ مَقْصُودًا او نکاح د قرض غوښتونکو د حقوقو د قصداً باطلولو په خاطر د حقوقو سره نه ده متصل سوې [مطلب دا چي دلته په نکاح سره د مالک مقصود د قرضوض غوښتونکو د حق باطلول نه دي] إِلَّا أَنَّهُ إِذَا صَحَّ النِّكَاحُ وَجَبَ الدَّيْنُ بِسَبَبٍ لَا مَرَدَّ لَهُ خو دا چي کله نکاح صحيح سي نو قرض په يو داسې سبب سره واجب سو چي هغه ردّ کېدلای نه سي فَشَابَهَ دَيْنَ الِاسْتِهْلَاكِ نو دا [قرض] د إستهلاک د قرض سره مشابه سو وَصَارَ كَالْمَرِيضِ الْمَدْيُونِ إِذَا تَزَوَّجَ امْرَأَةً او داسې سو لکه مقروض [قرضداره] مريض چي د يو ښځي سره نکاح وکړي فَبِمَهْرِ مِثْلِهَا أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ نو دا ښځه به په مهرِ مثل کي د قرض غوښتونکو سره برابره شريکه وي.

**اللغات:** ﴿مأذون﴾ کوم غلام ته چي مالک د تجارت او کاروبار کولو اجازه ورکړې وي هغه ته "مأذون" وايي. ﴿أُسْوَة﴾ برابر. ﴿غُرَمَاء﴾ جمع د "غَرِيمٌ" ده: (له مقروض څخه) قرض غوښتونکی. هغه څوک چي پر بل چا يې قرض (پور) باندي وي. ﴿دَيْنِ الْإِسْتِهْلَاك﴾ که يو سړی د يو چا مال هلاک کړي چي د دې په وجه هغه مال پر دغه سړي قرض پاته سي، نو داسې قرض ته "دَيـن الاستهلاك" وايي. ﴿لَا مَرَدَّ لَهُ﴾ داسې سبب او داسې شی چي هيڅوک يې ردولای نه سي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي (مالک) غلام قرضداره وي او هغه خپل دغه غلام ته د تجارت اجازت ورکړی وي (يعني مأذون غلام وي). او په دې دوران کي مالک د يو ښځي سره د مهرِ مثل په عوض کي د دغه غلام نکاح وکړي، نو شرعاً دا نکاح صحيح او جائز ده. او ښځه به د مهر په سلسله کي د نورو قرض غوښتونکو سره برابره شريکه وي (او د هغې د مهر په وجه به د نورو قرض

غوښتونکو حق کمیږي)، مثلاً که پر غلام د دریو خلګو زر. زر (۱۰۰۰) روپۍ باندې وي او د ښځې مهر مثل هم زر (۱۰۰۰) روپۍ وي نو پر غلام به ټوله څلور زره (۴۰۰۰) قرض وي. نو اوس که غلام (مثلاً) په دوه زره (۲۰۰۰) روپۍ خرڅ کړی سي، نو هر قرض غوښتونکي ته به د خپل ټوله ثمن ربع یعني پنځه، پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ ور کول کیږي او پاته پنځه. پنځه سوه روپۍ به د غلام پر ذمه قرض وي او تر آزادېدلو وروسته به د هغه مطالبه څنې کیږي. (دلته د مهرِ مثل قید په دې وجه ذکر سوی دی چي که چیري مالک تر مهرِ مثل په زیات مهر سره د غلام نکاح وکړي نو دا شبه کېدای سي چي مالک د نورو قرض غوښتونکو حق باطلول غواړي، لیکن که په مهرِ مثل سره د هغه نکاح وکړي نو دا شبه نه سي کېدای).

**ووجهه الخ**: دلیل د دې خبري چي د ښځې د مهر په وجه به د نورو قرض غوښتونکو حق کمیږي او ښځه به د هغو سره برابره شریکیږي، دا دی چي مالک د غلام د رقبې مالک دی نو ځکه هغه خپل د غلام نکاح کولای سي، او دلته د مالک د نکاح کولو مقصد دا نه دی چي د نورو قرض غوښتونکو حق باطل کړي، بلکي د نکاح اصل مقصد دا دی چي د غلام انساني ضروریات پوره سي، نو کله چي نکاح صحیح سوه نو ضمناً به د نورو قرض غوښتونکو په حق کي کمي راځي یعني ښځه به د هغو سره برابره شریکیږي او د قرض غوښتونکو د حق په کمښت به هیڅ پروا نه کیږي، د دې مثال دا دی لکه د غه قرضداره غلام چي د یو چا مال هلاک کړي، نو هغه به هم د خپل مال په طلب کي د نورو قرض غوښتونکو سره برابر شریک وي او د قرض غوښتونکو په حق کي به کمي راځي او په کمښت به هیڅ پروا نه کیږي، نو همداسي به ښځه هم د خپل مهر په حق کي د نورو قرض غوښتونکو سره برابره شریکه وي او د هغو د حق په کمېدلو کي به هیڅ حرج نه وي.

او بل مثال دا دی چي که یو قرضدار (مدیون) سړی په مرضُ الموت مبتلا وي او هغه د یو ښځې سره پر مهرِ مثل نکاح وکړي. نو دا ښځه به په خپل مهر مثل کي د هغه د نورو قرض غوښتونکو سره برابره شریکه وي، نو همداسي به د مأذون غلام ښځه هم د نورو قرض غوښتونکو سره برابره شریکه وي.

## د خپلي مینځي سره د نکاح کونکي مالک د خدمت حق

وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ او څوک چي د خپلي مینځي نکاح [د یو چا سره] وکړي فَلَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُبَوِّئَهَا بَيْتَ الزَّوْجِ نو پر هغه دا لازم نه دي چي دغه مینځه د خاوند په کور کي اُوسېدلو [او شپه تېرولو] ته پرېږدي لٰكِنَّهَا تَخْدُمُ الْمَوْلٰى بلکي مینځه به د مالک خدمت کوي وَيُقَالُ لِلزَّوْجِ: مَتٰى ظَفِرْتَ بِهَا وَطِئْتَهَا او خاوند ته به ویل کیږي: چي کله (هم) ته پر هغې کامیاب سې [او د وطي موقع پیدا کړې] نو وطي ور سره کوه! لِأَنَّ حَقَّ الْمَوْلٰى فِي الْاِسْتِخْدَامِ بَاقٍ ځکه چي په استخدام [خدمت اخیستلو] کي د

مالک حق پاتـه دی وَالتَّبْوِئَةُ إِبْطَالٌ لَهُ او ادخاوند په کور کي اُوسول د مالک دغه حق باطلول دي ايعني د خاوند په کور کي د مينځي په اوسېدلو سره د مالک د خدمت حق باطليږي ا فَإِنْ بَوَّأَهَا مَعَهُ بَيْتًا او که مالک مينځه د خاوند سره په کور کي اوسېدلو [او شپه تېرولو] ته پرېږدي فَلَهَا النَّفَقَةُ وَالسُّكْنٰى نو اپر خاوند] به د ښځي لپاره به نفقه او سکنیٰ وي وَإِلَّا فَلَا کني نه به وي لِأَنَّ النَّفَقَةَ تُقَابِلُ الِاحْتِبَاسَ ځکه چي نفقه د احتباس [د ښځي دراګرځولو] په مقابله کي ده [يعني ښځي ته نفقه ځکه ورکول کيږي چي خاوند هغه د خپلو خدماتو لپاره راګرځولې وي او په کور کي يې محبوسه ساتلې وي، لهذا په مالک او خاوند کي چي د کوم يوه له طرفه احتباس ثابت سي، نفقه به پر هغه وي] وَلَوْ بَوَّأَهَا بَيْتًا او که مالک مينځه [د خاوند سره] په کور کي اوسېدلو ته پرېږدي ثُمَّ بَدَا لَهُ أَنْ يَسْتَخْدِمَهَا بيا مالک ته ښکاره سي [يعني مالک دې ته مجبوره سي] چي له مينځي څخه [بيرته] خدمت واخلي لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق سته لِأَنَّ الْحَقَّ بَاقٍ لِبَقَاءِ الْمِلْكِ ځکه چي د ملکيت د باقي پاتېدلو په وجه [د خدمت اخيستلو] حق پاته دی فَلَا يَسْقُطُ بِالتَّبْوِئَةِ نو [خاوند په کور کي د مينځي] په اوسولو سره به دا حق نه ساقطيږي كَمَا لَا يَسْقُطُ بِالنِّكَاحِ لکه څرنګه چي په نکاح سره دا حق نه ساقطيږي قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ : ذَكَرَ تَزْوِيجَ الْمَوْلٰى عَبْدَهُ وَأَمَتَهُ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام محمد رَحِمَهُ الله [په متن کي فقط] دا خبره ذکر کړه چي مالک د خپل غلام او مينځي نکاح وکړي وَلَمْ يَذْكُرْ رِضَاهُمَا [ليکن] د هغو رضا يې ذکر نه کړه وَهٰذَا يَرْجِعُ إِلٰى مَذْهَبِنَا او دا [نه ذکر کول د رضا] زموږ د مذهب و طرف ته راجع دي [يعني زموږ و دې مسلک ته اشاره کوي] أَنَّ لِلْمَوْلٰى إِجْبَارَهُمَا عَلَى النِّكَاحِ چي پر نکاح باندي د غلام او مينځي د مجبوره کولو حق مالک لره سته وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ لَا إِجْبَارَ فِي الْعَبْدِ [ليکن] د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په غلام کي د مجبوره کولو حق [مالک لره] نسته وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا يو روايت له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه [هم] دی لِأَنَّ النِّكَاحَ مِنْ خَصَائِصِ الْآدَمِيَّةِ ځکه چي نکاح د انسانيت [انسان کېدلو] له ځانګړنو څخه ده [يعني نکاح د هر انسان خصوصيت او ضرورت دی، هغه که آزاد وي او که غلام وي] وَالْعَبْدُ دَاخِلٌ تَحْتَ مِلْكِ الْمَوْلٰى مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ مَالٌ او غلام د مال کېدلو په حيثيت سره د مالک په ملکيت

کي داخل دی فَلَا يَمْلِكُ إِنْكَاحَهُ نو ځکه به مالک [جبراً] د هغه د نکاح کولو ملکيت [اختيار] لري بِخِلَافِ الْأَمَةِ لِأَنَّهُ مَالِكٌ مَنَافِعَ بُضْعِهَا په خلاف د مينځې ځکه چې مالک د هغې د بضع د منافعو مالک دی فَيَمْلِكُ تَمْلِيكَهَا نو ځکه به د هغه د تمليک [هم] مالک وي ايمني کله چې هغه د بضع مالک دی نو د ي ملکيت به هم لري چې بل څوک د بضع مالک جوړ کړي (يعني په نکاح يې ورکړي)] وَلَنَا: أَنَّ الْإِنْكَاحَ إِصْلَاحٌ مِلْكِهِ او زموږ دليل دا دی چې نکاح ورکول د خپل ملکيت اصلاح کول دي لِأَنَّ فِيهِ تَحْصِينَهُ عَنِ الزِّنَا الَّذِي هُوَ سَبَبُ الْهَلَاكِ أَوِ النُّقْصَانِ ځکه په دې کي [غلام] له زنا څخه ساتل [او پاکول] دي کوم چې د هلاکت يا د نقصان سبب ده فَيَمْلِكُهُ اعْتِبَارًا بِالْأَمَةِ نو ځکه به مالک [د غلام] د نکاح کولو ملکيت [هم] لري، پر مينځې په قياس کولو سره بِخِلَافِ الْمُكَاتَبِ وَالْمُكَاتَبَةِ په خلاف د مکاتب او مکاتبې لِأَنَّهُمَا الْتَحَقَا بِالْأَحْرَارِ تَصَرُّفًا ځکه چې د تصرف په اعتبار سره دوی دواړه د آزاد سره لاحق دي فَيُشْتَرَطُ رِضَاهُمَا نو ځکه به د دوی رضا شرط وي.

**اللغات:** ﴿تَخْدُمُ﴾ له ضرب او نصر دواړو څخه د مضارع صيغه ده: خدمت او چوپړ کول. ﴿تَبْوِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: يو څوک په کور کي اُوسول، شپه ورکول (د شپې لپاره ځای ورکول)، دلته يې معنیٰ دا ده چې مالک مينځه خاوند ته حواله کړي او مينځه د مالک خدمت پرېږدي. ﴿إِسْتِخْدَام﴾ د استفعال مصدر دی: خدمت اخيستل. ﴿إِحْتِبَاس﴾ د افتعال مصدر دی: (په کور کي) بندي ساتل، راګرځول، منع کول. ﴿إِجْبَار﴾ د افعال مصدر دی: مجبورول (مجبوره کول). ﴿خَصَائِص﴾ جمع د خَاصَّة: خصوصيت، ځانګړتيا (ځانګړنه). ﴿تَحْصِين﴾ د تفعيل مصدر دی: محفوظ ساتل، حفاظت کول. ﴿إِلْتَحَقَا﴾ د افتعال ماضي ده: لاحقېدل (ور سره يو ځای کېدل)، شاملېدل. ﴿أَحْرَار﴾ جمع د حُرٌّ ده: آزاد سړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک ديو چا سره د خپلې مينځې نکاح وکړي، نو پر مالک دا واجب او لازم نه دي چې مينځه د خاوند په کور کي پرېږدي او خپل د خدمت حق له هغې څخه ساقط کړي (يعني پر مالک تبويه لازم نه ده)، بلکي مينځه به د مالک خدمت کوي او خاوند ته به ويل کيږي چې ته د فرصت او موقع په وخت کي د مينځې سره وطي کوه!؛ دليل دا دی چې مينځه اوس هم د مالک په ملکيت کي ده او د مالک د خدمت حق تر اوسه پاته دی، او که پر مالک تبويه لازم کړی

سي نو په دې سره د مالک د خدمت حق باطليږي، لهذا د تبويه حکم به نه کيږي او مالک به په يو داسي شي سره نه مکلف کيږي چي په هغه کي د ده تاوان دی.

**قوله بوأها الخ:** په دې سره دا راښيي چي تر څو مالک د خاوند او مينځي لپاره د تبويه انتظام نه وکړي بلکي مينځه د خپل خدمت لپاره راګرځوي او د خاوند له کور څخه يې منع کوي، نو تر هغه وخته به د مينځي د نفقې او سکنیٰ انتظام هم پر مالک وي، لېکن کله چي مالک د تبويه حکم وکړي يعني مينځه د خاوند سره په کور کي پرېږدي او خپل د خدمت حق باطل کړي، نو په دې صورت کي به د نفقې او سکنیٰ انتظام د خاوند پر غاړه وي، ځکه چي نفقه د احتباس (راګرځولو) او محبوس کولو جزاء ده، لهذا د کوم کس له طرفه چي احتباس ثابت سي نفقه به هم پر هغه واجب وي، هغه که خاوند وي او که مالک وي.

**ولو بوأها الخ:** فرمايي که د تبويه تر حکم يو څو ورځي وروسته مالک خدمت او "استعانة بألغير" ته محتاج سي، نو هغه ته دا حق سته چي د مينځي د تبويه حکم ختم کړي او بيرته يې د خپل خدمت لپاره راګرځول شروع کړي، او دا اختيار ځکه ورلره سته چي په مينځي کي تر اوسه هم د مالک ملکيت پاته دی، او خدمت اخيستل د همدغه ملکيت نتيجه ده، نو تر څو چي ملکيت پاته وي تر هغه وخته به د مالک د خدمت حق هم پاته وي، او په تبويه سره به د هغه دا حق نه ساقطيږي، لکه څرنګه چي په نکاح کولو سره هم د هغه دا حق نه ساقطيږي.

**قال رضی ﷺ:** په دې عبارت سره صاحب د کتاب د ولايت إجبار په باره کي د احنافو د مسلک په تائيد کي يوې نکتې ته اشاره کړې ده فرمايي چي امام محمد رَحِمَهُ الله په متن کي (کوم چي له جامع څخه صغير څخه را اخيستل سوی دی) فقط دا خبره ذکر کړې ده چي مالک د خپلې مينځي او غلام نکاح کولای سي لېکن د غلام او مينځي رضامندي يې نه ده ذکر کړې، نو دا و دې خبري ته اشاره ده چي مالک لره پر خپل غلام او مينځي دواړو ولايت إجبار حاصل دی، يعني مالک غلام او مينځه پر نکاح مجبوره کولای سي او د هغو له رضا څخه بغير هم د مالک نکاح نافذيږي، لکه څرنګه چي دا زموږ مذهب دی.

د دې په خلاف د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله نظريه دا ده چي پر مينځه خو مالک ته ولايتِ اجبار حاصل دی، لېکن پر غلام مالک ته ولايتِ اجبار حاصل نه دی، او د غلام د نکاح د نافذېدلو او صحيح کېدلو لپاره د غلام رضا لازمي او ضروري ده. حضرت امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم له

امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت همداسي نقل کړی دی، خو دا شاذ او نادر روايت دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مذهب سره هيڅ مناسبت نه لري.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر غلام ځکه مالک ته ولايت اجبار حاصل نه دی او پر مينځه حاصل دی چي نکاح د انسان له خصائصو او لوازماتو څخه ده، او غلام مال دی (لکه مخکي چي موږ ووېل)، نو هغه د مال کېدلو په حيثيت سره د مالک مملوک دی. نه د انسان کېدلو په حيثيت سره، نو په دې وجه مالک هغه پر نکاح نه سي مجبوره کولای، او مينځه ځکه مجبوره کولای سي چي مالک ته د مينځ پر بضع حق حاصل دی، لهذا کله چي هغه په خپله بضع استعمال نه کړي نو بل څوک د بضع مالک جوړولای سي؛ ځکه چي دا د هغه خپل حق دی (او هر چا ته دا اختيار سته چي په خپل حق کي تصرّف وکړي)، نو ځکه به مالک ته پر مينځ ولايت اجبار حاصل وي او د مينځي له رضا څخه بغير به هم د مالک نکاح نافذيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي په نکاح (واده) ورکولو سره د مال (يعني د غلام) اصلاح کيږي ځکه چي هغه له زنا څخه ساتل کيږي (او که غلام ته واده نه ورو کړي نو په زنا به مبتلا سي او د زنا حد به پر جاري سي چي د هغه په وجه به غلام عيبداره سي او په قيمت کي به يې کمي راسي)، او مالک ته د خپل مال او خپل ملکيت د اصلاح او حفاظت پوره حق سته، نو ځکه به پر نکاح د مجبوره کولو حق هم ور ته حاصل وي.

**بخلاف المكاتب الخ:** دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چي کله د خپل مال او ملکيت د اصلاح او حفاظت په خاطر مالک ته په غلام او مينځه کي ولايت اجبار حاصل دی، نو په مکاتب او مکاتبه کي هم هغه ته د حفاظت او اصلاح په خاطر ولايت اجبار حاصلېدل پکار دي، خال دا چي په مکاتب او مکاتبه کي مالک ته هيڅ ولايت اجبار حاصل نه دی.

نو صاحب د کتاب په جواب کي فرمايي چي مکاتب او مکاتبې ته د مالک له طرفه د تصرف اجازت ورکول سوی دی (يعني د مالک د اجازت په وجه دوی د آزادو خلکو په څېر بيع او شراء کولای سي)، نو د تصرف په اعتبار سره دوی له آزادو خلکو څخه شمارل کيږي. لهذا که موږ پر دوی د ولايت اجبار حق مالک ته ورکړو، نو د دوی دغه تصرف به فوت او باطل سي او دا صحيح نه دي، نو په دې وجه د دوی رضا شرط ده او د دوی له رضا څخه بغير به د مالک نکاح نه نافذيږي.

## تر دخول مخکي د مينځې د قتل کونکي مالک لپاره د مهر حکم

قَالَ: وَمَنْ زَوَّجَ أَمَتَهُ فرمايي: او څوک چې د خپلې مينځې نکاح [ديو چا سره] وکړي ثُمَّ قَتَلَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا زَوْجُهَا بيا يې قتل کړي، مخکې تر دې چې خاوند په هغې دخول وکړي فَلَا مَهْرَ لَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغې لپاره مهر نشته وَقَالَا* : عَلَيْهِ الْمَهْرُ لِمَوْلَاهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر خاوند به د مالک لپاره مهر وي اعْتِبَارًا بِمَوْتِهَا حَتْفَ أَنْفِهَا د مينځې پر طبعي مرگ باندې په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَقْتُولَ مَيِّتٌ بِأَجَلِهِ او دا قياس په دې وجه دی چې مقتول پر خپل أجل [تاکلې نېټه] مړ سوی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَتَلَهَا أَجْنَبِيٌّ نو داسې سو لکه يو پردي کس چې هغه قتل کړې وي وَلَهُ: أَنَّهُ مَنَعَ الْمُبْدَلَ قَبْلَ التَّسْلِيمِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې مالک مبدل [يعني بضع] خاوند ته تر ورسپارلو مخکې منع کړه فَيُجَازَى بِمَنْعِ الْبَدَلِ نو هغه ته به د بدل [يعني مهر] په منع کولو سره سزا ورکول کيږي كَمَا إِذَا ارْتَدَّتِ الْحُرَّةُ لکه کله چې آزاده ښځه مرتده سي [نو هغې ته د مهر په منع کولو سره سزا ورکول کيږي، يعني له مهر څخه محروميږي] وَالْقَتْلُ فِي أَحْكَامِ الدُّنْيَا جُعِلَ إِتْلَافًا او قتل په دنيوي احکامو کې إتلاف [قصداً ضايع کول] شمارل سوی دی حَتَّى وَجَبَ الْقِصَاصُ وَالدِّيَةُ همدا وجه ده چې [په قتل سره] قصاص او ديت واجبيږي فَكَذَا فِي حَقِّ الْمَهْرِ نو همداسې به د مهر په حق کې [هم هغه إتلاف شمارل کيږي] وَإِنْ قَتَلَتْ حُرَّةٌ نَفْسَهَا قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ بِهَا زَوْجُهَا او که د خاوند تر دخول مخکې يوه آزاده ښځه خپل ځان قتل کړي [يعني خودکشي وکړي] فَلَهَا الْمَهْرُ نو د هغې لپاره به مهر وي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالرِّدَّةِ وَبِقَتْلِ الْمَوْلَى أَمَتَهُ هغه دا صورت پر مرتد کېدلو او د مالک د خپلې مينځې پر قتل کولو قياسوي وَالْجَامِعُ مَا بَيَّنَّاهُ او جامع هغه علت دی کوم چې موږ بيان کړی وَلَنَا: أَنَّ جِنَايَةَ الْمَرْءِ عَلَى نَفْسِهِ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا زموږ دليل دا دی: چې پر خپل ځان باندې د انسان جنايت کول د دنيوي احکامو په حق کې معتبر نه دي فَشَابَهَ مَوْتَهَا حَتْفَ أَنْفِهَا

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۴۱۱). [القول الراجح ج:۱، ص: ۲۹۱]

نو دا د ښځې د طبعي مرګ سره مشابه سو بِخِلَافِ قَتْلِ الْمَوْلٰى أَمَتَهٗ په خلاف د دې چې مالک خپله مینځه قتل کړي لِأَنَّهٗ مُعْتَبَرٌ فِيْ حَقِّ أَحْكَامِ الدُّنْيَا ځکه چې هغه د دنیوي احکامو په حق کې معتبر دي حَتّٰى تَجِبَ الْكَفَّارَةُ عَلَيْهِ همدا وجه ده چې [په دې صورت کې] پر مالک کفاره واجبيږي.

**اللغات:** ﴿حَتْفَ أَنْفِهِ﴾ طبعي مرګ (يعني په قتل سره نه دي مړ سوی، بلکې په طبعي مرګ سره يې آخري ساه تر پزه وتلې ده)، ﴿أَجَل﴾ تاکلې موده، قضاء، ﴿يُجَازٰى﴾ د مفاعلې مضارع مجهوله ده: جزاء ورکول، بدله ورکول (سزا ورکول).

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)...اوله مسئله دا ده که يو مالک د خپلې مینځې نکاح د يو سړي سره وکړي او د سړي تر دخول او جماع مخکې هغه خپله مینځه قتل کړي، نو آيا پر دغه سړي (خاوند) د هغې مهر واجب دی، که نه؟ په دې باره کې اختلاف دی.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې پر خاوند د هغې مهر واجب دی، لېکن د امام ابو حنيفه، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نيز پر هغه يوه ذره مهر هم نه واجبيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې مقتوله مینځه که څه هم د مالک په تعدیٰ او ظلم سره مړه سوې ده، خو بیا هم هغه پر خپل تاکلي وخت مړه سوې ده، لهذا څرنګه چې په طبعي مرګ سره د مړ کېدلو په صورت کې پر خاوند مهر واجبيږي او لکه څرنګه چې له مالک څخه بغير د بل پردي سړي په قتل کولو سره خاوند له مهر څخه نه بري کيږي، همداسي به په دغه مسئله کې هم پر هغه مهر واجب وي او هغه به له مهر څخه نه بري کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې کله مالک د هغې نکاح وکړه نو مالک د هغې ولي هم سو. او د ولي په باره کې حکم دا دی چې پر هغه د مبدل (بضع) تسليم (ور سپارل) واجب دي، لېکن که ولي مبدل (خاوند ته) نه وسپاري، نو د هغه له بدل (مهر) څخه به هم لاس پر ېولي، لهذا کله چې مالک خپله مینځه ووژله او مبدل (يعني بضع) يې نه ور وسپارله، نو ځکه به هغه د بدل يعني له مهر څخه هم محروميږي، د دې مثال دا دی لکه يوه آزاده مسلمانه ښځه چې تر دخول او جماع مخکې مرتده سي، نو د مبدل د منع په وجه هغه له مهر څخه محروميږي، همداسي به دلته هم مالک له مهر څخه محروميږي.

**والقتل الخ:** په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي، فرمايي چې موږ هم دا خبره منو چې په قتل سره مقتول پر خپل تاکلي وخت مړ سوی دی، خو د دنيوي احکامو په اعتبار سره دغه فعل يعني قتل إتلاف شمارل کيږي (يعني دا قصداً د مقتول هلاکول او ضايع کول دي)، همدا وجه ده چې د قتلِ عمد په صورت کې قصاص لازميږي او د قتلِ خطا په صورت کې ديت لازميږي. لهذا کله چې

په دنيايي اعتبار سره قتل إتلاف او ضايع کول دي (او مالک په قتل سره بضع ضايع کړه)، نو قاتل (مالک) ته به مهر هم نه ورکول کيږي.

**وإن قتلت الحرة**: (۲)... دريمه مسئله دا ده که يو آزاده ښځه د يو سړي سره خپله نکاح وکړي، بيا ښځه تر دخول او جماع مخکې خودکشي (ځان وژنه) وکړي (نو ګواکې هغې مبدل يعني بضع خاوند ته نه وسپارله بلکې له ور سپارلو څخه منع سوه)، نو آيا پر خاوند د هغې مهر واجبيږي، که نه؟

په دې باره کې هم اختلاف دی، امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې مهر نه واجبيږي، او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې صورت کې پر خاوند د ښځې مهر واجبيږي او د ښځې له طرفه به د هغې ولي پر مهر قبضه کوي.

**دليل**: د امام زفر او امام شافعي دليل قياس دی، دوی فرمايي چې څرنګه د آزادې ښځې د مرتدوالي په صورت کې د هغې مهر ساقطيږي، او څرنګه چې تر دخول مخکې د خپلې مينځې په قتل کولو سره مالک له مهر څخه محروميږي، همداسې به په دې مسئله هم کې ښځه له مهر څخه محروميږي؛ ځکه چې هغې د خود کشۍ په وجه د بضع له تسليم څخه منع سوه.

د "وَالْجَامِعُ مَا بَيَّنَاهُ" څخه مراد همدا دي چې د بضع له تسليم څخه منع کېدل چې څرنګه د مرتدوالي په صورت کې او په داسې نورو صورتونو کې له مهر څخه د محروموالي سبب جوړيږي، همداسې به په دې مسئله کې هم هغه له مهر څخه د محروموالي سبب وي او ښځه به له مهر څخه محروميږي.

**زموږ دليل**: دا دی چې څوک پر خپل پر ځان جنايت وکړي، نو د دنيوي احکامو په اعتبار سره پر هغه هيڅ حکم او هيڅ سزا نه جاري کيږي، همدا وجه ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خود کشي کونکي ته غسل هم ورکول کيږي او د جنازې لمونځ هم پر کيږي، لهذا خود کشي کول د طبعي مرګ سره مشابه سوه، او په طبعي مرګ سره د ښځې د مړه کېدلو په صورت کې د ښځې مهر نه ساقطيږي، نو د خود کشي په صورت کې به هم د هغې مهر نه ساقطيږي.

**بخلاف القتل**: په دې سره د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې ستاسو قياس صحيح نه دی؛ ځکه که مالک خپله مينځه قتل کړي نو پر هغه دنيوي احکام جاري کيږي، همدا وجه ده چې په دې صورت کې پر هغه کفاره واجبيږي (او قصاص ځکه نه پر واجبيږي چې مينځه د مالک مملوکه ده (يعني د خپل مالک په ملکيت کې ده)، اوس که موږ پر هغه قصاص واجب

کړونو "إيجاب الشئ على الشئ" په لازم سي کوم چې صحيح نه دي). حال دا چې پر خود کشي کونکي انسان هيڅ شی نه واجبيږي، لهذا د مالک پر قتل قياس کول صحيح نه دي.

همدارنګه پر مرتدي ښځې قياس کول هم صحيح نه دي؛ ځکه چې د مرتدوالي په صورت کې هم پر ښځې دنياوي احکام جاري کيږي او هغه د حبس، تعزير او داسې نورو سزاګانو سره مخامخ کيږي، نو کله چې د مقيس او مقيس عليه په مينځ کې د ځمکې او آسمان فرق دی. نو پر هغه به قياس کول څرنګه صحيح وي!؟.

## له مينځې ښځه د عزل کولو په صورت کې به خاوند له چا څخه اجازت اخلي؟ (اختلاف)

وَإِذَا تَزَوَّجَ أَمَةً او کله چې ايو څوک [ د يو مينځې سره نکاح وکړي فَالْإِذْنُ فِي الْعَزْلِ إِلَى الْمَوْلَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د عزل اجازت و مالک ته وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ [*]: أَنَّ الْإِذْنَ فِي الْعَزْلِ إِلَيْهَا او له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دی: چې د عزل اجازت به په خپله مينځې ته وي لِأَنَّ الْوَطْءَ حَقُّهَا ځکه چې وطي د هغې [خپل] حق دی حَتَّى تَثْبُتَ لَهَا وِلَايَةُ الْمُطَالَبَةِ همدا وجه ده چې هغې لره د وطي د مطالبې ولايت ثابت دی وَفِي الْعَزْلِ تَنْقِيصُ حَقِّهَا او په عزل کې د هغې [د وطي] حق په نقصان کې اچول دي فَيُشْتَرَطُ رِضَاهَا كَمَا فِي الْحُرَّةِ نو ځکه به د آزادې ښځې په څير د هغې رضا [هم] شرط وي بِخِلَافِ الْأَمَةِ الْمَمْلُوكَةِ په خلاف د مملوکه مينځې لِأَنَّهُ لَا مُطَالَبَةَ لَهَا ځکه چې هغې لره [د وطي] د مطالبې حق نشته فَلَا يُعْتَبَرُ رِضَاهَا نو ځکه به د هغې د رضا اعتبار نه کيږي وَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ: أَنَّ الْعَزْلَ يُخِلُّ بِمَقْصُودِ الْوَلَدِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چې عزل د بچې په مقصود کې خلل اچوي وَهُوَ حَقُّ الْمَوْلَى او هغه د مالک حق دی فَيُعْتَبَرُ رِضَاهُ نو ځکه به د هغه د رضا اعتبار کيږي وَبِهَذَا فَارَقَتِ الْحُرَّةَ او په همدغه علت سره انکوحه مينځه له آزادې ښځې څخه جلا سوه.

**اللغات:** ﴿إِذْن﴾ اجازت (اجازه)، ﴿عَزْل﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب خپله معنی ده: جلا کول، منع کول، عزل کول "يعني له فرج څخه بهر انزال کول"، ﴿يُخِلُّ﴾ د افعال مضارع ده: خلل اچول (نقصان رسول).

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله: الإذن في العزل لسيد الأمة، لأنه يخل بمقصود المولى وهو الولد، فيعتبر رضاه، وهذا قول أبي حنيفة وصاحبيه في ظاهر الرواية (البحر الرائق ج:۳، ص:۳۴۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۳]

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي مختصراً د عزل په شرعي معنیٰ او حکم ځان پوه کړئ! د عزل شرعي معنیٰ ده: "اَلْعَزْلُ أَنْ يَطَأَهَا وَيَعْزِلَ شَهْوَتَهُ عَنْهَا كَيْلَا يَتَوَلَّدَ الْوَلَدُ" يعني عزل دې ته وايي چې خاوند د انزال په وخت کي خپل ذکر (تناسلي اندام) د ښځي له فرج څخه راوباسي او مني دباندي انزال سي د دې لپاره چي ښځه حامله نه سي.

د عزل حکم دا دی چي زياتره صحابه، او زياتره فقهاء او اعام علماء هغه جائز ګڼي، لېکن د صحابه وو يو جماعت هغه ناخوښه او مکروه ګڼي؛ د هغو دليل د جدامه بنت وهب روايت دی کوم چي حضرت عائشې ﷺ نقل کړی دی، په هغه کي ذکر سوي دي چي يو جماعت له نبي کريم ﷺ څخه د عزل په باره کي پوښتنه وکړه، نو نبي ﷺ وفرمايل: "ذَاكَ الْوَأْدُ الْخَفِيّ"، يعني عزل کول داسي دي لکه (کوچنی) ژوندی په قبر دننه کول او ښخول، دا حديث په مسلم، ابو داؤد، نسائي او داسي نورو کي ذکر سوی دی. او د هغو بل دليل د حضرت عمر او د حضرت عثمان رضی الله عنهما دا أثر دی چي: "كَانَا يَنْهَيَانِ عَنِ الْعَزْلِ"، (يعني دوی به خلک له عزل څخه منع کول).

لېکن صاحب د فتح القدير "علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله" ليکلي دي چي صحيح قول دا دی چي عزل جائز دی، لکه په صحيحينو کي چي د حضرت جابر رضی الله عنه دا حديث ذکر سوی دی: "كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ" (يعني د قرآن د نزول په زمانه کي به موږ هم عزل کوی)، همدارنګه له ابن مسعود رضی الله عنه څخه چي کله د عزل په هکله پوښتنه وسوه نو هغه وفرمايل: "لَا بَأْسَ بِهِ" (چي څه پرواه نه لري)، نو معلومه سوه چي عزل جائز او روا دی، همدا د زياتره محققينو او علماؤ رايه ده. (فتح القدير ج: ۳، ص: ۳۷)

**صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی د يو مينځي سره نکاح وکړي، نو د عزل اجازت به هغه له چا څخه اخلي؟ په دې باره کي اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي خاوند به د عزل کولو اجازت له مالک څخه اخلي او د هغه رضا به ترلاسه کوي (همدا ظاهر روايت دی)، لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي خاوند به په خپله له هغه مينځي څخه اجازت اخلي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چي وطي د منکوحه مينځي حق دي، همدا وجه ده چي د مينځي لپاره د وطي د مطالبې ولايت سته (چي له کاوند څخه د وطي مطالبه وکړي)، او د عزل کولو په وجه د هغې دغه حق ختميږي، لهذا څرنګه چي د آزادي ښځي له رضا او اجازت څخه بغير عزل کول صحيح نه دي، همداسي به د منکوحه مينځي له رضا او اجازت څخه بغير عزل کول صحيح نه وي، او په دې باره کي به د مالک (مولیٰ) د اجازت او عدمِ اجازت معتبر نه وي.

ها! كه مالک په خپله د مينځې سره وطي كوي، نو بيا به د عزل اختيار مالک لره وي، مالک به له مينځې څخه د عزل كولو اجازت نه اخلي؛ ځكه چې مينځه د مالک مملوكه ده، نو دلته وطي د مينځې حق نه دى بلكې د مالک حق دى، او انسان په خپل حق كې هر ډول تصرف كولاى سي.

**د امام صاحب دليل:** د ظاهر روايت دليل (كوم چې د امام صاحب مسلک دى) دا دى چې د نكاح مقصود د وَلَد (بچي) طلب او حصول دى، او د مينځې وَلَد(بچى) د مالک حق دى، او په عزل سره په دې حق كې نقصان راحي، نو ځكه به د عزل كولو لپاره فقط د مالک اجازت ضروري وي، نه د منكوحې مينځې اجازت.

**وبهذا الخ:** فرمايي چې په دغه دليل سره د آزادې منكوحه ښځې او منكوحه مينځې په مينځ كې فرق ثابت سو، يعني څرنگه چې د مينځې وَلَد د مالک حق دى، نو ځكه به هلته د مالک اجازت ضروري وي، او د آزادې ښځې ولد په خپله د هغې حق دى، نو ځكه به د عزل اجازت هم له هغې څخه اخيستل كيږي او خاوند ته به د عزل هيڅ اختيار نه وي. نو كله چې په مينځه او آزادې ښځې كې دومره فرق دى، نو پر آزادې ښځې به د مينځې قياسول څرنگه صحيح وي! (دا گواكې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب دى).

## د مينځې د خيارِ عتق بيان

وَإِنْ تَزَوَّجَتْ بِإِذْنِ مَوْلَاهَا او كه يو مينځه د خپل مالک په اجازت سره [په خپله] نكاح وكړي ثُمَّ أُعْتِقَتْ او بيا هغه آزاده كړى سي فَلَهَا الْخِيَارُ نو هغې لره به خيار حاصل وي ايعني هغې ته به خيارِ عتق وركول كيږي] حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا هغه كه د مينځې خاوند آزاد وي او كه غلام وي لِقَوْلِهِ عليه السلام لِبَرِيْرَةَ حِيْنَ أُعْتِقَتْ: "مَلَكْتِ بُضْعَكِ فَاخْتَارِيْ" ځكه كله چې حضرت بريره رضي الله عنها آزاده كړى سوه نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: چې "ته د خپلې بضع مالكه سوې نو [اوس] ته خپل ځان اختيار ولاى سې [يعني اوس تا ته اختيار دى] فَالتَّعْلِيْلُ بِمِلْكِ الْبُضْعِ صَدَرَ مُطْلَقًا نو [په دې حديث كې] د بضع د مالک كېدلو علت مطلقاً صادر سوى دى فَيَنْتَظِمُ الْفَصْلَيْنِ لهذا دا به دواړو قسمونو ته شامل وي وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيْمَا إِذَا كَانَ زَوْجُهَا حُرًّا او امام شافعي رَحِمَهُ الله د خاوند د آزاد والي په صورت كې زموږ مخالف دى وَهُوَ مَحْجُوْجٌ بِهِ ليكن په دې حديث سره پر هغه حجت قائم دى وَلِأَنَّهُ يَزْدَادُ الْمِلْكُ عَلَيْهَا عِنْدَ الْعِتْقِ او په دې وجه [هم] چې د عتق [آزادېدلو] په صورت كې پر مينځې د

خاوند ملکیت زیاتیږي فَيَمْلِكُ الزَّوْجُ بَعْدَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ او هغه [خاوند] تر عتق وروسته د دريو طلاقو مالک ګرځي فَتَمْلِكُ رَفْعَ أَصْلِ الْعَقْدِ نو ځکه به مينځه د اصل عقد د ختمولو مالکه وي دَفْعًا لِلزِّيَادَةِ [اله خپل ځان څخه] د دې زياتوب د دفع کولو لپاره وَكَذٰلِكَ الْمُكَاتَبَةُ او همداسې مکاتبه ده يَعْنِي إِذَا تَزَوَّجَتْ بِإِذْنِ مَوْلَاهَا ثُمَّ أُعْتِقَتْ يعني کله چې هغه د مالک په اجازت سره نکاح وکړي او بيا آزاده کړی سي [نو هغې ته به هم خيارِ عتق ور کول کيږي] وَقَالَ زُفَرُ: لَا خِيَارَ لَهَا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د مکاتبې لپاره خيار نسته لِأَنَّ الْعَقْدَ نَفَذَ عَلَيْهَا بِرِضَاهَا ځکه چې عقد د هغې په رضا سره پر هغې نافذ سوی دی وَكَانَ الْمَهْرُ لَهَا او مهر به [هم] د مکاتبې لپاره وي فَلَا مَعْنٰى لِإِثْبَاتِ الْخِيَارِ لهٰذا د هغې لپاره د خيار ثابتولو هيڅ وجه [او صورت] نسته بِخِلَافِ الْأَمَةِ لِأَنَّهُ لَا يُعْتَبَرُ رِضَاهَا په خلاف د مينځې، ځکه چې د هغې د رضا هيڅ اعتبار نسته وَلَنَا: أَنَّ الْعِلَّةَ ازْدِيَادُ الْمِلْكِ او زموږ دليل دا دی: چې [اصل] علت د ملک زياتوب دی وَقَدْ وَجَدْنَاهَا فِي الْمُكَاتَبَةِ او په مکاتبه کې [هم] موږ دا علت پيدا کړی لِأَنَّ عِدَّتَهَا قُرْءَانِ ځکه چې د مکاتبې عدت [هم] دوه حيضونه دي وَطَلَاقَهَا ثِنْتَانِ او د هغې طلاقونه [هم] دوه دي.

**اللغات:** ﴿خِيَار﴾ د نکاح ختمولو يا باقي ساتلو اختيار. ﴿بُضْع﴾ د ښځې شرمګاه (فرج). ﴿مَحْجُوْج بِهٖ﴾ د نصر له باب څخه د اسمِ مفعول صيغه ده. د دې باب معنی ده: په دليل کې غالبېدل. نو د مَحْجُوْج معنی ده: په دليل کې مغلوب. د "هُوَ" ضمير امام شافعي ته راجع دی او د "بِهٖ" ضمير حديث ته راجع دی. مطلب يې دا دی چې دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت. ﴿قُرْءَان﴾ تثنيه د قُرْءٌ ده: حيض او طهر دواړو ته ويل کيږي.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... د اولې مسئلې حاصل دا دی که يو مينځې د خپل مالک په اجازت سره نکاح وکړه، بيا مالک هغه مينځه آزاده کړه، نو آيا دغه مينځې ته خيارِ عتق حاصل دی که نه؟ (يعني آيا هغې ته دا اختيار سته چې د خاوند سره نکاح قطع او ختم کړي يا يې قطع نه کړي، همدې ته "خيارِ عتق" وايي).

په دې باره کې د امامانو اختلاف دی، د ائمه ثلاثه وو مذهب دا دی چې که د آزادېدلو په وخت کې د دې مينځې خاوند غلام وي نو بيا به هغې ته خيارِ عتق ور کول کيږي، ليکن که د آزادېدلو په

وخت کې خاوند هم آزاد وي نو بيا به هغې ته خيار عتق نه ورکول کيږي، د احنافو مذهب دا دی چې په هر صورت کې به دغه مينځې ته خيارِ عتق ورکول کيږي، هغه که خاوند د مينځې د آزادېدلو په وخت کې آزاد وي او که غلام وي.

د ائمه ثلاثه وو او د احنافو په مينځ کې دغه ختلاف ځکه دی چې د حضرت بريره ﷺ د آزادېدلو په وخت کې د هغې د خاوند حضرت مغيث ﷺ په آزاد والي او غلاموالي کې روايات سره متعارض دي. پر همدغه تعارض د امامانو اختلاف مبني دي، روايات په دې توګه سره متعارض دي چې د حضرت اسود او عروة بن زبير له يوه روايت څخه د حضرت بريره ﷺ د آزادېدلو په وخت کې د هغې د خاوند آزاد والی ثابت دی، د دې په خلاف د ابن عباس او عبد الرحمن بن القاسم له روايت څخه په دې وخت کې د هغه غلاموالی ثابت دی، او په دې باره کې نور روايتونه هم سته چې ځينې د هغه د آزاد والي خبره کوي او ځينې د هغه د غلامتوب خبره کوي، نو د "إِذَا تَعَارَضَا تَسَاقَطَا" په وجه احناف دا روايات پرېږدي او د نبي کريم ﷺ په دې حديث "مَلَكْتِ بُضْعَكِ..." عمل کوي او همدا خپل دليل ګرځوي، او څرنګه چې د نبي کريم ﷺ دغه فرمان مطلق دی، د خاوند د آزادوالي او غلاموالي هيڅ تفصيل پکښې نسته (او قاعده دا ده چې: "المُطْلَقُ يَجْرِيْ عَلَىٰ إِطْلَاقِهٖ")، نو ځکه به دغه نبوي فرمان عام وي او آزاد سوي مينځې ته به مطلقاً خيار ورکول کيږي هغه که يې خاوند آزاد وي او که غلام وي، او د همدې اطلاق په وجه دا حديث د ائمه ثلاثه وو په خلاف حجت او دليل دی.

او که په هغه نورو رواياتو عمل وسي نو هم د احنافو مسلک قوي او مضبوط دی؛ ځکه کوم روايتونه چې د حضرت مغيث پر آزاد والي دلالت کوي هغه مثبت دي، او کوم چې د هغه پر غلاموالي دلالت کوي هغه که څه هم د غلاموالي په حق کې مثبت دي خو د آزاد والي په حق کې نافي دي، او فقهي قاعده دا ده چې: "الإِثْبَاتُ مُقَدَّمٌ عَلَى النَّفْيِ إِنْ كَانَ بِالأَصْلِ"، (يعني د أصل اثبات به همېشه له نفي څخه مخکې وي) او د انسان آزاد والی أصل دی، نو په دې حواله سره هم د احنافو مسلک راجح دی او د حضرت مغيث پر آزادي دلالت کونکي روايات هم راجح دي.

**ولأنه يزداد إلخ**: زموږ عقلي دليل دا دی چې تر آزادېدلو مخکې خاوند پر مينځې د دوو طلاقونو حق او ملکيت درلودی، لېکن تر آزادېدلو وروسته دا دوه طلاقه په دريو طلاقو سره بدل سول (يعني مخکې مينځه په دوو طلاقو سره مغلظه ګرځېدله لېکن کله چې آزاده کړی سي نو په دريو طلاقو سره مغلظه ګرځي)، نو د مينځې په آزادېدلو سره د خاوند په ملکيت کې زياتوب راغلی او د خاوند په حق کې د

يوه طلاق زياتوب ثابت سو، نو د عدل او انصاف تقاضا دا ده چي آزادي سوي مينځي ته هم څه نا څه ورکول سي، خو د هغې په ملکيت کي زياتوب نه سي راتلی، نو ځکه موږ د دغه زياتوب د دفع کولو لپاره هغې ته د أصل نکاح ختمولو اختيار ورکړی.

**وكذا المكاتبة إلخ**: (۲)... د دويمي مسئلې حاصل دا دی چي که مکاتبه مينځې د خپل مالک په اجازت سره نکاح وکړه، بيا هغې خپل بدل کتابت اداء کړی او ازاده سوه، نو په دې صورت کي زموږ او د ائمه ثلاثه وو په نيز هغې ته خيارِ عتق حاصل دی (يعني هغې ته به خيارِ عتق ورکول کيږي)، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي هغې ته خيارِ عتق حاصل نه دی.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي آزاد کړل سوي مينځي لره په دوو وجهو سره خيار ثابت وو: يو دا چي د هغې نکاح د هغې له رضا څخه بغير د مالک د ولايت په وجه سره سوې وه (په لنډه توګه دا چي هغې د مالک په اختيار سره نکاح کړې وه)، دويم دا چي د هغې مهر د خپل مالک لپاره وو، او په مکاتبه کي دا يوه خبره هم نسته؛ ځکه چي د هغې نکاح د هغې په رضا سره سوې ده او مهر هم د هغې دی. نو ځکه به مکاتبې ته تر آزادېدلو وروسته خيارِ عتق نه ورکول کيږي.

**بخلاف الأمة**: لېکن که څوک اعتراض وکړي چي که چيري نکاح د مينځي په رضا سره سوې وي نو هغې ته هم خيارِ عتق ورکول پکار نه دي، حالانکي داسي نه ده؟، نو د دې جواب ورکوي چي د مينځي د رضا هيڅ اعتبار نسته، ځکه چي د هغې له رضا څخه بغير هم مالک د هغې نکاح کولای سي او هغه پر نکاح مجبوره کولای سي، حالانکي په مکاتبه کي د مالک جبر نه چليږي، لهذا اعتراض کول صحيح نه دي.

**زموږ دليل**: دا دی چي اصل علت دا دی چي پر مکاتبه هم اول خاوند فقط د دوو طلاقو ملکيت او حق لري او د مکاتبې عدت هم دوه حيضه وي، خو کله چي آزاده سي نو خاوند پر هغې د دريو طلاقو مالک وګرځي. لهذا کله چي د ملکيت په زياتوب کي مکاتبه او مملوکه مينځه دواړي سره برابري دي، نو په حکم کي به هم دواړي برابري وي. يعني څرنګه چي مملوکه مينځي ته خيارِ عتق ورکول کيږي، همداسي به مکاتبې ته هم خيارِ عتق ورکول کيږي.

## بېله اجازته نکاح کونکې مینځې لره د خیارِ عتق حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَتْ أَمَةٌ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهَا او که یو مینځه د خپل مالک له اجازت څخه بغیر نکاح وکړي ثُمَّ أُعْتِقَتْ او بیا آزاده کړی سي صَحَّ النِّكَاحُ نو [د هغې] نکاح صحیح ده لِأَنَّهَا مِنْ أَهْلِ الْعِبَارَةِ ځکه چې مینځه له أهلِ تکلّم څخه ده وَامْتِنَاعُ النُّفُوذِ لِحَقِّ الْمَوْلَى او د نکاح د نفاذ ممانعت د مالک د حق په وجه سره وو وَقَدْ زَالَ او هغه زائل سو وَلَا خِيَارَ لَهَا او د هغې لپاره به خیارِ [عتق] نه وي لِأَنَّ النُّفُوذَ بَعْدَ الْعِتْقِ ځکه چې [د نکاح] نفاذ [د مینځې] تر آزادېدلو وروسته دی [یعني نکاح د مینځې تر آزاد والي وروسته نافذ سوې ده] فَلَا تَتَحَقَّقُ زِيَادَةُ الْمِلْكِ نو [دلته] د ملک زیاتوب نه ثابتیږي كَمَا إِذَا زَوَّجَتْ نَفْسَهَا بَعْدَ الْعِتْقِ لکه په هغه صورت کې [چې نه ثابتیږي] کله چې تر آزادېدلو وروسته خپله نکاح [د یو چا سره] وکړي.

**اللغات:** ﴿إِمْتِنَاع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل. ﴿نُفُوْذ﴾ د نصر مصدر دی: نافذ بدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مینځې د خپل مالک له اجازت او رضا څخه بغیر خپله نکاح د یو چا سره وکړه، بیا مالک هغه آزاده کړه، نو د هغې نکاح خو صحیح او جائز ده، لېکن هغې ته خیارِ عتق حاصل نه دی (یعني خیارِ عتق به نه ورکول کیږي)؛ د نکاح د صحیح والي دلیل دا دی چې مینځه عاقله، بالغه او د تکلّم او تصرف أهل ده، او د أهل کس هر جائز تصرف نافذیږي، لهذا د مالک تر آزادولو وروسته به د هغې تصرف هم نافذیږي او د هغې نکاح به صحیح او جائز وي، ځکه چې د هغې د نکاح نه نافذېدل د مالک د حق په وجه سره وو، لېکن کله چې مالک هغه د آزادۍ په انعام سره ونازوله، نو د مالک د حق مانع لیري سو او د هغې تصرف فعاله سو.

او هغې ته د خیار نه ورکولو وجه دا ده چې نکاح د هغې تر آزادۍ وروسته نافذه سوې ده، او تر آزادېدلو وروسته د نکاح په نفاذ سره د خاوند په ملکیت کې هیڅ زیاتوب نه راځي (ځکه چې د هغه په ملکیت او حق کې هغه وخت راځي زیاتوب چې تر آزادېدلو مخکې هم مینځه د هغه په نکاح کې وي) او مخکې تاسي وویل چې خیارِ عتق د ملکیت د زیاتوب په سبب سره هغې ته ورکول کیږي، لهذا کله چې دا سبب دلته نسته، نو خیارِ عتق به هم نه ورکول کیږي، او دا صورت داسي دی لکه تر آزادېدلو وروسته نکاح کول، یعني څرنګه چې تر آزادېدلو وروسته په نکاح کولو سره مینځې ته خیارِ عتق نه ورکول کیږي، همداسي به په دغه صورت کې هم نه ورکول کیږي.

## د پورتنۍ مينځې مهر د چا حق دی؟

فَإِنْ كَانَتْ تَزَوَّجَتْ بِغَيْرِ إِذْنِهِ عَلَى أَلْفٍ او که مينځې د مالک له اجازت څخه بغير ا د يو چا سره ا پر زرو درهمو نکاح کړې وي وَمَهْرُ مِثْلِهَا مِائَةٌ او د هغې مهر مثل سل درهمه وو فَدَخَلَ بِهَا زَوْجُهَا او ا بيا ا خاوند په هغې دخول وکړی ثُمَّ أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا بيا مالک هغه آزاده کړه فَالْمَهْرُ لِلْمَوْلَى نو ا د هغې ا مهر به د مالک لپاره وي لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ مَمْلُوكَةً لِلْمَوْلَى ځکه چې خاوند داسې منافع تر لاسه کړل کوم چې د مالک ملکيت دی ا يعني خاوند د مالک له ملکيت څخه فايده واخيستله ا وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا حَتَّى أَعْتَقَهَا او که خاوند په ښځې دخول نه وکړي تر دې چې ا مولی ا هغه آزاده کړي فَالْمَهْرُ لَهَا نو مهر به د ښځې لپاره وي لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ مَمْلُوكَةً لَهَا ځکه چې ا په دې صورت کې ا خاوند د ښځې مملوکه منافع تر لاسه کړل وَالْمُرَادُ بِالْمَهْرِ الْأَلْفُ الْمُسَمَّى او له مهر څخه مراد هغه زر درهمه دي کوم چې ټاکل سوي دي ا يعني کوم چې ښځې ټاکلي دي ا لِأَنَّ نَفَاذَ الْعَقْدِ بِالْعِتْقِ إِسْتَنَدَ إِلَى وَقْتِ وُجُودِ الْعَقْدِ ځکه چې د آزادېدلو په وجه د عقد نفاذ د عقد د وجود و طرف ته منسوب سو فَصَحَّتِ التَّسْمِيَةُ لهذا تسميه ا يعني ټاکل د مهر ا صحيح سو وَوَجَبَ الْمُسَمَّى او هغه ټاکل سوی مهر واجب سو وَلِهٰذَا لَمْ يَجِبْ مَهْرٌ آخَرُ بِالْوَطْءِ فِي نِكَاحٍ مَوْقُوفٍ او له همدې وجهې په موقوفه نکاح کې په وطي کولو سره دويم مهر نه واجبيږي لِأَنَّ الْعَقْدَ قَدِ اتَّحَدَ بِاسْتِنَادِ النَّفَاذِ ځکه چې د نفاذ د منسوب کېدلو په وجه عقد متحد سو فَلَا يُوجَبُ إِلَّا مَهْرًا وَاحِدًا نو ځکه به صرف يو مهر واجبيږي.

**اللغات:** ﴿اِسْتَوْفٰی﴾ د استفعال ماضي ده: حاصلول، تر لاسه کول، ﴿مُسَمّٰی﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: مقرر کړی سوی، ټاکل سوی، ﴿اِسْتَنَدَ﴾ د استفعال ماضي ده: منسوبېدل (نسبت کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مينځې د مالک له اجازت څخه بغير خپله نکاح د يو چا سره وکړه او مهر يې زر (۱۰۰۰) درهمه وټاکی حال دا چې د هغې مهر مثل فقط سل (۱۰۰) درهمه وو، بيا خاوند دخول په وکړی، تر دې وروسته مالک دا مينځه آزاده کړه، نو د هغې ټوله مهر به مالک ته ورکول کيږي، په لنډه توګه دا چې که مينځه تر خپل مهر مثل هر څومره زيات مهر وټاکي، هغه ټاکلی مهر به ټوله د مالک وي او مالک ته به ورکول کيږي، په دې شرط چې خاوند تر آزادېدلو مخکې په هغې دخول کړی وي (يعني دخول قبل العتق وي)؛ د دې دليل دا دی چې په دې صورت کې خاوند د مالک

له ملکيت څخه فايده اخلي ځکه تر څو چي مالک مينځه آزاده کړي نه وي تر هغه وخته مينځه د مالک مملوکه ده، نو خاوند چي د چا له ملکيت څخه فايده اخلي، عوض يعني مهر به هم هغه ته ورکول کيږي.

او که د مالک تر آزادولو وروسته خاوند په هغې دخول وکړي، نو مهر به ټوله د دغه آزادي سوي مينځي وي؛ ځکه په دې صورت کي خاوند د هغې له ملکيت څخه فايده اخلي، ځکه چي تر آزادوالي وروسته مينځه د مالک له ملکيت څخه وځي او په خپله د خپل ځان او بضع مالکه ګرځي.

**والمراد بالمهر إلخ**: دا د يو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي د دخول قبل العتق په صورت کي مالک ته فقط مهر مثل (سل درهمه) ورکول پکار دي او پاته مهر مينځي ته ورکول پکار دي؛ ځکه چي مالک فقط د مينځي د بضع مالک دی او د بضع قيمت مهرِ مثل دی، لهذا مالک ته فقط د بضع قيمت (مهرِ مثل) ورکول پکار دي، نه زيات.

د جواب حاصل دا دی چي مهر که خاوند ته ورکول کيږي او که مينځي ته، دواړو ته به مهرِ مسمی (ټاکل سوی مهر) ورکول کيږي؛ ځکه چي د آزادېدلو په وجه به د عقد (نکاح) نفاذ د عقد (نکاح) د وجود وطرف ته منسوب کيږي، او د عقد (نکاح) د وجود په وخت کي مهر زر (۱۰۰۰) درهمه ټاکل سوی وو، لهذا دغه ټاکل او ټاکل سوی مهر خو صحيح سو، نو اوس به دې ته کتل کيږي چي خاوند د چا له ملکيت څخه فايده اخيستې ده، که چيري هغه قبل العتق په مينځي دخول کړی وي نو د مالک له ملکيت څخه د فايده اخيستلو په وجه به مالک د مهر حقداره وي، او که بعد العتق يې دخول کړی وي نو د مينځي له ملکيت څخه د فايده اخيستلو په وجه به مينځه د مهر حقداره وي، او څرنګه چي ټاکل سوی مهر زر درهمه دی، لهذا چا ته چي هم دغه ټاکل سوی مهر ورکول کيږي نو ټوله به ورکول کيږي.

**ولهذا إلخ**: په دې سره دا خبره بيانوي چي څرنګه د عقد (نکاح) نفاذ د عقد (نکاح) د وجود وطرف ته منسوب کيږي، نو په دې وجه که يو مينځه مثلاً خپل د مالک له اجازت څخه بغير نکاح وکړي او خاوند دخول په وکړي، بيا وروسته مالک د نکاح اجازت ورکړي يا هغه آزاده کړي، نو بعد الإذن والعتق والا اجازت به د عقد (نکاح) د ابتداء سره لاحق کيږي او پر خاوند به فقط يو مهر واجب وي، داسي نه ده چي په موقوفه نکاح سره (يعني په هغه نکاح سره چي تر اجازت مخکي ده) يو مهر پر خاوند واجب وي او تر اجازت په وروسته نکاح سره به بل مهر پر خاوند واجب وي، ځکه کله چي د نکاح نفاذ د نکاح وجود ته منسوب سو، نو اوس قبل الإذن او بعد الإذن دواړي نکاح ګاني (عقدونه) سره يو ځای سول او يو عقد وګرځېدی، او په يوه عقد او يوه نکاح کي يو مهر واجبيږي، نه دوه مهرونه.

## د زوى د مينځې د "أم ولد" جوړولو بيان

وَمَنْ وَطِئَ أَمَةَ ابْنِهِ او څوک چې د خپل زوى د مينځې سره وطي وكړي فَوَلَدَتْ مِنْهُ او [بيا] له هغه وطي څخه كوچنى پيدا سي فَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ نو دا مينځه به د هغه [وطي كونكي پلار] أم ولد وي وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا او پر هغه [وطي كونكي] به د دې مينځې قيمت واجب وي وَلَا مَهْرَ عَلَيْهِ او مهر به پر واجب نه وي وَمَعْنَى الْمَسْأَلَةِ: أَنْ يَدَّعِيَهُ الْأَبُ او د مسئلې مطلب دا دى: چې پلار [وطي كونكى] د هغه [كوچني] دعوىٰ وكړي وَوَجْهُهُ: أَنَّ لَهُ وِلَايَةَ تَمَلُّكِ مَالِ ابْنِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْبَقَاءِ او د دې علت دا دى چې د نفس د بقاء [او د هغه د حفاظت] د ضرورت په خاطر پلار لره د خپل زوى د مال د مالک جوړېدلو ولايت حاصل دى فَلَهُ تَمَلُّكُ جَارِيَتِهِ لِلْحَاجَةِ إِلَى صِيَانَةِ الْمَاءِ لهذا د اوبو د حفاظت د ضرورت په خاطر به [هم] پلار لره د زوى د مينځې د مالک جوړېدلو ولايت حاصل وي غَيْرَ أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى إِبْقَاءِ نَسْلِهِ دُونَهَا إِلَى إِبْقَاءِ نَفْسِهِ خو د نفس د باقي ساتلو [او حفاظت كولو] په نسبت د نسل د باقي ساتلو ضرورت د كمي درجې دى فَلِهَذَا يَتَمَلَّكُ الْجَارِيَةَ بِالْقِيمَةِ نو له همدې وجهې به پلار د مينځې [خو] د قيمت په ذريعه مالک كيږي وَالطَّعَامَ بِغَيْرِ قِيمَةٍ او د خوراک به بېله قيمته [مالک كيږي] ثُمَّ هَذَا الْمِلْكُ يَثْبُتُ قَبْلَ الِاسْتِيلَادِ شَرْطًا لَهُ بيا به دغه ملكيت د پلار لپاره تر استيلاد مخكې د شرط په توګه ثابتيږي [يعني دغه ملكيت به د پلار لپاره تر كوچني پيدا كېدلو او تر أم ولد جوړولو مخكې ثابتيږي] إِذِ الْمُصَحِّحُ حَقِيقَةُ الْمِلْكِ أَوْ حَقُّهُ ځكه چې د استيلاد صحيح كونكى خو يا "حقيقتِ ملک" دى يا د "حقيقتِ ملک" حق دى وَكُلُّ ذَلِكَ غَيْرُ ثَابِتٍ لِلْأَبِ فِيهَا او په مينځه كې د پلار لپاره دغه دواړه نه دي ثابت حَتَّى يَجُوزَ لَهُ التَّزَوُّجُ بِهَا همدا وجه ده چې پلار ته د دې مينځې سره نكاح كول جائز دي فَلَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيمِهِ لهذا د ملكيت مخكې كول [مقدم كڼل] ضروري دي فَتَبَيَّنَ أَنَّ الْوَطْءَ يُلَاقِي مِلْكَهُ نو دا ښكاره سوه چې [د پلار] وطي د هغه د ملكيت سره متصل سوي دي [يعني چې وطي د هغه په ملكيت كې دننه واقع سوي دي] فَلَا يَلْزَمُهُ الْعُقْرُ نو ځكه به پر پلار مهر نه لازميږي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يَجِبُ الْمَهْرُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [پر پلار هم] مهر

واجبيږي لِأَنَّهُمَا يُثْبِتَانِ الْمِلْكَ حُكْمًا لِلِاسْتِيلَادِ ځکه چي امام زفر او امام شافعي د استيلاد لپاره حکماً ملکيت ثابتوي كَمَا فِي الْجَارِيَةِ الْمُشْتَرَكَةِ لکه په مشترکه مينځه کي [چي داسي کيږي] وَحُكْمُ الشَّيْءِ يَعْقُبُهُ او د يو شي حکم تر هغه وروسته راځي [يعني د يو شي حکم تر هغه شي وروسته ثابتيږي] وَالْمَسْأَلَةُ مَعْرُوفَةٌ او دا مسئله مشهوره ده [په جامع صغير او نورو کتابو کي].

**اللغات:** ﴿الْعُقْر﴾ د غير مملوکه مينځي سره د وطي کولو قيمت (جرمانه) ته عقر وايي چي هغه به د باکرې مينځي د قيمت عُشر (لسمه حصه) وي او د ثيبې مينځي د قيمت نصف عشر به وي، او که د آزادي ښځي لپاره د عقر لفظ استعمال سي نو له هغه څخه به مراد د هغې مهرِ مثل وي، ﴿تَمَلُّک﴾ د تفعّل مصدر دی: مالک کېدل (مالک جوړېدل)، ﴿اِسْتِيْلَاد﴾ د استفعال مصدر دی: خپله مينځه اُمِ ولد گرځول (اُمِ ولد جوړول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د خپل زوی د مينځي سره وطي وکړې او د هغه په وطي سره مينځه حملداره سوه او کوچنی ځني پيدا سو، نو دغه مينځي ته د پلار "اُمِ ولد" وايي، او پر پلار د دې مينځي قيمت واجب دی (چي هغه به زوی ته ورکوي) که څه هم پلار فقير وي، خو په عليحده توگه د مينځي مهر پر واجب نه دی (چي مينځي ته به جلا مهر ورکوي) او د کوچني قيمت هم پر واجب نه دی.

**ومعنى المسئلة إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي دا مينځه هغه وخت د پلار اُمِ ولد گرځي کله چي پلار د هغې د کوچني د نسب دعوی وکړي چي دا کوچنی زما له نطفې څخه دی، او پلار آزاد، مسلمان او عاقل وي، او که پلار د کوچني د نسب دعوی نه وکړي نو د کوچني نسب د پلار سره نه ثابتيږي او مينځه د پلار اُمِ ولد نه گرځي.

**ووجه إلخ:** فرمايي چي د پورتنۍ مسئلې دليل دا دی چي پلار ته د خپل ځان د حفاظت او ژوندي ساتلو په خاطر شرعاً دا اختيار ورکول سوی دی چي هغه د خپل زوی له اجازت څخه بغير د هغه په مال کي تصرف وکړي (يعني کله چي پلار ډېر وږی وي يا ډېر مريض وي او هيڅ ور سره نه وي نو د خپل ځان د حفاظت لپاره هغه د زوی له اجازت څخه بغير د هغه د مال مالک جوړيږي او هغه استعمالولای سي)؛ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي "أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيْكَ" (ته او ستا مال دواړه د خپل پلار ياست)، نو کله چي شريعت د نفس د حفاظت په خاطر د زوی مال د پلار مال گرځولی دی او په هغه کي يې پلار ته د تصرف اجازت

ورکړی دی، نو د هغه لپاره به دا اجازت هم وي چي د خپلو اوبو (مني) د حفاظت په خاطر د زوی مال (مینځه) خپله کړي یا په هغه کي تصرف وکړي؛ ځکه چي د نفس حفاظت او د اوبو حفاظت دواړه سره برابر دي، ځکه د دواړو د حفاظت حکم سوی دی، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَسْقِيَنَّ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِه" د دې حدیث مفهوم دا دی چي څوک په الله او په ورځ د آخرت ایمان لري هغه دي د خپلو اوبو حفاظت وکړي.

**غير أن الحاجة**: په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله د اوبو حفاظت او د نفس حفاظت دواړه سره برابر دي، نو بیا به پلار ولي د مینځي قیمت اداء کوي؛ ځکه کله چي پلار د نفس د حفاظت په خاطر د خپل زوی په مال کي تصرف وکړي نو پر هغه هیڅ شی نه واجبیږي؟ آخر د دوی تر مینځ څه فرق دی؟

صاحب د کتاب د دې په جواب کي فرمایي چي د اوبو د حفاظت او د نفس د حفاظت تر مینځ فرق دا دی چي د اوبو حفاظت د نفس تر حفاظت کمه درجه لري، همدا وجه ده که پلار وږی او تږی وي، نو زوی به پر دې مجبورول کیږي چي پلار ته خواړه ورکړي او هغه د لوږي او تندي څخه وژغوري (ځکه چي د نفس حفاظت ډېر أهم دی)، لیکن د کوچني د حصول په خاطر به زوی پر دې نه مجبورول کیږي چي پلار ته مینځه ورکړي، لهذا کله چي د حفاظت نفس او حفاظت ماء تر مینځ فرق سته، نو د دوی په احکامو کي به هم فرق وي او د حفاظت نفس والا تصرف خو به له ضمان او قیمت څخه خالي وي، مګر د حفاظت ماء په صورت کي به پر پلار د مینځي قیمت لازم او ضروري وي، لکه څرنګه چي د نکاح په صورت کي هم د هغې مهر پر لازمیږي.

**ثم هذا الملك إلخ**: په حقیقت کي په دې سره هم د یو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي په مینځه کي د ولد (کوچني) د طلب لپاره دوه شیان ضروري دي، یا خو به واطي (وطي کونکی) په پوره توګه د هغې پوره مالک وي، یا به په یو درجه کي د واطي ملکیت پر هغې ملکیت قائم وي (لکه مکاتبه او داسي نوري مینځي چي د مالک څه نا څه ملکیت پر پاته وي)، او دلته د پلار په حق کي دا دواړه صورتونه نسته، همدا وجه ده چي د پلار لپاره د زوی د مینځي سره نکاح کول جائز دي، نو ځکه ظاهراً د پلار دغه استیلاد (أم ولد جوړول) صحیح نه معلومیږي او نه د هغه دا إقدام او فعل کول صحیح معلومیږي.

صاحب د کتاب د دې په جواب کي فرمایي چي د پرېشانه کېدلو هیڅ ضرورت سته، ځکه کله چي پلار د هغې قیمت اداء کړي نو سمدستي د هغې مالک ګرځي، او د استیلاد د صحیح کېدلو او د پلار د فعل د روا کېدلو لپاره به د پلار ملکیت تر وطي مخکي منل کیږي یعني دا به ویل کیږي چي

پلار تر وطي مخکې لا د مينځې مالک وو او هغه د خپل مملوکه مينځې سره وطي کړې دي، لهذا ځرنګه چې د مملوکه مينځې سره د وطي کولو په صورت کې پر مالک هيڅ ضمان، قيمت يا مهر نه لازميږي، همداسې به په دغه صورت کې هم پر هغه هيڅ مهر نه لازميږي.

همدارنګه په دې فقهي قاعدې سره هم د دغه مسئلې تائيد کيږي چې: "المضمونات تملك بالضمان السابق، و يستند الملك فيها إلى وقت وجوب الضمان"، يعنې مضمونه شيان په مخکني ضمان سره مملوک ګرځي، او د ضمان د وجوب له وخت څخه په هغوی کې د ضامن يا متعدي ملکيت ثابتيږي.

**وقال زفر الخ**: په دې سره دا خبره بيانوي چې امام زفر او امام شافعي د استيلاد لپاره حکماً ملکيت ثابت مني، او د يوشي حکم د شي تر ثبوت وروسته ثابتيږي، نو ځکه په دې مسئله کې د هغو په نېز پر پلار مهر لازميږي، او لکه ځرنګه چې د دوو شريکانو تر مينځ د مشترکه مينځې سره که يو شريک وطي وکړي نو پر هغه نيم مهر لازميږي، همداسې به دلته هم پر پلار مهر لازميږي.

ليکن زموږ له طرفه جواب دا دی چې ستاسو قياس صحيح نه دی؛ ځکه په دې مسئله کې چې موږ د ملکيت د مخکې منلو کومه قاعده اختيار کړې ده، هغه د استيلاد د صحيح کېدلو او د پلار د فعل د جواز او د کوچني د نسب د حفاظت په خاطر ده، او پر مشترکه مينځه خو له مخکې څخه هم د شريکانو ملکيت قائم وي، نو ځکه موږ هلته دا تأويلات نه کوو.

## که زوی د پلار سره د خپلې مينځې نکاح وکړي نو آيا مينځه أم ولد ګرځي؟ (اختلاف)

| |
|---|
| قَالَ: وَلَوْكَانَ الِابْنُ زَوَّجَهَا إِيَّاهُ فرمايي: که زوی د خپلې مينځې نکاح د خپل پلار سره وکړي [او بيا پلار وطي ورسره وکړي] فَوَلَدَتْ مِنْهُ او له هغه څخه د مينځې کوچنی پيدا سي لَمْ تَصِرْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو مينځه د پلار أم ولد نه جوړيږي وَلَا قِيمَةَ عَلَيْهِ او نه به پر پلار د هغې قيمت واجب وي وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ [خو] پر پلار به [د هغې] مهر واجب وي وَوَلَدُهَا حُرٌّ او د هغې کوچنی به آزاد وي لِأَنَّهُ صَحَّ التَّزَوُّجُ عِنْدَنَا ځکه چې زموږ په نېز دا نکاح صحيح ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِخُلُوِّهَا عَنْ مِلْكِ الْأَبِ ځکه چې مينځه د پلار له ملکيت څخه خالي ده [يعنې د پلار په ملکيت کې نه ده] أَلَا تَرَى أَنَّ الِابْنَ مَلَكَهَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ آيا ته نه ګورې! چې زوی په هره توګه د دې مينځې مالک دی فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يَمْلِكَهَا الْأَبُ مِنْ وَجْهٍ نو دا ناممکنه ده چې پلار [هم] من وجه د هغې مالک |

سي وَكَذَا يَمْلِكُ مِنَ التَّصَرُّفَاتِ مَا لَا يَبْقَى مَعَهَا مِلْكُ الْأَبِ لَوْ كَانَ او همدارنګه زوى [په مينځه كې] د داسې تصرفاتو مالک دى چې د هغوى په وجود كې د پلار ملكيت نه سي پاتېداى، كه چيري هغه موجود وي [يعني كه بالفرض د پلار ملكيت موجود وي نو بيا هم د داسې تصرفاتو سره د هغه ملكيت باقي نه سي پاتېداى] فَدَلَّ ذَلِكَ عَلَى انْتِفَاءِ مِلْكِهِ لهذا دا د پلار د ملكيت پر نشتوالي دلالت كوي إِلَّا أَنَّهُ يَسْقُطُ الْحَدُّ لِلشُّبْهَةِ خو [د ملكيت] د شبه په وجه به [له پلار څخه] حد ساقطيږي فَإِذَا جَازَ النِّكَاحُ نو كله چې نكاح جائز سوه صَارَ مَاؤُهُ مَصُوْنًا بِهِ نو د پلار اُوبه د دغه نكاح په وجه محفوظه سوې فَلَمْ يَثْبُتْ مِلْكُ الْيَمِيْنِ لهذا د پلار لپاره به مِلک يمين نه ثابتيږي فَلَا تَصِيرُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ او هغه مينځه به د پلار اُمِ ولد [هم] نه جوړيږي وَلَا قِيمَةَ عَلَيْهِ فِيْهَا وَلَا فِي وَلَدِهَا او نه به پر پلار د دې مينځې او د بچي قيمت لازميږي لِأَنَّهُ لَمْ يَمْلِكْهُمَا ځكه چې پلار د دوى دواړو مالک نه سو وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ او پر پلار به [د مينځې] مهر لازم وي لِالْتِزَامِهِ بِالنِّكَاحِ ځكه چې د نكاح كولو په ذريعه [پلار په خپله پر ځان] هغه لازم كړى دى وَوَلَدُهَا حُرٌّ او د مينځې كوچنى به آزاد وي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ أَخُوْهُ ځكه چې د هغه ورور د هغه مالک جوړ سو فَيُعْتَقُ عَلَيْهِ بِالْقَرَابَةِ نو د قرابت په وجه به هغه پر خپل ورور آزاديږي.

**اللغات:** ﴿خُلُوْ﴾ د نصر مصدر دى: خالي كېدل، فارغېدل. ﴿مَصُوْن﴾ د نصر اسم مفعول دى: محفوظ، خوندي. ﴿اِلْتِزَام﴾ د افتعال مصدر دى: په خپله ذمه اخيستل (په غاړه اخيستل)، پر ځان لازمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو سړي خپله مينځه خپل پلار ته په نكاح وركړه، او بيا د پلار په وطي او جماع سره له مينځې څخه كوچنى پيدا سو، نو څرنګه چې زموږ په نېز دا نكاح صحيح ده (او دا مينځه د پلار منكوحه ښځه ده)، نو ځكه به هغې ته د پلار اُمِ ولد نه ويل كيږي (ځكه چې دا مينځه به هغه وخت د پلار اُمِ ولد واى كله چې د پلار په نكاح كې نه واى)، نو ځكه به اوس پر پلار د مينځې يا د هغې د بچي قيمت لازم نه وي، لېكن د نكاح د صحيح كېدلو په وجه به پر پلار مهر واجب وي او كوچنى به هم آزاد او حُرّ وي.

**خلافا للشافعي إلخ:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د خپل زوى د مينځې سره د پلار نكاح صحيح نه ده؛ ځكه چې پلار لره د زوى په مال كې پوره اختيار سته، همدارنګه كه پلار په دې خبر وي چې د

زوی د مینځې سره وطي حرام دي او بیا وطي ور سره وکړي نو هم پر هغه حد او سزا نه جاري کيږي. لهذا کله چې د زوی په مینځه کې د پلار ملکیت ثابت دی، نو د هغه نکاح به صحیح نه وي، او کله چې نکاح صحیح نه شوه، نو دا مینځه به د پلار اُمِ ولد وي او د مخکنی مسئلې په څیر به پر پلار د هغې مهر واجب وي (لکه په تیره مسئله کې چې موږ وویل چې د زوی د مینځې سره د وطي کولو په صورت کې د امام شافعي او امام زفر په نیز مهر واجبیږي، نه قیمت).

**لعلوها إلخ**: د دې جملې تر تشریح مخکې په دې خبره ځان پوه کړئ! چې د دغه جملې تعلق د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول او د دلیل سره نه دی، بلکې دا د احنافو د قول دلیل او علت دی، حاصل یې دا دی چې ځکه زوی په پوره توګه (من کل وجه) د مینځې مالک دی، یعني هغه د دې مینځې سره وطي هم کولای سي او مینځه آزادولای هم سي، همدارنګه د هغه لپاره د مینځې د خرڅولو او هبه کولو هم پوره اجازت سته، او دغه ټوله داسې تصرّفات دي چې اولاً خو د دوی په وجود کې د پلار یا د یو بل کس ملکیت ثابتېدای نه سي، او که د بل چا یا د پلار ملکیت ثابت هم ومنل سي نو هم به د دې تصرفاتو په مقابل کې داسې (من وجه) ملکیت ته دوام او بقاء حاصله نه وي، نو ځکه به په مذکوره مینځه کې د پلار هیڅ ملکیت ثابت نه وي، لهذا کله چې د پلار ملکیت ثابت نه دی، نو د هغې سره به د پلار نکاح صحیح او ثابته وي، او کله چې د پلار نکاح صحیح ده، نو هغه به د پلار منکوحه ښځه وي، نه اُمِ ولد.

**إلا أنه إلخ**: په دې سره د یو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله په مذکوره مینځه کې د پلار هیڅ ملکیت ثابت نه دی، نو بیا ولې پر پلار په هغه صورت کې حدّ نه جاري کیږي کله چې تر نکاح مخکې د هغې سره وطي وکړي او د وطي په حُرمت خبر هم وي؟ (ځکه چې د بل چا د مملوکه مینځې سره د وطي کولو په سزا کې پر واطي حدّ لازمیږي).

فرمايي چې دلته ځکه پر پلار حد نه لازمیږي چې د دې حدیث "أَنْتَ وَمَالُكَ لِأَبِيْكَ" په وجه د زوی په مال (مینځه) کې د پلار د ملکیت شبه سته او حدّ په شبه سره ساقطیږي؛ ځکه چې دا مشهوره قاعده ده چې "الحُدُوْدُ تَنْدَرِئُ بِالشُّبهَاتِ"، او همسې هم د پلار د احترام په خاطر حد لازمېدل پکار نه دي.

**فإذا جاز النكاح**: دا خبره خو تاسو ته معلومه سوه چې په پورتنی مسئله کې د زوی د مینځې سره د پلار نکاح صحیح او جائز ده، نو اوس صاحب د هدایې په مختصره توګه پر دغه خبرې شپږ مسئلې تفریع کوي: (۱)... اوله مسئله دا چې د نکاح په ذریعه د پلار نطفه محفوظه سوه، نو ځکه اوس د

پلار لپاره د ملک يمين د ثابتولو ضرورت نسته، ②... دويمه دا چې دغه مينځه د پلار اُمِ ولد نه جوړيږي، ③... دريمه دا چې څرنګه دغه مينځه د پلار مملوکه مينځه نه ده (بلکې د هغه منکوحه ښځه ده)، نو ځکه پر پلار د هغې قيمت هم لازم نه دی، ④... څلورمه دا چې پر پلار د کوچني قيمت هم لازم نه دی، ځکه چې پلار د دې کوچني مالک نه دی، بلکې دغه مينځه چې د کوم چا ده هغه د دې کوچني مالک دی (کوم چې د دې کوچني ناسکه ورور کيږي ځکه چې دواړه د يوه پلار زامن دي)، ⑤... پنځمه دا چې څرنګه پلار د دغه مينځې سره نکاح کړې ده نو ځکه به پر هغه مهر لازم وي، ⑥... او شپږمه دا چې کله دغه ناسکه ورور خپل د دې کوچني ناسکه ورور مالک سو، نو د دې حديث په وجه به دا کوچنی آزاد او حُرّ وي: "مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَّحْرَمٍ عُتِقَ عَلَيْهِ".

## د خپل غلام خاوند د آزادولو بيان

قَالَ: وَإِذَا كَانَتِ الْحُرَّةُ تَحْتَ عَبْدٍ فرمايي: کله چې آزاده ښځه د يو غلام په نکاح کې وي فَقَالَتْ لِمَوْلَاهُ: أَعْتِقْهُ عَنِّيْ بِأَلْفٍ او هغه [ښځه] د غلام مالک ته ووايي: چې زما خاوند د زرو درهمو په عوض کې آزاد کړه! فَفَعَلَ او مالک [هغسې] وکړي فَسَدَ النِّكَاحُ نو [د دوی] نکاح فاسديږي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَفْسُدُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نه فاسديږي وَأَصْلُهُ: أَنَّهُ يَقَعُ الْعِتْقُ عَنِ الْآمِرِ عِنْدَنَا او اصل د دې اختلاف دا دی چې زموږ په نيز دغه عتق [آزادول] د آمر له طرفه واقع کيږي حَتّٰى يَكُوْنَ الْوَلَاءُ لَهُ همدا وجه ده چې د هغه [غلام] ولاء به هم د آمر لپاره وي وَلَوْ نَوٰى بِهِ الْكَفَّارَةَ [همدارنګه] که آمر په دې سره [يعني د آزادولو په أمر سره] د کفارې نيت وکړي يَخْرُجُ عَنْ عُهْدَتِهَا نو هغه د کفارې له ذمه وارۍ څخه وځي [يعني کفاره يې اداء کيږي] وَعِنْدَهُ يَقَعُ عَنِ الْمَأْمُوْرِ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز [دغه عتق] د مأمور له طرفه واقعه کيږي لِأَنَّهُ طَلَبَ أَنْ يُعْتِقَ الْمَأْمُوْرُ عَبْدَهُ عَنْهُ ځکه چې آمر [ښځې] دا مطالبه وکړه چې مأمور [مالک] خپل غلام زما له طرفه آزاد کړي وَهٰذَا مُحَالٌ او دا ناممکن دي لِأَنَّهُ لَا عِتْقَ فِيْمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ ځکه بنيادم چې د کومو شيانو مالک نه وي په هغه شيانو کې [د بنيادم له طرفه] آزادي نه ثابتيږي فَلَمْ يَصِحَّ الطَّلَبُ لهذا [د آزادولو] مطالبه کول صحيح نه سو فَيَقَعُ الْعِتْقُ عَنِ الْمَأْمُوْرِ نو ځکه به د مأمور له طرفه آزادي واقع کيږي وَلَنَا: أَنَّهُ أَمْكَنَ تَصْحِيْحُهُ بِتَقْدِيْمِ الْمِلْكِ بِطَرِيْقِ

الِاقْتِضَاءِ زموږ دليل دا دی: چي [دآمر مطالبه او کلام] صحيح گرځول ممکن دي د اقتضاء [فرض کولو] په توګه د ملکيت په مخکي کولو سره [يعني دآمر کلام په دې توګه صحيح کيږي چي د هغه لپاره د غلام ملکيت مخکي فرض کړی سي او مقدم وګڼل سي] إِذِ الْمِلْكُ شَرْطٌ لِصِحَّةِ الْعِتْقِ عَنْهُ ځکه چي د آمر له طرفه د آزاد والي د صحيح کېدلو لپاره ملکيت شرط دی فَيَصِيرُ قَوْلُه "أَعْتِقْ" طَلَبُ التَّمْلِيْكِ مِنْهُ بِالْأَلْفِ نو د آمر [ښځي] دا قول "أَعْتِقْ" به د زرو درهمو په عوض کي د ملکيت طلب کول وي ثُمَّ أَمَرَهُ بِإِعْتَاقِ عَبْدِ الْآمِرِ عَنْهُ بيا [تر دې وروسته] آمر له خپل طرفه د غلام آزادولو حکم وکړی وَقَوْلُهُ "أَعْتَقْت" تَمْلِيْكٌ مِنْهُ او د مامور دا قول "أَعْتَقْتُ" به د هغه له طرفه تمليک وي ثُمَّ الْإِعْتَاقُ عَنْهُ بيا به د [آمر] له طرفه آزادول وي [يعني د مامور د دې قول "أعتقتُ" مطلب به دا وي چي ما ته آمر د غلام مالک جوړ کړې او بيا مې ستا له طرفه غلام آزاد کړی] وَإِذَا ثَبَتَ الْمِلْكُ لِلْآمِرِ او کله چي د آمر لپاره ملکيت ثابت سو فَسَدَ النِّكَاحُ لِلتَّنَافِي بَيْنَ الْمِلْكَيْنِ نو د دوو ملکيتونو تر مينځ د تضاد په وجه نکاح فاسده سوه.

**اللغات:** ﴿آمِر﴾ د نصر له باب څخه اسمِ فاعل دی: امر کونکی، حکم کونکی، ﴿وَلَاء﴾ د آزاد کړی سوي غلام ميراث (هغه ميراث کوم چي له آزاد کړی سوي (مُعْتَق) غلام څخه انسان ته حاصل سي)، ﴿عُهْدَة﴾ ذمه واري، ﴿الِاقْتِضَاء﴾ د افتعال مصدر دی: غوښتل، دلالت کول، فرضول (د فرض په توګه منل، په فرضي توګه ګڼل)، انګېرل (تصور کول)، ﴿تَنَافِيْ﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل منافي کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يوه آزاده ښځه د يو غلام په نکاح کي وي او هغه د غلام مالک ته ووايي چي زه به تا ته زر (۱۰۰۰) درهمه درکړم، ته زما خاوند آزاد کړه!، اوس که مالک د دې ښځي خاوند (غلام) آزاد کړي، نو زموږ په نېز د هغه او ښځي تر مينځ نکاح فاسديږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز هغوی د مخکي په څېر خاوند او ښځه پاتيږي، او د مالک په آزادولو سره د دوی پر نکاح هيڅ اثر نه پريوځي.

صاحب د هدايې فرمايي چي په حقيقت کي د دې اختلاف اصل او بنياد دا دی چي زموږ په نېز دغه عتق (آزادول) د آمر (ښځي) له طرفه واقع کيږي، همدا وجه ده چي د دغه غلام ولاء آمر (ښځي) ته حاصليږي، او همدا وجه ده که آمر (ښځه) د دې غلام د آزادېدلو په وخت کي د يو کفارې د اداء کولو نيت وکړي، نو د هغې کفاره اداء کيږي او هغه بريءُ الذمه ګرځي.

د دې په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز دا عتق (آزادول) د مأمور يعني د مالک له طرفه واقع کيږي؛ ځکه که هغه د آمر له طرفه واقع ومنل سي نو د دې (مطلب به دا نه وي چي غلام پر ما خرڅ کړه! بلکي) مطلب به يې دا وي چي ته (مأمور) خپل غلام زما (آمر) له طرفه آزاد کړه!، حالانکي دا ناممکن دي، ځکه چي يو څوک له بل کس څخه دا مطالبه نه سي کولای چي خپل غلام زما له طرفه آزاد کړه!، ځکه چي غلام خو د هغه نه دی (چي د هغه په منشا او مطالبه سره دي بل کس د هغه له طرفه غلام آزاد کړي) او قاعده دا ده چي "لَا عِتْقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُهُ ابْنُ آدَمَ"، (يعني انسان چي د کومو شيانو مالک نه وي په هغه شيانو کي د ده له طرفه آزادي نه ثابتيږي)، لهذا دلته به د آمر له طرفه بالکل عتق صحيح نه وي، نو ځکه به دا عتق د آمر له طرفه نه واقع کيږي بلکي د مأمور له طرفه به واقع کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي په دې مسئله کي آمر (ښځه) عاقله او بالغه ده، او قاعده دا ده "أَنَّ أُمُورَ الْمُسْلِمِيْنَ تُحْمَلُ عَلَى السَّدَادِ وَالصَّلَاحِ حَتَّى يَظْهَرَ غَيْرُهُ"، (يعني تر څو چي د مسلمانانو په کارونو کي د اصلاح او سمون ګنجايش وي، تر هغه وخته به هغوی له هدر او ضايع کېدلو څخه ساتل کيږي)، نو د دې قاعدې په خاطر به د مسلمان هر هغه کلام پر صحت (صحيح والي) او اصلاح حمل کيږي چي پر صحت د هغه حمل کول ممکن وي، او دلته د آمر (ښځي) کلام پر صحت حمل کول ممکن هم دي، په دې توګه چي اقتضاءً به د هغې لپاره ملکيت مقدم منل کيږي يعني د هغې د دغه قول "أَعْتِقْه" به دا تأويل کيږي چي "العَبْدُ الَّذِيْ هُوَ الْآنَ فِيْ مِلْكِكَ، بِعْهُ عَنِّيْ بِأَلْفٍ ثُمَّ كُنْ وَكِيْلِيْ بِإِعْتَاقِهٖ" (يعني د کوم غلام چي ته مالک يې، هغه په زر درهمه پر ما خرڅ کړه او بيا زما له طرفه د هغه د آزادولو وکيل جوړ سه!)، مختصراً دا چي د آمر (ښځي) "أَعْتِقْ" به د "أَطْلُبُ التَّمْلِيْكَ" په معنیٰ سره وي، او د مأمور (مالک) "أَعْتَقْتُ" ويل به د "بِعْتُهٗ مِنْكَ وَأَعْتَقْتُهٗ عَنْكَ" په معنیٰ سره وي (يعني ما خپل غلام پر تا خرڅ کړی او ستا له طرفه مي آزاد کړی)، ښکاره خبره ده چي په دې صورت کي به د مذکوره غلام عتق د آمر له طرفه وي، نه د مأمور له طرفه، او کله چي د عتق وقوع د آمر له طرفه ده نو خامخا به هغه د دې غلام مالک (هم) وي، لهذا آمر (ښځه) به د دې غلام د رقبې (يعني د ملک يمين) مالکه وګرځي، او د ملک نکاح خو له مخکي څخه هغه مالکه وه، نو ملکِ يمين او ملک نکاح به دواړه سره جمع سي او په دې دواړو کي منافات او تضاد دی، نو ځکه موږ وايو چي په دغه مسئله کي د خاوند (غلام) او ښځي نکاح فاسديږي، او د دوی تر مينځ د نکاح د بقاء بل هيڅ صورت نه پاتيږي.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْ قَالَتْ: أَعْتِقْهُ عَنِّيْ او که [آزاده] ښځه [مالک ته] ووايي: چې خپل غلام زما له طرفه آزاد کړه! وَلَمْ تُسَمِّ مَالًا او د مال نوم نه واخلي [يعني مال ذکر نه کړي چې د دومره پيسو په عوض کې يې آزاد کړه!] لَمْ يَفْسُدِ النِّكَاحُ نو نکاح نه فاسديږي وَالْوَلَاءُ لِلْمُعْتِقِ او ولاء به د آزادونکي [مالک] لپاره وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ*: هٰذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا او اول [صورت] سره برابر دي لِأَنَّهُ يُقَدِّمُ التَّمْلِيْكَ بِغَيْرِ عِوَضٍ تَصْحِيْحًا لِتَصَرُّفِهِ ځکه چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د آمر [ښځې] د تصرف د صحيح کولو لپاره بېله عوضه [يعني د هبې په توګه] ملکيت مخکې کوي وَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْقَبْضِ او د قبضې اعتبار ساقطوي كَمَا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ كَفَّارَةُ ظِهَارٍ فَأَمَرَ غَيْرَهُ أَنْ يُطْعِمَ عَنْهُ لکه په هغه صورت کې [چې د قبضې اعتبار ساقطيږي] کله چې پر آمر د ظهار کفاره وي او هغه بل چا ته د خپل ځان له طرفه د خوراک ورکولو حکم وکړي [نو داسي کول صحيح دي] وَلَهُمَا: أَنَّ الْهِبَةَ مِنْ شَرْطِهَا الْقَبْضُ بِالنَّصِّ او د طرفينو دليل دا دی: چې د نص [حديث] پر بناء د هبې لپاره قبضه شرط ده فَلَا يُمْكِنُ إِسْقَاطُهُ وَلَا إِثْبَاتُهُ اقْتِضَاءً لهذا نه د قبضې ساقطول ممکن دي او نه يې اقتضاءً ثابتول ممکن دي لِأَنَّهُ فِعْلٌ حِسِّيٌّ ځکه چې قبضه يو حسي فعل دی بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ شَرْعِيٌّ په خلاف د بيع ځکه چې بيع يو شرعي تصرف دی وَفِيْ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ الْفَقِيْرُ يَنُوْبُ عَنِ الْآمِرِ فِي الْقَبْضِ او د کفارې په مسئله کې فقير د قبضې په حق کې د آمر نائب [قائم مقام] جوړيږي أَمَّا الْعَبْدُ فَلَا يَقَعُ فِيْ يَدِهٖ شَيْءٌ لِيَنُوْبَ عَنْهُ پاتې سو غلام نو دهغه په لاس کې هيڅ شی نه وي چې د آمر له طرفه نائب جوړ سي.

**اللغات:** ﴿لَمْ تُسَمِّ﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد صيغه ده: نوم اخيستل، ذکر کول، مقررول (ټاکل)، ﴿مُعْتِق﴾ د (تاء په کسره سره) د افعال له باب څخه اسمِ فاعل دی: آزادونکی، ﴿حِسِّيّ﴾ په

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۳، ص:۴۱۸)، وكذا في الهنديـة (ج:۱، ص:۳۳۷).
[القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۴]

حواسو سره معلومېدونکی شی، چې د هغه د معلوموللو لپاره سوچ او فکر یا نقلي دلیل ته ضرورت نه وي، ﴿يَئُوْب﴾ د نصر مضارع ده: نائب کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که یوه آزاده ښځه د یو غلام په نکاح کې وي او هغه د غلام مالک ته فقط دا ووايي چې زما له طرفه خپل غلام (یعني زما خاوند) آزاد کړه او د مال او پیسو هیڅ ذکر نه وکړي، نو د طرفینو په نېز دلته (د تیري سوي مسئلې په څېر) نکاح نه فاسدیږي بلکې د مخکې په څېر خاوند او مابنه پاتيږي، او غلام آزادیږي او د هغه ولاء به د معتِق (مالک) لپاره وي او پر آمر یعني پر ښځې هیڅ عوض نه واجبیږي.

امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې مخکنۍ (تېره) مسئله و دا مسئله دواړې په حکم کې برابرې دي، یعني آمر (ښځه) که د مال ذکر وکړي او که یې نه وکړي په دواړو صورتونو کې عتق (آزادول) د هغې له طرفه ثابتیږي، او څرنګه چې په تېره مسئله کې د خاوند (غلام) او ښځې تر مینځ نکاح فاسده وه، همدارنګه په دې مسئله کې هم د هغو نکاح فاسدیږي.

**د امام ابو یوسف دليل**: **لأنه يقدّم إلخ**: د امام ابو یوسف دلیل دا دی چې څرنګه په تېره مسئله کې د عاقل، بالغ (آمر) د کلام د صحت (صحیح کېدلو) لپاره اقتضاءً د هغه ملکیت مقدم منل کیږي، همداسې به په دې مسئله کې هم د عاقل، بالغ د کلام د صحت په خاطر د هغه ملکیت مقدم منل کیږي، او د دواړو مسئلو تر مینځ به فقط دا فرق وي چې په تېره مسئله کې به تقدیمُ الملک بالعوض وي او دلته به بدون العوض د هبې په شکل وي (یعني په مخکنۍ مسئله کې به ملکیت د عوض [ألف] سره مخکې منل کیږي او دلته به بېله عوضه د هبې په توګه ملکیت مخکې منل کیږي). او که څوک دا اعتراض وکړي چې د هبې لپاره خو قبضه شرط ده او د ملکیت د مخکې منلو په صورت کې هیڅ قبضه نسته (یعني په دې صورت کې قبضه مفقوده ده)، نو د هغه جواب دا دی چې کله په تېره مسئله کې د "أَعْتِقْهُ...(إلخ)" جمله د بیع او شراء په تأویل سره واوښتله نو هلته هم د بیع یو أهم رکن یعني "قبول" ساقط سو، لهذا کله چې د رکن اسقاط ممکن دی نو د شرط په فقدان یا اسقاط کې څه حرج نسته، لهذا په دې صورت کې به "أَعْتِقْهُ...(إلخ)" د "هَبْهُ لِي ثُمَّ أَعْتِقْهُ عَنِّي" په معنیٰ سره وي، او د قبضې په نشتوالي او سقوط سره به پر دې هیڅ اثر نه پرېوځي، ځکه چې د قبضې د سقوط نور مثالونه هم سته.

مثلاً که پر یو سړي د ظهار کفاره واجب وي او د غه سړی یو بل ته ووايي چې زما له طرفه شپېتو (۶۰) مسکینانو ته خوراک ورکړه! او هغه (مأمور) شپېتو مسکینانو ته خوراک ورکړي، نو

دلته که څه هم دآمر له طرفه قبضه راغلې نه ده، خو بیا هم دا حکم او اطعام (خوراک ورکول) دواړه صحیح دي او آمر برئ الذمه ګرځي، نو څرنګه چي دلته بېله قبضې کفاره اداء کیږي، نو همداسي به په دغه (پورتنۍ) مسئله کي هم دآمر له قبضې څخه بغیر ملکیت مخکښي منل کیږي او عتق به دهغه له طرفه واقع کیږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي دهبې د صحت لپاره د قبضې شرط کېدل په نص (حدیث: لَا تَصِحُّ الْهِبَةُ إِلَّا مَقْبُوضَةً) سره ثابت دي، لهذا کله چي دا په نص سره ثابت دي نو دا به نه د رکن پر سقوط باندي په قیاس کولو سره ساقطېدای سي او نه به اقتضاءً ثابتېدای سي؛ ځکه چي دا (قبضه) د قول له جنس څخه نه ده چي دا دي دیو بل قول (مثلاً د أُعْتَقْتُ الخ) په ضمن کي ثابته ومنل سي، بلکي دا یو حسّي فعل دی چي د دې معتبریّت او وجود ساقطېدای نه سي، او نه دا پر بیع قیاس کېدای سي، ځکه چي بیع "یو شرعي تصرف" ته وایي کوم چي د قول له جنس څخه دی، نو د قول (مثلاً د أعتقه الخ) په ضمن کي دهغه ثابتېدل ممکن دي لکه په بیع کي تعاطی کي چي دبیع دأرکانو (ایجاب او قبول) ساقطېدل ممکن دي، نو کله چي دبل قول په ضمن کي دبیع ثبوت هم ممکن دی او په بیع تعاطی کي دبیع دأرکانو سقوط هم ممکن دی، نو بیا به پر دې باندي قیاس کول څرنګه صحیح وي!؟.

وفي تلك المسئلة الخ: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پورتنۍ مسئله پر ظهار قیاس کړې وه، صاحب د کتاب په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي، فرمایي چي د کفارۀ ظهار په مسئله کي د قبضې په حق کي فقیر د آمر نائب جوړیږي او قبضه ثابتیږي (یعني فقیر دآمر له طرفه پر خوراک قبضه کوي لکه په زکاة کي چي فقیر د الله له طرفه پر زکاة قبضه کوي)، لېکن دلته (په پورتنۍ مسئله کي) غلام تر آزادېدلو وروسته خالي لاس پاتیږي (ځکه چي إعتاق د ملکیت إزالې او د مالیت إتلاف ته وایي) او هغه بالکل د دې قابل نه پاتیږي چي د آمر نیابت وکړي، لهذا دلته هبه بدون القبضه پاتیږي (یعني په دې پورتنۍ مسئله کي هبه له قبضې څخه بغیر ثابتیږي او قبضه نه پکښي راځي)، او اوس موږ وویل چي په شریعت کي د دې (بدون القبض هبې) هیڅ اعتبار نسته؛ لهذا د قبضې د نشتوالي په حواله سره په دواړو مسئلو کي فرق دی، نو یوه پر بلې قیاسول بالکل صحیح نه دي.



# بَابُ نِكَاحِ أَهْلِ الشِّرْكِ

(دا) باب (په بیان کي) د مشرکینو د نکاح دی

**تشریح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب د "رقیق" (غلام) د نکاح احکام بیان کړل. اوس له دې ځایه د مشرکینو د نکاح احکام بیانوي، ځرنګه چي مشرک او کافر د غلام په نسبت زیات خسیسه او د ټیټي درجې وي، نو ځکه یې د "رقیق" احکام د مشرکینو د نکاح تر احکامو مخکي بیان کړل.

مشرك: هغه بدبخته کافر ته وایي چي د خدای سره یو څوک شریک ګڼي (یعني د خدای د وجود اقرار خو کوي، لېکن په خدایي کي د هغه سره یو څوک شریک ګڼي)، او په دې باب کي له "أهلُ الشرک" څخه مراد مطلقاً کافر دی او مشرک او منکر دواړو ته شامل دی.

## د کفر او شرک په حالت کي په غلطه طریقه سره د نکاح کونکو لپاره تر اسلام را وړلو وروسته احکام

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْكَافِرُ بِلَا شُهُودٍ او کله چي کافر له ګواهانو څخه بغیر [دیو کافري ښځي سره] نکاح وکړي أَوْ فِي عِدَّةِ كَافِرٍ یا د یو کافر په عدت کي [دیو کافري ښځي سره نکاح وکړي] وَذٰلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ او دا د هغو په مذهب کي جائز وي ثُمَّ أَسْلَمَا بیا دواړه اسلام راوړي أُقِرَّا عَلَيْهِ نو دوی دواړه پر دغه نکاح باقي پاتیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ؒ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَ زُفَرُ ؒ: اَلنِّكَاحُ فَاسِدٌ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چي په دواړو صورتونو کي نکاح فاسده ده إِلَّا أَنَّهُ لَا يُتَعَرَّضُ لَهُمْ قَبْلَ الْإِسْلَامِ وَالْمُرَافَعَةِ إِلَى الْحُكَّامِ خو تر اسلام راوړلو او قاضیانو [او دار القضاء] ته د مسئلې تر پېشولو مخکي به په هغوی هیڅ کار نه لرل کیږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ كَمَا قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په اول صورت کي داسي فرمایلي دي ځرنګه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایلي دي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي كَمَا قَالَ زُفَرُ ؒ او په دویم صورت کي یې د امام زفر رَحِمَهُ

الله په څير فرمايلي دي لَهُ: أَنَّ الْخِطَابَاتِ عَامَّةٌ عَلَى مَا مَرَّمِنْ قَبْلُ د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [د شريعت] خطابات عام دي. لکه مخکي چي دا خبره تېره سوه فَتَلْزَمُهُمْ نو [د مسلمانانو په څير] به دا خطابات پر کفارو [هم] لازم وي وَإِنَّمَا لَا يُتَعَرَّضُ لَهُمْ لِذِمَّتِهِمْ إِعْرَاضًا خو د هغوی د ذمي والي په وجه به [له هغو څخه] د إعراض کولو په توګه په هغوی کار نه لرل کيږي لَا تَقْرِيْرًا نه د ثابتولو [او تائيد کولو] په توګه فَإِذَا تَرَافَعُوا أَوْ أَسْلَمُوا وَالْحُرْمَةُ قَائِمَةٌ او کله چي هغوی [قاضي ته خپله] مسئله پېش کړي يا اسلام راوړي په داسي حال کي چي حُرمت قائم وي وَجَبَ التَّفْرِيْقُ نو [د خاوند او ښځي ترمينځ] به تفريق کول واجب وي وَلَهُمَا: أَنَّ حُرْمَةَ نِكَاحِ الْمُعْتَدَّةِ مُجْمَعٌ عَلَيْهَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د عدت تېرونکي ښځي د نکاح حرمت متفق عليه دی فَكَانُوا مُلْتَزِمِيْنَ لَهَا لهذا کفار هم به د دې پابند وي [يعني پر کفارو به هم دغه حرمت لازم وي] وَحُرْمَةُ النِّكَاحِ بِغَيْرِ شُهُوْدٍ مُخْتَلَفٌ فِيْهَا او له ګواهانو څخه بغير د نکاح حرمت مختلف فيه دی وَلَمْ يَلْتَزِمُوْا أَحْكَامَنَا بِجَمِيْعِ الِاخْتِلَافَاتِ او کفارو د ټولو اختلافاتو سره زموږ د احکامو التزام نه دی کړی [مطلب دا چي کفارو پر خپل ځان زموږ مختلف فيه مسائل نه دي لازم کړي بلکي هغو زموږ د متفق عليه مسائلو التزام کړی دی. نو ځکه به د هغوی نکاح جائز وي] وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ الْحُرْمَةَ لَا يُمْكِنُ إِثْبَاتُهَا حَقًّا لِلشَّرْعِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی : چي د شريعت د حق په وجه [دلته] د حرمت ثابتول ممکن نه دي لِأَنَّهُمْ لَا يُخَاطَبُوْنَ بِحُقُوْقِهِ ځکه چي کفار د شريعت په حقوقو مخاطب نه دي وَلَا وَجْهَ إِلَى إِيْجَابِ الْعِدَّةِ حَقًّا لِلزَّوْجِ او د خاوند د حق په وجه د عدت واجبولو هيڅ صورت نسته لِأَنَّهُ لَا يَعْتَقِدُهُ ځکه چي هغه [کافر خاوند] د عدت واجبېدلو عقيده نه لري بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ تَحْتَ مُسْلِمٍ په خلاف د هغه صورت کله چي کافره ښځه د يو مسلمان په نکاح کي وي لِأَنَّهُ يَعْتَقِدُهُ ځکه چي مسلمان د عدت واجبېدلو اعتقاد لري وَإِذَا صَحَّ النِّكَاحُ فَحَالَةُ الْمُرَافَعَةِ وَالْإِسْلَامِ حَالَةُ الْبَقَاءِ او کله چي [د کفر په حالت کي] نکاح صحيح ده نو [قاضي ته] د مسئلي پېشولو او د اسلام راوړلو حالت د بقاء حالت دی وَالشَّهَادَةُ لَيْسَتْ شَرْطًا فِيْهَا او په حالت د بقاء کي ګواهي شرط نه ده وَكَذَا الْعِدَّةُ لَا تُنَافِيْهَا او همدارنګه عدت [هم] د بقاء د

حالت منافي نه دی كَالْمَنْكُوْحَةِ إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ لكه [د بل چا] د منكوحه ښځي سره چي په شُبهه وطي وسي.

**اللغات**: ﴿شُهُوْد﴾ جمع د شَاهِدٌ ده: ګواه (شاهدي اداء كونكى)، ﴿أُقِرَّا﴾ د افعال له باب څخه د تثنيه مذكر غائب ماضي مجهول صيغه ده: باقي ساتل، باقي پرېښول، ﴿لَا يَتَعَرَّض﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: تعرّض كول، كار په لرل، لاس په وهل، دخل اندازي كول، ﴿مُرَافَعَة﴾ د حاكم او قاضي مخته مسئله پېشول، مقدمه درجول، عدالت ته خپله معامله پېشول ﴿خِطَابَات﴾ احكامات (شرعي حكمونه)، ﴿إِعْرَاض﴾ د افعال مصدر دی: اعراض كول، مخ اړول، توجه نه كول، ﴿تَقْرِيْر﴾ د تفعيل مصدر دی: ثابتول، باقي ساتل، ﴿تَفْرِيْق﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: سره جلا كول، عليحده كول.

**تشريح**: د دې باب مسئلې پر دريو (٣) أصولو مبني دي: ① ... اول دا چي كومه نكاح د مسلمانانو تر مينځ صحيح كيږي هغه د دوو كافرانو په مينځ كي هم صحيح كيږي، د همدې معنىٰ په هكله د نبي كريم ﷺ دا قول وارد سوی دی: "وُلِدْتُ مِنْ نِّكَاحٍ لَا مِنْ سِفَاحٍ" (يعني زه له نكاح څخه پيدا سوی يم نه له زنا څخه)، ② ... دويم أصول دا دی چي كومه نكاح د مسلمانانو تر مينځ د شرط او داسي نورو په نشتوالي (معدوميت) سره فاسديږي يا باطليږي، په كافرانو كي د هغه دوه صورتونه دي: يو دا چي كفار هم داسي نكاح ممنوع ګڼي نو هغه ممنوع ده، او كه كفار هغه جائز ګڼي نو د امام صاحب په نېز د كافرانو په حق كي هغه نكاح صحيح ده حتىٰ كه دواړه مسلمانان سي نو د دوی هغه نكاح باقي ده (له نوي سره د نكاح كولو ضرورت نسته)، ③ ... دريم اصول دا دی چي كومه نكاح د محل د حُرمت په وجه حرامه وي (مثلاً د خور او داسي نورو سره نكاح كول) نو دا به د كفارو پر عقيده جائز واقع كيږي، او د عراق د مشائخو په نېز په هر صورت كي فاسديږي.

**صورت د مسئلې**: دا دی كه يو (ذمي) كافر له ګواهانو څخه بغير د يوې كافري ښځي سره نكاح (واده) وكړي، يا كافره ښځه د يو بل كافر خاوند په عدت كي وي او د عدت په دوران كي يو كافر د هغې سره نكاح وكړي او دا د دوی په دين كي جائز هم وي، او بيا دواړه مسلمانان سي، نو د امام صاحب په نېز د دوی نكاح صحيح ده او د نكاح د تجديد (نوي كولو) ضرورت نسته يعني دوی پر مخكنۍ نكاح باقي پاتيږي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو كي نكاح فاسده ده، خو تر څو چي هغوی اسلام راوړی نه وي يا يې زموږ دارُ القضاء (يعني مسلمان حاكم) ته خپله معامله او مسئله پېشه كړي

نه وي تر هغه وخته به هیڅ نه ورته ویل کیږي (هیڅ کار به نه پر لرل کیږي) او پر خپل حالت به پرېښوول کیږي (او کله چې مسلمانان سي یا د دارُ القضاء ته خپله فیصله راوړي نو بیا به د اسلام مطابق د دوی په مینځ کې فیصله کیږي)، او صاحبین رَحِمَهُمَا الله په اول صورت کې یعني له ګواهانو څخه بغیر د نکاح کولو په صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دي، او په دویم صورت کې د امام زفر رَحِمَهُ الله سره دي، او همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مسلک هم دی.

**د امام زفر دلیل:** دا دی چې په کومو ځایونو او مواقعو کې چې شریعت خلک مخاطب کړي وي، په هغه ټولو مواقعو کې عموم دی او د شریعت خطاب د هیڅ مذهب او فرقې د منونکو سره خاص نه دی، لهذا د نکاح او د نکاح د متعلقاتو په هکله چې په "لَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ" او په "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِشُهُوْدٍ" سره چې کوم خطاب سوی دی، دا عام دی، لهذا څرنګه چې پر مسلمان د شریعت خطابات لازم او واجب دي، همداسې به پر کافر هم (په دارُ الاسلام کې) هغه ټول لازم او ضروري وي، او څرنګه چې د عدت په دوران کې د بل چا معتدې ښځې (معتدۃُ الغیر) سره نکاح کول یا له نکاح څخه بغیر نکاح کول د مسلمانانو په حق کې ممنوع او نا روا دي، نو همداسې به د کافرانو لپاره هم داسې نکاح کول ممنوع وي، لهذا نه به د داسې نکاح د جواز فتویٰ ورکول کیږي او نه به نافذیږي.

**وإنما لایتعرض إلخ:** دا د امام زفر رَحِمَهُ الله له طرفه د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چې کله کفار (ذمیان) د شریعت په خطاباتو مکلّف دي او د غه خطابات پر هغوی هم لازم دي، نو څرنګه چې د اسلامي احکامو د نه عملي کولو په وجه مسلمانانو ته زجر، توبیخ او تنبیه ورکول کیږي او پر خپل حالت نه پرېښوول کیږي، همداسې د کفارو (ذمیانو) سره هم پر غیرِ شرعي حرکتونو د غه معامله کول پکار دي، لیکن موږ وینو چې د پورتنیو خطاباتو پر نه عملي کولو هغو ته هیڅ زجر او توبیخ نه ورکول کیږي بلکې پر خپل حالت پرېښوول کیږي، او د مسلمانانو له طرفه هیڅ کار نه په لرل کیږي.

د دې په جواب کې صاحب د هدایې فرمایي چې په داسې حرکتونو کې چې د کافرانو په خلاف څه کاروایي نه کیږي او هیڅ کار نه په لرل کیږي، د دې وجه دا ده چې د هغو سره مسلمانانو د تعرض پر نه کولو عقد ذمه کړی دی (یعني أهلِ اسلام د هغو سره دا عقد کړی دی چې تاسو موږ ته خپله جزیه راکوئ! موږ په تاسې هیڅ کار نه لرو، تاسو او خپل دین پوه سئ!)، دا کار نه په لرل او تعرض نه کول په دې وجه دي چې د هغو له اعمالو څخه اعراض وسي او د اسلام سپېڅلې او مقدسه لمن د هغو له غلیظو حرکاتو څخه وساتل سي (لکه د یو غلیظ او بدژبي کس څخه چې شریف خلک ځان ساتي او دا خبره کوي

چي "له مردارو اُوبو څخه خپل کالي ساته! د هغه سره څه کار مه لره! کنې تا به هم داغداره کړي!!! او داسي نور).

**فإذا ترافعوا إلخ**: په دې سره دا خبره بیانوي چي تر کومه وخته کفارو خپله معامله تر خپل ځانه پوري محدوده ساتلې وي تر هغه وخته به په دوی هيڅ کار نه لرل کيږي، لېکن کله چي دوی خپله معامله مسلمان حاکم او دار القضاء ته پېش کړي، نو بيا به د هغو دغه نکاح فاسده ګرځول کيږي او د ښځي او خاوند تر مينځ به تفريق کيږي، ځکه چي الله ﷻ فرمايلي دي: "وَ أَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَائَهُمْ"، په دې آيت کي د "هُمْ" ضمير د کفارو طرف ته راجع دی، او د آيت مفهوم دا دی چي "ته د کفارو په مينځ کي د الله د حکم د مطابق فيصله کوه! او د هغوی خواهشاتو ته مه ګوره!". په دې آيت کي په ښکاره توګه دا حکم سوی دی چي مسلمان حاکم به د کفارو په مينځ کي د شريعت مطابق حکم او فيصله کوي، او څرنګه چي په شريعت کي دغه دواړه قسمه نکاح ګاني فاسدي دي، نو ځکه به د دوی په مينځ کي تفريق کيږي.

**ولهما إلخ**: د صاحبينو د دليل حاصل دا دی چي د غيرِ معتدې ښځي سره نکاح کول خو د ټولو امامانو په اتفاق سره ناجائز او حرام دي، لېکن له ګواهانو څخه بغير د نکاح په حرمت کي د امامانو اختلاف دی، هغه دا چي امام مالک او ابن ابي ليلیٰ او داسي نور دا حلال او جائز ګڼي (فتح القدير، بنايه)؛ او کفارو (ذميانو) زموږ د متفق عليه احکامو التزام کړي دی، لېکن د مختلف فيها احکامو التزام يې نه دي کړی (يعني هغوی پر ځان زموږ د اختلافي احکامو التزام کړی نه دی) نو کله چي د معتدة الغير د نکاح حرمت متفق عليه دی، او د ټولو په نېز د هغې سره د مسلمان نکاح فاسده ده، نو ځکه به د کافر (ذمي) نکام هم فاسده وي او په اسلام يا دار القضاء ته په راتلو سره به د دوی په مينځ کي تفريق کول واجب وي، او څرنګه چي له ګواهانو څخه بغير د نکاح حرمت مختلف فيه دی، نو ځکه به کفار په دې حکم کي د مسلمانانو تابع نه وي، بلکي د دوی په حق کي به دغه نکاح صحيح او جائز وي.

صاحب د کتاب مخکي هم دې ته اشاره وکړه چي صاحبين د معتدةُ الغير په هکله د امام زفر رَحِمَهُ الله سره دي، او په نکاح بِلَا شُهُود کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دي يعني د دوی په نېز هم داسي نکاح صحيح ده، نو اوس د هغه دليل بيانوي.

**ولأبي حنيفة إلخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي د معتدةُ الغير د نکاح حرامولو دوه صورتونه کېدای سي: ① اول دا چي د شريعت د حق په وجه هغه حرامه وګرځول سي، ② يا دا چي د خاوند د حق په وجه هغه حرامه وګرځول سي، او په پورتنۍ مسئله کي دواړه صورتونه ممکن نه

دي، د شريعت د حق په وجه حرامه ګرځول په دې وجه ممکن نه دي چې کفار د شريعت په حقوقو مکلف او مخاطب نه دي، او د خاوند د حق په وجه حرامه ګرځول ځکه ممکن نه دي چې هغه (کافر) د دې نکاح د حُرمت عقيده نه لري. لهذا کله چې د تحريم دواړي دروازې بندې دي، نو بيا به د حُرمت د نوي لارې لټون او تلاش نه کيږي بلکې د کفارو په حق کې به د هغو دغه مذکوره نکاح صحيح او جائز ګڼل کيږي، او د کافر او ښځې تر مينځ به تفريق نه کيږي.

**بخلاف إلخ**: د دې حاصل دا دی که يوه ذمي ښځه د مسلمان په نکاح کې وي، بيا مسلمان هغې ته طلاق ورکړي، نو اوس که د دې مسلمان خاوند په عدت کې يو کافر د هغې سره نکاح وکړي، نو دا نکاح صحيح نه ده؛ ځکه چې دلته د نکاح دويم صورت (يعني د معتدې ښځې سره د نکاح پر حُرمت د مسلمان خاوند معتقد کېدل) موجود دي، نو ځکه به دا نکاح صحيح نه وي.

لنډه دا چې له تېرو تفصيلو څخه دا خبره ښکاره سوه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دغه مذکوره دواړې نکاح ګاني صحيح دي، نو کله چې ابتداءً نکاح ګانې صحيح دي، نو په اسلام سره يا دارُ القضاء ته په پېشولو سره به د دې نکاح پر صِحّت (صحيح والي) هيڅ اثر نه پرېوځي، ځکه چې د اسلام او دارُ القضاء ته د پېشولو حالت د نکاح د بقاء حالت دی او د بقاء لپاره شهادت معتبر نه وي.

لهذا څرنګه چې د معتدةُ الغير نکاح صحيح ده، همداسې به نکاح بِلَا شُهُوْد هم صحيح وي، او څرنګه چې عدت هم د نکاح د حالتِ بقاء منافي نه دی، نو ځکه به د معتدةُ الغير نکاح هم صحيح وي.

**کالمنکوحة إلخ**: د حالتِ بقاء سره د عدت د نه منافي کېدلو د وضاحت لپاره صاحب د هدايې يو مثال بيانوي چې که د يو ښځې سره وطي بالشبهه وسي. يعني مثلاً يوه ښځه دا وګڼي چې زما خاوند مړ سوی دی او د يو بل چا سره نکاح وکړي او هغه وطي ور سره وکړي. وروسته اول خاوند راسي. نو اوله نکاح باقي ده، ځکه چې خاوند مړ سوی نه وو، او په همدغه حالت کې پر ښځې د دويم خاوند عدت واجبيږي، نو تاسې او ګورئ! چې د نکاح د بقاء په حالت کې هم عدت واجبيږي. نو معلومه سوه چې د نکاح د بقاء حالت د عدت منافي نه دی، او د کافر نکاح اوس د بقاء په حالت کې ده، نو ځکه به د هغه نکاح صحيح وي او د ښځې او د خاوند تر مينځ به تفريق نه کيږي.

## د كفر په حالت كې د خور يا لور سره د نكاح كونكي كافر د اسلام احكام

فَإِذَا تَزَوَّجَ الْمَجُوسِيُّ أُمَّهُ أَوْ ابْنَتَهُ او كله چې يو مجوسي د خپلې مور يا خپلې لور سره نكاح وكړي ثُمَّ أَسْلَمَا بيا دواړه اسلام راوړي فُرِّقَ بَيْنَهُمَا نو د دوى په مينځ كې به تفريق كيږي لِأَنَّ نِكَاحَ الْمَحَارِمِ لَهُ حُكْمُ الْبُطْلَانِ فِيمَا بَيْنَهُمْ عِنْدَهُمَا كَمَا ذَكَرْنَا ځكه چې د محارمو سره نكاح كول د كفارو په خپل مينځ كې د بطلان حكم لري د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [يعني د صاحبينو په نيز د مجوسيانو دغه نكاح باطله ده] كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْمُعْتَدَّةِ لكه د معتدې ښځې په باره كې چې مونږ دا [خبره] ذكر كړه وَوَجَبَ التَّعَرُّضُ بِالْإِسْلَامِ او په اسلام راوړولو سره [په كفارو] تعرض كول [او تنبيه وركول] واجب سو فَيُفَرَّقُ نو ځكه به [د دوى په مينځ كې] تفريق كيږي وَعِنْدَهُ لَهُ حُكْمُ الصِّحَّةِ فِي الصَّحِيحِ او د صحيح قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [د مجوسيانو] دغه نكاح د صحت حكم لري إِلَّا أَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ تُنَافِي بَقَاءَ النِّكَاحِ خو ذي رحم محرم كېدل د نكاح د بقاء منافي دي فَيُفَرَّقُ نو ځكه به تفريق كيږي بِخِلَافِ الْعِدَّةِ لِأَنَّهَا لَا تُنَافِيهِ په خلاف د عدت ځكه چې هغه د نكاح د بقاء منافي نه دی ثُمَّ بِإِسْلَامِ أَحَدِهِمَا يُفَرَّقُ بَيْنَهُمَا بيا په خاوند او ښځه كې د يوه په اسلام سره به د دوى تر مينځ تفريق كيږي [زمونږ د امامانو په اتفاق سره] وَبِمُرَافَعَةِ أَحَدِهِمَا لَا يُفَرَّقُ عِنْدَهُ او په دوى كې د يوه په مرافعه كولو سره به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تفريق نه كيږي خِلَافًا لَهُمَا ❁ په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله وَالْفَرْقُ: أَنَّ اسْتِحْقَاقَ أَحَدِهِمَا لَا يَبْطُلُ بِمُرَافَعَةِ صَاحِبِهِ او [په دواړو صورتونو كې] فرق دا دی: چې په دوى كې د يوه استحقاق د هغه د ملګري په مرافعه سره نه باطليږي إِذْ لَا يَتَغَيَّرُ بِهِ اعْتِقَادُهُ ځكه چې په مرافعه سره د هغه په اعتقاد [عقيده] كې هيڅ تغير نه راځي أَمَّا اعْتِقَادُ الْمُصِرِّ لَا يُعَارِضُ إِسْلَامَ الْمُسْلِمِ او كوم چې پر كفر د ټينګار كونكي اعتقاد دی نو هغه د مسلمان د اسلام سره معارض نه دی لِأَنَّ الْإِسْلَامَ يَعْلُو وَلَا يُعْلَى ځكه چې اسلام [همېشه] لوړ [او غالب] وي او [هيڅكله] نه مغلوب كيږي وَلَوْ تَرَافَعَا او كه دوى دواړه يو ځای مرافعه وكړي يُفَرَّقُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق به [د دوى په مينځ كې] تفريق كيږي لِأَنَّ

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٤٢٠). [القول الراجح ج:١، ص:٢٩٦]

مُرَافَعَتُهُمَا كَتَحْكِيْمِهِمَا ځکه چې د دوی مرافعه کول د دوی د حَکَم جوړولو په څېر دي [يعني د دوی لپاره قاضي ته خپله مسئله پېشول داسې دي لکه قاضي چې حَکَم (فيصله مند) جوړ کړي، نو ځکه به قاضي د دوی په مينځ کې د تفريق حکم کوي].

**اللغات**: ﴿مُصِرّ﴾ د افعال اسمِ فاعل دی: اصرار کونکی (ټينګار کونکی)، پر خپله خبره ولاړ، ﴿يَعْلُوْ﴾ د نصر له باب څخه د مضارع معلومي صيغه ده "لَا يُعْلٰی" د نفي مجهول صيغه ده: لوړېدل، پورته کېدل، غالبېدل، ﴿تَحْكِيْم﴾ د تفعيل مصدر دی: دريمګړی جوړول، حَکَم جوړول، د فيصله کولو لپاره يو څوک ټاکل (په لانجمنه مسئله کې څوک خپل دريمګړی (فيصله کونکی) جوړول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مجوسي (آتش پرست) د خپلې مور يا د خپلې لور يا د داسې قريبې سره نکاح وکړي چې هغه له محرمات ابديه وو څخه وي، بيا دواړه مسلمانان سي يا يو مسلمان سي، نو پر دې خبره د ټولو امامانو اتفاق دی چې تر اسلام وروسته به د دوی په مينځ کې تفريق کيږي، که څه هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه نکاح صحيح ده، او د مشائخِ عراق او صاحبينو په نېز باطله ده.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې څرنګه د معتدةُ الغير سره د نکاح کولو حرمت متفق عليه دی، او أهلِ اسلام او کفار ټوله په دې حکم سره مکلف دي، همداسې د محرماتو سره د نکاح کولو حرمت هم متفق عليه دی، لهذا څرنګه چې تر اسلام وروسته د معتدة الغير نکاح باطله او حرامه ګرځول کيږي، همداسې به د محرماتو نکاح هم تر اسلام وروسته کالعدم او باطله ګرځول کيږي او د زوجينو تر مينځ به تفريق کيږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې په اصل (او ابتداء) کې خو د خپلو محرماتو سره د مجوسيانو نکاح کول صحيح دي، او وجه د صحيح کېدلو هغه ده کوم چې مخکې بيان سوه چې د دې نکاح حرمت به يا د شريعت د حق په وجه وي يا به د خاوند د حق په وجه وي، او دلته دواړه صورتونه ممکن نه دي، د شريعت د حق په وجه خو ځکه حرمت ممکن نه دی چې کفار د شريعت په حقوقو مخاطب نه دي، او د خاوند د حق په وجه ځکه ممکن نه دی چې مجوسي خاوند د دغه نکاح د حُرمت عقيده نه لري، نو کله چې دلته د حُرمت دواړه صورتونه ناممکن دي، نو ځکه موږ وايو چې ابتداءً د محرماتو سره د مجوسي نکاح صحيح ده، لېکن کله چې هغه مسلمان سو او نکاح هم په حالت د بقاء کې ده (يعني نکاح باقي ده ځکه چې تر اسلام مخکې د هغه نکاح صحيح ده)، او په اسلام کې محرميت (د ښځې محرم کېدل) د ابتداء په حالت کې هم د نکاح منافي دي او د بقاء په حالت کې هم د نکاح منافي دي، نو ځکه به د مجوسي دغه نکاح باقي نه پاتيږي بلکې د ده او د ښځې په مينځ کې به تفريق کيږي. په خلا

ف د عدت، ځکه چې عدت د بقاء په حالت کې د نکاح منافي نه دی، نو د متعدةُ الغير نکاح به تر اسلام وروسته هم پاتې کېږي او د خاوند او ښځې تر مينځ به تفريق نه کېږي.

**فائده**: د صاحبينو أصول دا دی چې د کوم شي په باره کې زموږ د امامانو اختلاف وي نو پر کفارو د هغه منل لازم نه دي، او که ديو شي په باره کې يې اتفاق وي نو پر کفارو د هغه منل لازم او ضروري دي، خو تر څو چې هغوی په حالت د ذمه والي کې وي نو کار به نه په لرل کېږي، او تر اسلام راوړلو وروسته به دوی پر اسلامي احکامو مجبورول کېږي او د اسلامي طريقې مطابق به د دوی په مينځ کې فيصله کېږي.

د امام صاحب أصول دا دی چې د کفر په حالت کې چې کومه نکاح د کفارو لپاره جائز وي د هغه مطابق به د دوی نکاح صحيح او جائز وي، لېکن که د نکاح د بقاء په حالت کې حرمت واقع سي، نو بيا به نکاح ماتول کېږي او د خاوند او ښځې تر مينځ به تفريق کېږي.

<u>ثم بإسلام أحدهما إلخ</u>: د دې عبارت مطلب دا دی چې د خاوند يا ښځې په اسلام سره خو به د امام صاحب او صاحبينو په اتفاق د خاوند او ښځې تر مينځ تفريق کېږي، لېکن که له دوی (خاوند او ښځې) څخه يو تر اسلام مخکې دارُ القضاء او مسلمان حاکم ته خپله مسئله پېش کړي (يعني مرافعه وکړي)، نو په دې صورت کې صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د دوی په مينځ کې به تفريق کېږي، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به تفريق نه کېږي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله دا صورت د اسلام پر حالت قياسوي فرمايي چې څرنګه د يوه (خاوند يا ښځې) په اسلام سره تفريق واقع کېږي، همداسې به په مرافعه سره "يعني دارُ القضاء ته د يوه په راتللو او مسلمان حاکم ته د مسئلې په پېشولو سره" هم تفريق واقع کېږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل او په دواړو صورتونو کې د فرق وجه دا ده چې د ذمي والي په حالت کې چې کله خاوند او ښځې په رضا او خوښې سره نکاح وکړه، نو په دواړو کې د هر يوه پر بل څه حقوق لازم سول (مثلاً نفقه، سکنیٰ او داسې نور...)، او څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مخکنۍ نکاح صحيح ده، نو ځکه به د يوه په مرافعه سره د هغه بل پر حقوقو هيڅ اثر نه پرېوځي، ځکه څرنګه چې د يوه په اسلام سره د بل په اعتقاد او عقيده کې هيڅ بدلون او فرق نه راځي، همداسې به په مرافعه سره هم د هغه بل په عقيده کې هيڅ فرق نه راځي، خو څرنګه چې اسلام همېشه غالب او مُرجّح وي، نو ځکه به د اسلام په صورت کې تفريق واقع کېږي، لېکن په مرافعه کې د مُرجّح کېدلو هيڅ وجه نسته، نو ځکه به په دې صورت کې تفريق هم نه واقع کېږي.

**ولو تراافعا إلخ:** فرمايي كه خاوند او ښځه دواړه يو ځاى مرافعه وكړي، نو په هر صورت كي به د دوى په مينځ كي تفريق كيږي، ځكه چي د دواړو يو ځاى مرافعه كول داسي دي لكه بل څوک حَکَم (فيصله كونكى) جوړول، نو ګواكي دوى مسلمان حاكم او قاضي خپل حَكَم جوړ كړى، او د حَكَم جوړېدلو په صورت كي پر عام مسلمان هم د دوى په مينځ كي تفريق كول ضروري دي، نو د قاضي لپاره خو به طريقه اولىٰ سره د دوى په مينځ كي تفريق كول ضروري او لازم وي لأن ولاية القاضى أقوىٰ من ولاية غيره.

## د مرتد د نكاح بيان

وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ الْمُرْتَدُّ مُسْلِمَةً او [دا] جائز نه دي چي مرتد د يو مسلماني ښځي سره نكاح وكړي وَلَا كَافِرَةً وَلَا مُرْتَدَّةً او نه [دا جائز دي چي هغه] ديو كافري ښځي او مرتدي ښځي سره [نكاح وكړي] لِأَنَّهُ مُسْتَحِقٌّ لِلْقَتْلِ ځكه چي هغه [اوس] د وژلو مستحق دى وَالْإِمْهَالُ ضَرُورَةَ التَّأَمُّلِ او مهلت وركول د غور او فكر د ضرورت په خاطر دي وَالنِّكَاحُ يَشْغَلُهُ عَنْهُ او نكاح كول هغه [مرتد] له دي [غور او فكر كولو] څخه غافله كوي فَلَا يُشْرَعُ فِي حَقِّهِ نو ځكه به د هغه په حق كي نكاح كول مشروع [او روا] نه وي وَكَذَا الْمُرْتَدَّةُ لَا يَتَزَوَّجُهَا مُسْلِمٌ وَلَا كَافِرٌ او همدارنګه د مرتدي ښځي سره [هم] نه مسلمان نكاح كولاى سي او نه كافر لِأَنَّهَا مَحْبُوسَةٌ لِلتَّأَمُّلِ ځكه چي هغه د غور او فكر كولو لپاره قيد كړل سوې ده وَخِدْمَةُ الزَّوْجِ تَشْغَلُهَا عَنْهُ او د خاوند خدمت هغه له دې اغور او فكر كولو] څخه غافله كوي وَلِأَنَّهُ لَا يَنْتَظِمُ بَيْنَهُمَا الْمَصَالِحَ او په دې وجه هم چي [په نكاح كولو سره] د دوى تر مينځ [د نكاح] د مصلحتونو انتظام [او قيام] كېداى نه سي وَالنِّكَاحُ مَا شُرِعَ لِعَيْنِهِ بَلْ لِمَصَالِحِهِ او نكاح د خپل عين [ذات] په وجه نه ده مشروع سوې بلكي هغه د خپلو مصلحتونو [منافعو] په غرض سره مشروع سوې ده.

**اللغات:** ﴿إِمْهَال﴾ د افعال مصدر دی: مهلت وركول. ﴿تَأَمُّل﴾ د تفعّل مصدر دی: غور او فكر كول. ﴿مَحْبُوسَة﴾ د ضرب اسم مفعول دی: قيد كړل سوې، بندي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي مرتد كس نه ديو مسلماني ښځي سره نكاح كولاى سي او نه ديو كافري او مرتدي ښځي سره نكاح كولاى سي؛ د مسلماني ښځي سره خو ځكه نكاح نه سي

کولای چي د مسلماني ښځي اسلام د مرتد پر لرتداد غالب دی، او د "اَلْإِسْلَامُ يَعْلُوْ وَلَا يُعْلَى" په خاطر د يو مسلماني ښځي سره د هيڅ مرتد يا کافر نکاح نه سي کېدلای؛ او د مرتدي او کفاري ښځي سره ځکه مرتد نکاح نه سي کولای چي په شريعت کي دغه دواړو ته تر دريو ورځو پوري د غور او فکر کولو او د اسلام په هکله په ذهن کي دراغلو شبهاتو د ليري کولو موقع ورکول کيږي، او نکاح کول له دغو شيانو څخه دوی غافله کوي، نو ځکه به د دوی په خپل مينځ کي هم نکاح صحيح نه وي.

د مرتد په حق کي د نکاح نه کولو علت او دليل دا دی چي هغه د خپل ارتداد په وجه مباحُ الدم او واجبُ القتل دی او د نبوي فرمان "مَنْ غَيَّرَ دِيْنَهٗ فَاقْتُلُوْهُ" په خاطر هغه د قتل سوي کس په څير دی (ځکه چي د اسلام نه راوړلو په صورت کي تر دريو ورځو وروسته هغه قتل کيږي)، لهذا د هغه په حق کي د نکاح مصالح مفقود او معدوم دي (ځکه چي په دومره لږ موده کي د نکاح کولو او د هغه د مصالحو تر لاسه کولو لپاره د هغه سره هيڅ فرصت نسته، او مرتده ښځه که څه هم نه قتل کيږي، خو هغه د همېشه لپاره په بنديخانه کي قيدول کيږي، نو د هغې سره هم د دې فرصت نسته).

والإمهال إلخ: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله مرتد واجبُ القتل دی نو هغه سملستي قتل کول پکار دي، آخر هغه ته ولي مهلت ورکول کيږي او ولي نرمي ور سره کيږي، د دې په جواب کي فرمايي چي مرتد ته مهلت ورکول او په قتل کي يې تأخير کول د هغه د رعايت کولو او د هغه سره د همدردی کولو پر بناء نه دي، بلکي هغه په ته دې وجه مهلت ورکول کيږي چي هغه غور او فکر وکړي او د اسلام په هکله د خپلو شکونو او شبهاتو ازاله وکړي او بيا له شروع څخه اسلام راوړي.

وكذا المرتدة إلخ: فرمايي څرنګه چي د غور او فکر د ضرورت په وجه مرتد سره هيڅ څای خپله نکاح نه سي کولای، همدارنګه به مرتده ښځه هم د دغه ضرورت په خاطر نکاح نه سي کولای؛ ځکه چي د مرتد په څير مرتده ښځه هم د غور او فکر لپاره قيدول کيږي، او ښکاره خبره ده چي د خاوند خدمت کول او د هغه سره د وطي او جماع تعلقات ساتل د غور او فکر په لاره کي خنډ جوړيږي.

دويم دليل دا دی چي د نکاح مقصد محض د وطي او جماع تعلقات ساتل نه دي بلکي توالد او تناسل، عِفت او ځان پاک ساتل هم د نکاح له مصالحو او مشمولاتو څخه دي، او مرتدوالی د دې شيانو لپاره مانع او خنډ دی، نو په دې وجه به هم د دغه کسانو لپاره نکاح جائز نه وي.

## بچی په دین کې د پلار تابع کيږي او که د مور؟

وَإِنْ كَانَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ مُسْلِمًا او که یو د خاوند او ښځې مسلمان وي فَالْوَلَدُ عَلَى دِيْنِهِ نو بچی به د هغه پر دین وي وَكَذٰلِكَ إِنْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا وَلَهُ وَلَدٌ صَغِيْرٌ او همدارنګه که یو د دوی اسلام راوړي او د هغه یو کوچنی [نابالغه] بچی وي صَارَ وَلَدُهُ مُسْلِمًا بِإِسْلَامِهِ نو دغه بچی به [هم] د هغه د مسلمانېدلو په وجه مسلمان وي [یعني بچی به هم د هغه مسلمان پلار یا مور تابع کيږي او مسلمان به شمارل کيږي] لِأَنَّ فِيْ جَعْلِهِ تَبَعًا لَهُ نَظَرًا لَهُ ځکه چې د مسلمان [پلار یا مور] په تابع کولو کې د بچي لپاره مصلحت [او خير] دی وَلَوْ كَانَ أَحَدُهُمَا كِتَابِيًّا وَالْآخَرُ مَجُوْسِيًّا او که یو د خاوند او ښځې کتابي وي او بل مجوسي وي فَالْوَلَدُ كِتَابِيٌّ نو بچی به کتابي وي لِأَنَّ فِيْهِ نَوْعَ نَظَرٍ لَهُ ځکه چې په دې کې [هم] د بچي لپاره یو ډول مصلحت [ښېګڼه] سته إِذِ الْمَجُوْسِيَّةُ شَرٌّ مِنْهُ ځکه چې مجوسي کېدل تر کتابي کېدلو ډېر بد دي وَالشَّافِعِيُّ يُخَالِفُنَا فِيْهِ لِلتَّعَارُضِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د تعارض په وجه په دې مسئله کې زموږ مخالفت کوي وَنَحْنُ أَثْبَتْنَا التَّرْجِيْحَ او موږ ترجیح ثابته کړه [چې د مسلمان په تابع کولو کې د بچي مصلحت او فایده ده].

**اللغات:** ﴿نظر﴾ شفقت، مصلحت (ښېګڼه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د کفر په حالت کې کافره ښځه د خپل کافر خاوند په وطۍ سره حامله سوې وي، بیا ښځه یا خاوند مسلمان سي او تر دې وروسته د ښځې بچی پیدا سي، نو په دې صورت کې به دا بچی د خپل مسلمان پلار یا مسلماني مور تابع کيږي او مسلمان به شمارل کيږي.

دویم صورت دا دی که د کفر په حالت کې د خاوند او ښځې کوچنی بچی هم وي او بیا ښځه یا خاوند مسلمان سي، نو په دې صورت کې به هم دا بچی د مسلمان پلار یا مور تابع کيږي او مسلمان به شمارل کيږي.

**لأن في جعله إلخ:** دلیل یې دا دی چې د بچي په مسلمان ګرځولو کې د هغه فایده او خیر دی چې هغه به جنت ته ولاړ سي او په دنیاوي ژوند کې به د دارُ الاسلام له طرفه ډېرې آسانتیاوې د هغه په برخه سي او امن به ورته حاصل سي او د کفارو په څېر به له ذلالت او خوار اېدلو څخه خوندي وي، نو ځکه به دغه بچی د مسلمان پلار یا مور په متابعت کې مسلمان شمارل کيږي.

**ولوكان أحدهما كتابياً إلخ**: د مسئلې دويمه حصه دا ده چې كه يو د خاوند او ښځې كتابي وي (يعني يهودي يا نصراني وي)، او بل مجوسي وي، نو بچې به د كتابي تابع كيږي او كتابي به شمارل كيږي: ځكه د دين په اعتبار سره مجوسي تر كتابي ډېر بد دي، ځكه چې يهودي او نصراني پر آسماني كتابونو يقين لري او مجوسي بدبخته پر هيڅ كتاب يقين نه لري، همدارنګه أهلِ كتاب په ځينې احكامو كي د مسلمانانو سره نژدې دي، مثلاً د هغو ذبيحه هم حلاله ده او د ښځو سره يې د مسلمان نكاح صحيح ده او په آخرت كي به هم د مجوسي په مقابله كي د كتابي عذاب سپک او كم وي، نو څرنګه چې دلته د مجوسيت په نسبت په كتابي شمارلو كي د بچې زياته فايده او ښېګڼه سته، نو ځكه به هغه د كتابي په متابعت كي كتابي شمارل كيږي.

**والشافعي إلخ**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې كه له خاوند او ښځې څخه يو كتابي وي او بل مجوسي وي نو بچې به د مجوسي تابع كيږي او مجوسي به شمارل كيږي؛ د تعارض پر بناء. د تعارض مطلب دا دی چې كه بچې كتابي وشمارل سي نو د هغه ذبيحه به حلاله وي او كه مجوسي وشمارل سي نو د هغه ذبيحه به حرامه وي، او قاعده دا ده چې كله حِلّت او حُرمت سره جمع سي، نو حُرمت ته ترجيح وركول كيږي، لهذا دلته به هم حُرمت ته ترجيح وركول كيږي او بچې به مجوسي شمارل كيږي.

**ونحن أثبتنا إلخ**: صاحب د كتاب د امام شافعي په جواب كي فرمايي چې صحيح ده! موږ ستا پورتنۍ قاعده تسليموو. خو په پورتني صورت كي زموږ رايه او زموږ مسلک غالب او مرجح دی: ځكه چې په كتابي شمارلو كي د بچې خير او فايده ده. نو په دې وجه به هغه كتابي شمارل كيږي.

## د "أحدُ الزوجين" د اسلام راوړلو بيان

**وَإِذَا أَسْلَمَتِ الْمَرْأَةُ وَزَوْجُهَا كَافِرٌ** او كله چې ښځه اسلام راوړي او خاوند يې [تر اوسه] كافر وي **عُرِضَ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ** نو پر هغه به اسلام پېشول كيږي [يعني د قاضي له طرفه به د اسلام دعوت وركول كيږي] **فَإِنْ أَسْلَمَ فَهِيَ امْرَأَتُهُ** نو كه هغه [هم] اسلام راوړي نو دا ښځه به [د مخكي په څير] د هغه ښځه [مائينه] وي **وَإِنْ أَبَى فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا** او كه هغه انكار وكړي نو قاضي به د دوى په مينځ كي تفريق كوي **وَكَانَ ذَلِكَ طَلَاقًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ** او دا [تفريق] به د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز طلاق وي **وَإِنْ أَسْلَمَ الزَّوْجُ وَتَحْتَهُ مَجُوسِيَّةٌ** او كه خاوند اسلام راوړي او د هغه په نكاح كي مجوسي ښځه وي **عُرِضَ عَلَيْهَا الْإِسْلَامُ** نو پر هغې به [هم] اسلام پېشول كيږي **فَإِنْ أَسْلَمَتْ فَهِيَ امْرَأَتُهُ** نو كه هغه اسلام راوړي نو هغه به د ده ښځه [مائينه] وي **وَإِنْ أَبَتْ فَرَّقَ الْقَاضِي**

بَيْنَهُمَا او که هغه انکار وکړي نو قاضي به د دوی په مينځ کي تفريق کوي وَلَمْ تَكُنِ الْفُرْقَةُ طَلَاقًا او دا تفريق به طلاق نه وي وَقَالَ أَبُويُوسُفَ ❁: لَا تَكُوْنُ الْفُرْقَةُ طَلَاقًا فِي الْوَجْهَيْنِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په [دغه] دواړو صورتونو کي به تفريق طلاق نه وي أَمَّا الْعَرْضُ فَمَذْهَبُنَا او [دلته چي] کوم د اسلام پېشولو حکم دی نو هغه زموږ مذهب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُعْرَضُ الْإِسْلَامُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [پر هغه کافر] به اسلام نه پېشول کيږي لِأَنَّ فِيْهِ تَعَرُّضًا لَهُمْ ځکه چي په دې [اسلام پېشولو] کي په کفارو تعرّض کول دي وَقَدْ ضَمِنَّا بِعَقْدِ الذِّمَّةِ أَنْ لَا نَتَعَرَّضَ لَهُمْ حال دا چي په عقد ذمه سره موږ [امنو ته] د دې ضمانت ورکړی دی چي موږ به په هغوی تعرض نه کوو إِلَّا أَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ غَيْرُ مُتَأَكِّدٍ خو دا چي تر دخول مخکي د نکاح ملکيت مؤکد [او مضبوط] نه وي فَيَنْقَطِعُ بِنَفْسِ الْإِسْلَامِ نو ځکه به محض په اسلام سره نکاح ختميږي وَبَعْدَهُ مُتَأَكِّدٌ او تر دخول وروسته نکاح مؤکده وي فَيَتَأَجَّلُ إِلَى انْقِضَاءِ ثَلَاثِ حِيَضٍ نو ځکه به [په دې صورت کي] تر دريو حيضونو پوري نکاح ځنډيږي [او تر هغه وروسته به ختميږي] كَمَا فِي الطَّلَاقِ لکه څرنګه چي په طلاق کي [هم داسي کيږي] وَلَنَا: أَنَّ الْمَقَاصِدَ قَدْ فَاتَتْ او زموږ دليل دا دی: چي [دلته] مقاصد [د نکاح] فوت سول فَلَا بُدَّ مِنْ سَبَبٍ تَبْتَنِيْ عَلَيْهِ الْفُرْقَةُ نو ځکه يو داسي سبب ضروري دی چي پر هغه تفريق مبني سي وَالْإِسْلَامُ طَاعَةٌ لَا يَصْلُحُ سَبَبًا لَهَا او اسلام يو طاعت دی کوم چي د فرقت لپاره د سبب جوړېدلو صلاحيت نه لري فَيُعْرَضُ الْإِسْلَامُ لِتَحْصُلَ الْمَقَاصِدُ بِالْإِسْلَامِ أَوْ تَثْبُتَ الْفُرْقَةُ بِالْإِبَاءِ نو ځکه به [پر کافر] اسلام پېشول کيږي چي د اسلام په وجه مقاصد [د نکاح] حاصل کړل سي يا د انکار په وجه تفريق ثابت [او مستحکم] کړی سي وَجْهُ قَوْلِ أَبِيْ يُوسُفَ: أَنَّ الْفُرْقَةَ بِسَبَبٍ يَشْتَرِكُ فِيْهِ الزَّوْجَانِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چي [دلته] فرقت د يو داسي سبب په وجه دی چي په هغه کي خاوند او ښځه دواړه سره شريک دي فَلَا يَكُوْنُ طَلَاقًا كَالْفُرْقَةِ بِسَبَبِ الْمِلْكِ نو د ملک په سبب سره د فرقت واقع کېدلو په څېر به دغه فرقت [هم] طلاق نه وي وَلَهُمَا: أَنَّ بِالْإِبَاءِ امْتَنَعَ الزَّوْجُ عَنِ الْإِمْسَاكِ بِالْمَعْرُوْفِ د طرفينو دليل دا دی: چي هغه [خاوند له اسلام څخه] د انکار کولو په وجه له "إمساک بالمعروف" څخه منع سو مَعَ قُدْرَتِهِ عَلَيْهِ بِالْإِسْلَامِ سره د دې چي هغه په اسلام راوړلو سره پر دې [إمساک بالمعروف] قدرت درلودی

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر في الدر المختار (ج:۲، ص:۴۲۳)، وكذا في الخانية (ج:۲، ص:۲۶۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹۸]

فَيَنُوبُ الْقَاضِيْ مَنَابَهُ فِي التَّسْرِيْحِ لهذا په "تسريح بالإحسان" کي به قاضي د هغه نائب [قائم مقام] كيږي كَمَا فِي الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ لكه [د خاوند] د ذَکَر پرېکېدلو او عنين كېدلو په صورت کي چي [قاضي د هغه نائب] كيږي أَمَّا الْمَرْأَةُ فَلَيْسَتْ بِأَهْلٍ لِلطَّلَاقِ او كوم چي ښځه ده نو هغه د طلاق اَهل نه ده فَلَا يَنُوبُ الْقَاضِيْ مَنَابَهَا عِنْدَ إِبَائِهَا لهذا د هغې دانکار په صورت کي به قاضي د هغې نائب نه جوړيږي ثُمَّ إِذَا فَرَّقَ بَيْنَهُمَا بِإِبَائِهَا بيا كه چيري قاضي د ښځي دانكار په وجه د خاوند او ښځي په مينځ کي تفريق وكړي فَلَهَا الْمَهْرُ إِنْ كَانَ دَخَلَ بِهَا نو د ښځي لپاره به مهر وي كه چيري خاوند په هغې دخول کړی وي لِتَأَكُّدِهٖ بِالدُّخُوْلِ ځكه چي په دخول سره مهر مؤكد كيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَخَلَ بِهَا او كه خاوند په هغې دخول نه وي کړی فَلَا مَهْرَ لَهَا نو د هغې لپاره به مهر نه وي لِأَنَّ الْفُرْقَةَ مِنْ قِبَلِهَا ځکه چي [دلته] فرقت [هم] د ښځي له طرفه دی وَالْمَهْرُ لَمْ يَتَأَكَّدْ او مهر [هم] مؤكد نه سو فَأَشْبَهَ الرِّدَّةَ وَالْمُطَاوَعَةَ نو دا مرتد كېدلو او مطاوعت سره مشابه سو.

**اللغات**: ﴿عُرِضَ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: پېشول، وړاندي كول. ﴿ضَمِنَّا﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: ضمانت وركول (ذمه واري اخيستل). ﴿عَقْدُ الذِّمَّةِ﴾ د ذمي والي معاهده (ترون). ﴿إِمْسَاكٌ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ په معاشره او ټولنه کي چي كومه طريقه مناسبه وي د ښځي سره د هغه طريقې مطابق سلوک او چلند کول. ﴿تَسْرِيْحٌ بِإِحْسَانٍ﴾ په احسان او ښه طريقه سره ښځه پرېښوول. ﴿جَبٌّ﴾ د تناسل آله (ذكر) پرېكېدل. ﴿عِنَّةٌ﴾ (د ډېر بوډا والي يا مرض په وجه) پر جماع قدرت نه لرل. ﴿مُطَاوَعَةٌ﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په يو كار كي د يو چا سره موافقت كول. اطاعت كول. د فقهاوو په اصطلاح "مطاوعة" دې ته وايي چي ښځه د خپل خاوند زوی ته پر ځان د جماع قدرت وركړي (په لنډه توګه دا چي ښځه په خپله رضا د مېرزي زوی سره زنا وكړي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه فقط ښځه مسلمانه سي او خاوند هغسي كافر پاته سي، نو اول به پر خاوند اسلام پېشول كيږي او د اسلام دعوت به وركول كيږي، كه چيري خاوند اسلام راوړي نو ښځه به د مخكي په څير د هغه ښځه (مايـنه) وي، لېكن كه د خاوند له عقل او شعور څخه پرده ليري نه سي او له اسلام راوړلو څخه انكار وكړي نو د دوی په مينځ کي به تفريق كيږي، او دا تفريق به د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز طلاق بائن شمارل كيږي، لېكن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به دغه تفريق طلاق نه، بلكي فسخ شمارل كيږي، او د فسخ شمارلو فايده دا ده چي كه خاوند اسلام راوړي او دويم وار د دې ښځي سره نكاح وكړي نو هغه به د دريو طلاقو مالک وي، لېكن د طرفينو په نېز به د دوو طلاقو مالک وي؛ ځكه چي دوی تفريق هم طلاقِ بائن شماري.

**وإذا أسلم الزوج إلخ**: د مسئلې دويمه حصه دا ده که خاوند مسلمان سي او د هغه په نکاح کي مجوسي ښځه وي، نو هغې ته به هم د اسلام دعوت ورکول کيږي، که چيري هغه اسلام قبول کړي نو د خاوند او ښځي تر مينځ به نکاح باقي پاتيږي، لېکن که ښځه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي نو په دې صورت کي به د دوی په مينځ کي هم تفريق کيږي، او دا تفريق به د امام ابو يوسف او طرفينو په اتفاق سره فسخ شمارل کيږي، يعني کله چي دغه خاوند او ښځه بيا نکاح سره وکړي نو د ټولو په نېز به خاوند د دريو طلاقو مالک وي.

خلاصه د خبري دا چي طرفين رَحِمَهُمَا الله په اوله مسئله کي (يعني کله چي خاوند له اسلام څخه انکار وکړي) تفريق طلاق شماري او په دويمه مسئله کي تفريق فسخ شماري، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دواړو مسئلو کي تفريق فسخ شماري.

**أمّا العرض إلخ**: له دې ځايه دا را ښيي چي په پورتني دواړو مسئلو کي (پر کافر خاوند يا ښځي) د اسلام پېشول او د اسلام دعوت ورکول زموږ په نېز دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به له اسلام پېشولو او دعوت ورکولو څخه بغير د دوی په مينځ کي تفريق کيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي موږ د ذميانو سره د تعرض نه کولو عهد او تړون کړی دی چي موږ به په تاسو هيڅ کار نه لرو، او ښکاره خبره ده چي د اسلام دعوت ورکول په هغو کار لرل او تعرض کول دي کوم چي زموږ د عهد او پيمان او د ورکړل سوي أمن وأمان معارض او مخالف دي، نو ځکه به له اسلام پېشولو څخه بغير به د دوی په مينځ کي تفريق کيږي، لېکن که تر دخول مخکي د اسلام راوړلو معامله واقع سوې وي (يعني په ښځي تر دخول مخکي خاوند يا ښځي اسلام راوړی وي)، نو څرنګه چي په دې حالت کي ملک د نکاح تر اوسه مؤکد او مستحکم سوی نه دی، نو ځکه به په دې صورت سملستي د دوی په مينځ کي تفريق کيږي او محض په اسلام سره به د دوی نکاح ختميږي، لېکن څرنګه چي تر دخول وروسته ملک د نکاح مستحکم او مضبوط سي، نو ځکه به په داسي صورت کي محض په اسلام سره د دوی په مينځ کي تفريق نه کيږي او محض د دين اختلاف او بدلون به د نکاح ختمېدلو سبب نه جوړيږي، بلکي په دې صورت کي به د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز تر دريو طهرونو پوري او د احنافو په نېز د يوه حيض تر ختمېدلو پوري ښځه عدت تېروي، تر دې وروسته به د دوی نکاح ختميږي.

صاحب د کتاب د امام شافعي رَحِمَهُ الله په دليل کي د عدت تېرولو په هکله حيض ذکر کړی دی او دا د هغه د مسلک خلاف دي؛ ځکه چي د هغه په نېز عدت حيض نه دی بلکي طهر دی، خو د

عبارت د تصحيح په توګه داسي هم ويل کېداسي چي په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله مطلب دا دی چي اې أحنافو! ستاسو په نېز مناسبه خبره دا ده چي د نکاح ختمېدل د دريو حيضو تر اختتام او تېرېدلو پوري وځنډول سي. نو په دې صورت کي عبارت صحيح کېږي. والله أعلم

**ولنا إلخ**: زموږ د دليل حاصل دا دی چي د نکاح چي کوم مقصد وو د اسلام راوړلو په وجه هغه ختم سو، لهذا اوس يو داسي سبب پکار دی چي پر هغه د تفريق بنياد کښېښول سي، او اسلام راوړل طاعت دی، لهذا پر هغه تفريق مبني نه سي کېدای، نو ځکه به پر هغه (خاوند يا ښځي) اسلام پېشول کېږي، چي د هغه پر انکار کولو د تفريق بنياد کښېښول سي او په هغه سره فُرقت (د نکاح ختمېدل) ثابت سي.

**وجه قول أبي يوسف إلخ**: څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په مذکوره دواړو صورتونو کي تفريق فسخ شماري؛ نو د هغه دليل دا دی چي دلته په دواړو مسئلو کي فرقت په داسي سبب سره واقع کېږي چي په هغه کي خاوند او ښځه دواړه شريک دي، ځکه څرنګه چي په دوی کي د يوه د اسلام راوړلو په وجه د دوی په مينځ کي تفريق واقع کېږي، همدارنګه په دوی کي د يوه پر کفر د پاتېدلو په وجه هم د دوی په مينځ کي تفريق واقع کېږي، لهذا کله چي د فرقت په سبب کي دواړه برابر شريک دي نو په حکم کي به هم دواړه سره برابر وي او دغه فُرقت به فسخ شمارل کېږي، طلاق به نه شمارل کېږي، کنې د خاوند د ملکيت په کمولو سره به د هغه په حق کي تعدی او ظلم واقع سي (يعني که دغه فرقت طلاق وشمارل سي نو د دويم ځل نکاح په صورت کي به خاوند فقط د دوو طلاقو مالک وي او يو طلاق به د هغه له ملکيت څخه کم سي، او دا د هغه په حق کي يو ډول تعدی او ظلم دی)، او دا مسئله داسي ده لکه خاوند او ښځه چي يو د بل مالک سي، نو په دې صورت کي هم د دوی په مينځ کي فرقت واقع کېدل فسخ شمارل کېږي، نه طلاق.

**ولهما إلخ**: د طرفينو مسلک مخکي تېر سو چي که خاوند اسلام راوړي او ښځه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي نو د دوی په مينځ کي به فرقت فسخ شمارل کېږي. او که ښځه اسلام راوړي او خاوند انکار وکړي نو هغه به طلاق شمارل کېږي. له دې ځايه د دوی دليل بيانوي، د دليل حاصل دا دی چي کله پر خاوند اسلام پېش کړی سو نو هغه پر دې قادر وو چي اسلام يې قبول کړي وای او ښځه يې په خپله نکاح کي باقي ساتلې وای (يعني هغه پر "إِمْسَاک بِالمَعْرُوْف" قادر وو)، لېکن له اسلام څخه د انکار په وجه هغه "إمساک بالمعروف" شاته وغورځوی، او څرنګه چي تر "إمساک بالمعروف" وروسته د "تسريح بالاحسان" (په ښه طريقه سره د ښځي پرېښوولو) درجه ده، نو ځکه به قاضي د هغه له طرفه نائب جوړېږي او د دوی په مينځ کي به تفريق واقع کوي، او د خاوند له طرفه د قاضي تفريق او جلا کول طلاق شمارل کېږي، لکه څرنګه چي د خاوند د عنين يا مقطوع الذکر کېدلو په

صورت کې قاضي د هغه له طرفه نائب جوړيږي او د دوی تر مينځ تفريق کوي او هغه طلاق شمارل کيږي، همداسې به دلته هم د خاوند له طرفه د قاضي دغه تفريق کول طلاق شمارل کيږي.

**أما المرأة فليس إلخ**: په دې سره دا خبره بيانوي چې که ښځه له اسلام راوړلو څخه انکار وکړي او د هغې د انکار په نتيجه کې تفريق واقع سي، نو دغه تفريق طلاق نه دی بلکې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په څير طرفين رَحِمَهُمَا الله هم دغه تفريق فسخ شماري؛ ځکه چې ښځه د طلاق أهل نه ده. لهذا قاضي چې د ښځې له طرفه د هغې د انکار په وجه کوم تفريق کوي هغه به فسخ وي، نه طلاق؛ ځکه کله چې ښځه د طلاق أهل نه ده، نو په "تسريح بالإحسان" کې د هغې له طرفه د نيابت هيڅ تصور نه سي کېدای.

**ثم إذا فرّق إلخ**: د دې حاصل دا دی چې د ښځې د انکار په صورت کې چې کله قاضي د ښځې او خاوند تر مينځ تفريق وکړي نو دلته دوه صورتونه دي: ① خاوند به په دې ښځې دخول کړی وي. ② يا به يې نه وي کړی، که چيري خاوند په ښځې دخول کړی وي نو په دې صورت کې به هغې ته خپل مهر ورکول کيږي؛ ځکه چې په دخول سره مهر مؤکد او مستحکم سو، لېکن که خاوند په هغې دخول نه وي کړی، نو څرنګه چې په دې صورت کې مهر مؤکد نه سو، او فرقت هم د هغې له طرفه واقع سوی دی (ځکه چې هغې انکار کړی دی)، نو ځکه به په دې صورت کې هغې ته هيڅ مهر نه ورکول کيږي، لکه څرنګه چې په هغه صورت کې هم ښځې ته هيڅ مهر نه ورکول کيږي کله چې ښځه تر دخول مخکې مرتده سي يا ښځه د خاوند زوی ته (يعنې مېرزي زوی ته) پر خپل ځان (د جماع کولو) قدرت ورکړي، همداسې به دلته هم ښځې ته هيڅ مهر نه ورکول کيږي.

## په دارُ الحرب کې د "أحدُ الزوجين" د اسلام راوړلو بيان

| |
|---|
| **وَإِذَا أَسْلَمَتْ الْمَرْأَةُ فِيْ دَارِ الْحَرْبِ وَزَوْجُهَا كَافِرٌ** او کله چې يو ښځه په دارُ الحرب کې اسلام راوړي او د هغې خاوند [تر اوسه] کافر وي **أَوْ أَسْلَمَ الْحَرْبِيُّ وَتَحْتَهُ مَجُوْسِيَّةٌ** يا يو حربي اسلام راوړي او د هغه په نکاح کې يو مجوسي ښځه وي **لَمْ تَقَعِ الْفُرْقَةُ عَلَيْهَا حَتّٰى تَحِيْضَ ثَلَاثَ حِيَضٍ** نو [تر هغه وخته] به پر ښځې فرقت نه واقع کيږي تر څو چې يې درې حيضونه تېر کړي نه وي **ثُمَّ تَبِيْنَ مِنْ زَوْجِهَا** بيا [تر دريو حيضونو وروسته] به هغه له خپل خاوند څخه بائنه کيږي **وَهٰذَا لِأَنَّ الْإِسْلَامَ لَيْسَ سَبَبًا لِلْفُرْقَةِ** او دا ځکه چې اسلام د فرقت سبب نه دی [يعنې اسلام د فرقت واقع کېدلو سبب نه سي جوړېدای] **وَالْعَرْضُ عَلَى الْإِسْلَامِ مُتَعَذِّرٌ لِقُصُوْرِ الْوِلَايَةِ** او د ولايت د ناقصوالي په وجه [کافر] پر اسلام پېشول مشکل |

دي وَلَابُدَّ مِنَ الْفُرْقَةِ دَفْعًا لِلْفَسَادِ حال دا چي د فساد لیري کولو لپاره فرقت [او تفریق] ضروري دی فَأَقَمْنَا شَرْطَهَا وَهُوَ مُضِيُّ الْحَيْضِ مَقَامَ السَّبَبِ نو ځکه موږ د فرقت شرط یعني د حیض تېرېدل د سبب قائم مقام کړل كَمَا فِي حَفْرِ الْبِئْرِ لکه د څاه کیندلو په مسئله کي [چي هم داسي کیږي] وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمَدْخُولِ بِهَا وَغَيْرِ الْمَدْخُولِ بِهَا او ازموږ په نېز] د مدخول بها ښځي او غیرِ مدخول بها ښځي په مینځ کي هیڅ فرق نسته وَالشَّافِعِيُّ يَفْصِلُ [لیکن] امام شافعي رَحِمَهُ الله [په دې دواړو کي] فرق کوي كَمَا مَرَّ لَهُ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ لکه د دارُ الاسلام والا په صورت کي چي د هغه فرق تېر سو وَإِذَا وَقَعَتْ الْفُرْقَةُ وَالْمَرْأَةُ حَرْبِيَّةٌ او کله چي فرقت واقع سي او ښځه حربیه وي فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا نو پر هغې به عدت واجب نه وي وَإِنْ كَانَتْ هِيَ الْمُسْلِمَةُ او که هغه [حربي ښځه] مسلمانه وي فَكَذَلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو هم دغه حکم دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [چي پر هغې به عدت واجب نه وي] خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله وَسَيَأْتِيكَ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او انشاء الله ژر به دا [مسئله] تا ته راسي.

**اللغات:** ﴿تَحِيْض﴾ د ضرب مضارع دي: ښځي ته حیض راتلل، حایضه کېدل. ﴿مُتَعَذِّر﴾ مشکل، ناممکن. ﴿قُصُوْر﴾ د نصر مصدر دی: ناقص کېدل (کمېدل)، نابشپړوالی. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب مصدر دی: تېرېدل. ﴿حَفْر﴾ د ضرب مصدر دی: کیندل، کنبل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په دارُ الحرب کي یو ښځه مسلمانه سي او د هغې خاوند کافر وي، یا یو حربي کافر مسلمان سي او د هغه په نکاح کي مجوسیه ښځه وي، نو په دې دواړو صورتونو کي به د خاوند او ښځي په مینځ کي تر هغه وخته تفریق نه کیږي تر څو چي ښځي درې حیض تېر کړي نه وي یا تر څو چي یې درې میاشتي تیري کړي نه وي (که چیري ښځه له "ذَوَاتُ الْحَيْضِ" څخه نه وي).

د دوی په مینځ کي به ځکه تفریق کیږي چي فتنه او فساد ختم کړل سي او اسلام پورته کړی سي او کفر ټیټ کړی سي، کنې د مجوسي ښځي سره به د مسلمان اوسېدل یا د کافر سره به د مسلماني ښځي اوسېدل لازم سي کوم چي د اسلام د تقاضا او اُصولو مخالف دي، لهذا تفریق کول خو په هر حال کي ضروري دي، خو په تېره مسئله کي دا خبره ذکر سوه چي اسلام د فرقت سبب نه سي کېدای، او د ښځي د اسلام راوړلو په صورت کي نیابت هم نه ثابتیږي ځکه چي ښځه د طلاق أهل نه ده، او څرنګه چي خاوند په دارُ الحرب کي دی نو پر هغه اسلام پېشول هم ممکن نه دي، ځکه چي په دارُ

الحراب کي د مسلمان حاکم (قاضي) حکم چلېدل هيڅ امکان نه لري، حال دا چي د دوی په مينځ کي تفريق کول ضروري دي، لهذا کله چي موږ د فرقت هيڅ سبب پيدا نه کړی نو موږ د سبب وشرط ته رجوع وکړه، او په دې قاعده سره مو فرقت شرط ته منسوب کړی چي "که د علت او سبب و طرف ته د حکم نسبت کول ناممکن وي نو د هغه د شرط و طرف ته به د حکم نسبت کيږي"، نو ځکه به دلته د دغه فرقت حکم د فرقت د شرط و طرف ته يعني د دريو حيضو د تېرلو و طرف ته منسوب کيږي او پر هغه به موقوف کيږي او تر دريو حيضو وروسته به د خاوند او ښځي په مينځ کي تفريق کيږي.

**کما في حفر البئر**: دا په اصل کي د سبب د شرط و طرف ته د حکم د نسبت کولو مثال دی، حاصل يې دا دی چي که څوک په لاره کي څاه وکيندي او په هغه لاره کي يو سړی تيرېږي او نابېره څاه ته ولوېږي او مړ سي يا سخت زخمي سي، نو څرنګه چي دلته د مړ کېدلو يا زخمي کېدلو نسبت د دغه تېرېدونکي سړي و طرف ته نه سي کېدلای، نو ځکه د دې پيښې نسبت د سبب د شرط وطرف ته يا د سبب د سبب يعني د څاه کيندلو وطرف ته کيږي (که څه هم د مړه کېدلو يا زخمي کېدلو ظاهري سبب په دې لار کي د هغه تېرېدل او تلل دي)، نو څرنګه چي دلته هم فرقت سبب نه سي جوړېدای، نو ځکه به د فرقت سبب او د هغه شرط يعني درې حيضه تېرول به د فرقت ذريعه جوړېږي او پر هغه به فرقت موقوفيږي.

**ولا فرق إلخ**: صاحب دکتاب فرمايي چي په دې مسئله کي پر دريو حيضو باندي د فرقت په موقوفولو کي زموږ په نېز هيڅ تفصيل او فرق نسته يعني د مدخول بها او غيرِ مدخول بها دواړو ښځو په حق کي به دغه فرقت جاري کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې دواړو کي فرق او تفصيل سته يعني که ښځه مدخول بها وي نو د هغې په حق کي به دا شرط جاري کيږي، لېکن که ښځه مدخول بها نه وي نو د هغې په حق کي به سمدستي (فوراً) فرقت او تفريق واقع کيږي او دا د دريو حيضو د تېرولو شرط به د هغې په حق کي نه جاري کيږي.

**وإذا وقعت إلخ**: فرمايي چي له فرقت واقع کېدلو څخه وروسته پر ښځي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز علت نه واجبيږي، برابره ده ښځه حربيه وي او که مسلمانه وي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مسلماني ښځي عدت واجبيږي، د دې اختلاف نور وضاحت او دليل به د مهاجري ښځي په مسئله کي بيان سي (چي هغه به څه وروسته ذکر سي)، فأنتظروا إنّي معکم من المنتظرين.

## د کتابي ښځې د خاوند د اسلام راوړلو بيان

وَإِذَا أَسْلَمَ زَوْجُ الْكِتَابِيَّةِ او کله چې د کتابي ښځې خاوند اسلام راوړي فَهُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا نو دوی دواړه پر خپله نکاح باقي پاتېږي لِأَنَّهُ يَصِحُّ النِّكَاحُ بَيْنَهُمَا ابْتِدَاءً ځکه چې د دوی په مېنځ کې ابتداءً [هم] نکاح صحيح ده فَلَأَنْ يَبْقَى أَوْلَى نو ابقاءً به په طريقه اولیٰ سره [د دوی نکاح] باقي پاتېږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند او ښځه دواړه کتابي وي (يعني يهودي يا نصراني وي)، بيا په دوی کې يو مسلمان سي، نو د دوی په نکاح کې هيڅ فرق نه راځي او دواړه د مخکې په شير مېړه او ماينه پاتېږي؛ ځکه چې د مسلمان او کتابي په مېنځ کې له ابتداء څخه هم نکاح جائز ده، نو د بقاء په حالت کې (يعني تر اسلام راوړلو وروسته) به په طريقه اولیٰ سره جائز وي؛ ځکه قاعده دا ده چې "البَقَاءُ أَسْهَلُ مِنَ الإِبتِدَاء" (يعني د ابتدائي حالت په مقابله کې د بقاء حالت زيات آسانه او له مشکل څخه ليرې وي).

## د "دار" په تباين او تفاوت سره د فرقت حکم

قَالَ: وَإِذَا خَرَجَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ إِلَيْنَا مِنْ دَارِ الْحَرْبِ مُسْلِمًا فرمايي: او کله چې يو د خاوند او ښځې له دار الحراب څخه زموږ طرف ته په حالت د اسلام کې راسي [يعني اسلام راوړي او زموږ دارُ الاسلام ته راسي] وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا نو د خاوند او ښځې په مېنځ کې فرقت [جدايي] واقع کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَقَعُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې فرقت نه واقع کيږي وَلَوْ سُبِيَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ او که يو له خاوند او ښځې څخه قيد کړی سي وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا بِغَيْرِ طَلَاقٍ نو له طلاق څخه بغير د دوی په مېنځ کې فرقت واقع کيږي وَإِنْ سُبِيَا مَعًا لَمْ تَقَعِ الْبَيْنُونَةُ او که دواړه يوځای سره قيد کړل سي نو د دوی په مېنځ کې بينونت نه واقع کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: وَقَعَتْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې واقع کيږي فَالْحَاصِلُ أَنَّ السَّبَبَ هُوَ التَّبَايُنُ دُوْنَ السَّبْيِ عِنْدَنَا نو خلاصه دا چې زموږ په نېز سبب د بينونت تباين د دار دی، نه قيدي کېدل وَهُوَ يَقُوْلُ بِعَكْسِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې برعکس وايي لَهُ: أَنَّ لِلتَّبَايُنِ أَثَرُهُ فِي انْقِطَاعِ الْوِلَايَةِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د تباين أثر د ولايت په ختمېدلو کې دی [يعني تباين د دارَينو د ولايت په انقطاع کې مؤثر دی] وَذٰلِكَ لَا يُؤَثِّرُ فِي

الْفُرْقَةِ لېکن د ولایت انقطاع په فرقت کي هيڅ اثر نه کوي كَالْحَرْبِيِّ الْمُسْتَأْمَنِ وَالْمُسْلِمِ الْمُسْتَأْمَنِ لکه أمان غوښتونکی حربي او أمان غوښتونکی مسلمان أَمَّا السَّبْيُ فَيَقْتَضِي الصَّفَاءَ لِلسَّابِي او کوم چي قيدي کېدل دي نو هغه د قيد کونکي لپاره [د قيدي] د خاص کېدلو [اختصاص] تقاضا کوي وَلَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِانْقِطَاعِ النِّكَاحِ او دغه اختصاص له نکاح ختمېدلو څخه بغير نه ثابتيږي وَلِهَذَا يَسْقُطُ الدَّيْنُ عَنْ ذِمَّةِ الْمَسْبِيِّ او له همدې کبله د قيد کړی سوي کس له غاړي څخه قرض ساقطيږي وَلَنَا: أَنَّ مَعَ التَّبَايُنِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا لَا تَنْتَظِمُ الْمَصَالِحُ او زموږ دليل دا دی: چي د دار د تباين سره د حقيقت او حکم دواړو په اعتبار سره د نکاح د مصالحو انتظام نه سي کېدلای ایعني په وجود کي نه سي راتلای] فَشَابَهَ الْمَحْرَمِيَّةَ نو دا د مَحرَم کېدلو سره مشابه سو وَالسَّبْيُ يُوجِبُ مِلْكَ الرَّقَبَةِ او قيدي کېدل فقط ملک رقبه ثابتوي وَهُوَ لَا يُنَافِي النِّكَاحَ ابْتِدَاءً او ملک رقبه ابتداءً [هم] د نکاح منافي نه ده فَكَذَلِكَ بَقَاءً نو همداسي به بقاءً [هم د نکاح منافي نه وي] وَصَارَ كَالشِّرَاءِ نو قيدي کېدل د رانيولو په څير سو ثُمَّ هُوَ يَقْتَضِي الصَّفَاءَ فِي مَحَلِّ عَمَلِهِ بيا قيدي کېدل د خپل عمل په محل کي د اختصاص [او خالص کېدلو] تقاضا کوي وَهُوَ الْمَالُ او هغه مال دی لَا فِي مَحَلِّ النِّكَاحِ نه په محل د نکاح کي وَفِي الْمُسْتَأْمَنِ لَمْ تَتَبَايَنِ الدَّارُ حُكْمًا او د أمان غوښتونکي په حق کي حکماً دار سره جلا نه دی لِقَصْدِهِ الرُّجُوعَ ځکه چي هغه [خپل دار ته] د واپس تللو اراده لري.

**اللغات:** ﴿بَيْنُونَةٌ﴾ د ضرب مصدر دی: جلا کېدل، جدايي. ﴿سُبِيَ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: بندي کېدل، قيدي کېدل. ﴿تَبَايُن﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل. ﴿مُسْتَأْمِن﴾ د استفعال اسم فاعل دی: أمان غوښتونکی (تر أمان غوښتلو وروسته داخلېدونکی)، ﴿صَفَاء﴾ خالص کېدل، مراد ځني خاص کېدل دي. ﴿سَابِيْ﴾ د ضرب اسمِ فاعل دی: بندي کونکی، قيدونکی (هغه کس کوم چي بل څوک قيدي کړی).

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي په دې قاعده ځان پوه کړئ! چي زموږ په نېز د بينونت (فرقت) د واقع کېدلو سبب دا دی چي د خاوند او ښځي دار حکماً او حقيقتاً سره جلا وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ

الله په نېز دبینونت واقع کېدلو سبب قیدي کېدل دي، همدا قول د امام احمد؟ او امام مالک رَحِمَهُمَا الله قول هم دی.

د دې قاعدې په رڼا کې د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه زموږ په نیز تباین د دارَینو دبینونت واقع کېدلو سبب دی، نو ځکه که له خاوند او ښځې څخه یو مسلمان سي او لهدارُ الحرب څخه دارُ الاسلام ته راسي؛ نو دبینونت د سبب واقع کېدلو په وجه زموږ په نېز د خاوند او ښځي په مینځ کي فرقت واقع کیږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرقت نه واقع کیږي؛ ځکه د هغه په نېز دبینونت سبب قیدي کېدل "سبی" دي، وهو لم يوجد.

ولو سبی أحد: د مسئلې دویمه حصه دا ده چې که له خاوند او ښځي څخه یو قیدي سي نو د ټولو په نېز بینونت واقع کیږي، زموږ په نېز خو ځکه واقع کیږي چې په قید سره هم تباین د دارَینو ثابتیږي، او د شوافعو په نېز ځکه واقع کیږي چې دبینونت سبب "سبی" موجود سو.

د مسئلې یوه بله حصه دا ده چي که خاوند او ښځه دواړه یو ځای قید کړل سي، نو څرنګه چي زموږ په نېز په دې صورت کي تباین د دارَینو متحقق نه دی، نو ځکه به فرقت نه واقع کیږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرقت واقع کیږي؛ ځکه چي "قیدي کېدل" موجود او متحقق سو.

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چي فقط تباین د دارَینو په فرقت کي مؤثر نه دی؛ ځکه چي تباین د دارَینو فقط دومره اثر لري چي په هغه سره ولایت ختمیږي، یعني که له خاوند او ښځي څخه یو په دارُ الحرب کي وي او بل په دار الاسلام کي وي نو بیا د یوه ولایت پر بل نه پاتیږي او له خپل ځان او مال څخه یې ملکیت ختمیږي، او فقط د ولایت او ملکیت ختمېدل د فرقت واقع کېدلو سبب نه سي جوړېدای، مثلاً که یو حربي کافر أمان طلب کړي او دارُ الاسلام ته پناه راوړي نو که څه هم له خپل نفس او مال څخه د هغه ملکیت ختم دی خو بیا هم د هغه او د ښځي په مینځ کي جدایي نه واقع کیږي، همدا حال د مسلمان دی چي که هغه أمان طلب کړي او دار الحرب ته ولاړ سي نو فقط له خپل ملکیت څخه محرومیږي، لېکن د هغه او ښځي په مینځ کي جدایي او فرقت نه واقع کیږي.

د دې په خلاف په قیدي کېدلو کي د ولایت او ملکیت ختمېدل هم ثابتیږي او د نکاح ختمېدل هم ثابتیږي، ځکه چي قیدي کېدل په اصل کي د دغه قیدي کس "اختصاص" یعني خاصول او خالص کول دي (مثلاً که دغه قیدي کس ښځه وي نو د مالک [قیدونکي] لپاره به د هغې سره د وطي کولو پوره حق وي ځکه چي په قید کېدلو سره دا ښځه د هغه لپاره خالصه سوه او د هغه سره خاص سوه) ، او ښکاره خبره ده چي خالص کېدل او خاصېدل له نکاح ختمېدلو څخه بغیر نه سي متحقق

کېدای، نو معلومه سوه چې په قیدي کېدلو کې په يوه غشي سره دوه ښکاره ورېشتل کیږي، نو ځکه موږ هغه د فرقت او بینونت واقع کېدلو سبب وګرځوی.

**زموږ دلیل:** زموږ د دلیل حاصل دا دی چې د حقیقت او حکم دواړو په اعتبار سره تباین د دارَینو د نکاح د مصالحو (يعني د سکنیٰ، جماع او د داسې نورو) په لاره کې خنډ او حائل جوړیږي، (حقیقتاً تباین د دارَینو دې ته وایي چې خاوند او ښځه دواړه په دوو جلا ملکونو کې استوګن وي، او حکماً تباین دې ته وایي چې یو په دائمي توګه په بل ملک کې مقیم سي، نه په عارضي توګه. او ښکاره خبره ده چې په دې صورتونو کې مصالح د نکاح نه سي حاصلېدای)، لهذا ځرنګه چې محرمیت د نکاح د مصالحو منافي دی (يعني کله چې تر نکاح وروسته معلومه سي چې خاوند او ښځې یو د بل ذي رحمِ محرمِ قریب دی، نو د دوی تر مینځ نکاح فاسدیږي او فرقت واقع کیږي)، همداسې تباین هم د نکاح د مصالحو منافي دی نو هغه به هم د فرقت او بینونت سبب ګرځي.

**والسبي إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې ستاسو دا خبره موږ هم منو چې قیدي کېدل د ملک رقبه سبب دی، لېکن تاسو غور وکړی چې ملک رقبه له نکاح څخه مانع نه دی، لهذا کله چې ملکِ رقبه ابتداءً له نکاح څخه مانع نه دی نو آخر په بقاء کې به څرنګه مانع سي!، سره د دې چې "البَقَاءُ أَسْهَلُ مِنَ الإِبْتِدَاء" (يعني د ابتداء په مقابله کې بقاء زیاته آسانه او له مشکل څخه لیرې ده)، او بل دا چې څرنګه د یو غلام په رانیولو سره د هغه نکاح نه ختمیږي، همداسې به په دې مسئله کې هم فقط په قید کېدلو سره په نکاح کې هیڅ فرق نه راځي.

**ثم هو إلخ:** په دې سره هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، فرمایي چې موږ دا نه منو چې قیدي کېدل د اختصاص او خالص کېدلو تقاضا کوي؛ ځکه چې قیدي کېدل د دې تقاضا کوي چې مالک دې د قیدي کس د رقبې او غاړې مالک جوړ سي او قیدي کس دې د هغه لپاره خاص سي، او د دې تقاضا نه کوي چې محل د نکاح (يعني منافع دبضع) دې د هغه لپاره خالص او خاص سي، يعني دا ضروري نه ده چې د يو ښځې په قیدولو سره دې مالک د هغې سره د وطي کولو حقداره سي، لکه يو څوک چې مینځه رانیسي نو هغه فقط د مینځې مالک ګرځي او د هغې سره د وطي کولو حقدار نه ګرځي.

**وفي المستأمن إلخ:** په دې سره هم امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي چې که څوک أمن واخلي او دارُ الإسلام یا دار الحرب ته داخل سي نو د هغه اراده خو د بیرته تللو او رجوع کولو وي (يعني هغه هلته نه پاتیږي بلکې اراده يې دا وي چې بیرته به خپل دار ته ځم) نو د حکم په اعتبار سره تباین ثابت نه سو، لهذا پر دې مسئلې قیاس کول او په خپل دلیل کې پېشول صحیح نه دي.

## له دارُ الحرب څخه د راتلونکي ښځي حکم

وَإِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ إِلَيْنَا مُهَاجِرَةً او کله چي يو ښځه زموږ وطرف ته هجرت کونکې راسي جَازَ لَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ نو د هغې لپاره [دا] جائز دي چي [في الحاله] نکاح وکړي وَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر هغې عدت واجب نه دی وَقَالَا❀: عَلَيْهَا الْعِدَّةُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغې عدت واجب دی لِأَنَّ الْفُرْقَةَ وَقَعَتْ بَعْدَ الدُّخُولِ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ ځکه چي دارُ الاسلام ته تر داخلېدلو وروسته [سمدستي] فرقت واقع سو فَيَلْزَمُهَا حُكْمُ الْإِسْلَامِ نو ځکه به اسلامي حکم پر هغې لازم وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا أَثَرُ النِّكَاحِ الْمُتَقَدِّمِ وَجَبَتْ إِظْهَارًا لِخَطَرِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي عدت د مخکنی نکاح أثر دی کوم چي د دې [مخکني نکاح] د احترام [عظمت] ځرګندولو لپاره واجب سوی دی وَلَا خَطَرَ لِمِلْكِ الْحَرْبِيِّ او د حربي ملکيت لره هيڅ احترام نه وي انو ځکه به پر هغې عدت نه واجبيږي] وَلِهَذَا لَا تَجِبُ عَلَى الْمَسْبِيَّةِ او له همدې کبله پر قيد کړل سوي ښځي عدت نه واجبيږي وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا او که دغه [مذکوره] ښځه حامله وي لَمْ تَتَزَوَّجْ حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا نو نکاح به نه کوي تر دې چي حمل وزېږوي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَصِحُّ النِّكَاحُ وَلَا يَقْرَبُهَا زَوْجُهَا حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه [دويم] روايت دا دی چي نکاح [ور سره] صحيح ده خو خاوند به هغې ته نه نژدې کيږي تر دې چي حمل وزېږوي كَمَا فِي الْحُبْلَى مِنَ الزِّنَا لکه څرنګه چي له زنا څخه په حامله سوي ښځي کي [هم دغه حکم دی] وَجْهُ الْأَوَّلِ: أَنَّهُ ثَابِتُ النَّسَبِ د اول قول [چي نکاح ور سره جائز نه ده] دليل دا دی: چي دا حمل [د غير سره] ثابتُ النسب دی فَإِذَا ظَهَرَ الْفِرَاشُ فِي حَقِّ النَّسَبِ نو کله چي د نسب په حق کي فراش ښکاره سو يَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَنْعِ مِنَ النِّكَاحِ احْتِيَاطًا نو احتياطاً به له نکاح څخه د منع کېدلو په حق کي [هم] فراش ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿مُتَقَدِّم﴾ مخکنی، وړاندينی، ﴿خَطَر﴾ عظمت، ستروالی، احترام، ﴿مَسْبِيَّة﴾ د ضرب مؤنث اسمِ مفعول دی: قيد کړل سوې ښځه، ﴿حُبْلَى﴾ حامله (بلاربه)، ﴿فِرَاش﴾ بستره، مراد ځني "په نکاح کېدل" دي.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... د اولي مسئلې صورت دا دی که يو ښځه له دار الحراب څخه دار الاسلام ته هجرت وکړي، برابره ده هغه مسلمانه وي او که ذميه وي، او د

---

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ذكر في رد المحتار (ج:۲، ص:۴۲۵)، وكذا في الخانية (ج:۱، ص:۱۶۹).
[القول الراجح ج:۱، ص: ۲۹۹]

واپس تللو اراده هم نه لري، نو د داسې مهاجرې ښځې سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز نکاح کول جائز دي او پر هغې عدت واجب نه دی، او د صاحبینو په نېز پر هغې عدت واجب دی.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې دارُ الاسلام ته د دغه ښځې تر راتللو وروسته د هغې او د خاوند په مینځ کې فرقت واقع سو، او هر هغه فرقت کوم چې په دار الاسلام کې واقع سي پر هغه د اسلام احکام لازمیږي، او عدت هم له اسلامي احکامو څخه یو حکم دی، نو ځکه به پر دغه مهاجرې ښځې عدت واجبیږي. ها! که حربي خاوند په دارُ الحرب کې ښځې ته طلاق ورکړی او تر دې وروسته هغې دار اسلام ته هجرت وکړی، نو په دې صورت کې د ټولو په نېز پر هغې عدت نه واجبیږي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې عدت د مخکنۍ نکاح أثر او حصه ده او د مخکنې نکاح د اهمیت او احترام څرګندولو لپاره واجبیږي، او حال دا دی چې د حربي کس نکاح د احترام قابله نه ده او د هغه نکاح هیڅ اهمیت او احترام نه لري، لهذا کله چې دلته د عدت د وجوب سبب (یعني د نکاح احترام) نسته، نو ځکه به عدت نه واجبیږي، او دلته یوازې عدت له نکاح څخه مانع وو، نو کله چې هغه ختم سو نو د نکاح لاره بالکل صفا سوه.

**ولهذا إلخ**: په دې جمله سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دې قول "چې د حربي نکاح لره هیڅ اهمیت او احترام نسته" په تائید کې مثال پېشوي، فرمایي همدا وجه ده که یو ښځه په دارُ الحرب کې قید کړل سي او دارُ الاسلام ته راوستل سي، نو د ټولو په نېز پر هغې عدت نه واجبیږي، لهذا څرنګه چې د حربي ملکیت دَ احترام او اهمیت قابل نه دی، همداسې به د قید کړی سوي ښځې خاوند لره هم هیڅ اهمیت او احترام نه وي او د عدت له وجوب څخه بغیر به د هغې سره نکاح کول صحیح وي.

(٢)... د دویمې مسئلې صورت دا دی چې که هغه مهاجره ښځه حامله وي نو هغه به د کوچني تر زېږولو مخکې نکاح نه کوي، دا قول امام محمد له امام صاحب څخه روایت کړی دی، همدا ظاهر روایت دی او همدا أصح او راجح قول دی [القول الراجح ج:١، ص:٣٠٠]، او دویم قول کوم چې امام ابو یوسف او حسن بن زیاد له امام صاحب څخه روایت کړی دی، دا دی چې د مهاجرې حاملې سره نکاح کول خو صحیح دي لېکن د کوچني تر زېږولو مخکې به وطي نه ور سره کیږي.

د دویم قول دلیل دا دی چې کله د حربي کس ملکیت په دارُ الاسلام کې هیڅ احترام او اهمیت نه لري نو حمل خو به بیخي اهمیت نه لري ځکه چې حمل د حربي یو ادنیٰ جزء دی، لهذا د حمل په حالت کې به د دغه ښځې سره نکاح صحیح وي، لکه څرنګه چې د هغه ښځې سره هم نکاح صحیح ده کوم چې په زنا سره حامله سوې وي، ځکه چې زنا د اسلام په نظر کې یو غلیظ او ناوړه فعل دی او هیڅ مقام نه لري. او د وطي اجازه به د دې حدیث په وجه نه ورکول کیږي "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ

الْآخِرِ فَلَا يَسْقِيَنَّ مَاءَهُ زَرْعَ غَيْرِهِ" . يعني دوطي اجازه به ځکه نه وركول كيږي چي په خپلو اوبو (مني) سره دبل چا كښت اوبه كول لازم نه سي.

د راجح قول دليل دا دی چي د دې ښځي حمل د بل چا سره ثابتُ النسب دی (يعني دحربي سره يې نسب ثابت دی)، نو كله چي د نسب په حق كي د دغه ښځي فراش كېدل (فراش والی) ښكاره سوه نو له نكاح څخه د مانع كېدلو په حق كي به هم احتياطاً د هغې فراش كېدل ښكاره كيږي (يعني دغه مهاجره حامله ښځه به د خپل حربي خاوند صحيح فراش وي، نو د هغې سره به وطي كول صحيح نه وي). لهذا كله چي احتياطاً له نكاح څخه د مانع كېدلو په حق كي هم د هغې فراش كېدل ښكاره سو، نو د هغې سره به نكاح كول هم صحيح نه وي.

خلاصه دا چي د بل چا حمل مطلقاً له وطي څخه مانع وي، او څرنګه چي ثابتُ النسب حمل محترم هم دی نو هغه به له نكاح څخه هم مانع وي.

## د "أحدُ الزوجين" د مرتد كېدلو حكم

قَالَ: وَإِذَا ارْتَدَّ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ عَنِ الْإِسْلَامِ فرمايي: كله چي يو د خاوند او ښځي له اسلام څخه مرتد سي وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بِغَيْرِ طَلَاقٍ نو له طلاق څخه بغير [د دوی په مينځ كي] فرقت واقع كيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حكم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ✿: إِنْ كَانَتِ الرِّدَّةُ مِنَ الزَّوْجِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي كه مرتد كېدل [ارتداد] د خاوند له طرفه وي فَهِيَ فُرْقَةٌ بِطَلَاقٍ نو دا به په طلاق سره فرقت وي هُوَ يَعْتَبِرُهُ بِالْإِبَاءِ [أصلاً] امام محمد رَحِمَهُ الله دا "له اسلام څخه پر انكار كولو" قياسوي وَالْجَامِعُ مَا بَيَّنَّاهُ او د دواړو په مينځ كي [ جمع كونكي دليل هغه دی كوم چي موږ بيان كړی وَأَبُو يُوسُفَ مَرَّ عَلَى مَا أَصَّلْنَا لَهُ فِي الْإِبَاءِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر خپل هغه أصل تللی دی كوم چي [له اسلام څخه] د انكار كولو په باره كي موږ بيان كړی وَأَبُو حَنِيفَةَ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا او امام صاحب رَحِمَهُ الله د دواړو په مينځ كي فرق كړی دی وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّ الرِّدَّةَ مُنَافِيَةٌ لِلنِّكَاحِ او [د هغه په نيز] وجه د فرق دا ده: چي ارتداد د نكاح [هم] منافي دي لِكَوْنِهَا مُنَافِيَةً لِلْعِصْمَةِ ځكه چي هغه د عصمت [او ماليت] منافي دي وَالطَّلَاقُ رَافِعٌ او طلاق د نكاح ختمونكی دی فَتَعَذَّرَ

---

✿ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما ذكر فی الدر المختار (ج:٢، ص:٤٢٥)، وكذا فی البحر الرائق (ج:٣، ص:٣٧٣)، وكذا فی الدر المنتقیٰ (ج:١، ص:٣٧٢). [القول الراجح ج:١، ص:٣٠١]

أَنْ تُجْعَلَ طَلَاقًا نو [دا خبره] مشكله سوه چي هغه فرقت طلاق وګرځول سي بِخِلَافِ الْإِبَاءِ په خلاف د انکار کولو لِأَنَّهُ يَفُوْتُ الْإِمْسَاكُ بِالْمَعْرُوْفِ ځکه چي [په هغه سره] "إمساك بالمعروف" فوتيږي فَيَجِبُ التَّسْرِيْحُ بِالْإِحْسَانِ عَلَى مَا مَرَّ نو "تسريح بالإحسان" به واجبيږي لکه مخکي چي [دې تفصيل] تېر سو وَلِهٰذَا تَتَوَقَّفُ الْفُرْقَةُ بِالْإِبَاءِ عَلَى الْقَضَاءِ او له همدې وجهي د انکار په وجه سره [واقع سوې] فرقت [د قاضي] پر قضاوت موقوفيږي [يعني له اسلام ځخه دانکار په صورت کي د قاضي تر فيصلې وروسته فرقت واقع کيږي او نکاح ختميږي] وَلَا تَتَوَقَّفُ بِالرِّدَّةِ [ليکن] د ارتداد په وجه سره [واقع سوې] فرقت [پر قضاوت] نه موقوفيږي [يعني د مرتد کېدلو په صورت کي د قاضي له فيصلې ځخه بغير فوراً طلاق واقع کيږي] ثُمَّ إِنْ كَانَ الزَّوْجُ هُوَ الْمُرْتَدُّ بيا که [په زوجينو کي] خاوند مرتد سوی وي فَلَهَا كُلُّ الْمَهْرِ إِنْ دَخَلَ بِهَا نو د ښځي لپاره به ټوله مهر وي، که هغه په ښځي دخول کړی وي وَنِصْفُ الْمَهْرِ إِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا او نيم مهر به وي، که په هغې يې دخول نه وي کړی وَإِنْ كَانَتْ هِيَ الْمُرْتَدَّةُ او که ښځه مرتده سوې وي فَلَهَا كُلُّ الْمَهْرِ إِنْ دَخَلَ بِهَا نو د ښځي لپاره به ټوله مهر وي، که خاوند په هغې دخول کړی وي وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا فَلَا مَهْرَ لَهَا وَلَا نَفَقَةَ او که په ښځي يې دخول نه وي کړی نو هغې لپاره به نه مهر وي او نه نفقه لِأَنَّ الْفُرْقَةَ مِنْ قِبَلِهَا ځکه چي فرقت د هغې له طرفه [واقع سوی] دی.

**اللغات:** ﴿إِرْتَدَّ﴾ د افتعال ماضي ده: مرتد کېدل، له دين ځخه ګرځېدل، ﴿أَصَّلْنَا﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: أصل بيانول، أصل جوړول، ﴿عِصْمَةٌ﴾ حفاظت (د حفاظت حق)، ﴿تَتَوَقَّفُ﴾ د تفعّل مضارع ده: موقوف کېدل (موقوفېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په خاوند او ښځه کي يو له اسلام ځخه مرتد سي، نو په دوی کي به سمدستي فرقت واقع کيږي، برابره ده خاوند د ښځي سره جماع کړې وي او که نه وي، او دا فرقت به د شيخينو په نيز فسخ شمارل کيږي، نه طلاق، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي که ارتداد (مرتد کېدل) د خاوند له طرفه پېښ سوي وي يعني خاوند مرتد سوی دی، نو په دې صورت کي به دا فرقت طلاق شمارل کيږي.

په اصل کي امام محمد رَحِمَهُ الله دا مسئله د "إِنْكَار عَنِ الإِسْلَام" پر مسئله قياسوي، يعني کله چي د ښځي تر مسلمانېدلو وروسته پر خاوند اسلام پېش کړی سي او هغه انکار وکړي نو د دوی په مينځ کي واقع

کېدونکي فرقت طلاق شمارل کیږي، همداسي به دلته هم واقع کېدونکي فرقت طلاق وي؛ ځکه څرنګه چي د إنکار په مسئله کي خاوند د اسلام په قبلولو سره پر "إمساک بالمعرف" قادر وو، همدارنګه په دې مسئله کي هم هغه د اسلام په قبلولو سره پر "إمساک بالمعروف" قادر دی، خو د ده پر سترګو پرده پرته ده او دې یې نه لیري کوي، نو ځکه به دا فرقت د مخکي په څېر دلته هم طلاق شمارل کیږي.

**و أبو يوسف إلخ**: او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز چي څرنګه د انکار والا په مسئله کي فرقت فسخ وو، همداسي د ارتداد په مسئله کي فرقت هم د هغه نېز فسخ دی؛ ځکه چي د دغه فرقت په عمل کي خاوند او ښځه دواړه سره شریک دي، او طلاق فقط د خاوند سره خاص دی، ښځه خو نه د طلاق أهل ده او نه د هغې له طرفه د طلاق تصور کېدای سي.

**وأبوحنيفة**: امام صاحب رَحِمَهُ الله په انکار او ارتداد کي فرق کوي فرمايي چي که څه هم د ښځي د مسلمانېدلو فرقت طلاق شمارل کیږي، لېکن د خاوند د مرتد کېدلو فرقت به طلاق نه، بلکي فسخ شمارل کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل او په دواړو صورتونو کي د فرق وجه دا ده چي مرتد کېدل د نفس او مال د عصمت او حفاظت منافي دي؛ ځکه چي مرتد مباحُ الدم ګرځي، نه د هغه د مال حفاظت کیږي او نه د هغه د عزت او نفس حفاظت کیږي، د دې په خلاف نکاح یوه دیني فریضه ده او د نبي کریم ﷺ سنت دی او نکاح د انسان د عزت ضامنه ده، نو مرتد کېدل د نکاح منافي سو، همدا وجه ده کله چي یو څوک مرتد سي نو په هغه ګړي یې نکاح ماتیږي او ختمیږي (او په دې هکله هغه ته څه مهلت نه ورکول کیږي)، او طلاق هم د نکاح ختمونکی دی، او دلته په مرتد کېدلو سره په هغه ګړي (فوراً) نکاح ختمه سوه، نو طلاق به څرنګه نکاح ختمه کړي (ځکه چي هغه خو مخکي لا ختمه سوه)، نو ځکه به دغه فرقت او د نکاح ختمېدل طلاق نه شمارل کیږي بلکي د فسخ نوم به ورکول کیږي.

**بخلاف الإباء إلخ**: په خلاف د انکار کولو، ځکه چي له اسلام څخه تر انکار کولو وروسته (کافر ته مهلت ورکول کیږي او) د قاضي تر فیصلې پوري نکاح پاتیږي او د قاضي تر فیصلې وروسته نکاح ماتیږي، او په انکار سره د "إمساک بالمعروف" د فوتېدلو په وجه پر خاوند "تسریح بالاحسان" واجبیږي او په دې "تسریح بالاحسان" کي قاضي د هغه نائب جوړیږي او د دوی په مینځ کي تفریق کوي او مخکي ذکر سوه چي د قاضي تفریق طلاق شمارل کیږي، لېکن د مرتد کېدلو (ارتداد) په صورت کي فوراً نکاح ماتیږي او فوراً تفریق واقع کیږي، نو ځکه به دغه تفریق فسخ د نکاح شمارل کیږي.

**ثم إن كان الزوج إلخ**: له دی ځای څخه د ارتداد تفصیل بیانوي فرمايي چي که ارتداد د خاوند له طرفه واقع سوی وي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① د دخول په صورت کي (یعني که خاوند په ښځي دخول

کړې وي په داسې صورت کې) به ښځې ته ټوله مهر او د عدت دوره خو نفقه ورکول کيږي. ④ او د دخول د نشتوالي په صورت کې به نيم مهر او نفقه ورکول کيږي، ليکن که ارتداد د ښځې له طرفه واقع سوی وي، نو د دخول په صورت کې به هغې ته پوره مهر ورکول کيږي، او د دخول د نشتوالي په صورت کې به هيڅ شی نه ورکول کيږي نه مهر او نه نفقه، نفقه خو به د دخول په صورت کې هم نه ورکول کيږي؛ ځکه چې ارتداد د ښځې له طرفه واقع سوی دی، لهذا څرنګه چې نافرمانه (ناشزه) ښځه له نفقې څخه محروموله کيږي، همداسې به دغه ښځه هم له نفقې څخه محروموله کيږي. والله أعلم وعلمه أتم.

## د خاوند او ښځې دواړو د مرتد کېدلو او بيا د اسلام راوړلو حکم

قَالَ: وَإِذَا ارْتَدَّا مَعًا ثُمَّ أَسْلَمَا مَعًا فرمايي: که چيري خاوند او ښځه دواړه يو ځای مرتد سي [او] بيا دواړه يو ځای اسلام راوړي فَهُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً به دوی پر خپله [مخکنۍ] نکاح باقي پاته وي وَقَالَ زُفَرُ: يَبْطُلُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د دوی نکاح] باطليږي لِأَنَّ رِدَّةَ أَحَدِهِمَا مُنَافِيَةٌ ځکه چي په دوی کي د يوه مرتد کېدل [د نکاح] منافي دي [يعني نکاح فاسدوي] وَفِي رِدَّتِهِمَا رِدَّةُ أَحَدِهِمَا او د دواړو په ارتداد کي [يعني د دواړو د مرتد کېدلو په ضمن کي] خو د يوه ارتداد [هم] سته وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّ بَنِي حُنَيْفَةَ اِرْتَدُّوا ثُمَّ أَسْلَمُوا او زموږ دليل هغه روايت دی چي بنو حنيفه ټوله [يو ځای] مرتد سول او بيا يې اسلام راوړی وَلَمْ يَأْمُرْهُمُ الصَّحَابَةُ بِتَجْدِيدِ الْأَنْكِحَةِ او صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هغو ته د نکاح نوي کولو حکم نه وکړی وَالِارْتِدَادُ مِنْهُمْ وَاقِعٌ مَعًا لِجَهَالَةِ التَّارِيخِ او د تاريخ د جهالت په وجه د هغوی مرتد کېدل يو ځای واقع سوي دي وَلَوْ أَسْلَمَ أَحَدُهُمَا بَعْدَ الِارْتِدَادِ مَعًا او که تر يو ځای مرتد کېدلو وروسته له خاوند او ښځې څخه يو اسلام راوړی فَسَدَ النِّكَاحُ بَيْنَهُمَا نو د دوی په مينځ کي نکاح فاسديږي لِإِصْرَارِ الْآخَرِ عَلَى الرِّدَّةِ پر ارتداد باندي د بل د ټينګار کولو په وجه لِأَنَّهُ مُنَافٍ كَابْتِدَائِهَا ځکه چي پر ارتداد ټينګار کول او پر هغه باقي پاتېدل] د ارتداد د ابتداء په څېر [د نکاح] منافي دی.

**اللغات:** ﴿تَجْدِيد﴾ د تفعيل مصدر دی: نوي کول. ﴿أَنْكِحَة﴾ جمع د نکاح ده: نکاح ګاني.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند او ښځه دواړه يو ځای مرتد سي او بيا د الله په توفيق سره دواړه يو ځای اسلام راوړي، نو زموږ په نېز استحساناً دوی پر مخکنۍ نکاح باقي پاتيږي او د دوی لپاره د نکاح د تجديد (نوي کولو) هيڅ ضرورت نسته.

د امام زفر او ر ائمه ثلاثه وو په نېز د دوی مخکنۍ نکاح باطليږي، او له شروع څخه به نوې نکاح کوي (او همدا د قياس تقاضا ده).

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چي کله په خاوند او ښځه کي ديوه ارتداد (مرتد کېدل) دنکاح منافي دي نو د دواړو ارتداد خو به په طريقه اولیٰ سره دنکاح منافي وي؛ ځکه چي د دواړو د ارتداد په ضمن کي ديوه ارتداد هم شامل او داخل دی.

**زمونږ دليل:** او جه د استحسان دا ده چي کله د نبي کريم ﷺ تر وفات وروسته د بنو حنيفه قبيلې (کوم چي د مسيلمه کذاب قوم وو) خلک مرتد سول او له زکاة څخه يې انکار وکړی، نو حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه د هغو د مقابلې لپاره د صحابه وو لښکر واستوی لېکن هغوی ټولو بيرته اسلام راوړی او تر اسلام وروسته هغوی ته يوه صحابي هم دنکاح د تجديد حکم نه وکړی، لهذا دا د صحابه وو له طرفه اجماع سوه او اجماع تر قياس لوړه او مخکي وي، نو ځکه به په دې مسئله کي قياس پرېښوول کيږي او استحساناً به په اجماع عمل کيږي.

**والإرتداد إلخ:** دا ګواکي ديو طالبي سوال جواب دی، سوال دا دی چي د بنو حنيفه وو په واقعې سره د احنافو دليل نيول صحيح نه دي؛ ځکه چي بنو حنيفه ټوله پر يوه ځای (معاً) نه وه مرتد سوي (بلکي جلا، جلا مرتد سول، يعني د خاوند او ښځي د ارتداد په زمانه کي فرق وو او د دوی ارتداد سره جلا وو، نه معاً)، نو د دې په جواب کي صاحب د کتاب فرمايي چي د بنو حنيفه وو د مرتد کېدلو تاريخ مجهول او نامعلوم دی، نو د تاريخ د جهالت په وجه د هغوی مرتد کېدلو ته حکماً د معًا او دفعة واحدةً درجه ورکول سوه، لهذا کله چي د هغوی مرتد کېدل (د حکم په اعتبار سره) معاً او په يوه ځل دی نو بيا به ولي په دې سره دليل نيول صحيح نه وي!.

**ولو أسلم إلخ:** په دې سره دا خبره بيانوي چي که خاوند او ښځه دواړه يو ځای مرتد سي او تر دې وروسته فقط يو اسلام راوړي، نو د دوی نکاح فاسديږي؛ ځکه چي هغه بل يو پر ارتداد مُصر او ټينګار کونکی دی، او ارتداد چي څرنګه ابتداءً د نکاح منافي دی، همداسي بقاءً او د ټينګار کولو په حالت کي هم د نکاح منافي دي، نو ځکه به د دوی په مېنځ کي نکاح فاسديږي.

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِكَاتِبِهٖ وَلِشَارِحِهٖ وَلِمَنْ قَامَ بِتَوْزِيْعِهٖ وَنَشْرِهٖ



# بَابُ الْقَسْمِ

## (دا) باب (د ښځو) د واري (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح:** "قَسْمٌ" د قاف په سکون سره د ضرب د باب مصدر دی، معنیٰ يې ده: تقسيمول، تجزيه کول، د هري ښځي (ماينې) د مستحق واري حفاظت کول (يعني هري ښځي ته خپل واری او نوبت ورکول).

مخکي تر دې صاحب د کتاب د نکاح احکام بيان کړل او ښکاره خبره ده چي د يو چا په نکاح کي څو ښځي وي، نو د هغوی تر مينځ د خپل وس مطابق عدل او مساوات کول ضروري دی، کامل او کما حقهٗ مساوات خو کېدای نه سي، ځکه په خپله ربُ العالمين فرمايلي دي: "وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْا أَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَاءِ" [سورة النساء: ۱۲۹]، او په خپله نبي کريم ﷺ په دې سلسله کي په الهي دربار کي معذرت پېش کړی دی.

### د ښځو په واري (نوبت) کي د عدل کولو بيان

وَإِذَا كَانَ لِلرَّجُلِ امْرَأَتَانِ حُرَّتَانِ او کله چي د يو سړي دوې آزادي ښځي وي فَعَلَيْهِ أَنْ يَعْدِلَ بَيْنَهُمَا فِي الْقَسْمِ نو پر هغه واجب دي چي د نوبت [او واري] په سلسله کي د دوی په مينځ کي انصاف [او برابري] وکړي بِكْرَيْنِ كَانَتَا أَوْ ثَيِّبَيْنِ هغه که دواړي باکرې وي او که ثيبې وي أَوْ إِحْدَاهُمَا بِكْرًا وَالْأُخْرَى ثَيِّبًا او [که] يوه باکره وي او بله ثيبه وي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً [1]: مَنْ كَانَتْ لَهُ امْرَأَتَانِ وَمَالَ إِلَى إِحْدَاهُمَا فِي الْقَسْمِ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: د کوم سړي چي دوې ښځي وي او په نوبت ورکولو کي هغه د يوې و طرف ته مائل سي جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ مَائِلٌ نو د قيامت په ورځ به هغه په داسي حال کي راسي چي د هغه يو طرف به کوږ وي وَعَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها: «أَنَّ النَّبِيَّ الطَّيْلاً [2] كَانَ يَعْدِلُ فِي الْقَسْمِ بَيْنَ نِسَائِهِ او له حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت سوی دی: "چي نبي کريم ﷺ

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب النكاح، باب فى القسم بين النساء، حديث رقم:۲۱۳۳.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب النكاح، باب فى القسم بين النساء، حديث رقم:۲۱۳۴.

به د خپلو بيبيانو تر مينځ په نوبت کي انصاف کوی وَكَانَ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِيْ فِيْمَا أَمْلِكُ او فرمايل به يې: اې الله زما دا تقسيم په هغه شي کي دی چي زه يې ملکيت [استطاعت] لرم ايعني دا تقسيم زما په وس او طاقت کي دی] فَلَا تُؤَاخِذْنِيْ فِيْمَا لَا أَمْلِكُ» نو د کوم شي ملکيت [استطاعت] چي نه لرم په هغه سره ما مه نيسه! " ايعني د هغه عتاب او سزا مه راکوه!] يَعْنِيْ زِيَادَةَ الْمَحَبَّةِ يعني د محبت په زياتوب سره [ما مه نيسه!] وَلَا فَصْلَ فِيْمَا رَوَيْنَا او زموږ په [دغه] روايت سوي حديث کي [د باکرې او ثيبې تر مينځ] هيڅ فرق نسته [نو ځکه به ټولو ته مساوي او برابر نوبت ورکول کيږي] وَالْقَدِيْمَةُ وَالْجَدِيْدَةُ سَوَاءٌ او پخوانۍ ښځه او نوې ښځه دواړي سره برابري دي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا زموږ د روايت سوي حديث د مطلق کېدلو په وجه وَلِأَنَّ الْقَسْمَ مِنْ حُقُوْقِ النِّكَاحِ او په دې وجه [هم] چي نوبت ورکول د نکاح له حقوقو څخه دي وَلَا تَفَاوُتَ بَيْنَهُنَّ فِيْ ذٰلِكَ او په حقوقو کي د دوی تر مينځ هيڅ فرق نسته وَالِاخْتِيَارُ فِيْ مِقْدَارِ الدَّوْرِ إِلَى الزَّوْجِ او [ښځو ته] د تک راتک [د ټاکلو] د مقدار اختيار خاوند لره دی لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ هُوَ التَّسْوِيَةُ بَيْنَهُنَّ دُوْنَ طَرِيْقِهَا ځکه چي د ښځو په مينځ کي فقط مساوات [برابري کول] واجب دی، د مساوات طريقه واجب نه ده وَالتَّسْوِيَةُ الْمُسْتَحَقَّةُ فِي الْبَيْتُوْتَةِ لَا فِي الْمُجَامَعَةِ او واجب مساوات په شپه تېرولو کي دی نه په جماع کولو کي لِأَنَّهَا تَبْتَنِيْ عَلَى النَّشَاطِ ځکه چي جماع کول پر نشاط مبني دي [يعني د جماع دار ومدار د طبيعت پر نشاط او د زړه پر ليوالتيا دی کوم چي د انسان په وس کي نه دی].

**اللغات:** ﴿يَعْدِلُ﴾ د ضرب مضارع ده: عدل کول، انصاف کول. ﴿مَالَ﴾ د ضرب ماضي ده: يو طرف ته ميلان کول (مائلېدل). ﴿شِقّ﴾ اړخ، طرف. ﴿فَصْل﴾ تفصيل، توپير. ﴿دَوْر﴾ د نصر مصدر دی: ګرځېدل، تک راتک. ﴿تَسْوِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: برابري کول. ﴿بَيْتُوْتَة﴾ د ضرب مصدر دی: شپه تېرول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که ديو سړي په نکاح کي له يوې څخه زياتي ښځي وي، نو د هغه لپاره ضروري ده چي د نبوي سنت په اقتداء او تباع کي او له أخروي عذاب څخه د خلاصون او نجات لپاره په هغوی کي هر ممکن عدل او مساوات قائم وساتي، په عبارت کي ذکر سوي حديثونه يو طرف ته د عدل قائمولو

ترغيب ورکوي، او بل طرف دې ته اشاره کوي چې که يو سړی عدل او مساوات نه کوي، نو سبا به د قيامت په ورځ د ډيرې غټې شرمندګۍ او رسوايۍ سره مخامخ سي.

**والقديمة إلخ:** فرمايي چې د عدل او مساوات په باره کې دغه بيان سوي حديثونه مطلق دي، او په دې حديثونو کې د پخوانۍ (زړې) او نوې ښځې او د ثيبې او باکرې ښځې ترمينځ هيڅ تفصيل او فرق بيان سوی نه دی، نو دې أحاديثو د اطلاق او عموم په خاطر زموږ مسلک همدغه دی چې په نوې او زړه همداسې په باکره او ثيبه ټولو ښځو کې مساوات واجب او ضروري دی، لېکن د ائمه ثلاثه وو مسلک دا دی چې که څوک د باکره ښځې سره نکاح وکړي نو هغې ته به اووه (۷) ورځې واري او نوبت ورکوي او که ښځه ثيبه وي نو هغې ته به درې ورځې واري ورکوي.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چې د حضرت انس ﷜ او د حضرت ابو هريره ﷜ په حديثونو کې همدغه فرق وارد سوی دی، حضرت انس ﷜ فرمايي: "سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: لِبِكْرٍ سَبْعٌ وَلِلثَّيِّبِ ثَلَاث. ثُمَّ يَعُوْدُ إِلٰى أَهْلِهِ"، يعني که نوې ښځه باکره وي نو د هغې سره به اووه (۷) ورځې قيام کوي، او که ثيبه وي نو درې (۳) ورځې به قيام ورسره کوي، او په بل حديث کې ذکر سوي دي: "مِنَ السُّنَّةِ إِذَا تَـزَوَّجَ الْبِكْرُ عَلَى الثَّيِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا ثُمَّ قَسَم. وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّيِّبُ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ قَسَم. الحديث".

صاحب د کفايې د احنافو له طرفه د دې حديثونو دا جواب ورکړی دي دی چې په دغه حديثونو کې بيان سوی حکم د أولويت او افضليت دی، يعني د دې مطلب دا دی چې خاوند ته پکار دي چې نوې ښځه تر زړو ښځو مخکې کړي او اول دي د هغې سره قيام وکړي، وروسته دي په نورو ښځو کې خپل واري او نوبت وټاکي، د حضرت ام سلمه ﵂ حديث هم د دې مطلب تائيد کوي، هغه دا دی چې نبي کريم ﷺ وفرمايل: "إِنْ شِئْتِ سَبعْتُ لَكِ وَسَبعْتُ لَهُنَّ" (اې أم سلمه! که ستا خوښه وي نو (۷) ورځې به ستا سره اووسم او (۷) ورځې به د نورو ښځو [بيبيانو] سره اووسم)، تاسې او ګورئ! چې د أم سلمه ﵂ د ثيبه والي باوجود نبي کريم ﷺ د نورو بيبيانو په څير د هغې لپاره هم (۷) ورځې ټاکلي وې، که چيري په دې سلسله کې د ثيبې او باکرې ترمينځ فرق وای، نو ګران پيغمبر ﷺ به خامخا پر دې موقع د هغه وضاحت کړی وای او د جواز د بيان لپاره به يې کم از کم ضرور يو وار د دې څرګندونه کړې وای.

**ولأن إلخ:** په دې سره صاحب د کتاب په واري کې د فرق نه کولو په هکله عقلي دليل پېشوي، حاصل يې دا دی چې قسم (يعني هري ښځې ته خپل وار او نوبت ورکول) د نکاح له حقوقو او وجباتو څخه دی، او څرنګه چې په نورو حقوقو مثلاً په نفقه، سکنیٰ او طعام کې زړه او نوې ښځه، باکره او ثيبه ښځه ټولې سره برابري دي، همداسې به په قسم او نوبت کې هم ټولې سره مساوي او برابري وي او يوې ته به هم پر بلې هيڅ فوقيت او فضيلت حاصل نه وي.

**والاختيار إلخ:** فرمايي چې د ښځو تر مينځ د واړي او نوبت تاکلو حق او اختيار خاوند لره دی. نه ښځو لره، ځکه چې د ښځو تر مينځ صرف مساوات او برابري واجب ده، د هغه طريقه واجب نه ده، يعنې هر ښځه خو خپل د حق او نوبت مطالبه کولای سي، لېکن داسې نه سي کولای چې د بلې ښځې د حق او حصې په باره کې پر خاوند يو نمه واړي لازمه کړي.

او مساوات فقط د شپې تېرولو او اوسېدلو سره تعلق لري، د جماع سره د هغه هيڅ تعلق نسته. ځکه چې د جماع دار ومدار د انسان پر صحت، نشاط او د زړه پر ليوالتيا دی، او دغه شيان د انسان په وس او طاقت کې نه دي.

## په مينځه او آزاده ښځه کې د عدل کولو تفصيل

وَإِنْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا حُرَّةً وَالْأُخْرَى أَمَةً او که له دوو ښځو څخه يوه آزاده وي او بله مينځه وي فَلِلْحُرَّةِ الثُّلُثَانِ مِنَ الْقَسْمِ نو د آزادې ښځې لپاره به د نوبت دوه ثلثه [دوې حصې] وي وَلِلْأَمَةِ الثُّلُثُ او د مينځې لپاره به [فقط] يو ثلث وي بِذٰلِكَ وَرَدَ الْأَثَرُ * د همدغه حکم په هکله أثر وارد سوی دی وَلِأَنَّ حِلَّ الْأَمَةِ أَنْقَصُ مِنْ حِلِّ الْحُرَّةِ او ځکه چې د مينځې حلالېدل د آزادې ښځې تر حلالېدلو کم دي فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ النُّقْصَانِ فِي الْحُقُوقِ نو ځکه په حقوقو کې [هم] کمتوب ښکاره کول ضروري دي وَالْمُكَاتَبَةُ وَالْمُدَبَّرَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ بِمَنْزِلَةِ الْأَمَةِ او مکاتبه، مدبره او اُمِ ولد د مينځې په درجه کې دي لِأَنَّ الرِّقَّ فِيهِنَّ قَائِمٌ ځکه چې په دوی ټولو کې [هم] غلامتوب پاته وي.

**اللغات:** ﴿ثُلُثَان﴾ دوې دريمې حصې، ﴿أَثَر﴾ د صحابي او تابعي قول، روايت، ﴿أَنْقَص﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: ډېر کم (کمتر).

**تشريح:** په تېر عبارت کې د آزادو ښځو په هکله د عدل او مساوات حکم بيان سو، په دې عبارت کې د دې حکم بيانوي چې که د يو سړي په نکاح کې يوه آزاده ښځه وي او بله مينځه وي، نو په دې صورت کې به د دوی تر مينځ په قسم او نوبت کې مساوات نه کيږي بلکې آزادې ښځې ته به د نوبت دوه ثلثه ورکول کيږي او مينځې ته به يو ثلث ورکول کيږي (يعنې آزادې ښځې ته به دوې ورځې ورکول کيږي او مينځې ته به يوه ورځ).

صاحب د کتاب په دليل کې فرمايي چې د همدغه فرق په باره کې أثر وارد سوی دی. هغه دا چې حضرت علي ﷺ فرمايي: ''إِذَا تَزَوَّجَتِ الْحُرَّةُ عَلَى الْأَمَةِ قَسَمَ لَهَا يَوْمَيْنِ وَلِلْأَمَةِ يَوْمًا'' او له هيچا څخه هم د دې په خلاف حکم نه دی نقل سوی، لهذا د حضرت علي ﷺ دغه فرمان د إجماع په درجه کې دی. والإجماع حجة لنا.

---

* الأثر: دار قطني، كتاب النكاح، ج:۳، ص:۱۹۸، رقم: ۳۶۹۵. سنن بيهقي، باب الحر ينكح حرة على الأمة فيقسم...، ج:۷، ص:۴۸۹، رقم: ۱۴۷۵۰.

**ولأن إلخ:** عقلي دليل دا دی چې په مينځه کې دآزادي ښځې په نسبت حلت کم دی، همدا وجه ده که څوک پر آزادي ښځې قدرت لري نو د هغه لپاره د مينځې سره نکاح کول جائز نه دي (يعنې مينځه هغه وخت د انسان لپاره حلاليږي کله چې هغه پر آزادي ښځې قدرت نه لري، نو معلومه سوه چې د هغې د حلت درجه کمه او آخري ده). همدرنګه پر آزادي ښځې د مينځې سره نکاح کول جائز نه دي، نو کله چې په حلت او نورو احکامو کې مينځه له آزادي ښځې څخه شاته او پاته ده، نو د قسم (واري) په حکم کې به هم تر آزادي ښځې شاته او کمه وي او د دوو ثلثو په مقابله کې به فقط ديوه ثلث حقداره وي.

**والمكاتبة إلخ:** فرمايي چې په مكاتبه، مدبره او اُم ولد مينځو کې هم څه نا څه رقيّت (غلاموالی) پاته وي. لهذا کوم حکم چې د خالص مينځې دی هغه حکم به د دوی هم وي، او مينځې ته د آزادي ښځې نيم حق ورکول کيږي، لهذا دوی ته به هم د آزادي ښځې نيم حق ورکول کيږي.

## د سفر په حالت کې د عدل کولو بيان

قَالَ: وَلَاحَقَّ لَهُنَّ فِي الْقَسْمِ حَالَةَ السَّفَرِ فرمايي: چې په حالت د سفر کې په نوبت [واري] کې د ښځو هيڅ حق نسته فَيُسَافِرُ الزَّوْجُ بِمَنْ شَاءَ مِنْهُنَّ لهذا خاوند به سفر کوي په هغه ښځې سره کوم چې د خاوند خوښه وي وَالْأَوْلَى أَنْ يُقْرِعَ بَيْنَهُنَّ [خو] غوره دا ده چې د دوی په مينځ کې قرعه اندازي [قرعه کشي] وکړي فَيُسَافِرُ بِمَنْ خَرَجَتْ قُرْعَتُهَا او د کومې ښځې [په نامه] چې قرعه راووځي په هغې سره دې سفر وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْقُرْعَةُ مُسْتَحَقَّةٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قرعه اندازي کول واجب دي لِمَا رُوِيَ: أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] كَانَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهِ ځکه روايت سوی دی: چې کله به نبي کريم ﷺ ديو سفر اراده وکړه نو د خپلو بيبيانو په مينځ کې به يې قرعه اندازي کوله إِلَّا أَنَّا نَقُولُ: إِنَّ الْقُرْعَةَ لِتَطْيِيبِ قُلُوبِهِنَّ لېکن موږ وايو: چې [د نبي کريم ﷺ] قرعه اندازي د دوی د زړونو د ښه کولو [او تسلی] لپاره وه فَيَكُونُ مِنْ بَابِ الِاسْتِحْبَابِ لهذا قرعه اندازي به د استحباب له قبيلې څخه وي [يعنې مستحب به وي، نه واجب] وَهَذَا لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِلْمَرْأَةِ عِنْدَ مُسَافَرَةِ الزَّوْجِ او د دې وجه دا ده چې د خاوند د سفر کولو په حالت کې ښځې لره [د نوبت] هيڅ حق نسته أَلَا يَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَسْتَصْحِبَ وَاحِدَةً مِنْهُنَّ آيا هغه نه ګوري چې د خاوند لپاره [دا] حق سته چې له ښځو څخه يوه هم [په سفر کې] د ځان سره ملګرې نه کړي فَكَذَا لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِوَاحِدَةٍ مِنْهُنَّ نو د هغه

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في النكاح، باب القسمة بين النساء، حديث رقم: ۱۹۷۰. و ابو داؤد في كتاب النكاح، بـاب فـي القسم بين النساء، حديث رقم: ۲۱۳۷.

لپاره به دا حق هم وي چې په دوی کې په يوې سره سفر وکړي وَلَا يُحْتَسَبُ عَلَيْهِ بِتِلْكَ الْمُدَّةِ او دا [د سفرا مودت به پر هغه نه شمارل کيږي وَإِنْ رَضِيَتْ إِحْدَى الزَّوْجَاتِ بِتَرْكِ قَسْمِهَا لِصَاحِبَتِهَا او که يوه ښځه د خپلې ملګرې [بن] لپاره د خپل نوبت په پرېښوولو راضي سي جَازَ نو [دا] جائز دي لِأَنَّ سَوْدَةَ بِنْتَ زَمْعَةَ رضي الله عنها سَأَلَتْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ ● أَنْ يُرَاجِعَهَا وَتَجْعَلَ يَوْمَ نَوْبَتِهَا لِعَائِشَةَ رضي الله عنها ځکه چې حضرت سوده بنت زمعې رضي الله عنها له نبي کريم ﷺ څخه دا غوښتنه وکړه چې [نبي کريم ﷺ] هغې ته رجوع وکړي او هغه [سوده رضي الله عنها] به خپل د نوبت ورځ حضرت عائشې ته ورکړي وَلَهَا أَنْ تَرْجِعَ فِي ذَلِكَ او دغه [د نوبت پرېښوونکې] ښځې لره دا حق سته چې خپل په نوبت کې رجوع وکړي [يعني چې خپل نوبت بېرته له ښځې څخه واخلي] لِأَنَّهَا أَسْقَطَتْ حَقًّا لَمْ يَجِبْ بَعْدُ ځکه چې دغه ښځې خپل داسې حق ساقط کړی کوم چې تر اوسه واجب سوی نه وو فَلَا يَسْقُطُ نو ځکه به هغه نه ساقطيږي.

**اللغات:** ﴿يَقْرَعُ﴾ د فتح مضارع ده: قرعه اندازي کول (بچه اچوونه)، ﴿تَطْيِيبُ قَلْبٍ﴾ د يو چا زړه ورښه کول، مطمئن کول، تسلي ورکول، ﴿لَا يَسْتَصْحِبُ﴾ د استفعال له باب څخه د نفي معلوم صيغه ده: د ځان سره ساتل، د ځان ملګرې کول، ﴿لَا يُحْتَسَبُ﴾ د افتعال له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: حسابل، شمېرل (شمارل)، ﴿نَوْبَةٌ﴾ وار (واری).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د اقامت په حالت کې خو ښځې د قسم او نوبت حق لري لېکن د سفر په قسم او نوبت کې د يوې ښځې لپاره هم هيڅ حق نسته او خاوند لره اختيار دی چې کومه ښځه يې زړه وغواړي هغه دې د ځان سره بوزي، خو زموږ په نېز غوره او مستحب دا ده چې خاوند د ښځو د تسلی لپاره په هغوی کې قرعه اندازي وکړي، او د کومې يوې نوم چې په قرعه (پچه) کې را ووځي هغه دې په سفر کې د ځان سره بوزي.

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: څرنګه چې نفقه او خرچه د ښځو حق ده او پر خاوند واجب ده، همدارنګه قرعه اندازي هغه د هغو حق ده او پر خاوند لازم او واجب ده چې قرعه اندازي وکړي او له قرعه اندازی څخه بغير به يوه ښځه نه بيايي.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت عائشې رضي الله عنها دا حديث دی "چې کله به نبي کريم ﷺ د سفر اراده کوله نو په خپلو بيبيانو کې به يې قرعه اندازي کوله، او د کومې بي بي نوم چې به څرګند سو هغه به يې په سفر کې د

● **تخريج:** أخرجه البخاری، باب المرأة تهب يومها من زوجها لضرتها، حديث رقم:۵۲۱۲. والبيهقي في كتاب النكاح، باب ما يستدل به على أنّ النبي ﷺ في سوی ذكرنا، حديث رقم: ۱۳۴۳۵.

ځان سره بېوله"، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي له دې حديث څخه معلومه سوه چي قرعه اندازي دنبي كريم ﷺ عمل او معمول وو، لهذا اُمت لره هم ضروري ده چي دوى دعدل او مساوات په باب كي په ټينګار او پابندي سره نبوي معمول خپل كړي، او دا هغه وخت ممكن دي چي كله پر خاوند قرعه اندازي واجب وګرځول سي.

**زموږ دليل:** او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د ذكر سوي حديث جواب دا دى چي د خپلو بيبيانو تر مينځ د نبي كريم ﷺ قرعه اندازي كول د وجوب او لزوم په توګه نه وه بلكي دا د دوى د تسلى او خيال ساتلو په خاطر وه، او په داسي عمل سره وجوب نه ثابتيږي.

دويمه خبره دا ده چي كله د اقامت په حالت كي پر نبي كريم ﷺ واري او نوبت ټاكل واجب او ضروري نه وو نو د سفر په حالت كي به پر هغه داسي كول څرنګه واجب وو!، قرآن خو په ښكاره لفظو سره دا حقيقت بيان كړى دى: "تُرْجِيْ مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِىْ إِلَيْكَ مَنْ تَشَاء". [سورة الأحزاب:٥١]

د قرعه اندازى د نه واجبېدلو بل (دريم) علت دا دى چي د سفر كي په حالت پر خاوند د ښځو هيڅ حق نه پاتيږي، له همدې كبله خاوند ته د دې اختيار هم سته چي هغه يک تنها سفر وكړي او يوه ښځه هم د ځان سره نه بوزي، لهذا كله چي هغه ته د تنها سفر كولو او د يوې ښځي د نه بېولو اختيار سته، نو هغه ته به د دې خبري اختيار هم وي چي كومه يوه هغه وغواړي د خپل ځان سره يې بوزي.

او څومره ورځي چي خاوند يو ښځه د ځان سره بېولي وي هغه ورځي به له واري او نوبت څخه نه شمارل كيږي، بلكي كله چي كور ته راسي، نو له شروع څخه به ټولو ښځو ته برابر واري وركوي.

**وإن رضيت إلخ:** په دې سره دا خبره بيانوي چي كه يوه ښځه بلي ښځي ته خپل وار او نوبت وركول وغواړي او په دې راضي سي، نو په دې كي هيڅ حرج نسته؛ ځكه كله چي نبي كريم ﷺ حضرت سودة بنت زمعه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته طلاق وركړى، نو هغې نبي كريم ﷺ ته د رجعت كولو خواست وكړى او خپل وار يې حضرت عائشي ﷺ ته وركړى، دا واقعه د دې خبري تائيد كوي چي كومه ښځه خپل بَنْ ته د خپل واري حق وركړي، نو په دې كي هيڅ حرج او پروا نسته.

همدارنګه كه ښځه وروسته خپل حق ته رجوع وكړي يعني خپل حق واپس اخيستل وغواړي، نو هم هغې ته د دې پوره اختيار سته؛ ځكه چي بلي ښحي ته د حق په وركولو سره دغه ښځي خپل داسي حق ساقط كړى كوم چي تر اوسه واجب سوى نه دى (ځكه چي هغې خپل را روان نوبت ساقط كړى دى او هغه تر اوسه د هغې لپاره لازم سوى نه دى)، نو د ښځي د رجوع كولو مطلب به دا وي چي هغه بيرته له خپل نوبت وركولو څخه منع سوه، او دا به يې مطلب نه وي چي هغې يو ساقط كړى سوى شى واپس واخيستى. او بل دا چي دا صورت د عاريت وركولو په څير دى، او مُعير لره هر وخت د خپل عاريت اخيستلو اختيار سته. والله أعلم بالصواب

# كِتَابُ الرَّضَاعِ

(دا) كتاب د رضاعت (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح:** "رَضَاعٌ" (د راء په فتحه سره) د ضرب، فتح او سمع له بابونو څخه مصدر دى، د راء په كسره سره هم ويل كېداى سي، خو أصل يې د فتحې لغت دى. څرنګه چي د نكاح مقصد توالد او تناسل دى او له شيدو او غذايي وديي څخه بغير دغه شيان مستحكم كېدلاى نه سي، نو ځكه صاحب د كتاب له "كتابُ النكاح" څخه وروسته اوس "كتابُ الرّضاعِ" بيانوي.

**د رضاع لغوي او اصطلاحي معنىٰ:** د رضاع لغوي معنىٰ ده: د مور له سينې (تيو) څخه شيدې رودل. او اصطلاحي معنىٰ يې ده: "په ځانګړي وخت كي (يعني د رضاعت په مودت كي) د يو ښځي له سينې څخه د ځانګړي كوچني (يعني د رضيع بچي) شيدې رودل.

## د "حرمتِ رضاعت" بيان

قَالَ: قَلِيْلُ الرَّضَاعِ وَكَثِيْرُهُ سَوَاءٌ فرمايي: چي [كوچني ته] لږ شيدې وركول او زياتي شيدې وركول [دواړه] سره برابر دي إِذَا حَصَلَ فِي مُدَّةِ الرَّضَاعِ كله چي د رضاعت په مودت كي دا [شيدې وركول] واقع سي تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيْمُ نو د هغه سره حرمت متعلق كيږي [يعني په هغه سره حرمتِ رضاعت ثابتيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَثْبُتُ التَّحْرِيْمُ إِلَّا بِخَمْسِ رَضَعَاتٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي حرمت نه ثابتيږي مګر په پنځو غړپونو سره لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلَا الْمَصَّتَانِ ځكه نبي كريم ﷺ فرمايلي دي: چي نه حراموي [يعني حرمت نه ثابتوي] يو وار ځېښل [رودل] او نه دوه واره ځېښل وَلَا الْإِمْلَاجَةُ وَلَا الْإِمْلَاجَتَانِ او نه يو وار شيدې وركول [حرمت ثابتوي] او نه دوه واره شيدې وركول وَلَنَا: قَوْلُهُ تَعَالَىٰ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللاتِي أَرْضَعْنَكُمْ [النساء: ٢٣] او زموږ دليل د الله تعالىٰ [دا] قول دى: او [ستاسو لپاره] ستاسي هغه مندې حرامي دي چي هغوى تاسو ته شيدې دركړي وي وَقَوْلُهُ عليه السلام [2]: يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ او [همدارنګه] د نبي ﷺ

[1] تخريج: أخرجه مسلم فى كتاب الرضاع، باب فى المصة والمصتان، حديث رقم: ١٧، ١٨.

[2] تخريج: أخرجه البخارى فى كتاب الشهادات، باب الشهادة على الأنساب والرضاع، حديث رقم: ٢٦٤٥.

[دا] قول دی: کوم څه چي په نسب سره حراميږي هغه په رضاعت سره [هم] حراميږي مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير له څه تفصيل څخه [دغه حديث وارد سوی دی] وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ وَإِنْ كَانَتْ لِشُبْهَةِ الْبَعْضِيَّةِ الثَّابِتَةِ بِنُشُوْءِ الْعَظْمِ وَإِنْبَاتِ اللَّحْمِ او په دې وجه [هم] چي حرمت که څه هم د هغه جزئيت د شبهې په وجه دی کوم چي ثابت دی د هډوکو په وده کولو او د غوښو په پيدا کولو سره [يعني په شيدو ورکولو سره چي حرمتِ رضاعت ثابتيږي د هغه وجه که څه هم دا ده چي په شيدو سره د کوچني بدن او هډوکي وده کوي او په دې سره د هغه په بدن کي غوښه پيدا کيږي.

خودا يو پټ او ناڅرګند کار دی] لَكِنَّهُ أَمْرٌ مُبْطَنٌ خو دا يو پټ [مخفي] کار دی فَتَعَلَّقَ الْحُكْمُ بِفِعْلِ "الْإِرْضَاعِ" نو ځکه به حکم د "شيدو ورکولو" د فعل سره متعلق وي وَمَا رَوَاهُ مَرْدُوْدٌ بِالْكِتَابِ أَوْ مَنْسُوْخٌ بِهِ او کوم [حديث] چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه په كتابُ الله سره مردود دی يا په کتابُ الله سره منسوخ دی وَيَنْبَغِي أَنْ يَكُوْنَ فِي مُدَّةِ الرَّضَاعِ او مناسب دا ده چي دا [د شيدو رودل] به د رضاعت په مودت کي [دننه] وي لِمَا نُبَيِّنُ د هغه دليل په وجه چي موږ به يې [څه وروسته] بيان کړو.

**اللغات:** ﴿رَضَعَاتٍ﴾ جمع د رَضْعَةٌ ده، د رَضْعَةٌ معنی ده: يو وار شيدې ورکول، غړپ (د شيدو غړپ)، ﴿مَصَّة﴾ يو وار ځبېښل (رودل)، ﴿إِمْلَاجَة﴾ د إفعال د باب مصدر دی: تي ته کوچني ور اچول (يعني شيدې ورکول)، ﴿نُشُوْء﴾ وده کول، غټېدل، لويېدل، ﴿إِنْبَات﴾ د افعال مصدر دی: راشنه کول، مراد څني پيدا کول دي، ﴿أَمْر مُبْطَن﴾ پټه معامله، ناڅرګند او مخفي کار.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو ښځه د رضاعت په مودت کي يو کوچني ته خپلي شيدې ورکړي، نو د احنافو په نېز په دې سره "حرمتِ رضاعت" ثابتيږي، برابره ده هغه کوچنی لږ شيدې ورودي (وچيبني) او که زياتي، او برابره ده يو واريې ورودي او که څو واره، د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله په لږ او ډېر کي فرق کړی دی، هغه فرمايي چي د حرمتِ رضاعت د ثبوت لپاره کم از کم پنځه واره په ماړه نس د کوچني شيدې رودل ضروري دي (يعني هر وار به دغه کوچني دومره شيدې رودلي وي چي هغه د ده لپاره کافي وي او پوره په موړ سي)، او که له پنځو وارو څخه کم داسې وسي نو حرمتِ ضاعت نه ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: "لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّة ... إلخ"، يعني يو وار شيدې رودل او يو وا[ر] کوچني ته خپلي شيدې ورکول د حرمتِ رضاعت سبب نه دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې حديث سره په دې توګه دليل نيسي چي په دغه حديث کي په ښکاره لفظو سره دا خبره ذکر سوې ده چي پ[ه] لږ مقدار سره حرمت نه ثابتيږي، لهذا اوس دا ضروري ده چي د لږ او ډېر تر مينځ فرق وکړی سي.

فقط په ډېر مقدار (مقدارِ کثیر) سره به حرمتِ رضاعت ثابتیږي لېکن لږ مقدار به معاف وي او حرمت به نه په ثابتیږي.

**زموږ دلیل:** دا دی چي دا آیت "وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ" مطلق دی، همدارنګه په دې حدیث "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَب" کي هم مطلق حکم وارد سوی دی او د قلیل او کثیر تر مینځ هیڅ فرق نه دی پکښي ذکر سوی، لهذا څرنګه چي په مقدارِ کثیر سره حرمت ثابتیږي، همداسي به مقدارِ قلیل سره هم حرمت ثابتیږي، او په دې کي به څه قید لګول پر کتاب او سنت زیاتوب کول وي.

**ولأن الحرمة إلخ:** په دې سره زموږ عقلي دلیل بیانوي کوم چي په أصل کي دیو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي په مقدارِ قلیل سره حرمتِ رضاعت ثابتېدل پکار نه دي؛ ځکه په شیدو رودلو (رضاعت) سره د حرمت ثابتېدلو وجه دا ده چي د شیدو رودلو په وجه د کوچني غوښي او هډوکي وده (نما) وکړي او اضافه پکښي راسي او دیوه انسان جزئیت او بعضیت په بل کي داخل سي، او د شیدو په لږ مقدار سره دا خبره نه ثابتیږي، لهذا په لږ مقدار سره دي حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي.

د دې په جواب کي فرمایي چي په شیدو رودلو سره د غوښو او هډوکو وده کول او دیوه جزئیت په بل کي داخلېدل یو مخفي او باطني کار دی، او څرنګه چي په یوه او دوه واره رودلو سره هغه نه سي اندازه کېدلای، همدارنګه په پنځه واره رودلو سره هم هغه په صحیح توګه نه سي اندازه کېدلای، لهذا د حرمت مدار به فقط پر رودلو (چیښلو) وي، هغه که یو وار وي او که پنځه واره.

**وما رواه إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب ورکوي، فرمایي که چیري ستاسو حدیث تر کتابُ الله مؤخر (وروسته) وي، نو ښکاره خبره ده چي د کتابُ الله په وجه به حدیث پرېښوول کیږي او په کتابُ الله به عمل کیږي لأن العمل علی الکتاب أولی، او که دا حدیث تر کتابُ الله مخکي وي او قرآني آیت تر هغه وروسته وي، نو په دې صورت کي به ستاسو حدیث په کتابُ الله سره منسوخ کیږي او کتابُ الله (قرآن کریم) به د هغه لپاره ناسخ جوړیږي.

همدارنګه له ابن عباس څخه روایت سوی دی چي په دې حکم "لا تُحَرِّمُ الرَّضعَةُ وَالرَّضعَتَان" سره به مخکي عمل کېدی لېکن وروسته دا حکم منسوخ سو او اوس رضعهٔ واحده (یو وار رودل) هم د حرمتِ رضاعت د ثبوت لپاره کافي دی.

**وینبغي إلخ:** فرمایي چي په شیدو رودلو سره هغه وخت حرمت ثابتیږي چي هغه په خپل مودت (یعني د رضاعت په مودت) کي واقع سي، او په دې مودت کي د علماؤ اختلاف دی چي هغه به په را روان عبارت کي په واضحه توګه بیان سي.

## د رضاعت د مودت زيات مقدار (د فقهاؤ قولونه)

ثُمَّ مُدَّةُ الرَّضَاعِ ثَلَاثُونَ شَهْرًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د رضاعت مودت دېرش [۳۰] مياشتي ده وَقَالَا ●: سَنَتَانِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دوه كاله ده وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ زُفَرُ: ثَلَاثَةُ أَحْوَالٍ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي: دري كاله ده لِأَنَّ الْحَوْلَ حَسَنٌ لِلتَّحَوُّلِ مِنْ حَالٍ إِلَى حَالٍ ځكه چي له يو حالت څخه بل حالت ته د نقل كېدلو لپاره يو كال ښه [او مناسب مودت] دی وَلَا بُدَّ مِنَ الزِّيَادَةِ عَلَى الْحَوْلَيْنِ او پر دوو كالو زياتوب [اضافه] كول ضروري دي لِمَا نُبَيِّنُ د هغه دليل په وجه چي موږ به يې بيان كړو فَيُقَدَّرُ بِهِ لهذا په يوه كال سره به [دغه زياتوب] اندازه كيږي [نو ځكه به د رضاعت مودت درې كاله وي] وَلَهُمَا: قَوْلُهُ تَعَالَى: وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا [الأحقاف: ١٥] او د صاحبينو دليل د الله تعالىٰ دا قول دی: او حمل د كوچني او د هغه جلا كول [يعني له تي څخه د هغه پرېكول] دېرش مياشتي وي [يعني دا په دېرشو مياشتو كي وي] وَمُدَّةُ الْحَمْلِ أَدْنَاهَا سِتَّةُ أَشْهُرٍ او د حمل كم مودت شپږ مياشتي دی فَبَقِيَ لِلْفِصَالِ حَوْلَانِ لهذا [له تي څخه] د جلا كولو لپاره دوه كاله باقي پاته سول وَقَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ ❶: لَا رَضَاعَ بَعْدَ حَوْلَيْنِ او [د صاحبينو دويم دليل دا دی چي] نبي كريم ﷺ فرمايلي دي: تر دوو كالو وروسته رضاعت نسته وَلَهُ هَذِهِ الْآيَةُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل [هم] دغه آيت دی وَوَجْهُهُ أَنَّهُ تَعَالَى ذَكَرَ شَيْئَيْنِ او د هغه وجه [د استدلال] دا ده چي الله تعالىٰ [په دې آيت كي] دوه شيان ذكر كړي دي وَضَرَبَ لَهُمَا مُدَّةً او د دواړو لپاره يې يو مودت بيان كړی دی فَكَانَتْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِكَمَالِهَا لهذا هغه مودت به په دوی كي د هر يوه لپاره په پوره توګه ثابت وي كَالْأَجَلِ الْمَضْرُوبِ لِلدَّيْنَيْنِ لكه د دوو قرضونو لپاره ټاكل سوی مودت [چي په دواړو قرضونو كي د هر يوه لپاره په پوره توګه ثابت وي] إِلَّا أَنَّهُ قَامَ الْمُنْقِصُ فِي أَحَدِهِمَا مګر له دوی څخه په يوه كي كموونكي دليل [د حضرت عائشې رضي الله عنها قول] قائم سو فَبَقِيَ الثَّانِي عَلَى ظَاهِرِهِ نو ځكه به دويم پر خپل حال باقي پاته وي وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَغَيُّرِ الْغِذَاءِ او په دې وجه [هم]

---

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، كذا في الدر المختار (ج:٢، ص:٤٣٧). [القول الراجح ج:١، ص: ٣٠٣]

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الرضاع، حديث رقم:٤٣١٨.

چې د غذا تبديلي ضروري ده لِيَنْقَطِعَ الْإِنْبَاتُ بِاللَّبَنِ د دې لپاره چې په شيدو سره [د غوښو] پيدا کېدل [او په شيدو سره د بدن او هډوکو وده کول] منقطع سي وَذٰلِكَ بِزِيَادَةِ مُدَّةٍ يَتَعَوَّدُ الصَّبِيُّ فِيهَا غَيْرَهُ او دا تبديلي د يو داسي مودت په زياتولو [اضافه کولو] سره راځي چې په هغه مودت کي کوچنی د بل خوراک سره عادت سي فَقُدِّرَتْ بِأَدْنىٰ مُدَّةِ الْحَمْلِ نو د حمل په ادنیٰ مودت سره [يعني په شپږو مياشتو سره] دغه زيادة [زياتوب] اندازه کړی سو لِأَنَّهَا مُغَيِّرَةٌ ځکه چې د حمل ادنیٰ مودت تبديلي پيداکونکی دی فَإِنَّ غَذَاءَ الْجَنِيْنِ يُغَايِرُ غَذَاءَ الرَّضِيْعِ ځکه چې د حمل خوراک [خواړه] د شيرخواره کوچني له خوراک څخه جلا وي كَمَا يُغَايِرُ غَذَاءَ الْفَطِيْمِ لکه څرنګه چې هغه [د شير خواره کوچني خوراک] له شيدو نه د پرېکړی سوي کوچني له خوراک څخه جلا وي وَالْحَدِيْثُ مَحْمُولٌ عَلیٰ مُدَّةِ الاِسْتِحْقَاقِ او حديث د استحقاق پر مودت حمل کړی سوی دی وَعَلَيْهِ يُحْمَلُ النَّصُّ الْمُقَيَّدُ بِحَوْلَيْنِ فِي الْكِتَابِ او پر همدغه استحقاق هغه آيت [هم] حمل کيږي کوم چې په قرآن کي په "حَوْلَيْن" [دوو کالو] سره مقيد دی.

**اللغات:** ﴿تَحَوُّل﴾ د تفعّل مصدر دی: نقل کېدل، ګرځېدل (مخ اړول)، ﴿فِصَال﴾ جلا کول، کوچنی له شيدو څخه پرېکول، ﴿ضَرَبَ﴾ د دې باب ډيري معناوي دي، چې يوه معنیٰ د "ټاکلو او متعينولو" هم ده او د "بيانولو" په معنیٰ سره هم راځي، ﴿مُنْقِص﴾ د افعال له باب څخه اسمِ فاعل دی (د تفعيل له باب څخه هم راتلی سي): ناقصونکی، کمونکی، ﴿جَنِيْن﴾ کوچنی چې تر څو د مور په نس کي وي هغه ته "جَنِيْن" وايي (مطلب دا چې کله حمل غټ سي نو هغه ته جنين وايي)، ﴿فَطِيْم﴾ کوچنی چې کله له تي څخه پرېکړی سي نو هغه ته "فَطِيْم" وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د رضاعت مودت دېرش (٣٠) مياشتي يعني دوه نيم کاله ده، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دوه کاله يعني څلورويشت (٢۴) مياشتي ده، او همدا د ائمه ثلاثه وو مسلک هم دی، د دې په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د رضاعت مودت درې (٣) کاله ده.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې د دوو کالو تر پوره کېدلو وروسته د يو داسي مودت وجود ضروري دی چې په هغه کي کوچنی خپل عادت او فطرت بدل کړي او د هغه وده (او نما) له شيدو څخه په غذا او

خوراک بدله سي (يعني دوه کاله خو د رضاعت او د شيدو رودلو لپاره وي او تر دوو کالو وروسته څه نا څه دومره وخت او مودت د کوچني لپاره ضروري دی چي په هغه کي د کوچني عادت له شيدو رودلو څخه په خوراک بدل سي) او د دې بدلون لپاره يو کال ډېر ښه مودت دی؛ ځکه چي په يوه کال کي څلور مختلف موسمونه راځي، نو يو کال چي پر دوو کالو زيات کړی سي نو درې (٣) کاله کيږي. نو ځکه به د رضاعت مودت درې (٣) کاله وي.

**د صاحبينو دليل:** د قرآن کريم دا آيت دی "وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا"، په دې آيت سره صاحبين په دې توګه دليل نيسي چي الله د حمل او فصل دواړو لپاره دېرش (٣٠) مياشتي مودت ټاکلی دی. او د حمل کم مودت شپږ (٦) مياشتي وي، نو له دېرشو مياشتو څخه چي شپږ مياشتي ويستل سي نو څلورويشت (٢٤) مياشتي پاتيږي، نو ځکه به څلورويشت (٢٤) د رضاعت مودت وي.

**دويم دليل:** د دوی دويم دليل د قرآن کريم دا آيت دی: "وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ أَرَادَ أَنْ يُتِمَّ الرَّضَاعَةَ"، يعني څوک چي د رضاعت مودت پوره کول غواړي نو د هغه لپاره به مندي دوه (٢) پوره کاله بچي ته شيدې ورکوي، همدارنګه په حديث مبارک کي ذکر سوي دي چي "لَا رَضَاعَ بَعْدَ الْحَوْلَيْنِ" يعني تر دوو کالو وروسته رضاعت نسته. نو له دې دليلونو څخه په واضحه توګه دا ښکاره کيږي چي بس همدغه دوه کاله د رضاعت مودت او نېټه ده، او تر دوو کالو وروسته نه د رضاعت ثبوت سته او نه په هغه رضاعت سره حرمت ثابتيږي. لکه څرنګه چي په دې باره کي له ابن عدي رَحِمَهُ الله څخه هم دا روايت سوی دی: "لَا يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ إِلَّا مَا كَانَ فِي الْحَوْلَيْنِ".

**د امام صاحب دليل:** هم هغه آيت دی کوم چي اول صاحبينو په خپل دليل کي وړاندي کړی يعني "وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا"، په دې آيت سره امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې توګه دليل نيسي چي الله تعالىٰ په دغه آيت کي د دوو جلا شيانو (فصال او حمل) مودت يو ځای بيان کړی دی (يعني د رضاعت مودت يې هم بيان کړی دی او د حمل مودت هم بيان کړی دی او د دواړو لپاره يې دېرش مياشتي ذکر کړي دي)، لهذا دغه مودت به د دواړو لپاره جلا، جلا په پوره توګه ثابتيږي. لکه څرنګه چي يو څوک د دوو جلا قرضونو (پوروڼو) لپاره يو مودت بيان کړي، مثلاً د زيد پر خالد پيسې (روپۍ) هم باندي وي او غله (مثلاً غنم يا داسي بل شی) يې هم پر باندي وي، او زيد خالد ته داسي ووايي چي "زه تا ته د خپل قرض (پور) لپاره يو کال مهلت درکوم (او يو کال وروسته به ما ته خپل قرض راکوې)"، نو دا يو کال مودت به په دې دواړو قرضونو (روپۍ او غله) کي د هر يوه لپاره په پوره توګه ثابتيږي او پر دواړو به نه تقسيميږي، همداسي به په دغه آيت کي د "ثلاثون شهرًا" مودت هم

په حمل او فصال کې د هريوه لپاره په پوره توګه ثابت وي او پر دواړو به نه تقسيميږي، خو څرنګه چې په دې دواړو کې ديوه په هکله يعني د حمل په هکله يو مُنْقِص (کمونکي دليل) هم موجود دی، او هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها دا قول دی: "لَا يَبْقَى الْوَلَدُ فِيْ بَطْنِ أُمِّهٖ أَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ وَلَوْ بِقَدْرِ فَلْكَةِ مَغْزَلٍ" (يعني بچی د خپلې مور په نس کې تر دوو کالو زيات نه پاتيږي که څه هم په اول کې د څرخې د کړې (حلقې) په اندازه کوچنی وي[1]) (فتح القدير، الكفاية)، نو د دې مُنقص په خاطر مور د حمل له مودت څخه شپږ مياشتې کمې کړي او د هغه مودت مو دوه (۲) کاله وګرځوی، او څرنګه چې د رضاعت په هکله هيڅ مُنقص نشته، نو ځکه به د هغه په هکله د قرآن حکم "ثلاثون شهرًا" پر خپل اصل پاته وي او په هغه کې به هيڅ ډول کمي او تخفيف نه کيږي.

**ولأنه إلخ:** په دې عبارت سره د امام صاحب عقلي دليل بيانوي، حاصل يې دا دی چې د کوچني اوله غذا شيدې وي او د وخت په تيريدو سره په دې کې تغيّر او بدلون راځي او کوچنی د خوراک سره عادت کيږي، او دا خبره تسليم سوې ده چې په يوه وار کوچنی له شيدو څخه نه پرېکول کيږي، لهذا له شيدو څخه د پرېکولو لپاره يو داسې مودت ضروري دی چې په هغه کې په ورو ورو (په کراره کراره) کوچني له شيدو څخه پرې سي او د نورو خوراکي شيانو سره عادت سي، او په تجربه سره دا خبره ثابته سوې ده چې د حمل ادنیٰ مودت يعني شپږ مياشتې يو داسې مودت دی چې په هغه کې له يوه حالت څخه و بل حالت ته تغير او بدلون راتلی سي او کوچنی د خوراک سره عادت کېدای سي، نو ځکه مور شپږ مياشتې نورې پر زياتې کړې او د رضاعت مودت مو دېرش (۳۰) مياشتې وګرځوی.

**والحديث محمول إلخ:** په دې عبارت سره د صاحبينو د حديث "لَا رَضَاعَ بَعْدَ حَوْلَيْنِ" جواب ورکوي، فرمايي چې په دې حديث کې د رضاعت مودت نه دی بيان سوی بلکې په دې حديث کې (پر پلار) د اُجرت د استحقاق مودت بيان سوی دی يعني په پلار باندې د زوی د شيدو لپاره دوه کاله

---

[1] مَغْزَل د څرخې کړی ته وايي (يعني ګردی او سپنيزه حلقه)، څرخه هغه آلې ته وايي چې د هغې په ذريعه له مالوچو (پمبې) څخه تارونه جوړيږي، فَلْكَة دا د چمړې (څرمني) هغه کوچنی ټوکړې (ټوټې) ته چې په هغه کې د څرخې کړی (مَغزَل) لګول سوې وي (چې هغه بيخي کوچني وي)، په يوه روايت کې د "فَلْكَة" پر ځای "ظِلّ" ذکر سوی دی، مطلب يې دا دی چې که حمل دومره کوچنی او باريک وي لکه د څرخې د کړې چمړه يا سايه چې ګرسره په سترګو نه ليدل کيږي، نو بيا هم هغه خامخا په دوو کالو کې غټيږي او دباندې راوځي، نو ځکه د حمل اکثره مودت دوه کاله دی.

اُجرت ورکول ضروري دي (نو که يو سړي خپلې ښځې ته طلاق ورکړي او هغه ښځه په بلې ښځې خپل زوی ته شيدې ورکوي، نو پر پلار [طلاقونکي] د دوو کالو اُجرت لازم دی چې هغه به د دې کوچني د شيدو په عوض کې ورکوي)، او په کوم آيت کې چې دا خبره بيان سوه چې تر دوو کالو پورې به شيدې ورکوي په هغه کې هم د دغه اُجرت ورکولو مودت بيان سوی دی (يعني له هغه څخه مراد دا دي چې په پلار باندې دزوی د شيدو لپاره دوه کاله اُجرت ورکول ضروري دي) او په هغه آيت کې د رضاعت مودت نه دی بيان سوی ځکه چې په هغه آيت کې دا هم ذکر سوي دي "فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا" په دې کې له شيدو څخه د کوچني پرېکول د خاوند او ښځې دواړو په رضاء پورې معلق سوي دي، نو که تر دوو کالو وروسته شيدې ورکول حرام وای نو په رضاء پورې به نه معلق کېدی، لهذا معلومه سوه چې په دې آيت کې هم د رضاعت مودت نه دی بيان سوی، بلکې د اُجرت د استحقاق مودت بيان سوی دی.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې که څه هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلائل ډېر دي، خو راجح قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی چې مودت د رضاعت دوه کاله دی (ځکه چې د صاحبينو دليل قوي ښکاري)، لکه څرنګه چې علامه حصکفي رَحِمَهُ الله فرمايي: هو حولان ونصف عنده. وحولان فقط عندهما وهو الأصح وبه يفتى. [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۰۳]

## د رضاعت تر مودت وروسته شيدې رودل

قَالَ: وَإِذَا مَضَتْ مُدَّةُ الرَّضَاعِ فرمايي: کله چې د رضاعت مودت تېره سي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِالرَّضَاعِ تَحْرِيمٌ نو د رضاعت سره حرمت نه متعلق کيږي [يعني د رضاعت تر مودت وروسته په شيدو رودلو سره حرمت نه ثابتيږي] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: لَا رَضَاعَ بَعْدَ الْفِصَالِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چې: [له تي څخه] تر پرېکولو وروسته رضاعت نسته وَلِأَنَّ الْحُرْمَةَ بِاعْتِبَارِ النُّشُوْءِ او په دې وجه [هم] چې حرمت د ودې [او نما] په اعتبار سره دی وَذَلِكَ فِي الْمُدَّةِ او وده [د رضاعت] په مودت کې دننه ثابتيږي إِذِ الْكَبِيرُ لَا يَتَرَبَّى بِهِ ځکه چې غټ کوچنی په شيدو سره نه پالل کيږي [بلکې هغه ته نور مناسب خوراکونه ورکول کيږي] وَلَا يُعْتَبَرُ الْفِطَامُ قَبْلَ الْمُدَّةِ او [د رضاعت] تر مودت مخکې [له تي څخه] پرېکول معتبر نه دي إِلَّا فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ إِذَا اسْتَغْنَى عَنْهُ خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په يوه روايت کې [ذکر سوي دي] چې کله کوچنی له شيدو څخه بې پروا سي [نو بيا د رضاعت تر مودت مخکې

❁ القول الراجح: هو ظاهر الرواية (يعني لا يعتبر الفطام قبل المدة)، كما صرّح به قاضيخان وقال:"وفي ظاهر الرواية إذا أرضع في مدة الرضاع يثبت به الحرمة على كل حال" (الخانية ج:۱، ص:۱۹۱). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۰۴]

هم له تي څخه پرېکول معتبر دي] وَوَجْهُهُ انْقِطَاعُ النُّشُوْءِ بِتَغَيُّرِ الْغِذَاءِ او د دې وجه دا ده چې د غذا په تبديلۍ سره وده او نما منقطع کيږي وَهَلْ يُبَاحُ الْإِرْضَاعُ بَعْدَ الْمُدَّةِ؟ او آيا [د رضاعت] تر مودت وروروسته شيدې ورکول روا دي قِيْلَ: لَا يُبَاحُ نو يو قول دا دی: چې روا نه دي لِأَنَّ إِبَاحَتَهُ ضَرُوْرِيَّةٌ ځکه چې د شيدو ورکولو روايښت د ضرورت په وجه دی لِكَوْنِهِ جُزْءَ الْآدَمِيِّ ځکه چې شيدې [هم] د انسان يو جزء دی.

**اللغات**: ﴿لَا يَتَرَبَّى﴾ د تفعّل د باب نفي صيغه ده: پالنه او تربيه کول، وده او پالنه حاصلول، ﴿فِطَام﴾ له تي او شيدو څخه د کوچني پرېکول، له تي او شيدو څخه د پرېکولو زمانه، ﴿إِرْضَاع﴾ د افعال مصدر دی: کوچني ته شيدې ورکول، ﴿ضَرُوْرِيَّة﴾ د ضرورت پر بناء، د مجبورۍ په وجه (د ضرورت او مجبورتيا په وجه ثابت سوی شی).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د رضاعت تر مودت وروسته که ښځه يو کوچني ته شيدې ورکړي، نو په دې سره حرمت د رضاعت نه ثابتيږي، برابره ده تر اوسه کوچنی له تي او شيدو څخه پرېکړی سوی وي او که نه وي او شيدې رودي او که يې نه رودي، يعني د حرمتِ رضاعت دار ومدار پر وقت او مودت دی، د شيدو پر رودلو يا د کوچني تر پرېکېدلو وروسته پر رودلو (چيښلو) نه دی؛ دليل د نبي کريم ﷺ دا حديث دی: "لَا رَضَاعَ بَعْدَ الْفِصَالِ" (چې له تي څخه تر پرېکېدلو وروسته يعني د رضاعت د مودت تر ختمېدلو وروسته رضاعت نسته).

عقلي دليل دا دی چې د حرمت دار ومدار پر وده او نما دی (يعني حرمت په هغه شيدو سره ثابتيږي چې په هغه سره د کوچني غوښې او هډوکي وده وکړي او اضافه پکښې راسي)، او دا خبره تسليم سوې ده چې دا د رضاعت په مودت کې دننه کيږي (يعني په شيدو سره د کوچني وده او نما د رضاعت په مودت کې دننه کيږي)، ځکه د کوچني تر غټېدلو او د رضاعت له مودت څخه تر وتلو وروسته د هغه وده او نما په شيدو سره نه بلکې په نورو خوراکونو او غذاګانو سره کيږي (مثلاً ډوډۍ، بسکوټ او داسې نور خوراکونه).

**ولا يعتبر إلخ**: فرمايي چې د رضاعت تر مودت مخکې له شيدو څخه د کوچني پرېکول معتبر نه دي؛ نو که د رضاعت په مودت کې تر شيدو پرېکولو وروسته ښځه يو کوچني ته شيدې ورکړي نو په دې سره حرمتِ رضاعت ثابتيږي، همدا ظاهر روايت دی.

خو حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل کړی دی چې که د رضاعت تر مودت مخکې يو کوچنی د شيدو رودل پرېږدي او له شيدو څخه بالکل مستغني سي او بيا يوه ښځه د رضاعت په موده کې دننه هغه ته شيدې ورکړي، نو په دې سره حرمت رضاعت نه ثابتيږي؛ ځکه په عقلي دليل کې ذکر سوه چې د حرمت دار ومدار پر وده او نما دی، او کوچنی چې کله په پوره توګه شيدې پرېږدي نو د کوچني وده او نما له شيدو څخه په غذا او خوراک بدله سي، نو ګواکې په شيدو رودلو سره د هغه په غوښو او هډوکو کې وده او اضافه نه راغله، نو ځکه به په دغه شيدو سره حرمت نه ثابتيږي.

**وهل يباح الخ:** تاسې ته معلومه سوه چې د رضاعت تر مودت وروسته په شيدو رودلو سره حرمت رضاعت نه ثابتيږي، اوس دا خبره را ښيي چې د رضاعت د مودت تر ختمېدلو وروسته کوچني ته شيدې ورکول روا دي، که نه؟

فرمايي چې په دې باره کې تحقيقي خبره دا ده چې د رضاعت تر مودت وروسته کوچني ته شيدې ورکول صحيح او روا نه دي؛ ځکه چې شيدې د انسان يو جزء او يوه حصه ده، او انسان د خپل ټولو اجزاؤ سره محترم او قابل د حفاظت او تعظيم دی، او فقط د ضرورت پر بناء د انسان دغه جزء حلال کړی سوی دی، او د رضاعت په مودت کې ضرورت پوره سو، نو ځکه به اوس شيدې ورکول روا نه وي.

## د رضاعت د محرماتو بيان

قَالَ: **وَيَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ** فرمايي: او حراميږي په رضاعت سره هغه [کسان] کوم چې حراميږي په نسب سره **لِلْحَدِيْثِ الَّذِي رَوَيْنَا** د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی **إِلَّا أُمَّ أُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعِ** مګر د خپلې رضاعي خور مور **فَإِنَّهُ يَجُوْزُ أَنْ يَّتَزَوَّجَهَا** ځکه دا جائز دي چې سړی د هغې سره نکاح وکړي **وَلَا يَجُوْزُ أَنْ يَّتَزَوَّجَ أُمَّ أُخْتِهِ مِنَ النَّسَبِ** لېکن د خپلې نسبي خور سره د سړي نکاح کول جائز نه دي **لِأَنَّهَا تَكُوْنُ أُمَّهُ أَوْ مَوْطُوْءَةَ أَبِيْهِ** ځکه چې هغه به يا د ده خپله مور وي يا به د ده د پلار وطي کړی سوې ښځه وي [يعني يا به د ده مېرزۍ مور وي] **بِخِلَافِ الرَّضَاعِ** په خلاف د رضاعت **وَيَجُوْزُ تَزَوُّجُ أُخْتِ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ** او د خپل رضاعي زوی د خور سره نکاح کول جائز دي **وَلَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ مِنَ النَّسَبِ** لېکن د نسبي زوی د خور سره نکاح کول جائز نه دي **لِأَنَّهُ لَمَّا وَطِئَ أُمَّهَا**

حُرِمَتْ عَلَيْهِ ځکه کله چي [پلار] د هغې سره وطي وکړي نو هغه [د زوی خور] پر ده حرامه سوه وَلَمْ يُوجَدْ هٰذَا الْمَعْنٰى فِي الرَّضَاعِ او دا معنیٰ په رضاعت کي نسته وَامْرَأَةُ أَبِيهِ أَوِ امْرَأَةُ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ لَا يَجُوْزُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا او د خپل رضاعي پلار يا د خپل رضاعي زوی د ښځي سره نکاح کول جائز نه دي كَمَا لَا يَجُوْزُ ذٰلِكَ مِنَ النَّسَبِ لکه څرنګه چي د نسبي [پلار يا زوی د ښځي] سره [نکاح کول] جائز نه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَذِكْرُ الْأَصْلَابِ فِي النَّصِّ لِإِسْقَاطِ اعْتِبَارِ التَّبَنِّيْ او په آيت کي "أَصْلَاب" د مُتبنّي د حکم ساقطولو لپاره ذکر سوی دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه مخکي چي موږ دا [خبره] بيان کړه.

**اللغات**: ﴿أَصْلَاب﴾ جمع د صُلْبٌ ده: شا، ملا، مراد ځني نسبي قرابت دی، ﴿تَبَنِّيْ﴾ د تفعّل مصدر دی: يو څوک خپل زوی ګرځول (په زوی نيول) چي هغه ته په اصطلاح کي "مُتَبَنِّيْ" (نومولی زوی) وايي.

**تشريح**: صاحب د کتاب په دې عبارت کي د رضاعت د حرمت په هکله يوه قاعده او يو څو استثنائي صور تونه بيانوي، قاعده دا ده چي کومي ښځي د نسب په وجه حرامي وي، هغه ښځي د رضاعت په وجه هم حرامي دي (يعني څرنګه چي د نسبي محرماتو سره نکاح جائز نه ده، همداسي د رضاعي محرماتو سره هم نکاح جائز نه ده)، خو په رضاعت کي يو څو صور تونه داسي دي کوم چي له نسب څخه جلا دي او د دوی حکم هم له نسب څخه جلا دی، او هغه دا دي:

(١)... د خپلي رضاعي خور د مور سره نکاح کول جائز دي، د دې په خلاف د خپلي نسبي خور د مور سره نکاح کول د هغه لپاره بالکل روا نه دي؛ ځکه چي د رضاعي خور په مور کي د حرمت هيڅ وجه نسته، رضاعي مور نه د ده خپله مور کيږي او نه د ده د پلار موطوئه (مېرېزې مور) کيږي، لېکن د نسبي خور مور به يا په خپله د ده مور وي (کله چي دوی حقيقي وررور او خور وي)، يا هغه به د ده د پلار موطوئه (مېرزې مور) وي (کله چي دوی فقط په پلار شريک وررور او خور وي)، او د انسان لپاره نه د خپلي حقيقي مور سره نکاح کول جائز دي او نه د خپلي مېرېزې مور سره.

(٢)... دويم صورت دا دی چي د خپل زوی د رضاعي خور سره نکاح کول جائز دي، لېکن د زوی د نسبي خور سره نکاح کول جائز نه دي، ځکه چي د زوی نسبي خور به يا د انسان خپله لور وي (يعني د ده له د نطفې څخه به پيدا وي) او د خپلي لور سره په هر صورت کي نکاح ناجائز او حرامه ده، او يا به د ده ناسکه لور او رَبِيبه وي (يعني د بل چا له نطفې څخه به پيدا وي خو دئ به يې پالنه او تربيه کوي).

نو په دې صورت کې حکم دا دی چې که د ربيبې (ناسکه لور) د مور سره انسان وطي وکړي نو پر هغه دا ربيبه (ناسکه لور) حراميږي، نو ځکه به د زوی د نسبي خور سره په هيڅ حالت کې نکاح کول جائز نه وي، د دې په خلاف د زوی د رضاعي خور په نکاح کې دغه حرمت نه راځي بلکې هغه په "وَأُحِلَّ لَكُمْ مَا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ" کې داخله ده، نو په دې وجه به د هغې سره نکاح کول صحيح او جائز وي.

**وامرأة أبيه إلخ**: په دې سره دا رابښيي چې د هيڅا لپاره هم د خپل رضاعي پلار د ښځې يا د خپل رضاعي زوی د ښځې (مړور) سره نکاح کول جائزنه دي. لکه څرنګه چې په نسب کې د خپل پلار د ښځې يا د خپلې مړور سره نکاح کول جائز نه دي. صورت يې دا دی چې مثلاً زيد د فاطمې شيدې وچيښلې، نو اوس د زيد لپاره د دغه مُرضعې ښځې يعني فاطمې سره نکاح کول صحيح نه دي. همدارنګه که د فاطمې يوه بَنْ وي او د فاطمې خاوند هغې ته طلاق ورکړی وي، نو هم د زيد لپاره د هغې سره نکاح جائز نه ده؛ ځکه چې دا طلاق سوې بَنْ د هغه د رضاعي پلار يعني د فاطمې د خاوند ښځه ده، او حکم دا دی چې "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ"، همدارنګه د رضاعي زوی د ښځې (مړور) سره هم د مرضعې ښځې د خاوند نکاح کول صحيح نه دي، ځکه چې د نسب په څير دلته هم د حرمت علت او سبب موجود دی.

**وذكر الأصلاب إلخ**: په دې سره أصلاً د يو مقدر سول جواب ورکوي، د سوال حاصل دا دی چې د قرآن کريم په دې آيت "وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ" کې فقط د صلبي زامنو ښځې حرامې سوې دي، ځکه چې تر "أَبْنَائِكُمْ" وروسته د "مِنْ أَصْلَابِكُمْ" قيد اضافه سوی دی، نو معلومه سوه چې د رضاعي زوی د ښځې سره نکاح کول جائز دي، حالانکې تاسو مسٔله د دې په خلاف ذکر کړه، نو آخر په دې آيت کې د دغه قيد څه فايده ده؟

د دې په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې دغه قيد اتفاقي نه دی بلکې احترازي دی او د مُتبنّی (نوموړي زوی) د ښځې د خارجولو (ايستلو) لپاره دی يعنې د مُتبنّی د ښځې سره په هر صورت کې نکاح جائز ده، او دغه قيد د رضاعي زوی د ښځې د خارجولو لپاره نه دی: ځکه چې د رضاعي زوی د ښځې حرمت په پورتني حديث "يحرم من الرضاع..." سره ثابت دی.

## په رضاعت کې د مذکر قرابت د حرمت بيان

وَلَبَنُ الْفَحْلِ يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيْمُ او د سړي په شيدو سره حُرمت متعلق کيږي وَهُوَ أَنْ تُرْضِعَ الْمَرْأَةُ صَبِيَّةً او هغه دا چې ښځه يو کوچنۍ نجلۍ ته شيدې ورکړي ايعني د رضاعت په مودت کې په يو کوچنۍ نجلۍ خپلې شيدې ورودي‌ا فَتَحْرُمُ هٰذِهِ الصَّبِيَّةُ عَلٰى زَوْجِهَا وَعَلٰى آبَائِهِ وَأَبْنَائِهِ نو هغه نجلۍ حراميږي د دغه ښځې پر خاوند او د خاوند پر پلار او د خاوند پر زامنو وَيَصِيْرُ الزَّوْجُ الَّذِيْ نَزَلَ لَهَا مِنْهُ اللَّبَنُ أَبًا لِلْمُرْضَعَةِ او د کوم خاوند په وجه چې د دغه ښځې شيدې راشوه سوي دي ايعني له تيو څخه را وتلي دي] هغه د دې [شيدې رودنکي] نجلۍ پلار ګرځي وَفِيْ أَحَدِ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ: لَبَنُ الْفَحْلِ لَا يُحَرِّمُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه په يوه قول کې دا ذکر سوي دي: چې د سړي شيدې حرامونکې نه دي ايعني د سړي شيدې حرمتِ رضاعت نه ثابتوي] لِأَنَّ الْحُرْمَةَ لِشُبْهَةِ الْبَعْضِيَّةِ ځکه چې حرمت د جزئيت د شبهې په وجه سره وي وَاللَّبَنُ بَعْضُهَا لَا بَعْضُهُ او شيدې د ښځې جزء دي، د سړي جزء نه دي وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی وَالْحُرْمَةُ بِالنَّسَبِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ او [د دې وجه دا ده چې] په نسب سره [ثابت سوی] حرمت له دواړو طرفونو څخه وي فَكَذَا بِالرَّضَاعِ نو همداسې به په رضاعت سره [ثابت سوی حرمت هم له دواړو طرفونو څخه وي] وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا [1]: «لِيَلِجْ عَلَيْكِ أَفْلَحُ [همدارنګه] نبي کريم ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمايل: ''اې عائشې! ] حضرت أفلح تا ته راتلی سي فَإِنَّهُ عَمُّكِ مِنَ الرَّضَاعَةِ» ځکه چې هغه ستا رضاعي اکا دی'' وَلِأَنَّهُ سَبَبٌ لِنُزُوْلِ اللَّبَنِ مِنْهَا او په دې وجه [هم] چې خاوند د ښځې [له تيو] څخه د شيدو راوتلو سبب دی فَيُضَافُ إِلَيْهِ فِيْ مَوْضِعِ الْحُرْمَةِ احْتِيَاطًا لهذا د احتياط لپاره به د حرمت په ځای کې د هغه وطرف ته [هم] شيدې منسوبه کيږي.

**اللغات:** ﴿فَحْل﴾ مينده، نارينه، هغه سړی چې د هغه دوطي په وجه له ښځې څخه کوچنی پيدا سوی وي، ﴿مُرْضَعَة﴾ د افعال له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده: هغه کوچنۍ نجلۍ چې شيدې ورکول سوي وي او هلک ته ''مُرْضَع'' وايي (چې بعضي سيمو کې داسې کوچني ته شيرخواره [يعني شيدې چيښونکی] وايي)، يعني رودونکې نجلۍ او ''مُرْضِعَة'' يعني د ضاد په کسره سره هغه

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الرضاع، باب تحريم الرضاع من ماء الفحل، حديث رقم:٧. وابو داؤد في كتاب النكاح، باب في لبن الفحل، حديث رقم:٢٠٥٧.

ښځي ته چي کوچني ته شيدې ورکوي، ﴿لِيَلِجُ﴾ د ضرب له باب څخه د أمرِ غائب صيغه ده: (کور ته) داخلېدل، ننوتل.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي مختصراً په دې خبر ځان پوه کړئ! چي د "لَـبَن" اضافت و "فَحْل" ته د "إضافة الشئ إلى سببه" له قبيلې څخه دی، يعني شی د شي د سبب و طرف ته مضاف سوی دی؛ ځکه چي د ښځي د شيدو سبب سړی (خاوند) دی، نو ځکه (په عبارت کي) د حرمت تعلق د هغه و طرف ته مضاف او منسوب کړی سو.

**صورت د مسئلې**: دا دی که يوه ښځه کوچني نجلۍ ته شيدې ورکړي، نو د دغه ښځي خاوند د هغه نجلۍ رضاعي پلار جوړېږي، او د دې ښځي اُصول او فروع پر هغه نجلۍ حرامېږي، او د هغه نجلۍ سره نه د دې ښځي خاوند نکاح کولای سي او نه د دې ښځي خُسر او زوی د هغې سره نکاح کولای سي، خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دا دی چي د سړي د شيدو سره حرمت نه متعلق کيږي، يعني دا خبره تسليم سوې ده چي که ديو سړي له سينې (تيانو) څخه شيدې راووځي او هغه يو هلک يا نجلۍ ته خپلي شيدې ورکړي، نو په دې سره حرمت نه ثابتيږي، لهذا کله چي په خپله د سړي د شيدو سره حرمت نه متعلق کيږي، نو د هغه شيدو سره به ولي حرمت متعلق سي کوم چي د سړي په وجه د ښځي په سينه کي پيدا سوي وي؛ ځکه چي د رضاعت د مُحرِم کېدلو مدار د جزئيت د شبهې په وجه دی (لکه مخکي چي دا خبره تېره سوه)، او دلته شيدې د ښځي جزء دی، نه د سړي، لهذا د حرمت تعلق خو به د ښځي سره وي، لېکن د سړي سره به نه وي.

**ولنا إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چي په دې باره کي زموږ دليل دا حديث دی: "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ"، يعني کوم قرابت چي د نسب په وجه سره حرام وي هغه قرابت د رضاعت په وجه سره هم حرام دی، او څرنګه چي د نسب حرمت د ښځي او خاوند دواړو له طرفه وي، نو د رضاعت والا حرمت به هم د خاوند او ښځي دواړو له طرفه وي، او څرنګه چي په رضاعت کي د ښځي سره حرمت متعلق کيږي، همداسي به د سړي سره هم متعلق کيږي.

په دې لړ کي زموږ دويم دليل دا دی چي حضرت أفلح ابن أبی قيس چي کله حضرت عائشې رضي الله عنها ته راغلی نو حضرت عائشې رضي الله عنها له هغه څخه پرده وکړه، نو أفلح وويل چي: ته زما څخه ولي پرده کوې!، زه خو ستا رضاعي اکا يم، حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل چي ته څنګه زما رضاعي اکا يې، نو أفلح وويل چي تا ته زما د ورور (ابو القعيس) ښځي شيدې درکړي دي، نو حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل چي ما ته خو ښځي شيدې راکړي دي، سړي (يعني ستا ورور) خو نه دي راکړي،

وروسته حضرت عائشې ﷞ دا قصه رسول الله ﷺ ته بيان کړه، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چې أفلح صحيح خبره کوي، تا ته د هغه دورور ابو القعيس ښځې شيدې درکړي دي، نو ابو القعيس ستا رضاعي پلار دی او أفلح ستا رضاعي اکا دی، نو هغه بېله پردې ستا مخته راتلی سي (يعني ته له هغه څخه پرده مه کوه!).

په دې واقعه کي چي حضرت عائشې ﷞ ته نبي کريم ﷺ دا اجازه ورکړې ده چي أفلح ستا مخته راتلی سي (او ته پرده مه ځني کوه!) دغه اجازه د حضرت عائشې د رضاعي پلار (ابو القعيس) سره د حرمت د متعلق کېدلو په وجه ده، نو معلومه سوه چي د ښځې په شيد د سړي سره هم حرمت متعلق کيږي او هغه ته هم د حرمت اضافت (نسبت) کيږي.

**ولأنه إلخ:** په دې سره صاحب د هدايې عقلي دليل بيانوي فرمايي چي صحيح او صفا خبره دا ده چي د ښځې په سينه کي د شيدو پيدا کېدلو سبب سړی (خاوند) دی، او د ښځې سره حرمت متعلق دی، لهذا د احتياط په خاطر به د سړي سره هم حرمت متعلق منل کيږي؛ ځکه چي شريعت موږ ته د حرمت په ځايونو کي د احتياط کولو تأکيد او تلقين کړی دی.

## د رضاعت د محرماتو نور تفصيل

**وَيَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ الرَّجُلُ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ الرَّضَاعِ** او جائز دي چي سړی د خپل رضاعي ورور د خور سره نکاح وکړي **لِأَنَّهُ يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ النَّسَبِ** ځکه دا جائز دي چي هغه د خپل نسبي ورور د خور سره نکاح وکړي **وَذَلِكَ مِثْلُ الْأَخِ مِنَ الْأَبِ إِذَا كَانَتْ لَهُ أُخْتٌ مِنْ أُمِّهِ** او دا لکه مېرزی ورور چي هغه په مور شريکه خور لري **جَازَ لِأَخِيهِ مِنْ أَبِيهِ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا** نو د دې مېرزي ورور لپاره جائز دي چي د هغې سره نکاح وکړي **وَكُلُّ صَبِيَّيْنِ اجْتَمَعَا عَلَى ثَدْيِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ** او هر هغه دوه کوچنيان چي د يوې ښځې پر تيو سره يو ځای سوي وي [يعني د يوې ښځې له تيو څخه يې شيدې رودلي وي] **لَمْ يَجُزْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْأُخْرَى** نو په هغوی کي د يوه لپاره دا جائز نه دي چي د بل سره نکاح وکړي **هَذَا هُوَ الْأَصْلُ** همدا [په دې باره کي] قاعده ده **لِأَنَّ أُمَّهُمَا وَاحِدَةٌ** ځکه چي د دوی دواړو مور يوه ده **فَهُمَا أَخٌ وَأُخْتٌ** نو دوی دواړه [سره] ورور او خور دي **وَلَا يَتَزَوَّجُ الْمُرْضَعَةُ أَحَدًا مِنْ وَلَدِ الَّتِي أَرْضَعَتْ** او نکاح نه سي کولای شير خوراه [شيدې رودونکې] نجلۍ د هغه ښځې د زوی سره کوم چي يې دې [شير خواري نجلۍ] ته شيدې ورکړې وي **لِأَنَّهُ أَخُوهَا** ځکه چي هغه د دې نجلۍ [رضاعي] ورور دی **وَلَا وَلَدَ**

وَلَدِهَا او نه [نكاح كولای سي] د هغې [شيدې وركونكي ښځې] د لمسي سره لِأَنَّهُ وَلَدُ أَخِيهَا ځكه چي هغه د دې نجلۍ [رضاعي] وراره دی وَلَا يَتَزَوَّجُ الصَّبِيُّ الْمُرْضَعُ أُخْتَ زَوْجِ الْمُرْضِعَةِ او نكاح نه سي كولای شير خواره كوچنی د شيدې وركونكي ښځې ايعني د خپل رضاعي مور] د خاوند د خور سره [په لنډه توګه دا چي د رضاعي مور د ايندرور سره ديو چا نكاح جائز نه ده] لِأَنَّهَا عَمَّتُهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ ځكه چي هغه د ده رضاعي امه كيږي.

**اللغات:** ﴿ثَدْی﴾ تيان (سينه)، ﴿عَمَّة﴾ امه (امكه).

**تشريح:** په دې عبارت كي څلور (۴) مسئلې بيان سوي دي، چي هغه به انشاء الله ستاسو په مخ كي په ترتيب سره بيان سي: (۱)... اوله مسئله دا ده چي د خپل رضاعي ورور د خور سره نكاح كول جائز دي، مثلاً كه زيد او خالد دواړو ديو ښځي شيدې رودلي وي، نو په دوی كي هر يو د هغه بل رضاعي ورور دی، او د خالد لپاره د خپل رضاعي ورور د نسبي خور سره يعني د زيد د نسبي خور سره نكاح جائز ده؛ ځكه چي دلته د رضاعت تعلق د زيد او خالد سره دی (ځكه چي فقط دوی دواړو د هغه ښځي شيدې رودلي دي) نو د زيد د خور سره د رضاعت هيڅ تعلق نسته.

او بل دا چي د نسبي ورور لپاره د نسبي ورور د خور سره (هم) نكاح صحيح ده (يعني د مېرزي ورور د هغه خور سره نكاح صحيح ده چي هغه فقط په مور ور سره شريكه وي)، مثلاً د عبد الرحيم دو ښځي دي: ① شاكره، ② عائشه، او دواړي ښځي يو، يو زوی لري: ① عُمر، ② أسلم (يعني عُمر د شاكرې زوی دی او أسلم د عائشې زوی دی)، نو دا عمر او أسلم په يوه پلار سره شريک ورونه دي (او مندي يې سره جلا دي چي دې ته مېرزي يا ناسكه ورونه هم وايي)، نو كه عبد الرحيم شاكرې ته طلاق وركړی او تر عدت تېرولو وروسته شاكرې د عبد القادر سره واده وكړی او له عبد القادر څخه يې د فاطمې په نامه يوه لور پيدا سوه، نو اوس چي له اول خاوند (عبد الرحيم) څخه د شاكرې كوم زوی دی يعني عمر هغه او فاطمه دواړه په يوه مور سره شريک دي، خو د عمر چي كوم مېرزی (ناسكه) ورور دی يعني أسلم هغه د فاطمې هيڅ نه كيږي او فاطمه د هغه په حق كي اجنبيه (پردی) ده. لهذا د أسلم سره (كوم چي د عمر نسبي ورور دی) د عمر د نسبي خور يعني د فاطمې نكاح صحيح او جائز ده، نو كله چي د دوی نكاح جائز ده، نو د رضاعي ورور د نسبي خور سره به هم نكاح جائز وي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده كوم هلک او نجلۍ چي ديو ښځي شيدې رودلي وي، نو د دوی په خپل مينځ كي نكاح صحيح نه ده؛ ځكه چي د دوی دواړه ديوې (رضاعي) مور زامن دي. لهذا دوی دواړه سره ورور او خور دي او د ورور او خور په مينځ كي نكاح صحيح نه ده. برابره ده هغه كه حقيقي ورور

او خور وي او كه رضاعي، صاحب د هدايې په "وَكُلُّ صَبِيَّيْنِ اجْتَمَعَا...الخ" سره همدغه مسئله بيان كړې ده.

(۳)... (دا په اصل كې د دغه مخكنۍ مسئلې إعاده ده)، دريمه مسئله دا ده چې كومې نجلۍ ديو ښځې شيدې رودلې وي، د هغه نجلۍ سره نه د دې ښځې د زوی نكاح جائز ده او نه يې د لمسي (يعني د زوی د زوی) نكاح ور سره جائز ده؛ د زوی نكاح ځكه جائز نه ده چې هغه د دغه نجلۍ رضاعي ورور كيږي، او د لمسي نكاح ځكه جائز نه ده چې هغه د دغه نجلۍ رضاعي وراره كيږي، او څرنګه چې د نجلۍ سره د حقيقي ورور او حقيقي وراره نكاح جائز نه ده، همداسې د رضاعي ورور او رضاعي وراره نكاح هم د هغې سره جائز نه ده؛ ځكه چې "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ".

(٤)... څلورمه مسئله دا ده چې كوم هلک د يو ښځې شيدې رودلې وي، د هغه سره د دغه ښځې د اينډرور (د مېړه د خور) نكاح جائز نه ده؛ ځكه چې هغه د ده رضاعي امه كيږي، او څرنګه چې د حقيقي امه سره نكاح جائز نه ده، همداسې د رضاعي امه سره هم نكاح جائز نه ده.

## كه د ښځې په شيدو اوبه ګډې كړل سي نو په هغه سره د حرمت ثابتېدلو بيان

وَإِذَا اخْتَلَطَ اللَّبَنُ بِالْمَاءِ او كله چې شيدې په اوبو ګډې كړل سي وَاللَّبَنُ هُوَ الْغَالِبُ او شيدې غالبه وي تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د دې [مخلوطه شيدو] سره حرمت متعلق كيږي [يعني په داسې شيدو سره حرمتِ رضاعت ثابتيږي] وَإِنْ غَلَبَ الْمَاءُ او كه اوبه غالبه وي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو حرمت نه ور سره متعلق كيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُولُ: إِنَّهُ مَوْجُودٌ فِيهِ حَقِيقَةً هغه فرمايي: چې په حقيقت كې شيدې په دغه اوبو كې موجوده دي وَنَحْنُ نَقُولُ: الْمَغْلُوبُ غَيْرُ مَوْجُودٍ حُكْمًا او موږ وايو: چې مغلوب [شی] د حكم په اعتبار سره موجود نه وي حَتَّى لَا يَظْهَرَ بِمُقَابَلَةِ الْغَالِبِ تر دې چې د غالب په مقابله كې هغه نه ښكاره كيږي كَمَا فِي الْيَمِينِ لكه د قسم په مسئله كې [چې هم داسې كيږي] وَإِنِ اخْتَلَطَ بِالطَّعَامِ او كه شيدې د خوراک سره ګډې كړل سي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ وَإِنْ كَانَ اللَّبَنُ غَالِبًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د هغه سره حرمت نه متعلق كيږي، كه څه هم شيدې غالبه وي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا ❁: إِذَا كَانَ اللَّبَنُ غَالِبًا يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: والصحيح إطلاق عدم الحرمة، لأنّ التغذي حينئذ بالطعام...إلخ. (فتح القدير ج:۲، ص:۳۱۶). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۰۵]

فرمايي: که چيري شيدې غالبه وي نو حرمت ور سره متعلق کيږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: قَوْلُهُمَا فِيمَا إِذَا لَمْ تَمَسَّهُ النَّارُ صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول په هغه صورت کي دی [يعني پر هغه شيدو محمول دی] کله چي أور هغه نه وي مسه کړي حَتَّى لَوْ طُبِخَ بِهَا لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيْمُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا تر دې که هغه په أور پخې کړل سي نو د ټولو په نېز حرمت نه ور سره متعلق کيږي لَهُمَا: أَنَّ الْعِبْرَةَ لِلْغَالِبِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي اعتبار غالب لره وي كَمَا فِي الْمَاءِ لکه په اوبو کي [چي هم دغه حکم دی] إِذَا لَمْ يُغَيِّرْهُ شَيْءٌ عَنْ حَالِهِ [په دې شرط] کله چي يو شي شيدې له خپل حالت څخه نه وي بدلي کړي [لکه پخول يا داسي بل شی] وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ: أَنَّ الطَّعَامَ أَصْلٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي خوراک أصل دی وَاللَّبَنُ تَابِعٌ لَهُ فِي حَقِّ الْمَقْصُوْدِ او شيدې د مقصود په حق کي د خوراک تابع دي فَصَارَ كَالْمَغْلُوْبِ نو [شيدې] د مغلوب په څير سوې وَلَا مُعْتَبَرَ بِتَقَاطُرِ اللَّبَنِ مِنَ الطَّعَامِ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز له خوراک څخه د شيدو څڅېدلو اعتبار نسته [يعني که شيدې دومره پر خوراک غالبه وي چي له ګولې څخه شيدې څڅيږي، نو په دې سره هم د امام صاحب په نېز حرمت نه ثابتيږي] هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ التَّغَذِّيَ بِالطَّعَامِ إِذْ هُوَ الْأَصْلُ ځکه چي [په دغه صورت کي] په خوراک سره غذا حاصلول أصل دي [او شيدې په غذا حاصلولو کي د خوراک تابع دي].

**اللغات:** ﴿إِخْتَلَطَ﴾ د افتعال ماضي ده: ګډېدل (مخلوطېدل)، ﴿عِبْرَة﴾ اعتبار، ﴿يَتَقَاطَرُ﴾ د تفاعل مضارع ده: څڅېدل، ﴿تَغَذِّيْ﴾ د تفعّل مصدر دی: يو شی د ځان لپاره غذا ګرځول (غذا حاصلول).

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې (۲) مسئلې بيان سوي دي: (۱)... د اولي مسئلې تشريح دا ده چي که يو ښځه په خپلو شيدو اوبه ګډې کړي او بيا يې يو کوچني ته ورکړي، نو آيا په دې سره حرمت رضاعت ثابتيږي، که نه؟

صاحب د کتاب فرمايي چي په داسي صورت کي به زموږ په نېز د شيدو او أوبو مقدار ته کتل کيږي، که چيري شيدې ډېري يعني غالبه وي او اوبه لږ او مغلوبه وي نو د دې په څېښلو سره حرمت رضاعت ثابتيږي، لېکن که شيدې لږ او مغلوبه وي او اوبه پر غالبه وي نو د داسي شيدو په څېښلو سره حرمت رضاعت نه ثابتيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې ډول (مخلوطه) شيدو سره

مطلقاً حرمت ثابتیږي، هغه که شیدې غالبه وي او که مغلوبه وي (په دې شرط چې د پنځو غړپو په اندازه وي).

**د امام شافعي دلیل**: دا دی چې (مخلوطه) شیدې که څه هم مغلوبه وي خو بیا هم هغه حقیقتاً او حساً موجوده وي، او له یو محسوس او موجود شي څخه انکار نه سي کېدای؛ نو ځکه به په دې (مخلوطه) شیدو سره هم حرمتِ رضاعت ثابتیږي، لکه څرنګه چې په خالصه شیدو سره حرمت رضاعت ثابتیږي.

**زموږ دلیل**: ونحن نقول إلخ: زموږ دلیل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله جواب دا دی چې مغلوب شی حکماً غیرِ موجود او معلوم وي، او د حرمت د ثبوت لپاره د حقیقت او حکم دواړو په اعتبار سره د هغه وجود ضروري دی.

دویمه خبره دا ده چې د حرمت تعلق او د هغه ثبوت محض د شیدو پرچیښلو او رودلو نه دی موقوف، بلکې په شیدو سره د غوښو او هډوکو وده کول او زیاتېدل هم ضرور دي، او موږ وینو چې په دې (مخلوطه) شیدو سره دا فایده نه حاصلیږي، نو په دې وجه به هم په داسې شیدو سره حرمت نه ثابتیږي.

كما في اليمين إلخ: څه مخکې صاحب د هدایې دا خبره وکړه چې مغلوب شي د حکم په اعتبار سره غیرِ موجود او معلوم وي، اوس په یوه مثال سره د دغه خبرې وضاحت کوي، هغه دا چې که یو سړی قسم وکړي چې زه به شیدې نه چیښم، بیا هغه مغلوبه شیدې وچیښي (یعني چې اوبه پر غالبه وي)، نو هغه په خپل قسم کې نه حانثیږي، لهذا څرنګه چې د قسم په مسئله کې مغلوبه شیدو لره هیڅ اعتبار نسته، همداسې به د حرمتِ رضاعت په مسئله کې هم داسې شیدو لره هیڅ اعتبار نه وي.

وإن اختلط إلخ: له دې ځای څخه دا رښیي چې که شیدې په خوراک ګډې کړل سي، نو په هغه سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په هیڅ صورت کې هم حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي، هغه که شیدې غالبه وي او که مغلوبه وي، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي که چیرې شیدې غالبه وي او خوراک مغلوبه وي، نو حرمت ثابتیږي، کنې نه ثابتیږي، صاحب د هدایې فرمايي چې د صاحبینو له قول څخه مراد اُومې شیدې (یعني غیرِ مطبوخه شیدې) دي، ځکه شیدې چې کله پر اُور پخې سي نو بالاتفاق په هغه سره حرمت نه ثابتیږي؛ ځکه چې بیا هغه شیدې پاته نه سي بلکې خوراک وګرځي.

لهما أن العبرة إلخ: د صاحبینو دلیل دا دی چې په مخلوط او ګډ شي کې د غالب اعتبار کیږي. نو ځکه موږ وایو چې که شیدې غالبه وي نو په هغه سره حرمت ثابتیږي (په دې شرط چې په یو شي سره د

شیدو حالت بدل سوي نه وي)، لکه په اوبو کي چي هم دغه حکم دی، مثلاً که په اوبو کي یو شی ولوېږي نو تر څو چي اوبه غالبه وي او أصل یې بدل سوی نه وي تر هغه وخته اوبه پاکي او "مباحُ الاستعمال" دي، او که مغلوبه سي او أصل یې بدل سي نو بیا "ممنوعُ الاستعمال" او ناپاکي دي.

**ولأبي حنيفة إلخ:** دا امام صاحب دلیل دا دی چي موږ د حرمت دار ومدار پر وده او نما موقوف کړی دی. او د ودي او نما تعلق د غذاء سره دی، او دا خبره هم مُسلمه ده چي د مقصود په حق کي (یعني د غذاء حاصلولو او د ودي او نما په حق کي) خوراک أصل دی او شیدې د هغه فرع او تابع دي (ځکه خوراک غیرِ مائع شی دی، او غیرِ مائع شی [یعني خوراک] مائع شی خپل تابع جوړوي) او تابع لره هیڅ اعتبار نسته، نو ځکه به دلته د نما او ودي تعلق د خوارک سره وي، نه د شیدو سره، نو کله چي دلته د نما او ودي تعلق د شیدو سره نسته نو په هغه سره به حرمت هم نه ثابتیږي، هغه که شیدې غالبه وي او که مغلوبه وي.

**ولا معتبر إلخ:** په دې سره دا رابښیي چي که شیدې دومره پر خوارک غالبه وي چي د ګولي (لقمې) راپورته کولو په وخت کي له ګولې څخه هم څڅیږي، نو بیا هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې سره حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي، همدا صحیح قول دی؛ ځکه کله چي شیدې د خوراک سره ګډې کړل سي نو هغه تابع وګرځیږي، او د تابع په هکله قاعده دا ده چي "لَا إِعْتِبَارَ بِالتَّوَابِعِ" یعني د حکم په اثبات کي توابعو لره هیڅ اعتبار نسته.

## که د ښځي په شیدو یو بل شی ګډ کړی سي نو په هغه سره د حرمت ثابتېدلو بیان

**وَإِنِ اخْتَلَطَ بِالدَّوَاءِ** او که شیدې په دواء ګډې کړل سي **وَاللَّبَنُ غَالِبٌ** او شیدې غالبه وي **تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ** نو د هغه سره حرمت متعلق کیږي [یعني په داسي شیدو سره حرمتِ رضاعت ثابتیږي] **لِأَنَّ اللَّبَنَ يَبْقَى مَقْصُودًا فِيهِ** ځکه چي په داسي مخلوطه شیدو کي شیدې مقصود وي **إِذِ الدَّوَاءُ لِتَقْوِيَتِهِ عَلَى الْوُصُولِ** ځکه چي دواء خو د دې لپاره وي چي شیدو ته پر رسېدلو تقویت ورکړي [یعني چي شیدې ژر هضم سي او تأثیر یې قوي سي] **وَإِذَا اخْتَلَطَ اللَّبَنُ بِلَبَنِ الشَّاةِ** او کله چي [د ښځي] شیدې د بزې

د شيدو سره ګډې کړل سي وَهُوَالْغَالِبُ او د ښځې شيدې غالبه وي تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيْمُ نو د هغه سره [هم] حرمت متعلق کيږي وَإِنْ غَلَبَ لَبَنُ الشَّاةِ او که د بزې شيدې غالبه وي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيْمُ نو حرمت نه ور سره متعلق کيږي اِعْتِبَارًا لِلْغَالِبِ غالب ته په اعتبار ورکولو سره كَمَا فِي الْمَاءِ لکه څرنګه چې په اوبو کې [هم دغه حکم وو].

**اللغات:** ﴿تَقْوِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: قوت رسول، پياوړي کول، ﴿شَاة﴾ بزه، وزه (دا لفظ په عربي کې د بزې، ميږې، پسه او داسي نورو ټولو لپاره استعماليږي. جمع يې شِيَاه راځي).

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... که ديو ښځې شيدې په دواء ګډې کړل سي او شيدې غالبه وي، نو د داسي شيدو سره حرمت متعلق کيږي، يعني که يو کوچنی ته (د رضاعت په مودت کې) داسي شيدې ورکول سي، نو هغه ښځه د دغه کوچني رضاعي مور ګرځي؛ ځکه کله چې شيدې غالبه وي نو شيدې اصل وي، او دواء د شيدو د اثر تېزولو (او ژر هضمولو) لپاره وي، نو ځکه به په دغه شيدو سره حرمت ثابتيږي (او که دواء غالبه وي او شيدې مغلوبه وي نو دواء اصل وي او شيدې تابع وي،نو په هغه سره به حرمت نه ثابتيږي. **اصـول:** د داسي ټولو مسئلو دار ومدار پر دې خبره دی چې کله شيدې أصل جوړي سي يعني لوږه په ليري سي نو په هغه سره حرمت رضاعت ثابتيږي، او که تابع جوړي سي نو حرمتِ رضاعت نه په ثابتيږي. ځکه په حديثونو کې راځي چې "الرضاعة من المجاعة" او "لا رضاع إلا ما شد العظم و أنبت اللحم").

(۲)... دويمه مسئله دا ده که ديو ښځې شيدې د بزې په شيدو ګډې کړل سي، نو دلته به هم پر غالب او مغلوب د حکم داور مدار وي، يعني که د ښځې شيدې غالبه وي نو حرمت ثابتيږي. او که د بزې شيدې غالبه وي نو حرمت نه ثابتيږي، لکه څرنګه چې په اوبو کې همدغه حکم وو: (ځکه کله چې د ښځې شيدې غالبه وي نو د لوږې په ليري کولو د ښځې شيدې أصل وګرځي او د ښځې په شيدو سره حرمت ثابتيږي، نو ځکه به په دې صورت کې حرمت ثابتيږي. او که د بزې شيدې غالبه وي نو هغه أصل وګرځي، او د بزې په شيدو سره حرمت نه ثابتيږي).

## د دوو ښځو په مخلوطه شیدو سره د حرمت ثابتېدلو بیان

وَإِذَا اخْتَلَطَ لَبَنُ امْرَأَتَيْنِ او که د دوو ښځو شيدې سره ګډې کړل سي تَعَلَّقَ التَّحْرِيمُ بِأَغْلَبِهِمَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دې دواړو کي د أغلب [زیاتو شیدو] سره حرمت متعلق کیږي لِأَنَّ الْكُلَّ صَارَ شَيْئًا وَاحِدًا ځکه چي ټولي شیدې یو شی وګرځیدې فَيُجْعَلُ الْأَقَلُّ تَابِعًا لِلْأَكْثَرِ فِي بِنَاءِ الْحُكْمِ عَلَيْهِ نو أقل به د أکثر تابع ګرځول کیږي په مبني کولو کي [د رضاعت] د حکم پر هغه [ټولو شیدو] باندي وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ: يَتَعَلَّقُ التَّحْرِيمُ بِهِمَا* امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي حرمت د دواړو [شیدو] سره متعلق کیږي لِأَنَّ الْجِنْسَ لَا يَغْلِبُ الْجِنْسَ ځکه چي جنس پر [خپل] جنس نه غالب کیږي فَإِنَّ الشَّيْءَ لَا يَصِيرُ مُسْتَهْلَكًا فِي جِنْسِهِ لِاتِّحَادِ الْمَقْصُودِ ځکه چي د مقصود د اتحاد [یو والي] په وجه یو شی هم په خپل جنس کي هلاک [او معدوم] نه ګرځي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ فِي هٰذَا رِوَايَتَانِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کي دوه روایتونه دي وَأَصْلُ الْمَسْأَلَةِ فِي الْأَيْمَانِ او أصل مسئله په قسم کي ده. [یعني دغه مسئله لو ددغه مسئلي اختلاف په أصل کي د قسم د مسئلي پر اختلاف مبني دی].

**اللغات:** ﴿أَغْلَب﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: زیات غالب، ﴿مُسْتَهْلَك﴾ د استفعال اسمِ فاعل دی: هلاک کړی سوی، ختم کړی سوی (ورک او معدوم).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی که د دوو جلا، جلا ښځو شیدي سره ګډي کړل سي، بیا یو کوچني ته ورکول سي، نو په دې صورت کي د کومي ښځي سره د کوچني حرمتِ رضاعت ثابتیږي؟ په دې باره کي زموږ د امامانو اختلاف دی، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي د کومي ښځي شیدې غالبه وي د هغې سره حرمتِ رضاعت ثابتیږي، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی، لیکن امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي د دواړو سره حرمتِ رضاعت ثابتیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چي کله د دواړو ښځو شیدې سره ګډي کړل سوې، نو د جنس د اتحاد په وجه دواړي شیدې د "شيء واحد" په څیر وګرځیدې (یعني دواړي سره یو سوې)، خو څرنګه

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: ورجح بعض المشائخ قول محمد رَحِمَهُ الله أيضاً وهو ظاهر (فتح القدير ج:٣، ص:٣١٧). وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: ...ورجح بعض المشائخ قول محمد رَحِمَهُ الله، وإليه مال صاحب الهداية لتأخيره دليل محمد رَحِمَهُ الله (رد المحتار ج:٣، ص:٤٤٤). [القول الراجح ج:١، ص:٣٠٦]

چې دغه شيدې د دوو ښځو دي، نو ځکه به په دوی کې أقل د أکثر تابع کيږي او پر أکثر به د حکم بناء کيږي. لکه څرنګه چې په نورو مسئلو کې هم داسې کيږي او حکم پر أکثريت بناء کيږي.

**د امام محمد او امام زفر دليل:** دا دی چې شيدې دواړه د يوه جنس دي (ځکه چې د دواړو ښځو جنس سره يو دی)، او د جنس په هکله قاعده دا ده چې کله جنس د خپل جنس سره يو ځای کړی سي نو مغلوب او معدوم نه ګرځي بلکې نور مؤکد او مضبوط ګرځي (او نور زياتيږي). لهذا کله چې دواړې شيدې سره يو ځای کړل سوې نو په دوی کې نوره تقويه (پياوړتيا) راغله (او مثلاً ديوه پاؤ پر ځای نيم کيلو سوې. او داسې نه ده چې ديوې ښځې شيدې دبلې پر شيدو غالبه سوې). لهذا کله چې دواړه شيدې په يوه درجه کې دي، نو د دواړو ښځو سره به د کوچني حرمتِ رضاعت ثابتيږي.

د دې مسئلې په باره کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي، په يوه روايت کې هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی او په دويم روايت کې د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله سره دی.

**وأصل المسألة إلخ:** او په اصل کې د دغه مسئلې مدار پر دې خبره دی چې د مخلوطه شيدو په چيښلو سره انسان حانثيږي، که نه؟ مثلاً که يو سړی قسم وکړي چې زه به د فلانې غوا شيدې نه چيښم. او بيا د هغه غوا د شيدو سره د بلې غوا شيدې ګډې کړي او ويې چيښې، نو په دې مسئله کې هم دغه اختلاف دی. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز مطلقاً هغه حانثيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز که د محلوف عليها غوا شيدې غالبه وي نو حانثيږي، کنې نه حانثيږي.

## د باکرې ښځې په شيدو سره د حرمت ثابتېدلو بيان

> **وَإِذَا نَزَلَ لِلْبِكْرِ لَبَنٌ** او که چيرې د باکرې ښځې شيدې راشوه سي [يعني په تيو کې يې شيدې پيدا سي] **فَأَرْضَعَتْ صَبِيًّا** او هغه يو کوچني ته شيدې ورکړي **تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ** نو د دې سره [هم] حرمت متعلق کيږي **لِإِطْلَاقِ النَّصِّ** د آيت د مطلقوالي په وجه **وَلِأَنَّهُ سَبَبُ النُّشُوْءِ** او په دې وجه چې دا شيدې [هم] د ودې او نما سبب دي **فَتَثْبُتُ بِهِ شُبْهَةُ الْبَعْضِيَّةِ** نو په دې سره [هم] د جزئيت شبهه ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿بِكْر﴾ پېغله (نا واده کړې ښځه)، ﴿أَرْضَعَتْ﴾ د افعال ماضي ده: کوچني ته شيدې ورکول.

**تشريح:** د عبارت مطلب بالکل ښکاره دی چې که ديو باکرې (نا واده) ښځې په تيو کې شيدې پيدا سي او هغه په يوه کوچني خپل دغه شيدې ورودي، نو په دې سره هم حرمتِ رضاعت ثابتيږي؛ ځکه

چي د قرآن کريم دا آيت "وَاُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِيٓ اَرْضَعْنَكُمْ" مطلق دی، يعني په دې آيت کي د باکرې او ثيبې تر مينځ هيڅ فرق نه دی ذکر سوی، نو څرنګه چي د ثيبې په شيدو سره حرمت ثابتيږي. همداسي به د باکرې په شيدو سره هم حرمت ثابتيږي.

دويم دليل دا دی چي د ثيبې په څېر د باکرې شيدې هم د کوچني د ودې او نما او د هغه د طاقت سبب دي، نو په دې سره هم د جزئيت او بعضيت شبهه ثابتيږي، لهذا د هغه جزئيت او بعضيت د شبهې په وجه به احتياطاً د باکرې په شيدو سره حرمت ثابتيږي.

خو له امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمَا الله څخه يو روايت دا دی چي د باکرې ښځي شيدې شاذ او نادره وي، لهذا هغه د سړي د شيدو سره مشابه سوې، نو ځکه به حرمت نه په ثابتيږي.

## د مړې ښځي په شيدو سره د حرمت ثابتېدلو بيان

وَإِذَا حُلِبَ لَبَنُ الْمَرْأَةِ بَعْدَ مَوْتِهَا او که د ښځي تر مرګ وروسته د هغې شيدې را ويستل سي فَأُوْجِرَ الصَّبِيُّ او ديو کوچني په خوله کي واچول سي تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيْمُ نو د هغه سره حرمت متعلق کيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله هُوَيَقُولُ: اَلْأَصْلُ فِي ثُبُوْتِ الْحُرْمَةِ إِنَّمَا هُوَ الْمَرْأَةُ هغه فرمايي: چي د حرمت د ثبوت په هکله خو اصل ښځه ده ثُمَّ تَتَعَدَّى إِلَى غَيْرِهَا بِوَاسِطَتِهَا بيا د هغې په واسطه سره د نورو وطرف ته حرمت متعدي کيږي [منتقل کيږي] وَبِالْمَوْتِ لَمْ تَبْقَ مَحَلًّا لَهَا او د مرګ په وجه هغه د حرمت محل پاته نه سوه [نو ځکه به د هغې حرمت د نورو طرف ته نه متعدي کيږي] وَلِهٰذَا لَا يُوْجِبُ وَطْؤُهَا حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ له همدې کبله د دغه [مړې] ښځي وطي حرمتِ مصاهرت نه ثابتوي وَلَنَا: أَنَّ السَّبَبَ هُوَ شُبْهَةُ الْجُزْئِيَّةِ او زموږ دليل دا دی: چي د حرمت سبب د جزئيت شبهه ده وَذٰلِكَ فِي اللَّبَنِ او دا شبهه په دغه شيدو کي سته لِمَعْنَى الْإِنْشَاءِ وَالْإِنْبَاتِ د [غوښو] پيدا کولو او [هډوکو] راشنه کولو [غټولو] د معنیٰ په وجه وَهُوَ قَائِمٌ بِاللَّبَنِ [ځکه چي] دغه معنیٰ په دې شيدو کي [هم] موجوده ده وَهٰذِهِ الْحُرْمَةُ تَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَيِّتَةِ دَفْنًا وَتَيَمُّمًا او دا حرمت د مړې ښځي په حق کي د ښخولو او تيمم ورکولو په اعتبار سره ښکاره کيږي أَمَّا الْجُزْئِيَّةُ فِي الْوَطْءِ لِكَوْنِهِ مُلَاقِيًا لِمَحَلِّ الْحَرْثِ [او] کوم چي په وطي کي جزء کېدل دی نو هغه د کښت د ځای [رحم] سره د وطي د يو ځای کېدلو په وجه دي [يعني په وطي سره جزئيت او حرمتِ مصاهرت هغه وخت ثابتيږي کله چي د کښت په

ځای (ژوندي رحم) کي وطي وسي] وَقَدْ زَالَ بِالْمَوْتِ او هغه [د کښت ځای] په مرګ سره زائل سو او د وطي أهل پاته نه سو] فَافْتَرَقَا نو [حرمتِ مصاهرت او حرمتِ رضاعت] دواړه سره جلا سول [او په دواړو کي فرق ثابت سو، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي].

**اللغات:** ﴿حُلِبَ﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: لوښل، ﴿أُوجِرَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: په خوله کي ور اچول، که په صله يې "رُمح" ذکر سي نو معنی يې ده: په خوله کي په نېزه وهل، ﴿إِنْشَاء﴾ د افعال مصدر دی: پيدا کول، ﴿إِنْبَات﴾ دا هم د افعال مصدر دی: راشنه کول (مراد ځني په شيدو سره د هډو کو لويېدل او غټېدل دي)، ﴿مَحَلُّ الْحَرْثِ﴾ د کښت (راشنه کېدلو) ځای، يعني د ښځي په نس کي د کوچني پيدا کېدلو ځای (کوم ته چي رحم [توملنه] وايي).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که ديو ښځي تر مرګ وروسته د هغې له تيو څخه شيدې را ويستل سي او يو کوچني ته ورکول سي، نو زموږ په نېز په دې سره حرمتِ رضاعت ثابتيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نه ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د حرمتِ رضاعت دار ومدار پر ښځي دی ځکه چي اصلاً حرمت اول د (مرضعې) ښځي سره متعلق کيږي، بيا د هغې په واسطه د بل چا وطرف ته متعدي کيږي (يعني د هغې په واسطه سره بيا نور کسان حراميږي)، لېکن کله چي ښځه مړه سي نو هغه د حرمت محل پاته نه سي، لهذا کله چي خپله په مړه ښځه کي حرمت نه ثابتيږي نو د هغې په واسطه سره به نورو کسانو ته څرنګه متعدي سي، داسي بالکل نه سي کېدای؛ ځکه چي د متعدي کېدلو په هکله قاعده دا ده چي يو شی به اول په خپله ثابتيږي، بيا د بل شي وطرف ته متعدي کېدای سي.

ولهذا إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله د خپل دليل د استحکام لپاره يو مثال ذکر کړی دی، فرمايي چي څرنګه د ښځي تر مرګ وروسته يو څوک د هغې سره وطي وکړي، نو د محل د فقدان په وجه د هغې په وطي سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي، همداسي په دغه پورتني مسئله کي هم ښځه د حرمت محل نه ده، لهذا د هغې په شيدو سره به هم حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د حرمت سبب د جزئيت او بعضيت شبهه ده، او د جزئيت شبهه د مړې ښځي په شيدو کي هم موجوده ده، ځکه څرنګه چي د ژوندۍ ښځي په شيدو سره کوچنی وده او نما کوي او په هغه سره د کوچني په غوښو او هډوکو کي اضافه راځي، خاص همدغسي د مړې ښځي په شيدو سره هم وده او نما حاصليږي.

لهذا كله چې د مقصد په حصول كې د مړې او ژوندۍ ښځې شيدې سره برابرې دي، نو د حرمت په ثبوت كې به هم دواړې سره برابرې او مساوي وي، يعني څرنګه چې د ژوندۍ ښځې په شيدو سره حرمت ثابتيږي، همداسې به د مړې ښځې په شيدو سره هم حرمت ثابتيږي.

**وهذا لأن الحرمة إلخ:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، هغه وويل چې د مرګ په وجه ښځه د حرمت محل نه پاتې کيږي، نو په جواب كې صاحب د هدايې فرمايي چې (د دغه مړې ښځې) د رضاعت په سبب سره ثابت سوی حرمت د دوو شيانو په حق كې ښکاره كيږي: ① د مړې ښځې د ښخولو په حق كې، ② او هغې ته د تيمم وركولو په حق كې، مثلاً كه د دغه مړې ښځې شيدې داسې كوچنۍ نجلۍ ته وركول سي چې هغه خاوند لري (لكه زموږ په ځينو سيمو كې چې نجلۍ تر پيدايښت وروسته سمدستي يو چا ته په نكاح وركول كيږي او په كوچنيوالي كې لا هغه خاوند لري)، نو دغه مړه ښځه د دې نجلۍ د خاوند خواښې جوړه سوه او مَحرمه وګرځېده (ځكه چې خواښې پر زوم حرامه وي)، نو اوس كه د دغه ښځې يو بل محرم پيدا نه سو چې ښخه يې كړي يا تيمم وركړي، نو د دې نجلۍ خاوند (زوم) هغه ښخولای هم سي او كه د تيمم ضرورت پېښ سي نو تيمم هم وركولای سي (يعني د دې زوم لپاره جائز دي چې هغې ته غسل يا تيمم وركړي)؛ نو معلومه سوه چې تر مرګ وروسته هم ښځه د حرمت محل پاتيږي؛ ځكه كه چيري تر مرګ وروسته ښځه محل د حرمت نه پاتېدای نو د دغه سړي (زوم) لپاره به نه د هغې ښخول جائز وای او نه تيمم وركول. لهذا ثابته سوه چې تر مرګ وروسته هم ښځه محل د حرمت پاتيږي، نو ځكه موږ وايو چې د مړې ښځې په شيدو سره هم حرمتِ رضاعت ثابتيږي.

**أما الجزئية إلخ:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مثال جواب دی، هغه وويل چې تر مرګ وروسته د ښځې په وطي سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي نو د هغې په شيدو سره به حرمتِ رضاعت هم نه ثابتيږي، د جواب حاصل دا دی چې د حرمتِ مصاهرت او حرمتِ رضاعت په مينځ كې فرق سته، هغه دا چې د حرمتِ رضاعت دار ومدار د شيدو پر وده او نما دی يعني په رضاعت كې د ښځې په شيدو سره د كوچني غوښې او هډوكي وده او نما كوي چې په هغه سره جزئيت ثابتيږي او د همدغه جزئيت په وجه حرمتِ رضاعت ثابتيږي. او شيدې چې څرنګه تر مرګ مخكې د ودې او نما أهل دي، همداسې تر مرګ وروسته هم د ودې او نما أهل دي.

د دې په خلاف د حرمتِ مصاهرت دار ومدار د كوچني پر پيدا كېدلو دی، او تر مرګ وروسته د ښځې رحم بالكل د دې أهل نه وي چې لَه هغه څخه كوچنی پيدا سي نو حرمتِ مصاهرت به له كومې خوا ثابت سي!،
لهذا كله چې د حرمتِ رضاعت او حرمتِ مصاهرت په مينځ كې دومره فرق سته، نو يو پر بل قياسول او په مثال كې ذكر كول صحيح نه دي.

## د شیدو په حقنه (إماله) سره د حرمت ثابتېدلو بیان

**وَإِذَا احْتَقَنَ الصَّبِيُّ بِاللَّبَنِ** او که چیري یو کوچني ته د شا [دُبري] د لاري شیدې ورکول سي **لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ**❀ نو د دې سره تحریم نه متعلق کیږي **وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ تَثْبُتُ بِهِ الْحُرْمَةُ كَمَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ** او له امام محمد رَحِمَهُ الله ځنځه روایت سوی دی: چي په دې سره [هم] حرمت ثابتیږي لکه څرنګه چي په دې سره روژه فاسدیږي **وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ: أَنَّ الْمُفْسِدَ فِي الصَّوْمِ إِصْلَاحُ الْبَدَنِ** او په ظاهر روایت کي د فرق وجه دا ده: چي په روژه کي فاسدونکی شی د بدن اصلاح ده [یعني روژه په هغه شي سره فاسدیږي چي په هغه سره د بدن اصلاح وسي] **وَيُوجَدُ ذَلِكَ فِي الدَّوَاءِ** او دا په دواء کي [هم] موجود دي **فَأَمَّا الْمُحَرِّمُ فِي الرَّضَاعِ فَمَعْنَى النُّشُوءِ** او کوم چي په رضاعت کي حرامونکی شی دی نو هغه وده او نما ده **وَلَا يُوجَدُ ذَلِكَ فِي الِاحْتِقَانِ** او دا په احتقان کي موجود نه دي **لِأَنَّ الْمُغَذِّيَ وُصُولُهُ مِنَ الْأَعْلَى** ځکه چي غذا خو هغه شی ورکوي کوم چي دلوړي خوا [یعني د خولې دلاري] معدې ته رسول سي [نه هغه شی کوم چي د شا د لاري معدې ته ورسول سي].

**اللغات:** ﴿إِحْتَقَنَ﴾ د افتعال ماضي ده: حقنه ورکول (د شا د لاري [یعني د مقعدي لخوا] د مریض معدې ته دواء رسول. او په شیدو سره حقنه دې ته وایي چي د مقعدي لخوا کوچني ته شیدې ورکول سي)،

﴿مُغَذِّيْ﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: غذا رسونکی، غذا ورکونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو ښځي شیدې د حقنې په آله کي واچول سي او یو کوچني ته د شا د لاري ورکول سي، نو د ظاهر روایت مطابق په دې سره حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي، لېکن له امام محمد رَحِمَهُ الله ځنځه یو روایت دا دی چي څرنګه په دې عمل سره د یو چا روژه فاسدیږي، همداسي به په دې سره حرمتِ رضاعت هم ثابتیږي.

او ظاهر روایت په دواړو کي فرق کړی دی، د فرق وجه دا ده چي روژه په هر هغه شي سره فاسدیږي په کوم شي سره چي د بدن اصلاح وسي او بدن ته تقویه ورکول سي، او په حقنه کي دغه سبب موجود دی، لهذا روژه خو به په دې (حقنه) سره فاسدیږي، لېکن په دې سره به حرمتِ رضاعت ځکه نه

---

❀ القول الراجح: راجح قول همدا ظاهر روایت دی چي په "احتقان" سره حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي، کما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: "ثم الاحتقان باللبن لا يوجب الحرمة من غير ذكر خلاف بين أصحابنا في كثير من الأصول، وهو قول الائمة الأربعة (فتح القدير ج:۳، ص:۳۱۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۰۷]

ثابتیږي چې د حرمتِ رضاعت دار و مدار پر وده او نما دی، او په شیدو سره وده او نما هغه وخت ثابتیږي کله چې شیدې کوچني ته د خولې د لارې ورکول سي، لېکن د شا د لارې د شیدو په داخلولو سره وده او نما نه ثابتیږي، لهذا په دې سره به حرمتِ رضاعت هم نه ثابتیږي.

## د سړي یا حیوان په شیدو سره د حرمت ثابتېدلو بیان

وَإِذَا نَزَلَ لِلرَّجُلِ لَبَنٌ او کله چې د یو سړي شیدې راشوه سي [یعني کله چې د یو سړي په تیو کي شیدې پیدا سي] فَأَرْضَعَ صَبِيًّا او هغه یو کوچني ته خپلې شیدې ورکړي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د هغه سره حرمت نه متعلق کیږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِلَبَنٍ عَلَى التَّحْقِيقِ ځکه چې هغه په حقیقي توګه شیدې نه دي فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ النُّشُوُّ وَالنُّمُوُّ نو د هغه سره به وده او نما نه متعلق کیږي [ځکه چې وده او نما د حقیقي شیدو سره متعلق وي] وَهٰذَا لِأَنَّ اللَّبَنَ إِنَّمَا يُتَصَوَّرُ مِمَّنْ يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الْوِلَادَةُ او دا په دې وجه چې [حقیقي] شیدې له هغه [نسل] شخصه متصور کیږي چې له هغه شخصه ولادت [د بچي زیږول] متصور کېدای سي وَإِذَا شَرِبَ صَبِيَّانِ مِنْ لَبَنِ شَاةٍ او که چیري دوه کوچنیان د یوې بزې شیدې وچیښي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د هغه سره حرمت نه متعلق کیږي [یعني په دې سره د دواړو تر مینځ حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي] لِأَنَّهُ لَا جُزْئِيَّةَ بَيْنَ الْآدَمِيِّ وَالْبَهَائِمِ ځکه چې د انسان او څارويو تر مینځ هیڅ جزئیت نسته وَالْحُرْمَةُ بِاعْتِبَارِهَا او حرمت د همدغه جزئیت په اعتبار سره وي.

**اللغات:** ﴿نَزَلَ﴾ د ضرب ماضي ده: شوه کېدل، کښته کېدل (مراد ځني د سړي په سینه کي شیدې پیدا کېدل دي)، ﴿نُشُوء والنُّمُوّ﴾ وده او نما (لوېدنه او غټېدنه).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي په سینه (تیو) کي شیدې پیدا سي او هغه یو کوچني ته خپلې شیدې ورکړي، نو په دې سره هم حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي؛ ځکه حرمتِ رضاعت خو په حقیقي او اصلي شیدو سره ثابتیږي، او د سړي شیدې خو نه په حقیقت کي شیدې وي او نه په هغه کي د نما او ودې صلاحیت وي، ځکه چې د نما او ودې صلاحیت خو د هغه چا په شیدو کي وي کوم چې د بچي زیږولو صلاحیت لري او چې له هغه شخصه د کوچني پیدا کېدل متصور کېداسي، لېکن له سړي شخصه د کوچني پیدا کېدل بالکل متصور کېدای نه سي، بلکي دا له عقل، تصور او الهي نظام څخه لیري خبره ده، نو ځکه به د سړي په شیدو سره حرمتِ رضاعت نه ثابتیږي.

چي د قرآن کريم دا آيت "وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ" مطلق دی. يعني په دې آيت کې د باکرې او ثيبې تر مينځ هيڅ فرق نه دی ذکر سوی، نو ځرنګه چې د ثيبې په شيدو سره حرمت ثابتيږي. همداسې به د باکرې په شيدو سره هم حرمت ثابتيږي.

دويم دليل دا دی چې د ثيبې په شير د باکرې شيدې هم د کوچني د ودې او نما او د هغه د طاقت سبب دي، نو په دې سره هم د جزئيت او بعضيت شبهه ثابتيږي، لهذا د هغه جزئيت او بعضيت د شبهې په وجه به احتياطاً د باکرې په شيدو سره حرمت ثابتيږي.

خو له امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمَا الله ځخه يو روايت دا دی چې د باکرې ښځي شيدې شاذ او نادره وي، لهذا هغه د سړي د شيدو سره مشابه سوې، نو ځکه به حرمت نه په ثابتيږي.

## د مړې ښځي په شيدو سره د حرمت ثابتېدلو بيان

وَإِذَا حُلِبَ لَبَنُ الْمَرْأَةِ بَعْدَ مَوْتِهَا او که د ښځي تر مرګ وروسته د هغې شيدې را ويستل سي فَأُوْجِرَ الصَّبِيُّ او ديو کوچني په خوله کي واچول سي تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د هغه سره حرمت متعلق کيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُولُ: الْأَصْلُ فِي ثُبُوتِ الْحُرْمَةِ إِنَّمَا هُوَ الْمَرْأَةُ هغه فرمايي: چې د حرمت د ثبوت په هکله خو اصل ښځه ده ثُمَّ تَتَعَدَّى إِلَى غَيْرِهَا بِوَاسِطَتِهَا بيا د هغې په واسطه سره د نورو وطرف ته حرمت متعدي کيږي [منتقل کيږي] وَبِالْمَوْتِ لَمْ تَبْقَ مَحَلًّا لَهَا او د مرګ په وجه هغه د حرمت محل پاته نه سوه [نو ځکه به د هغې حرمت د نورو طرف ته نه متعدي کيږي] وَلِهَذَا لَا يُوجِبُ وَطْؤُهَا حُرْمَةَ الْمُصَاهَرَةِ له همدې کبله د دغه [مړې] ښځي وطي حرمتِ مصاهرت نه ثابتوي وَلَنَا: أَنَّ السَّبَبَ هُوَ شُبْهَةُ الْجُزْئِيَّةِ او زموږ دليل دا دی: چې د حرمت سبب د جزئيت شبهه ده وَذَلِكَ فِي اللَّبَنِ او دا شبهه په دغه شيدو کي سته لِمَعْنَى الْإِنْشَازِ وَالْإِنْبَاتِ د [غوښو] پيدا کولو او [هډوکو] راشنه کولو [غټولو] د معنیٰ په وجه وَهُوَ قَائِمٌ بِاللَّبَنِ [ځکه چي] دغه معنیٰ په دې شيدو کي [هم] موجوده ده وَهَذِهِ الْحُرْمَةُ تَظْهَرُ فِي حَقِّ الْمَيِّتَةِ دَفْنًا وَتَيَمُّمًا او دا حرمت د مړې ښځي په حق کي د ښخولو او تيمم ورکولو په اعتبار سره ښکاره کيږي أَمَّا الْجُزْئِيَّةُ فِي الْوَطْءِ لِكَوْنِهِ مُلَاقِيًا لِمَحَلِّ الْحَرْثِ [او] کوم چي په وطي کي جزء کېدل دي نو هغه د کښت د ځای [رحم] سره د وطي د يو ځای کېدلو په وجه دي [يعني په وطي سره جزئيت او حرمتِ مصاهرت هغه وخت ثابتيږي کله چي د کښت په

ځای (ژوندي رحم) کي وطي وسي) وَقَدْ زَالَ بِالْمَوْتِ او هغه [د کښت ځای] په مرګ سره زائل سو او د وطي أهل پاته نه سو) فَافْتَرَقَا نو [حرمتِ مصاهرت او حرمتِ رضاعت] دواړه سره جلا سول [او په دواړو کي فرق ثابت سو، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي].

**اللغات**: ﴿حُلِبَ﴾ د نصر ماضي مجهوله ده: لوښل، ﴿أُوجِرَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: په خوله کي ور اچول، که په صله يې "رُمْح" ذکر سي نو معنیٰ يې ده: په خوله کي په نېزه وهل، ﴿إِنْشَاء﴾ د افعال مصدر دی: پيدا کول، ﴿إِنْبَات﴾ دا هم د افعال مصدر دی: راشنه کول (مراد ځني په شيدو سره د هډوکو لوېدل او غټېدل دي)، ﴿مَحَلَّ الْحَرْثِ﴾ د کښت (را شنه کېدلو) ځای، يعني د ښځي په نس کي د کوچني پيدا کېدلو ځای (کوم ته چي رحم [توملنه] وايي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ديو ښځي تر مرګ وروسته د هغې له تيو څخه شيدې را ويستل سي او يو کوچني ته ورکول سي، نو زموږ په نېز په دې سره حرمتِ رضاعت ثابتيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز نه ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي د حرمتِ رضاعت دار و مدار پر ښځي دی ځکه چي اصلاً حرمت اول د (مرضعې) ښځي سره متعلق کيږي، بيا د هغې په واسطه د بل چا وطرف ته متعدي کيږي (يعني د هغې په واسطه سره بيا نور کسان حراميږي)، لېکن کله چي ښځه مړه سي نو هغه د حرمت محل پاته نه سي، لهذا کله چي خپله په مړه ښځه کي حرمت نه ثابتيږي نو د هغې په واسطه سره به نورو کسانو ته څرنګه متعدي سي، داسي بالکل نه سي کېدای؛ ځکه چي د متعدي کېدلو په هکله قاعده دا ده چي يو شی به اول په خپله ثابتيږي، بيا د بل شي وطرف ته متعدي کېدای سي.

**ولهذا إلخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله د خپل دليل د استحکام لپاره يو مثال ذکر کړی دی، فرمايي چي څرنګه د ښځي تر مرګ وروسته يو څوک د هغې سره وطي وکړي، نو د محل د فقدان په وجه د هغې په وطي سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي، همداسي په دغه پورتنۍ مسئله کي هم ښځه د حرمت محل نه ده، لهذا د هغې په شيدو سره به هم حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د حرمت سبب د جزئيت او بعضيت شبهه ده، او د جزئيت شبهه د مړې ښځي په شيدو کي هم موجوده ده، ځکه څرنګه چي د ژوندۍ ښځي په شيدو سره کوچنی وده او نما کوي او په هغه سره د کوچني په غوښو او هډوکو کي اضافه راځي، خاص همدغسي د مړې ښځي په شيدو سره هم وده او نما حاصليږي.

لهذا کله چي د مقصد په حصول کي د مړي او ژوندی ښځي شيدې سره برابري دي، نو د حرمت په ثبوت کي به هم دواړي سره برابري او مساوي وي، يعني څرنګه چي د ژوندی ښځي په شيدو سره حرمت ثابتيږي، همداسي به د مړې ښځي په شيدو سره هم حرمت ثابتيږي.

**وهذا لا الحرمة إلخ:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، هغه ويل چي د مرګ په وجه ښځه د حرمت محل نه پاتيږي، نو په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي (د دغه مړې ښځي) د رضاعت په سبب سره ثابت سوی حرمت د دوو شيانو په حق کي ښکاره کيږي: ① د مړې ښځي د ښخولو په حق کي، ② او هغې ته د تيمم ورکولو په حق کي، مثلاً که د دغه مړې ښځي شيدې داسي کوچنۍ نجلۍ ته ورکول سي چي هغه خاوند لري (لکه زموږ په ځينو سيمو کي چي نجلۍ تر پيدايښت وروسته سمدستي يو چا ته په نکاح ورکول کيږي او په کوچنيوالي کي لا هغه خاوند لري)، نو دغه مړه ښځه د دې نجلۍ د خاوند خواښې جوړه سوه او مَحرمه وګرځېده (ځکه چي خواښې پر زوم حرامه وي)، نو اوس که د دغه ښځي يو بل محرم پيدا نه سو چي ښخه يې کړي يا تيمم ورکړي، نو د دې نجلۍ خاوند (زوم) هغه ښخولای هم سي او که د تيمم ضرورت پېښ سي نو تيمم هم ورکولای سي (يعني د دې زوم لپاره جائز دي چي هغې ته غسل يا تيمم ورکړي)؛ نو معلومه سوه چي تر مرګ وروسته هم ښځه د حرمت محل پاتيږي؛ ځکه که چيري تر مرګ وروسته ښځه محل د حرمت نه پاتېدای نو د دغه سړي (زوم) لپاره به نه د هغې ښخول جائز وای او نه تيمم ورکول، لهذا ثابته سوه چي تر مرګ وروسته هم ښځه محل د حرمت پاتيږي، نو ځکه موږ وايو چي د مړې ښځي په شيدو سره هم حرمتِ رضاعت ثابتيږي.

**أما الجزئية إلخ:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مثال جواب دی، هغه ويل چي تر مرګ وروسته د ښځي په وطي سره حرمتِ مصاهرت نه ثابتيږي نو د هغې په شيدو سره به حرمتِ رضاعت هم نه ثابتيږي، د جواب حاصل دا دی چي د حرمتِ مصاهرت او حرمتِ رضاعت په مينځ کي فرق سته، هغه دا چي د حرمتِ رضاعت دار ومدار د شيدو پر وده او نما دی يعني په رضاعت کي د ښځي په شيدو سره د کوچني غوښي او هډوکي وده او نما کوي چي په هغه سره جزئيت ثابتيږي او د همدغه جزئيت په وجه حرمتِ رضاعت ثابتيږي. او شيدې چي څرنګه تر مرګ مخکي د ودې او نما أهل دي، همداسي تر مرګ وروسته هم د ودې او نما أهل دي.

د دې په خلاف د حرمتِ مصاهرت دار ومدار د کوچني پر پيدا کېدلو دی، او تر مرګ وروسته د ښځي رحم بالکل د دې أهل نه وي چي لَه هغه څخه کوچنی پيدا سي نو حرمتِ مصاهرت به له کومي خوا ثابت سي!، لهذا کله چي د حرمتِ رضاعت او حرمتِ مصاهرت په مينځ کي دومره فرق سته، نو يو پر بل قياسول او په مثال کي ذکر کول صحيح نه دي.

## د شيدو په حقنه (إماله) سره د حرمت ثابتېدلو بيان

وَإِذَا احْتُقِنَ الصَّبِيُّ بِاللَّبَنِ او كه چيري يو كوچني ته د شا [دُبرې] د لارې شيدې وركول سي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ* نو د دې سره تحريم نه متعلق كيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ تَثْبُتُ بِهِ الْحُرْمَةُ كَمَا يَفْسُدُ بِهِ الصَّوْمُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوى دى: چي په دې سره [هم] حرمت ثابتيږي لكه څرنګه چي په دې سره روژه فاسديږي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ: أَنَّ الْمُفْسِدَ فِي الصَّوْمِ إِصْلَاحُ الْبَدَنِ او په ظاهر روايت كي د فرق وجه دا ده: چي په روژه كي فاسدونكى شى د بدن اصلاح ده [يعني روژه په هغه شي سره فاسديږي چي په هغه سره د بدن اصلاح وسي] وَيُوجَدُ ذَٰلِكَ فِي الدَّوَاءِ او دا په دواء كي [هم] موجود دي فَأَمَّا الْمُحَرِّمُ فِي الرَّضَاعِ فَمَعْنَى النُّشُوءِ او كوم چي په رضاعت كي حرامونكى شى دى نو هغه وده او نما ده وَلَا يُوجَدُ ذَٰلِكَ فِي الِاحْتِقَانِ او دا په احتقان كي موجود نه دي لِأَنَّ الْمُغَذِّيَ وُصُولُهُ مِنَ الْأَعْلَى ځكه چي غذا خو هغه شى وركوي كوم چي دلوړي خوا [يعني د خولې دلارې] معدې ته رسول سي [نه هغه شى كوم چي د شا دلارې معدې ته ورسول سي].

**اللغات:** ﴿إِحْتَقَنَ﴾ د افتعال ماضي ده: حقنه وركول (د شا د لارې [يعني د مقعدي لخوا] د مريض معدې ته دواء رسول. او په شيدو سره حقنه دې ته وايي چي د مقعدي لخوا كوچني ته شيدې وركول سي).
﴿مُغَذِّيْ﴾ د تفعيل اسم فاعل دى: غذا رسونكى، غذا وركونكى.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه د يو ښځي شيدې د حقنې په آله كي واچول سي او يو كوچني ته د شا د لارې وركول سي، نو د ظاهر روايت مطابق په دې سره حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي، لېكن له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دى چي څرنګه په دې عمل سره د يو چا روژه فاسديږي، همداسې به په دې سره حرمتِ رضاعت هم ثابتيږي.

او ظاهر روايت په دواړو كي فرق كړى دى، د فرق وجه دا ده چي روژه په هر هغه شي سره فاسديږي په كوم شي سره چي د بدن اصلاح وسي او بدن ته تقويه وركول سي، او په حقنه كي دغه سبب موجود دى، لهذا روژه خو به په دې (حقنه) سره فاسديږي، لېكن په دې سره به حرمتِ رضاعت ځكه نه

---

* القول الراجح: راجح قول همدا ظاهر روايت دى چي په "احتقان" سره حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: "ثم الاحتقان باللبن لا يوجب الحرمة من غير ذكر خلاف بين أصحابنا في كثير من الأصول، وهو قول الائمة الأربعة (فتح القدير ج:۳، ص:۳۱۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۰۷]

ثابتيږي چې د حرمتِ رضاعت دار و مدار پر وده او نما دی، او په شيدو سره وده او نما هغه وخت ثابتيږي کله چې شيدې کوچني ته د خولې د لارې ورکول سي، لېکن د شا د لارې د شيدو په داخلولو سره وده او نما نه ثابتيږي، لهذا په دې سره به حرمتِ رضاعت هم نه ثابتيږي.

## د سړي يا حيوان په شيدو سره د حرمت ثابتېدلو بيان

وَإِذَا نَزَلَ لِلرَّجُلِ لَبَنٌ او کله چې د يو سړي شيدې راشوه سي [يعني کله چې د يو سړي په تيو کې شيدې پيدا سي] فَأَرْضَعَ صَبِيًّا او هغه يو کوچني ته خپلې شيدې ورکړي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د هغه سره حرمت نه متعلق کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِلَبَنٍ عَلَى التَّحْقِيقِ ځکه چې هغه په حقيقي توګه شيدې نه دي فَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ النُّشُوُّ وَالنُّمُوُّ نو د هغه سره به وده او نما نه متعلق کيږي [ځکه چې وده او نما د حقيقي شيدو سره متعلق وي] وَهٰذَا لِأَنَّ اللَّبَنَ إِنَّمَا يُتَصَوَّرُ مِمَّنْ يُتَصَوَّرُ مِنْهُ الْوِلَادَةُ او دا په دې وجه چې [حقيقي] شيدې له هغه [نسل] څخه متصور کيږي چې له هغه څخه ولادت [د بچې زېږول] متصور کېدای سي وَإِذَا شَرِبَ صَبِيَّانِ مِنْ لَبَنِ شَاةٍ او که چيرې دوه کوچنيان د يوې بزې شيدې وچيښي لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو د هغه سره حرمت نه متعلق کيږي [يعني په دې سره د دواړو تر مينځ حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي] لِأَنَّهُ لَا جُزْئِيَّةَ بَيْنَ الْآدَمِيِّ وَالْبَهَائِمِ ځکه چې د انسان او څاروي تر مينځ هيڅ جزئيت نسته وَالْحُرْمَةُ بِاعْتِبَارِهَا او حرمت د همدغه جزئيت په اعتبار سره وي.

**اللغات:** ﴿نَزَلَ﴾ د ضرب ماضي ده: شوه کېدل، کښته کېدل (مراد ځني د سړي په سينه کې شيدې پيدا کېدل دي)، ﴿نُشُوء والنُّمُوّ﴾ وده او نما (لويېدنه او غټېدنه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي په سينه (تيو) کې شيدې پيدا سي او هغه يو کوچني ته خپلې شيدې ورکړي، نو په دې سره هم حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي؛ ځکه حرمتِ رضاعت خو په حقيقي او اصلي شيدو سره ثابتيږي، او د سړي شيدې خو نه په حقيقت کې شيدې وي او نه په هغه کې د نما او ودې صلاحيت وي، ځکه چې د نما او ودې صلاحيت خو د هغه چا په شيدو کې وي کوم چې د بچي زېږولو صلاحيت لري او چې له هغه څخه د کوچني پيدا کېدل متصور کېداسی، لېکن له سړي څخه د کوچني پيدا کېدل بالکل متصور کېدای نه سي، بلکې دا له عقل، تصور او الهي نظام څخه لیري خبره ده، نو ځکه به د سړي په شيدو سره حرمتِ رضاعت نه ثابتيږي.

**وإذا شرب إلخ**: دريمه مسئله دا ده که يو کوچني هلک او کوچنۍ نجلۍ د يوې بزې شيدې رودلې وي، نو په دې سره هم د دوی تر مينځ حرمت رضاعت نه ثابتيږي؛ ځکه چې حرمت رضاعت د انساني جزئيت په اعتبار سره ثابتيږي، نه د حيواني جزئيت په اعتبار سره (يعني د حرمت رضاعت په باب کې د انسان [ښځې] شيدې معتبره دي، لکه مخکې چې مونږ وويل چې کله د ښځې په شيدو سره د کوچني په بدن کې وده او نما راسي نو د ښځې جزئيت په کوچني کې سرايت وکړي او کوچنی د ښځې جزء وګرځي، نو په همدغه اعتبار سره دا ښځه او د دې ښځې قريبان پر هغه کوچني حراميږي، ليکن د حيوان او نسان تر مينځ ډېر فرق سته، لهذا د حيوان په شيدو سره د دغه جزئيت هيڅ تصور نه سي کېدای، نو د حيوان په شيدو سره به حرمت رضاعت هم نه ثابتيږي).

په رواياتو کې راځي چې امام بخاري رَحِمَهُ الله په دې هکله د حرمت قائل وو، حتیٰ کله چې هغه په بخارا کې وو نو د حرمت فتواوي به يې ورکولې، او شيخ ابو حفص الکبير به هغه له دې ځخه منع کوی خو امام بخاري رَحِمَهُ الله به په دې هکله پر خپل مسلک مستقيم وو، او په همدې وجه له خپل ښار "بخارا" ځخه ويستل سو؛ ځکه يو وخت پوښتنه ځني وسوه چې که دوو کوچنيانو د يوې بزې شيدې رودلې وي نو څه حکم دی؟ امام بخاري رَحِمَهُ الله د حرمت د ثبوت فتویٰ ورکړه، نو پر دې باندې خلک سره جمع سول او د دې فتواوو په وجه يې هغه له بخارا ځخه ويستی.

## د حرمت رضاعت د يو صورت بيان

**وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ صَغِيرَةً وَكَبِيرَةً** او که يو سړی د کوچنۍ [شير خواري] نجلۍ او غټې [مشري] ښځې سره واده وکړي **فَأَرْضَعَتِ الْكَبِيرَةُ الصَّغِيرَةَ** او غټه ښځه کوچنۍ نجلۍ ته شيدې ورکړي **حَرُمَتَا عَلَى الزَّوْجِ** نو دواړې پر خاوند حراميږي لِأَنَّهُ يَصِيرُ جَامِعًا بَيْنَ الْأُمِّ وَالْبِنْتِ رَضَاعًا ځکه چې [په دې صورت کې] خاوند د مور او رضاعي لور جمع کونکی ګرځي وَذَلِكَ حَرَامٌ او دا حرام دي كَالْجَمْعِ بَيْنَهُمَا نَسَبًا لکه د نسب په اعتبار سره چې د دوی دواړو جمع کول [حرام دي] **ثُمَّ إِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِالْكَبِيرَةِ** بيا که خاوند په مشري ښځې دخول نه وي کړی **فَلَا مَهْرَ لَهَا** نو د هغې لپاره به [هيڅ] مهر نه وي لِأَنَّ الْفُرْقَةَ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا ځکه چې تر دخول مخکې د هغې له طرفه فرقت واقع سو **وَلِلصَّغِيرَةِ نِصْفُ الْمَهْرِ** او د کوچنۍ نجلۍ لپاره به نيم مهر وي لِأَنَّ الْفُرْقَةَ وَقَعَتْ لَا مِنْ جِهَتِهَا ځکه چې فرقت د هغې له طرفه نه دی واقع سوی وَالِارْتِضَاعُ وَإِنْ كَانَ فِعْلًا مِنْهَا لَكِنَّ فِعْلَهَا غَيْرُ مُعْتَبَرٍ فِي إِسْقَاطِ حَقِّهَا او شيدې رودول که څه هم د هغې فعل دی، ليکن د هغې دا فعل د هغې د خپل حق

ساقطولو په باره کې معتبر نه دی كَمَا إِذَا قَتَلَتْ مُوَرِّثَهَا لکه په هغه صورت کې [چې هم د هغې فعل غیر معتبر دی] کله چې هغه خپل مورث قتل کړي وَيَرْجِعُ بِهِ الزَّوْجُ عَلَى الْكَبِيرَةِ او خاوند به دې [نیم مهر] سره پر مشري ښځې رجوع کوي [يعني د نیم مهر ضمان او تاوان به له مشري ښځې څخه اخلي] إِنْ كَانَتْ تَعَمَّدَتْ بِهِ الْفَسَادَ که چیري هغې په دې فعل سره د نکاح فاسدولو قصد کړی وي وَإِنْ لَمْ تَتَعَمَّدْ او که هغې د دې قصد نه وي کړی فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا نو پر هغې به هيڅ شی نه وي وَإِنْ عَلِمَتْ بِأَنَّ الصَّغِيرَةَ امْرَأَتُهُ که څه هم هغې ته دا معلومه وي چې کوچنۍ نجلۍ زما د خاوند ښځه ده وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ يَرْجِعُ فِي الْوَجْهَيْنِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله روايت دی: چې خاوند به په دواړو صورتونو کې [په نیم مهر سره پر مشري ښځې] رجوع کوي وَالصَّحِيحُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ [لېکن] صحيح ظاهر روايت دی لِأَنَّهَا وَإِنْ أَكَّدَتْ مَا كَانَ عَلَى شَرَفِ السُّقُوطِ وَهُوَ نِصْفُ الْمَهْرِ ځکه مشري ښځې که څه هم هغه شی مؤکد کړی کوم چې د ساقطېدلو پر څنډه وو [يعني ساقطېدلو ته نژدې وو] وَذَلِكَ يَجْرِي مَجْرَى الْإِتْلَافِ او دا مؤکد کول د إتلاف [ضايع کولو] قائم مقام دي لَكِنَّهَا مُسَبِّبَةٌ فِيهِ لېکن هغه [مشره ښځه] په دې فعل کې مسببه [سبب جوړېدونکې] ده إِمَّا لِأَنَّ الْإِرْضَاعَ لَيْسَ بِإِفْسَادٍ لِلنِّكَاحِ وَضْعًا يا په دې وجه چې شيدې ورکول د وضع په اعتبار سره د نکاح لپاره فاسدونکي نه دي وَإِنَّمَا ثَبَتَ ذَلِكَ بِاتِّفَاقِ الْحَالِ بلکې هغه خو اتفاقاً [په ناڅاپيزه او ناخبره توګه] ثابت سوي دي أَوْ لِأَنَّ إِفْسَادَ النِّكَاحِ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِإِلْزَامِ الْمَهْرِ يا په دې وجه چې د نکاح فاسدول د مهر واجبېدلو سبب نه دي بَلْ هُوَ سَبَبٌ لِسُقُوطِهِ بلکې هغه د مهر ساقطېدلو سبب دي إِلَّا أَنَّ نِصْفَ الْمَهْرِ يَجِبُ بِطَرِيقِ الْمُتْعَةِ مګر دا چې نيم مهر د متعې په توګه واجبيږي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چې [په باب المهر کې دا خبره] معلومه سوه لَكِنَّ مِنْ شَرْطِهِ إِبْطَالَ النِّكَاحِ لېکن د متعې د واجبېدلو شرط د نکاح باطلول دي [يعني متعه د نکاح باطلېدلو په وخت کې واجبيږي] وَإِذَا كَانَتْ مُسَبِّبَةً او کله چې [مشره ښځه] مسببه وګرځېده يُشْتَرَطُ فِيهِ التَّعَدِّي نو په دې کې به تعدی شرط وي كَحَفْرِ الْبِئْرِ لکه د څاه کيندل [يعني لکه د څاه په کيندلو کې چې تعدی شرط ده] ثُمَّ إِنَّمَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً إِذَا عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَقَصَدَتْ بِالْإِرْضَاعِ الْإِفْسَادَ بيا [مشره ښځه] هغه وخت تعدی

كونكې ګرځي كله چې هغه [د كوچنۍ نجلۍ] په نكاح خبره وي او په شيدو وركولو سره هغې [د نكاح] فاسدولو اراده كړې وي أَمَّا إِذَا لَمْ تَعْلَمْ بِالنِّكَاحِ أَوْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَلَكِنَّهَا قَصَدَتْ دَفْعَ الْجُوعِ وَالْهَلَاكِ عَنِ الصَّغِيرَةِ دُونَ الْإِفْسَادِ ليكن كه چيري هغه په نكاح خبره نه وي يا خبره خو وي ليكن [په شيدو وركولو سره] هغې له كوچنۍ نجلۍ څخه د لوږې او هلاكت ليرې كولو اراده كړې وي، نه د نكاح فاسدولو لَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً نو هغه تعدى كونكې نه ګرځي لِأَنَّهَا مَأْمُورَةٌ بِذَلِكَ ځكه چې [د شريعت له طرفه] هغې ته د دې حكم سوى دى وَلَوْ عَلِمَتْ بِالنِّكَاحِ وَلَمْ تَعْلَمْ بِالْفَسَادِ او كه هغه په نكاح خبره وي او په فساد خبره نه وي لَا تَكُونُ مُتَعَدِّيَةً أَيْضًا نو هم هغه تعدى كونكې نه ګرځي وَهَذَا مِنَّا اعْتِبَارُ الْجَهْلِ لِدَفْعِ قَصْدِ الْفَسَادِ او دا زموږ له طرفه د جهالت اعتبار كول د فساد دفع كولو لپاره دي لَا لِدَفْعِ الْحُكْمِ د شرعي حكم دفع كولو لپاره نه دي.

**اللغات:** ﴿قِبَل﴾ طرف، جهت، ﴿إِرْتِضَاع﴾ شيدې رودل، ﴿مُوَرِّث﴾ وارث جوړونكى (مراد څني هغه قريب چې څوك يې په ميراث كې حق لري)، ﴿أَكَّدَتْ﴾ د تفعيل له باب څخه د ماضي صيغه ده: مؤكد كول، مضبوطول (پخول او ټينګول)، ﴿شَرَف﴾ دا لفظ ډيري معناوي لري چې له هغوى څخه يو څو دا دي: كناره، څنډه (ژۍ)، پزه، بوك، ﴿إِتْلَاف﴾ د افعال مصدر دى: ضايع كول، تلفول، ﴿مُسَبِّبَة﴾ سبب جوړيدونكې، ﴿تَعَدِّي﴾ د تفعّل مصدر دى: تجاوز كول (له حدّ څخه تيريدل)، سركښي كول، ﴿حَفْر﴾ د ضرب مصدر دى: كيندل، كښل، ﴿إِفْسَاد﴾ د افعال مصدر دى: فاسدول، خرابول، ﴿جُوْع﴾ لوږه (وږې والى).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه ديو سړي په نكاح كې يوه غټه ښځه وي او بله كوچنۍ نجلۍ وي (يعني يوه مشره بالغه ښځه د هغه په نكاح كې وي او بله كوچنۍ شيرخواره نجلۍ د هغه په نكاح كې وي [كوم چې تر اوسه شيدې رودي]) او بيا غټه (مشره) ښځه و كوچنۍ نجلۍ ته خپلې شيدې وركړي، نو پر هغه سړي دا ښځه او نجلۍ دواړې حراميږي؛ ځكه چې د شيدو وركولو په وجه غټه (مشره) ښځه د كوچنۍ نجلۍ رضاعي مور سوه او كوچنۍ نجلۍ د هغې لور سوه، او لور او مور دواړه د يوه سړي په نكاح كې راټلل نا روا دي (هغه كه نسبي لور او مور وي او كه رضاعي لور او مور وي)، نو په دې وجه به دا دواړې ښځې پر هغه سړي حرامې وي.

صاحب د کفايې او علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله پر دې موقع يوه باريکه نکته دا بيان کړې ده چې په دغه مسئله کې د مشرې ښځې حرمت أبدي او دائمي دی؛ ځکه چې هغه د خاوند خوابنې جوړه سوه، او د خوابنې سره همېشه نکاح ناجائز او حرامه وي، خو د کوچنۍ نجلۍ په باره کې دا تفصيل سته چې که کوچنۍ نجلۍ هغه شيدې رودلې وي کوم چې د خاوند د وطي په وجه سره د مشرې ښځې په سينه کې پيدا سوي وي نو هغه کوچنۍ نجلۍ هم أبدي حرامه ګرځي؛ ځکه چې خاوند د هغې رضاعي پلار جوړ سو، همدارنګه که خاوند په مشرې ښځې دخول کړی وي (يعني جماع يې ور سره کړی وي) او بيا دا معامله پېښه سي (يعني مشره ښځې کوچنۍ نجلۍ ته شيدې ورکړي) نو بيا هم کوچنۍ نجلۍ أبدي او دائمي حرامه ګرځي؛ ځکه په مور چې کله دخول وسي نو بيا د هغې د لور په حق کې د حلّت هيڅ تصور نه سي کېدای، ها! که خاوند په مشرې ښځې دخول هم نه وي کړی او د هغې شيدې هم د خاوند د وطي په وجه نه وي پيدا سوي (بلکي د مخکني خاوند د وطي په نتيجه کي هغه حامله سوې وي او شيدې يې پيدا سوي وي) نو په داسې صورت کې هغه کوچنۍ نجلۍ پر خاوند أبدي حرامه نه ګرځي بلکي عارضي حرامه ګرځي، او وروسته خاوند د هغې سره نکاح کولای سي.

<u>ثم إن لم يدخل إلخ</u>: په دې سره مونږ ته دا را ښيي چې که په دې مسئله کې خاوند د مشرې سره جماع کړې وي نو بيا به هغې ته نيم مهر ور کوي، لېکن که له جماع او دخول څخه بغير دا معامله پېښه سي نو هغې ته به نيم مهر هم نه ور کوي؛ ځکه چې دا فرقت د هغې د خپل عمل په وجه واقع سوی دی، نو ځکه به هغه له خپل حق څخه محرومه کېږي، لکه په هغه صورت کې چې ښځه له خپل حق څخه محرومه کېږي، کله چې هغه مرتده سي، يا هغه د خاوند زوی (مېرزی زوی) په شهوت سره مچ کړي. ها! څرنګه چې په دغه فرقت کې د کوچنۍ نجلۍ هيڅ دخل نسته، نو ځکه به هغې ته خپل نيم حق (نيم مهر ور کول) کېږي.

<u>والارتضاع إلخ</u>: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ور کوي، سوال دا دی چې په دغه مسئله کې د فرقت علت شيدې رودل (چيبل) دي او د همدغه علت په وجه ښځه او نجلۍ دواړه پر خاوند حرام ګرځيدلي دي، او دا علت د نجلۍ له طرفه دی (يعني د رودلو فعل خاص د نجلۍ له طرفه واقع سوی دی)، لهذا د عقل تقاضا دا ده چې د فرقت نسبت هم د هغې وطرف ته وسي او هغه هم له خپل حق څخه محرومه کړل سي؟

نو په جواب کې فرمايي چې دا خبره موږ منو چې د فرقت علت د شيدو رودل دي او دا خاص د نجلۍ فعل دی، لېکن د هغې دا فعل د شريعت په نظر کې هيڅ اعتبار نه لري؛ ځکه چې هغه تر اوسه

په شرعي احکامو مکلفه نه ده، همدا وجه ده که کوچنۍ نجلۍ خپل مورث (مثلاً خاوند) قتل کړي نو هم به هغه له وراثت څخه نه محرومه کيږي، همداسي په دغه مسئله کي د نجلۍ شيدې رودل که څه هم د حق د إسقاط علت او دليل دی خو د شريعت په نظر کي دا غيرِ معتبر او د نيوکړي قابل نه دی.

ويرجع به الخ: په دې سره دا خبره بيانوي چي غټه ښځه خو به له مهر څخه محرومه کيږي، لېکن نجلۍ به د نيم مهر حقداره وي او پر خاوند به هغې ته نيم مهر ورکول لازم او ضروري وي.

اوس پوښتنه دا ده چي آيا خاوند دغه نيم مهر له خپلي مشري ښځي څخه د ضمان او تاوان په توګه اخيستلای سي، که نه؟

په دې هکله په ظاهر روايت کي څه تفصيل دی او هغه دا چي د مشري ښځي نيت ته به کتل کيږي او د دې خبري تفتيش به کيږي چي هغې په کوم نيت نجلۍ ته شيدې ورکړي دي، د نکاح فاسدولو لپاره او که د لوږې ختمولو لپاره، که چيري هغې د نکاح فاسدولو په غرض قصداً نجلۍ ته شيدې ورکړي وي نو بيا به پر هغې د نيم مهر ضمان واجب وي، لېکن که د نجلۍ د لوږې ختمولو لپاره يې داسي کړي وي نو پر هغې به هيڅ ضمان او تاوان واجب نه وي.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي غټه ښځه به مطلقاً د نيم مهر ضامنه وي، برابره ده هغې د نکاح فاسدولو نيت کړی وي او که د لوږې ختمولو نيت يې کړی وي، په دواړو صورتونو کي پر هغې ضمان واجبيږي، صاحب د عنايې د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا بيان کړی دی چي د ضمان د وجوب په سلسله کي مسبِّب (سبب جوړېدونکی کس) د مباشر (په خپله د غلط کار کونکی کس) په څير دی (او دوی دواړه په دې هکله سره برابر دي)، همدا وجه ده که يو څوک د يو چا د قفس دروازه خلاصه کړي او مارغه ولاړ سي، يا د يو قيدي زولني خلاصي کړي او هغه وتښتيږي، نو پر مسبب (يعني چا چي دروازه يا زولني خلاصي کړي وي پر هغه) د دې شيانو ضمان واجبيږي، حالانکي هغه فقط مسبب (سبب جوړېدونکی) دی (خو پر هغه ځکه ضمان واجبيږي چي د امام محمد په نېز به مسبب د مباشر په څير ګرځول کيږي او د مباشر حکم به پر جاري کيږي)، همداسي په دغه مسئله کي که څه هم مباشر او مرتکب کوچنۍ نجلۍ ده خو څرنګه چي مسبب غټه ښځه ده، نو ځکه به پر هغې خامخا ضمان واجبيږي او په تعدی او غيرِ تعدی (تعمّد او غيرِ تعمّد) کي به هيڅ فرق نه کيږي (يعني د غټې ښځي نيت ته به نه کتل کيږي چي د هغې نيت د تعدی دی او که د غيرِ تعدی؟)؛ ځکه چي د مباشر په حق کي تعدی او غيرِ تعدی دواړه سره برابر دي، لهذا د مسبِّب په حق کي به هم دواړه سره برابر وي.

**والصحيح ظاهر الرواية إلخ:** كه څه هم په دغه مسئله کې د امام محمد رَحِمَهُ الله قياس طاقتور ښکاري. لېکن د دې باوجود صحيح قول ظاهر روايت دی چې په تعدی او غيرِ تعدی کې به فرق کيږي (او د مشري ښځې نيت ته به کتل کيږي)؛ ځکه په دې مسئله کې د مشري ښځې جرم فقط دومره دی چې هغې يو داسې شی مؤکد او مستحکم کړی کوم چې ساقطېدلو او ضايع کېدلو ته نږدې وو. يعني دا ممکنه وه چې کوچنۍ نجلۍ تر بلوغ وروسته مرتده سوې وای، يا يې په شهوت سره مېرزي زوی مچ کړی وي او په دې سره د هغې مهر ساقط سوي وای، خو مشري ښځې په شيدو ورکولو سره د هغې (نيم) مهر مؤکد کړی، نو فقط په دې وجه سره هغه مجرمه ده او د هغې دا فعل د "إِتْلَافُ الشَّئِ" (د شي د ضايع کولو) قائم مقام دی (يعني ګواکې هغې د خاوند مال [نيم مهر] ضايع کړی). لېکن د دې ټولو باوجود هغه مباشره نه ده بلکې مسببه ده، ځکه چې کوچنۍ ته شيدې ورکول د تربيت او پالنې لپاره وي، د نکاح فاسدولو لپاره نه وي، دا اتفاقاً (او ناڅاپه) داسې وسوه چې دوی دواړې د يوه کس په نکاح کې سره جمع سوي دي، کنې هغه مشري ښځې که د يو بل چا نجلۍ ته شيدې ورکړې وای نو پر هغې به هيڅ ضمان نه واجبېدای.

دويمه وجه دا ده چې د نکاح فاسدېدل د مهر واجبېدلو سبب نه دی؛ ځکه چې د مهر د هلاکولو په وجه هم د مهر ضمان نه واجبيږي، ځکه مهر بذاتِ خود متقوم نه دی، لهذا دا خبره تسليم سوه چې د نجلۍ لپاره نيم مهر د نکاح فاسدولو په وجه نه دی واجب سوی بلکې د متعې په توګه واجب سوی دی؛ ځکه چې متعه د نکاح د بطلان په وخت کې واجبيږي او هغه (بطلان د نکاح) دلته موجود دی. لهذا کله چې دا مهر د متعې په توګه واجب سوی دی نو غټه ښځه په دې کې فقط مسبّبه سوه او مباشره نه سوه، او د مسبّب لپاره د شيخينو په نېز تعدی (او تعمّد) شرط دی.

لکه څرنګه چې يو سړی په عامه لاره کې څاه وکيندي او په هغه څاه کې يو څوک مړ سي، نو د څاه پر کيندونکي ضمان واجبيږي؛ ځکه چې هغه خپل په دې عمل کې سرکښ او متعدّی هم دی او تعمّداً (قصداً) فساد کونکی هم دی، لېکن که داغه سړی په خپله ځمکه کې څاه وکيندي او بيا په هغه کې يو څوک مړ سي، نو څرنګه چې اوس دا سړی متعدي او مفسد نه دی نو ځکه اوس ضمان نه پر واجبيږي، لهذا معلومه سوه چې په مسبب کې د تعدی او غير تعدی تر مينځ فرق سته، او څرنګه چې په دغه مسئله کې کبيره هم مسبّبه ده نو د هغې په حق کې به هم د ضمان د وجوب په باره کې د تعدی او غيرِ تعدی تر مينځ فرق کيږي، که چيرې هغې متعديه وي او د نکاح فاسدولو په نيت يې دا کار کړی وي نو بيا به پر هغې ضمان واجب وي، کنې واجب به نه وي.

**ثم إنما تكون إلخ:** په دې سره د تعدی حد بیانوي چي (مشره) ښځه کله متعدیه ګرځي، نو فرمایي چي ښځه هغه وخت متعدیه ګرځي کله چي په نکاح خبره وي (چي دغه کوچنی نجلی زما د خاوند په نکاح کي ده او زما بڼ ده) او بیا د نکاح فاسدولو په نیت قصداً کوچنی نجلی ته شیدې ورکړي، لېکن که هغه په نکاح خبره نه وي، یا خبره وي خو کوچنی نجلی ډېره وږې وي او د هغې د لوږې د دفع کولو لپاره یې داسي کړي وي، یا په دې خبره نه وي چي په دغه فعل سره نکاح فاسدیږي، نو په دې ټولو صورتونو کي هغه متعدیه نه ګرځي.

**وهذا منّا اعتبار إلخ:** دا د یو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي که مشره ښځه په دې خبره وي چي دغه کوچنی نجلی زما د خاوند ښځه ده لېکن په دې حکم ناخبره وي چي په دې فعل (شیدو ورکولو) سره نکاح فاسدیږي، نو تاسو په دې صورت کي هغه ولي متعدیه نه شماری او ولي د هغې ناخبري (جهالت) عذر شماری او ضمان نه پر واجبوی، حال دا چي په دارُ الاسلام کي له داسي مسائلو څخه ناخبري عذر نه شمارل کیږي (بلکي د دار الاسلام هر وګړی او هر فرد په دې خبر وي)، لهذا ستاسو لپاره دا صورت له تعدی څخه مستثنیٰ کول او په دې هکله ناخبري عذر شمارل صحیح نه دي؟

د دې په جواب کي صاحب د هدایې فرمایي چي موږ دا صورت ځکه له تعدی څخه باسو او د هغې جهالت ځکه عذر شمارو چي د فساد اراده دفع سي، نه د دې لپاره چي شرعي حکم (یعني د ضمان وجوب) دفع سي، ځکه چي حکم (یعني پر مشري ښځي د ضمان وجوب) د هغې له طرفه پر تعدی موقوف دی، او تعدی هغه وخت ثابتیږي کله چي هغې د شیدو په ورکولو سره د نکاح فاسدولو اراده کړې وي، او د نکاح د فساد اراده هغه وخت ثابتیږي کله چي هغې ته په شیدو ورکولو سره د نکاح فاسدېدلو علم هم وي (یعني کله چي مشره ښځه په دې خبره وي چي په شیدو ورکولو سره نکاح فاسدیږي)، نو کله چي هغې ته د دې علم نسته یعني کله چي "علم بالفساد" منتفي سو نو د نکاح فاسدولو اراده هم منتفي سوه.

لهذا دلته د مشري ښځي د جهالت اعتبار کول د فساد د ارادې د ختمولو او دفع کولو لپاره دی، د شرعي حکم د ختمولو لپاره نه دی (په لنډه توګه دا جواب داسي هم ورکول کېدای سي چي موږ ځکه د مشري ښځي جهالت عذر شمارو چي د هغې له جهالت څخه دا معلومیږي چي هغې د فساد اراده کړې نه ده، نو د دغه ارادې د دفع لپاره موږ هغه معتبر منو او عذر یې شمارو، او داسي نه ده چي موږ هغه د ضمان د وجوب د دفع کولو معتبر منو).

## د حرمتِ رضاعت په ثبوت کې د ښځو د ګواهۍ حکم

وَلَا يُقْبَلُ فِي الرَّضَاعِ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مُنْفَرِدَاتٍ او نه قبلیږي په رضاعت کې یوازې د ښځو ګواهي وَإِنَّمَا تَثْبُتُ بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ [بلکې] رضاعت ثابتیږي د دوو خلکو یا د یوه سړي او دوو ښځو په ګواهۍ سره وَقَالَ مَالِكٌ: تَثْبُتُ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د یوې ښځې په ګواهي سره [هم] رضاعت ثابتیږي إِذَا كَانَتْ مَوْصُوفَةً بِالْعَدَالَةِ [په دې شرط] چې کله هغه عادله وي لِأَنَّ الْحُرْمَةَ حَقٌّ مِنْ حُقُوقِ الشَّرْعِ ځکه چې حرمت د شریعت له حقوقو څخه یو حق دی فَتَثْبُتُ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ نو د یوه په خبر سره به [هم] ثابتیږي كَمَنِ اشْتَرَى لَحْمًا فَأَخْبَرَهُ وَاحِدٌ أَنَّهُ ذَبِيحَةُ الْمَجُوسِيِّ لکه یو څوک چې غوښې رانیسي او یو سړی هغه ته دا خبر ورکړي چې دا د مجوسي ذبیحه ده [نو د دغه یوه سړي په خبر سره هم هغه غوښې حرامیږي] وَلَنَا: أَنَّ ثُبُوتَ الْحُرْمَةِ لَا يَقْبَلُ الْفَصْلَ عَنْ زَوَالِ الْمِلْكِ فِي بَابِ النِّكَاحِ او زموږ دلیل دا دی چې د نکاح په باب کې د حرمت ثبوت د ملکیت له زائلیدلو څخه جدایي نه قبلوي وَإِبْطَالُ الْمِلْكِ لَا يَثْبُتُ إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ او د ملکیت باطلول [زائلول] نه ثابتیږي مګر د دوو خلکو یا د یوه سړي او دوو ښځو په ګواهۍ سره بِخِلَافِ اللَّحْمِ په خلاف د غوښو [د مسئلې] لِأَنَّ حُرْمَةَ التَّنَاوُلِ يَنْفَكُّ عَنْ زَوَالِ الْمِلْكِ ځکه چې د خوړلو حرمت د ملکیت له زوال څخه جلا کېدای سي [او جدایي قبلوي] فَاعْتُبِرَ أَمْرًا دِينِيًّا نو ځکه هغه [د غوښو مسئله] یوه دیني مسئله ومنل سوه [یعني هغه به له اُمورِ دینیه وو څخه شمارل کیږي، او اُمورِ دینیه د "شخصِ واحد" په ګواهۍ سره هم ثابتیږي].

**اللغات:** ﴿مُنْفَرِدَات﴾ جمع د مُنْفَرِدَة ده: یوازې، تنها، ﴿يَنْفَكّ﴾ د انفعال مضارع ده: جلا کېدل، ﴿تَنَاوُل﴾ د تفاعل مصدر دی: یو شی خوړل، حاصلول، اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نیز د رضاعت د ثبوت لپاره د دوو خلکو یا د یوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده، یوازې د ښځو په ګواهۍ سره رضاعت نه ثابتیږي، د دې په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چې فقط د یوې دینداري او عادلې ښځې په ګواهۍ سره هم رضاعت ثابتیږي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چې حرمت له شرعي حقوقو څخه يو حق دی، او څرنګه چې د هر شرعي أمور په خبرِ واحد او د شخصِ واحد په ګواهي سره ثابتيږي، همداسي به دغه أمر هم د شخصِ واحد په ګواهي سره ثابتيږي، هغه که نر وي او که ښځه وي (په دې شرط چې عادل وي).

مثلاً که يو سړي په بازار کي د پسه غوښې رانيسي او کور ته را روان سي او په لاره کي يو څوک ور ته ووايي چې کومي غوښې تا رانيولي دي هغه د مجوسي د لاس دي او هغه پسه مجوسي ذبح کړی دی، اوس فقط د دغه يوه سړي په خبره سره د هغه لپاره نه د غوښو خوړل روا دي او نه يو بل مسلمان ته د دې غوښو ور کول روا دي، نو امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې څرنګه دلته د شخصِ واحد په خبر سره د غوښو حرمت ثابتيږي، همداسي به د رضاعت په مسئله کي هم د شخصِ واحد په ګواهي سره حرمت ثابتيږي، او د ګواهي نصاب يا د "سړي" (مذکر) قيد به ضروري نه وي.

ولنا إلخ: په دې عبارت سره زموږ دليل هم ذکر کوي او د امام مالک رَحِمَهُ الله د قياس جواب هم ور کوي، حاصل يې دا دی چې يو خو د ملکيت زائلېدل دي او بل د غوښو يا داسي بل شي حرامېدل دي، د ملکيت د زائلېدلو لپاره د دوو خلکو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده؛ ځکه چې د ملکيت زائلېدل له حقوقُ العباد څخه دي، او د غوښو يا د بل شي حرامېدل له ديني أمورو څخه دي (له حقوق العباد څخه نه دي) او د دې لپاره فقط د شخصِ واحد ګواهي هم کافي ده (يعني فقط د يوه سړي يا يوې ښځي په ګواهي سره هم يو شی حراميږي)، او دا هم ممکنه ده چې يو شی د انسان په ملکيت کي وي او د هغه خوړل دغه انسان ته حرام وي، مثلاً د کفر په حالت کي يو سړی د شرابو مالک وي او هغه مسلمان سي، نو د هغه لپاره خو د شرابو خوړل حرام سو لېکن بيا هم پر شرابو د هغه ملکيت پاته دی.

او په رضاعت کي دوې خبري دي: يوه خبره دا چې په رضاعت سره حرمت ثابتيږي، دا له ديني أمورو څخه يو أمر دی او د يوې ښځي په ګواهي سره هم ثابتېدای سی، او بله خبره دا ده چې د حرمت تر ثبوت وروسته سملستي نکاح ماتيږي او له ښځي څخه د خاوند ملکيت زائليږي (يعني حرمتِ رضاعت د ملکيت زوال لره مستلزم دي) او د دې لپاره د دوو خلکو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري ده (يعني د ملکيت زوال د نصاب په ګواهي سره ثابتېدای سي)، نو په دې وجه حرمتِ رضاعت د حقوقُ العباد

له قبيلې څخه سو، نو ځکه به د حرمتِ رضاعت د ثبوت لپاره د دوو خلګو، يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي ضروري وي.

بخلاف اللحم: په خلاف د غوښو د حرمت؛ ځکه چې هغه د ملکيت زوال لره مستلزم نه دي، يعني د شخصِ واحد تر خبر ورکولو وروسته که څه هم د دې غوښو استعمالول د مسلمان لپاره ناروا دي لېکن بيا هم هغه د دې غوښو مالک دی (لکه پورته چې د شرابو مثال مورږ ذکر کړی)، نو ځکه به د شخصِ واحد ګواهي هم په دې هکله معتبره وي.

خلاصه دا چې کله د ملکيت سره أمور دينيه (مثلاً د غوښو حرامېدل) جمع سي، نو هلته به د ديني أمورو اعتبار کيږي او د شخصِ واحد په ګواهي سره به حراميږي او د نصاب د ګواهي ضرورت به نه وي، لکه په پورتني مثال کې چې سړی کافر وو او بيا مسلمان سو، نو شراب خو د هغه لپاره حرام سو لېکن د هغه په ملکيت کې پاته سو، لهذا هلته حرمت او ملکيت دواړه سره جمع سول. نو ځکه به هلته د أمورِ دينيه وو اعتبار کيږي، لېکن چيري چې حرمت او ملکيت دواړه نه سي سره جمع کېدلای، نو هلته به د حقوقُ العباد اعتبار کيږي، لکه په رضاعت کې چې حرمت او ملکيت دواړه نه سي سره جمع کېدلای، ځکه که په رضاعت کې د حرمت اعتبار وسي نو سمدستي د نکاح ملکيت زائليږي، نو ځکه به دلته د حقوق العباد اعتبار کيږي او د نصاب ګواهي به ضروري وي (چې هغه دوه خلګ، يا يو سړی او دوې ښځې دي).

**أصول:** که د أمورِ دينيه وو په رعايت کولو سره ملکيت زائلېدی، نو هغوی به د حقوقُ العباد په حکم کې ګرځول کيږي (او د حقوقُ العباد درجه به ورکول کيږي) يعني په ګواهي کې به يې نصاب ضروري وي، او که د أمورِ دينيه وو د رعايت باوجود ملکيت ثابت پاتېدی، نو د أمورِ دينيه وو اعتبار به کيږي او د شخصِ واحد ګواهي به هم کافي وي (هغه که نر وي او که ښځه). (اثمار الهداية ج،۲، ص، ۳۲۰)

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِكَاتِبِهٖ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِمَنْ سَعٰى فِيْهِ



# كِتَابُ الطَّلَاقِ

(دا) كتاب د طلاق (د احكامو په بيان كي دی)

## ﴿بَابُ طَلَاقِ السُّنَّةِ﴾

**تشريح:** مخكې تر دې مصنف رَحِمَهُ الله نكاح او د نكاح متعلقات بيان كړل، اوس له دې ځای څخه طلاق او د طلاق متعلقات بيانوي، څرنګه چې نكاح په وجود او ثبوت كي تر طلاق مخكي ده (يعني لول نكاح تړل كيږي او تر نكاح تړلو وروسته د طلاق نوبت راځي)، نو ځكه صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله په بيان كي كتابُ النكاح مخكي كړی، او كتابُ الطلاق يې تر هغه وروسته كړی. (يا دا چي طلاق طبعاً تر نكاح مؤخر او وروسته وي، نو ځكه مصنف رَحِمَهُ الله وضعاً هم كتابُ الطلاق تر كتابُ النكاح وروسته كړی، چي په وضع او طبع دواړو كي موافقت راسي).

او تر كتاب الرضاع وروسته د كتابُ الطلاق د ذكر كولو وجه ده چي په رضاعت سره أبدي او دائمي حرمت ثابتيږي، لېكن په طلاق سره عارضي حرمت ثابتيږي (لهذا د طلاق په مقابله كي د حرمتِ رضاعت حكم أشد او سخت سو)، نو په دې وجه مصنف رَحِمَهُ الله حرمتِ أبدي (سخت حكم) تر حرمتِ عارضي (سپک حكم) مخكي ذكر كړی.

**د طلاق لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** د طلاق لغوي معنیٰ ده: "رَفْعُ القَيْد" (قيد پورته كول او ختمول)، او طلاق مصدر دی د "تَطْلِيْق" په معنیٰ سره دی لكه سلام چي د "تَسْلِيْم" په معنیٰ سره دی.

او د شريعت په اصطلاح كي د طلاق معنیٰ ده: "رَفْعُ الْقَيْدِ الثَّابِتِ بِالنِّكَاحِ"، (يعني د نكاح په ذريعه ثابت سوی حكم او قيد ختمول).

**د طلاق سبب:** ډېر سخت ضرورت چي له هغه څخه خلاصون ممكن نه وي.

**د طلاق شرط:** د طلاق ورکونکي عاقل او بالغ کېدل، همدارنګه د هغه په نکاح یا د هغه په عدت کې ښځه محل د طلاق کېدل.

**د طلاق حکم:** له محل یعني له ښځې څخه مِلک د نکاح زائلېدل (باطلېدل).

د طلاق دړې قسمونه دي چې هغه به خپله صاحب د کتاب په ترتیب سره بیان کړي.

## د طلاق قسمونه

قَالَ: الطَّلَاقُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَوْجُهٍ: حَسَنٍ وَأَحْسَنَ وَبِدْعِيٍّ فرمايي: چې طلاق پر درې قسمه دی: ① حسن ② أحسن ③ بدعي فَالْأَحْسَنُ أَنْ يُطَلِّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً أحسن [طلاق] دا دی چې خاوند خپلې ښځې ته یو طلاق [رجعي] ورکړي فِي طُهْرٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ په داسې طهر کې چې خاوند په هغه کې د دې [ښځې] سره جماع کړې نه وي وَيَتْرُكَهَا حَتَّى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا او تر هغه وخته يې [پر خپل حالت] پرېږدي تر څو چې د هغې عدت [عده] تېره سي لِأَنَّ الصَّحَابَةَ كَانُوا يَسْتَحِبُّونَ أَنْ لَا يَزِيدُوا فِي الطَّلَاقِ عَلَى وَاحِدَةٍ حَتَّى تَنْقَضِيَ الْعِدَّةُ ځکه چې صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به دا [خبره] خوښوله چې تر علت تېرېدلو مخکې پر یوه طلاق زیاتوب نه وکړي فَإِنَّ هٰذَا أَفْضَلُ عِنْدَهُمْ مِنْ أَنْ يُطَلِّقَهَا الرَّجُلُ ثَلَاثًا عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ وَاحِدَةً او دا صورت به د دوی په نېز تر هغه صورت غوره وو چې خاوند وښځې ته درې طلاقه [داسې] ورکړي چې په هر طهر کې یو طلاق وي وَلِأَنَّهُ أَبْعَدُ مِنَ النَّدَامَةِ او ځکه چې دا [صورت] له پېښماتتیا [او شرمندګی] څخه ډېر لیرې دی وَأَقَلُّ ضَرَرًا بِالْمَرْأَةِ او د ښځې لپاره کم نقصان مند دی وَلَا خِلَافَ لِأَحَدٍ فِي الْكَرَاهَةِ او د نه کراهت په باره کې [يې] د هيڅا اختلاف [هم] نسته

له "كراهة" څخه مراد "عدم الكراهة" دی، يعني د دې صورت په نه مکروه والي کې د هيڅ امام اختلاف نسته، بلکې ټوله فرمايي چې د طلاق لپاره دا أحسنه طريقه ده.

**اللغات:** ﴿أَوْجُه﴾ جمع د "وَجْه" ده: دا لفظ ډېرې معناوې لري، دلته د "قسم" او "صورت" په معنىٰ سره دی، ﴿تَنْقَضِي﴾ د انفعال مضارع ده: تېرېدل (پوره کېدل)، ختمېدل، ﴿يَسْتَحِبُّوْن﴾ د استفعال مضارع ده: خوښول، مستحب ګڼل، ﴿نَدَامَة﴾ پښېماني، ﴿كَرَاهَة﴾ ناخوښي، مکروه کېدل.

**تشريح:** د طلاق درې قسمونه دي: ① حسن، ② أحسن، ③ بدعي. په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د طلاقِ أحسن تعريف او تفصيل بيان کړی دی.

**طلاقِ احسن:** دې ته وايي چې خاوند خپلې ښځې ته يو طلاق ورکړي په داسې طهر کې چې په هغه کې يې د هغې سره جماع نه وي کړې او بيا يې پر خپل حالت پرېږدي تر دې چې عدت تېر سي (يعني که خاوند په أحسنه او غوره طريقه سره ښځې ته طلاق ورکول وغواړي نو په کوم طهر کې چې هغه د ښځې سره جماع نه وکړي، په هغه طهر کې دې يو طلاق رجعي ورکړي، نو تر دې وروسته که خاوند بيرته هغې ته رجوع کول وغواړي، نو رجوع دې ور ته وکړي، او که رجوع کول نه وغواړي، نو پر خپل حالت دې يې پرېږدي، تر دې چې عدت تېر سي).

د دې طلاق د أحسن والي او ښه والي دليل دا دی چې په صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې به دا طريقه جاري او عملي وه، او د طلاق دا صورت به يې تر هغه صورت زيات خوښوی چې خاوند ښځې ته پر يوه ځای درې طلاقه ورکړي يا په دريو طهرو کې درې طلاقه ورکړي، له همدې کبله دې ته "طلاق أحسن" وايي.

**ولأنه أبعد إلخ:** په دې سره د طلاقِ أحسن د ښه والي درې عقلي دليلونه بيانوي: (۱)... طلاقِ أحسن له پښېمانۍ او شرمندګۍ څخه زيات ليرې دی، ځکه چې په دې کې ښځې ته يو طلاقِ رجعي ورکول کيږي، نو که وروسته د خاوند خيال سي چې ما غلطي کړې ده، نو رجعت کولای سي. او چې کله عدت تېر سي، نو له "حلاله" (تحليل) څخه بغير دويم ځل نکاح کولای سي، لېکن که چيري په دريو طهرونو کې درې طلاقه (يعني طلاقِ حسن) ورکړي، نو له "حلاله" څخه بغير بيا نکاح نه سي کولای، (۲)... او په دې طلاق کې د ښځې هم زيات تاوان او نقصان نسته، هغه په دې توګه چې يو خو به ښځې ته د دې موقع حاصله سي چې د مستقبل لپاره خپل عمل او اخلاق سم کړي، او مناسبه عملي ګړنلاره به د ځان لپاره تياره کړي، او بل دا چې په دې طلاق کې د ښځې عدت مختصر او کوچنی وي، لېکن که چيري طلاق ورکړي او بيا تر رجعت کولو وروسته دويم يا دريم طلاق ورکړي، نو په دې صورت کې عدت اوږديږي، حتیٰ چې ښځه معلّقه ګرځي، (۳) او د دې طلاق په ښه کېدلو کې د هيچا اختلاف هم نسته، لېکن په طلاق کې حسن کې د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی، ځکه هغه طلاقِ حسن ته بدعت وايي.

## طلاقِ حسن، او د امام مالک رَحِمَهُ الله رايه

وَالْحَسَنُ هُوَ طَلَاقُ السُّنَّةِ او حسن هغه طلاقِ سنت دی وَهُوَ أَنْ يُطَلِّقَ الْمَدْخُولَ بِهَا ثَلَاثًا فِي ثَلَاثَةِ أَطْهَارٍ او هغه دا دی چي [خاوند] مدخول بها ښځي ته دري طلاقه په دريو طهرونو کي ورکړي وَقَالَ مَالِكٌ: إِنَّهُ بِدْعَةٌ وَلَا يُبَاحُ إِلَّا وَاحِدَةً او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا [طلاق] بدعت دی او روا نه دي مګر يو [طلاق ورکول] لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ هُوَ الْحَظْرُ ځکه چي أصل په طلاق کي ممانعت [نا راوړښت] دی وَالْإِبَاحَةُ لِحَاجَةِ الْخَلَاصِ او رواېښت د خلاصون [حاصلولو] د ضرورت په خاطر دي وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْوَاحِدَةِ او دا ضرورت په يوه [طلاق] سره پوره کيږي انو ځکه به دويم او دريم طلاق بدعت وي[ وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] فِي حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ او زموږ دليل دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حديث کي د نبي کريم ﷺ [دا] قول دی "إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ أَنْ تَسْتَقْبِلَ الطُّهْرَ اسْتِقْبَالًا "چي سنت طريقه دا ده چي ته د طهر انتظار وکړي فَتُطَلِّقَهَا لِكُلِّ قُرْءٍ تَطْلِيقَةً" بيا په هر طهر کي ښځي ته يو طلاق ورکړي". وَلِأَنَّ الْحُكْمَ يُدَارُ عَلَى دَلِيلِ الْحَاجَةِ او په دې وجه [هم] چي حکم د حاجت پر دليل دائر کيږي [يعني د حکم دار ومدار" د طلاق د حاجت" پر دليل دی] وَهُوَ الْإِقْدَامُ عَلَى الطَّلَاقِ فِي زَمَانِ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ او هغه [د حاجت دليل] د رغبت نوي کېدلو په زمانه کي پر طلاق إقدام کول دي [يعني د حاجت دليل دا دی چي انسان په داسي زمانه کي ښځي ته طلاق ورکړي چي په هغه زمانه کي رغبت تازه کيږي او شهوت راپورته کيږي] وَهُوَ الطُّهْرُ الْخَالِي عَنِ الْجِمَاعِ او هغه [يعني د رغبت تازه کېدلو زمانه] هغه طهر دی کوم چي له جماع څخه خالي وي فَالْحَاجَةُ كَالْمُتَكَرِّرَةِ نَظَرًا إِلَى دَلِيلِهَا لهذا د حاجت و دليل ته په نظر کولو سره به [د طلاق] حاجت د حاجت مکرره په څېر وي [او په هر طهر کي به د طلاق په إقدام کولو سره د طلاق حاجت مکرر کيږي، نو مکرر طلاق ورکول به هم مباح وي] ثُمَّ قِيلَ: الْأَوْلَى أَنْ يُؤَخِّرَ الْإِيقَاعَ إِلَى آخِرِ الطُّهْرِ بيا ويل سوي دي: چي غوره دا ده چي [خاوند] د طلاق واقع کول د طهر تر آخره پوري وځنډوي اِحْتِرَازًا عَنْ تَطْوِيلِ الْعِدَّةِ د عدت اوږدولو څخه د ځان ساتلو لپاره وَالْأَظْهَرُ أَنْ يُطَلِّقَهَا كَمَا طَهُرَتْ او أظهر دا دي چي کله هم ښځه اله حيض څخه[ پاکه سي نو [سمدستي] دي طلاق ورکړي لِأَنَّهُ لَوْ أَخَّرَ رُبَّمَا يُجَامِعُهَا ځکه که هغه [د طلاق واقع کول] وځنډوي نو

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطلاق، حديث رقم: ٣٩٢٩.

کېدلی سي د ښځي سره جماع وکړي [یعني کېدلی سي جماع ځني وسي] وَمِنْ قَصْدِهِ التَّطْلِيقُ حال دا چي د هغه نیت د طلاق ورکولو دی فَيَبْتَلِيْ بِالْإِيْقَاعِ عَقِيْبَ الْوِقَاعِ نو تر جماع وروسته به [د طلاق] په واقع کولو سره مبتلا سي.

**اللغات**: ﴿الحظر﴾ اسم مصدر دی: ممانعت، بندیز، ممنوع کار، ممنوع شی، ﴿خَلَاص﴾ خلاصي ترلاسه کول (خلاصون)، له یو شي څخه ځان خلاصول، ﴿اِنْدَفَعَتْ﴾ د انفعال ماضي ده: لیري کېدل، ﴿تَسْتَقْبِلُ﴾ د استفعال له باب څخه د واحد مخاطب مضارع صیغه ده: مخامخ کېدل، متوجه کېدل (انتظار کول)، ﴿قُرْء﴾ پاکي، حیض (دواړو ته وایي)، ﴿يُدَار﴾ دائر کېدل (مدار کېدل، مبني کېدل)، ﴿تَجَدُّد﴾ د تفعّل مصدر دی: نوي کېدل (تازه کېدل)، ﴿وِقَاع﴾ جماع.

**تشریح**: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د طلاق دویم قسم یعني د طلاقِ حسن تعریف او حکم بیان کړی دی او پر هغه یې د"طلاقِ سنت" نوم ایښي دی.

ښکاره دي وي چي دلته له سنت څخه هغه سنت مراد نه دی چي په کولو سره یې ثواب حاصلیږي، بلکي دلته سنت د مباح او جائز په معنیٰ سره دی، ځکه چي طلاق بنفسهٖ یو داسي عبادت نه دی چي پر هغه دي انسان ته ثواب حاصل سي.

او أصلاً مصنف رَحِمَهُ الله پر امام مالک د ردّ کولو لپاره دې طلاق ته "طلاقِ سنت" ویلي دي، ځکه چي هغه دغه طلاق ته هم "طلاقِ بدعي" وایي.

**طلاقِ حسن**: دې ته وایي چي خاوند خپلي (مدخول بها) ښځي ته په دریو جلا طهرونو کي درې طلاقه ورکړي.

امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي چي دا طلاق بدعت دی. جائز او مباح فقط یو طلاق دی.

**د امام مالک دلیل**: دا دی چي په طلاق کي ممانعت اصل دی، ځکه چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: "تَزَوَّجُوْا وَلَا تُطَلِّقُوْا. رواه ابو داؤد" (یعني نکاح کوئ! او د طلاق لاره مه اختیاروئ!)، او بل دا چي د طلاق روایښت د ښځي له نکاح څخه د ځان خلاصولو د ضرورت په وجه دی، او ضرورت په یوه طلاق سره هم پوره کیږي، نو ځکه دویم طلاق مباح او روا نه دی.

**دوهم دلیل**: د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حدیث دی، د حدیث خلاصه دا ده چي حضرت عبد الله بن عمر خپلي ښځي ته د حیض په حالت کي طلاق ورکړی، او دا اراده یې وکړه چي نور دوه طلاقه به په دوو را روانو طهرونو کي ورکړم، کله چي نبي ﷺ ته دا خبره ورسېده، نو نبي ﷺ وفرمایل: اې ابن عمره! تا

سنت طريقه پرېښووله، سنت طريقه دا ده: "ته د طهر انتظار وكړه!، او په هر طهر كي ښځي ته يو طلاق وركړه!"، له دې حديث څخه په ښكاره توګه معلومه سوه چي په دريو طهرونو كي درې طلاقه وركول كېداى سي، نو ځكه به دا طلاق مباح او د سنت طريقې مطابق وي، او بدعت به نه وي.

**ولأن الحكم إلخ:** دا عبارت د دريو طلاقونو د روايښت عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چي په هر طهر كي د انسان رغبت تازه كيږي او جماع ته د هغه شوق راپورته كيږي، نو د شوق راپورته كېدلو او تازه كېدلو باوجود ښځي ته طلاق وركول د دې خبري دليل دی چي له ښځي څخه د خاوند دومره نفرت دی چي د جماع كولو پر ځاى هغې ته طلاق وركوي او بالكل يې له ځان څخه ليري كوي، او همدغه ته "دليل الحاجة" (د ضرورت دليل) وايي، يعني په دغه وخت كي طلاق وركول د حاجت دليل دی. د "دليل الحاجه" جمله په يادلرئ! دا به څو ځايه ستاسو مخته راسي.

نو د عقلي دليل مختصر مطلب دا سو چي په طهر خالي عن الجماع كي د شهوت راپورته كېدلو او رغبت تازه كېدلو باوجود پر طلاق إقدام كول د حاجت دليل دی، او كله چي د حاجت په دليل كي تكرار راسي (يعني كله چي خاوند په دويم طهر كي بيا پر طلاق اقدام كول وغواړي) نو ګواكي په "حاجة إلى الطلاق" كي تكرار راغلی، او كله چي په "حاجة إلى الطلاق" كي تكرار راغلی، نو "تكرار الطلاق" به هم مباح وي، نو ځكه به په دريو جلا طهرونو كي درې طلاقه وركول مباح (روا) وي، بدعت به نه وي.

**ثم قيل إلخ:** له مخكنيو دليلونو څخه معلومه سوه چي طلاقِ حسن (يعني په هر طهر كي طلاق وركول) مباح او د سنت طريقې مطابق دي، اوس دا خبره بيانوي چي د طهر په اول كي طلاق وركول غوره دي او كه په آخر كي؟ نو فرمايي چي په دې باره كي د فقهاؤ دوې نظريې دي: ①... اوله نظريه دا ده چي خاوند دي د طهر تر آخره پوري انتظار وكړي او د طهر په آخر كي دي طلاق وركړي، د دې لپاره چي د ښځي د عدت زمانه اوږده نه سي، ځكه دا ښكاره خبره ده چي كه د طهر په اول كي طلاق وركړي، نو پر ښځي د عدت زمانه اوږديږي.

②...دويمه نظريه دا ده چي كله ښځه له حيض څخه پاكه سي، نو سمدستي دي طلاق وركړي، ځكه كه د طهر تر آخره پوري انتظار وكړي، نو كېداى سي چي جماع ځني وسي (ځكه چي طهر د رغبت او شوق تازه كېدلو زمانه ده)، حال دا چي د هغه نيت د طلاق وركولو دی، او دا ښكاره خبره ده چي كه هغه تر جماع وروسته طلاق وركړي، نو د حديث په طريقه به عمل نه وسي، او د سنت طريقې مخالفت به وسي، نو ځكه غوره دا ده چي د طهر په اول كي طلاق وركړي. همدا ظاهر روايت هم دی.

## طلاق بدعي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله رايه

وَطَلَاقُ الْبِدْعَةِ أَنْ يُطَلِّقَهَا ثَلَاثًا بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ او طلاق بدعت دا دی چي [خاوند] ښځي ته درې طلاقه ورکړي په يوه کلمه سره أَوْ ثَلَاثًا فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ يا درې طلاقه ورکړي په يوه طهر کي فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ وَقَعَ الطَّلَاقُ نو کله چي هغه داسي وکړي نو [درې سره] طلاقه واقع کيږي [او ښځه بائنه کرځي] وَكَانَ عَاصِيًا او هغه به ګنهکار وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: كُلُّ الطَّلَاقِ مُبَاحٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هر طلاق مباح [روا] دی لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ مَشْرُوعٌ ځکه چي هغه يو شرعي تصرف دی حَتَّى يُسْتَفَادَ بِهِ الْحُكْمُ تر دې چي په هغه سره [شرعي] حکم مستفاد کيږي [يعني په هغه سره شرعي حکم ثابتيږي] وَالْمَشْرُوعِيَّةُ لَا تُجَامِعُ الْحَظْرَ او مشروعيت د ممانعت سره نه سي جمع کېدلای بِخِلَافِ الطَّلَاقِ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ په خلاف د حيض په حالت کي د طلاق ورکولو لِأَنَّ الْمُحَرَّمَ تَطْوِيلُ الْعِدَّةِ عَلَيْهَا لَا الطَّلَاقِ ځکه چي [هلته] پر ښځي عدت اوږدول حرام وي، نه طلاق وَلَنَا: أَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ هُوَ الْحَظْرُ زموږ دليل دا دی: چي أصل په طلاق کي ممانعت دی لِمَا فِيهِ مِنْ قَطْعِ النِّكَاحِ الَّذِي تَعَلَّقَتْ بِهِ الْمَصَالِحُ الدِّينِيَّةُ وَالدُّنْيَوِيَّةُ ځکه چي په طلاق کي د نکاح ختمول دي [او نکاح يو داسي نعمت دی] چي د هغې سره ديني او دنياوي مصلحتونه متعلق دي وَالْإِبَاحَةُ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْخَلَاصِ او [د طلاق] روايښت د خلاصون د حاجت په خاطر دی وَلَا حَاجَةَ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الثَّلَاثِ او [پر يوه ځای] د دريو طلاقونو د جمع کولو [هيڅ] ضرورت نسته [نو ځکه به پر يوه ځای درې طلاقه ورکول حرام وي] وَهِيَ فِي الْمُفَرَّقِ عَلَى الْأَطْهَارِ ثَابِتَةٌ او حاجت پر [دريو] طهرونو په متفرّق کولو کي ثابت دی نَظَرًا إِلَى دَلِيلِهَا د حاجت و دليل ته په نظر کولو سره [يعني په دريو متفرّقو طهرونو کي درې طلاقه ورکول د "دليل الحاجة" په وجه ثابت دي. دا د يو مقدر سوال جواب دی چي په تشريح کي به د هغه وضاحت وسي] وَالْحَاجَةُ فِي نَفْسِهَا بَاقِيَةٌ او بذات خود حاجت [هم] پاته دی فَأَمْكَنَ تَصْوِيرُ الدَّلِيلِ عَلَيْهَا نو پر دغه حاجت د دليل متصور کول ممکن سو وَالْمَشْرُوعِيَّةُ فِي ذَاتِهِ مِنْ حَيْثُ او [د طلاق بدعي] لذاته مشروع کېدل په دې حيثيت سره دي أَنَّهُ إِزَالَةُ الرِّقِّ چي هغه د رقيت [يعني د نکاح] زائلول دي [او د نکاح زائلول لذاته مشروع دي، نو طلاق بدعي به هم لذاته مشروع وي] لَا تُنَافِي الْحَظْرَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ [او لذاته مشروعيت] منافي نه دي د هغه ممانعت سره کوم چي

د داسي معنیٰ په وجه وي چي هغه له طلاق څخه بغير [په بل شي] کي وي [د دې جملې مختصره ترجمه دا ده: چي مشروع لذاته د ممنوع لغيره سره منافي نه دی، بلکي دوی دواړه سره جمع کېدای سي] وَهُوَمَا ذَكَرْنَاهُ او دا معنیٰ هغه ده کوم چي موږ ذکر کړه [يعني د ديني او دنيوي مصلحتونو فوتېدل] وَكَذَا إِيْقَاعُ الثِّنْتَيْنِ فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ بِدْعَةٌ همدارنګه په يوه طهر کي دوه طلاقه واقع کول هم بدعت دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِي الْوَاحِدَةِ الْبَائِنَةِ او په يو طلاق بائن [واقع کولو] کي روايتونه مختلف دي قَالَ فِي الْأَصْلِ: إِنَّهُ أَخْطَأَ السُّنَّةَ امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمايي: چي هغه د سنت مخالفت وکړی [يعني په سنت طريقه يې عمل نه وکړی، نو ځکه به مکروه وي] لِأَنَّهُ لَا حَاجَةَ إِلَى إِثْبَاتِ صِفَةٍ زَائِدَةٍ فِي الْخَلَاصِ ځکه چي په خلاصون [حاصلولو] کي د يو اضافي صفت ثابتولو ته [هيڅ] ضرورت نسته وَهِيَ الْبَيْنُوْنَةُ او هغه [اضافي صفت] بينونت دی وَفِي الزِّيَادَاتِ: أَنَّهُ لَا يُكْرَهُ او د زيادات په روايت کي دي: چي دا مکروه نه دي لِلْحَاجَةِ إِلَى الْخَلَاصِ نَاجِزًا سمدستي خلاصون ته د ضرورت په وجه [يعني کله ناکله د دې ضرورت پېښ سي چي خاوند سمدستي (فوراً) له ښځي څخه ځان خلاص کړي او ژر تر ژره طلاق ورکړي، نو د دغه ضرورت په خاطر به طلاق بائن هم مکروه نه وي].

**اللغات:** ﴿عَاصِي﴾ ګنهګار، نافرمان، ﴿مُبَاح﴾ روا، حلال، ﴿تَطْوِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: اوږدول، ﴿الحظر﴾ اسم مصدر دی: ممانعت، ممنوع کار، ممنوع شی، ﴿إِبَاحَة﴾ د إفعال مصدر دی: روا ايښت، حِلت، ﴿مُفَرِّق﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: جلا کونکی، متفرّق کونکی، ﴿تَصْوِيْر﴾ عکس جوړول، (متصوّر کول)، (تصور کول)، ﴿الرِق﴾ غلامي، دلته څني مراد نکاح ده، ځکه نکاح هم يو ډول غلامي ده ځکه چي ښځه په هر شي کي خاوند ته مجبوره وي، ﴿إِيْقَاع﴾ د افعال مصدر دی؛ واقع کول، اچول (مراد څني طلاق ورکول دي)، ﴿بَائِنَة﴾ د ضرب مؤنث اسم فاعل دی: جلا کېدونکی، جلاکونکی (يعني هغه طلاق چي ښځه له خاوند څخه جلا کوي، بيا خاوند بالکل هغې ته رجعت نه سي کولای)، ﴿بَيْنُوْنَة﴾ د ضرب مصدر دی: جلا کېدل، جدايي، ﴿نَاجِز﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی: موجود، حاضر، بېله ځنډه، فوراً، سمدستي، نَجَزَ يَنْجُزُ نَجْزًا: په وعده کي تلوار کول، ژر پوره کول.

**تشريح:** صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د طلاق دريم قسم يعني د طلاق بدعي تعريف او حکم بيان کړی دی.

**طلاق بدعي:** دې ته وايي چي خاوند ښځي ته په يوه جمله سره درې طلاقه ورکړي، يا په يوه طهر کي درې طلاقه ورکړي. د دې حکم دا دی چي زموږ په نېز داسي کول حرام او د ګناه سبب دي، خو د حراموالي باوجود په دې سره طلاق واقع کيږي او په دې سره حرمتِ غليظه ثابتيږي (او ښځه بائنه ګرځي).

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: څرنګه چي طلاقِ أحسن او حسن روا دي، همدارنګه طلاقِ بدعي هم روا دی، او د دې پر مرتکب هيڅ ګناه نسته.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي هر طلاق يو شرعي تصرف دی او په هر طلاق سره شرعي حکم يعني د طلاق وقوع او د ښځي حرمت او داسي نور ثابتيږي، نو طلاق يو مشروع کار دی (ځکه چي مشروع کار همدې ته وايي چي پر هغه يو شرعي حکم مرتب وي او په شريعت کي جائز وي)، او د مشروع کار په هکله قاعده دا ده چي مشروع کار د ممنوع کار سره جمع کېدلای نه سي (يعني مشروعيت او ممانعت سره جمع کېدلای نه سي) بلکي دوی يو د بل سره منافي دي، لهذا کله چي طلاق مشروع دی نو د طلاق دغه قسم به هم مشروع او روا وي، او پر مرتکب به يې هيڅ ګناه نه وي.

**بخلاف الطلاق:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه د يو اعتراض جواب دی کوم چي د هغه پر دليل وارديږي، اعتراض دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره غلطه ده چي مشروعيت اوممانعت سره جمع کېدلای نه سي، ځکه چي د حيض په حالت کي طلاق ورکول حرام دي، لېکن که بيا هم يو سړی دا سي وکړي نو د هغه ورکول سوی طلاق واقع کيږي. اوګورئ! چي دلته مشروعيت او ممانعت دواړه سره جمع سول، نو تاسي د دې څه جواب ورکوی؟

د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه جواب دا دی چي د حيض په حالت کي نفسِ طلاق ورکول حرام نه دی، بلکي حرام دا دي چي د حيض په حالت کي په طلاق ورکولو سره پر ښځي عدت اوږديږي (يعني د حيض په حالت کي په طلاق ورکولو سره پر ښځي عدت اوږدول حرام دي) ځکه په کوم حيض کي چي طلاق ورکول سي نو هغه حيض په عدت کي نه شمارل کيږي، لهذا کله چي هغه په عدت کي نه شمارل کيږي نو ښکاره خبره ده چي په دې سره يقيناً عدت اوږديږي. خو شارح د أحسن الهدايې وايي چي د شوافعو له طرفه دا جواب يعني د عدت اوږدېدلو خبره ډېره ضعيفه ده ځکه چي د عدت اوږدېدل خو آخر هم د طلاق په سبب سره وي او که طلاق نه ورکوي، نو بيله سببه خو پر ښځي عدت نه سي لازمېدلی!!! (لهذا بيرته د مشروعيت او ممانعت جمع کېدل ثابت سو او د شوافعو په جواب سره اعتراض دفع نه سو).

**زموږ دليل**: دا دى چي پكار خو دا ده چي طلاق مطلقاً ناروا (ممنوع) وي برابره ده هغه كه أحسن وي، كه حسن وي او كه بدعي وي، ځكه چي په طلاق سره داسي مصالح (منافع) له منځه ځي چي د هغوى تعلق د دين او دنيا دواړو سره وي، ځكه چي د نكاح په وجه انسان له زنا، بدكارۍ او ناوړه عملونو څخه محفوظ وي، او په طلاق وركولو سره د دې بديو دروازه خلاصه سي او د دې خطره پيدا سي چي انسان به په فتنو او بديو كي مبتلا سي، همدارنګه تر طلاق مخكي انسان ته د ښځي په ذريعه آرام او سكون حاصل وي او ښځه د هغه سره په هر غم او تكليف كي شريكه وي، او د ژوند په هره حصه كي د هغه همكاره او همرازه وي، او دا ښكاره خبره ده چي په طلاق سره دا مصالح او فايدې له منځه ځي، نو دغو مصالحو ته په كتلو سره عقل د يوه ګړي لپاره هم د طلاق روايښت زغملو ته تيار نه دى. خو كله نا كله داسي كيږي چي د ښځي د بد اخلاقۍ او بد عملۍ په وجه ګزاره ور سره مشكله وي، نو په داسي وخت كي د ښځي له تكليف څخه د ځان خلاصولو لپاره (او هغې ته د درس او تنبيه وركولو لپاره) شريعت انسان ته د طلاق لاره ور ښوولې ده، او ښځي ته د تنبيه وركولو او د هغې د سمولو لپاره په يوه او دوو طلاقو سره هم كار كيږي نو بيا د دې هيڅ ضرورت نسته چي هغې ته پر يوه ځاى درې طلاقه وركول سي، نو ځكه زموږ په نيز درې طلاقه سره جمع كول حرام دي.

**وهي في المفرق إلخ**: په دې سره د يو سوال جواب وركوي، سوال دا دى چي څرنګه پر يوه ځاى د دريو طلاقونو د وركولو ضرورت نسته، همداسي په دريو متفرّقو (جلا، جلا) طهرونو كي د طلاق وركولو (يعني د طلاقِ حسن) هم هيڅ ضرورت نسته، لهذا دا هم حرام‌بدل پكار دي، حال دا چي احنافو دې ته "طلاقِ سنت" ويلي دي.

د جواب حاصل دا دى چي په دريو جلا طهرونو كي دريو طلاقو وركولو (طلاقِ حسن) ته ضرورت ثابت دى د حاجت ودليل (دليل الحاجة) ته په نظر كولو سره، ځكه چي په هر طهر كي د انسان رغبت تازه كيږي، نو كه د دې باوجود انسان "اقدام على الطلاق" كوي، نو دا د حاجت اوضرورت دليل دى، لهذا كله چي ضرورت ثابت دى، نو په دريو جلا طهرونو كي به درې طلاقه وركول (طلاقِ حسن) هم ثابت او جائز وي.

**والحاجة في نفسها إلخ**: په دې سره هم د يو مقدر سوال جواب وركوي، سوال دا دى چي د حاجت د دليل (دليل الحاجة) پر بنياد د طلاقِ حسن جواز ثابتول صحيح نه دي، ځكه چي دليل الحاجة هغه وخت د حاجت قائم مقام كيږي كله چي حاجت په خپله موجود وي او دلته په حقيقت كي هيڅ حاجت نسته، نو دليل الحاجة به څرنګه د هغه قائم مقام سي، او حاجت ځكه نسته چي كله په اول طهر كي طلاق وركول سو، نو نكاح ختمه سوه، نو اوس له نكاح (او د ښځي له تكليف څخه) د ځان

خلاصولو (يعني طلاق وركولو) هيڅ حاجت پاته نه سو. او كله چي د طلاق حاجت پاته نه سو، نو د حاجت دليل هم ثابت نه سو چي هغه د حاجت قائم مقام سي؟

صاحب د كتاب د دې په جواب كي فرمايي چي د طلاق حاجت (اوس هم) پاته دی، ځکه چي همېشه فقط په يوه طلاق سره كار نه كيږي، بلكي زياتره ښځي د بد اخلاقۍ او بد عملۍ سرچينه وي، او په يو وار تنبيه وركولو سره هغوی نه برابرېږي، نو ځكه شريعت تر يوه وار وروسته بيا په دويم او دريم طهر كي د بل طلاق وركولو اجازه وركړې ده چي په داسي حالت كي انسان كار ځني واخلي، نو ثابته سوه چي په اول طهر كي تر طلاق وركولو وروسته بيا هم حاجت او ضرورت پاته وي. لهذا اوس په دې باره كي اعتراض كول صحيح نه دي.

والمشروعية إلخ: په دې سره صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب وركوي، فرمايي چي مونږ دا خبره تسليموو چي مشروع كار د ممنوع كار سره جمع كېدلای نه سي، لېكن له دې څخه مراد مشروع لذاته او ممنوع لذاته كارونه دي، لېكن مشروع لذاته او ممنوع لغيره كارونه يقيناً سره جمع كېدلای سي، مثلاً په غصب سوې ځمكه كي لمونځ كول، يا د جمعې د اذان په وخت كي بيع و شراء كول، وګوره! لمونځ كول او بيع و شراء كول دواړه بذاتِ خود مشروع او روا كارونه دي، لېكن د بل أمر يعني د غصب سوي ځمكي او د سعی د پرېښوولو په وجه ممنوع دي چي هغه ته په اصطلاح كي ممنوع لغيره وايي، نو څرنګه چي دلته مشروعيت او ممنوع لغيره سره جمع دي، همداسي زموږ په ذكر سوې مسئله كي هم طلاق يو مشروع او روا كار دی، او د يو بل كار يعني د نكاح د مصالحو د فوتېدلو په وجه ممنوع دی او ور سره جمع سوی هم دی (او داسي نه ده چي طلاق د ممنوع لذاته كار سره جمع سوی دی).

وكذا إلخ: فرمايي: څرنګه چي د حاجت د نشتوالي (عدمِ ضرورت) په وجه پر يوه ځای درې طلاقه وركول بدعت دي، همداسي د عدمِ ضرورت پر بناء پر يوه ځای دوه طلاقه وركول هم بدعت دي، ځكه كومه خرابي چي په دريو طلاقونو كي سته، هغه په دوو طلاقونو كي هم سته.

واختلفت إلخ: د دې حاصل دا دی كه يو سړي خپلي ښځي ته په طهر كي (د طلاقِ رجعي پر ځای) طلاقِ بائن وركړي نو آيا دا سنت دي، كه بدعت ؟، صاحب د كتاب فرمايي چي په دې هكله د امام محمد رَحِمَهُ الله په روايتونو كي اختلاف دی، د مبسوط روايت دا دي چي دا بدعت او د سنت خلاف دي، ځكه چي د ښځي د بائنه كولو هيڅ ضرورت نسته.

لېكن د زيادات روايت دا دی چي طلاقِ بائن وركول صحيح دي، ځكه چي كله نا كله معامله دې حد ته ورسيږي چي خاوند فوراً له ځان څخه ښځه جلا كول غواړي او د ډېر نفرت په وجه هغې ته رجعت كول نه غواړي، نو د دغه ضرورت پر بناء په طلاقِ بائن كي څه كراهت او بدي نسته.

## د طلاقِ سُني (سنت طلاق) تفصيل

وَالسُّنَّةُ فِي الطَّلَاقِ مِنْ وَجْهَيْنِ: سُنَّةٌ فِي الْوَقْتِ وَسُنَّةٌ فِي الْعَدَدِ او سنت طلاق په دوو طريقو سره دى ايعني طلاقِ سني پر دوه قسمه دى ا ① سنت فى الوقت ② سنت فى العدد فَالسُّنَّةُ فِي الْعَدَدِ يَسْتَوِي فِيهَا الْمَدْخُولُ بِهَا وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا نو په "سنت فى العدد" كي مدخول او غير مدخول بها دواړي ښځي سره برابري دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهَا او دا [مخكي] موږ ذكر كړه وَالسُّنَّةُ فِي الْوَقْتِ تَثْبُتُ فِي الْمَدْخُولِ بِهَا خَاصَّةً او سنت فى الوقت په ځانګړي توګه په مدخول بها كي ثابتيږي وَهُوَ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي طُهْرٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ او "سنت فى الوقت طلاق" دا دى چي [خاوند] ښځي ته په داسي طهر كي طلاق وركړي چي په هغه كي يې جماع ور سره كړې نه وي لِأَنَّ الْمُرَاعَى دَلِيلُ الْحَاجَةِ ځكه چي [په دې كي] د "دليلُ الحاجة" رعايت سوى دى وَهُوَ الْإِقْدَامُ عَلَى الطَّلَاقِ فِي زَمَانِ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ او هغه د رغبت نوي كېدلو [تازه كېدلو] په زمانه كي پر طلاق إقدام كول دي وَهُوَ الطُّهْرُ الْخَالِي عَنِ الْجِمَاعِ او دا [زمانه] هغه طهر دى كوم چي له جماع څخه خالي وي أَمَّا زَمَانُ الْحَيْضِ فَزَمَانُ النَّفْرَةِ او كوم چي د حيض زمانه ده نو هغه د نفرت زمانه ده وَبِالْجِمَاعِ مَرَّةً فِي الطُّهْرِ تَفْتُرُ الرَّغْبَةُ او په طهر كي په يوه وار جماع كولو سره رغبت كميږي وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا يُطَلِّقُهَا فِي حَالَةِ الطُّهْرِ وَالْحَيْضِ او غيرِ مدخول بها ښځي ته په حالت د حيض او طهر دواړو كي طلاق وركولاى سي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقِيسُهَا عَلَى الْمَدْخُولِ بِهَا هغه دا [غيرِ مدخول بها] پر مدخول بها قياسوي وَلَنَا: أَنَّ الرَّغْبَةَ فِي غَيْرِ الْمَدْخُولِ بِهَا صَادِقَةٌ زموږ دليل دا دى: چي په غيرِ مدخول بها كي رغبت رښتونى [اوكامل] وي لَا تَقِلُّ بِالْحَيْضِ مَا لَمْ يَحْصُلْ مَقْصُودُهُ مِنْهَا او تر څو چي له هغې څخه د خاوند مقصود حاصل نه سي [تر هغه وخته پوري د هغې] رغبت نه كميږي وَفِي الْمَدْخُولِ بِهَا تَتَجَدَّدُ بِالطُّهْرِ او په مدخول بها كي په طهر سره رغبت نوي كيږي.

**اللغات:** ﴿وَجْه﴾ قسم، صورت، ﴿دَاعِيْ﴾ د نصر اسم فاعل دى: رابلونكى، سبب، خواهش، ﴿تَجَدُّد﴾ د تفعّل مصدر دى، نوي كېدل (تازه كېدل)، ﴿تَفْتُرُ﴾ د نصر مضارع ده: كمېدل، سړېدل (يخېدل)، ﴿لَا تَقِلُّ﴾ د ضرب نفي صيغه ده، قَلَّ يَقِلُّ قِلًّا و قُلًّا وقُلَّةً: كمېدل، لږېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کې صاحب د کتاب د طلاقِ سني نوره تشريح کوي او د هغه تقسیم بیانوي، فرمايي چې طلاقِ سني پر دوه قسمه دی: ① سنت في الوقت، ② سنت في العدد.

سنت في العدد دا دی چې خاوند ښځې ته يو طلاق ورکړي او تر عدت تېرېدلو پورې ښځه پر خپل حال پرېږدي، او په دې کې مدخول بها او غيرِ مدخول ها دواړې ښځې برابرې دي، يعني د عدد (يوه طلاق) په باره کې د دوی تر مينځ هيڅ فرق نسته.

او سنت في الوقت دا دی چې سړی ښځې ته په داسې طهر کې طلاق ورکړي کوم چې له جماع څخه خالي وي، او دا خاص د مدخول بها په حق کې ثابتيږي، يعني که خاوند مدخول بها ښځې ته طلاق ورکول وغواړي، نو په داسې طهر کې به طلاق ورکوي کوم چې له جماع څخه خالي وي؛ ځکه چې طلاق د ضرورت په وجه سره مشروع دی، نو په دې کې به د ضرورت د دليل (دليل الحاجة) رعايت کيږي، او دليل الحاجة د رغبت تازه کېدلو په زمانه کې "إقدام على الطلاق" (طلاق ورکول) دي، او د رغبت تازه کېدلو زمانه هغه طهر دی کوم چې له جماع څخه خالي وي، ځکه چې د حيض زمانه خو د نفرت زمانه ده (جماع ته انسان رغبت نه کيږي)، او په طهر کې په يوه وار جماع کولو سره رغبت کميږي، نو په حيض او هغه طهر کې (چې خالي عن الجماع وي) دليل الحاجة موجود نه دی چې هغه د حاجت قائم مقام کړی سي او طلاق مشروع او روا کړی سی، نو ځکه موږ وويل چې سنت في الوقت صرف دا دي چې د طهر په وخت کې طلاق ورکول سي، نه په حيض او هغه طهر کې چې له جماع څخه خالي وي (په دغه حالتونو کې طلاق ورکول مکروه دي).

او پاته سوه د غيرِ مدخول بها ښځې مسئله، نو هغې ته په طهر او حيض دواړو کې طلاق ورکول کېدای سي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې غير مدخول بها ښځې ته په حيض کې طلاق ورکول مکروه تحريمي دي، د هغه دليل قياس دی، يعني مدخول بها پر غيرِ مدخول بها قياسوي.

زموږ دليل دا دی چې په غيرِ مدخول بها کې کامل رغبت او شهوت وي او په حيض يا داسې بل شي سره د هغې په رغبت کې کمي نه راځي، بلکې تر هغه وخته پورې يې شهوت او د زړه خواهش پاته وي تر څو چې خاوند له هغې څخه خپل مقصود حاصل کړی نه وي (په لنډه توګه دا چې په غيرِ مدخول بها کې هر وخت د جماع رغبت وي هغه که د حيض وخت وي او که د طهر وخت وي)، نو اوس که په حيض کې خاوند هغې ته طلاق ورکړي، نو دا به د نفرت په وجه نه وي، بلکې د حاجت او ضرورت په خاطر به وي، او د طلاق مدار هم پر ضرورت (او دليل الحاجة) دی، نو ځکه به غيرِ مدخول بها ته د حيض په حالت کې هم طلاق ورکول صحيح او روا وي.

د دې په خلاف د مدخول بها مسئله ده، نو د هغې لپاره د طهر خاصولو وجه دا ده چې د هغې په حق کې حيض د نفرت زمانه ده (ځکه چې په هغې کې خاص د طهر په وخت کې د جماع رغبت نوي کيږي، او د غيرِ

مدخول بها ښځې په څير هر وخت د هغې رغبت باقي نه وي)، اوس كه موږ د هغې لپاره د طهر خالي عن الجماع وقت خاص نه كړو، نو ښكاره خبره ده چې هغې ته طلاق وركول به د حاجت او ضرورت پر بناء نه وي بلكې د نفرت او علمِ رغبت پر بناء وي، حالانكې د طلاق بنياد او مدار پر نفرت او عدمِ رغبت نه دى. بلكې پر حاجت او ضرورت دى.

## د هغو ښځو د طلاق او عدت بيان چې حيض نه ورته راځي

قَالَ: وَإِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ فرمايي: او كله چې ښځې ته د كم عمرى يا زيات عمر په وجه حيض نه راځي فَأَرَادَ أَنْ يُطَلِّقَهَا ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ او خاوند اراده وكړي چې هغې ته د سنت طريقې مطابق درې طلاقه وركړي طَلَّقَهَا وَاحِدَةً نو [اول دي] هغې ته يو طلاق وركړي فَإِذَا مَضٰى شَهْرٌ طَلَّقَهَا أُخْرٰى بيا چې كله يوه مياشته تېره سي نو بل [دويم] طلاق دي وركړي فَإِذَا مَضٰى شَهْرٌ طَلَّقَهَا أُخْرٰى بيا چې كله يوه مياشته تېره سي نو بل [دريم] طلاق دي وركړي لِأَنَّ الشَّهْرَ فِي حَقِّهَا قَائِمٌ مَقَامَ الْحَيْضِ ځكه چې مياشته د هغې په حق كې د حيض قائم مقام ده قَالَ اللهُ تَعَالىٰ: "وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ"...إِلىٰ أَنْ قَالَ: "وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ" [الطلاق: ۴] الله تعالىٰ فرمايلي دي: " او كومې ښځې چې له حيض څخه نا اُميده وي"... "او كومو ښځو ته چې حيض نه راځي [د هغو ټولو په حق كې مياشته د حيض قائم مقام ده]" وَالْإِقَامَةُ فِي حَقِّ الْحَيْضِ خَاصَّةً او [د مياشتې] قائم مقام كېدل خصوصاً د حيض په حق كې دي حَتّٰى يُقَدَّرَ الِاسْتِبْرَاءُ فِي حَقِّهَا بِالشَّهْرِ تر دې چې د داسې ښځې په حق كې به د استبراءِ اندازه [هم] په مياشتې سره كيږي وَهُوَ بِالْحَيْضِ لَا بِالطُّهْرِ او استبراء په حيض سره وي نه په طهر سره ثُمَّ إِنْ كَانَ الطَّلَاقُ فِي أَوَّلِ الشَّهْرِ بيا كه طلاق د مياشې په شروع كې [وركول سوى] وي تُعْتَبَرُ الشُّهُورُ بِالْأَهِلَّةِ نو د سپوږمۍ [مياشتې] په ذريعه به د مياشتو اعتبار كيږي وَإِنْ كَانَ فِي وَسَطِهِ او كه د مياشتې په مينځ كې [طلاق وركول سوى] وي فَبِالْأَيَّامِ فِي حَقِّ التَّفْرِيقِ نو د تفريق په حق كې به د ورځو په ذريعه [د مياشتو] اعتبار كيږي وَفِي حَقِّ الْعِدَّةِ كَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ همدارنګه به د عدت په حق كې هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [د ورځو په ذريعه د مياشتو اعتبار كيږي] وَعِنْدَهُمَا [1] يُكَمَّلُ الْأَوَّلُ بِالْآخِرِ

[1] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله "وفي الكافي: الفتوىٰ على قولهما لأنه أسهل" (البحر الرائق ج:۳، ص: ۴۲۱) [القول الراجح ج:۱، ص:۳۰۹]

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به اوله مياشته په آخري مياشتې سره پوره کول کيږي وَالْمُتَوَسِّطَانِ بِالْأَهِلَّةِ او د مينځ دوې مياشتې به په سپوږمۍ [مياشتې] سره پوره کيږي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْإِجَارَاتِ او دا د إجاراتو مسئله ده.

**اللغات:** ﴿صِغَر﴾ کم عمري، کوچنيوالی، ﴿كِبَر﴾ د عمر زياتوالی، بوډاوالی (سپينسر توب).

﴿يَئِسْنَ﴾ د سمع له باب څخه د جمع مؤنث غائب ماضي صيغه ده: نا اُميده کېدل، د ښځې وچېدل.

﴿إِسْتِبْرَاء﴾ د رحم پاکوالی معلومول (يعني تريوه حيض تېرېدلو پورې د ښځې سره وطي نه کول د دې لپاره چې معلومه سي چې آيا د ښځې رحم د بل چا له حمل څخه پاک دی که نه؟ يعني د هغې رحم خو به په حمل سره مشغول نه وي، او دا خبره په حيض راتللو سره معلوميږي ځکه کله چې حيض راسي نو معلومه به سي چې هغه حامله نه ده، او کومې ښځې ته چې حيض نه راځي نو د هغې سره به تريوې مياشتې پورې وطي نه کيږي)، ﴿أَهِلَّة﴾ جمع د هِلَالٌ ده: نوې مياشت (نوې سپوږمۍ)، د اولو درو (۳) سپوږمۍ ته هِلَال وايي، وروسته بيا قَمَر ورته وايي، ﴿يُكَمَّلُ﴾ د تفعيل له باب څخه د مضارع مجهولي صيغه ده: پوره کول، بشپړ کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د کتاب د هغه ښځې د طلاق حکم بيانوي، چې د عمر د زياتوالي يا کموالي په وجه حيض نه ورته راځي، داسې ښځې ته د سنت طلاق ورکولو طريقه دا ده چې خاوند دې هغې ته په دريو جلا، جلا مياشتو کې درې طلاقه ورکړي لکه څرنګه چې ذواتُ الحيض ښځو ته په دريو جلا، جلا طهرونو کې درې طلاقه ورکول کيږي؛ د دې حکم دليل دا دی چې الله تعالیٰ په دې آيت " وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ" [سورة الطلاق:۴] کې د آئسه او نابالغه ښځو عدت درې مياشتې بيان کړی دی، لهذا کله چې د دوی عدت درې مياشتې دی، نو دوی ته د سنت طلاق ورکولو وخت به هم لازماً تر يوې مياشتې وروسته وي (يعني تر هري يوې مياشتې وروسته به يو طلاق ورکول کيږي).

**والإقامة في إلخ:** په دې سره دا راښيي چې په دغه دريو مياشتو کې هره مياشته د حيض قائم مقام ده، او د هغو مشائخو قول معتبر نه دی کوم چې مياشته د حيض او طهر دواړو قائم مقام ګڼي، او د دې ښکاره دليل دا دی چې مثلاً که يوه داسې مينځه (چې د کم عمرۍ يا زيات عمر په وجه حيض نه ورته راځي) د يوه مالک له ملکيت څخه د بل مالک وملکيت ته نقل سي، نو د فقهي مسئلې مطابق د هغې سره استبراء کول ضروري دي چې دغه دويم مالک به يوه مياشت د هغې سره استبراء کوي (يعني يوه مياشت به جماع نه ور سره کوي)، تاسو وګورئ! چې د غيرِ ذواتُ الحيض مينځو د استبراء لپاره

هم یوه میاشت تاکل سوې ده او استبراء په حیض سره کیږي، نه په طهر سره، له دې څخه معلومه سوه چې میاشته فقط د حیض قائم مقام ده، نه د طهر.

**ثم إن كان إلخ**: په دې سره دا رانښيي چې که غیرِ ذواتُ الحیض ښځو ته د میاشتې په اوله ورځ (یعني په کومه ورځ چې میاشته او سپوږمۍ ولیدل سي) طلاق ورکول سي نو د غیر ذواتُ الحیض ښځو طلاق او عدت به د میاشتې (سپوږمۍ) په اعتبار سره وي، برابره ده میاشته که د (۲۹) ورځو وي او که د (۳۰) ورځو وي، مثلاً که خاوند د میاشتې په اوله ورځ طلاق ورکړي، نو دویم طلاق به د دویمې میاشتې په اوله ورځ ورکوي، او دریم طلاق به د دریمې میاشتې په اوله ورځ کوي. او ښځه به عدت هم د میاشتې په حساب سره پوره کوي.

او که غیرِ ذواتُ الحیض ښځو ته د میاشتې په مینځ کي طلاق ورکول سي، نو بیا به د دوی طلاق د ورځو په اعتباره سره، نه د میاشتې په اعتبار سره، یعني دېرش (۳۰) ورځې به هره میاشته شمارل کیږي، او تر هرو (۳۰) ورځو وروسته به طلاق ورکول کیږي (دا مسئله متفق علیها ده)، مثلاً که خاوند د میاشتې پر پنځلسم (۱۵) تاریخ غیرِ حائضې ښځې ته طلاق ورکړی، نو (۳۰) ورځې به دریږي، کله چې توله (۳۰) ورځې تیرې سي نو دویم طلاق به ورکوي (یعني چې طلاق په ۳۱ ورځ واقع سي)، او بیا به تر (۳۰) ورځو وروسته دریم طلاق ورکوي، او په عدت کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ورځې معتبره دي، یعني د هرو (۳۰) ورځو په تېرېدلو سره د ښځې عدت پوره کیږي.

**وعندهما إلخ**: لېکن په عدت کي د صاحبینو مسلک دا دی چې اوله میاشته (یعني په کومه میاشته کي چې طلاق ورکول سوی وي د هغه میاشتې پاته ورځې) به د آخري میاشتې سره یوځای کیږي او (۳۰) ورځې به پوره کول کیږي، او د مینځ دوې میاشتې به په سپوږمۍ سره پوره کول کیږي، برابره ده میاشته (سپوږمۍ) د (۲۹) ورځو وي او که د (۳۰) ورځو وي، مثلاً یو خاوند د میاشتې پر پنځویشتم (۲۵) تاریخ غیرِ حائضې ښځې ته طلاق ورکړي او هغه میاشته د (۳۰) ورځو وي، نو د هغه میاشتې (۵) ورځې او د آخري میاشتې (۲۵) ورځې به سره یو ځای کیږي، او د مینځ دوې میاشتې به د سپوږمۍ په حساب سره پوره کول کیږي (ځکه چې په میاشتو کي سپوږمۍ اصل او معمول بهاً ده)، او په دې توګه به درې میاشتې عدت پوره کیږي.

صاحب د هدایې فرمایي چې دا په اصل کي د کتابُ الإجارات مسئله ده، او هلته هم په دې مسئله کي اختلاف دی، یعني که یو څوک د میاشتې په مینځ کي یو دوکان د پنځو میاشتو لپاره په کرایه ونیسي، نو د امام صاحب په نېز به د پنځو میاشتو اعتبار په ورځو سره کیږي (چې توليې ۱۵۰ ورځې کیږي یعني ۱۵۰ ورځې وروسته د هغه د کرایې مودت پوره کیږي، نو په همدغه حساب سره به کرایه اداء کوي)، او صاحبین فرمایي چې په کومه میاشته کي چې د إجارې معامله سوې ده د هغې او آخري میاشتې اعتبار به په ورځو سره

کيږي (يعني د اولې مياشتې او آخري مياشتې ورځې به سره يو ځای کيږي او (٣٠) ورځې به پوره کول کيږي) او د مينځ ځلور مياشتې به د سپوږمۍ په حساب سره پوره کول کيږي.

**فايده:** د مختار مذهب مطابق د ښځې د حيض عمر نهم (٩) کال دی، او د ځينيو په نيز (٨) کال او د ځينو په نيز (٧) کال دی، او "سن إياس" يعني د حيض د بندوالي عمر د ظاهر روايت مطابق (٥٥) کاله دی.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَيَجُوزُ أَنْ يُطَلِّقَهَا وَلَا يَفْصِلُ بَيْنَ وَطْئِهَا وَطَلَاقِهَا بِزَمَانٍ او جائز دي چې [آئسې يا صغيرې] ښځې ته طلاق ورکړي او د هغې د وطې او طلاق تر مينځ په هيڅ مودت سره فصل نه وکړي وَقَالَ زُفَرُ: يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِشَهْرٍ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د وطې او طلاق تر مينځ به يوه مياشته فصل کوي لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْحَيْضِ ځکه چې يوه مياشته [د آئسې او صغيرې] په حق کې د حيض قائم مقام ده وَلِأَنَّ بِالْجِمَاعِ تَفْتُرُ الرَّغْبَةُ او په دې وجه [هم] چې په جماع سره رغبت کميږي وَإِنَّمَا تَتَجَدَّدُ بِزَمَانٍ [ځکه] رغبت خو تر يو مودت وروسته نوي کيږي [تازه کيږي] وَهُوَ الشَّهْرُ او هغه [مدت] يوه مياشت ده وَلَنَا: أَنَّهُ لَا يُتَوَهَّمُ الْحَبَلُ فِيهَا او زموږ دليل دا دی: چې په دې [آئسه او صغيره] کې د حمل وهم نسته وَالْكَرَاهِيَةُ فِي ذَوَاتِ الْحَيْضِ بِاعْتِبَارِهِ او [د طلاق] کراهت په ذوات الحيض ښځو کې د همدغه حمل په اعتبار سره وي لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ يَشْتَبِهُ وَجْهُ الْعِدَّةِ ځکه چې په همدې وخت کې د عدت طريقه مشتبه کيږي وَالرَّغْبَةُ وَإِنْ كَانَتْ تَفْتُرُ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرَ او رغبت که څه هم د امام زفر د ذکر سوي سبب مطابق کميږي لٰكِنْ تَكْثُرُ مِنْ وَجْهٍ آخَرَ لېکن په يو بل سره زياتيږي [هم] لِأَنَّهُ يَرْغَبُ فِي وَطْءٍ غَيْرِ مُعْلِقٍ ځکه چې خاوند رغبت کوي په داسې وطې کې چې هغه حاملونکې [بلاربونکې] نه وي فِرَارًا عَنْ مُؤَنِ الْوَلَدِ د کوچني له بوج [او ذمه وارۍ] څخه د ځان ساتلو لپاره فَكَانَ الزَّمَانُ زَمَانَ رَغْبَةٍ لهذا دا زمانه به [هم] د رغبت زمانه وي فَصَارَ كَزَمَانِ الْحَبَلِ نو دا [د حاملې ښځې] د حمل د زمانې سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿لَا يَفْصِلُ﴾ د ضرب له باب څخه د نفي صيغه ده: جلا کول (فصل)، عليحده کول، د دوو شيانو تر مينځ فاصله راوستل، ﴿تَفْتُرُ﴾ د نصر مضارع ده: کمېدل، سړېدل (يخېدل)، ﴿حَبَل﴾ د

سمع له باب څخه اسم مصدر دی: حمل، بلاربوالی. ﴿مُعْلِق﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: بلاربونکی، حامله کونکي (حاملونکي، حملداره کونکی)، په مجردو کي د سمع له باب څخه راځي: عَلِقَ يَعْلَقُ عُلُوْقًا: د ښځي بلاربېدل (حملداره کېدل)، ﴿کَرَاهَة﴾ ناخوښي، مکروه کېدل، ﴿مُؤن﴾ خرچه، بوج (بار)، تکليف.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی کومو ښځو ته چي حيض نه راځي (يعني آئسه او صغيره) که خاوند تر جماع وروسته فوراً هغو ته طلاق ورکول وغواړي، نو طلاق ورکولای سي، او د ذواتُ الحيض ښځو په څير د هغوی د وطي او طلاق تر مينځ د فصل او انتظار کولو ضرورت نسته، همدا زموږ او د ائمه ثلاثه وو مسلک دی.

لېکن د امام زفر نظريه دا ده چي څرنګه د ذواتُ الحيض ښځو د طلاق او وطي تر مينځ په يوه حيض سره فصل کيږي، همداسي به د آئسې او صغيرې د طلاق او وطي ترمينځ هم په يوې مياشتي سره فصل کيږي، ځکه چي مياشته د دوی په حق کي د حيض قائم مقام ده.

**ولأن الخ**: د امام زفر دويم دليل دا دی چي په يوه وار جماع کولو سره رغبت کميږي او د رغبت د تجدّد (تازه کېدلو) لپاره د يوه مودت وجود ضروري دی، او څرنګه چي د دې ښځو په حق کي دا مودت يوه مياشته ده، نو ځکه به د دوی د وطي او طلاق ترمينځ يوه مياشته فصل کول ضروري وي.

**ولنا الخ**: زموږ دليل او د امام زفر رَحِمَهُ الله د قياس جواب دا دی چي آئسه او صغيره پر ذوات الحيض ښځو قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په ذوات الحيض ښځو کي چي تر وطي وروسته د طلاق ورکولو کوم کراهت دی هغه په دې وجه دی چي په وطي سره په دوی (يعني په ذوات الحيض ښځو) کي د حمل وهم راځي او د دوی عدت مشتبه کيږي، يعني که دوی په دغه وطي سره حامله وګرځي، نو ښکاره خبره ده چي د دوی عدت به وضعُ الحمل (د حمل زيږول) وي، او که حامله نه وګرځيږي، نو د دوی عدت به درې حيضه وي، خو څرنګه چي تر حيض راتللو مخکي دا معامله مشتبه وي، نو په دې وجه د دوی د وطي او طلاق ترمينځ يوه حيض فصل کول ضروري دي.

د دې په خلاف په آئسه يا صغيره کي خو نه د حمل وهم وي او نه د عدت اشتباه وي، نو ځکه د دوی په وطي او طلاق کي د فصل او انتظار کولو هيڅ ضرورت نسته.

**والرغبة الخ**: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د دويم دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي ستاسو دا توجيه موږ هم منو چي تر جماع وروسته رغبت کميږي او د رغبت د تَجدّد لپاره يو مودت ضروري دی، لېکن تاسو پر دې غور او فکر نه دي کړی چي د رغبت کمي هم د ذوات الحيض ښځو سره خاص

ده، او دا کمي په آئسه یا صغیره کي نه ثابتیږي، بلکي په آئسه او صغیره کي خو تر جماع وروسته هم (د خاوند) رغبت پاته وي، او د دې وجه دا ده چي سړی عموماً د دې تمنا لري چي زما په وطي سره ښځه حامله نه سي چي د کوچني ساتلو بوج او خرڅه زما پر سر نه پرېوځي او زه له دې څخه خلاص سم، او څرنګه چي صغیره یا آئسه په وطي سره نه حامله کیږي، نو د خاوند دا شوق او رغبت وي چي د دوی سره بار، بار وطي وکړي، لهذا د دوی په حق کي تر هري وطي وروسته د رغبت د تجدّد زمانه ده، نو په دې وجه د دوی په حق کي علیحده دیوې میاشتي د انتظار او فصل کولو ضرورت نسته، بلکي بغیر له انتظار او فصل څخه به هم طلاق ورکول مباح او صحیح وي.

او لکه څرنګه چي حاملې ښځي ته تر جماع وروسته فوراً طلاق ورکول صحیح دي، همداسي به آئسې او صغرې ښځي ته هم تر جماع وروسته فوراً طلاق ورکول صحیح وي، او د څه فصل او فرق ضرورت به نه وي.

په راتلونکي عبارت کي د همدغه حاملې ښځي مسئله بیان سوې ده.

## د حاملې ښځي د طلاق حکم

| وَطَلَاقُ الْحَامِلِ يَجُوزُ عَقِيبَ الْجِمَاعِ او د حاملې ښځي طلاق تر جماع وروسته جائز دی [یعني حاملې ښځي ته تر جماع وروسته فوراً طلاق ورکول صحیح دي] لِأَنَّهُ لَا يُؤَدِّيْ إِلَى اشْتِبَاهِ وَجْهِ الْعِدَّةِ ځکه چي [د حاملې ښځي په حق کي] دا [طریقه] د عدت مشتبه کېدلو سبب نه ګرځي وَزَمَانُ الْحَبَلِ زَمَانُ الرَّغْبَةِ فِي الْوَطْءِ او د حمل زمانه په وطي کي د رغبت زمانه ده [یعني د حمل په زمانه کي هم د حاملې ښځي جماع ته د خاوند رغبت کیږي] لِكَوْنِهِ غَيْرَ مُعْلِقٍ ځکه چي دا وطي حاملونکي نه وي [یعني د حمل په وخت کي په وطي سره ښځه نه حامله کیږي، ځکه چي هغه له مخکي څخه حامله وي] أَوْ فِيهَا لِمَكَانِ وَلَدِهِ مِنْهَا یا په حامله ښځه کي [به په دې وجه د خاوند رغبت وي] چي له هغې څخه د خاوند د کوچني امکان [او اُمید] وي او هغې د خاوند بچی محفوظه کړی وي] فَلَا يَقِلُّ الرَّغْبَةُ بِالْجِمَاعِ نو په جماع سره به رغبت نه کمیږي. |
|---|

**اللغات:** ﴿عَقِيبَ﴾ وروسته، بعد، ﴿مُعْلِق﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: حامله کونکی (حاملونکي)، بلاربونکی،

**تشریح:** په دغه عبارت کي د تېر عبارت د دې جملې "فَصَارَ كَزَمَانِ الْحَبَلِ" نور وضاحت کوي، فرمايي چي د صغیرې او آئسې ښځي په څیر حاملې ښځي ته هم له څه فصل او انتظار څخه بغیر تر جماع وروسته فوراً طلاق ورکول صحیح دي، او په دې کي هیڅ کراهت او بدي نسته؛ ځکه یو خود

هغې په حق کې د عدت د اشتباه هيڅ مسئله نسته، ځکه چې د هغې علت متعين دی چې هغه وضعُ الحمل (د حمل زېږول) دي.

دويم دا چې د حمل زمانه هم وطي ته د رغبت کېدلو زمانه ده. ځکه چې دا خبره يقيني ده چې د حاملې ښځې په وطي کولو سره د خاوند رغبت نه کمېږي، ځکه چې د هغه د رغبت کمېدلو وجه دا وه چې ښځه حملداره نه سي او زما پر سر د کوچني ساتلو بوج او خرچه نه پرېوځي، او د ښځې د حمل په وجه اوس دا وجه بالکل نسته، نو ثابته سوه چې د حمل په زمانه کې هم د وطي رغبت هغسې پاته وي، او دا خبره هم خاوند ته د وطي رغبت ورکوي چې حاملې ښځې د هغه حمل (زوی) په خپل نس کې محفوظ کړی دی، ځکه چې د خپلو زامنو سره د انسان فطري محبت وي، نو د حمل په وجه د حاملې ښځې په محبت کې اضافه راځي او د محبت اضافه او زياتوب "داعی إلی الوطي" دي، نو په دې سره هم دا ثابته سوه چې د حاملې ښځې له وطي څخه د خاوند رغبت کم نه وي بلکې د حمل زمانه هم وطي او جماع ته د رغبت کېدلو زمانه ده.

## د حاملې ښځې سنت طلاق

وَيُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ ثَلَاثًا او حاملې ښځې ته به د سنت مطابق درې طلاقه ورکوي يَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ تَطْلِيقَتَيْنِ بِشَهْرٍ او فصل به کوي د هرو دوو طلاقونو په مينځ کې په يوه مياشت سره عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ ❁: لَا يُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ إِلَّا وَاحِدَةً امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې حاملې ښځې ته به د سنت طريقې مطابق فقط يو طلاق ورکوي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الطَّلَاقِ الْحَظْرُ ځکه چې أصل په طلاق کې ممانعت دی وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِالتَّفْرِيقِ عَلَى فُصُولِ الْعِدَّةِ او شريعت په دې باره کې وارد سوی دی چې طلاق به د عدت پر فصولو متفرق کيږي وَالشَّهْرُ فِي حَقِّ الْحَامِلِ لَيْسَ مِنْ فُصُولِهَا او د حاملې ښځې په حق کې "مياشته" د عدت له فصولو څخه نه ده فَصَارَ كَالْمُمْتَدِّ طُهْرُهَا نو دا [مسئله] د هغې ښځې [د مسئلې] په څېر سوه چې د هغې طهر اوږد سوی وي وَلَهُمَا: أَنَّ الْإِبَاحَةَ بِعِلَّةِ الْحَاجَةِ او د شيخينو دليل دا دی: چې [د طلاق] روايښت د حاجت په وجه دی وَالشَّهْرُ دَلِيلُهَا او مياشته [د دغه] حاجت دليل ده كَمَا فِي حَقِّ الْآيِسَةِ وَالصَّغِيرَةِ لکه څرنګه چې د

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله ، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُالله : والحامل عقيب الوطء، لأن الكراهـة فـيمن تحيض لتوهم الحبل، وهو مفقود هنا (الدر المختار ج:٢، ص:٢٥٤). [القول الراجح ج:١، ص:٣١٠]

آیسې او صغیرې په حق کې [میاشته د حاجت دلیل ده] وَهٰذَا او دا [د میاشتې دلیل کېدل د آیسې او صغیرې په حق کې په دې وجه دي] لِأَنَّهُ زَمَانُ تَجَدُّدِ الرَّغْبَةِ عَلٰى مَا عَلَيْهِ الْجِبِلَّةُ السَّلِيْمَةُ ځکه چې د فطرتِ سلیمه مطابق [یوه] میاشته د رغبت نوي کېدلو [تازه کېدلو] زمانه ده فَصَلُحَ عَلَمًا وَدَلِيْلًا نو [میاشته] به د علامت او دلیلِ [حاجت] جوړېدلو صلاحیت لري بِخِلَافِ الْمُمْتَدَّةِ طُهْرُهَا په خلاف د هغه ښځې چې طهر یې اوږد سوی وي لِأَنَّ الْعَلَمَ فِي حَقِّهَا إِنَّمَا هُوَ الطُّهْرُ ځکه چې د هغې په حق کې خو طهر علامت دی وَهُوَ مَرْجُوٌّ فِيهَا فِي كُلِّ زَمَانٍ او په دې [ممتدة الطهر] ښځې کې هر وخت د طهر اُمید وي وَلَا يُرْجٰى مَعَ الْحَبَلِ [لیکن] د حمل سره [یعني په حامله ښځې کې] د طهر هیڅ اُمید نه وي.

**اللغات:** ﴿الْحَظْر﴾ د ضرب د باب اسمِ مصدر دی: ممانعت، بندیز، حَظَرَ يَحْظِرُ حَظْرًا: منع کېدل، بندېدل (له یو کار څخه راګرځېدل)، ﴿مُمْتَدَّةُ الطُّهْر﴾ کومې ښځې ته چې په تولـه کـال حیض نه راځي، هغې ته "ممتدة الطهر" وايي، ﴿الإِبَاحَة﴾ د افعال د باب اسمِ مصدر دی: روایښت، اجازت، ﴿آيِسَة﴾ د سمع د باب مؤنث اسم فاعل: وچه ښځه، هغه ښځه چې له حیض څخه نا اُمیده سي، ﴿جِبِلَّة﴾ جِبْلَة، جَبْلَة، جَبَلَة: فطرت، طبیعت، مخ، أصل، ﴿سَلِيْمَة﴾ سالم، له نقص او چټلی څخه پاک او محفوظ، ﴿عَلَم﴾ نښه، علامت، نښاني، ﴿مَرْجُوّ﴾ له "رِجَاء" څخه مشتق دی: هغه څه چې اُمید یې سوی وي (یعني یو چا چې یو شي یا یو کار ته اُمید او توقع وي، داسې شي او کار ته "مرجو" وايي)، ﴿الفُصُوْل﴾ جمع د "فَصْل" ده: مراد ځنې هغه شی دی چې عدت په شمارل کېږي، چې هغه د ذوات الحیض ښځو په حق کې طهر دی او د غیرِ ذوات الحیض (آئسه او صغیره) په حق کې میاشته ده، او د حاملې ښځې په حق کې "وضعُ الحمل" (د کوچني زېږول) دي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی حاملې ښځې ته درې طلاقه ورکول وغواړي، نو د شیخینو په نېز د هغه لپاره سنت طریقه دا ده چې د هرو دوو طلاقونو په مینځ کې یوه میاشت فصل وکړي (یعني تر هر طلاق وروسته دې یوه میاشت انتظار وکړي او بیا دې طلاق ورکړي)، امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې حاملې ښځه ته د طلاق ورکولو سنت طریقه دا ده چې خاوند فقط یو طلاق ورکړي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چې طلاق ممنوعُ الأصل دی یعني په طلاق کې ممانعت أصل دی. او په حدیث کې طلاق ته "أَبْغَضُ الْمُبَاحَات" ویل سوي دي، لهذا حتی الإمکان له طلاق څخه ځان ساتل پکار دي.

او بل دا چې د قرآن كريم په دې آيت "فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ...(الخ)" كې د طلاق په هكله دا قاعده ذكر سوې ده چې طلاق به په دريو متفرقو (جلا، جلا) طهرونو كې وي، همدا سنت طريقه ده. او حاملې ښځې ته د حمل په وجه حيض نه راځي، نو هغې په حق كې د طهر د تجدّد امكان سته (يعني د هغې په حق كې د دويم طهر امكان نسته چې تريوه طلاق وروسته بيا په دويم طهر كې طلاق وركول سي) بلكې د هغې د حمل ټوله مودت د طهر په درجه كې دى او حامله آئسه يا صغيره نه ده چې مياشته د هغې په حق كې د طهر يا د عدت د فصل قائم مقام ومنل سي، لهذا څرنګه چې د مُمتدةُ الطهر ښځې په حق كې (يعني د كومې ښځې د طهر زمانه چې ډېره اوږده سي څرنګه چې د هغې په حق كې) مياشته د عدت د فصولو نه قائم مقام كيږي، همداسې به د حاملې په حق كې مياشته د عدت د فصولو نه قائم مقام كيږي، او د حمل په ټوله مودت كې به فقط يو طلاق وركول كېداى سي.

**د شيخينو دليل**: دا دى چې موږ هم دا خبره منو چې طلاق ممنوعُ الأصل دى، لېكن د حاجت ځايونه له دې څخه مستثنىٰ دي ځكه چې طلاق د حاجت په وجه روا سوى دى، او د طلاق حاجت چې څرنګه په نورو ښځو كې موجود دى، همداسې په حامله ښځې كې هم موجود دى (يعني حاملې ښځې ته هم د طلاق وركولو ضرورت پيښيږي)، لهذا طلاق ته مطلقاً ممنوعُ الأصل ويل صحيح نه دي.

لهذا كله چې په حامله ښځه كې هم د طلاق ضرورت موجود دى او ظاهراً هغې ته د سنت طريقې مطابق طلاق وركول ممكن نه دي (د حيض نه راتللو په وجه)، نو بايد د داسې طريقې يا مثال تلاش او پلټنه وسي چې د هغه په اختيارولو سره د حاملې طلاق د سنت طريقې مطابق وګرځي، نو موږ چې تلاش وكړى نو ومو ليدله چې آئسې او صغيرې ته هم حيض نه راځي او د دوى په حق كې "مياشته" د عدت د فصولو او د طهر د تجدّد قائم مقام ده (ځكه چې په يوه مياشته كې دننه په صحيح سالم سړي كې ښځو ته ربښتونى رغبت پيدا كيږي، لكه په طهر كې چې پيدا كيږي)، لهذا كله چې د آئسې او صغيرې په حق كې مياشته د حيض او د طهر د تجدّد قائم مقام كېداى سي، نو هغه به د حاملې په حق كې هم د دې قائم مقام كېداى سي، ځكه چې د حمل په وجه هغې ته هم حيض نه راځي او د هغې په حق كې هم د طهر د تجدّد امكان نسته، او قاعده دا ده چې "اَلْحُكْمُ يُدَارُ عَلٰى دَلِيْلِهَا"، نو ځكه به يوه مياشته د حاملې په حق كې هم د عدت د فصولو او د طهر د تجدد قائم مقام كيږي، او په درې مياشتو كې به هغې ته درې طلاقه وركول د سنت طريقې مطابق وي.

**بخلاف الممتدة الخ:** امام محمد رَحِمَهُ الله حامله ښځه پر مُمتدة الطهر ښځي قیاس کړې وه. په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي. فرمايي چې حامله پر ممتدة الطهر قیاسول صحیح نه دي. ځکه چې د ممتدة الطهر په حق کي د حاجت دلیل فقط طهر دی. او په هغې کي هر وخت او هر ګړی د طهر د تجدّد اُمید وي (یعني د هغې په باره کي هر ګړی دا اُمید او توقع وي چې اوس به حیض ورته راسي. او تر حیض وروسته به بیا پاکه سي). لیکن په حامله ښځه کي بالکل د طهر د تجدّد اُمید نه وي. ځکه چې هغې ته تر وضعُ الحمل (کوچني زیږولو) مخکي بالکل حیض نه راځي. او که بالفرض څه وینه ورته راسي، نو هم هغه ته د حیض وینه نه ویل کیږي. لهذا کله چې په دواړو کي دومره فرق سته، نو ځکه یوه پر بلي قیاسول صحیح نه دي.

## د حیض په حالت کي د طلاق ورکولو حکم

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ او کله چې خاوند خپلي ښځي ته په حالت د حیض کي طلاق ورکړي وَقَعَ الطَّلَاقُ نو طلاق واقع کیږي لِأَنَّ النَّهْيَ عَنْهُ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ ځکه چې په حالت د حیض کي د طلاق ورکولو ممانعت د یو داسي معنیٰ په وجه دی چې هغه له طلاق څخه بغیر [په بل شي] کي ده وَهُوَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا هغه معنیٰ ده کوم چې موږ ذکر کړه فَلَا يَنْعَدِمُ مَشْرُوعِيَّتُهُ لهذا د طلاق مشروعیت به معدوم [او ختم] نه وي وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا او خاوند لره مستحب دي چې ښځي ته رجعت وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِعُمَرَ [1] ځکه چې نبي کریم ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمایل مُرْ ابْنَكَ فَلْيُرَاجِعْهَا خپل زوی ته حکم وکړه! چې خپلي ښځي ته رجعت وکړي وَقَدْ طَلَّقَهَا فِي حَالَةِ الْحَيْضِ په داسي حال کي [نبي ﷺ دا خبره ورته وکړه، کله] چې هغه [ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا] خپلي ښځي ته په حالت د حیض کي طلاق ورکړی وو وَهٰذَا يُفِيدُ الْوُقُوعَ وَالْحَثَّ عَلَى الرَّجْعَةِ او دا "د رجعت حکم ورته کول" [د حیض په حالت کي د طلاق] د واقع کېدلو او پر رجعت د هڅولو [او ترغیب ورکولو] فایده ورکوي ثُمَّ الِاسْتِحْبَابُ قَوْلُ بَعْضِ الْمَشَايِخِ بیا د رجعت مستحب کېدل [یعني دا قول چې رجعت مستحب دی] د ځینو مشائخو قول دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ وَاجِبٌ لیکن صحیح دا ده چې هغه واجب دی عَمَلًا بِحَقِيقَةِ الْأَمْرِ د اُمر په حقیقت باندي د عمل کولو لپاره وَرَفْعًا لِلْمَعْصِيَةِ بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ بِرَفْعِ أَثَرِهِ وَهُوَ الْعِدَّةُ او

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الطلاق، حديث رقم: ٥٢٥١. وابو داؤد في كتاب الطلاق، باب في طلاق السنة، حديث رقم: ٢١٧٩.

حتى الإمكان د معصيت د اُثر يعني د عدت په ختمولو سره د معصيت ختمولو لپاره وَدَفْعًا لِضَرَرِ تَطْوِيْلِ الْعِدَّةِ او [له ښځې څخه] د عدت اوږدولو د ضرر لیرې کولو لپاره.

**اللغات:** ﴿لَا يَنْعَدِمُ﴾ د انفعال له باب څخه د نفي صيغه ده: ختمېدل، نيستي کېدل. ﴿مَشْرُوْعِيَّة﴾ جائز کېدل، روا کېدل. ﴿مُرْ﴾ د نصر له باب څخه د أمر صيغه ده: حکم کول، أمر کول. ﴿مَعْصِيَة﴾ گناه، نافرماني، ﴿تَطْوِيْل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اوږدول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلې ښځې ته د حيض په حالت کې طلاق ورکړي. نو هغه طلاق واقع کيږي او د ټولو په اتفاق دغه سړی گنهکاره کيږي.

د طلاق واقع کېدلو دليل دا دی چې د حيض په حالت کې له طلاق څخه نهي د داسې معنیٰ په وجه دي چې هغه معنیٰ په بل شي کې ده، او هغه معنیٰ "تطويلُ العدة" (د عدت اوږدول) دي (يعني د حيض په حالت کې طلاق په دې وجه ممنوع دی چې په دې سره د ښځې عدت اوږديږي). ځکه په کوم حيض کې چې ښځې ته طلاق ورکول سي هغه په عدت کې نه شمارل کيږي همدارنگه تر هغه وروسته طهر نه شمارل کيږي. خلاصه دا چې د حيض په حالت کې له طلاق څخه نهي "نهي لغيره" دي، "نهي لذاته" نه دي (يعني طلاق ممنوع لغيره دی، ممنوع لذاته نه دی)، او نهي لغيره (يعني ممنوع لغيره) د مشروع لذاته سره پاتېدای سي (يعني د دوی دواړه سره جمع کېدای سي). نو ځکه موږ ووېل چې د حيض په حالت کې بذاتِ خود د طلاق مشروعيت ممنوع نه دی، بلکې طلاق واقع کيږي.

ماتن (امام قدوري رَحِمَهُ الله) فرمايي چې د دغه سړي لپاره مستحب دي چې بېرته خپلې ښځې ته رجوع وکړي او د طلاق خبره شا ته وغورځوي؛ دليل دا دی چې کله عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا خپلې ښځې ته د حيض په حالت کې طلاق ورکړی نو د هغه پلار حضرت عمر ﷺ په دې باره کې له نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه، نبي ﷺ ورته وفرمايل: "مُرْ إِبْنَكَ فَلْيُرَاجِعْهَا"، يعني خپل زوی ته حکم وکړه چې رجعت وکړي. له دې حديث څخه دوې خبرې معلومې سوې: ① ... يوه خبره دا چې د حيض په حالت کې ورکول سوی طلاق واقع کيږي، ځکه که طلاق نه واقع کېدای نو نبي ﷺ به د رجعت حکم نه کولای، ② ... دويمه دا چې په دې حديث کې طلاق ورکونکي ته د رجعت کولو ترغيب ورکول سوی دی.

**ثم الاستحباب إلخ**: په پورتني حديث کي چي کوم دأمر صيغه (يعني "فَلْيُرَاجِعْهَا") ذکر سوی ده. مشائخو د دې دوه مفهومه بيان کړي دي: ①... ځيني مشائخو (چي په هغوی کي امام شافعي او امام احمد هم دي) دغه أمر پر استحباب حمل کړی دی او رجعت يې مستحب ګرځولی دی؛ او د استحباب وجه يې دا بيان کړې ده چي رجعت د انسان خپل ذاتي حق دی، او په خپل ذاتي حق کي پر انسان هيڅ شی لازمول کېدای نه سي، او څرنګه چي د أمر ادنیٰ درجه استحباب ده، نو په دې وجه به د استحباب مفهوم مرادول ډېر غوره وي.

**والأصح إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي صحيح خبره دا ده دي چي له دغه أمر څخه وجوب مراد کړی سي: ①... ځکه چي د أمر کامل مفهوم وجوب دی، ②... او بله وجه دا چي د حيض په حالت کي طلاق ورکول بد کار او معصيت (ګناه) ده، او د رجعت په وجوب سره د طلاق دغه بدي او خرابي بيرته ختمېږي، ځکه کله چي رجعت پر خاوند واجب کړی سي نو هغه به له خپل قول (طلاق) څخه رجوع وکړي او د طلاق له أثر يعني له عدت څخه به ښځه وساتي، او په طلاق کي ممانعت او بدي د عدت اوږدېدلو (تطويلُ العدة) په وجه وه لهذا کله چي عدت ختم سي او ښځه ځني وساتل سي نو ښکاره خبره ده چي عدت هم نه اوږدېږي (ځکه کله چي عدت نه وي نو هغه به څرنګه اوږد کړی سي!)، نو معلومه سوه چي د عدت په وجوب کي د طلاق بدي بالکل له منځه ځي، نو ځکه به له دغه أمر څخه د وجوب مفهوم مرادول ډېر صحيح وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِذَا طَهُرَتْ وَحَاضَتْ فرمايي: کله چي ښځه [له حيض څخه] پاکه سي او [بيا] حائضه سي ثُمَّ طَهُرَتْ [او] بيا پاکه سي فَإِنْ شَاءَ طَلَّقَهَا وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهَا نو [اوس] که خاوند وغواړي هغې ته دي طلاق ورکړي او که وغواړي نو هغه دي راوګرځوي [او بيرته دي يې خپله ښځه او زوجه وګرځوي] قَالَ: وَهَكَذَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: همداسي په مبسوط کي ذکر سوي دي وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ: أَنَّهُ طَلَّقَهَا فِي الطُّهْرِ الَّذِي يَلِي الْحَيْضَةَ الْأُولَى او امام طحاوي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي: چي خاوند دي ښځي ته په هغه طهر کي طلاق ورکړي کوم چي د اول حيض سره متصل وي قَالَ أَبُو الْحَسَنِ الْكَرْخِيُّ: مَا ذَكَرَهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ امام ابو الحسن کرخي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: کوم [قول] چي امام طحاوي ذکر کړی دی هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَمَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ قَوْلُهُمَا او کوم [قول]

چي په مبسوط کي ذکر سوی دی هغه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَوَجْهُ الْمَذْكُورِ فِي الْأَصْلِ: أَنَّ السُّنَّةَ أَنْ يَفْصِلَ بَيْنَ كُلِّ طَلَاقَيْنِ بِحَيْضَةٍ او په مبسوط کي د ذکر سوي قول دليل دا دی: چي د هر دوو طلاقونو په مينځ کي په [پوره] يوه حيض سره فاصله راوستل سنت دي وَالْفَاصِلُ هٰهُنَا بَعْضُ الْحَيْضَةِ او دلته [فقط] څه حيض فاصله کونکی ګرځي فَتُكَمَّلُ بِالثَّانِيَةِ لهذا په دويم حيض سره به هغه [اول حيض] پوره کول کيږي وَلَا تَتَجَزَّأُ او [حيض] نه متجزي کيږي فَتَتَكَامَلُ نو ځکه به هغه [خامخا] پوره کول کيږي وإِذَا تَكَامَلَتِ الْحَيْضَةُ الثَّانِيَةُ او کله چي دويم حيض پوره کړی سي فَالطُّهْرُ الَّذِي يَلِيهِ زَمَانُ السُّنَّةِ نو هغه طهر کوم چي د دويم حيض سره متصل وي [هغه طهر به] د سنت زمانه وي وَجْهُ الْقَوْلِ الْآخَرِ: أَنَّ أَثَرَ الطَّلَاقِ قَدِ انْعَدَمَ بِالْمُرَاجَعَةِ د بل قول دليل دا دی: چي په رجعت کولو سره د طلاق اثر ختم سو فَصَارَ كَأَنَّهُ لَمْ يُطَلِّقْهَا فِي الْحَيْضِ او داسي سو لکه خاوند چي بالکل په حيض کي طلاق ورکړی نه دی فَيُسَنُّ تَطْلِيقُهَا فِي الطُّهْرِ الَّذِي يَلِيهِ نو ځکه به د دغه حيض سره په متصل طهر کي ښځي ته طلاق ورکول سنت [مسنون] وي.

**اللغات:** ﴿طَهُرَتْ﴾ د کرُم له باب څخه واحده غائبه ماضي صيغه ده، د نصر له باب څخه هم راځي: پاکېدل. ﴿حَاضَتْ﴾ د ضرب له باب څخه مخکنۍ صيغه ده: حيض راتلل، حايضه کېدل. ﴿فَاصِل﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جدا کونکی، فاصله کونکی (فاصله راوستونکی)، ﴿لَا تَتَجَزَّأُ﴾ د تفعّل د باب نفي صيغه ده: جزء جزء کېدل (حصه حصه کېدل)، ټوټه ټوټه کېدل، تقسيمېدل.

**تشريح:** د مسئلې نوعيت او صورت دا دی که يو سړي خپلي ښځي ته د حيض په حالت کي طلاق ورکړي او بيرته هغې ته رجوع (رجعت) وکړي، نو اوس به دويم وار د طلاق ورکولو يا نه ورکولو سنت (مسنون) وخت کوم وخت وي؟ په دې باره کي د فقهاؤ دوه قولونه دي:

(۱)... اول قول (کوم چي د مبسوط وطرف ته منسوب دی) دا دی چي اوس به خاوند دوه طهره انتظار کوي، يعني په کوم حيض چي کي خاوند رجعت کړی وي تر هغه وروسته چي کوم طهر راځي په هغه کي دي ساکت (خاموش) پاته سي، بيا چي تر دويم ځل حيض راتللو وروسته کوم طهر راځي، په هغه کي و ده ته اختيار دی که د سنت طريقې مطابق وغواړي نو ښځي ته دي طلاق ورکړي. او که طلاق ورکول نه غواړي نو ښځه دي راوګرځوي يعني بيرته دي يې د ځان مانينه (زوجه) وګرځوي، د قرآن په دې آيت "فَإِمْسَاكٌ بِالْمَعْرُوفِ أَوْ تَسْرِيحٌ بِالْإِحْسَانِ" کي همدغسي اشاره سوې ده.

(۲)... دویم قول (کوم چې امام طحاوي ته منسوب دی) دا دی چې په کوم حیض کې خاوند رجعت کړی وي تر هغه وروسته چې کوم طهر راځي، په هغه طهر کې خاوند ته د طلاق ورکولو یا د ښځې راګرځولو حق سته (د سنت طریقې مطابق)، او د دې څه ضرورت نسته چې د بل طهر انتظار وکړي سي او په هغه کې څه إقدام کول سنت وګڼل سي.

علامه ابن الهمام او صاحب د بنایې وایي چې أصلاً د فقهاؤ دغه اختلاف د احادیثو پر اختلاف مبني دی (یعني أصلاً د احادیثو په مضامینو کې اختلاف دی)، ځکه چې په صحیحینو کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حدیث مضمون داسې دی: "فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُمْسِكْهَا حَتّٰى تَطْهُرَ. ثُمَّ تَحِيْضَ. ثُمَّ تَطْهُرَ"، دا مضمون د مبسوط د قول دلیل او مؤیّد دی.

د دې په خلاف په مسلم، ترمذي او طحاوي کې د بیان سوي حدیث مضمون دا دی: "فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا أَوْ حَامِلًا. وفی روایة: ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا إِذَا طَهُرَت"، او دا مضمون بیا د امام طحاوي د قول دلیل او مؤیّد دی.

د دې أحادیثو د اختلاف په وجه صاحب د هدایې د دواړو قولونو پر عقلي دلیل اکتفاء کړې ده او أحادیث نه دي ذکر کړي.

رابه سو عقلي دلائلو ته، نو په مبسوط کې د بیان سوي قول عقلي وجه او دلیل دا دی چې د هرو دوو طلاقونو په مینځ کې یو کامل حیض فصل کول سنت دي، او په پورتنۍ مسئله کې کامل حیض فصل هغه وخت راځي کله چې تر طلاق او رجعت وروسته یو بل کامل حیض هم تېر سي، ځکه په کوم حیض کې چې ښځې ته طلاق ورکول سوی دی او رجعت ور ته سوی دی ښکاره خبره ده چې هغه کامل او پوره حیض نه دی، بلکې ناقص دی، او په حیض کې تجزی هم کېدلای نه سي (یعني داسې هم کېدلای نه سي چې د دغه حیض چې څومره وخت په طلاق او رجعت کې مصرف سوی دی له بل حیض څخه هغومره وخت د دغه حیض سره یو ځای کړی سي، لهذا کله چې دا هم نه سي کېدلای) نو په سنت طریقې د عمل کولو لپاره به د بل کامل حیض تېرېدل ضروري وي او تر هغه وروسته چې کوم طهر راځي، هغه به د طلاق ورکولو یا نه ورکولو سنت وخت وي.

د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د قول عقلي دلیل دا دی چې په اول حیض کې تر طلاق ورکولو وروسته چې کله خاوند ښځې ته رجعت وکړی نو د طلاق اثر بالکل ختم سو او دغه حیض له طلاق او رجعت څخه بالکل خالي سو، نو په سنت طریقې د عمل کولو لپاره به فقط د دغه حیض تېرېدل کافي وي او تر دې وروسته به را روان طهر سنت وخت وي.

## ذواتُ الحيض ښځو ته په "أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ" سره د طلاق ورکولو بیان

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ - وَهِيَ مِنْ ذَوَاتِ الْحَيْضِ وَقَدْ دَخَلَ بِهَا - : أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ او کوم خاوند چې خپلې داسې ښځې ته - چې هغه له ذواتُ الحيض ښځو څخه وي او خاوند په هغې دخول کړی وي - ووايي: "أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ" اته د سنت مطابق درې واره (پر ما) طلاقه یې] وَلَا نِيَّةَ لَهُ او د هغه هيڅ نيت نه وي فَهِيَ طَالِقٌ عِنْدَ كُلِّ طُهْرٍ تَطْلِيقَةً نو هغه [ښځه] د هر طهر په وخت کې په يوه طلاق سره مطلقه ګرځي لِأَنَّ اللَّامَ فِيهِ لِلْوَقْتِ ځکه چې لام په "لِلسُّنَّةِ" کې د وخت لپاره دی وَوَقْتُ السُّنَّةِ طُهْرٌ لَا جِمَاعَ فِيهِ او سنت وخت هغه طهر دی کوم چې له جماع څخه خالي وي وَإِنْ نَوَى أَنْ تَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ او که دا نيت وکړي چې په همدغه ګړي [في الحاله] درې طلاقه واقع سي أَوْ عِنْدَ رَأْسِ كُلِّ شَهْرٍ وَاحِدَةً يا د هرې مياشتې په شروع کې يو طلاق [واقع سي] فَهُوَ عَلَى مَا نَوَى نو حکم به د هغه د نيت مطابق وي سَوَاءٌ كَانَتْ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ أَوْ فِي حَالَةِ الطُّهْرِ برابره ده که هغه وخت [ساعت] په حالت د حيض کې وي يا په حالت د طهر کې وَقَالَ زُفَرُ: لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْجَمْعِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د جمع [يعني په يوه واره دريو طلاقونو] نيت کول صحيح نه دي لِأَنَّهُ بِدْعَةٌ ځکه چې دا بدعت دي وَهِيَ ضِدُّ السُّنَّةِ او بدعت د سنت ضد دی وَلَنَا: أَنَّهُ مُحْتَمَلُ لَفْظِهِ او زموږ دليل دا دی: چې د جمع نيت د خاوند د کلام محتمل دی [يعني د خاوند په کلام کې د جمع احتمال هم سته] لِأَنَّهُ سُنِّيٌّ وُقُوعًا مِنْ حَيْثُ إِنَّ وُقُوعَهُ بِالسُّنَّةِ ځکه چې هغه [جمع] د وقوع په اعتبار سره سنت دي په دې حيثيت سره چې د هغه وقوع په سنت [حديث] سره ثابته ده لَا إِيقَاعًا نه د واقع کولو په اعتبار سره [يعني په يوه واره ثلاثا طلاق ورکول د واقع کېدلو په اعتبار سره سنت دي يعني په حديث سره ثابت دي (چې واقع کيږي) او د واقع کولو په اعتبار سره سنت نه دي (ځکه چې سنت طريقه يعني د حديث طريقه دا ده: چې په هر طهر کې يو يو طلاق ورکول سي)] فَلَمْ يَتَنَاوَلْهُ مُطْلَقُ كَلَامِهِ نو د خاوند مطلق کلام به هغه ته نه شامليږي وَيَنْتَظِمُهُ عِنْدَ نِيَّتِهِ [ليکن] د خاوند د نيت په وخت کې به هغه ته شامليږي [يعني که خاوند د جمع نيت وکړي نو بيا به د خاوند مطلق کلام هغه ته شامل وي].

**اللغات:** ﴿ذَوَاتُ الْحَيْضِ﴾ حيض والا ښځې (يعني هغه ښځې چې د خپل عادت موافق حيض ورته راځي)، ﴿رَأْس﴾ سر، مراد ځنې ابتداء (شروع) ده. ﴿وُقُوْعًا﴾ د واقع کېدلو په اعتبار سره (لازمي

باب دی) ﴿إِنۡتِقَاقًا﴾ د واقع کولو په اعتبار سره (متعدي باب دی)، ﴿لَمۡ يَتَنَاوَلۡ﴾ د تفاعل له باب څخه د جحد صيغه ده: اخيستل، نيول، شاملېدل (ګډېدل)، ﴿يَشۡتَمِلُ﴾ د افتعال د باب مضارع ده: په ترتيب کېدل، مشتملېدل، شاملېدل، دوه شيان سره جمع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړي خپلې مدخول بها ښځې ته ووايي: "أَنۡتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ" (ته د سنت مطابق [يا د سنت په توګه] درې واره [پر ما] طلاقه يې)، او هغه ښځه له ذوات الحيض ښځو څخه وي، نو د خاوند پر دغه جملې به له څه حکم کولو څخه مخکې دې ته کتل کېږي چې آيا خاوند په دې سره څه نيت کړی دی، که نه؟ که خاوند هيڅ نيت کړی نه وي او هغه مطلقاً دغه الفاظ ويلي وي، نو په دې صورت کې به په هر طهر کې پر ښځې يو طلاق واقع کېږي او که د خاوند له طرفه هغې ته رجعت نه وسي نو تر دريو طهرونو وروسته هغه مُطلّقه مغلظه (ثلاثاً مُطلّقه) کرځي.

د دې حکم دليل دا دی چې د خاوند د جملې په دغه لفظ "لِلسُّنَّةِ" کې چې کوم لام دی دا د وخت لپاره متعين دی، او سنت وخت هغه طهر دی کوم چې له جماع څخه خالي وي، نو ځکه به په هر طهر کې پر ښځې يو طلاق واقع کېږي.

د مسئلې دويم صورت دا دی چې که خاوند د دغه جملې د ويلو په وخت کې يو نيت کړی وي، نو د هغه د نيت مطابق به فيصله کېږي برابره ده که هغه په يوه وار (او پر يوه ځای) پر ښځې د دريو طلاقونو د واقع کولو نيت کړی وي، يا يې د هرې مياشتې په شروع کې د يوه طلاق د واقع کولو نيت کړی وي، لنډه دا چې اوس به فيصله د هغه د نيت مطابق کېږي، څرنګه چې يې نيت وي هغسې حکم به کېږي. او برابره ده هغه وخت (په کوم وخت چې خاوند طلاق ورکړی وي) د حيض وي او که د طهر، همدارنګه د هرې مياشتې د شروع حصه د حيض وي او که د طهر، په هر صورت کې به د هغه د نيت مطابق د طلاق واقع کېدلو فيصله کېږي.

امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې فيصله خو به د خاوند د نيت مطابق کېږي لېکن خاوند لره به دا اختيار نه وي چې په دغه جمله سره په يوه وار د دريو طلاقونو نيت وکړي؛ ځکه چې په يوه وار درې طلاقونه ورکول بدعت دي، او بدعت د سنت ضد دی، او قاعده دا ده چې "الشَّيۡءُ لَا يَتَحَمَّلُ ضِدَّهُ"، نو ځکه به د "للسُّنَّة" والا په جمله سره د دريو طلاقونو نيت کول صحيح نه وي.

ولنا إلخ: له دې ځایه زموږ دلیل بیان سوی دی، تر دلیل مخکې تاسو په دې ځان پوه کړئ! چې سنت پر دوه قسمه دی: ① سنت کامله، ② سنتَ قاصره. د سنت کامله مطلب دا دی چې طلاق د وقوع او إیقاع (واقع کېدلو او واقع کَولو) دواړو په اعتَبار سره د سنتَ طریقې مطابق وي (یعني د هغه طریقې مطابق کوم چې په حدیث سره ثابته ده چې هغه په دریو جلا، جلا طهرونو کې درې طلاقه ورکول دي)، او د سنتِ قاصره مطلب دا دی چې طلاق فقط د وقوع په اعتبار سره د سنت طریقې مطابق وي یعني په یوه طهر کې درې طلاقه ورکول، او دا دواړه قسمه طلاقونه په حدیث سره ثابت دي. یعني په دریو جلا، جلا طهرونو کې درې طلاقه ورکول هم ثابت دي او په یوه طهر کې درې طلاقه ورکول هم ثابت دي، په حدیث کې راځي: "مَنْ طلَّقَ اِمْرَأتَهُ أَلْفًا. بَانَتْ مِنْهُ بِثَلَاثٍ . وَالبَاقِيْ رُدَّ عَلَيْه". (یعني کوم څوک چې خپلې ښځې ته زر طلاقه (هم) ورکړي، نو هم ښځه (فقط) په دریو طلاقو سره بائنه کرځي، او پاتې طلاقونه (بیرته) پر خاوند راګرځي).

دویم خبره دا ده چې ځینې الفاظ د مختلفو او بېلابېلو معناوو احتمال لري، او د ضرورت او حاجت په وخت کې د هغه لفظ له معناګانو څخه هره معنیٰ مراد کېدلای سي.

اوس د دلیل حاصل دا دی چې کله خاوند ښځې ته "أنت طالق للسنة" وویل نو څرنګه چې په دې جمله کې د سنتِ کامله احتمال هم سته همداسې د سنت قاصره احتمال هم پکښې سته. او دا خبره تسلیم سوې ده چې په محتمل لفظ او جمله کې د یوه احتمال د خاصولو او متعینولو لپاره د هغه صراحت او وضاحت کول ضروري دي، او نیت پوره صراحت کونکی دی، نو ځکه موږ وویل چې که خاوند دغه الفاظ مطلق ویلي وي او په دې سره یې هیڅ نیت نه وي، نو بیا خو به د "للسُّنَة" أعلیٰ درجه (سنت کامله) یعني وقوع او إیقاع دواړه مرادیږي، لېکن که هغه د جمع (یعني پر یوه ځای د دریو طلاقونو) نیتَ کړی وي، نو د هغه د نیت مطابق به فیصله کیږي او له سنت څخه به سنتِ قاصره یعني "سنت من حیث الوقوع" مرادیږي، ځکه چې د خاوند کلام د سنتِ قاصره احتمال هم لري او نیت هغه متعیّن کړی، نو ځکه به د نیت په صورت کې دغه سنت ځنې مرادیږي.

## ذواتُ الأشهر ښځو ته په "أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّة" سره د طلاق ورکولو بیان

وَإِنْ كَانَتْ آيِسَةً أَوْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَشْهُرِ او که ښځه آیسه وي یا له میاشتنی. ښځو څخه وي [یعني صغیره وي] وَقَعَتِ السَّاعَةَ وَاحِدَةٌ نو په هغه ګړي یو طلاق واقع کیږي وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرٰى وَبَعْدَ شَهْرٍ أُخْرٰى او یوه میاشته وروسته دویم او بله میاشته وروسته دریم [واقع کیږي] لِأَنَّ الشَّهْرَ فِيْ حَقِّهَا دَلِيْلُ الْحَاجَةِ ځکه

چي مياشته د هغې په حق کې د حاجت دليل ده كَالطُّهْرِ فِي حَقِّ ذَوَاتِ الْأَقْرَاءِ لکه طهر چي د حيض والا ښځو په حق کې [د حاجت دليل دی] عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه [مخکې] چي موږ د دې بيان وکړی وَإِنْ نَوَى أَنْ يَقَعَ الثَّلَاثُ السَّاعَةَ او که [خاوند] دا نيت وکړي چي په همدغه ګړي درې سره [طلاقه] واقع سي [يعني د دريو سره طلاقونو د وقوع نيت وکړي] وَقَعْنَ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز واقع کيږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ أَنْتِ طَالِقٌ لِلسُّنَّةِ په خلاف د هغه [صورت] کله چي خاوند [فقط] "أَنْتِ طَالِقٌ لِلسُّنَّةِ" ووايي وَلَمْ يَنُصَّ عَلَى الثَّلَاثِ او د دريو [طلاقو] صراحت نه وکړي [يعني "ثَلَاثًا" ذکر نه کړي] حَيْثُ لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْجَمْعِ فِيهِ نو بيا په دې [جمله] کې د جمع [د دريو طلاقونو] نيت کول صحيح نه دي لِأَنَّ نِيَّةَ الثَّلَاثِ إِنَّمَا صَحَّتْ فِيهِ مِنْ حَيْثُ إِنَّ اللَّامَ فِيهِ لِلْوَقْتِ ځکه چي په دغه جمله کې د "ثَلَاثًا" [د دريو طلاقونو] نيت کول په دې حيثيت سره صحيح دی چي په دې (للسنة) کې "لام" د وخت لپاره دی فَيُفِيدُ تَعْمِيمَ الْوَقْتِ نو هغه د وخت د تعميم [عامېدلو] فايده ورکوي وَمِنْ ضَرُورَتِهِ تَعْمِيمُ الْوَاقِعِ فِيهِ او د هغه [تعميم الوقت] له ضرورته څخه په دې وخت کې د واقع تعميم هم دی [يعني د وخت عامېدلو لپاره دا ضروري دي چي کوم طلاق په دې وخت کې واقع کيږي هغه به عام وي (يعني درې طلاقه به وي، حالانکې خاوند "ثَلَاثًا" نه دي ذکر کړي)] فَإِذَا نَوَى الْجَمْعَ لهذا کله چي خاوند د جمع نيت وکړی بَطَلَ تَعْمِيمُ الْوَقْتِ نو تعميم د وخت باطل سو فَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ نو ځکه به د دريو طلاقو نيت نه صحيح کيږي.

**اللغات:** ﴿آيِسَةٌ﴾ د سمع د باب مؤنث اسم فاعل: وچه ښځه، هغه ښځه چي له حيض څخه نا اُميده سي، ﴿السَّاعَةَ﴾ ګړی، ساعت، وخت، ﴿أَقْرَاء﴾ جمع د قُرْءٌ ده: حيض او طهر دواړو ته وايي، ﴿لَمْ يَنُصَّ﴾ د نصر د باب جحد صيغه ده: صراحت کول، خبره په ښکاره لفظو کې ذکر کول (په خوله ذکر کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو خاوند خپلې مدخول بها ښځې ته ووايي: "أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا لِلسُّنَّةِ". او هغه ښځه له ذواتُ الحيض ښځو څخه نه وي، بلکي له ذواتُ الأشهر څخه وي يعني آئسه يا صغيره وي، او خاوند په دې جملې سره هيڅ نيت کړی نه وي، نو په دې صورت کې خو يو طلاق فوراً واقع کيږي او يوه مياشت وروسته دويم طلاق واقع کيږي او بيا يوه مياشته وروسته دريم طلاق واقع کيږي؛ ځکه چي د دې ښځو (آئسه او صغيره) په حق کې د حاجت دليل فقط مياشته ده، لهذا

ځرنګه چي (د خاوند د عدمِ نیت په صورت کي) پر ذواتُ الحیض بنځو په هر طهر کي یو طلاق واقع کیږي، همدارنګه به پر آئسه او صغیره هم په هره میاشته کي یو طلاق واقع کیږي.

او که د خاوند دا نیت کړی وي چي پر یوه ځای دري سره طلاقه واقع سي، نو زموږ مسلک دا دی چي د هغه د نیت مطابق به فیصله کیږي او دري سره طلاقه به واقع کیږي. لکه په ذواتُ الحیض ښځو کي چي د دې تفصیل تیر سو، لیکن امام زفر رَحِمَهُ الله په دې مسئله کي هم د مخکي په څیر پر بله لار تللی دی.

**بخلاف ما إذا قال إلخ**: او که چیري خاوند فقط "أَنْتِ طَالِقٌ لِلسُّنَّة" ووایي، او "ثَلَاثًا" ور سره ذکر نه کړي، نو په دې صورت کي د هغه لپاره د جمع یعني د دریو طلاقو نیت کول صحیح نه دي، او که د دې نیت وکړي نو هم دري طلاقه نه واقع کیږي، ځکه چي د دریو طلاقو نیت کول هغه وخت صحیح کیږي کله چي یې د "ثَلَاثًا" لفظ هم ویلي وي، لکه په تېره مسئله کي چي هغه دا لفظ ویلی وو.

او صاحب د هدایې په منطقي انداز سره د دې دلیل دا بیان کړی دی چي په "لِلسُّنَّة" کي لام د وخت لپاره دی او د طلاقِ سنت وخت متعدد دی یعني دري طهره دي، نو دا لام د وخت د تعمیم (عامېدلو) فایده ور کوي یعني د وخت عامېدل پکار دي (او په دریو سره طهرونو کي طلاق واقع کېدل پکار دي)، لیکن د وخت د عامېدلو لپاره دا ضروري دي چي کوم طلاق چي په دغه وخت کي واقع کیږي هغه به هم عام وي یعني دري به وي او خاوند دري طلاقه ("ثَلَاثًا") ذکر کړي نه دي. لهذا کله چي هغه د دریو طلاقو نیت وکړی نو تعیمم د وخت باطل سو (ځکه چي هغه "ثلاثًا" ادري ا ذکر کړي نه دي)، نو ځکه موږ وایو چي په دې صورت کي د دریو طلاقو نیت کول صحیح نه دي. (اثمار الهدایة ج۴، ص: ۳۶۵)



# فَصْلٌ فِيْ مَنْ يَقَعُ الطَّلَاقُ

## (دا) فصل په (بيان د) هغه چا کی دی چي طلاق يې واقع کيږي

تشريح: مخکي تر دې صاحب د کتاب د فعل يعني د طلاق أقسام او أحکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د فاعل يعني د هغو خلکو بيان کوي چي د هغو طلاق واقع کيږي او د هغو خلکو چي طلاق يې نه واقع کيږي.

### د طلاق ورکونکي د اهليت بيان

وَيَقَعُ طَلَاقُ كُلِّ زَوْجٍ او د هر خاوند [ورکول سوی] طلاق واقع کيږي إِذَا كَانَ عَاقِلًا بَالِغًا [په دې شرط] چي کله هغه عاقل بالغ وي وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ وَالنَّائِمِ او د کوچني، لېوني او بيده سړي طلاق نه واقع کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1]: كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي [د هر چا] طلاق جائز دی مګر د کوچني او لېوني وَلِأَنَّ الْأَهْلِيَّةَ بِالْعَقْلِ الْمُمَيِّزِ او ځکه چي [د طلاق] د أهليت دار ومدر پر هغه عقل دی کوم چي تميز کونکی وي وَهُمَا عَدِيْمَا الْعَقْلِ او دوی دواړه عقل نه لري [له عقل څخه خلاص دي] وَالنَّائِمُ عَدِيْمُ الْاِخْتِيَارِ او بيده سړی اختيار نه لري وَطَلَاقُ الْمُكْرَهِ وَاقِعٌ او د مُکره طلاق [هم] واقع کيږي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُوْلُ: إِنَّ الْإِكْرَاهَ لَا يُجَامِعُ الْاِخْتِيَارَ هغه فرمايي چي إکراه د اختيار سره جمع کېدای نه سي وَبِهِ يُعْتَبَرُ التَّصَرُّفُ الشَّرْعِيُّ او په همدغه اختيار سره د تصرف شرعي اعتبار کيږي بِخِلَافِ الْهَازِلِ په خلاف د ټوکمار [مسخره کونکي] لِأَنَّهُ مُخْتَارٌ فِي التَّكَلُّمِ بِالطَّلَاقِ ځکه چي هغه د طلاق په ويلو کي اختيار من دی وَلَنَا: أَنَّهُ قَصَدَ إِيْقَاعَ الطَّلَاقِ فِيْ مَنْكُوْحَتِهِ فِيْ حَالِ أَهْلِيَّتِهِ او زموږ دليل دا دی: چي مُکرَه د أهليت په حالت کي پر خپله منکوحه د طلاق واقع کولو اراده کړې ده فَلَا يَعْرٰى عَنْ قَضِيَّتِهِ دَفْعًا لِحَاجَتِهِ نو د

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ، باب لا يجوز طلاق الصبيّ، حديث رقم: ١٥٠٥٥ بمعناه.

ضرورت دفع کولو په خاطر به د هغه [دا] قصد له حکم څخه خالي نه وي اِعْتِبَارًا بِالطَّائِعِ پر طائع [راضي او مختار کس] باندي په قیاس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّهُ عَرَفَ الشَّرَّيْنِ وَاخْتَارَ أَهْوَنَهُمَا او دا ځکه [یعني د هغه قصد کول په دې دلیل سره معلومیږي] چي هغه دوې بدیاني ولیدلې او په هغوی کي یې سپکه بدي اختیار کړه وَهٰذَا آيَةُ الْقَصْدِ وَالِاخْتِيَارِ او همدا د قصد او اختیار علامه ده إِلَّا أَنَّهُ غَيْرُ رَاضٍ بِحُكْمِهِ خو دا [جلا خبره ده] چي [مُکرَه] پر خپله فیصله راضي نه دی وَذٰلِكَ غَيْرُ مُخِلٍّ بِهِ [لېکن] دا [په طلاق] نه راضي کېدل [د طلاق په وقوع کي] مُخل نه دي كَالْهَازِلِ لکه د ټوکمار [د طلاق په وقوع کي چي هم دا مخل نه دي].

**اللغات:** ﴿مُمَيِّزٌ﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: تمیز کونکی، توپیر کونکی، ﴿عَدِيْمٌ﴾ غیرِ موجود، خالي، چي د هغه سره شی نه وي، د وَاجِد ضد، ﴿مُكْرَهٌ﴾ مجبوره کس (هغه سړی چي یو بل څوک یې پر طلاق ورکولو مجبوره کړي، او د طلاق نه ورکولو په صورت کي د وژلو یا زخمي کولو دمکي ورکړي)، ﴿إِكْرَاهٌ﴾ مجبوره کول، ﴿هَازِلٌ﴾ د ضرب د باب فاعل دی: مسخره چي، ټوکمار (وشتمار)، هغه کس چي مراد یې په خپله خبره سره ټوکه او مسخره وي، نه حقیقت. ﴿لَا يَعْرَى﴾ د ضرب د باب نفي صیغه ده: لځېدل، خالي کېدل، ﴿قَضِيَّةٌ﴾ فیصله، دلته څني مراد "مقتضیٰ" او "حکم" دي، ﴿طَائِعٌ﴾ مطیع، فرمانبردار، دلته څني مراد "راضي" او "مختار" سړی دی کوم چي په طلاق ورکولو راضي وي، ﴿أَهْوَنُ﴾ د نصر د باب اسمِ تفضیل دی: سپک، هغه کار چي کول یې انسان ته آسانه وي، ﴿آيَةٌ﴾ نښاني، علامت (علامه)، نښه.

**تشریح:** په دې عبارت کي څو مسئلې بیان سوي دي: (١)... د اولي مسئلې حاصل دا دی چي د طلاق واقع کېدلو لپاره دا ضروري دي چي خاوند به عاقل او بالغ وي، نو که کوچنی یا لېونی یا بیده کس طلاق ښځي ته ورکړي، نو په دوی کي د هیڅا طلاق نه واقع کیږي، دلیل هغه حدیث دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو، په هغه کي نبي کریم ﷺ د هر خاوند طلاق جائز ګڼلی دی خو له هغه څخه یې د کوچني او لېوني د طلاق استثناء کړې ده، او فرمایلي یې دي چي د دوی طلاق نه واقع کیږي.

عقلي دلیل دا دی چي طلاق یو شرعي تصرف دی، او د تصرف لپاره اهلیت (أهل کېدل) ضروري دی، او د اهلیت لپاره عقل او بلوغ ضروري دی، او مجنون بالکل له عقل څخه خلاص وي. او په کوچني کي بلوغ او پوهه نه وي، او بیده سړی که څه هم عقل لري، خو د خوب په حالت کي هغه

بالکل له تمییز او اختیار څخه خلاص وي او د هغه عقل بیده وي، نو په دې وجه د هغه پر طلاق د کوچني او مجنون د طلاق حکم کیږي، او د کوچني او مجنون طلاق نه واقع کیږي، نو د هغه طلاق به هم نه واقع کیږي.

**وطلاق المكره إلخ:** په دې سره دا رابنيي چې د مُکره (یعني هغه سړی چې یو بل څوک یې پر طلاق ورکولو مجبوره کړی او د وژلو یا زخمي کولو دمکي ورکړي، د داسي سړي د) د ورکول سوي طلاق د وقوع او عدمِ وقوع په هکله د امامانو اختلاف دی: زیاتره صحابه او احناف د مُکره طلاق واقع او صحیح مني، لیکن ائمه ثلاثه او ځيني صحابه کرام فرمايي چي د مُکره طلاق صحیح نه دی او نه واقع کیږي.

**دليل:** د ائمه ثلاثه وو دلیل دا دی چي طلاق ورکول یو شرعي تصرف دی، او تصرفات شرعي په اختیار سره معتبر دي یعني په تصرف شرعي کي إکراه او اختیار دواړه سره جمع کېدای نه سي، او مُکره کس غیرِ مختار دی، هیڅ ډول اختیار نه لري، نو ځکه به د هغه تصرف یعني طلاق غیر معتبر وي او نه به واقع کیږي.

د دې په خلاف که یو څوک په ټوکو او مسخرو کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي، نو هغه واقع کیږي، ځکه ټوکمار (مسخره کوونکی) چي کومه خبره (او مسخره) کوي، هغه خبره په خپل اختیار او ملکیت سره کوي، او د تصرفِ شرعي مدار پر اختیار دی، نو د مسخره کونکي تصرف به صحیح وي، او کله چي د هغه تصرف صحیح دی، نو د هغه طلاق به هم صحیح او واقع وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د طلاق واقع کېدلو دار ومدار پر اختیار نه دی بلکي له اختیار څخه مخکي د اهلیت پړاو او مرحله ده، نو کوم څوک چي د اهلیت په مرحله کي کامیاب وي (یعني عاقل او بالغ وي)، د هغه تصرف به معتبر وي، برابره ده هغه که اختیار لري او که یې نه لري، او مُکره د طلاق واقع کولو (إيقاع) أهل هم دی او هغه یې قصد هم کړی دی، او د هغه قصد له دې خبري څخه معلومیږي چي هغه دلته دوې بدیاني ولیدلې: ① چي یا به ښځي ته طلاق ورکوم، ② یا به ځان وژلو او زخمي کولو ته تیاروم، نو هغه د خپل ځان حفاظت اختیار کړی او ښځي ته یې طلاق ورکړی، دا د دې خبري علامه ده چي هغه په خپل قصد او اختیار سره طلاق ورکړی دی. لهذا څرنګه چي د ضرورت دفع کولو په خاطر د مختار او راضي کس طلاق واقع منل کیږي، همداسي به د مُکره طلاق د هغه د ضرورت دفع کولو لپاره (یعني له وژنې یا زخمي کېدلو څخه د ځان ساتلو لپاره) د هغه طلاق صحیح او واقع منل کیږي.

**إلا إلخ**: ها! دلته دا یوه خبره کېدای سي چي مُکره د طلاق پر إيقاع راضي نه وو، خو موږ وایو چي د طلاق پر إيقاع نه راضي کېدل د طلاق په وقوع (واقع کېدلو) کي مُخل نه دي، ځکه چي له رضا او خوښي څخه بغیر هم طلاق واقع کېدای سي، لکه د ټوکمار (مسخره کونکي) طلاق چي د هغه له رضا او خوښي څخه بغیر واقع کیږي.

## د نشه او ګونګي سړي د طلاق حکم

**وَطَلَاقُ السَّكْرَانِ وَاقِعٌ** او د نشه سړي طلاق [هم] واقع کیږي **وَاخْتِيَارُ الْكَرْخِيِّ وَالطَّحَاوِيِّ: أَنَّهُ لَا يَقَعُ** او د امام کرخي او امام طحاوي رَحِمَهُمَا الله مختار قول دا دی: چي هغه نه واقع کیږي **وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ** او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه یو قول دی **لِأَنَّ صِحَّةَ الْقَصْدِ بِالْعَقْلِ** ځکه چي د عقل صحیح کېدل پر عقل موقوف دي **وَهُوَ زَائِلُ الْعَقْلِ** او د نشه سړي عقل زائل [له منځه تللی] دی **فَصَارَ كَزَوَالِهِ بِالْبَنْجِ وَالدَّوَاءِ** نو دا په چرسو او دواء سره د عقل زائلېدلو په څیر سو **وَلَنَا: أَنَّهُ زَالَ بِسَبَبٍ هُوَ مَعْصِيَةٌ** او زموږ دلیل دا دی: چي د هغه عقل په داسي سبب سره زائل سوی دی کوم چي معصیت دی **فَجُعِلَ بَاقِيًا حُكْمًا زَجْرًا لَهُ** نو د هغه زجر [او سزا] لپاره به حکماً عقل باقي منل کیږي **حَتَّى لَوْ شَرِبَ فَصُدِعَ** تر دې که هغه شراب وڅښي او [د هغه په وجه] د سر په درد مبتلا سي **وَزَالَ عَقْلُهُ بِالصُّدَاعِ** او عقل یې د سر د درد په وجه زائل سي **نَقُولُ: إِنَّهُ لَا يَقَعُ طَلَاقُهُ** نو موږ [هم] وایو: چي د هغه طلاق نه واقع کیږي **وَطَلَاقُ الْأَخْرَسِ وَاقِعٌ بِالْإِشَارَةِ** او د ګونګي طلاق په اشاره سره واقع کیږي **لِأَنَّهَا صَارَتْ مَعْهُودَةً** ځکه چي [د هغه] اشاره معهوده وي ایعني د ګونګي په اشاره د هغه متعلقین خلک پوهیږي] **فَأُقِيمَتْ مَقَامَ الْعِبَارَةِ دَفْعًا لِلْحَاجَةِ** لهذا د حاجت دفع کولو په خاطر به [د هغه] اشاره د عبارت [او بیان] قائم مقام کیږي **وَسَتَأْتِيكَ وُجُوهُهُ فِي آخِرِ الْكِتَابِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى** او د هغه توجیهات به انشاء الله د کتاب په آخر کي ستا مخته راسي.

**اللغات**: ﴿سَكْرَان﴾ نشه (هغه کس چي د نشې په حالت کي وي)، ﴿الْبَنْج﴾ بنګي (د چرسو بوټی)، ﴿صُدِعَ﴾ و صُدِّعَ: پر سر درد کېدل، دا باب همېشه مجهول استعمالیږي، ﴿زَجْرًا﴾ د نصر د باب مصدر دی: سزا ورکول، له بدي څخه را ګرځول، غندل، رټل، ملامتول، ﴿زَائِل﴾ د نصر د باب

فاعل دی. زَالَ يَزُوْلُ زَوْلًا: له منځه تلل، ختمېدل، کرځېدل. ﴿أَلْحَرَسْ﴾ ګونګی (ګونګ). له څه ويلو او خبرو کولو څخه بې برخي انسان.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو سړی شراب يا بل نشه کونکی شی وچيښي. او په نشه کي دومره غرق سي چي د ښه اوبد تر مينځ توپير کول د هغه لپاره مشکل وي. او بيا په دې وخت کي هغه خپلي ښځي ته طلاق ورکړي. نو زموږ په نېز طلاق واقع کيږي. خو زموږ له احنافو څخه د امام کرخي او امام طحاوي رَحِمَهُمَا الله غوره او مختار قول دا دی چي طلاق نه واقع کيږي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول هم دی.

**دليل**: د دوی دليل دا دی چي د طلاق ورکولو مدار پر قصد او اراده باندي دی، او د قصد او ارادې د صحيح کېدلو لپاره عقل ضروري دی، لېکن دا سړی زائلُ العقل (او مغلوبُ العقل) دی يعني عقل يې (في الحاله) ختم او زائل دی، لهذا د ده څخه د قصد هيڅ توقع هم نسته. د قصد صحيح کېدل خو لا هلته پرېږده (ځکه چي د قصد توقع د هغه چا څخه کيږي چي عقل يې پر ځای وي). او کله چي د ده څخه د قصد توقع نسته. نو د ده طلاق ورکول او نه ورکول سره برابر دي، نو ځکه به يې طلاق نه واقع کيږي، او دا سړی د هغه کس په څير دی چي په چرسو يا په يو دواء (مثلاً په تارياکو) سره يې عقل زائل سوی وي، د هغه طلاق بالاتفاق نه واقع کيږي، نو همداسي به د دې نشه سړي طلاق هم نه واقع کيږي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د دې سړي عقل په داسي سبب سره زائل سوی دی، چي هغه (سبب) ګناه او معصيت دی يعني د شرابو او داسي نورو چيښل، نو د زجر او سزا لپاره او د نورو خلګو د عبرت لپاره حکماً د ده عقل پر ځای (باقي) منل کيږي، نو کله چي حکماً د ده عقل باقي دی، نو د ده د طلاق قصد او اراده به هم صحيح وي، او کله چي يې د طلاق قصد صحيح دی، نو طلاق به يې هم واقع کيږي، همدا وجه ده که يو سړي شراب وچيښي او د هغه په وجه يې پر سر دومره درد سي چي عقل يې زائل سي، نو په دې صورت کي زموږ په نېز هم د هغه طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي په دې صورت کي د هغه عقل زائلېدل د معصيت په وجه سره نه دي، بلکي د سر د درد په وجه دی.

**يادونه**: علامه ثميري (د اثمار الهدايې مصنف) أطال الله عمره فرمايي: غوره خبره دا ده چي زموږ په اوسني زمانه کي د زجر او سزا پر بنياد د سکران (نشه سړي) طلاق واقع نه کړی سي، ځکه أصلاً په اوسني وخت کي د دې ټوله سزا د هغه پر ښځي او کوچنيانو واقع کيږي، ځکه کله چي د هغه ښځه طلاقه سي نو بل واده نه سي پيدا کولای، او کوچنيان ټوله عمر د پلار له سايې څخه محروم او نا قراره وي، او بل طرف ته پلار په فايده کي وي، ځکه چي هغه د دې ښځي د واده سامان خرڅ کړي، عيش او عشرت په کوي، او بل واده هم په وکړي، نو غوره دا ده چي د زجر او توبيخ پر بنياد د نشې په حالت کي طلاق واقع نه کړی سي، لکه څرنګه چي له ځينو احاديثو او آثارو څخه هم د دې خبري ثبوت تر لاسه کيږي. (اثمار الهداية ج:۴، ص:۳۷۱)

**وطلاق الأخرس واقع إلخ:** دويمه مسئله دا ده چې که يو ګونګې او بې خبرو کس خپلې ښځې ته په اشاره سره طلاق ورکړي، نو د هغه طلاق واقع کيږي؛ ځکه د ګونګې افعال په اشاره سره معهود او متعارف دي. يعني د کومو خلګو سره چې د ده تعلق وي، هغوی د ده په اشارو پوهيږي. او د ده بيع او شراء هم په اشارو سره واقع کيږي، نو څرنګه چې د ده نور اشارتي تصرفات معتبر دي، همداسې به د هغه دا تصرف (طلاق) هم معتبر وي. او بيا د فقهې دا قاعده هم ده چې "الإِشَارَةُ تُقَامُ مَقَامَ الْعِبَارَةِ فِيْ حَقِّ الأُخْرَس" (يعني د ګونګې په حق کې د هغه اشاره د بيان او عبارت قائم مقام ده). د دې مسئلې نور تفصيل به إنشاء الله وروسته ذکر سي.

## د مينځې او آزادې ښځې د طلاق د شمېر بيان

وَطَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ او د مينځې طلاق دوه [عدده] دي حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا هغه که د مينځې خاوند آزاد وي او که غلام وي وَطَلَاقُ الْحُرَّةِ ثَلَاثٌ او د آزادې ښځې طلاق درې [عدد] دي حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْ عَبْدًا هغه که يې خاوند آزاد او که غلام وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: عَدَدُ الطَّلَاقِ مُعْتَبَرٌ بِحَالِ الرِّجَالِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د طلاق عدد [شمېره] د سړيو په حالت [او حيثيت] سره معتبر دی لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: الطَّلَاقُ بِالرِّجَالِ وَالْعِدَّةُ بِالنِّسَاءِ ځکه چې نبي ﷺ فرمايلي دي چې: طلاق د سړيو سره خاص دی او عدت د ښځو سره وَلِأَنَّ صِفَةَ الْمَالِكِيَّةِ كَرَامَةٌ او په دې وجه [هم] چې مالکيت [مالک کېدل] د کرامت صفت دی وَالْآدَمِيَّةُ مُسْتَدْعِيَةٌ لَهَا او آدميت [انسان کېدل] د هغه [صفت] تقاضا کوي وَمَعْنَى الْآدَمِيَّةِ فِي الْحُرِّ أَكْمَلُ او مفهوم د آدميت په آزاد کې ډېر کامل دی فَكَانَتْ مَالِكِيَّتُهُ أَبْلَغَ وَأَكْثَرَ نو د هغه مالک کېدل به [هم] بليغ [پوره] او زيات وي انو ځکه به په طلاق کې د آزاد اعتبار کيږي] وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام [2]: طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ او زموږ دليل د نبي کريم ﷺ [دا] قول دی: د مينځې طلاق دوه [عدده] دي او د هغې عدت دوه حيضه دي وَلِأَنَّ حِلَّ الْمَحَلِّيَّةِ نِعْمَةٌ فِي حَقِّهَا او په دې وجه [هم] چې د محليت حلال کېدل د ښځې په حق کې يو نعمت دی وَلِلرِّقِّ أَثَرٌ فِي تَنْصِيفِ النِّعَمِ او غلامتوب لره د نعمتو په نيمولو کې اثر دی [يعني غلامي د غلام او مينځې په حق کې نعمتونه نيموي] إِلَّا أَنَّ الْعُقْدَةَ لَا تَتَجَزَّأُ خو دا چې په عقد [طلاق] کې تجزی نه کيږي فَتَكَامَلَتْ عُقْدَتَانِ نو ځکه دوه عقدونه [يعني دوه طلاقونه] پوره کړی سول وَتَأْوِيلُ مَا رُوِيَ: أَنَّ الْإِيقَاعَ بِالرِّجَالِ او د امام شافعي د روايت سوي حديث تأويل دا دی: چې د طلاق واقع کول د خلګو سره خاص دي.

**اللغات:** ﴿مُسْتَدْعِيَةٌ﴾ د استفعال د باب مؤنث اسم فاعل دی: تقاضا کونکې، ﴿أَكْمَلُ﴾ ډېر پوره، زيات بشپړ، ﴿تَنْصِيفُ﴾ د تفعيل مصدر دی: نيمول، ﴿نِعَمٌ﴾ جمع د نِعْمَةٌ ده: نعمت.

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، باب ما جاء في عدد طلاق العبد، حديث رقم: ١٤٩٤.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطلاق، باب في سنة طلاق العبد، حديث رقم: ٢١٨٩.

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي په نکاح کې مينځه وي (سړی که آزاد وي او که غلام وي)، هغه ته فقط د دوو طلاقو اختيار سته، او که په نکاح کي يې آزاده ښځه وي، نو هغه ته د دريو طلاقو اختيار سته، لهذا که هغه مينځې ته فقط دوه طلاقه ورکړي، نو مينځه مغلظه کرځي او بالکل د هغه له نکاح څخه وځي، او آزاده ښځه په دريو طلاقو سره مغلظه ګرځي او د هغه له نکاح څخه وځي .

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چې د طلاق تعلق د خاوند سره دی، يعني که خاوند آزاد وي، نو هغه ته د دريو طلاقو اختيار سته او په دريو طلاقه سره د هغه ښځه مغلظه ګرځي (ښځه که آزاده وي، که مينځه وي)، او غلام ته فقط د دوو طلاقو اختيار سته.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: "اَلطَّلَاقُ بِالرِّجَالِ وَالْعِدَّةُ بِالنِّسَاء"، يعني د طلاق مدار پر خلکو دی، او د عدت مدار پر ښځو دی، په دې سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې توګه دليل نيسي چې په دې حديث کي د دوو عليحده جنسونو (سړي او ښځې) سره د دوو عليحده شيانو تقابل راغلی دی، او دا خبره تسليم سوې ده چې عدت د ښځو سره خاص او د ښځو حق دی، او پر دې خبره هم ټوله متفق دي چې په عدت کي د ښځو د حيثيت اعتبار دی، يعني د مينځې عدت دوه حيضه دی، او د آزادې عدت درې حيضه دی، نو د تقابل ثابتولو لپاره به په طلاق کي هم د خلکو د حيثيت اعتبار کيږي، يعني آزاد سړی به د دريو طلاقو مالک وي، او غلام به د دوو طلاقو مالک وي.

**ولأن الخ:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چې طلاق د مالکيت علامت دی (يعني د طلاق ورکول د سړي د مالک کېدلو نښه ده)، او مالک کېدل يو شرافت او د کرامت صفت دی، او په کوم ځا چې کي د آدميت (انسان کېدلو) مفهوم زيات او غالب وي، هغه به د دې صفت زيات مستحق وي، او په آزاد سړي کي د آدميت مفهوم زيات او غالب دی، لهذا کله چې په آزاد کي د آدميت مفهوم زيات دی، نو د کرامت په صفت يعني په مالک کېدلو کي به هم د هغه زيات وي، او هغه به د دريو طلاقو مالک وي، او په غلام کي د آزاد په نسبت دا مفهوم کم دی، نو ځکه به هغه فقط د دوو طلاقو مالک وي.

**زموږ دليل:** دا حديث دی: "طَلَاقُ الأَمَةِ ثِنْتَانِ وعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ"، په دې حديث کي د "الأَمَة" الف لام د جنس لپاره دی (ځکه چې له دې څخه يوه معهوده مينځه مراد نه ده)، نو د حديث معنیٰ دا ده چې د مينځې د ټولو أجناسو طلاق دوه (۲) عدده دی، او د هغوی عدت دوه حيضه دی، نو اوس که موږ د طلاق شمېر د خلکو پر حيثيت موقوف کړو، نو د دې حديث معنیٰ او مفهوم به غلط سي، ځکه چې بيا به د ځينو مينځو طلاق دوه عدده وي، او د ځينو طلاق به درې عدده وي، حالانکي دا د شريعت او د دې حديث خلاف دي، نو ثابته سوه چې په طلاق کي به د ښځو د حيثيت اعتبار کيږي، نه د خلکو.

**ولأن حل المحلية**: زموږ عقلي دليل دا دی چې د ښځې په حق کې دا يو نعمت دی چې هغه د خاوند لپاره حلاله او مباحه ګرځېدلې ده، ځکه چې په دې سره ښځې ته نفقه، خرچه او سکنی حاصلیږي، لېکن د غلامۍ (رقیت) په وجه دا نعمت نيم ګرځي، لکه نور نعمتونه چې هم د غلام او مینځې په حق کې د غلامۍ په وجه نيم پاتې دي، لهذا د مینځې په حق کې فقط يو نيم طلاق راتلل پکار دي، او په يو نيم طلاق سره د هغې مغلظه کېدل پکار دي، خو څرنګه چې طلاق تجزی نه قبلوي يعني نه نيمايي کيږي، نو ځکه به د هغې لپاره دوه طلاقه وي، او په دوو طلاقو سره به مغلظه ګرځي.

**وتأويل إلخ**: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مستدل حديث جواب ورکوي، فرمايي چې د حديث مراد او مطلب هغه نه دی کوم چې امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی، بلکې د حديث صحيح او واضح مطلب دا دی چې د طلاق واقع کول د خلکو په اختيار کې دي او د هغوی سره خاص دي؛ او د دې مطلب د صحيح کېدلو دليل دا دی چې د جاهليت په زمانه کې دا رواج وو چې کله به د يوې ښځې خاوند نا خوښه سو، نو هغه به د خاوند له کوره څخه ووتله، او دا وتل به د هغې له طرفه طلاق شمارل کېدی، لېکن اسلام دا سلسله بنده کړه او د طلاق واقع کول يې د خلکو سره خاص کړل، لهذا په دې حديث سره د امام شافعي دليل نيول صحيح نه دي.

او بل دا چې دا حديث موقوف دی، صاحب د عنايې ليکلي دي چې: "هذا الحديث غريب مرفوعًا. ورواه ابن أبي شيبة في مُصنّفه موقوفًا على ابن عباس"، او داسې حديث د شوافعو په نيز دليل نه سي جوړېدلای. نو معلومه نه ده چې شوافعو ولې په دې حديث سره دليل نيولی دی، د دې پوښتنه به له دوی څخه کوو.

## د غلام د طلاق حکم

| |
|---|
| وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ امْرَأَةً بِإِذْنِ مَوْلَاهُ او کله چې غلام د خپل مالک په اجازه د يوې ښځې سره نکاح وکړي وَطَلَّقَهَا او [بيا] هغې ته طلاق ورکړي وَقَعَ طَلَاقُهُ نو د هغه طلاق واقع کيږي وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ مَوْلَاهُ عَلَى امْرَأَتِهِ او د هغه د مالک طلاق د هغه پر ښځې نه واقع کيږي لِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ حَقُّ الْعَبْدِ ځکه چې ملکيت د نکاح د غلام حق دی فَيَكُونُ الْإِسْقَاطُ إِلَيْهِ دُونَ الْمَوْلَى نو [فقط] هغه به [د دغه ملکيت] د ساقطولو اختيارمن وي، نه مالک. |

**اللغات**: ﴿إِسْقَاط﴾ ساقطول، غورځول.

**تشريح**: د عبارت مطلب دا دی چې که غلام د يوې ښځې سره د خپل مالک په اجازه نکاح وکړي، او بيا د طلاق نوبت راسي، نو غلام د مالک له اجازې څخه پرته ښځې ته طلاق ورکولای سي، ځکه چې د ښځې سره نکاح غلام کړې ده، نه مالک، او د نکاح ملکيت د غلام حق دی، نو د نکاح ساقطولو مالک به هم غلام وي، او فقط هغه ته به د طلاق ورکولو اختيار وي، لهذا که مالک زر (۱۰۰۰) طلاقه هم د غلام ښځې ته ورکړي، نو بيا هم د دوی په نکاح کې هيڅ فرق نه راځي.



# بَابُ إِيقَاعِ الطَّلَاقِ

## (دا) باب د طلاق واقع كولو (په بيان كي) دى

**تشريح:** صاحب د كتاب تر دې مخكې نفسِ طلاق او د هغه ټوله متعلقات بيان كړل، اوس له دې ځاى څخه د طلاق اختيارولو او د طلاق واقع كولو صورتونه او طريقې بيانوي (چې صريح طلاق څنګه وركول كيږي او كنايه طلاق څنګه وركول كيږي او د كوم طلاق لپاره نيت ضروري دى). او دا ښكاره خبره ده چې د هر شي وجود د هغه له وقوع او د هغه له اختيارولو څخه مقدم (مخكې وي). نو غالبًا په همدې وجه صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله مخكې نفسِ طلاق بيان كړى. او اوس د هغه د إيقاع بيان كوي.

### د الفاظو په اعتبار سره د طلاق قسمونه (طلاقِ صريح، طلاقِ كنايه)

الطَّلَاقُ عَلَى ضَرْبَيْنِ: صَرِيحٌ وَكِنَايَةٌ طلاق پر دوه قسمه دى: ① صريح ② او كنايه فَالصَّرِيحُ قَوْلُهُ: أَنْتِ طَالِقٌ، وَمُطَلَّقَةٌ، وَطَلَّقْتُكِ صريح [طلاق] د خاوند [دا] قول دى: ته طلاقه يې، او [تا ته] طلاق دركول سوى دى، او ما تا ته طلاق دركړى دى فَهَذَا يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ نو په دې الفاظو سره طلاقِ رجعي واقع كيږي لِأَنَّ هَذِهِ الْأَلْفَاظَ تُسْتَعْمَلُ فِي الطَّلَاقِ ځكه چې دا الفاظ [فقط] په طلاق كې استعماليږي وَلَا تُسْتَعْمَلُ فِي غَيْرِهِ او [له طلاق څخه بغير] په بل شي كې نه استعماليږي فَكَانَ صَرِيحًا نو [په دې الفاظو سره وركول سوى طلاق] به صريح وي وَأَنَّهُ يُعْقِبُ الرَّجْعَةَ بِالنَّصِّ او د آيت په وجه سره طلاقِ صريح [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي وَلَا يَفْتَقِرُ إِلَى النِّيَّةِ او [طلاقِ صريح] محتاج نه دى ونيت ته لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ لِغَلَبَةِ الِاسْتِعْمَالِ ځكه چې هغه د ډېر استعمال په وجه په طلاق كې صريح دى وَكَذَا إِذَا نَوَى الْإِبَانَةَ او همدارنګه [به رجعت كيږي] كله چې [خاوند] د بائنه كولو نيت وكړي لِأَنَّهُ قَصَدَ تَنْجِيزَ مَا عَلَّقَهُ الشَّرْعُ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځكه كوم شى چې شريعت د عدت پر تېرېدلو معلق كړى خاوند د هغه فوراً نافذولو اراده وكړه فَيُرَدُّ عَلَيْهِ نو [د هغه اراده بېرته] پر ده را واپس كيږي وَلَوْ نَوَى الطَّلَاقَ عَنْ وَثَاقٍ او كه [خاوند] له قيد څخه د خلاصون نيت وكړى لَمْ يُدَنْ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً به [د ده] تصديق نه

کيږي لِأَنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چې دا ظاهر خلاف دي ايمني د ظاهر خلاف نيت وکړی ا وَيُدَيَّنُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى [ليکن د ده] تصديق به کيږي په هغه انيت او معامله] کې کوم چې د ده او د الله په مينځ کې ده لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ ځکه چې اده د داسې معنیٰ نيت کړی دی کوم چې] د ده کلام د هغه احتمال لري وَلَوْ نَوَى بِهِ الطَّلَاقَ عَنِ الْعَمَلِ او که [خاوند] په دې [صريح لفظ] سره له عمل څخه د خلاصون نيت وکړی لَمْ يُدَيَّنْ فِي الْقَضَاءِ وَلَا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى نو نه به قضاء [د هغه] تصديق کيږي او نه فيما بينه و بين الله لِأَنَّ الطَّلَاقَ لِرَفْعِ الْقَيْدِ ځکه چې طلاق د قيد ليري کولو لپاره دی وَهِيَ غَيْرُ مُقَيَّدَةٍ بِالْعَمَلِ او ښځه په عمل سره قيد سوې نه دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ يُدَيَّنُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه [يو] روايت [دا] دی: چې [په دې صورت کې به] فيما بينه وبين الله [د هغه] تصديق کيږي لِأَنَّهُ يُسْتَعْمَلُ لِلتَّخْلِيصِ ځکه چې دا [لفظ د طلاق] د خلاصلولو لپاره استعماليږي.

**اللغات:** ﴿صَرِيْح﴾ څرګند او ښکاره الفاظو والا، ﴿كِنَايَة﴾ کنايت، مبهم او محتمل الفاظو والا. ﴿يُعَقِّبُ﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: عَقَّبَ يُعَقِّبُ تَعْقِيْبًا: يو شی تر بل شي وروسته کول، وروسته راوړل، وروسته ثابتول (مراد ځني دا دی چې طلاق صريح تر ځان وروسته رجعت ثابتوي او طلاق رجعي واقع کوي)، ﴿إِبَانَة﴾ د افعال مصدر دی: بائنه کول، جلا کول، نکاح ختمول. ﴿طَلَاق﴾ خلاصون، خلاصيدل. ﴿تَنْجِيْز﴾ يو کار ژر پوره کول، تلوار کول. ﴿وَثَاق﴾ د "واو" په فتحه او کسره دواړو سره مستعمل دی: زولنې (زولانې)، هغه آله چې د مجرمانو پښو ته اچول کيږي (مراد ځني قيد او پابندي ده)، ﴿تَخْلِيْص﴾ نجات ورکول، خلاصول.

**تشريح:** د طلاق ورکولو دوې طريقې دي: يوه صريحه طريقه ده چې له هغه څخه په ښکاره توګه دا معلومه سي چې خاوند طلاق ورکول غواړي، دې ته طلاقِ صريح وايي، او دويمه طريقه کنايه ده. د کنايه صورت دا دی چې خاوند داسې لفظ استعمال کړي کوم چې دوې (٢) معناوي لري. د يوې معنیٰ په اعتبار سره هغه لفظ پر طلاق دلالت کوي (يعني چې خاوند طلاق ورکول غواړي). او د بلې معنیٰ په اعتبار سره پر طلاق دلالت نه کوي. دې ته طلاقِ کنايه وايي. نو که د طلاقِ کنايه په صورت کې خاوند د طلاق نيت وکړي، يا حالت د دې تقاضا کوي چې خاوند په دې سره طلاق ورکول غواړي. نو په دې صورت کې طلاق واقع کيږي، کنې نه واقع کيږي.

په عبارت کي چي کوم درې الفاظ ذکر سوي دي يعني: أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ مُطَلَّقَةٌ، طَلَّقْتُكِ، دا درې سره الفاظ صريح دي، ځکه چي دغه الفاظ په ښکاره توګه پر طلاق دلالت کوي، او په قرآن کي هم د طلاق لپاره دغه الفاظ استعمال سوي دي، او په دې الفاظو سره فقط طلاقِ رجعي واقع کيږي. يعني په دې الفاظو سره تر طلاق واقع کېدلو وروسته خاوند رجعت کولای سي، دليل دا آيت دی: "اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوْفٍ أَوْ تَسْرِيْحٌ بِإِحْسَانٍ" [سورة البقرة:۲۲۸]، له دې آيت څخه دوي خبري معلوميږي، يوه دا چي طَالِقٌ، مُطَلَّقَةٌ او طَلَّقْتُ صريح دي، ځکه چي په دې آيت کي د "طلاق" لفظ يعني د "ط، ل، ق" ماده استعمال سوې ده، دويمه خبره دا معلومه سوه چي د دې لفظ تر استعمالولو وروسته خاوند رجعت کولای سي، ځکه چي په خپله قرآن ويلي دي "فإمساک بمعروف"، يعني تر دې وروسته انسان ښځه راګرځولای هم سي (يعني رجعت کولای هم سي) او په احسان سره يې پرېښوولای هم سي.

**ولا يفتقر إلخ:** فرمايي چي د طلاقِ صريح په وخت کي يعني په پورتني صريحو الفاظو سره د طلاق ورکولو په وخت کي د نيت ضرورت نسته، لکه څرنګه چي د کنايي الفاظو په نيت کي ضرورت سته، بلکي کله چي هم دا الفاظ د خاوند تر خولې ووځي، نو سمدستي طلاق واقع کيږي؛ ځکه چي نيت ته په کنايي الفاظو کي ضرورت سته، نه په صريحو الفاظو کي، او بل دا چي دا الفاظ عام او په کثرت سره د طلاق د معنیٰ لپاره استعماليږي، نو په دې وجه د طلاق په إيقاع کي نيت ته محتاج نه دي.

**وكذا إذا إلخ:** فرمايي چي که خاوند د مذکوره صريحو الفاظو د استعمالولو په وخت کي د طلاقِ بائن نيت وکړي، نو طلاقِ بائن نه واقع کيږي بلکي طلاقِ رجعي واقع کيږي، ځکه چي شريعت دا حکم کړی دی چي کله عدت ختم سي نو دا ښځه بائنه ګرځي (يعني شرعي حکم دا دی چي تر عدت ختمېدلو وروسته پر دغه ښځي طلاقِ بائن واقع کيږي)، لېکن دلته خاوند په خپل نيت سره اوس (فی الحاله) د ښځي د بائنه کولو کوشش وکړی او د شريعت مخالفت يې وکړی، نو ځکه به د دغه نيت لره هيڅ اعتبار نه وي، بلکي فقط طلاقِ رجعي به واقع کيږي.

**ولو نوى الطلاق عن وثاق إلخ:** د "طلق" د مادې ظاهري معنیٰ ده: ښځي ته طلاق ورکول، او په همدغه معنیٰ سره دا ماده مشهوره ده او خلک يې استعمالوي، ليکن دويمه معنیٰ يې ده: پرېښوول، له قيد او بند څخه خلاصول، دا يې ظاهري معنیٰ نه ده، نو که خاوند "طَلَّقْتُ" وويل، او د ښځي له قيد څخه يې د ځان خلاصولو نيت وکړی، نو څرنګه چي دا يې ظاهري معنیٰ نه ده، نو ځکه به قضاءً (يعني د

تفاوت په توګه او د قاضي په دربار کي) د هغه نيت او خبره نه منل کيږي، بلکي طلاقِ رجعي به واقع کيږي، ليکن څرنګه چي "طلقتُ" د دغه معنیٰ احتمال هم لري (يعني دا يې احتمالي معنیٰ ده)، نو ځکه به دیانتًا "فيما بينه وبين الله" د هغه خبره منل کيږي، او طلاق به نه واقع کيږي.

**ولونوى به الطلاق عن العمل الخ:** او که خاوند په دې مذکوره الفاظو کي د يو لفظ (مثلاً د "أَنْتِ طَالِقٌ") په ذريعه د کار او عمل څخه د خلاصون نيت وکړي، نو د هغه دا نيت به نه قضاءً منل کيږي، او نه ديانتاً؛ ځکه چي د طلاق معنیٰ ده: "له قيد څخه خلاصول"، او "له عمل څخه خلاصول" د هغه معنیٰ نه ده، او نه د دې احتمال لري، نو ځکه به د هغه دا نيت او خبره هيڅ ډول نه منل کيږي، بلکي طلاق به واقع کيږي.

خو حسن بن زياد د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دا نقل کړی دی، چي د هغه نيت خو به قضاءً معتبر نه وي، ليکن ديانتاً به د هغه نيت معتبر وي او ديانتاً به د هغه خبره منل کيږي، ځکه چي د طلاق لفظ د "تخليص" (خلاصولو) په معنیٰ سره استعماليږي، نو "له عمل څخه خلاصون" به هم د دې لفظ احتمالي معنیٰ وي، او اوس موږ ووېل چي د احتمالي معنیٰ د نيت کولو په صورت کي به ديانتاً د هغه خبره منل کيږي، نو ځکه به دلته هم د هغه خبره منل کيږي.

## د "طاء" په سکون سره د "مُطلقة" ويلو حکم

| |
|---|
| **وَلَوْقَالَ: أَنْتِ مُطْلَقَةٌ** بِتَسْكِينِ الطَّاءِ او که [خاوند] ووايي: أَنْتِ مُطْلَقَةٌ د "طاء" په ساکنولو سره لَايَكُونُ طَلَاقًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ نو هغه له نيت څخه بغير طلاق نه ګرځي لِأَنَّهَا غَيْرُمُسْتَعْمَلَةٍ فِيهِ عُرْفًا ځکه چي د: لفظ [مُطْلَقَةٌ] په عرف کي د طلاق په معنیٰ کي مستعمل نه دی فَلَمْ يَكُنْ صَرِيْحًا نو ځکه به [دا لفظ په طلاق کي] صريح نه وي. |

**اللغات:** ﴿تَسْكِيْن﴾ ساکن وېل، سکون ورکول، ﴿عُرْف﴾ رواج، دستور، عادت.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که خاوند د "مُطْلَقَةٌ" پر ځای د طاء په سکون سره د "أَنْتِ مُطْلَقَةٌ" لفظ استعمال کړي، نو په دې صورت کي پر ښځي طلاق نه واقع کيږي؛ او که د طلاق نيت وکړي، نو بيا طلاق واقع کيږي؛ ځکه چي د طلاق د معنیٰ لپاره دا لفظ معهود او متعارف نه دی، يعني په عام عُرف کي دا لفظ د "طاء" په سکون سره د طلاق لپاره نه استعماليږي، بلکي د "طاء" په فتحه او د "لام" په تشديد سره استعماليږي، نو ځکه به صرف د نيت په وخت کي دا لفظ طلاق شمارل کيږي، او له نيت څخه بغير به طلاق نه شمارل کيږي.

## په مذکوره الفاظو سره د واقع کېدونکي طلاق بيان

قَالَ: وَلَا يَقَعُ بِهٖ إِلَّا وَاحِدَةً فرمايي: چې په دې [مذکوره دريو صريحو الفاظو کې په هر يوه] سره نه واقع کيږي مګر يو طلاق وَإِنْ نَوَى أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ که څه هم خاوند له يوه څخه د زياتو [طلاقونو] نيت وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَقَعُ مَا نَوٰى او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د څومره طلاقونو نيت وکړي هغه واقع کيږي [يعني که خاوند په دې الفاظو سره د يوه طلاق نيت وکړي نو يو واقع کيږي او که د دوو يا دريو طلاقونو نيت وکړي نو دوه يا درې واقع کيږي] لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ لَفْظِهٖ ځکه چې "مَا نَوٰى" د خاوند د لفظ احتمالي معنىٰ ده [مطلب دا چې په دغه الفاظو کې هر لفظ د يوه، دوو، او دريو طلاقونو احتمال لري] فَإِنَّ ذِكْرَ الطَّالِقِ ذِكْرٌ لِلطَّلَاقِ لُغَةً ځکه چې د "طَالِقٌ" ذکر کول د لغت په اعتبار سره د "طلاق" ذکر کول دي كَذِكْرِ الْعَالِمِ ذِكْرٌ لِلْعِلْمِ لکه د عالم ذکر کول چې د علم ذکر کول دي وَلِهٰذَا يَصِحُّ قِرَانُ الْعَدَدِ بِهٖ له همدې وجهې د هغه سره عدد يو ځای کول صحيح دي فَيَكُوْنَ نَصَبًا عَلَى التَّفْسِيْرِ نو دا عدد اثْلَاثًا، اثْنَانِ يا داسې نور] به د تمييز پر بناء منصوب وي وَلَنَا: أَنَّهُ نَعْتُ فَرْدٍ او زموږ دليل دا دی: چې الفظ د طَالِقٌ] د واحد صفت دی حَتّٰى قِيْلَ لِلْمُثَنّٰى طَالِقَانِ وَلِلثَّلَاثِ طَوَالِقُ همدا وجه ده چې دوو [طلاق بنځو] ته "طَالِقَانِ" او دريو ته "طَوَالِق" ويل کيږي فَلَا يَحْتَمِلُ الْعَدَدَ نو ځکه به [دا] د عدد احتمال نه لري لِأَنَّهُ ضِدُّهُ ځکه چې عدد د فرد [واحد] ضد دی وَذِكْرُ الطَّالِقِ ذِكْرٌ لِطَلَاقٍ هُوَ صِفَةٌ لِلْمَرْأَةِ او د "طَالِق" ذکر کول د داسې طلاق ذکر کول کوم چې د ښځې صفت دی، نه لَا لِطَلَاقٍ هُوَ تَطْلِيْقٌ نه د هغه طلاق [يعني د هغه طلاق صفت نه دی] کوم چې د "تَطْلِيْق" [طلاق ورکولو] په معنىٰ سره دی وَالْعَدَدُ الَّذِيْ يَقْتَرِنُ بِهٖ نَعْتٌ لِمَصْدَرٍ مَحْذُوْفٍ او هغه عدد کوم چې د "طَالِقٌ" سره متصل دی [هغه] د يو مصدر محذوف صفت دی مَعْنَاهُ: طَلَاقًا ثَلَاثًا چې د هغه مفهوم [دا] دی: "طَلَاقًا ثَلَاثًا" كَقَوْلِكَ أَعْطَيْتُهُ جَزِيْلًا أَيْ إِعْطَاءً جَزِيْلًا لکه ستا دا قول: "أَعْطَيْتُهُ جَزِيْلًا" يعني [ددې مفهوم دا دی] "إِعْطَاءً جَزِيْلًا".

**اللغات:** ﴿مُحْتَمَل لَفْظ﴾ د لفظ احتمالي معنىٰ، ﴿قِرَان﴾ د نصر مصدر دی: يو شی د بل شي سره يو ځای کول (جمع کول)، متصل کول، ﴿نَعْت﴾ صفت، ﴿جَزِيْل﴾ د کَرُم له باب څخه د صفت مشبه صيغه ده: غټ، زيات. د أُعْطَيْتُهُ جَزِيْلًا معنىٰ ده: ما هغه ته غټه تحفه (هديه) ورکړه.

**تشریح:** د "لَا يَقَعُ إِلَّا بِهِ وَاحِدَةٌ" تعلق د مخکني عبارت "فَهٰذَا يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ الرَّجْعِيّ" سره دی کوم چي د باب په شروع کي ذکر سو.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز په صریحو الفاظو سره یعني په "أَنْتِ طَالِقٌ. مُطَلَّقَةٌ. طَلَّقْتُكِ" سره فقط یو طلاق واقع کیږي، که څه هم خاوند د دوو یا له دې څخه د زیاتو طلاقونو نیت کړی وي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي که په دې سره خاوند د هر څو طلاقونو نیت کړی وي، مغومره طلاقونه واقع کیږي، هغه که دوه وي او که درې وي، همدا د امام مالک، امام زفر او په یوه روایت کي د امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

**د امام شافعي دلیل:** د امام شافعي او نورو دلیل دا دی چي په دې دریو سره الفاظو کي دیوه، دوه او درې احتمال سته، مثلاً د "طَالِقٌ" لفظ را واخله، دا د اسمِ فاعل صیغه ده (چي هغه ته د صفت او نعت صیغه هم وایي)، اسم فاعل د مصدر څخه جوړیږي، نو په "طَالِقٌ" کي د "طلاق" مصدر ضرور شامل دی (ځکه چي له همدغه مصدر څخه "طَالِقٌ" جوړ سوی دی)، لکه څرنګه چي په "عَالِمٌ" کي د "علم" مصدر شامل دی (ځکه چي له مصدر څخه هر جوړ سوی لفظ پر مصدر مشتمل وي او مصدر په هغه کي شامل وي)، لنډه دا چي "طَالِقٌ" (او نور دوه الفاظ) پر مصدر مشتمل دي. او مصدر بالاتفاق د عدد احتمال لري، یعني دیوه او د زیاتو یعني د دریو (۳) احتمال لري، همدا وجه ده چي د طَالِقٌ (او نورو الفاظو) سره د عدد (شمېر) ذکر کول صحیح دي، لکه څرنګه چي ویل کیږي "أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا"، "ثَلَاثًا" د تمیز پر بناء منصوب دی، او د تمیز کار دا دی چي په کوم لفظ کي څو احتماله وي، تمیز په هغوی کي یو احتمال متعین کوي، نو کله چي "ثَلَاثًا" د طَالِقٌ تمیز جوړ سو، نو د دې مطلب دا سو چي په طَالِقٌ کي د دریو (۳) او دوو (۲) طلاقو احتمال سته، نو ځکه موږ وایو چي که خاوند د دوو یا دریو طلاقو نیت وکړي، نو د هغه نیت به صحیح وي، ځکه چي د لفظ د احتمالي معنیٰ (محتمل) نیت کول په شریعت کي معتبر دي.

**زموږ دلیل:** دا دی چي لفظ د "طَالِقٌ" نعتِ فرد یعني دیوې ښځي صفت دی، همدا وجه ده چي د دوو ښځو لپاره "طَالِقَان" او د درې ښځو لپاره "طَوَالِق" استعمالیږي، او نعتِ فرد د عدد احتمال نه لري، ځکه چي عدد د فرد ضد دی، او قاعده دا ده چي "الشَّئُ لَا يَحْتَمِلُ ضِدَّه" (یعني هیڅ شی هم د خپل

ضد احتمال نه لري)، نو ځکه به فرد هم د خپل ضد يعني د عدد احتمال نه لري، او په "أَنتِ طَالِقٌ" سره به فقط د يوه طلاق نيت کول صحيح وي.

**وذكر الطلاق إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې طَالِقٌ بېله شکه پر مصدر "طلاق" مشتمل دی، لېکن دا هغه طلاق دی کوم چې فقط د يوې ښځې صفت وي، چې هغه د دوو ښځو لپاره طَالِقَان استعمالېږي، او دا هغه مصدر نه دی کوم چې د تَطْلِيْق (طلاق ورکولو) صفت وي چې هغه د خاوند فعل دی، او د عدد (يعني د ۲ او ۳) احتمال په هغه "طلاق" کي وي کوم چې د تَطْلِيْق په معنیٰ سره وي، نه په هغه "طلاق" کي کوم چې د ښځي صفت وي، لهذا په دې سره به د امام شافعي دليل نيول صحيح نه وي.

**والعدد إلخ:** او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره چې د طَالِقٌ سره د عدد يعني د ثَلَاثًا (تميز) يو ځای کېدل پر دې دلالت کوي چې په طَالِقٌ کي د عدد يعني د ثَلَاثًا (او داسي نورو) احتمال سته او دا د تميز پر بناء منصوب دی، نو د دې جواب ورکوي فرمايي چې د طَالِقٌ سره متصل عدد يعني ثَلَاثًا تميز نه دی، بلکي تر طَالِقٌ وروسته طَلَاقًا مصدر محذوف دی، دا ثَلَاثًا د هغه صفت دی (او مصدر که مذکور وي او که محذوف وي، د عدد احتمال لري، نو ثلاثًا په خپله تميز نه دی، بلکي د هغه صفت دی)، او دا داسي مثال لري لکه يو څوک چې ووايي: أَعْطَيْتُهُ جَزِيْلًا، نو دا جَزِيْلًا د أَعْطَيْتُ صفت نه دی، بلکي تر أَعْطَيْتُ وروسته عَطَاءً مصدر محذوف دی، جَزِيْلًا د هغه مصدر صفت دی، خاص همداسي ثَلَاثًا د هغه مصدر صفت دی کوم چې تر طَالِقٌ وروسته محذوف دی، لهذا ثابته سوه چې د عدد (۲ او ۳ طلاقو) احتمال په طَالِقٌ کي نسته (بلکي په طَلَاقًا مصدرِ محذوف دی)، نو ځکه په دې سره به هم د امام شافعي دليل نيول صحيح نه وي.

## په طلاق ورکولو کي د مصدر ذکر کولو تفصيلي بيان

| وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ الطَّلَاقُ أَوْ أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ أَوْ أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا او که [خاوند] ووايي: أَنْتِ الطَّلَاقُ يا أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاق يا أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ أَوْ نَوَى وَاحِدَةً أَوْ ثِنْتَيْنِ نو که د هغه هيڅ نيت نه وي يا د يوه يا دوو طلاقو نيت وکړي فَهِيَ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو دا يو طلاق رجعي دی وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا او که درېو [طلاقو] نيت وکړي فَثَلَاثٌ نو [بيا] درې دی [يعني درې طلاقه واقع کېږي] وَوُقُوْعُ الطَّلَاقِ بِاللَّفْظَةِ الثَّانِيَةِ |
|---|

وَالثَّالِثَةِ ظَاهِرٌ او په اول او دريم لفظ سره د طلاق واقع کېدل خو ښکاره دي لِأَنَّهُ لَوْ ذَكَرَ النَّعْتَ وَحْدَهُ ځکه که هغه يوازې صفت [اسم فاعل] ذکر کړي يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ نو [هم] په هغه سره طلاق واقع کيږي فَإِذَا ذَكَرَهُ وَذَكَرَ الْمَصْدَرَ مَعَه لهذا کله چې صفت ذکر کړي او د هغه سره مصدر [هم] ذکر کړي وَأَنَّهُ يَزِيْدُهُ وَكَادَةً حال دا چې مصدر په صفت کې تأکيد [نور هم] زياتوي أَوْلَى نو [په هغه سره] به په درجه اولىٰ [طلاق واقع کيږي] وَأَمَّا وُقُوْعُهُ بِاللَّفْظَةِ الْأُوْلَى فَلِأَنَّ الْمَصْدَرَ قَدْ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ الاِسْمُ او په اول لفظ سره د طلاق واقع کېدل په دې وجه دي چې کله مصدر ذکر کړی سي او له هغه ځخه اسم فاعل مراد کړی سي يُقَالُ: رَجُلٌ عَدْلٌ: أَيْ عَادِلٌ ويل کيږي: رَجُلٌ عَدْلٌ يعني عَادِلٌ فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ نو (أَنْتِ الطَّلَاقُ) داسې سو لکه د هغه [دا] قول: أَنْتِ طَالِقٌ لېنې هغه د أَنْتِ طَالِقٌ ويلو په درجه کې سو] وَعَلَى هٰذَا لَوْ قَالَ: أَنْتِ طَلَاقٌ يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ أَيْضًا او همداسې [يعني د همدغه قاعدې مطابق] که خاوند ووايي: أَنْتِ طَلَاقٌ نو په دې سره هم طلاق واقع کيږي وَلَا يَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى النِّيَّةِ او په دې کې هغه نيت ته محتاج نه دی [يعني په دې کې د هغه لپاره د نيت کولو ضرورت هم نسته] وَيَكُوْنُ رَجْعِيًا او دا به رجعي [طلاق] وي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ صَرِيْحُ الطَّلَاقِ لِغَلَبَةِ الاِسْتِعْمَالِ فِيهِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړي چې د طلاق په معنىٰ کې د کثرتِ استعمال په وجه دا صريح طلاق دی وَتَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ او د دريو [طلاقو] نيت کول هم صحيح دی لِأَنَّ الْمَصْدَرَ يَحْتَمِلُ الْعُمُوْمَ وَالْكَثْرَةَ ځکه چې دمصدر د عموم او کثرت احتمال لري لِأَنَّهُ اسْمُ جِنْسٍ ځکه چې مصدر اسمِ جنس دی فَيُعْتَبَرُ بِسَائِرِ أَسْمَاءِ الْأَجْنَاسِ نو پر نورو اسماء أجناسو به هغه قياسول کيږي فَيَتَنَاوَلُ الْأَدْنَىٰ مَعَ احْتِمَالِ الْكُلِّ نو هغه [مصدر] به د کُل د احتمال سره ادنىٰ لره شامل وي وَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثِّنْتَيْنِ فِيهَا او په دې کې د دوو [طلاقو] نيت کول صحيح نه دي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُوْلُ: إِنَّ الثِّنْتَيْنِ بَعْضُ الثَّلَاثِ هغه فرمايي: چې دوه [طلاقه] د دريو [طلاقو] بعض دي فَلَمَّا صَحَّتْ نِيَّةُ الثَّلَاثِ صَحَّتْ نِيَّةُ بَعْضِهَا ضَرُوْرَةً نو کله چې د دريو [طلاقو] نيت کول صحيح دي نو د دريو د بعض نيت کول به خامخا صحيح وي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: نِيَّةُ الثَّلَاثِ إِنَّمَا صَحَّتْ لِكَوْنِهَا جِنْسًا او موږ وايو: چې د دريو [طلاقو] نيت کول فقط په دې وجه صحيح دی چې هغه اسمِ جنس دی حَتَّى لَوْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ أَمَةً تر دې که

ښځه مينځه وي تَصِحُّ نِيَّةُ الثِّنْتَيْنِ بِاعْتِبَارِ مَعْنَى الْجِنْسِيَّةِ نو د جنسيت د معنیٰ په اعتبار سره د دوو [طلاقو] نيت کول [هم] صحيح دي أَمَّا الثِّنْتَانِ فِي حَقِّ الْحُرَّةِ فَعَدَدٌ ليکن دوه طلاقه د ښځې په حق کې عدد دی وَاللَّفْظُ لَا يَحْتَمِلُ الْعَدَدَ او لفظ د عدد احتمال نه لري وَهٰذَا لِأَنَّ مَعْنَى التَّوَحُّدِ يُرَاعَى فِي أَلْفَاظِ الْوُحْدَانِ او دا [احتمال] ځکه [نه لري] چې په واحدو لفظو کې [فقط] د يوې معنیٰ رعايت کيږي وَذٰلِكَ بِالْفَرْدِيَّةِ أَوِ الْجِنْسِيَّةِ او دا [واحده معنیٰ] يا په فرديت سره [حاصليږي] يا په جنسيت سره وَالْمُثَنّٰى بِمَعْزِلٍ مِنْهُمَا او تثنيه له دې دواړو څخه جلا ده.

**اللغات:** ﴿وَكَادَةً﴾ تأکيد، قوت، ﴿سَائِر﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① ټوله (تمام)، ② پاته (باقي، نور)، ﴿تَوَحُّد﴾ د تفعّل مصدر دی: يو کېدل، ﴿يُرَاعٰى﴾ د مفاعلې مضارع مجهوله ده: رعايت کول، لحاظ کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو خاوند خپلې ښځې ته د أَنْتِ الطَّلَاق يا د أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاق يا أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا په ذريعه طلاق ورکړي، نو په دې دريو سره صورتونو کې پر ښځې يو طلاق رجعي واقع کيږي، هغه که خاوند د يوه طلاق نيت کړی وي او که يې نه وي، او که خاوند هغه په دې سره د دريو طلاقو نيت کړی وي، نو په دې صورت کې درې طلاقه واقع کيږي، خو که هغه په دې سره د دوو طلاقو نيت کړی وي، نو دوه طلاقه نه واقع کيږي، بلکې فقط يو طلاق واقع کيږي.

**ووقوع الطلاق باللفظة إلخ:** صاحب د کتاب فرمايي چې په دويمه او دريمه جمله يعني په أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاق او أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا سره د طلاق واقع کېدل ښکاره او ظاهر دي، ځکه که خاوند فقط د صفت يعني د طَالِقٌ پر ذکر اکتفاء وکړي او د هغه سره مصدر يعني طَلَاقًا زيات نه کړي، نو هم طلاق واقع کيږي، ځکه چې طَالِقٌ د طلاق واقع کولو (إيقاع) لپاره له ألفاظ صريحه وو څخه يو لفظ دی، او کله چې هغه د دې صفت (طَالِقٌ) سره مصدر يعني طَلَاقًا هم زيات کړي، نو ښکاره ده چې په دې زياتوب سره په صفت کې نور تأکيد او قوت پيدا کيږي، نو ځکه به په دې جملو سره د طلاق واقع کېدلو حکم کيږي.

پاته سوه اوله جمله يعني په أَنْتِ الطَّلَاق سره د طلاق واقع کېدل، نو د هغه وجه دا ده چې په دې جملې سره هم طلاق واقع کيږي، ځکه چې کله نا کله مصدر ذکر سي او له هغه څخه اسم (فاعل) مراد وي، لکه د رَجُلٌ عَدْلٌ په ويلو سره چې رَجُلٌ عَادِلٌ مراد کيږي، لهذا د خاوند أَنْتِ الطَّلَاق ويل به د أَنْتِ طَالِقٌ په درجه کې وي، نو ځکه به په دې جمله سره هم طلاق واقع کيږي.

**وعلى هٰذا إلخ**: اوس دا قاعده تېره سوه چي كه خاوند مصدر ذكر كړي نو هغه د اسمِ (فاعل) په درجه ګرځي او طلاق واقع كيږي، نو كه خاوند فقط أَنْتِ طَلَاقٌ ووايي يعني مصدر په الف لام سره معرفه نه ووايي، بلكي نكره يې استعمال كړي، نو بيا هم يو طلاقِ رجعي واقع كيږي. ځكه چي دا هم د اسمِ (فاعل) په معنیٰ سره دی. او په دې كي د نيت ضرورت هم نه سته. ځكه چي د طلاقِ په معنیٰ كي د كثرتِ استعمال په وجه دا لفظ (طلاق) صريح ګرځېدلی دی.

**وتصح نية إلخ**: پورته چي كومي جملې ذكر سوې ، كه په دوی كي په هره جمله سره خاوند د دريو طلاقو نيت وكړي. نو درې طلاقه واقع كيږي. ځكه چي په دوی ټولو كي مصدر ذكر سوی دی (يعني اَلطَّلَاق. طَلَاقًا او طَلَاقٌ)، او په مصدر كي قاعده دا ده چي هغه خو يوه فرد ته (يعني يوه طلاق ته) خامخا شامل وي، او د عموم او كثرت احتمال هم لري، ځكه چي مصدر اسم جنس دی. او اسمِ جنس هغه اسم ته وايي كوم چي كُل (يعني ټولو افرادو) ته شامل وي (او د ښځي په حق كي درې طلاقه كُل دی). لهذا څرنګه چي په نورو اسماءِ جنس كي د كثرت او عموميت احتمال سته. همداسي به په دې مصدر (اَلطَّلَاق. طَلَاقًا او طَلَاقٌ) كي هم وي. خلاصه دا چي دا مصدر به د كُل (ثلاث) د احتمال سره ادنیٰ (يوه) ته شامل وي (يعني دا مصدرونه خو يوه طلاق ته بالكل شامل دي. او د اسمِ جنس كېدلو په وجه به د دريو طلاقو (كُل) احتمال هم لري. او مخكي موږ ووېل چي د لفظ د احتمالي نيت كول په شريعت كي معتبر دي).

او كه خاوند په دې جملو سره د دوو طلاقو نيت وكړي، نو زموږ په نېز صحيح نه دي. لېكن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې جملو سره د دوو طلاقو نيت هم صحيح دی. د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دوه طلاقه د دريو جزء دی، نو كله چي د دريو طلاقو (كُل) نيت صحيح دی. نو د هغه د جزء نيت به هم صحيح وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي د دريو طلاقو نيت كول فقط په دې وجه صحيح دی چي مصدر اسمِ جنس دی، او جنس فقط د كُل احتمال لري، نو كه د يو چا ښځه مينځه وي، نو هغه په دې جملو سره د دوو طلاقو نيت هم كولای سی، ځكه چي د مينځي په حق كي دوه طلاقه كُل دی. لېكن د آزادي ښځي په حق كي درې طلاقه كُل دی، او دوه طلاقه د آزادي ښځي د جنس كُل نه دی. بلكي دوه خو (د هغې په حق كي) فقط عدد دی، ځكه چي د اسمِ جنس (مصدر) دوه فرده دي: ① فردِ حقيقي. ② فردِ حكمي، دلته فردِ حقيقي يو طلاق دی، او فردِ حكمي كُل يعني درې طلاقه دي. نو دوه نه فردِ حقيقي سو او نه فردِ حكمي. لهذا د اسمِ جنس د دې قاعدې په وجه به په پورتني مصدرونو كي يا د فردِ

حقيقي (يوه طلاق) نيت كول صحيح وي، يا به د فردِ حكمي (دريو طلاقونو) نيت كول صحيح وي، او د دې دوو ترمينځ دبل عدد نيت كول د دې قاعدې او أصل خلاف دي، نو ځكه موږ وايو چې په دې جملو سره به د دوو طلاقو نيت صحيح نه وي، بلكي په دې سره به يو، يا درې طلاقه واقع كيږي.

**وهذا لأن إلخ**: په دې سره دويم دليل او د مصدر قاعده بيانوي، حاصل يې دا دی چې دا مصدرونه په دې وجه هم د عدد (يعني د دوو طلاقونو) احتمال نه لري، چې مصدر له الفاظِ وحدان (واحدو لفظو) څخه دی، او په الفاظ وحدان كي د توحّد يعني د يوې معنیٰ رعايت كيږي، او توحّد (يوه معنیٰ) يا په فرديتّ سره حاصليږي، يا په جنيست سره، يعني مصدر به فقط يوه فرد ته شامل وي يا به جنس ته شامل وي، او تثنيه له فرديت او جنسيت څخه نه ده، بلكي يو مستقل عدد دی، نو ځكه به په مصدر (او پورتنيو جملو) كي د هغه هيڅ گنجايش نه وي.

## د بنځي بدن او اندامو ته د طلاق د نسبت كولو تفصيلي بيان

**وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ** او كه [خاوند بنځي ته] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاق **فَقَالَ: أَرَدْتُ بِقَوْلِي طَالِقٌ وَاحِدَةً وَبِقَوْلِي الطَّلَاقَ أُخْرٰى** او [بيا] ووايي چې: ما په خپل دې قول طَالِقٌ سره د يوه طلاق اراده وكړه او په خپل دې قول الطَّلَاق سره مې د دويم طلاق اراده وكړه **يُصَدَّقُ** نو [د هغه] تصديق به كيږي **لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَالِحٌ لِلْإِيقَاعِ** ځكه چې په دې دواړو كي هر يو [لفظ] د طلاق واقع كولو صلاحيت لري **فَكَأَنَّهُ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَطَالِقٌ** نو گواكي هغه وويل: أَنْتِ طَالِقٌ وَطَالِقٌ **فَتَقَعُ رَجْعِيَّتَانِ** نو به دوه طلاقه رجعي واقع كيږي **إِذَا كَانَتْ مَدْخُولًا بِهَا** [په دې شرط] چې كله بنځه مدخول بها وي **وَإِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلٰى جُمْلَتِهَا** او كه [خاوند] د مجموعه [ټولي] بنځي وطرف ته طلاق منسوب كړي **أَوْ إِلٰى مَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنِ الْجُمْلَةِ** يا [طلاق منسوب كړي] د داسي جزء وطرف ته چې په هغه سره له مجموعه [ټولي بنځي] څخه تعبير كيږي **وَقَعَ الطَّلَاقُ** نو طلاق واقع كيږي **لِأَنَّهُ أُضِيفَ إِلٰى مَحِلِّهِ** ځكه چې [دلته] طلاق د خپل محل وطرف ته منسوب كړی سوی دی **وَذٰلِكَ مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ: أَنْتِ طَالِقٌ** او دا د ټوله بنځي وطرف ته يا د يو جزء وطرف ته منسوبه كول] داسي دي لكه [خاوند] چې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ **لِأَنَّ التَّاءَ ضَمِيْرُ الْمَرْأَةِ** ځكه چې تاء [مكسوره] د بنځي ضمير دی [نو له دې څخه به ټوله بنځه مراد وي] **أَوْ يَقُوْلَ: رَقَبَتُكِ طَالِقٌ أَوْ عُنُقُكِ طَالِقٌ أَوْ رَأْسُكِ طَالِقٌ** يا [لكه خاوند چې] ووايي: ستا غاړه [پر ما] طلاق ده

يا ستا سر [پر ما] طلاق دی أَوْ رُوْحُكِ أَوْ بَدَنُكِ أَوْ جَسَدُكِ أَوْ فَرْجُكِ أَوْ وَجْهُكِ يا ستا روح، يا ستا بدن، يا ستا جسم، يا ستا فرج، يا ستا مخ [پر ما طلاق دي، نو په دې صورتونو کې هم طلاق واقع کيږي] لِأَنَّهُ يُعَبَّرُ بِهَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ ځکه چې په دې [اندامونو] سره له ټوله بدن څخه تعبير کيږي أَمَّا الْجَسَدُ وَالْبَدَنُ فَظَاهِرٌ جسم او بدن خو ښکاره دي [چې له ټوله بدن څخه تعبير په کيږي] وَكَذَا غَيْرُهُمَا او همدارنګه له دې دواړو څخه بغير [نور هم ښکاره دي چې له ټوله بدن څخه تعبير په کيږي] قَالَ اللهُ تَعَالَى فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ [النساء: ٩٢] [ځکه] الله تعالىٰ فرمايلي دي: فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ [يوه غاړه آزادول] وَقَالَ: فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ [الشعراء: ٤] او [بل ځای] يې فرمايلي دي: فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِينَ [نو دوی به غاړې هغه [د قدرت دليل] ته کښيښودي] وَقَالَ[1] الطَّيْلاً: لَعَنَ اللهُ الْفُرُوجَ عَلَى السُّرُوجِ او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: لعنت دي وي د الله له طرفه پر هغه فروجو [شرمګاوو] کوم چې پر زين وي [يعني هغه ښځې چې پر زينو سپريږي] وَيُقَالُ: فُلَانٌ رَأْسُ الْقَوْمِ وَوَجْهُ الْعَرَبِ او ويل کيږي: فلانکی د قوم سر دی او [فلانکی] د عربو مخ دی وَهَلَكَ رُوحُهُ بِمَعْنَى: نَفْسُه او د هغه روح هلاک سو په دې معنیٰ سره: چې د هغه ځان [يعني ټوله انسان هلاک سو] وَمِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ الدَّمُ فِي رِوَايَةٍ او له همدې قبيلې څخه په يو روايت کې دم [وينه] هم ده يُقَالُ: دَمُهُ هَدَرٌ ويل کيږي چې: د هغه وينه ضايع سوه [يعني د هغه خون ضايع سو، بدله يې نه واخيستل سوه] وَمِنْهُ النَّفْسُ او له همدغه [قبيلې] څخه [لفظ د] نفس دی وَهُوَ ظَاهِرٌ او هغه ښکاره دی [چې له ټوله ذات او بدن څخه تعبير په کيږي].

**اللغات:** ﴿يُصَدَّقُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: تصديق کول، په خپله خبره کې رېښتونی ګڼل، تاييد کول، ﴿سُرُوج﴾ جمع د سَرْجٌ ده: ځين، زين (د لرګي او څرمني څخه جوړ ځای کوم چې د انسان د ناستي لپاره د آس په ملا باندي ايښوول کيږي)، ﴿هَدَر﴾ د نصر او ضرب له باب څخه اسم

---

[1] تخريج: تر ډېر لټون وروسته مو هم دا حديث پيدا نه کړی، خو په نصب الرايه او بنايه کې د دې په معنیٰ سره يو دا حديث ذکر سوی دی: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنْ ذَوَاتِ الْفُرُوجِ أَنْ يَرْكَبْنَ السُّرُوجَ [نصب الراية ج:٣، ص:٢٢٨، البناية ج:٥، ص:٢١]، او په مصنف ابن ابی شيبه کې هم دې ته نژدې يو دغه أثر ذکر سوی دی: حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ قَالَ: حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ مَيْمُونٍ أَبِي عَبْدِ اللهِ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ مُزَاحِمٍ: أَنَّهُ كَرِهَ رُكُوبَ النِّسَاءِ السُّرُوجَ. [مصنف ابن أبی شيبة، رقم: ٢٥٢٥٣]. او پر زين د ښځو سپرېدل په صحيح احاديثو کې د آخري زمانې علامه شمارل سوې ده.

مصدر دی، هَدْر هم راځي: ضايع کېدل، بربادېدل، باطلېدل، دَمُهُ هَدر: "دهغه خون ضايع سو"بلله يې چانه واخيستل، "دهغه وينه معاف ده".

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي، اوله مسئله څه مختصره ده، او په دويمه کي څه تفصيل دی،د اولي مسئلې حاصل دا دی چي که خاوند خپلي ښځي ته ووايي أَنْتِ طَالِقُ الطَّلَاق، او بيا ووايي چي په طَالِقٌ سره زما يو طلاق مراد دی او په الطَّلَاق سره مي دويم طلاق مراد دی، نو دهغه دا خبره به منل کيږي، لهذا که ښځه مدخول بها وي، نو پر هغې دوه طلاق رجعي واقع کيږي، او که مدخول بها نه وي، نو دوه طلاقه نه پر واقع کيږي، بلکي په اول طلاق سره بائنه کرځي، او دويم طلاق لغو کيږي.

په دې صورت کي د خاوند د خبري د منلو وجه او دليل دا دی چي طَالِقٌ او الطَّلَاق دواړه د إِيْقَاع يعني د طلاق واقع کولو صلاحيت لري، ځکه چي يوه د اسمِ فاعل صيغه ده، او بله د مصدر صيغه ده، نو په دې وجه به دواړو ته خپل عمل ورکول کيږي، او په هر يوه سره د طلاقِ رجعي واقع کېدلو وجه دا ده چي دا هر يو لفظ صريح دی (او د باب په شروع کي موږ ووېل چي په لفظ صريح سره يوطلاق رجعي واقع کيږي، او دلته هغه دوه صريح لفظونه ويلي دي او په هريوه سره يې د يوه طلاق نيت کړی دی، نو ځکه به دوه طلاقِ رجعي واقع کيږي).

**وإذا اضاف الطلاق إلخ:** د دويمي مسئلې حاصل دا دی چي که خاوند د ښځي ټوله بدن ته طلاق منسوب کړي يا د ښځي يو داسي اندام ته طلاق منسوب کړي چي په هغه له ټوله بدن څخه تعبير کيږي (يعني له هغه اندام څخه ټوله بدن مراديږي)، نو په دې دواړو صورتونو کي طلاق واقع کيږي، مثلاً که هغه ووايي: أَنتِ طَالِقٌ، نو په دې سره طلاق واقع کيږي ځکه چي په دې کي د ضمير تاء ټولي ښځي ته راجع ده او په دې سره د هغې ټوله جسم ته طلاق منسوب سوی دی، همداسي د رَقَبَتُكِ طَالِقٌ يا بَدَنُكِ طَالِقٌ يَا عُنُقُكِ طَالِقٌ او د داسي نورو الفاظو په ويلو سره هم طلاق واقع کيږي، ځکه چي په دې ټولو الفاظو کي طلاق يو داسي اندام ته منسوب سوی دی چي په هغه سره د انسان ټوله ذات او جسم مراديږي، مثلاً د رقبې او غاړي څخه د انسان ټوله ذات او جسم مراديږي، لکه دغه آيت چي د دې ګواهي ورکوي: "وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ" (يعني کي يو څوک په خطاء سره يو مسلمان قتل کړي نو پر هغه يوه رقبه يعني يو پوره غلام آزادول ضروري دي)، په دې آيت کي له رَقَبَة څخه د غلام ټوله ذات مراد دی، ځکه چي په ناقص غلام سره کفاره نه اداء کيږي، او په عُنُق

سره د ټوله ذات او جسم مرادېدل په دې آیت سره ثابت دي "فَظَلَّتْ أَعْنَاقُهُمْ لَهَا خَاضِعِيْن"، په دې آیت کې له أَعْنَاق څخه مراد ذَوَات (أَشخاص) دي، همدا وجه ده چې په صفت کې یې خَاضِعِیْن ذکر سوی دی (کنې د غیرِ ذوی العقول کېدلو په صورت کې به یې صفت خَاضِعَةٌ ذکر کېدلای).

همدارنګه له فرج څخه د ټوله جسم مرادېدل په دې حدیث سره ثابت دي: "لَعَنَ اللهُ الفُرُوْجَ عَلَى السُّرُوْجِ"، په دې حدیث کې له الفُرُوْج څخه مراد ښځې دي، ځکه چې لعنت پر فرج نه کېږي، بلکې پر فرج لرونکي باندې کېږي، همدارنګه په عربي محاوره (خبرو اترو) کې ویل کېږي: فُلَان رَأْسُ القَوْمِ (فلانکی د قوم سردار دی)، فُلَان وَجْهُ العَرَب (فلانکی د عربو مخ دی [یعني د عربو د مخ سری دی])، همدارنګه ویل کېږي: هَلَكَ رُوْحَهُ (روح یې هلاک سو)، او ګورئ! په دې مثالو کې فقط په یوه اندام (رَأْس، وَجْه، رُوْح) سره د انسان ټوله جسم او ذات مراد کړی سوی دی (لکه په پښتو محاوره کې چې هم په دې اندامونو سره د انسان ټوله ذات او شخصیت مرادېږي).

ومن هذا القبیل إلخ: فرمايي چې په یوه روایت کې "دَم" (وینه) هم له دغه قبیلې څخه ده، یعنې د "دَم" په ویلو سره ټوله ذات مرادېږي، لکه څرنګه چې ویل کېږي: دَمُهُ هَدَرٌ (د هغه وینه معاف ده) یعني هغه به نه وژل کېږي (لهذا که خاوند ښځې ته ووايي: دَمُكِ طَالِقٌ نو په دې سره هم هغه طلاقېږي)، همدارنګه له "نَفْس" څخه هم ټوله انسان او د هغه ذات مرادېږي؛ لنډه دا چې په دغه مذکوره ټولو الفاظو سره د انسان پوره بدن او ټوله ذات مرادېږي، لهذا که خاوند په دوی کې هر یوه ته طلاق منسوب کړي، نو طلاق واقع کېږي.

## د مشترک جزء (جزءِ شائع) و طرف ته د طلاق د نسبت کولو بیان

وَكَذَلِكَ او همدارنګه [طلاق واقع کېږي] إِنْ طَلَّقَ جُزْءًا شَائِعًا مِنْهَا که چیرې [خاوند] د ښځې جزءِ شائع ته طلاق ورکړي مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ نِصْفُكِ أَوْ ثُلُثُكِ طَالِقٌ مثلاً ووايي: ستا نیمه حصه یا ستا دریمه حصه [پر ما] طلاقه ده لِأَنَّ الشَّائِعَ مَحَلٌّ لِسَائِرِ التَّصَرُّفَاتِ ځکه چې جزءِ شائع د ټولو تصرفاتو محل دی كَالْبَيْعِ وَغَيْرِهِ لکه بیع او داسې [تصرفات] فَكَذَا يَكُوْنُ مَحَلًّا لِلطَّلَاقِ نو به هغه [جزءِ شائع] محل د طلاق [هم] وي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ فِي حَقِّ الطَّلَاقِ خو دا چې [جزءِ شائع] د طلاق په حق کې نه متجزي کېږي فَيَثْبُتُ فِي الْكُلِّ ضَرُوْرَةً نو د ضرورت پر بناء به په ټوله بدن کې ثابتېږي.

اللغات: ﴿شَائِع﴾ د ضرب له باب څخه اسم فاعل دی، د دې لفظ دوې معناوې دي: ① خپور او نشر سوی، ② مشترک، لکه په عربي کې چې ویل کېږي: سَهْمٌ شَائِعٌ: مشترکه حصه (کوم چې تقسیم

نه قبلوي)، ﴿لَا يَتَجَزَّأُ﴾ د تفعّل له باب څخه د نفي صيغه ده: حصه حصه کېدل، ټوکره ټوکره کېدل، تقسمېدل.

**تشريح:** داسي جزء کوم چي په ټوله بدن کي او د بدن په هر اندام کي صادقيږي (او په هر اندام کي شائع وي)، هغه ته "جزءِ شائع" وايي لکه نصف، ثلث، ربع. اوس نصف را واخله د انسان په ټوله بدن کي هم صادقيږي او په هر اندام کي هم صادقيږي، ځکه چي بدن هم نصف (نيمه حصه) لري، او هر اندام مثلاً لاس هم نصف (نيمه حصه) لري پښه هم نصف حصه لري (لنډه دا چي نصف په ټوله بدن او د بدن په هر اندام کي شائع دی)، همدارنګه ثلث (دريمه حصه) او ربع (څلورمه حصه) هم په ټوله بدن او هر اندام کي صادقيږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند ښځي ته ووايي: (پر ما) ستا دريمه حصه طلاقه ده، يا ستا نيمه حصه طلاقه ده، نو طلاق واقع کيږي، ځکه چي جزءِ شائع د ټولو تصرفاتو (بيع او داسي نورو) محل دی، نو هغه به د طلاق محل هم وي (مثلاً په بيع او شراء کي نيمه حصه او دريمه حصه خرڅول کيږي او رانيول کيږي، نو طلاق به هم پر نيمه او دريمه حصه واقع کېدای سي)، خو څرنګه چي طلاق تجزی او تقسيم نه قبلوي (يعني نيمايي کېدلای نه سي، بلکي پوره واقع کيږي)، نو ځکه به د ښځي نصف او ثلث (يعني نيمه او دريمه حصه) د هغې په ټوله بدن کي سرايت کوي او د هغې په ټوله حصه او بدن کي به طلاق ثابتيږي.

## د غيرِ مشترک جزء (جزء غيرِ شائع) و طرف ته د طلاق د نسبت کولو بيان

وَلَوْ قَالَ: يَدُكِ طَالِقٌ أَوْ رِجْلُكِ طَالِقٌ او که [خاوند] ووايي: يَدُكِ طَالِقٌ يا رِجْلُكِ طَالِقٌ لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ نو طلاق نه واقع کيږي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: يَقَعُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي واقع کيږي وَكَذَا الْخِلَافُ فِي كُلِّ جُزْءٍ مُعَيَّنٍ لَا يُعَبَّرُ بِهِ عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ او همدا اختلاف پر هغه معين جزء کي دی چي په هغه له ټوله بدن څخه تعبير کېدای نه سي لَهُمَا: أَنَّهُ جُزْءٌ مُسْتَمْتَعٌ بِعَقْدِ النِّكَاحِ د دوی دليل دا دی: چي د عقدِ نکاح په وجه له دې جزء څخه فايده اخيستل کيږي وَمَا هٰذَا حَالُهُ يَكُونُ مَحَلًّا لِحُكْمِ النِّكَاحِ او د کوم [جزء] چي [هم] دا حالت وي نو هغه به د نکاح د حکم محل وي فَيَكُونُ مَحَلًّا لِلطَّلَاقِ نو د طلاق محل به هم وي فَيَثْبُتُ الْحُكْمُ فِيهِ قَضِيَّةً لِلْإِضَافَةِ نو اضافت [نسبت کولو] د اقتضاء په خاطر به په دې کي حکم ثابت وي ثُمَّ يَسْرِي إِلَى الْكُلِّ بيا به د ټوله بدن وطرف ته سرايت کوي كَمَا فِي الْجُزْءِ الشَّائِعِ لکه څرنګه چي په جزءِ شائع کي کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أُضِيفَ إِلَيْهِ النِّكَاحُ په خلاف د

هغه [صورت] کله چې د متين جزء وطرف ته نکاح منسوبه کړی سي لِأَنَّ التَّعَدِّيَ مُمْتَنِعٌ ځکه [په دې صورت کې] تعدی [سرايت کول] نا ممکن دي إِذِ الْحُرْمَةُ فِي سَائِرِ الْأَجْزَاءِ تَغْلِبُ الْحِلَّ فِي هٰذَا الْجُزْءِ ځکه چې په اجزاؤ [اندامو] کې حرمت د دې جزء پر حالت غالب کيږي وَفِي الطَّلَاقِ الْأَمْرُ عَلَى الْقَلْبِ او په طلاق کې معامله د دې برعکس ده وَلَنَا: أَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى غَيْرِ مَحِلِّهِ او زموږ دليل دا دی: چې [خاوند] د غير محل وطرف ته د طلاق نسبت وکړی فَيَلْغُو نو به لغوه وي كَمَا إِذَا أَضَافَهُ إِلَى رِيقِهَا أَوْ ظُفُرِهَا لکه [په هغه صورت کې چې لغوه کيږي] کله چې طلاق د ښځې د ناوړو يا نوک وطرف ته منسوب کړي وَهٰذَا لِأَنَّ مَحَلَّ الطَّلَاقِ مَا يَكُونُ فِيهِ الْقَيْدُ او دا [حکم] ځکه [دی] چې محل د طلاق هغه [جزء او اندام] وي چې په هغه کې [د نکاح] قيد موجود وي لِأَنَّهُ يُنْبِئُ عَنْ رَفْعِ الْقَيْدِ ځکه چې طلاق د قيد پورته کولو خبر ورکوي [يعني د طلاق معنیٰ همدغه نکاحي قيد ختمول دي] وَلَا قَيْدَ فِي الْيَدِ او په نکاح کې هيڅ قيد نسته وَلِهٰذَا لَا تَصِحُّ إِضَافَةُ النِّكَاحِ إِلَيْهِ له همدې وجه د هغه وطرف ته منسوبه کول صحيح نه دي بِخِلَافِ الْجُزْءِ الشَّائِعِ لِأَنَّهُ مَحَلٌّ لِلنِّكَاحِ عِنْدَنَا په خلاف د جزء شائع، ځکه چې هغه زموږ په نېز د نکاح محل دی حَتّٰى تَصِحَّ إِضَافَتُهُ إِلَيْهِ حتیٰ چې د هغه وطرف ته د نکاح نسبت کول صحيح دي فَكَذَا يَكُونُ مَحَلًّا لِلطَّلَاقِ نو همداسې به هغه د طلاق محل [هم] جوړيږي وَاخْتَلَفُوا فِي الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ او د ملا او نس په باره کې [فقهاؤ] اختلاف کړی دی وَالْأَظْهَرُ: أَنَّهُ لَا يَصِحُّ او ظاهر قول دا دی: چې [په دې سره طلاق] نه صحيح کيږي [يعني نه واقع کيږي] لِأَنَّهُ لَا يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنْ جَمِيعِ الْبَدَنِ ځکه چې د دې دواړو په ذريعه له ټوله بدن څخه تعبير نه کيږي [يعني په عُرف کې د نس يا ملا په ذکر سره ټوله بدن نه مراديږي].

**اللغات:** ﴿لَا يُعَبَّرُ﴾ د تفعيل له باب څخه د نفي مجهول صيغه ده: تعبيرول، مطلب بيانول، څرګندول، د زړه خبره ښکاره کول، مرادول. ﴿مُسْتَمْتَعٌ﴾ د استفعال د باب اسم مفعول دی: هغه شی چې فايده ځنې اخيستل کيږي. ﴿قَضِيَّةٌ﴾ د تقاضا په وجه سره. ﴿رِيق﴾ ناړي، د خولې لاړې. ﴿ظُفُرٌ﴾ ظُفْرٌ. ظِفْرٌ: نوک، جمع: أَظْفَار، جمع الجمع: أَظَافِيْر.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند طلاق د ښځې د لاس يا د پښې و طرف ته منسوب کړي او داسې ووايي: يَدُكِ طَالِقٌ يا رِجْلُكِ طَالِقٌ، نو په دې صورت کې زموږ په نيز طلاق نه واقع کيږي، لېکن د امام زفراو امام شافعي او نورو په نيز طلاق واقع کيږي، همدا اختلاف د بدن په هر هغه متعين جزء (مثلاً ګوته، وربښتان او داسې نورو) کې دی چې له هغه څخه د انسان ټوله بدن نه مرادېږي، امام زفر او امام شافعي (همدارنګه امام مالک او امام احمد) په دې سره طلاق واقع کوي، اوموږيې نه واقع کوو.

**دليل: لهما إلخ:** د امام زفر او امام شافعي د دليل حاصل دا دی چې د نکاح په ذريعه د خاوند لپاره د ښځې له دغه (متعين) اندام څخه فايده اخيستل حلال سوي دي (يعني تر نکاح وروسته خاوند د ښځې له دغه متعين جزء او اندام مثلاً لاس، پښه، وربښتان او داسې نورو څخه استفاده کولای سي)، لهذا خاوند به په طلاق ورکولو سره دا (اندام) حرامولای هم سي، نو هغه (اندام) محل د طلاق سو، لهذا کله چې پر هغه اندام طلاق واقع سي، نو له هغه څخه په ټوله بدن کې سرايت کوي او د ښځې پر ټوله بدن طلاق واقع کيږي، لکه څرنګه چې په جزء شائع کې داسې کيږي، نو ځکه به د لاس او پښې يا د يو بل متعين اندام په ذکر کولو سره هم طلاق واقع کيږي.

دويم دليل دا دی چې د نکاح په وجه سره د ښځې په ټوله بدن کې حلت راغلی دی، او په طلاق ورکولو سره فقط په يو اندام کې حرمت راغلی، او قاعده دا ده چې د حلت او د حرمت د تقابل په وخت کې ترجيح حرمت لره وي او حرمت غالب کيږي، نو ځکه به د طلاق په وجه ديوه اندام په حرمت سره د ټولو اندامونو حلت ختميږي، او طلاق به واقع کيږي.

**بخلاف إلخ:** دا د امام شافعي او امام زفر له طرفه ديو مقدر سوال جواب دی، پر هغو دا سوال کيږي چې کله ستاسو په نيز پر يو متعين اندام د طلاق په واقع کېدلو سره هغه په ټوله بدن کې سرايت کوي او ټوله ښځه مطلقه ګرځي، نو همداسې پر يو متعين اندام په نکاح کولو سره هم بايد د ټولې ښځې سره نکاح وسي (مثلاً که خاوند ووايي نَكَحْتُ بِيَدِكِ، نو بايد د هغه د نکاح د ښځې سره صحيح سي)، حالانکې دا ستاسو په نيز هم صحيح نه دي!؟

نو د دوی له طرفه جواب دا دی چې که فقط په يوه اندام کې نکاح جائز سي، نو محض په هغه اندام کې به حلت ثابت سي، او په نورو اندامونو کې به تر اوسه لا حرمت پاته وي، او قاعده تېره سوه چې که د حرمت او حلت په مېنځ کې تقابل راسي، نو حرمت غالب کيږي، نو دلته به حرمتُ غالب وي او حلت به مغلوب وي، نو ځکه به ښځه هم حرامه وي، نو په دې وجه د يوه اندام په نکاح د ټولې ښځې سره نکاح نه کيږي، لېکن د يوه لاس په طلاق سره حرمت غالب کيږي، نو ځکه به پر ټولو اندامونو طلاق واقع کيږي.

**زموږ دليل: ولنا أنه إلخ:** زموږ د دليل حاصل دا دی چي طلاق "د نکاح د قيد ختمولو" ته وايي (او د نکاح قيد په هغه اندام کي وي چي په هغه سره د انسان ټوله بدن مراديږي لکه رقبه، روح، سر... داسي اندام محل د نکاح هم وي، يعني د داسي اندام په نکاح د ټولي ښځي سره نکاح کيږي، او داسي اندام محل د طلاق هم وي)، او دا خبره ښکاره ده چي په طلاق سره دا قيد له هغه اندام او هغه جزء څخه ختميږي چيري چي دا قيد موجود وي (يعني چي هغه اندام او هغه جزء د طلاق او نکاح محل وي)، لېکن په کوم اندام او جزء کي چي دا قيد موجود نه وي، نو هلته به څرنګه دا قيد ختم سي!!! (ځکه هلته خو بالکل قيد ستنه نه)، او په دې مسئله کي موږ وينو چي خاوند د داسي اندام (يعني لاس...) و طرف ته طلاق (د نکاح د قيد ختمول) منسوب کړي دي چي هغه د قيد د نشتوالي په وجه د طلاق محل نه دی، او کله چي هغه د طلاق محل نه دی، نو پر هغه (اندام) به څرنګه طلاق واقع سي!!!، لهذا څرنګه چي د ښځي د ناړو (لعاب) يا نوک وطرف ته د طلاق په نسبت کولو سره (يعني د رِيْقُكِ طَالِقٌ او ظَفْرُكِ طَالِقٌ په ويلو سره) د قيد او محل د نشتوالي په وجه طلاق نه واقع کيږي، همداسي به په دې صورت کي هم طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي طلاق د نکاحي قيد ختمولو ته وايي، او لاس او داسي نور اندامونه له دغه قيد څخه بې برخي دي، همدا وجه ده چي د لاس او داسي نورو اندامونو ته د نکاح په نسبت کولو سره نکاح نه کيږي.

د دې په خلاف جزءِ شائع دی، ځکه چي جزء شائع ته (يعني د ښځي نصف يا ثلث ته) د نکاح په نسبت کولو سره نکاح کيږي (يعني جزء شائع محل د طلاق دی)، نو هغه به محل د طلاق هم وي او له هغه څخه به سرايت کوي او پر ټوله بدن به طلاق واقع کيږي.

**واختلفوا إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که خاوند د ښځي نس او ملا ته د طلاق نسبت وکړي (مثلاً ووايي ستا نس پر ما طلاق دی يا ستا ملا پر ما طلاق ده)، نو په دې باره کي د فقهاؤ اختلاف دی، ځيني فقهاء وايي چي په دې سره طلاق واقع کيږي، لېکن ظاهر روايت دا دی چي په دې سره طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي په محاوره کي په نس او ملا سره له ټوله بدن څخه تعبير نه کيږي او په دوی سره د انسان ټوله ذات او بدن نه مراديږي، لهذا دوی هم د يو متعين جزء او اندام په څير سول، نو ځکه به د نس او ملا وطرف ته د طلاق په نسبت کولو سره طلاق نه واقع کيږي.

## د نیم طلاق ورکولو حکم

وَإِنْ طَلَّقَهَا نِصْفَ تَطْلِيقَةٍ أَوْ ثُلُثَهَا او که [خاوند] ښځي ته د يوه طلاق نيمه حصه يا دريمه حصه ورکړي [يعني نيم يا دريمه حصه د طلاق ورکړي] كَانَتْ طَالِقًا تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً نو ښځه به په يوه طلاق سره مطلقه وي لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چي طلاق نه متجزي کيږي [يعني حصه، حصه او ټوکړه، ټوکړه نه ګرځي] وَذِكْرُ بَعْضِ مَا لَا يَتَجَزَّأُ كَذِكْرِ الْكُلِّ او د غير متجزي شيانو د بعض ذکر داسي دی لکه [د هغوی] د کُل ذکر وَكَذَا الْجَوَابُ فِي كُلِّ جُزْءٍ سَمَّاهُ او همدا حکم دی په هر هغه جزء کي کوم چي يې [خاوند] متعين کړي [مثلاً څلورمه حصه، اوومه حصه....] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثَةَ أَنْصَافِ تَطْلِيقَتَيْنِ او که [خاوند] ښځي ته ووايي: ته [پر ما] د دوو طلاقو په دريو نصفو سره طلاقه يې فَهِيَ طَالِقٌ ثَلَاثًا نو هغه په دريو طلاقو سره مطلقه ګرځي لِأَنَّ نِصْفَ التَّطْلِيقَتَيْنِ تَطْلِيقَةٌ ځکه چي د دوو طلاقو نصف يو طلاق کيږي فَإِذَا جَمَعَ بَيْنَ ثَلَاثَةِ أَنْصَافٍ نو کله چي [د دوو طلاقو] دري نصفونه سره جمع کړي تَكُونُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ ضَرُورَةً نو د ضرورت پر بناء دري طلاقه کيږي [ځکه چي طلاق نه متجزي کيږي] وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثَةَ أَنْصَافِ تَطْلِيقَةٍ او که [خاوند داسي ورته] ووايي: ته د يوه طلاق په دريو نصفو سره [پر ما] طلاقه يې قِيلَ: يَقَعُ تَطْلِيقَتَانِ نو يو قول دا دی: چي دوه طلاقه واقع کيږي لِأَنَّهَا طَلْقَةٌ وَنِصْفٌ ځکه چي دا يو نيم طلاق دی فَيَتَكَامَلُ نو [هغه نيم] به [ضرورتاً] پوره کيږي وَقِيلَ: يَقَعُ ثَلَاثُ تَطْلِيقَاتٍ او يو قول دا دی: چي دري طلاقه واقع کيږي لِأَنَّ كُلَّ نِصْفٍ يَتَكَامَلُ فِي نَفْسِهِ ځکه چي هر نصف به بذاتِ خود بشپړ [طلاق] وي فَيَصِيرُ ثَلَاثًا نو به دري طلاقه وګرځي.

**اللغات:** ﴿تَطْلِيقَة﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو وار طلاق ورکول. ﴿يَتَكَامَل﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: پوره کېدل (بشپړ کېدل).

**تشريح:** صاحب د کتاب په دې عبارت کي دري مسئلې بيان کړي دي، لېکن تر تشريح مخکي تاسو په دې خبره ځان پوه کړئ! چي طلاق له هغو شيانو څخه دی کوم چي تجزی او تقسيم نه قبلوي (يعني طلاق جزء جزء او حصه حصه کېدلای نه سي)، او قاعده دا ده چي کوم شی تجزی او

تقسيم نه قبلوي د هغه شي بعض ذكر كول د كُل ذكر لره مستلزم او شامل وي. اوس د مسئلو تشريح ته ګورئ:

(۱)... د اولي مسئلې تشريح دا ده چي كه خاوند ښځي ته نيم طلاق يا دريمه حصه طلاق ور كړي، نو يو طلاق واقع كيږي؛ ځكه چي په طلاق كي تجزى او تقسيم كېدلاى نه سي (يعني هغه حصه . حصه كېدلاى نه سي)، لهذا د هغه د بعض (يعني نصف او ثلث) ذكر كول د كُل د ذكر كولو په څير دي، او د كُل (پوره طلاق) په ذكر كولو سره يو طلاق واقع كيږي، نو د بعض په ذكر كولو سره به هم يو طلاق واقع كيږي.

**وكذا الجواب إلخ:** صاحب د كتاب فرمايي چي همدا حكم او دليل په هر هغه ځاى كي جاري كيږي چيري خاوند په طلاق كي تجزى او تقسيم وكړي، مثلاً خاوند ښځي ته څلورمه حصه طلاق وركړي، يا شپږمه، يا لسمه حصه، يا سلمه حصه... طلاق وركړي، نو په ټولو كي يو طلاق واقع كيږي، ځكه د عدمِ تجزى په وجه د هغه بعض د كُل د ذكر كولو په څير دى.

(۲)... دويمه مسئله دا ده كه خاوند مثلاً ښځي ته د دوو طلاقو دري نصفه طلاق وركړي[1]، نو په دې صورت كي پر ښځي دري طلاقه واقع كيږي او هغه مغلظه بائنه ګرځي؛ ځكه چي دلته خاوند د دوو طلاقو په دري نصفو سره طلاق واقع كړى دى، او د عدمِ تجزى په وجه هر نصف يو طلاق كيږي نو دري نصفه به دري طلاقه وي، او په دريو طلاقو سره ښځه مغلظه بائنه ګرځي، نو په دريو نصفو سره به هم مغلظه بائنه ګرځي او د خاوند لپاره به حراميږي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده كه خاوند ښځي ته ديوه طلاق دري نصفه طلاق وركړي (كوم چي دري دانې نيم طلاقونه كيږي) نو په دې باره كي د فقهاوُ دوه قوله دي: ① ځيني فرمايي چي دوه طلاقه واقع كيږي، ځكه ديوه طلاق دري نصفه (يعني دري دانې نيم طلاقونه) يونيم طلاق كيږي، او په يو نيم طلاق سره دوه طلاقه واقع كيږي (ځكه چي په يوه پوره طلاق سره هم يو طلاق واقع كيږي، او كوم نيم چي پاته سو په هغه سره هم يو طلاق واقع كيږي)، نو ځكه به ديوه طلاق په دريو نصفو سره دوه طلاقه واقع كيږي، دا قول په جامعِ صغير كي له امام محمد څخه هم نقل سوى دى، او علامه عتابي هم دې قول ته صحيح ويلي دي. (فتح القدير، عنايه) ② دويم قول دا دى چي په دې صورت كي هم دري طلاقه واقع كيږي، ځكه خاوند ديوه طلاق دري نصفه (يعني دري دانې نيم طلاقونه) ذكر كړي دي، او د عدمِ تجزى په وجه هر نصف ديوه طلاق په حكم كي دى، نو ځكه به دري طلاقه واقع كيږي.

---

[1] يو طلاق چي نيمايي كړى سي، نو دوه نصفه (يعني دوه دانې نيم طلاقونه) ګرځي. او دوه طلاقه چي نيمايي كړى سي. څلور نصفه (څلور دانې نيم طلاقونه) ګرځي، نو كه خاوند له هغوى څخه دري دانې نيم طلاقونه پر ښځي واقع كړي. نو دري طلاقه واقع

## په طلاق کې د غايت او مغيا ذکر کولو تفصيلي بيان

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ وَاحِدَةٍ إِلَى ثِنْتَيْنِ أَوْ مَا بَيْنَ وَاحِدَةٍ إِلَى ثِنْتَيْنِ او که [خاوند داسي] ووايي: ته له يوه څخه تر دوو [طلاقو] يا د يوه او دوو [طلاقو] په مينځ کي [پر ما] طلاقه يې فَهِيَ وَاحِدَةٌ نو دا طلاق دی [يعني فقط يو طلاق واقع کيږي] وَلَوْقَالَ: مِنْ وَاحِدَةٍ إِلَى ثَلَاثٍ أَوْ مَا بَيْنَ وَاحِدَةٍ إِلَى ثَلَاثٍ او که ووايي: چي [ته] له يوه څخه تر دريو پوري يا د يوه او دريو په مينځ کي [پر ما طلاقه يې] فَهِيَ ثِنْتَانِ نو دا دوه طلاقه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❀ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا: فِي الْأُولَى هِيَ ثِنْتَانِ وَفِي الثَّانِيَةِ ثَلَاثٌ او صاحبين فرمايي: چي په اول صورت کي دوه طلاقه دي او په دويم صورت کي درې طلاقه دي وَقَالَ زُفَرُ: فِي الْأُولَى لَا يَقَعُ شَيْءٌ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په اول صورت کي هيڅ شی [يعني يو طلاق هم] نه واقع کيږي وَفِي الثَّانِيَةِ تَقَعُ وَاحِدَةٌ [خو] په دويم صورت کي طلاق واقع کيږي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی [يعني قياس هم د دې تقاضا کوي] لِأَنَّ الْغَايَةَ لَا تَدْخُلُ تَحْتَ الْمَضْرُوبِ لَهُ الْغَايَةُ ځکه چي په مَضْرُوب لَهُ الْغَايَة [مغيا] کي نه داخليږي كَمَا لَوْقَالَ: بِعْتُ مِنْكَ مِنْ هٰذَا الْحَائِطِ إِلَى هٰذَا الْحَائِطِ لکه [يو څوک] چي ووايي: ما له دې دېوال څخه تر دغه دېواله پوري [ځمکه] پر تا خرڅه کړه [نو دواړه دېوالونه په بيع کي نه داخليږي] وَجْهُ قَوْلِهِمَا وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ او د صاحبينو د قول دليل دا دی او همدا استحسان دی أَنَّ مِثْلَ هٰذَا الْكَلَامِ مَتَى ذُكِرَ فِي الْعُرْفِ يُرَادُ بِهِ الْكُلُّ چي دا ډول کلام چي کله په عُرف کي ذکر سي نو له دې څخه کُل [مجموع] مراديږي كَمَا تَقُولُ لِغَيْرِكَ: خُذْ مِنْ مَالِي مِنْ دِرْهَمٍ إِلَى مِائَةٍ لکه ته چي يو چا ته ووايې: چي له يوه څخه تر سلو درهمو پوري زما له مال [پيسو] څخه واخله [نو له دې څخه ټوله سل درهمه مراديږي] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّ الْمُرَادَ بِهِ الْأَكْثَرُ مِنَ الْأَقَلِّ وَالْأَقَلُّ مِنَ الْأَكْثَرِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په دې [ډول کلام] کي له کم څخه زيات او له زيات څخه کم مراد وي فَإِنَّهُمْ يَقُولُونَ: سِنِّي مِنْ سِتِّينَ إِلَى سَبْعِينَ وَمَا بَيْنَ سِتِّينَ إِلَى سَبْعِينَ لکه څرنګه چي خلک [په خپل مينځ کي] وايي: زما عمر له شپېتو څخه تر اويا

---

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الدر المختار (ج:٢، ص:٢٧٥)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٣٦٥).
[القول الراجح ج:١، ص:٣١١]

[کالو] پوري دی [یا] د شپیتو او اویا په مینځ کي دی وَيُرِيدُونَ بِهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او په دې سره خلک هغه [معنیٰ] مرادوي کوم چي موږ ذکر کړه وَإِرَادَةُ الْكُلِّ فِيمَا طَرِيقُهُ طَرِيقُ الْإِبَاحَةِ او د کُل اراده په هغه صورت کي کیږي چي د هغه طریقه د اباحت [روایښت] طریقه وي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چي صاحبینو ذکر کړه إِذِ الْأَصْلُ فِي الطَّلَاقِ هُوَ الْحَظْرُ ځکه چي اصل په طلاق کي ممانعت دی [لهذا کُل مراد کېدلای نه سي] ثُمَّ الْغَايَةُ الْأُولَى لَا بُدَّ أَنْ تَكُونَ مَوْجُودَةً بیا غایت اولیٰ ضروري ده چي هغه موجود وي [یعني د اول غایت موجودېدل ضروري دي] لِيَتَرَتَّبَ عَلَيْهَا الثَّانِيَةُ چي پر هغه باندي غایتِ ثانیه مرتب کړی سي وَوُجُودُهَا بِوُقُوعِهَا او د غایتِ اُولیٰ وجود د هغې په وقوع سره دی [یعني غایتِ اُولیٰ په خپله وقوع سره موجودیږي] بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّ الْغَايَةَ فِيهِ مَوْجُودَةٌ قَبْلَ الْبَيْعِ په خلاف د بیع، ځکه چي غایت په بیع [د ځمکي] کي تر بیع مخکي موجود دی وَلَوْ نَوَى وَاحِدَةً او که [خاوند، په پورتني صورتونو کي] د یوه طلاق نیت وکړي يُدَيَّنُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو دیانتاً به [د هغه] تصدیق کیږي، نه قضاءً لِأَنَّهُ مُحْتَمَلُ كَلَامِهِ ځکه چي دا [که څه هم] د هغه د کلام محتمل دي [یعني که څه هم په پورتني صورتونو کي د خاوند کلام د یوه طلاق احتمال لري] لَكِنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ خو دا د ظاهر خلاف دي [یعني په ښکاره د خاوند کلام بالکل د دې احتمال نه لري].

**اللغات:** ﴿الْغَايَة﴾ د یو شي آخري حد ته غایت وایي، همداسي د یوه شمېر آخري عدد ته "غایت" وايي، او همدې ته "انتهاء" هم وايي. ﴿حَائِط﴾ دېوال، جمع: حِيْطَان و حِيَاط. ﴿خُذْ﴾ د نصر له باب څخه د امر صیغه ده، لکه مُرْ. أَخَذَ يَأْخُذُ أَخْذًا: اخیستل، نیول. ﴿يُدَيَّن﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهول ده. دا باب د ډېرو معناګانو لپاره استعمالیږي چي له هغوی څخه یو څو دا دي: تصدیق کول، تایید کول، د یو چا خبره منل، رښتیا ګڼل.

**تشریح:** په دې عبارت کي د طلاق دوه صورتونه او د هغه په هکله د امامانو اختلاف او دلیلونه ذکر سوي دي: ① اول صورت دا دی که خاوند ښځي ته ووايي چي: "ته (پر ما) طلاقه یې له یوه څخه تر دوو طلاقو پوري"، یا ورته ووايي چي: "ته (پرما) طلاقه یې د یوه او دوو طلاقو په مینځ کي"، نو په دې صورت کي د امام صاحب په نیز صرف یو طلاق واقع کیږي. ② دویم صورت دا دی چي خاوند ووايي: "ته (پر ما) طلاقه یې له یوه څخه تر دریو طلاقو پوري"، یا ووايي: "ته (پر ما) طلاقه

يې ديوه او دريو طلاقو په مينځ کې"، نو په دې صورت کې د امام صاحب په نيز دوه طلاقه واقع کيږي.

د دې په خلاف صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په اول صورت کې دوه طلاقه واقع کيږي، او په دريم صورت کې درې طلاقه واقع کيږي، او امام زفر رَحِمَهُ الله ډيره نرمي کړې ده هغه فرمايي چې په اول صورت کې يو طلاق هم نه واقع کيږي، او په دويم صورت کې فقط يو طلاق واقع کيږي، او قياس هم د دې تقاضا کوي (يعني د امام زفر قول د قياس مطابق دی).

**د امام زفر دليل:** دا دی چې په دې صورتونو کې خاوند د غايت او مغيا طريقه اختيار کړې ده، او غايت د خپل ځان او مغيا تر مينځ د فصل او بېلتون فايده ورکوي، نو په دې وجه غايت په مغيا کې داخلېدای نه سي (يعني غايت او مغيا به له مفهوم او مراد څخه وځي)، کنې د غايت به هيڅ فايده هم نه وي، مثلاً يو څوک ووايي: بِعْتُ مِنْكَ مِنْ هذَا الْحَائِطِ إِلٰى هذَا الْحَائِطِ (يعني ما له هغه ديوال څخه تر دغه ديوال پورې پر تا [ځمکه] خرڅه کړه)، نو اوس د ځمکې په خرڅلاو (بيع) کې نه هغه ديوال داخل دی، او نه دغه ديوال داخل دی، صرف د مينځ د ځمکې خرڅلاو ځنې مراد دی. او څرنګه چې دلته هم په اول صورت (مِنْ واحِدَةٍ إِلٰى ثِنْتَيْنِ او مَا بَيْنَ واحِدَةٍ إِلٰى ثِنْتَيْنِ) کې وَاحِدَة غايت دی او ثِنْتَيْنِ مغيا ده، او د دوی تر مينځ بل هيڅ عدد نسته، ځکه چې تر يوه سمدستي وروسته دوه راځي، او څرنګه چې د (امام زفر په نيز) غايت او مغيا (وَاحِدَة او ثِنْتَيْنِ) له معنیٰ او مراد څخه خارج دي، نو ځکه به يو طلاق هم نه واقع کيږي.

لېکن څرنګه چې په دويم صورت کې د غايت (وَاحِدَة) او مغيا (ثَلَاث) تر مينځ يو بل عدد (ثِنْتَيْنِ) پاتيږي (يعني د اول او دريم طلاق په مينځ کې دويم طلاق پاتيږي)، نو ځکه به په دې صورت کې يو طلاق واقع کيږي.

**د صاحبينو دليل:** د صاحبينو دليل او طريقه د استدلال بالکل د امام زفر په خلاف ده. يعني امام زفر رَحِمَهُ الله غايت او مغيا له معنیٰ او مطلب څخه خارج مني، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله هغه په معنیٰ او مطلب کې داخلوي، او دليل دا ذکر کوي چې په داسې (د عدد په) کلام کې غايت او مغيا دواړه په معنیٰ او مراد کې شامل او په حکم کې داخل وي، مثلاً يو سړی بل چا ته ووايي: خُذْ مِنْ مَالِيْ مِنْ دِرْهَمٍ إِلٰى مِائَةٍ (چې ته له يوه څخه تر سلو درهمو پورې زما له مال څخه واخله)، نو دلته غايت او مغيا (يعني له يوه څخه تر سلو درهمو پورې) د اخيستلو په حکم کې شامل او داخل دي يعني د دې سړي مراد کُل دراهم دي چې "ته پوره سل درهمه واخله"، لهذا څرنګه چې دلته غايت او مغيا په حکم کې

داخل دي، همداسي به په پورتنيو صورتونو كي هم غايت او مغيا په معنیٰ او حكم كي داخل وي. او په اول صورت كي به (كُل) دوه طلاقه واقع كيږي، او په دریم صورت كي به (كُل) درې طلاقه واقع كيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي په کوم ځای کي چي هم غايت او مغيا د عدد سره بیان سي، هلته د دوی په هکله قاعده دا وي چي كه د غايت او مغيا په مينځ كي بل هيڅ عدد نه وي، نو په دې صورت كي د أَقَلّ مِنَ الأَكْثَر يعني د لوړ عدد په مقابله كي لاندي (كښته) عدد مراديږي، مثلاً په مِنْ وَاحِدَةٍ إِلىٰ ثِنْتَيْن كي د غايت يعني د وَاحِدَة او د مغيا يعني د ثِنْتَيْن په مينځ كي بل عدد نسته، نو به أَقَلّ مِنَ الأَكْثَر مراد وي، او دلته أكثر (لوړ عدد) ثِنْتَيْن دی، او وَاحِدَة أقل (لاندي عدد) دی، نو ځکه به همدا وَاحِدَة (يو طلاق) مراد وي، او په دې صورت كي به فقط يو طلاق واقع كيږي.

او كه د غايت او مغيا په مينځ كي بل عدد وي، نو په هغه صورت كي أَكْثَر مِنَ الأَقَل يعني د لاندي عدد په مقابله كي لوړ عدد مراديږي، مثلاً په دویم صورت يعني په مِنْ وَاحِدَةٍ إِلىٰ ثَلَاث كي د غايت يعني د وَاحِدَة او د مغيا يعني د ثَلَاثًا په مينځ كي يو بل عدد ثِنْتَيْن موجود دی، نو اوس به دلته أَكْثَرُ مِنَ الأَقَل (يعني د لاندي عدد په مقابله كي لوړ عدد) مراد وي، او په دغه دريو عددونو "وَاحِدَة، ثِنْتَيْن، ثَلَاث" كي أقل يعني تر ټولو لاندي عدد وَاحِدَة دی، نو له وَاحِدَة څخه چي كوم يو أكثر او لوړ دی، هغه به مراد وي، او تر وَاحِدَة أكثر اولوړ ثِنْتَيْن دی، نو ځکه به همدغه ثِنْتَيْن (دوه طلاقه) مراد وي، او په دې صورت كي به پر ښځي دوه طلاق واقع كيږي.

د دې دليل مثال دا دی چي كله يو سړی د خلكو مخته خپل سِن او عمر ذكر كړي، نو خلک د هغه له عمر څخه همدغه أَقَل مِنَ الأَكْثَر او أَكْثَر مِنَ الأَقَل مرادوي، مثلاً كه يو سړی ووايي چي زما عمر مِنْ سِتِّيْنَ إِلىٰ سَبْعِيْن (له شپېتو څخه تر اويا كالو پوري) دی يا مَا بَيْنَ سِتِّيْنَ إِلىٰ سَبْعِيْن (د اويا او شپېتو كالو په مينځ كي) دی، (او د سِتِّيْن او سَبْعِيْن په مينځ كي يو عدد نه بلكي ډير أعداد دي)، نو له دې څخه د خلكو مراد تر شپېتو كالو لوړ او تر اويا كالو لاندي عمر وي يعني ٦٢/ ٦٥/ ٦٨ او داسي نور (نو همداسي به دلته هم په دويم صورت كي تر وَاحِدَة لوړ عدد يعني ثِنْتَيْن مراد وي)

**وإرادة الكل إلخ:** په دې سره د صاحبينو د دليل جواب وركوي، هغو فرمايلي وو چي څرنګه له سلو درهمو څخه مراد كُل دراهم دي همداسي به په دې صورتونو كي له طلاق څخه كُل مراد وي، د هغه

جواب ورکوي فرمايي چي په کوم ځای کي چي د إباحت معامله وي (يعني يو څوک بل چا ته خپل مال روا کوي [يعني خپل مال ورکوي])، هلته کُل مرادېدلای سي، ځکه چي هلته (د بل چا لپاره) د خپل مال روا کول مقصود وي، او د طلاق د إباحت معامله نه ده، بلکي د ممانعت معامله ده (يعني په طلاق سره پر انسان ښځه حراميږي کوم چي د انسان په حق کي نقصان مند دي او په شريعت کي يوه مبغوضه خبره ده)، لهذا په دې صورتونو کي کُل مرادول او غايت په معنىٰ او حکم کي داخلول صحيح نه دي.

**ثم الغاية الأولى إلخ**: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي په عدد کي د غايتِ ثانيه د وقوع او موجودېدلو لپاره د غايتِ اولىٰ موجودېدل ضروري دي، (ځکه په عدد کي ثاني عدد يعني وروسته عدد هغه وخت موجوديږي کله چي اول عدد يعني مخکنی عدد موجود ومنل سي، ځکه چي دا وروسته عدد پر مخکني عدد مرتب کيږي، مثلاً که پنځه موجود ومنل سي، نو تر هغه مخکي به خامخا څلور موجود منل کيږي، کنې پنځه موجودېدلای نه سي، خلاصه دا سوه چي په عدد کي د غايتِ اولىٰ او غايتِ ثانيه دواړو موجودېدل ضروري دي، او واحدة، ثنتين، ثلاث هم عددونه دي)، لهذا په پورتنيو صورتونو کي به دواړو غايتونه (يعني واحدة او ثنتين يا واحدة او ثلاث) له حکم او معنىٰ څخه خارج نه منل کيږي بلکي داخل به منل کيږي، او طلاق به واقع کيږي.

لېکن په بيع کي د غايتِ ثانيه د وقوع او موجودېدلو لپاره د غايتِ اولىٰ موجودېدل ضروري نه دي، ځکه چي په بيع کي دواړه غايتونه (مثلاً دواړه دېوالونه) له بيع څخه مخکي (په خارج) کي موجود دي (د يو ترتّب پر بل باندي موقوف نه دی لکه په عدد کي چي د عددِ ثاني ترتب پر عدد اول باندي موقوف دی)، لهذا که په بيع کي دواړه غايتونه (مثلاً دواړه دېوالونه) ساقط کړی سي (او فقط د مينځ ځمکه خرڅه کړی سي) نو داسي کېدلای سي، لېکن په عدد کي د دې امکان نسته، لهذا د امام زفر رَحِمَهُ الله قياس صحيح نه دی.

**واقعــه**: پـه رواياتو کي راځي چي د غايت او مغيا د ساقطېدلو او داخلېدلو پـه مسئله کي علامه اصمعي د امام زفر رَحِمَهُ الله سره د هارونِ رشيد پـه دربار کـي بحث او مناظره وکړه، علامه اصمعي پوښتنه ځني وکړه چي ستا عمر څو دی، امام زفر ورته ووېل: سِنِّيْ مَا بَيْنَ سِتِّيْنَ إِلَى سَبْعِيْنَ (زما عمر د اويا او شپېتو په مينځ کي دی)، نو اصمعي فوراً ورته ووېـل: أَنْـتَ إِذًا ابْـنُ تِسْـعَ سِـنِيْنَ (چي بيا خو ته فقط د نهو [٩] کالو يې)، ځکه چي ستا په قول غايتِ اولىٰ (شپېته) ساقط سي او غايتِ ثانيه (اويا)

هم ساقط سي، نو بيا خو داوبا او شپيتو تر مينځ نقط (له ٦١ څخه تر ٦٩ پورې) نه کاله پاتېږي.

لَتَحَقُّقِ، نو د دې خبرې په اوربدلو سره امام زفر رَحِمَهُ الله وچ ودرېدلی او هک حيران پاته سو. (احسن الهداية ج،٢، ص،٣٣٨)

ولونوى إلخ: فرمايي که خاوند په پورتنيو صورتونو کي يعني په أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ وَاحِدَةٍ إِلَى ثَلَاث کي يا په هغه نورو جملو کي د يوه طلاق نيت وکړی، نو دياتاً (فيما بينه وبين الله) به د هغه تصديق کيږي، لېکن قضاءً به يې تصديق نه کيږي، ځکه د خاوند دغه کلامونه که څه هم د يوه طلاق احتمال لري، خو بيا هم هغه د ظاهر خلاف دی، او په خلافُ الظاهر صورتونو کي فقط دياتاً د چا خبره منل کيږي، نه قضاءً.

## په طلاق کي د ضرب د نيت کولو بيان

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً فِي ثِنْتَيْنِ او که [خاوند] ووايي: ته يو په دوه کي [پر ما] طلاقه يې وَنَوَى الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ او [په دې سره] د ضرب او حساب نيت وکړي أَوْلَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ يا يې [په دې سره] هيڅ نيت نه وي فَهِيَ وَاحِدَةٌ نو هغه يو طلاق دی [يعني په دې صورت کي يو طلاق واقع کيږي] وَقَالَ زُفَرُ ٭: تَقَعُ ثِنْتَانِ لِعُرْفِ الْحُسَّابِ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دوه طلاقه واقع کيږي د شمېرونکو د عرف په وجه [يعني حساب وکتاب کونکي خلک دا سي جمله ضرب کني] وَهُوَقَوْلُ الْحَسَنِ بْنِ زِيَادٍ او همدا د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله قول دی وَلَنَا: أَنَّ عَمَلَ الضَّرْبِ أَثَرُهُ فِي تَكْثِيرِ الْأَجْزَاءِ زموږ دليل دا دی: چي [دلته] د ضرب د عمل تأثير د اجزاوو په زياتولو کي دی لَافِي زِيَادَةِ الْمَضْرُوبِ د هغه شي [طلاق] په زياتوب کي نه دی کوم ته چي ضرب ورکول سوي وي وَتَكْثِيرُأَجْزَاءِ التَّطْلِيقَةِ لَايُوجِبُ تَعَدُّدَهَا او د يوه طلاق د اجزاوو ډېرېدل د طلاق تعدّد [او ډېر والی] نه واجبوي [نو ځکه به فقط يو طلاق واقع کيږي] فَإِنْ نَوَى وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ او که خاوند [په دې جمله سره] د يوه [طلاق] او دوو [طلاقو] نيت وکړی فَهِيَ ثَلَاثٌ نو هغه درې [طلاقه] دي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ ځکه چي هغه [لفظ] د دې احتمال لري فَإِنَّ حَرْفَ الْوَاوِ لِلْجَمْعِ ځکه چي "واو" د جمع لپاره راځي وَالظَّرْفُ يَجْمَعُ الْمَظْرُوفَ او ظرف [هم] مظروف جمع کوي وَلَوْكَانَتْ غَيْرَمَدْخُولٍ بِهَا او که ښځه غير مدخول بها وي تَقَعُ وَاحِدَةٌ نو [بيا] يو طلاق واقع کيږي كَمَا فِي قَوْلِهِ: وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ لکه د هغه د دې قول: وَاحِدَةً وَثِنْتَيْنِ په صورت کي [چي يو طلاق واقع کيږي] وَإِنْ نَوَى وَاحِدَةً مَعَ ثِنْتَيْنِ او که هغه [په دې جمله کي] د دوو [طلاقو] سره د يوه [طلاق] نيت وکړي تَقَعُ الثَّلَاثُ

---

٭ القول الراجح: قول الإمام زفر رَحِمَهُ الله كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله (ج:٢ ص:٧٢٦)، وهكذا في البحر الرائق (ج:٣ ص:٤٦١)، وفتح القدير (ج:٢٣ ص:٣٦٦) [القول الراجح ج:١ ص:٣١٢]

نو درې [طلاقه] واقع کیږي لِأَنَّ كَلِمَةَ "فِيْ" تَأْتِيْ بِمَعْنٰى "مَعَ" ځکه چې کلمه د "فِيْ" د "مَعَ" په معنٰی سره [هم] راځي كَمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى: فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِيْ [الفجر: ٢٩] أَيْ مَعَ عِبَادِيْ لکه د الله په دې قول کې: فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِيْ يعني مَعَ عِبَادِيْ (داخل سې؛ زما د بندګانو سره [وجنت ته]) وَلَوْ نَوَى الظَّرْفَ او که هغه [په دې جمله سره] د ظرف نيت وکړي يَقَعُ وَاحِدَةٌ نو يو [طلاق] واقع کیږي لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَا يَصْلُحُ ظَرْفًا ځکه چې طلاق د ظرف [جوړېدلو] صلاحيت نه لري فَيَلْغُوْ ذِكْرُ الثَّانِيْ نو د دویم [طلاق] ذکر به لغو سي وَلَوْ قَالَ اثْنَتَيْنِ فِي اثْنَتَيْنِ او که خاوند وایي: [ته] دوه په دوه کې [پر ما طلاقه یې] وَنَوَى الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ او [په دې سره] د ضرب او حساب نيت وکړي فَهِيَ ثِنْتَانِ نو دا دوه [طلاقه] دي وَعِنْدَ زُفَرَ ثَلَاثٌ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز درې [طلاقه] دي لِأَنَّ قَضِيَّتَهٗ أَنْ تَكُوْنَ أَرْبَعًا ځکه چې د ضرب حکم [خو] دا دی چې څلور [طلاقه] سي لٰكِنْ لَا مَزِيْدَ لِلطَّلَاقِ عَلَى الثَّلَاثِ لیکن پر دریو [طلاقو] زیاتوب نه راځي [نو ځکه به درې طلاقه واقع کیږي] وَعِنْدَنَا الِاعْتِبَارُ الْمَذْكُوْرُ الْأَوَّلُ او زموږ په نیز د اولي ذکر سوي قاعدې [چې دلته په ضرب سره اجزاء زیاتیږي، نه مضروب] اعتبار دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [اوس] چې موږ بیان کړه.

**اللغات**: ﴿الضَّرْبُ﴾ د حساب یوه طریقه ده چې نخښه یې په دې ډول ده: (×)، او مراد ځني أَحَدُ الْعَدَدَيْنِ دوچنده کول دي د عَدَدِ آخَر د مقدار مطابق، مثلاً "أربعة في الخمسة" یعني "څلور په پنځه" کې ضربول شل (٢٠) کیږي، ځکه کله چې څلور، پنځه واره دوچنده کړی سي، یا پنځه، څلور واره دوچنده کړی سي، نو شل ځني جوړیږي. ﴿الْحِسَابُ﴾ شمېر، حساب وکتاب، ﴿الْحُسَّابُ﴾ جمع د حَاسِبٌ ده لکه طُلَّاب چې جمع د طَالِبٌ: حساب کونکي، شمېرونکي، په حساب وکتاب پوه کسان، ﴿تَكْثِيْر﴾ د تفعیل مصدر دی: ډېرول، زیاتول.

**تشریح**: په دې عبارت کې څو مسئلې بیان سوي دي: (١)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلې ښځې ته وايي: أَنتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً فِيْ ثِنْتَيْنِ، او د ضرب نيت وکړي یا هیڅ نيت نه وکړي، نو په دې صورت کې یو طلاق واقع کیږي، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چې دوه طلاقه واقع کیږي، همدا د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام زفر دلیل**: دا دی چې حساب کونکي دغسې جملې ته ضرب وایي (یعني که یو څوک وایي چې یو په دوه کې نو عام په حساب پوه خلک له دې څخه د ضرب معنٰی اخلي او له دې څخه دوه مرادوي)، لهذا دلته به هم د خاوند د ضرب نيت معتبر وي، او دوه طلاقه به واقع کیږي.

**زموږ دلیل**: دا دی چې شیان پر دوه قسمه دي: یوه هغه دي چې طول، عرض او عمق درې سره لري، لکه اجسام، او دویم هغه دي چې هغوی دا یو شی هم نه لري، لکه غیرِ محسوسات، نو په اول قسم شیانو کې په

ضرب سره په مضروب (أصل عدد) کي زیاتوب راځي، او په دویم قسم شیانو کي په ضرب سره نه په اجزاؤ کي زیاتوب راځي، نه په مضروب کي، او طلاق له دویم قسم شیانو څخه دی، نو د أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةٌ فِي ثِنْتَيْنِ مطلب به دا وي "چي ته په دریو جزئونو والا طلاق سره (پر ما) طلاقه یې" او د طلاق د اجزاؤ زیاتوب د طلاق د زیاتوب سبب نه جوړیږي، لکه مخکي چي موږ دې ته اشاره وکړه مثلاً که خاوند ښځي ته ووايي: ته (پر ما) دیوه طلاق څلور حصې (څلور جزئه) یا پنځه حصې، یا اووه حصې، یا لس حصې..... طلاقه یې، نو فقط یو طلاق واقع کیږي، همداسي به دلته هم یو طلاق واقع کیږي.

وإن نوى واحدة إلخ: (۲)... دویمه مسئله دا ده که خاوند په وَاحِدَة فِي ثِنْتَيْن سره د وَاحِدَة وَثِنْتَيْن نیت وکړي، نو درې طلاقه واقع کیږي؛ ځکه چي د خاوند کلام د دې معنیٰ احتمال هم لري، ځکه څرنګه چي "واو" د جمعیت لپاره راځي همداسي ظرف یعني "فی" هم د مظروف لپاره جامع (جمع کونکی) وي، نو په "واو" او "فی" کي یو ډول اتصال او اشتراک راغلی، همدا وجه ده که یو څوک "فی" ذکر کړي اوله هغه څخه د جمع د "واو" معنیٰ مراد کړي نو په دې کي هیڅ حرج نسته، دا د مدخول بها ښځي حکم دی، او پر غیرِ مدخول بها ښځي په دې صورت کي فقط یو طلاق واقع کیږي، لکه د وَاحِدَة او ثِنْتَيْن د صراحت په صورت کي چي هم پر هغې فقط یو طلاق واقع کیږي.

وإن نوى واحدة مع إلخ: (۳)... دریمه مسئله دا ده که خاوند په وَاحِدَة فِي ثِنْتَيْن سره د مَعَ ثِنْتَيْن نیت وکړي، نو درې طلاقه واقع کیږي، ځکه چي د "فی" کلمه د "مع" په معنیٰ سره استعمالیږي، لکه: فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِي. أي مَعَ عِبادِي.

ولو نوى الظرف: (۴)... څلورمه مسئله دا ده که خاوند په وَاحِدَة فِي ثِنْتَيْن سره د ظرف نیت وکړي، نو صرف یو طلاق واقع کیږي، ځکه چي طلاق د بل شي لپاره د ظرف جوړېدلو صلاحیت نه لري، نو ځکه به دویم لفظ یعني فِي ثِنْتَيْن لغو وي، او په وَاحِدَة سره به فقط یو طلاق واقع کیږي.

ولو قال اثنتين إلخ: (۵)... پنځمه مسئله دا ده که خاوند ووايي أنتِ طَالِقٌ اِثْنَتَيْنِ فِي اِثْنَتَيْن، او په دې سره د ضرب نیت وکړي، نو دوه طلاقه واقع کیږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز درې طلاقه واقع کیږي. د امام زفر دلیل د عبارت په شروع کي تېر سو چي هغه د عرف اعتبار کوي او فرمايي چي د ضرب تقاضا خو همدغه ده چي دلته څلور طلاقه واقع سي، خو څرنګه چي تر دریو زیات طلاقونه راتلی نه سی، نو ځکه به درې طلاقه واقع کیږي، او زموږ دلیل هم څه مخکي ذکر سو چي له طول، عرض او عمق څخه په خالي شي کي په ضرب سره د هغه اجزاء زیاتیږي او د هغه په اصل عدد کي زیاتوب نه راځي، نو ځکه به دې جمله سره فقط دوه طلاقه واقع کیږي. د دې عبارت وعند الاعتبار للمذكور الأول... إلخ همدغه مطلب دی.

## په طلاق کې د غايت او مغيا ذکر کولو يو بل صورت

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ هٰهُنَا إِلَى الشَّامِ او که [خاوند] ووايي، چې ته له دې ځای څخه د "شام" تر هيواده پورې [پر ما] طلاقه يې فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نو دا يو طلاق دی د رجعت د ملکيت سره [يعني دا طلاق رجعي دی چې تر هغه وروسته به خاوند ته د رجعت حق حاصل وي] وَقَالَ زُفَرُ: هِيَ بَائِنَةٌ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا طلاق بائن دی لِأَنَّهُ وَصَفَ الطَّلَاقَ بِالطُّولِ ځکه چې خاوند طلاق په اوږدوالي [او ليرې والي] سره متصف کړی دی قُلْنَا: لَا بَلْ وَصَفَهُ بِالْقَصْرِ موږ وايو: چې نه! بلکې خاوند په لنډتوب [او ضُعف] سره متصف کړی دی لِأَنَّهُ مَتَى وَقَعَ وَقَعَ فِي الْأَمَاكِنِ كُلِّهَا ځکه [طلاق] چې کله واقع کيږي نو په ټولو ځايونو کې واقع کيږي وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ بِمَكَّةَ أَوْفِي مَكَّةَ او که [خاوند] ووايي: ته په مکه سره طلاقه يې، يا په مکه کې [طلاقه يې] فَهِيَ طَالِقٌ فِي الْحَالِ فِي كُلِّ الْبِلَادِ نو ښځه فی الحاله [اوس] په هر ښار کې طلاقيږي وَكَذٰلِكَ لَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ فِي الدَّارِ او همدارنګه [فی الحاله طلاق واقع کيږي] که خاوند ووايي: ته په کور کې طلاقه يې لِأَنَّ الطَّلَاقَ لَا يَتَخَصَّصُ بِمَكَانٍ دُوْنَ مَكَانٍ ځکه چې طلاق نه خاص کيږي د يو مکان سره بغير له بل مکان څخه [يعني طلاق داسې نه دی چې د يوه مکان سره دې خاص وي او د بل مکان سره دې خاص نه وي] وَإِنْ عَنٰى بِهِ: إِذَا أَتَيْتُ مَكَّةَ او که هغه [په دې جملو سره] دا قصد وکړي: چې کله زه مکې ته راسم [نو ته پر ما طلاقه يې] يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو دیانتاً به [د هغه] تصديق کيږي، نه قضاءً لِأَنَّهُ نَوَى الْإِضْمَارَ ځکه چې هغه د مخفي شي نيت وکړی وَهُوَ خِلَافُ الظَّاهِرِ او هغه خلاف د ظاهر دي [نو ځکه به دیانتاً د هغه تصديق کيږي] وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا دَخَلْتِ مَكَّةَ او که خاوند ووايي: چې کله ته مکې ته داخله سې نو ته طلاقه يې لَمْ تَطْلُقْ حَتّٰى تَدْخُلَ مَكَّةَ نو ښځه نه طلاقيږي تر دې چې مکې ته داخله سي لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالدُّخُوْلِ ځکه چې خاوند طلاق پر دخول [داخليدلو] معلق کړی دی وَلَوْقَالَ: فِي دُخُوْلِ الدَّارِ او که خاوند [ور ته] ووايي: چې کور ته د داخليدلو په صورت کې [ته طلاقه يې] يَتَعَلَّقُ بِالْفِعْلِ نو طلاق د فعل [دخول] سره متعلق کيږي لِمُقَارَنَةٍ بَيْنَ الشَّرْطِ وَالظَّرْفِ ځکه چې شرط د ظرف سره متصل [او نږدې] دی فَحُمِلَ عَلَيْهِ عِنْدَ تَعَذُّرِ الظَّرْفِيَّةِ نو ځکه به هغه پر فعل حمل کيږي د ظرفيت د ناممکن والي په وخت کې.

**اللغات**: ﴿طُوْل﴾ اوږدوالی، ﴿قَصْر﴾ لنډوالی، کوچنی والی، کموالی، ﴿عَنٰى﴾ د ضرب ماضي ده: مراد ول، مطلب اخيستل، ﴿إِضْمَار﴾ د افعال مصدر دی: پټول، ﴿عَلَّقَ﴾ د تفعيل ماضي ده: معلق کول، ﴿تَعَذُّر﴾ د تفعّل مصدر دی: يو کار مشکل کيدل، ناممکنه کيدل (ناممکن والی).

**تشریح:** په دې عبارت کې څلور مسئلې بيان سوي دي: (١)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلې ښځې ته په دې الفاظو سره طلاق ورکړي: أَنْتِ طَالِقٌ مِنْ هٰهُنَا إِلَى الشَّامِ، نو زموږ په نېز طلاقِ رجعي واقع کيږي، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې طلاقِ رجعي نه، بلکې طلاقِ بائن واقع کيږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې خاوند طلاق د طول په وصف سره متصف کړی دی، او طول د قوت او شدت په معنیٰ سره استعماليږي (يعني له کور څخه تر شام پورې طلاق اوږدول او ليرې کول ګواکې طلاق په شدت او قوت سره متصف کول دي)، نو دلته به د طول له وصف څخه قوت مراد وي، او د طلاق قوت همدغه دی چې تر هغه وروسته د رجعت حق پاته نه سي، نو ځکه به دلته طلاقِ بائن واقع کيږي.

موږ امام زفر رَحِمَهُ الله ته وايو چې داسي نه ده لکه ته چې وايې، ځکه که لږ غور وسي، نو معلومه به سي چې کله خاوند طلاق د طول په وصف سره متصف کړی (او د شام قيد يې ولګوی)، نو په طلاق کې قوت نه، بلکې قصر (لنډتوب) او ضعف پيدا سو، ځکه که هغه إِلَى الشام ويلي نه وای، نو په هر ځای او هر ملک کې به طلاق واقع کېدی، خو کله چې هغه إلى الشام ذکر کړی، نو ګواکې هغه تر محدود (او معين) مکان پورې طلاق خاص کړی (او په هغه کې قصر او اختصار پيدا سو)، نو د دې قصر په وجه به طلاقِ رجعي واقع کيږي، نه طلاقِ بائن.

(٢)... دويمه مسئله دا ده که خاوند ښځې ته أَنْتِ طَالِقٌ بِمَكَّةَ يا فِيْ مَكَّةَ يا أَنْتِ طَالِقٌ فِي الدَّارِ ووايي (يعني خاوند د دخول پر شرط طلاق معلق نه کړي چې که ته مکې ته داخله سوې نو پر ما طلاقه يې، بلکې بېله شرطه ووايي چې ته په مکې سره پر ما طلاقه يې يا ته په مکه کې پر ما طلاقه يې...)، نو سملستي طلاق واقع کيږي، او د دنيا په هر ښار، هر طرف او هر کور کې پر دغه ښځې طلاق واقع کيږي؛ ځکه چې طلاق د هيڅ زمان او مکان سره خاص نه دی، او داسي نه دی چې په ځينو ځايو کې طلاق واقع کيږي او په ځينو کې نه واقع کيږي، نو ځکه به سملستي طلاق واقع کيږي. (ها! که خاوند مکې يا کور ته د دخول پر شرط طلاق معلق کړي، نو بيا هغه وخت طلاق واقع کيږي کله چې ښځه مکې مبارکې يا کور ته داخله سي).

**وإن عنى إلخ:** او که خاوند د أَنْتِ طَالِقٌ بِمَكَّةَ يا فِيْ مَكَّةَ په ويلو سره د إِذَا أَتَيْتُ مَكَّةَ اراده وکړي (يعني چې کله زه مکې مبارکې ته راسم، نو ته پر ما طلاقه يې، يعني په نيت کې په دې جمله سره طلاق د مکې پر إتيان او دخول معلق کړي)، نو په دې صورت کې به فقط دیانتاً د هغه خبره منل کيږي لېکن قضاءً به د هغه خبره نه منل کيږي؛ د دې وجه دا ده چې خاوند په ښکاره توګه بِمَكَّةَ او فِيْ مَكَّةَ وويل او د يو پټ شي يعني د إِذَا أَتَيْتُ مَكَّةَ نيت يې وکړی کوم چې د ظاهر خلاف دی (يعني په ښکاره د دې جملې په خلاف دې خو احتمال يې لري)، او مخکې ذکره سوه چې په خلافُ الظاهر (او احتمالي معنیٰ) کې به دیانتاً د خاوند خبره منل کيږي، نه قضاءً.

(٣)... دريمه مسئله دا ده که خاوند مکې ته د دخول پر شرط طلاق معلق کړي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې تر څو ښځه مکې ته داخله سوې نه وي تر هغه وخته پورې طلاق نه واقع کیږي؛ ځکه چې دلته خاوند طلاق پر شرط معلق کړی دی او د شرط او تعلیق په هکله قاعده دا ده چې تر څو پورې شرط واقع نه سي تر هغه وخته پورې مشروط هم نه واقع کیږي، نو ځکه به مکې ته تر دخول مخکې پر ښځې طلاق نه واقع کیږي.

(٤)... څلورمه مسئله دا ده که خاوند ښځې ته داسې ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ فِيْ دُخُوْلِكِ الدَّارَ يعني "کور ته د داخلېدلو په صورت کې ته پر ما طلاقه یې"، نو دا جمله د دوو صورتونو احتمال لري: ①... یو دا چې "فِيْ" د ظرف لپاره وګرځول سي، نو د دې جملې مطلب به دا وي چې طلاق په دخول (داخلېدلو) کې دننه دی (یعني د کور په داخلېدلو کې ته پر ما طلاقه یې)، او دا معنیٰ مرادول ممکن نه دي، ځکه چې دخول د طلاق لپاره ظرف نه سي جوړېدلای یعني طلاق په دخول کې نه سي دننه کېدلای، لهذا په دې جمله کې د ظرف معنیٰ مرادول متعذر او ناممکن دي، ②... دویم صورت دا دی چې پر دخول (فعل) باندې طلاق معلق کړی سي یعني پر شرط د دخول طلاق معلق کړی سي، دا صورت ممکن دی، او د ظرف سره مقارن او نژدې هم دی ځکه څرنګه چې شرط تر مشروط مخکې وي همدارنګه ظرف هم تر مظروف مخکې وي، نو د دې مقارنت او مقاربت په وجه به دلته طلاق د دخول پر فعل معلق کیږي او کله چې هم ښځه کور ته داخله سي نو په هغه وخت کې به پر هغې طلاق واقع کیږي.



# فَصْلٌ فِي إِضَافَةِ الطَّلَاقِ إِلَى الزَّمَانِ

دا فصل د زماني وطرف ته د طلاق د نسبت كولو په بيان كې دى

**تشريح:** يو شي ته د طلاق د نسبت كولو او د هغه سره د تشبيه وركولو په سلسله كې صاحب د كتاب څو فصلونه بيان كړي دي، دا فصل د هغه سلسلې يوه كړۍ ده كوم چې به ستاسو په مخكې په ترتيب سره بيان سي.

## د "أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا" ويلو بيان

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا او كه خاوند ووايي: ته سبا [پر ما] طلاقه يې وَقَعَ عَلَيْهَا الطَّلَاقُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ نو [د سبا ورځې] په طلوعُ الفجر [سهار كېدلو] سره طلاق پر هغې طلاق واقع كيږي لِأَنَّهُ وَصَفَهَا بِالطَّلَاقِ فِي جَمِيْعِ الْغَدِ ځكه چي [دلته] خاوند په ټوله سبا [ورځ] كې ښځه په طلاق سره متصفه كړې ده وَذٰلِكَ بِوُقُوْعِهِ فِي أَوَّلِ جُزْءٍ مِنْهُ او دا د سبا په اول جزء كې د طلاق په واقع كېدلو سره متحقق كيږي وَلَوْنَوَى بِهِ آخِرَ النَّهَارِ او كه خاوند په دې [أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا] سره د ورځې د آخري حصې نيت وكړي صُدِّقَ دِيَانَةً لَا قَضَاءً نو ديانتاً به [د هغه] تصديق كيږي، نه قضاءً لِأَنَّهُ نَوَى التَّخْصِيْصَ فِي الْعُمُوْمِ ځكه چي خاوند په عموم كې د تخصيص نيت وكړى وَهُوَيَحْتَمِلُهُ او هغه د دې احتمال [هم] لري لٰكِنَّهُ مُخَالِفًا لِلظَّاهِرِ ليكن هغه د ظاهر مخالف دى.

**اللغات:** ﴿غَدٌ﴾ سبا، راتلونكې ورځ. ﴿التَّخْصِيْص﴾ خاصول (په دوو شيانو كې يو شى را ايستل او ځانګړى كول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه خاوند ښځي ته ووايي چي "ته سبا پر ما طلاقه يې!"، نو د سبا ورځي (غَد) د سپېلو چاودلو (طلوعُ الفجر) په وخت كي پر هغې طلاق واقع كيږي؛ ځكه چي خاوند مطلقاً د سبا ورځ ذكر كړې ده، نو د دې مطلب دا دى چي د سبا ورځي په هره حصه كي ته پر ما طلاقه يې، او په هره حصه كي اوله حصه (طلوعُ الفجر) هم داخله ده، نو ځكه به له اولې حصې څخه پر ښځي طلاق واقع كيږي.

او که خاوند داسي ووايي چي په سبا (غَد) سره ما د سبا ورځي د آخري حصې (مثلاً د ماښيګر) نيت کړی دی، نو دیانتاً به د هغه تصديق کيږي، خو قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي؛ ځکه چي لفظ د غَد (سبا) عام دی او هغه ټوله وخت ته شامل دی کوم چي له طلوعُ الفَجر څخه تر غُرُوْبُ الشَّمس پوري دی، لهذا د "غَد" لفظ دورځي د آخري جزء احتمال هم لري، خو څرنګه چي دغه احتمال د ظاهر خلاف دی (او په خلافُ الظاهر أمورو کي فقط دیانتاً تصديق کيږي)، نو ځکه به د قاضي په دبار کي د هغه خبره نه منل کيږي، فقط دیانتاً به د هغه خبره منل کيږي.

## د طلاق يو څو مؤقت الفاظ

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ غَدًا أَوْ غَدًا الْيَوْمَ او که [خاوند] ووايي: ته نن ورځ سبا طلاقه يې! يا ته سبا ورځ نن [طلاقه يې!، يعني په يوه جمله کي دوه وخته ذکر کړي] يُؤْخَذُ بِأَوَّلِ الْوَقْتَيْنِ الَّذِي تَفَوَّهَ بِهِ نو په دواړو وختونو کي به هغه وخت اخيستل کيږي چي په هغه سره خاوند اول تکلّم کړی وي [يعني په هغه وخت کي به طلاق واقع کيږي کوم چي خاوند اول ذکر کړی وي] فَيَقَعُ فِي الْأَوَّلِ فِي الْيَوْمِ وَفِي الثَّانِي فِي الْغَدِ نو په اول صورت کي به په اليَوْمَ [نن ورځ] کي طلاق واقع کيږي او په دويم صورت کي به په غَد [سبا ورځ] کي طلاق واقع کيږي لِأَنَّهُ لَمَّا قَالَ: اَلْيَوْمَ كَانَ تَنْجِيْزًا ځکه کله چي خاوند اليَوْم ووايي نو دا تنجيز سو [يعني فی الحاله طلاقه واقع سوا] وَالْمُنَجَّزُ لَا يَحْتَمِلُ الْإِضَافَةَ او فی الحاله واقع کېدونکی شی د نسبت احتمال نه لري وَإِذَا قَالَ: غَدًا كَانَ إِضَافَةً او که [خاوند] ووايي: غَدًا نو دا به نسبت وي [يعني طلاق به د سبا ورځي وطرف ته منسوب وي] وَالْمُضَافُ لَا يَتَنَجَّزُ او منسوب سوی شی فی الحاله نه سي واقع کېدی لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ الْإِضَافَةِ ځکه چي په دې کي د نسبت باطلېدل دي فَلَغَا اللَّفْظُ الثَّانِي فِي الْفَصْلَيْنِ لهذا په دواړو صورتونو کي به دويم لفظ لغو کيږي.

**اللغات:** ﴿تَفَوَّهَ﴾ د تفعّل ماضي ده: ويل، تر خوله را ايستل، ﴿تَنْجِيْز﴾ د تفعيل مصدر دی: فی الحاله او فوراً يو کار "کول" يا "کېدل".

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که خاوند خپلي ښځي ته په دې الفاظو سره طلاق ورکړي: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ غَدًا يا أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا الْيَوْمَ (يعني په يوه جمله کي د طلاق لپاره دوه وختونه ذکر کړي)، نو له دواړو وختونو څخه به هغه وخت مراديږي کوم چي اول خاوند ذکر کړی وي، نو په اوله جمله أَنْتِ طَالِقٌ

الْیَوْمَ غَدًا کې الْیَوْمَ مخکې دی نو په دې جمله سره به نن ورځ طلاق واقع کیږي، او په دویمه جمله کې غَدًا مخکې دی لهذا په دویمه جمله کې به د طلاق حکم د غَد وطرف ته منسوب کیږي او سبا به طلاق واقع کیږي.

دلیل دا دی چې کله په اوله جمله کې خاوند الْیَوْمَ مخکې کړی نو فوراً او سمدستي طلاق واقع سو، او دویم لفظ یعني غَدًا لغو سو، ځکه چې په مُنْجَز شي (یعني په سمدستي واقع کېدونکي شي کې) د اضافت او نسبت احتمال نه پاتیږي، او په دویمه جمله کې چې کله خاوند غَدًا الْیَوْمَ ذکر کړی نو د غَدًا د مخکې والي په وجه طلاق د غَد وطرف ته منسوب سو، او په منسوب کړی سوي طلاق سره في الحاله طلاق نه سي واقع کېدای، ځکه چې په دې سره بیا دیو واقع سوي شي یعني د اضافت او نسبت باطلېدل لازمیږي کوم چې صحیح نه دي، نو ځکه به دلته الْیَوْمَ لغو وي او طلاق به د غَد وطرف ته منسوب وي یعني سبا به طلاق واقع کیږي.

## د طلاق یو څو مؤقت الفاظ

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ او که [خاوند] ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ وَقَالَ: نَوَيْتُ آخِرَ النَّهَارِ او ووایي: چې په دې [غد] سره ما د ورځې د آخري حصې نیت کړی دی دُيِّنَ فِي الْقَضَاءِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به په قضاء کې [یعني د قاضي په دربار او عدالت کې] د هغه تصدیق کیږي وَقَالَا: لَا يَدِينُ فِي الْقَضَاءِ خَاصَّةً او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې خصوصاً په قضا کې به د هغه تصدیق نه کیږي لِأَنَّهُ وَصَفَهَا بِالطَّلَاقِ فِي جَمِيعِ الْغَدِ ځکه چې هغه په غَد کې ښځه په طلاق سره متصفه کړې ده فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ: غَدًا نو دا داسي سو لکه خاوند چې ووایي: [أَنْتِ طَالِقٌ] غَدًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه مخکې چې موږ د دې بیان وکړی وَلِهَذَا يَقَعُ فِي أَوَّلِ جُزْءٍ مِنْهُ عِنْدَ عَدَمِ النِّيَّةِ او له همدې وجهې د نیت نه کولو په صورت کې د غَد په اول جزء کې طلاق واقع کیږي وَهَذَا لِأَنَّ حَذْفَ فِي وَإِثْبَاتَهُ سَوَاءٌ او دا

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كما ظهر من كلام المحق ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:٣،فص:٣٧١)، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وبقوله أنت طالق غدًا أو في غدٍ يقع عند طلوع الصبح وصح في الثاني نية العصر أي في آخر النهار قضاءً وصدق فيهما ديانةً (الدر المختار ج:٢، ص:٤٧٨)، هكذا في الهندية (ج:١، ص:٣٦٦). [القول الراجح ج:١، ص:٣١٥]

[حکم] په دې وجه [دی] چې د "فِيْ" کلمه حذفول او هغه باقي ساتل دواړه سره برابر دي لِأَنَّهُ ظَرْفٌ فِي الْحَالَيْنِ ځکه چې په دواړو صورتونو کې هغه [غد] د ظرف لپاره دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ نَوَى حَقِيقَةَ كَلَامِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې خاوند د خپل کلام د حقیقت نیت کړی دی لِأَنَّ كَلِمَةَ فِي لِلظَّرْفِ ځکه چې کلمه د "فِيْ" د ظرف لپاره ده وَالظَّرْفِيَّةُ لَا تَقْتَضِي الِاسْتِيعَابَ او ظرفیت د استیعاب تقاضا نه کوي [یعني دلته ظرفیت د ټولې ورځې د نیولو تقاضا نه کوي] وَتَعَيَّنَ الْجُزْءُ الْأَوَّلُ ضَرُورَةَ عَدَمِ الْمُزَاحِمِ او د اول جزء متعین کېدل د مزاحم د نشتوالي د ضرورت [او مجبورۍ] په وجه دي فَإِذَا عَيَّنَ آخِرَ النَّهَارِ نو کله چې خاوند د ورځې آخري حصه متعینه کړه كَانَ التَّعْيِينُ الْقَصْدِيُّ أَوْلَى بِالِاعْتِبَارِ مِنَ الضَّرُورِيِّ نو د تعیینِ ضروري [تعیینِ مجبوري] د اعتبار کولو په مقابله کې به د تعینِ قصدي اعتبار کول زیات غوره وي [بِخِلَافِ قَوْلِهِ: غَدًا په خلاف د خاوند د دې قول: [أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا] لِأَنَّهُ يَقْتَضِي الِاسْتِيعَابَ ځکه چې هغه د استیعاب تقاضا کوي حَيْثُ وَصَفَهَا بِهَٰذِهِ الصِّفَةِ مُضَافًا إِلَى جَمِيعِ الْغَدِ ځکه چې خاوند [په هغه کې] ښځه په دغه صفت سره متصفه کړه په داسې حال کې چې هغه د ټوله غد وطرف ته منسوب [هم] دی نَظِيرُهُ: إِذَا قَالَ: وَاللهِ لَأَصُومَنَّ عُمْرِيْ او د دې مثال دا دی: [لکه] کله چې خاوند ووایي: وَاللهِ لَأَصُومَنَّ عُمْرِيْ وَنَظِيرُ الْأَوَّلِ: وَاللهِ لَأَصُومَنَّ فِي عُمْرِيْ او د اول [قول] مثال دا دی: وَاللهِ لَأَصُومَنَّ فِي عُمْرِيْ وَعَلَى هَٰذَيْنِ الدَّهْرَ وَفِي الدَّهْرِ او پر همدغه أصل الدَّهر او في الدَّهر هم [مبني] دي.

**اللغات:** ﴿إِسْتِيْعَابٌ﴾ د استفعال مصدر دی: یو شی په پوره توګه نیول، (کنبپاسل)، ﴿مُزَاحِم﴾ د مفاعلې د باب اسمِ فاعل دی: مقابل، بل مُطالِب او مستحق، د یو شي په مقابله کې بل شی موجودېدل، ﴿نَظِيْر﴾ مثال، جمع: نَظَائِر، ﴿دَهْر﴾ زمانه.

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ فِيْ غَدٍ (چې ته سبا پر ما طلاقه يې!)، او بیا يې وویل چې ما په غَدٍ (سبا) سره د ورځې په آخره حصه (ماځیګر) کې د طلاق واقع کېدلو نیت کړی دی، نو امام صاحب په نېز به دیانتاً هم د هغه تصدیق کیږي، او قضاءً هم، لیکن صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې فقط دیانتاً به د هغه تصدیق کیږي، نه قضاءً (یعني فقط دیانتاً

به د سبا د آخري جزء [ماښیګر] په باره کي به د هغه تصدیق کیږي لیکن قضاءً به د سبا ورځي په اول جزء کي طلاق واقع کیږي).

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چي دلته خاوند په ټوله غَد (سبا ورځ) کي ښځه په طلاق سره متصفه کړې ده، نو أَنْتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ داسي سو لکه خاوند چي ووایي أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا، یعني ګواکي هغه په عموم کي د تخصیص نیت وکړی (لکه د باب په ابتدائي عبارت کي چي دا خبره ذکر سوه)، او په عموم کي تخصیص کول خلافُ الظاهر دي (او په خلافُ الظاهر أمورو کي فقط دیانتاً تصدیق کیږي)، نو په دې وجه به قضاءً د هغه تصدیق نه کیږي، بلکي فقط دیانتاً به یې تصدیق کیږي.

همدا وجه ده که خاوند د أَنتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ د ویلو په وخت کي هیڅ نیت نه وکړي، نو بیا د "غَد" اول جزء (اوله حصه) د طلاق لپاره متعین کیږي (یعني بیا د ورځي په اوله حصه کي طلاق واقع کیږي)، ځکه چي طَالِقٌ فِي غَدٍ او طَالِقٌ غَدًا دواړه په یوه معنیٰ سره دي او د "فِي" ذکر کول او نه ذکر کول دواړه سره برابر دي، ځکه چي طلاق خو خامخا په یو وخت کي واقع کیږي، لهذا د حذف او إثبات په دواړو صورتونو کي لفظ د "غَد" (په دې جمله کي) د ظرف لپاره دی، نو معلومه سوه چي طَالِقٌ فِي غَدٍ او طَالِقٌ غَدًا دواړه سره مختلف نه دي بلکي دواړه په یوه درجه کي دي او په یوه معنیٰ سره دي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چي په خلافُ الظاهر أمورو کي هغه وخت قضاءً تصدیق نه کیږي کله چي د کلام د حقیقت نیت نه وي سوی، لیکن د کلام د حقیقت د نیت کولو په صورت کي قضاءً هم (د هغه) تصدیق کیږي، او په دې جمله کي خاوند د خپل کلام د حقیقت نیت کړی دی، ځکه چي د "فِي" کلمه د ظرفیت لپاره راځي، او ظرفیت د مظروف د استیعاب تقاضا نه کوي (یعني د ورځي په "یوه جزء" د طلاق واقع کېدل په "ټوله ورځ" کي د طلاق واقع کېدلو تقاضا نه کوي)، لهذا د غَد (سبا ورځي) د آخري حصې نیت کول د کلام د حقیقت نیت کول دي، نو ځکه به د هغه نیت معتبر وي، او قضاء به هم د هغه تصدیق کیږي او د ورځي په آخر کي به طلاق واقع کیږي.

**وتعين إلخ:** صاحبینو دا خبره وکړه چي که خاوند د أَنتِ طَالِقٌ فِي غَدٍ د ویلو په وخت کي هیڅ نیت نه وکړي نو د غَد اول جزء (اوله حصه) د طلاق لپاره متعینه کیږي، په دې عبارت سره مصنف رَحِمَهُ الله د هغه خبري تردید کوي، حاصل یې دا دی چي د نیت نه کولو په صورت کي ځکه د غَد په اول جزء کي طلاق واقع کیږي چي د اول جزء هیڅ مقابل او مزاحم نه وي، او دا "تعیینِ ضروري" دی، یعني د

دغه نیت نه کولو په صورت کې د طلاق لپاره د غَد اول جزء متعین کول د ضرورت پر بناء دی. لیکن کله چې خاوند د نیت په ذریعه د غَد آخري جزء د طلاق واقع کېدلو لپاره متعین کړی نو دا "تعیینِ قصدي" سو، او ښکاره خبره ده چې د تعیینِ ضروري په مقابله کې تعیینِ قصدي او تعیینِ ارادي اولیٰ او اعلیٰ دی، نو ځکه به په همدغه آخري جزء کې طلاق واقع کیږي.

بخلاف قوله غدًا إلخ: صاحبینو وویل چې فی الغد او غَدًا دواړه سره برابر او مختلف نه دي، په دې عبارت سره د هغه تردید کوي، فرمايي چې دواړه سره برابر نه دي بلکې دواړه سره جلا دي، ځکه چې غَدًا په ټوله غَد کې د مظروف (طلاق) د استیعاب مقتضي وي، لیکن فِي الغَد د مظروف د استیعاب مقتضي نه دي، لهذا یو پر بل قیاسول او دواړه برابر ګڼل صحیح نه دي.

نظيره إلخ: له دې ځایه مصنف رَحِمَهُ الله په یوه مثال سره د فِي الغَد او غَدًا تر مینځ د اختلاف او فرق نور وضاحت کوي، فرمايي چې کله یو سړی ووايي: وَاللهِ لَأَصُوْمَنَّ عُمُرِیْ، نو په دې صورت کې به هغه ټوله عمر روژې نیسي، ځکه چې هغه دلته د "فِي" کلمه نه ده ذکر کړې، نو دا د مظروف د استیعاب تقاضا کوي، لیکن که هغه په وَاللهِ لَأَصُوْمَنَّ فِيْ عُمُرِیْ سره قسم وکړي، نو په دې صورت کې د مظروف استیعاب نه راځي (ځکه چې د "فِي" کلمه یې نه ده ذکر کړې)، لهذا په دې صورت کې د خپل عمر په یو څو اجزاؤ (ورځو) کې په روژه نیولو سره هم هغه له خپل قسم څخه بري کیږي، او الدَّهر او فِي الدَّهر هم پر پورتنۍ قاعدې مبني دي، یعني د لَأَصُوْمَنَّ الدَّهر ویلو په صورت کې به د استیعابُ المظروف په وجه ټوله زمانه هغه روژې نیسي، او د فِي الدَّهر په صورت کې د علمِ استیعاب په وجه د یو څو روژو په نیولو سره هم هغه له خپل قسم څخه بري کیږي او غاړې یې خلاصیږي.

## د "أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ" ویلو مختلف صورتونه

| |
|---|
| وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ او که [خاوند] ووايي: ته پرون لا طلاقه وا! وَقَدْ تَزَوَّجَهَا الْيَوْمَ حال دا چې هغه نن د دې ښځې سره نکاح کړې وي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ طلاق نه واقع کیږي لِأَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُوْدَةٍ مُنَافِيَةٍ لِمَالِكِيَّةِ الطَّلَاقِ ځکه چې خاوند [دلته] طلاق د یو داسې حالت وطرف ته منسوب کړی دی کوم چې د طلاق د مالکیت منافي دی فَيَلْغُوْ نو ځکه به [د هغه کلام] الغو کیږي كَمَا إِذَا قَالَ: |

أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ لكه ځرنګه چې په هغه صورت کې د خاوند کلام لغو کیږي؛ کله چې خاوند ووايي: چې زما تر پيدا کېدلو مخکې ته طلاقه وې! وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ تَصْحِيحُهُ إِخْبَارًا عَنْ عَدَمِ النِّكَاحِ او په دې وجه [هم] چې د دې کلام صحيح کول ممکن دي د عدمِ نکاح په خبر ورکولو سره أَوْ عَنْ كَوْنِهَا مُطَلَّقَةً بِتَطْلِيقِ غَيْرِهِ مِنَ الْأَزْوَاجِ يا د يو بل خاوند په طلاق سره د دې ښځې د مطلقه کېدلو [په خبر ورکولو سره] وَلَوْ تَزَوَّجَهَا أَوَّلَ مِنْ أَمْسِ او که خاوند تر پرون وړځې مخکې هم د دې ښځې سره نکاح کړې وي وَقَعَ السَّاعَةَ نو په هغه ګړي طلاق واقع کيږي لِأَنَّهُ مَا أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ ځکه چې هغه [دلته] د منافي حالت وطرف ته طلاق منسوب نه کړی وَلَا يُمْكِنُ تَصْحِيحُهُ إِخْبَارًا أَيْضًا او [د يو شي په] خبر ورکولو سره د دې کلام تصحيح کول هم ممکن نه دي فَكَانَ إِنْشَاءً نو دا به [د طلاق] انشاء وي وَالْإِنْشَاءُ فِي الْمَاضِي إِنْشَاءٌ فِي الْحَالِ او په ماضي کې انشاء [کول] فی الحال انشاء وي فَيَقَعُ السَّاعَةَ نو ځکه به په هغه ګړي طلاق واقع کيږي.

**اللغات:** ﴿أَمْس﴾ پرون، تېره ورځ، ﴿أَسْنَدَ﴾ د افعال ماضي ده: نسبت کول، منسوبه کول، ﴿مَعْهُوْدَة﴾ معروف، معلوم، ﴿السَّاعَة﴾ په هغه ګړي، دستي، ﴿إِنْشَاء فِي الْمَاضِي﴾ په تېره زمانه کې يو کار کولو ته إِنْشَاء فِي الْمَاضِي وايي، او په اوس (حال) زمانه يو کار کولو ته انشاء فی الحال وايي، مثلاً که اوس طلاق ورکړي نو دا فی الحاله د طلاق انشاء سوه.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی نن ورځ د ښځې سره نکاح وکړي او بيا ورته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ (چې ته پرون [يعني تېره ورځ] لا پر ما طلاقه وې!)، نو فرمايي چې په دې صورت کې يو طلاق هم نه واقع کيږي؛ ځکه د طلاق لپاره دا ضروري دي چې په کوم وخت کې سړی طلاق ورکوي په هغه وخت کې به سړی د خاوند د طلاق مالک وي يعني ښځه به د سړي په نکاح کې وي، او تېره ورځ ښځه دده په نکاح کې نه وه، هغه خو نن دده په نکاح کې راغله، لهذا دلته دغه سړي طلاق يو داسې حالت ته منسوب کړی چې په هغه حالت کې دئ د طلاق مالک نه دی، نو ځکه به د هغه کلام لغو وي او طلاق به نه واقع کيږي، لکه ځرنګه چې يو سړی ووايي أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ (چې ته زما تر پيدا کېدلو مخکې لا پر ما طلاقه وې!)، نو په دې صورت کې هم طلاق نه واقع کيږي او د هغه کلام لغو کيږي، ځکه چې تر پيدا کېدلو مخکې ښځه د دې سړي په نکاح کې نه وه.

**ولأنه إلخ:** د أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ دوه تأويله او دوه مطلبه نور هم کېدای سي، لهذا د طلاق واقع کېدل ضروري نه دي بلکې کېدای سي چې خاوند به د هغه مطلب خبر ورکوي، او په دې دواړو تأويلونو کې د هغه کلام د لغو کېدلو

ښځه هم ساتل کیږي: ①... یو تأویل دا دی چې په دې جمله سره به د خاوند مطلب دا وي چې دا ښځه پرون مُطَلَّقَة وه یعني پرېښوول سوې وه یعني بې نکاح پاته وه، ځکه چې د طلاق دویمه معنیٰ ده "پرېښوول او خلاصول". او دا خبره حقیقت ده چې هغه پرون بې نکاح وه، ځکه نکاح خو یې نن وسوه، ②... دویم تأویل دا دی چې په دې جمله سره به د خاوند مطلب دا وي چې دا ښځه تر پرون ورځې پورې د بل خاوند مطلقه وه. او دا هم حقیقت جوړېدای سي چې تر پرون ورځې پورې هغه د بل چا مطلقه وي او نن به دغه سړي نکاح ور سره کړې وي، د دې دواړو احتمالاتو په وجه به هم نن پر ښځې طلاق نه واقع کیږي او هم به د سړي کلام د لغو کېدلو څخه خوندي سي.

**ولو تزوجها  إلخ:** او که خاوند د ښځې سره تر پرون (أمس) مخکې نکاح کړې وي او بیا ښځې ته ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ أَمْسِ، نو په دې صورت کې فی الحاله پر ښځې یو طلاق واقع کیږي، ځکه چې د مخکې نکاح کولو په وجه دلته د عدمِ مالکیت وظرف ته د طلاق د نسبت کولو خرابي هم نسته او د هغه په کلام کې مخکني دوه تأویله هم نه سي کېدای، لهذا دلته به د خاوند کلام د انشاء له قبیلې څخه وي، او د انشاء په هکله د فقهاؤ قاعده دا ده چې د ماضي انشاء په اوس وخت (حال) کې هم إنشاء ده، یعني په تېره زمانه کې یو ثابت سوی حکم (د ضرورت پر بناء) اوس فی الحاله هم ثابتیږي، (د مثال په توګه که خاوند په تېره زمانه کې ښځې ته طلاق ورکړی وي، نو ښځې ته خو مخکې هیڅ خبر نه وو، نو د ناخبرتیا د ضرورت په وجه به اوس فی الحاله د خاوند په انشاء یعني طلاق ورکولو سره هغه پخوانی طلاق ثابتیږي او پر ښځې به واقع کیږي).

## د طلاق یو څو نور الفاظ

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ أَتَزَوَّجَكِ او که [خاوند] ووایي: ته طلاقه یې مخکې تر دې چې زه ستا سره نکاح وکړم لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هیڅ طلاق نه واقع کیږي لِأَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ ځکه چې [دلته] خاوند طلاق د منافي حالت وظرف ته منسوب کړی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: طَلَّقْتُكِ وَأَنَا صَبِيٌّ أَوْ نَائِمٌ او دا داسي سو لکه [خاوند] چې ووایي: ما هغه وخت تا ته طلاق درکړی کله چې زه کوچنی وم، یا بیده وم أَوْ يَصِحُّ إِخْبَارًا عَلَى مَا ذَكَرْنَا یا زموږ د ذکر سوو [تأویلونو] مطابق دا [کلام] خبر ګرځول [هم] صحیح دي وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ أَوْ مَتَى لَمْ أُطَلِّقْكِ أَوْ مَتَى مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ او که [خاوند] ووایي چې: ته طلاقه یې تر څو چې زه تا ته طلاق نه درکړم یا تر کومه وخته چې زه تا ته طلاق نه درکړم وَسَكَتَ او [بیا] چپ پاته سي طَلُقَتْ نو [ښځه] طلاقیږي لِأَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى زَمَانٍ خَالٍ عَنِ التَّطْلِيقِ ځکه چې [دلته] خاوند داسي زمانې ته طلاق منسوب کړی کوم چې له طلاق ورکولو څخه خالي ده وَقَدْ وُجِدَ حَيْثُ سَكَتَ او کله چې هغه چپ پاته سو نو دا زمانه موجوده سوه [نو ځکه به طلاق واقع کیږي] وَهٰذَا لِأَنَّ كَلِمَةَ مَتَى وَمَتَى مَا صَرِيحٌ فِي الْوَقْتِ ځکه چې کلمه د "متی" او

"مَتَىٰ مَا" د وخت په معنىٰ کې صريح ده لِأَنَّهُمَا مِنْ ظُرُوْفِ الزَّمَانِ ځکه چې دوی دواړه له ظروفِ زمان څخه دي وَكَذَا كَلِمَةُ "مَا" لِلْوَقْتِ او همداسې کلمه د "مَا" [هم] د وخت لپاره ده قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: مَا دُمْتُ حَيًّا [مريم: ۳۱] أَيْ وَقْتَ الْحَيَاةِ ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: مَا دُمْتُ حَيًّا [تر څو چې زه ژوندی یم] يعني د ژوند تر وخته پورې.

**اللغات:** ﴿صَرِيْحٌ﴾ واضح، څرګند. ﴿دُمْتُ﴾ د نصر له باب څخه د واحد متكلم ماضي صيغه ده: همېشه پاتېدل، ثابت پاتېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته ووايي چې "ته (پر ما) ستا سره تر واده کولو مخکې طلاقه وې!"، نو په دې صورت کې هيڅ طلاق نه واقع کيږي؛ ځکه چې د طلاق واقع کېدلو لپاره د ښځې منکوحه کېدل ضروري دي، او تر واده مخکې هغه د دې سړي منکوحه نه ده، لهذا خاوند خپل کلام وداسې حالت ته منسوب کړی کوم چې د طلاق د مالکيت منافي دی، نو ځکه به د هغه کلام لغو وي (لکه مخکې چې هم دا خبره ذکره سوه)، او څرنګه چې د طَلَّقْتُكِ وَأَنَا صَبِيٌّ يا نَائِمٌ ويلو په صورت کې پر ښځې طلاق نه واقع کيږي، همداسې به په دې مسئله کې هم پر ښځې طلاق نه واقع کيږي.

**أو يصح إخباراً إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د خاوند په کلام کې دلته هم هغه مخکني دوه مطلبه او دوه تأويله کېدلی سي، يعني د دې مطلب به يا دا وي چې خاوند په دې سره ښځې ته خبر ورکوي چې ته زما سره تر واده کولو مخکې بې واده او بې نکاح وې، يا د يو بل خاوند مطلقه وې، نو په دې صورت کې طلاق هم نه واقع کيږي او د خاوند کلام د لغو کېدلو څخه هم ساتل کيږي.

**ولو قال إلخ:** دويمه مسئله دا ده که خاوند ښځې ته ووايي چې "تر څو چې زه تا ته طلاق نه درکړم يا تر کومه وخته چې زه تا طلاق نه درکړم، تر هغه وخته ته طلاقه يې"، او بيا خاوند څه غوندي وخت او زمانه خاموش سي (يعني لږ وخت چپ پاته سي او طلاق نه ورکړي) نو د خاوند د سکوت او چوپتيا سره سمدستي پر ښځې طلاق واقع کيږي؛ ځکه چې دلته خاوند طلاق يو داسې زمانې ته منسوب کړی کوم چې له طلاق ورکولو څخه خالي وي، او څرنګه چې دا لږ زمانه هم د سکوت او چوپتيا په وجه له طلاق څخه خالي سوه، نو ځکه به طلاق واقع کيږي.

**وهذا إلخ:** دا عقلي دليل دا دی چې د سکوت په زمانه کې (سمدستي) ځکه طلاق واقع کيږي چې کلمه د مَتَىٰ او مَتَىٰ مَا دواړه د وخت لپاره صريح ده، ځکه چې د دواړو تعلق د ظرفِ زمان سره دی، نو د خاوند د کلام مطلب دا سو "چې په کومه زمانه کې زه تا ته طلاق در نه کړم، ته طلاقه يې"، او تر چوپتيا وروسته سمدستي د طلاقه نه ورکولو زمانه موجوده سوه، نو ځکه به طلاق واقع کيږي، او د مَا لفظ چې څرنګه د شرط د معنىٰ لپاره راځي همداسې د وخت د معنىٰ لپاره هم راځي، لکه په دې آيت کې چې د وخت په معنىٰ سره دی: ﴿وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا﴾ (يعني تر کومه وخته چې زه ژوندی يم، الله ما ته د لمونځ کولو او

زکاة ورکولو حکم کړی دی)، خلاصه دا چې په دې مسئله کې چې خاوند کومو کلمو ته طلاق منسوب کړی دی هغه د وخت او زمانې سره تعلق لري، لهذا کله چې هم دغه وختونه د خاوند له منسوب کړی سوي طلاق څخه خالي سي، نو سملستي به طلاق واقع کیږي.

## د "أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ لَمْ أُطَلِّقْكِ" بیان

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ لَمْ أُطَلِّقْكِ او که [خاوند] ووايي: که چیري زه تا ته طلاق نه درکړم نو ته طلاقه يې! لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى يَمُوتَ نو [ښځه] نه طلاقیږي تر دې چې خاوند مړ سي [یعني مرګ ته نژدې سي، مطلب دا چې کله خاوند له ژوند څخه نا اُمیده سي (او د زنکدن حالت یې را ورسیږي) نو دا ښځه طلاقیږي] لِأَنَّ الْعَدَمَ لَا يَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالْيَأْسِ عَنِ الْحَيَاةِ ځکه چې طلاق "نه ورکول" نه ثابتیږي مګر له ژوند څخه د نا اُمیدۍ په وخت کې وَهُوَ الشَّرْطُ او همدا [خبره دلته] شرط ده كَمَا فِي قَوْلِهِ: إِنْ لَمْ آتِ الْبَصْرَةَ لکه څرنګه چې د خاوند په دې قول کې [هم دغه حکم دی]: إِنْ لَمْ آتِ الْبَصْرَةَ وَمَوْتُهَا بِمَنْزِلَةِ مَوْتِهِ او د ښځې مرګ د خاوند د مرګ په درجه کې دی هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح [قول] دی.

**اللغات:** ﴿اليَأْس﴾ د سمع له باب څخه اسم مصدر دی: نا اُمیدي، مایوسي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند ښځې ته ووايي "که چیري زه په خپل ژوند کې تا ته طلاق نه درکړم، نو ته طلاقه یې!"، نو په دې صورت کې هغه وخت طلاق واقع کیږي کله چې خاوند له ژوند څخه نا اُمیده سي (او د مرګ حالت یې را نژدې سي) ځکه چې په همدغه وخت کې به معلومه سي چې هغه (په خپل ژوند کې) طلاق نه ورکړی، نو ځکه به تر مرګ لږ څه مخکې یعني د ژوند څخه د نا اُمیدۍ (زنکندن) په وخت کې طلاق واقع کیږي، لکه په هغه صورت کې چې تر مرګ لږ څه مخکې طلاق واقع کیږي کله چې خاوند ووايي "که زه بصرې ته نه ولاړم، نو ته طلاقه یې"، نو په دې صورت کې به د خاوند تر مرګه پوري انتظار کیږي چې بصرې ته ولاړی که نه، او دا به د مرګ په وخت کې معلومه سي چې بصرې ته نه ولاړی، نو ځکه به تر مرګ لږ څه مخکې طلاق واقع کیږي، همداسي به دلته هم تر مرګ لږ څه مخکې طلاق واقع کیږي.

**وموتها إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د ښځې مرګ هم د صحیح قول مطابق د سړي د مرګ په درجه کې دی، یعني څرنګه چې د خاوند تر مرګ لږ څه مخکې طلاق واقع کیږي، همداسي به د ښځې تر مرګ لږ څه مخکې طلاق واقع کیږي، ځکه چې د ښځې د مرګ په صورت کې هم دا خبره معلومیږي چې خاوند هغې ته طلاق نه ورکړی.

## د "أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا لَمْ أُطَلِّقْكِ" بيان

وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا لَمْ أُطَلِّقْكِ أَوْإِذَا مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ او كه [خاوند] ووايي: كله چې زه تا ته طلاق در نه كړم نو ته طلاقه يې! لَمْ تَطْلُقْ حَتّٰى يَمُوتَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ * نو ښځه نه طلاقيږي تر دې چې خاوند مړ سي [يعني مرګ يې را نژدې سي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا: تَطْلُقُ حِينَ سَكَتَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: كله چې خاوند چوپ پاته سي نو [سمدستي] طلاقيږي لِأَنَّ كَلِمَةَ إِذَا لِلْوَقْتِ ځكه چې كلمه د "إِذَا" د وخت لپاره ده قَالَ اللهُ تَعَالٰى: إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ [التكوير: ١] الله تعالىٰ فرمايلي دي: كوم وخت چې لمر بې نوره [بې ځلا] سي وَقَالَ قَائِلُهُمْ: وَإِذَا تَكُونُ كَرِيهَةٌ أُدْعٰى لَهَا او يوه د دوى [شاعرانو] ويلي دي: كوم وخت چې يوه ستونزه پېښه سي نو د هغه لپاره زه راغوښتل كېږم وَإِذَا يُحَاسُ الْحَيْسُ يُدْعٰى جُنْدُبٌ او كله چې حلوا تياريږي نو [د هغه لپاره] جندب راغوښتل كيږي فَصَارَ بِمَنْزِلَةِ مَتٰى وَمَتٰى مَا نو ځكه دا [إِذَا] د مَتٰى او مَتٰى مَا په درجه كي سو وَلِهٰذَا لَوْقَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ همدا وجه ده كه خاوند خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ لَا يَخْرُجُ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا بِالْقِيَامِ عَنِ الْمَجْلِسِ نو له مجلس څخه تر ولاړيدلو مخكي اختيار د هغې د لاس [ملكيت] څخه نه وځي كَمَا فِي قَوْلِهِ: مَتٰى شِئْتِ لكه د خاوند په دې قول كي [چې هم اختيار د ښځي له ملكيت څخه نه وځي]: مَتٰى شِئْتِ وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ كَلِمَةَ إِذَا تُسْتَعْمَلُ فِي الشَّرْطِ أَيْضًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې كلمه د "إِذَا" په شرط كي هم استعماليږي قَالَ قَائِلُهُمْ: وَاسْتَغْنِ مَا أَغْنَاكَ رَبُّكَ بِالْغِنٰى يوه د شاعرانو ويلي دي: او بې پروا اووسه! تر څو چې ستا رب تا په مالدارۍ سره بې پروا وساتي وَإِذَا تُصِبْكَ خَصَاصَةٌ فَتَجَمَّلْ او كله چې ته په مسكنت [غربت] سره مبتلا سې نو ښكلى صبر اختيار كړه! فَإِنْ أُرِيدَ بِهِ الشَّرْطُ نو كه [دلته] په إِذَا سره شرط مراد كړى سي لَمْ تَطْلُقْ فِي الْحَالِ نو ښځه فى الحاله [سمدستي] نه طلاقيږي وَإِنْ أُرِيدَ بِهِ الْوَقْتُ او كه په هغه سره وخت مراد كړى سي تَطْلُقُ نو

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذُكِر في رد المحتار (ج:٢، ص:٤٨٢)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٣٧٠).[القول الراجح ج:١، ص:٢١٧]

[اسمدتي] طلاقيږي فَلَا تَطْلُقُ بِالشَّكِّ وَالِاحْتِمَالِ لهذا د شک او احتمال په وجه به هغه نه طلاقيږي [يعني دلته شک پيدا سو، په يوه معنیٰ او احتمال سره طلاقيږي او په بله معنیٰ او احتمال سره نه طلاقيږي، نو د دې شک او احتمال پر بناء به هغه اوس فی الحاله نه طلاقيږي] بِخِلَافِ مَسْأَلَةِ الْمَشِيئَةِ په خلاف د مشيئت د مسئلې لِأَنَّهُ عَلَى اعْتِبَارِ أَنَّهُ لِلْوَقْتِ لَا يَخْرُجُ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا ځکه چې [په هغه کې] په دې اعتبار چې إذَا د وخت لپاره [ومنل] سي اختيار د ښځې د لاس څخه نه وځي وَعَلَى اعْتِبَارِ أَنَّهُ لِلشَّرْطِ يَخْرُجُ او په دې اعتبار چې هغه د شرط لپاره [ومنل] سي اختيار [د هغې له ملکيت څخه] وځي وَالْأَمْرُ صَارَ فِي يَدِهَا او اختيار د ښځې لاس ته [مخکې لا] راغلی دی فَلَا يَخْرُجُ بِالشَّكِّ وَالِاحْتِمَالِ نو د شک او احتمال په وجه به هغه [د ښځې له ملکيت څخه] نه وځي وَهَذَا الْخِلَافُ فِيمَا إذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ او دا اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې [خاوند] هيڅ نيت کړی نه وي أَمَّا إذَا نَوَى الْوَقْتَ ليکن کله چې [خاوند] د وخت نيت وکړي يَقَعُ فِي الْحَالِ نو فی الحاله [سمدستي] طلاق واقع کيږي وَلَوْ نَوَى الشَّرْطَ او که د شرط نيت وکړي يَقَعُ فِي آخِرِ الْعُمُرِ نو د عمر په آخر کې طلاق واقع کيږي لِأَنَّ اللَّفْظَ يَحْتَمِلُهُمَا ځکه چې لفظ [د إذَا] د دواړو احتمال لري.

**اللغات:** ﴿كُوِّرَتْ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهول صيغه ده: بې نوره کېدل، بې ځلا کېدل، تياره غوړېدل، ﴿كَرِيهَة﴾ نا خوښه خبره، نا خوښه شی، مراد ځني ستونزه، مصيبت، جنګ او داسې نور دي، ﴿يُحَاسُ﴾ د ضرب له باب څخه د واحد مذکر غائب مضارع مجهول صيغه ده: يو شی د بل شي سره يو ځای کول، رسۍ وودل، حَيْس پخول، ﴿حَيْس﴾ په عربو کې يو ډول حلوا ده چې له خُرما، لاسي غوړو او نينو څخه جوړيږي، ﴿جُنْدَب﴾ د يو سړي نوم دی، ﴿اسْتَغْنِ﴾ د استفعال له باب څخه د أمر واحد مذکر حاضر صيغه ده: بې پروا کېدل (مستغني کېدل)، استغناء اختيارول، ﴿أَغْنَاكَ﴾ د افعال ماضي ده، متعدي باب دی: مالداره کول، شتمن کول، ﴿تُصِبْكَ﴾ د افعال له باب څخه د واحد مذکر مخاطب صيغه ده. أَصَابَ يُصِيبُ إِصَابَةً: (يو چا ته يو شی) رسېدل، (په يو شي مبتلا کېدل)، ﴿خَصَاصَة﴾ تنګ لاسي، مسکنت، فقر او غربت، ﴿تَجَمَّلْ﴾ د تفعل له باب څخه د امرِ حاضر صيغه ده: ښکلا اختيارول، مراد ځني په صبر ځان ښايسته کول دي (يعني صبر اختيارول).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی که خاوند د مَتٰی او مَتٰی مَا پر ځای د إِذَا او إِذَا مَا په فرېمه طلاق ورکړي او داسي ووايي: "أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا لَمْ أُطَلِّقْكَ يَا إِذَا مَا لَمْ أُطَلِّقْكَ. نو په دې دواړو صورتونو کي دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خاوند تر مرګ (لږ څه) مخکي طلاق واقع کيږي، د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي د خاوند په سکوت او چوپتيا سره (سملستي) طلاق واقع کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي کلمه د إِذَا د وخت لپاره راځي، لهذا دا کلمه د مَتٰی او مَتٰی ما په معنیٰ سره سوه او د مَتٰی او مَتٰی ما په صورت کي د خاوند په سکوت سره (سملستي) طلاق واقع کيږي (لکه مخکي چي دا مسئله ذکر سوه)، نو ځکه به په دې صورت کي هم د خاوند په سکوت سره (سملستي) طلاق واقع کيږي.

او د دې خبري يو دليل (چي إِذَا د وخت لپاره راځي) دا آيت دی: إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ. د آيت ترجمه دا ده (کوم وخت چي لمر بې ځلا او بې نوره سي)، نو په دې آيت کي إِذَا د وخت لپاره دی، دويم دليل دا شعر دی:

وَإِذَا يُحَاسُ الْحَيْسُ يُدْعٰى جُنْدَبُ     إِذَا تَكُوْنُ كَرِيْهَةٌ أُدْعٰى لَهَا

**د شعر ترجمه:** کوم وخت چي يو مصيبت او ستونزه پېښه سي نو د هغه لپاره زه راغوښتل کېږم، او کوم وخت چي حلوا (او هوسۍ) تيارېږي نو د هغه لپاره جندب ته بلنه ورکول کيږي.

په دې شعر کي يعني په إِذَا تَكُوْنُ كَرِيْهَةٌ کي هم إِذَا د وخت لپاره استعمال سوی دی، له دې څخه معلومه سوه چي إِذَا او إِذَا مَا د وخت لپاره راځي، لهذا کله چي دوی د وخت لپاره راځي، نو د خاوند د کلام مطلب دا سو "کوم وخت چي زه طلاق نه درکړم، ته طلاقه يې"، او تر سکوت او چوپتيا وروسته سملستي د طلاق نه ورکولو وخت موجود سو، نو ځکه به سملستي طلاق واقع کيږي.

**ولهذا لو قال إلخ:** او دريم دليل د دې خبري (چي إِذَا د وخت لپاره راځي) دا دی چي که خاوند ښځي ته داسي ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ (کله چي ته وغواړې، نو ته طلاقه يې)، نو دا د مَتٰی شِئْتِ ويلو په معنیٰ سره دي، يعني څرنګه چي د مَتٰی شِئْتِ ويلو په صورت کي ښځي لره تر مجلس وروسته هم (خپل ځان ته د طلاق ورکولو) اختيار پاتيږي، همداسي د إِذَا شِئْتِ په صورت کي هم ښځي لره دغه اختيار پاتيږي (نو که چيري دلته إِذَا د وخت لپاره وای نو بيا به فقط په مجلس کي ښځي لره [خپل

ځان ته د طلاق ورکولو اختيار واي، حالانکي داسي نه ده، بلکي تر مجلس وروسته هم هغې لره اختيار پاتېږي) او پر دې ټوله امامان متفق دي، لهذا څرنګه چي په إذَا شِئْتِ کي إذَا د وخت په معنیٰ سره دی، همدارنګه به په پورتنی جمله (يعني د خاوند په کلام) کي هم إذَا د وخت په معنیٰ سره وي، او د خاوند د چپ‌پاتي کېدلو سره به متصل (سمدستي) طلاق واقع کېږي

**د امام صاحب دليل**: دا دی چي موږ ستاسو خبره منو چي إذا د وخت لپاره راځي خو دا خبره هم منل سوې ده چي اذا د شرط لپاره هم راځي، دليل دا شعر دی:

وَاسْتَغْنِ مَا أَغْنَاكَ رَبُّكَ بِالْغِنٰى وَإِذَا تُصِبْكَ خَصَاصَةٌ فَتَجَمَّلْ

**د شعر ترجمه**: تر کومه وخته چي ستا رب تا په مالداری سره مستغني وساتي، تر هغه وخته مستغني اووسه! او کله چي په تنګ لاسی (مسکنت) مبتلا سې، نو صبرِ جميل اختيار کړه.

په دې شعر کي إذَا د شرط په معنیٰ سره دی، همدا وجه ده چي تُصِبْكَ د شرط پر بناء مجزوم دی، که چيري دلته إذَا شرطيه نه وای نو د تُصِبْكَ پر ځای به تُصِيْبُكَ وای، معلومه سوه چي إذَا وقتيه (يعني د وخت لپاره) هم راځي او شرطيه هم راځي، نو که دلته إذَا وقتيه ومنل سي، سمدستي طلاق واقع کيږي، او که شرطيه ومنل سي نو د عمر په آخر کي (تر مرګ لږ څه مخکي) طلاق واقع کيږي، لنډه دا چي دلته د طلاق په واقع کېدلو کي شک او احتمال پيدا سو، او د شک په وجه طلاق نه واقع کيږي، نو ځکه موږ وايو چي فی الحاله (سمدستي) طلاق نه واقع کيږي، همدا د احتياط تقاضا ده، ځکه چي طلاق أَبْغَضُ الْمُبَاحَات دی او ډېره أهمه معامله ده، نو احتياط په دې کي دی چي د عمر په آخر کي دا أَبْغَضُ الْمُبَاحَات واقع سي.

<u>بخلاف مسألة المشية إلخ</u>: صاحبينو په خپل دليل کي وويل چي په أَنْتِ طَالِقٌ إذَا شِئْتِ کي د ټولو په نيز د إذَا د وخت په معنیٰ سره دی (او تر مجلس وروسته هم ښځي لره اختيار پاتيږي) نو ځکه به په پورتنی جمله کي هم إذَا د وخت لپاره وي، په دې عبارت سره د هغه قياس جواب ورکوي فرمايي چي پر دې قياس کول صحيح نه دي؛ ځکه ښکاره خبره ده چي کله په إذَا شِئْتِ کي إذَا وقتيه ومنل سي نو تر مجلس وروسته د ښځي اختيار نه ختميږي، او که شرطيه ومنل سي نو د هغې اختيار ختميږي (مطلب دا چي دلته هم د طلاق په وقوع کي شک پيدا سو)، او دا خبره تسليم سوې ده چي

دخاوند د اختیار ورکولو په وجه دلته هغې ته په یقیني توګه اختیار حاصل سوی دی، نو د شک او احتمال په وجه د هغې دغه اختیار نه ختمیږي، ځکه دا مشهوره قاعده ده چې "اَلْیَقِیْنُ لَا یَزُوْلُ بِالشَّكِّ".

**وهذا الخلاف إلخ:** د امام صاحب او صاحبینو دا اختلاف په هغه صورت کي دی کله چې خاوند په پورتنی جمله إِنْتِ طَالِقٌ إِذَا إلخ سره هیڅ نیت کړی نه وي، او که نیت یې کړی وي، نو بیا به د هغه د نیت مطابق فیصله کیږي، ځکه چې نیت د "تَمْیِیْز أَحَدِ الْأَمْرَیْن" لپاره (یعني په دوو أمرونو کي د یو أمر د علیحده کولو او جلا کولو لپاره) وضع سوی دی، نو که خاوند په إِذَا سره د وخت نیت وکړي، نو سمدستي به طلاق واقع کیږي، او که د شرط نیت وکړي، نو د عمر په آخر کي به طلاق واقع کیږي، او د دې وجه دا ده (یعني دواړه نیتونه ځکه صحیح دي) چې کلمه د إِذَا د وخت او شرط دواړو احتمال لري، لهذا کوم احتمال چې خاوند مراد کړي هغه به متعین کیږي.

## د پورتنی مسئلې یو بل صورت

**وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَالَمْ أُطَلِّقْكِ ـ أَنْتِ طَالِقٌ** او که [خاوند] ووایي: ته طلاقه یې په کوم وخت کي چې زه تا ته طلاق نه درکړم – ته طلاقه یې **فَهِيَ طَالِقٌ بِهٰذِهِ التَّطْلِيْقَةِ** نو ښځه په دغه [وروستني] طلاق سره طلاقه کرځي **مَعْنَاهُ: قَالَ ذٰلِكَ مَوْصُوْلًا بِهٖ** د دې معنیٰ دا ده: چې [کله] خاوند دغه وروستنی "أَنْتِ طَالِقٌ" د هغه [اولي جملې] سره متصل ووایي **وَالْقِيَاسُ: أَنْ يَقَعَ الْمُضَافُ** او قیاس دا دی: چې منسوب سوی طلاق [یعني د اولي جملې طلاق] هم واقع سي **فَيَقَعَانِ** نو دوه طلاقه به واقع کیږي **إِنْ كَانَتْ مَدْخُوْلًا بِهَا** که چیري [ښځه] مدخول بها وي **وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ** او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی **لِأَنَّهٗ وُجِدَ زَمَانٌ لَمْ يُطَلِّقْهَا فِيْهِ** ځکه چې [دلته] داسي څه وخت موجود سو چې په هغه کي [خاوند] ښځي ته طلاق نه ورکړی **وَإِنْ قَلَّ** که څه هم هغه وخت [ډېر] لږ دی **وَهُوَزَمَانُ قَوْلِهٖ أَنْتِ طَالِقٌ قَبْلَ أَنْ يَفْرُغَ مِنْهَا** او هغه د أَنْتِ طَالِقٌ ویلو وخت دی مخکي تر دې چې خاوند له دې [أَنْتِ طَالِقٌ] څخه فارغ سي **وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّ زَمَانَ الْبِرِّ مُسْتَثْنًى عَنِ الْيَمِيْنِ بِدَلَالَةِ الْحَالِ** د استحسان دلیل دا دی: چې په دلالت د حال سره د قسم پوره کولو زمانه له قسم څخه مستثنیٰ ده **لِأَنَّ الْبِرَّ هُوَ الْمَقْصُوْدُ** ځکه چې همدا د قسم "پوره کول" مقصود دي [یعني له قسم څخه ځان بري کول مطلوب دي] **وَلَا يُمْكِنُهٗ تَحْقِيْقُ الْبِرِّ إِلَّا أَنْ يَجْعَلَ**

هٰذَا الْقَدْرَ مُسْتَثْنًى او د هغه لپاره د قسم پوره كول ثابتول ممكن نه دي مګر [په هغه وخت كې] چي دومره اندازه [وخت] مستثنیٰ وګرځول سي وَأَصْلُهُ: مَنْ حَلَفَ لَا يَسْكُنُ هٰذِهِ الدَّارَ او اصل د دې [اختلاف] دا دی: چي كوم څوک قسم وكړي چي هغه به په دې كور كي نه اوسيږي فَاشْتَغَلَ بِالنُّقْلَةِ مِنْ سَاعَتِهِ او [بيا] په هغه ګړي د سامان په نقل كولو مشغول سي وَأَخَوَاتُهُ عَلَى مَا يَأْتِيكَ فِي الْأَيْمَانِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د دې نور مثالونه [هم سته] چي هغه به انشاء الله په كِتَابُ الأَيْمَان كي تا ته راسي.

**اللغات:** ﴿مَوْصُوْل﴾ د ضرب د باب مفعول دی: وصل سوی، متصل، ﴿البَرّ﴾ له قسم څخه بري كېدل يعني خپل قسم پوره كول (او خپلي غاړي خلاصول)، ﴿النَّقْلَة﴾ د نَقْلٌ اسم مرة دی: يو وار نقل كول، يو شی له يوه ځای څخه بل ځای ته نقل كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه خاوند خپلې ښځي ته د أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكَ تر ويلو وروسته سمدستي أَنْتِ طَالِقٌ ووايي، نو په دې صورت كي استحساناً په دغه وروستني (آخري) أَنْتِ طَالِقٌ سره يو طلاق واقع كيږي، كنې د قياس تقاضا خو دا ده چي په مخكني أَنْتِ طَالِقٌ سره چي د مَا لَمْ أُطَلِّقْكَ وطرف ته كوم طلاق منسوب سوی دی هغه طلاق دي هم واقع سي او وروستني أَنْتِ طَالِقٌ دي هم واقع سي، يعني د قياس تقاضا دا ده چي په دې جمله سره دي دوه طلاقه واقع سي، په دې شرط چي ښځه مدخول بها وي، ځكه كه مدخول بها نه وي، نو په اول طلاق سره هغه بائنه ګرځي او د دوهم طلاق لغو كيږي، همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام زفر دليل:** د قياس او امام زفر دليل دا دی چي: دلته چي خاوند په أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْهَا سره كوم طلاق پر عدمِ تطليق معلق كړی دی، كه څه هم تر هغه وروسته متصلاً (سمدستي) خاوند طلاق وركړی دی، خو بيا هم د دوهم أَنْتِ طَالِقٌ ويلو په دوران كي دومره خالي وخت موجود سو چي په هغه كي پر مَا لَمْ أُطَلِّقْكَ معلق طلاق واقع سي، ځكه كه څه هم خاوند وروستنی أَنْتِ طَالِقٌ د مَا لَمْ أُطَلِّقْكَ سره متصلاً ويلی دی، لېكن د دې باوجود د أَنْتِ طَالِقٌ د شپږو حروفو يعني د "أَنْتِ طَالِ" د اداء كولو وخت خَالٍ عَنِ التَّطْلِيْقِ دی، لهذا د دې الفاظو تر اداء كولو مخكي به په هغه لږ غوندي

وخت کي طلاق معلق واقع کيږي، او څرنګه چي وروستنی أَنْتِ طَالِقٌ مطلق دی، نو په هغه سره به هم يو طلاق واقع کيږي او ټوله به دوه طلاقه واقع کيږي.

**وجه الاستحسان إلخ**: د استحسان دليل دا دی چي کله خاوند په أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ سره له قسم څخه د بري کېدلو اراده وکړه، نو تر قسم وروسته هغه ته خامخا دومره وخت ورکول پکار دي چي په هغومره وخت کي خاوند خپل قسم پوره کړی سي او له قسم څخه بري سي، ځکه چي د هغه مقصد همدغه دی چي خپل قسم پوره کړي او له قسم څخه بري سي، لهذا تر أَنْتِ طَالِقٌ مَا لَمْ أُطَلِّقْكِ وروسته چي کوم أَنْتِ طَالِقٌ دی، هغه له قسم څخه د بري کېدلو وخت دی او د طلاق نه ورکولو څخه خالي وخت نه دی چي په هغه کي معلق طلاق واقع کړی سي، نو ځکه به معلق طلاق نه واقع کيږي، او فقط په وروستني أَنْتِ طَالِقٌ سره به يو طلاق واقع کيږي.

**وأصله إلخ**: فرمايي چي زموږ او د امام زفر رَحِمَهُ الله تر مينځ اصل اختلاف د يمين په مسئله کي دی، مثلاً که يو سړی قسم وکړي چي "زه به په دې کور کي نه اوسېږم"، او تر هغه وروسته متصلاً له هغه کور څخه د خپل سامان په راټولولو او نقل کولو باندي مشغول سي، نو د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز هغه حانث کيږي، ځکه چي تر قسم وروسته هغه په دې کور کي پاته سو، ليکن زموږ په نېز نه حانث کيږي، ځکه چي تر قسم وروسته هغه ته دومره وخت خامخا ورکول پکار دي چي په هغه کي دئ خپل سامان راټول او جمع کړي او خپل قسم پوره کړي، او څرنګه چي په دې مسئله کي هم کله خاوند پر عدم تطليق د طلاق تر معلق کولو سروسته د شپږو حروفو په اندازه له عدم تطليق څخه منع سو، نو ځکه به د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز فوراً طلاق واقع کيږي، او څرنګه چي زموږ په نېز دا وخت د هغه لپاره د قسم پوره کولو او له قسم څخه د ځان بري کولو وخت دی، نو د عدم تطليق زمانه موجوده نه سوه، نو په دې وجه به فقط يو طلاق واقع کيږي.

د دې مسئلې نور صورتونه به په تفصيلي توګه انشاء الله په كِتَابُ الأَيْمَان کي ذکر سي. فَانْتَظِرُوا إِنِّي مَعَكُمْ مِنَ الْمُنْتَظِرِيْن

## د "أَنْتِ طَالِقٌ يَوْمَ أَتَزَوَّجُكِ" بيان

| وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَةٍ: يَوْمَ أَتَزَوَّجُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ او کوم څوک چي ښځي ته ووايي: په کومه ورځ چي زه ستا سره نکاح [واده] وکړم نو ته [پر ما] طلاقه يې فَتَزَوَّجَهَا لَيْلًا بيا [خاوند] په شپه کي د هغې سره نکاح وکړي طَلُقَتْ نو [هم] ښځه طلاقيږي لِأَنَّ الْيَوْمَ يُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ بَيَاضُ النَّهَارِ ځکه يَوْم [چي کله] ذکر کيږي [نو] په هغه سره [په عام عُرف کي] د ورځي سپينوالی [رڼا] مراديږي فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ إِذَا قُرِنَ |
|---|

بِفِعْلٍ يَمْتَدُّ كَالصَّوْمِ وَالْأَمْرِ بِالْيَدِ نو به [يَوْم] د ورځې پر سپينوالي حمل کيږي کله چې هغه د ممتد فعل سره متصل وي، لکه روژه او د ښځې اختيار لِأَنَّهُ يُرَادُ بِهِ الْمِعْيَارُ ځکه چې [په دې صورت کې] په دې سره معيار مراديږي وَهٰذَا أَلْيَقُ بِهِ او د ورځې سپينوالی [بياضِ نهار] د دې زيات لائق دی وَيُذْكَرُ وَيُرَادُ بِهِ مُطْلَقُ الْوَقْتِ او [کله نا کله] يَوْم ذکر کيږي او له هغه څخه مطلق وخت مراديږي قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ [الأنفال: ١٦] الله تعالیٰ فرمايلي دي: وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ...(او کوم څوک چې په دغه ورځ [د جنګ] شا وګرځوي کفارو ته...) وَالْمُرَادُ بِهِ مُطْلَقُ الْوَقْتِ او [دلته] په يَوْم سره مطلق وخت مراد دی فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ إِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ لَا يَمْتَدُّ نو به [يَوْم] پر مطلق وخت حمل کيږي کله چې هغه د غيرِ ممتد فعل سره متصل وي وَالطَّلَاقُ مِنْ هٰذَا الْقَبِيلِ او طلاق له همدغه قبيلې څخه دی فَيَنْتَظِمُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ نو به شپې او ورځې دواړو ته شامل وي وَلَوْ قَالَ: عَنَيْتُ بِهِ بَيَاضَ النَّهَارِ خَاصَّةً او که [خاوند] ووايي: چې په دې [يَوْم] سره ما خاص د ورځې سپينوالی مراد وو دُيِّنَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً به [د هغه] تصديق کيږي لِأَنَّهُ نَوٰى حَقِيْقَةَ كَلَامِهِ ځکه چې هغه د خپل کلام د حقيقت نيت کړی دی وَاللَّيْلُ لَا يَتَنَاوَلُ إِلَّا السَّوَادَ او لفظ د لَيْل فقط [د شپې] و تيارې ته شامل دی وَالنَّهَارُ يَتَنَاوَلُ الْبَيَاضَ خَاصَّةً او لفظ د نَهَار فقط [د ورځې] سپينوالي [رڼا] ته شامل دی وَهٰذَا هُوَ اللُّغَةُ او همدا لغت دی [يعني په لغت کې د دوی تعريفونه همدا دي].

**اللغات:** ﴿بَيَاض﴾ سپينوالی، رڼا، ځلا. ﴿يَمْتَدّ﴾ د افتعال مضارع ده: اوږدېدل، زياتېدل. ﴿أَلْيَق﴾ زيات لائق، زيات مناسب. ﴿خَاصَّةً﴾ په ځانګړې توګه، خصوصاً، خاص. ﴿سَوَاد﴾ تور والی، تاريکي، تياره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يوې ښځې ته يو سړی داسې ووايي: يَوْمَ أَتَزَوَّجُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ (چې په کومه ورځ زه ستا سره نکاح وکړم، نو ته طلاقه يې)، بيا هغه د ښځې سره د شپې په وخت کې نکاح وکړي، نو هم طلاق واقع کيږي؛ د دې مسئلې دليل د يو أصولي بحث سره تعلق لري، اولاً تاسو په دې خبره ځان پوه کړئ! چې دلته درې لفظونه ذکر سوي دي: نَهَار، لَيْل، يَوْم. نَهَار د لغت په اعتبار سره د خالص بَيَاض (رڼا) لپاره دی، او د دې اطلاق پر هغه وخت کيږي کوم چې د لمر راختو (طُلُوْعُ الشَّمْس) څخه تر لمر لوېدلو (غُرُوْبُ الشَّمْس) پورې وي، او لَيْل د خالص سَوَاد لپاره دی، او د دې اطلاق پر هغه وخت کيږي کوم چې د لمر لوېدلو څخه تر لمر راختو پورې وي، او د يَوْم په باره کې د ځينو رايه دا ده چې يَوْم د بياضِ نهار او د

مطلق وخت په مينځ کې مشترک دی (يعني د ځينو رايه دا ده چې لفظ د يَوْم د نهار بياض لپاره هم استعماليږي او د مطلق وخت لپاره (يعني که شپه وي او که بياضِ نهار وي د هغه لپاره) هم استعماليږي. (له بياضِ نهار څخه د ورځې د رڼا حالت مراد دی کوم چې له سهار څخه شروع کيږي او ماښام ختميږي). او د اکثرو رايه دا ده چې يَوْم د بياضِ نهار لپاره حقيقت دی او د مطلق وخت لپاره مجاز دی.

او په دواړو صورتونو کې لفظ د يَوْم ظرف دی، او په دې دواړو احتمالو کې به يوه احتمال ته د قرينې په وجه ترجيح ورکول کيږي، او له قرينې څخه مراد يوه قاعده ده، قاعده دا ده چې لفظ د يَوْم به د فعل ممتد سره متصل وي (يعني يا داسې فعل ته به مضاف او منسوب وي چې د هغه په پوره کولو کې څه وخت لګيږي، لکه روژه، او د ښځې لپاره د طلاق اختيار او داسې نور)، يا به د فعلِ غير ممتد سره متصل وي (يعني يا به داسې فعل او کار ته منسوب وي چې د هغه په پوره کولو کې څه وخت نه لګيږي، لکه داخليدل، راتلل، وتل، دا ټوله د يوې ثانيې کارونه دي)، که چيرې د فعل ممتد سره متصل وي، نو له يَوْم څخه به مراد بياضِ نهار وي، او همدغه به متعين او راجح وي، ځکه چې په دې صورت کې به له يَوْم څخه مراد معيار وي، او بياض نهار د معيار جوړيدلو زيات لائق دی (او له معيار څخه مراد هغه زمانه ده چې ټوله کار لره مشتمله وي يعني کار هغه زمانه ټوله نيولې وي، لکه يَوْم چې د روژې لپاره معيار دی، ځکه چې يَوْم (ورځ) ټولې روژې لره مشتمله ده او روژې ټوله ورځ نيولې ده).

او که لفظ د يَوْم د فعلِ غيرِ ممتد سره متصل وي، نو له يَوْم څخه به مراد مطلق وقت وي، لکه په دې آيت ﴿وَمَنْ يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُ﴾ کې چې له يَوْم څخه مطلق وخت مراد دی، او طلاق هم د فعلِ غيرِ ممتد له قبيلې څخه دی، نو کله چې د طلاق سره يَوْم متصل سي، نو بيا به له يَوْم څخه مطلق وخت مراد وي، لهذا په يَوْمَ أَتَزَوَّجُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ کې به هم له يَوْم څخه مطلق وخت مراد وي او د ورځې او شپې په کوم وخت کې چې هم خاوند د ښځې سره نکاح وکړي، طلاق به واقع کيږي.

**ولوقال إلخ:** فرمايي که خاوند په دې جمله سره خاص د بياضِ نهار نيت کړی وي، نو قضاءً به هم د هغه تصديق کيږي (يعني د قاضي په دربار کې به هم د خاوند د نيت مطابق فيصله کيږي)، ځکه چې هغه د خپل کلام د حقيقت نيت کړی دی (ځکه چې د خاوند په دې کلام کې په پوره توګه د بياضِ نهار احتمال هم سته) او د خپل کلام د حقيقت مرادولو او د هغه د نيت کولو اختيار هر چا لره سته.

**والليل إلخ:** د دې حاصل او خلاصه موږ د تشريح په شروع کې ذکر کړه.



# فَصْلٌ

**تشريح:** دا فصل د ښځو وطرف ته د طلاق د نسبت کولو په بيان کي دی، د دې فصل د عليحده ذکر کولو وجه دا ده چي د خلکو وطرف د طلاق نسبت او اضافت کول أصل دی، او د ښځو وطرف ته د طلاق په نسبت کولو کي د دغه اصل مخالفت لازميږي، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله دا فصل جلا بيانوي.

## د "أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ" بيان

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ او کوم څوک چي خپلي ښځي ته ووايي: زه ستا څخه طلاق يم فَلَيْسَ بِشَيْءٍ نو [دا] هيڅ شی هم نه دي [يعني په دې سره هيڅ طلاق نه واقع کيږي] وَإِنْ نَوَى طَلَاقًا که څه هم [په دې سره] خاوند د طلاق نيت کړی وي وَلَوْ قَالَ: أَنَا مِنْكِ بَائِنٌ أَوْ أَنَا عَلَيْكِ حَرَامٌ يَنْوِي الطَّلَاقَ او که [خاوند] ووايي: زه له تا څخه بائن يم يا پر تا حرام يم او نيت يې د طلاق وي فَهِيَ طَالِقٌ نو هغه طلاقه ده [يعني طلاقيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَقَعُ الطَّلَاقُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ أَيْضًا إِذَا نَوَى او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په اول صورت کي هم طلاق واقع کيږي که چيري [خاوند] د طلاق نيت وکړي لِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ مُشْتَرَكٌ بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ ځکه چي ملکيت د نکاح د خاوند او ښځي په مينځ کي مشترک دی حَتَّى مَلَكَتِ الْمُطَالَبَةَ بِالْوَطْءِ كَمَا يَمْلِكُ هُوَ الْمُطَالَبَةَ بِالتَّمْكِينِ [همدا وجه ده] چي ښځه د وطي د مطالبې مالکه ده لکه څرنګه چي خاوند د قدرت ورکولو د مطالبې مالک دی وَكَذَا الْحِلُّ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا او همدارنګه حلت [هم] د دوی په مينځ کي مشترک دی وَالطَّلَاقُ وُضِعَ لِإِزَالَتِهِمَا او طلاق د دې دواړو د ختمولو لپاره وضع سوی دی فَيَصِحُّ مُضَافًا إِلَيْهِ كَمَا يَصِحُّ مُضَافًا إِلَيْهَا نو ځکه به د خاوند وطرف ته [د طلاق] نسبت کول صحيح وي لکه څرنګه چي د ښځي وطرف ته [د هغه] نسبت صحيح دي كَمَا فِي الْإِبَانَةِ وَالتَّحْرِيمِ [او] لکه څرنګه چي په بائن کېدلو او حرام کېدلو کي [نسبت

صحيح دی] وَلَنَا: أَنَّ الطَّلَاقَ لِإِزَالَةِ الْقَيْدِ زموږ دليل دا دی: چې طلاق [د نکاح] د قيد د ختمولو لپاره دی وَهُوَ فِيهَا دُونَ الزَّوْجِ او [د نکاح] قيد په ښځه کې وي نه په خاوند کې أَلَا تَرَى أَنَّهَا هِيَ الْمَمْنُوعَةُ عَنِ التَّزَوُّجِ بِزَوْجٍ آخَرَ وَالْخُرُوجِ آيا ته نه ګورې! چې همدغه ښځې د بل خاوند له نکاح څخه او له [بهر] وتلو څخه منع کيږي وَلَوْ كَانَ لِإِزَالَةِ الْمِلْكِ فَهُوَ عَلَيْهَا او که طلاق د ملکيت د ختمولو لپاره وي نو ملکيت [توله] پر ښځې دی لِأَنَّهَا مَمْلُوكَةٌ ځکه چې همدا ښځه مملوکه وي وَالزَّوْجَ مَالِكٌ خاوند خو مالک وي وَلِهَذَا سُمِّيَتْ مَنْكُوحَةً همدا وجه ده چې ښځې ته منکوحه ويل کيږي بِخِلَافِ الْإِبَانَةِ په خلاف د إبانت [بائن کېدلو] لِأَنَّهَا لِإِزَالَةِ الْوُصْلَةِ ځکه چې هغه د تعلق د زائلولو لپاره دی وَهِيَ مُشْتَرَكَةٌ بَيْنَهُمَا او تعلق د خاوند او ښځې دواړو تر مينځ مشترک دی بِخِلَافِ التَّحْرِيمِ [او] په خلاف د تحريم لِأَنَّهُ لِإِزَالَةِ الْحِلِّ ځکه چې تحريم د حِلت د زائلولو لپاره دی وَهُوَ مُشْتَرَكٌ او هغه هم [د دواړو تر مينځ] مشترک دی فَصَحَّتْ إِضَافَتُهُمَا إِلَيْهِمَا نو به د إبانت او حلت نسبت کول د خاوند او ښځې طرف ته صحيح وي وَلَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا إِلَيْهَا او طلاق نسبت به فقط د ښځې وطرف ته صحيح وي.

**اللغات:** ﴿بَائِنٌ﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جلا، عليحده، بېل، ﴿تَمْكِينٌ﴾ د تفعيل مصدر دی: قدرت ورکول، ﴿إِزَالَةٌ﴾ د افعال مصدر دی: زائلول، له منځه وړل، ختمول، ﴿وُصْلَةٌ﴾ تعلق، (هغه شی چې دوه شيان سره يو ځای کوي، هغه جماعت چې د انسان سره يو ځای سفر کوي، جمع: وُصَل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته ووايي: أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ او د طلاق نيت هم وکړي، نو طلاق نه واقع کيږي، او که أَنَا مِنْكِ بَائِنٌ يا أَنَا عَلَيْكِ حَرَامٌ ووايي او د طلاق نيت هم وکړي، نو طلاق واقع کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که نيت وکړي نو په أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ سره هم طلاق واقع کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې "ملک د نکاح" او "حلّت د استمتاع" د خاوند او ښځې په مينځ کې مشترک دی، ځکه څرنګه چې د خاوند لپاره د وطي او د قدرت علی الوطی د مطالبې کولو حق او اختيار سته، همداسې د ښځې لپاره هم د وطي د مطالبې اختيار سته، همدارنګه د دواړو لپاره دا حق سته چې يو د بل له ځانګړو اندامونو څخه إفاده او إستفاده وکړي، او دواړه په دې کې مشترک دي،

همدارنګه په دواړو کي هر يو ناکح (نکاح کونکی) هم دی، او طلاق د ملک نکاح او د دغه حلت د ختمولو او زائلولو لپاره وضع سوی دی، لهذا څرنګه چي د ښځي و طرف ته طلاق منسوبول صحيح دي، همداسي به د خاوند وطرف ته هم طلاق منسوبول صحيح وي، لکه څرنګه چي إبانت او تحريم په دواړو کي هر يوه ته منسوبول صحيح دي، يعني لکه څرنګه چي په أَنَا مِنْكِ بَائِنٌ او أَنَا عَلَيْكِ حَرَامٌ سره د نيت کولو په وخت کي پر ښځي طلاق واقع کيږي. لهذا په دې صورت (أَنَا مِنْكَ طَالِقٌ) کي به هم د نيت کولو په وخت کي پر ښځي طلاق واقع کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي طلاق د "ملک نکاح" د ختمولو لپاره نه دی وضع سوی، بلکي طلاق د نکاح د قيد د ختمولو لپاره وضع سوی دی (يعني د "نکاحي قيد" د زائلولو لپاره وضع سوی دی)، او د نکاح قيد فقط په ښځه کي موجود دی، نه په خاوند کي، آيا تاسو نه وينئ! چي د خاوند لپاره د يوې ښځي پر ځای د دوو، دريو، او څلورو ښځو سره د نکاح کولو اجازه سته، حالانکي ښځي لره تر يوې نکاح وروسته نه د بلي نکاح اجازه سته او نه د خاوند له اجازې څخه بغير هغې ته د وتلو اجازه سته، نو معلومه سوه چي د نکاح قيد په ښځه کي موجود دی، او څرنګه چي طلاق د رَفْعُ الْقَيْدِ الثَّابِتِ بِالنِّكَاحِ لپاره وضع سوی دی، نو ځکه به د دغه نسبت فقط د ښځي وطرف ته کيږي.

**ولوکان إلخ:** په دې سره دا راښيي چي که موږ د امام شافعي رَحِمَهُ الله سره د دغه پر خبره موافقت وکړي او طلاق د ملک نکاح د ختمولو لپاره ومنو، نو په دې صورت کي به هم د طلاق د نسبت محور او مرکز فقط ښځه وي، ځکه چي فقط همدا ښځه مملوکه وي، خاوند خو مالک وي، همدا وجه ده چي ښځي ته مَنْكُوْحَه ويل کيږي، او خاوند ته نَاكِح ويل کيږي، لهذا که موږ د امام شافعي رَحِمَهُ الله سره د دغه خبره تسليم هم کړو او طلاق د ملک نکاح لپاره ختمونکی او زائلونکی ومنو، نو په دې صورت کي به هم فقط د ښځي وطرف ته د طلاق نسبت صحيح وي.

**بخلاف الإبانة إلخ:** امام شافعي رَحِمَهُ الله پر أَنَا مِنْكِ بَائِنٌ او أَنَا عَلَيْكِ حَرَامٌ باندي د أَنَا مِنْكِ طَالِقٌ جمله قياس کړې وه، په دې عبارت سره د دغه ترديد کوي، فرمايي چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس صحيح نه دي، ځکه چي د إبانت لفظ د تعلق او ربط د زائلولو او ختمولو لپاره دی، او د تعلق په ساتلو کي ښځه او سړی دواړه مشترک دي (يعني څرنګه چي سړی د ښځي سره ربط او تعلق ساتي، همداسي يې ښځه هم ور سره ساتي)، لهذا د إبانت نسبت به د دواړو وطرف ته صحيح وي، همداسي به د تحريم او حرمت نسبت هم د دواړو وطرف ته صحيح وي، ځکه چي تحريم د حلت د ختمولو لپاره دی، او په حِلَت کي دواړه مشترک دي، لهذا تحريم به هم د دواړو وطرف ته منسوبول صحيح وي،

لهذا پر دې باندې قياس كول او طلاق د خاوند وطرف ته منسوبول صحيح نه دي، ځكه مخكې هم موږ ووېيل چې طلاق د "نكاحي قيد" د رفع كولو لپاره وضع سوى دى، او دغه قيد فقط په ښځه كې موجود دى، نه په خاوند كې، نو ځكه زموږ دعوىٰ دا ده چې: لَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا إِلَيْهَا.

## د طلاق په وركولو كې د شک كلمه ذكر كول (حكم او اختلاف)

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا او كه [خاوند] ووايي: ته طلاقه يې په يوه طلاق سره يا نه يې فَلَيْسَ بِشَيْءٍ نو دا هيڅ شى نه دي [يعني په دې سره هيڅ طلاق نه واقع كيږي] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هَكَذَا ذَكَرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ مِنْ غَيْرِ خِلَافٍ صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې: همداسي [امام محمد رَحِمَهُ الله] بغير له اختلاف څخه [دا مسئله] ذكر كړې ده وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ آخِرًا❁ او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آخري قول دى وَعَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا تَطْلُقُ وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً او د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول (كوم چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول دى) ښځه په يوه رجعي طلاق سره طلاقيږي ذُكِرَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ فِي كِتَابِ الطَّلَاقِ فِيمَا إِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا شَيْءَ [د مبسوط] په كتابُ الطلاق كې د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول داسې ذكر سوى دى: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا شَيْءَ. [يعني په مبسوط كې فقط تر "لَا" وروسته د "شَيْءَ" لفظ زيات سوى دى] وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الْمَسْأَلَتَيْنِ او د دواړو مسئلو تر مينځ هيڅ فرق نسته وَلَوْ كَانَ الْمَذْكُورُ هٰهُنَا قَوْلَ الْكُلِّ او كه دلته [په جامع صغير كې، كوم چې متن د هدايې هم دى] ذكر سوى قول د ټولو وي [يعني كه دا قول د امام صاحب او صاحبينو په مينځ كې متفق عليه ومنل سي] فَعَنْ مُحَمَّدٍ رِوَايَتَانِ نو [بيا] به له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه وي لَهُ: أَنَّهُ أَدْخَلَ الشَّكَّ فِي الْوَاحِدَةِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې خاوند په وَاحِدَةً [يوه طلاق] كې شک پيدا كړى لِدُخُولِ كَلِمَةِ "أَوْ" بَيْنَهَا وَبَيْنَ النَّفْيِ ځكه چې د وَاحِدَةً او نفي په مينځ كې كلمه د "أَوْ" داخل سوه فَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الْوَاحِدَةِ وَيَبْقَى قَوْلُهُ: أَنْتِ طَالِقٌ لهذا د وَاحِدَةً اعتبار به ساقطيږي او [فقط] د خاوند دا قول به پاتيږي: أَنْتِ طَالِقٌ بِخِلَافِ قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ أَوْ لَا په خلاف د دغه د دې قول: أَنْتِ طَالِقٌ أَوْ لَا

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال في الهندية: ولو قال لامرأته: أنتِ طالق واحدة أو لا...لا يقع شئ. [القول الراجح ج:١، ص:٣١٧]

لِأَنَّهُ أَدْخَلَ الشَّكَّ فِي أَصْلِ الْإِيْقَاعِ ځکه چي [دلته] خاوند په أصل إيقاع [طلاق واقع کولو] کي شک پيدا کړی فَلَا يَقَعُ نو ځکه به [طلاق] نه واقع کيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْوَصْفَ مَتٰى قُرِنَ بِالْعَدَدِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي کله وصف [طَالِقٌ] د عدد سره متصل سي كَانَ الْوُقُوْعُ بِذِكْرِ الْعَدَدِ نو د طلاق واقع کېدل د عدد په ذريعه سره کيږي أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ قَالَ لِغَيْرِ الْمَدْخُوْلِ بِهَا: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا آيا ته نه ګوري! که خاوند غيرِ مدخول بها ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا تَطْلُقُ ثَلَاثًا نو درې طلاقه واقع کيږي وَلَوْ كَانَ الْوُقُوْعُ بِالْوَصْفِ لَلَغَا ذِكْرُ الثَّلَاثِ نو که چيري واقع کېدل د طلاق د وصف په ذريعه سره کېدای نو د ثلاث ذکر به لغوه وای وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَاقِعَ فِي الْحَقِيْقَةِ إِنَّمَا هُوَ الْمَنْعُوْتُ الْمَحْذُوْفُ او دا [حکم] ځکه [دی] چي واقع کېدونکی شی په حقيقت کي موصوف محذوف دی [يعني د طلاق واقع کېدل په حقيقت کي د محذوف موصوف په ذريعه سره کيږي] مَعْنَاهُ: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيْقَةً وَاحِدَةً [او] د هغه مفهوم دا دی: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيْقَةً وَاحِدَةً عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سو وَإِذَا كَانَ الْوَاقِعُ مَا كَانَ الْعَدَدُ نَعْتًا لَهُ او کله چي واقع کېدونکی شی هغه دی چي عدد د هغه صفت دی [يعني کله چي دلته د طلاق واقع کېدل د هغه شي په ذريعه سره دي چي "عدد" د هغه صفت دی] كَانَ الشَّكُّ دَاخِلًا فِي أَصْلِ الْإِيْقَاعِ نو به شک په اصل إيقاع کي داخل وي فَلَا يَقَعُ شَيْءٌ نو ځکه به هيڅ شی نه واقع کيږي.

**اللغات:** ﴿لَغٰى﴾ د نصر ماضي ده: لغو کېدل، باطلېدل. ﴿الْمَنْعُوْتِ﴾ د فتح له باب څخه اسمِ مفعول دی: موصوف، صفت کړی سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا (ته يو وار [پر ما] طلاقه يې، يا نه)، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دويم (او راجح) قول کي طلاق نه واقع کيږي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز يو طلاق رجعي واقع کيږي، صاحب د هدايې فرمايي چي په جامع صغير کي دا مسئله متفق عليه ذکر سوې ده، او هيڅ اختلاف پکښې ذکر سوی نه دی (يعني د جامع صغير په بَابُ إِيْقَاعِ الطَّلَاقِ ص: ۱۹۳ کي ذکر سوي دي چي که خاوند ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا، نو زموږ د دېوه امام په نېز هم طلاق نه واقع کيږي) ، لېکن صحيح دا ده چي دا مسئله متفق عليه نه ده، بلکي مختلف فيه ده، او

اختلاف هغه دی کوم چي موږ اوس بيان کړی (چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز طلاق نه واقع کيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز يو طلاقِ رجعي واقع کيږي).

د دې مسئلې د مختلف فيه کېدلو دليل دا دی چي د مبسوط په كتابُ الطَّلَاق کي امام محمد رَحِمَهُ الله دا عبارت ذکر کړی دی: إِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهٖ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا شَئٍ، او بيا يې ويلي دي چي په دې سره يو طلاق رجعي واقع کيږي، لهذا دلته (په جامع صغير کي) به هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د طلاقِ رجعي د واقع کېدلو حکم وي، ځکه چي په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا او په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا شَئٍ کي خاص فرق نشته، د مبسوط په مسئله کي صرف لفظ د "شَئٍ" زيات سوی دی او صرف په دې سره د مسئلې حکم نه بدليږي، لهذا څرنګه چي د لَا شَئٍ په صورت کي طلاق واقع کيږي، همداسي به هغه صورت کي هم طلاق واقع کيږي په کوم کي چي "شَئٍ" نه وي ذکر سوی. او که دلته بيان سوې مسئله متفق عليه ومنل سي، نو بيا به دا ويل کيږي، چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې مسئله کي دوه رايتونه دي: په يوه روايت کي د هغه په نيز طلاق نه واقع کيږي او په بل روايت يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

**د امام محمد دليل:** (په کوم روايت کي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز يو طلاقِ رجعي واقع کيږي، په هغه روايت کي د امام محمد) دليل دا دی چي خاوند تر أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وروسته د أَوْ لَا په ويلو سره د إثبات او نفي تر مينځ د "أَوْ" په ذريعه سره شک پيدا کړی، نو ځکه د وَاحِدَةً اعتبار ساقط سو، او فقط أَنْتِ طَالِقٌ پاته سو، او په أَنْتِ طَالِقٌ سره فقط يو طلاقِ رجعي واقع کيږي، نو ځکه موږ وايو چي په دې صورت کي به يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

**بخلاف إلخ:** فرمايي چي د أَنْتِ طَالِقٌ أَوْلَا مسئله د أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً أَوْ لَا د مسئلې څخه جلا او عليحده ده، ځکه چي د أَنْتِ طَالِقٌ أَوْلَا ويلو په صورت کي په أصل إيقاع (واقع کولو) کي شک پيدا کيږي، او په أصل إيقاع کي د شک پيدا کېدلو په صورت کي طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي د نکاح بقاء او قيام يقيني دی، لهذا هغه په شک سره زائلېدی نه سي لِأَنَّ الْيَقِيْنَ لَا يَزُوْلُ بِالشَّكِ.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي کله وصف د عدد سره يو ځای ذکر سي، نو قاعده دا ده چي د طلاق وقوع به د عدد مطابق وي او د عدد په ذريعه سره به د هغه وقوع کيږي، مثلاً که څوک ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً يا ووايي أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثَةً، نو په دې صورت کي د طلاق وقوع د وَاحِدَةً يا ثَلَاثًا مطابق کيږي، د

وصف يعني د طَالِقٌ مطابق طلاق نه واقع کيږي (يعني د طلاق په واقع کېدلو کې عدد ته کتل کيږي، نه وصف ته) ، او د دې واضح دليل دا دی چې که خاوند غير مدخول بها أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا ووايي، نو پر هغې درې طلاقه واقع کيږي، تاسي اوګورئ! دلته هم د وقوع تعلق د وصف سره نه دی، بلکي د عدد يعني د ثَلَاثًا سره دی، ځکه که د وقوع تعلق د وصف يعني د طَالِقٌ سره وای، نو په دې صورت کې به دا غير مدخول به ښځه فقط په طَالِقٌ سره هم بائنه کرځېدای او د ثَلَاث ذکر به لغوه وای (ځکه چې غيرِ مدخول بها ښځه فقط په "أَنتِ طالِقٌ" سره هم بائنه کرځي.

**وهذا لأن إلخ:** په دې سره دا راښيي چې د طلاق د وقوع تعلق د عدد سره ځکه دی چې دلته د عدد (وَاحِدَةً) د محذوف موصوف (تَطْلِيْقَةً) په ذريعه سره طلاق واقع کيږي، او تقدير د عبارت داسي دی: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيْقَةً وَاحِدَةً، لهذا کله چې د عدد په موصوف سره طلاق واقع کيږي، نو شک به هم په عدد کې وي، او د عدد په وجه به په إِيقاع کې هم شک راځي، او کله چې په إيقاع کې شک راسي، نو طلاق نه واقع کيږي، لهذا په دې مسئله کې به هم طلاق نه واقع کيږي.

## د مرګ وطرف ته د طلاق نسبت کول

**وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ مَعَ مَوْتِيْ أَوْ مَعَ مَوْتِكِ** او که [خاوند] ووايي: ته زما د مرګ سره يا ستا د مرګ سره [پر ما] طلاقه يې **فَلَيْسَ بِشَيْءٍ** نو هيڅ طلاق نه واقع کيږي **لِأَنَّهُ أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ لَهُ** ځکه چې خاوند يې داسي حالت [مرګ] ته طلاق منسوب کړی دی کوم چې د هغه منافي دي **لِأَنَّ مَوْتَهُ يُنَافِي الْأَهْلِيَّةَ** ځکه چې د خاوند مرګ [د طلاق] د أهل کېدلو منافي دي **وَمَوْتَهَا يُنَافِي الْمَحَلِّيَّةَ** او د ښځې مرګ [د طلاق] د محل کېدلو منافي دي **وَلَا بُدَّ مِنْهُمَا** حالانکي دواړه ضروري دي [يعني طلاق لپاره د أهليت او محليت دواړو پاتېدل ضروري دي].

**تشريح: مسئله:** دا ده که خاوند پر خپل مرګ يا د ښځې پر مرګ طلاق معلق نه کړي، بلکي داسي ووايي چې: "زما د مرګ سره ته طلاقه يې، يا ستا د مرګ سره ته طلاقه يې"، نو په دې صورت کې طلاق نه واقع کيږي؛ ځکه چې په دې صورت کې تر مرګ وروسته طلاق واقع کيږي، او تر مرګ وروسته طلاق واقع کېدای نه سي، ځکه چې تر مرګ وروسته حالت د طلاق سره منافي دی، د دې وجه دا ده چې د طلاق ورکونکي لپاره دا ضروري دي چې هغه به د طلاق أهل وي، او تر خپل مرګ وروسته هغه د طلاق أهل نه پاتيږي، او د طلاق واقع کېدلو لپاره دا ضروري دي چې ښځه به د طلاق

محل وي، او د ښځې تر مرګ وروسته ښځه د طلاق محل نه پاتې کيږي، نو ځکه به په دې صورت کې طلاق نه واقع کيږي.

## د خاوند او ښځې د مالک یا مملوک جوړېدلو حکم

وَإِذَا مَلَكَ الزَّوْجُ امْرَأَتَهُ او کله چې خاوند د خپلې ښځې مالک سي أَوْ شِقْصًا مِنْهَا يا د خپلې ښځې د يوې حصې [مالک سي] أَوْ مَلَكَتِ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا يا ښځه د خپل خاوند مالکه سي أَوْ شِقْصًا مِنْهُ يا د خپل خاوند د يوې حصې [مالکه سي] وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ نو [د دوی ترمينځ] فرقت واقع کيږي لِلْمُنَافَاةِ بَيْنَ الْمِلْكَيْنِ د دوو ملکونو په مينځ کې د منافات په وجه أَمَّا مِلْكُهَا إِيَّاهُ کوم چې د ښځې مالکه کېدل دي د خاوند [يعني کوم چې هغه صورت دی چې په هغه کې ښځه د خاوند مالکه سي] فَلِلِاجْتِمَاعِ بَيْنَ الْمَالِكِيَّةِ وَالْمَمْلُوكِيَّةِ نو هغه د مالکيت او مملوکيت د يو ځای کېدلو په وجه [ناممکن] دی وَأَمَّا مِلْكُهُ إِيَّاهَا او کوم چې د خاوند مالک کېدل دي د ښځې فَلِأَنَّ مِلْكَ النِّكَاحِ ضَرُورِيٌّ نو ځکه چې ملک د نکاح د ضرورت بناء [ثابت] دی وَلَا ضَرُورَةَ مَعَ قِيَامِ مِلْكِ الْيَمِينِ او د ملک يمين د قيام [او ثبوت] سره [ملک نکاح ته] هيڅ ضرورت نسته فَيَنْتَفِي نو ځکه به [ملک نکاح] منتفي کيږي [يعني نکاح به ختميږي] وَلَوِ اشْتَرَاهَا ثُمَّ طَلَّقَهَا او که [خاوند] ښځه رانيسي بيا هغې ته طلاق ورکړي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ طلاق نه واقع کيږي لِأَنَّ الطَّلَاقَ يَسْتَدْعِي قِيَامَ النِّكَاحِ ځکه چې د نکاح د قائم پاتېدلو تقاضا کوي وَلَا بَقَاءَ لَهُ مَعَ الْمُنَافِي لَا مِنْ وَجْهٍ وَلَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او د منافي سره نه مِنْ وَجْه نکاح پاتې کيږي او نه مِنْ كُلِّ وَجْه وَكَذَا إِذَا مَلَكَتْهُ أَوْ شِقْصًا مِنْهُ او همدارنګه کله چې [ښځه] د خاوند يا د خاوند د يوې حصې مالکه سي لَا يَقَعُ الطَّلَاقُ نو [هم] طلاق نه واقع کيږي لِمَا قُلْنَا مِنَ الْمُنَافَاةِ د هغه دليل په وجه سره کوم چې مونږ د منافات په حواله سره [اوس] ذکر کړی وَعَنْ مُحَمَّدٍ[*]: أَنَّهُ يَقَعُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې [طلاق] واقع کيږي لِأَنَّ الْعِدَّةَ وَاجِبَةٌ ځکه چې عدت واجب دی بِخِلَافِ

[*] القول الراجح: قول الشيخين، كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله : ...ولو أعتقها بعد ما اشتراها ثم طلقها قبل أن يمضى مدة تنقضى فيها العدة يقع طلاقه عليها فى قول محمد وأبى يوسف الأول، ثم رجع أبو يوسف عن هذا وقال: لا يقع، وهو قول زفر وعليه الفتوىٰ. (الخانية ج:٢، ص:٢٦٧). [القول الراجح ج:١، ص:٢١٩]

الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّهُ لَا عِدَّةَ هُنَاكَ ځکه چي هلته عدت نسته حَتَّى حَلَّ وَطْؤُهَا لَهُ تر دې چي [په هغه صورت کې] خاوند لره د ښځې سره وطي کول روا دي.

**اللغات:** ﴿شِقْص﴾ جزء، حصه، ټوکړه، د ځمکې يوه ټوټه. ﴿مِلْك يَمِين﴾ د غلام يا مينځې مالک کېدل. ﴿يَنْتَفِي﴾ د افتعال مضارع ده: نفي کېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو آزاد سړي د مينځې سره نکاح کړې وي، وروسته بيا مينځه رانيسي، يا يې مالک ورته هبه کړي، يا په وراثت کې مينځه ورته حاصله سي چي د هغه په وجه خاوند د مينځې د يوې حصې مالک جوړ سي، يا يو آزادې ښځې د غلام سره نکاح کړې وي، وروسته دا ښځه غلام يا د غلام يوه حصه رانيسي چي د هغه په وجه د غلام يا د غلام د يوې حصې مالکه جوړه سي، نو په دې ټولو صورتونو کې نکاح ختمېږي، او د خاوند او ښځې په مينځ کې فرقت واقع کېږي.

د دې يو دليل خو دا دی چي د ښځې او خاوند حقوق مساوي او برابر وي، او په مالک او مملوک کې ډېر تفاوت وي، نو ځکه به د خاوند يا ښځې په مالک جوړېدلو سره سمدستي نکاح ختمېږي.

**لمنافاة بين:** عقلي دليل دا دی چي د ملکِ يمين او ملکِ نکاح تر مينځ منافاة دی (يو د بل سره جمع کېدلای نه سي)، ځکه چي د ملکِ نکاح تقاضا دا ده چي ښځه مملوکه وي، او د ښځې لپاره د ملکِ يمين تقاضا دا ده چي ښځه مالکه وي، او دا دواړه ناممکن دي، نو د مالکيت او مملوکيت د اجتماع په وجه سره په دې صورت کې د دوی نکاح ختمېږي، او که خاوند د ښځې مالک سي، نو هم نکاح ختمېږي، او فرقت واقع کېږي، ځکه د خاوند لپاره چي پر ښځې کوم ملک د نکاح ثابت دی هغه د ضرورت پر بناء دی، يعني د توالد او تناسل او د ملک متعه د ضرورت په وجه خلافُ القياس پر ښځې د خاوند ملکيت ثابت دی، نو ملکِ نکاح ضروري (يعني د ضرورت پر بناء) دی، او کله چي خاوند لره ملکِ يمين ثابت سي يعني د ښځې د رقبې مالک جوړ سي، نو دا ضرورت هم ختم سي، نو ځکه به نکاح ختمېږي.

**ولو اشتراها إلخ:** د دې حاصل دا دی چي کله خاوند خپله منکوحه مينځه رانيسي، نو د هغه نکاح ختمه سوه، لهذا اوس که څه هم خاوند هغې ته طلاق ورکړي، نو هم نه واقع کېږي، ځکه چي اوس نکاح پاته نه ده، او پر ښځې عدت نسته، ځکه که پر هغې عدت واجب سي، نو بيا به نکاح مِنْ وَجه

پاته سي، حال دا چي دلته مِنْ وَجه هم نکاح نه پاتيږي، ځکه چي اوس هغه د خاوند مينځه ده. او خاوند د هغې سره فی الحاله هم وطي کولای سي، نو مِنْ کُلِّ الوُجُوه (په پوره توګه نکاح ختمه سوه).

او که ښځه خپل غلام خاوند رانيسي، يا د خاوند يوه حصه رانيسي، نو هم نکاح ختميږي، ځکه چي د مالک او مملوک په مينځ کي نکاح نه پاتيږي، لهذا اوس که څه هم خاوند هغې ته طلاق ورکړي، نو هم نه واقع کيږي.

وعن محمد إلخ: فرمايي چي له امام محمد رَحِمَهُ الله يو روايت دا نقل سوی دی چي په دويم صورت کي يعني کله چي ښځه خپل غلام خاوند رانيسي او بيا دا غلام خاوند هغې ته طلاق ورکړي، نو طلاق واقع کيږي؛ ځکه دلته که څه هم د ملکيت په وجه نکاح ختمه سوې ده، خو بيا هم مِنْ وَجه نکاح پاته ده، ځکه چي پر دغه ښځي عدت واجب دی او په عدت سره مِنْ وَجه نکاح پاتيږي، همدا وجه ده چي اوس دا غلام خاوند د خپلي ښځي سره وطي نه سي کولای. لېکن په اول صورت کي پر ښځي عدت واجب نه دی، ځکه چي آزاد خاوند د هغې سره وطي کولای سي، نو هلته نه مِنْ وجه نکاح پاتيږي او نه مِنْ کُلِّ الوجوه. لهذا په اول صورت کي خو به طلاق نه واقع کيږي، لېکن په دويم صورت کي به واقع کيږي.

## د مملوکُ الغير مينځي پر آزادۍ د طلاق معلق کولو بيان

وَلَوْ قَالَ لَهَا وَهِيَ أَمَةٌ لِغَيْرِهِ او که [خاوند] خپلي ښځي ته ووايي حال دا چي هغه د بل چا مينځه وي أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ مَعَ عِتْقِ مَوْلَاكِ إِيَّاكِ ته په دوو طلاقو سره طلاقه يې ستا د مالک د آزادولو سره فَأَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا بيا مالک هغه آزاده کړي مَلَكَ الزَّوْجُ الرَّجْعَةَ نو خاوند به د رجعت مالک وي لِأَنَّهُ عَلَّقَ التَّطْلِيقَ بِالْإِعْتَاقِ أَوِ الْعِتْقِ ځکه چي [دلته] خاوند طلاق ورکول معلق کړه پر آزادولو يا پر آزادېدلو لِأَنَّ اللَّفْظَ يَنْتَظِمُهُمَا ځکه چي لفظ د "عِتق" دواړو ته شامل دی وَالشَّرْطُ مَا يَكُونُ مَعْدُومًا عَلَى خَطَرِ الْوُجُودِ او شرط هغه دی چي د وجود د إمکان سره معدوم وي [يعني شرط هغه شي ته وايي چي اوس موجود نه وي، خو د موجودېدلو إمکان يې وي] وَلِلْحُكْمِ تَعَلُّقٌ بِهِ او حکم د هغه سره متعلق [هم] وي وَالْمَذْكُورُ بِهَذِهِ الصِّفَةِ او ذکر سوی شی [يعني عِتق] په همدغه صفت سره دی وَالْمُعَلَّقُ بِهِ التَّطْلِيقُ او کوم شی چي پر هغه [يعني پر عتق] معلق کړی سوی دی هغه تطليق [طلاق ورکول] دي لِأَنَّ فِي التَّعْلِيقَاتِ يَصِيرُ التَّصَرُّفُ تَطْلِيقًا عِنْدَ الشَّرْطِ عِنْدَنَا ځکه چي په تعليقاتو کي تصرف زموږ په نېز د شرط په وخت کي تطليق

ګرځي وَإِذَا كَانَ التَّطْلِيقُ مُعَلَّقًا بِالْإِعْتَاقِ أَوِ الْعِتْقِ او کله چي تطليق معلق کړی سوی وي پر إعتاق يا پر عتق يُوجَدُ بَعْدَهُ نو تطليق تر هغه ايعني تر إعتاق يا عتق] وروسته په وجود کي راځي ثُمَّ الطَّلَاقُ يُوجَدُ بَعْدَ التَّطْلِيقِ بيا طلاق تر تطليق وروسته په وجود کي راځي فَيَكُونُ الطَّلَاقُ مُتَأَخِّرًا عَنِ الْعِتْقِ نو طلاق به له عتق څخه مؤخر وي فَيُصَادِفُهَا وَهِيَ حُرَّةٌ لهذ طلاق به د دغه ښځي سره په داسي حالت کي مخامخ سي [يعني په داسي حالت کي به پر واقع سي] چي هغه به آزاده وي فَلَا تَحْرُمُ حُرْمَةً غَلِيظَةً بِالثِّنْتَيْنِ نو ځکه به هغه په دوو طلاقو سره د حرمتِ غليظه په توګه نه حراميږي بَقِيَ شَيْءٌ وَهُوَ أَنَّ كَلِمَةَ مَعَ لِلْقِرَانِ يو شی [اعتراض] پاته سو، هغه دا چي کلمه د "مَعَ" د اتصال لپاره ده قُلْنَا: قَدْ يُذْكَرُ لِلتَّأَخُّرِ موږ جواب ورکوو چي دا کلمه کله د تأخر [بعديت] لپاره [هم] استعماليږي كَمَا فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا [الشرح: ۵، ۶] لکه د الله په دې قول کي: فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ...إلخ [نو بېشکه تر سختۍ وروسته آساني سته، بېشکه تر سختۍ وروسته آساني سته] فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ لهذا "مَعَ" به پر همدغه تأخر [بعديت] حمل کيږي بِدَلِيلِ مَا ذَكَرْنَا مِنْ مَعْنَى الشَّرْطِ زموږ د ذکر سوي دليل يعني د شرط د معنیٰ په وجه.

**اللغات**: ﴿أَمَةٌ﴾ مينځه، ﴿عَلَى خَطَرٍ﴾ د دې إمكان سره (مع الإمكان)، ﴿يُصَادِفُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: پيدا کول، مقابل کېدل، ناڅاپه ديو شي سره مخامخ کېدل (المعجم الوسيط ج:۱، ص: ۵۱۰)، ﴿عُسْر﴾ سختي، تنګي، ﴿يُسْر﴾ آساني، پراخي.

**تشريح**: د عبارت تر تشريح مخکي په يو څو خبرو ځان پوه کړئ! تر هغه وروسته به د عبارت تشريح او حاصل بيان کړو: ①... "تَعْلِيْق": د دې معنیٰ ده: "يو شی پر بل شي معلق کول"، کوم شی چي معلق کړی سي هغه ته مشروط وايي او پر کوم شي چي معلق کړی سي هغه ته شرط وايي، مثلاً که طلاق پر آزادۍ معلق کړی سي، نو طلاق مشروط دی او آزادي شرط ده. ②... "تَطْلِيق" د "تطليق" معنیٰ ښکاره ده يعني: "طلاق ورکول"، او د "الطَّلَاق" معنیٰ هم ښکاره ده چي "طلاق" ته وايي. دلته په دې خبره ځان پوهول پکار دي چي "تطليق" معلق کېدای سي، لېکن "طلاق" نه سي معلق کېدای، ځکه چي "تطليق" يعني طلاق ورکول د انسان په وس کي دي لېکن د "طلاق" وقوع د

انسان له وس څخه دباندې خبره ده، دا د شريعت معامله او مسئله ده. (٣)... "شرط": هغه شي ته وايي کوم چې اوس موجود نه وي لېکن موجودېدل يې ممکن وي. لکه يوه مينځه چې اوس آزاده نه وي، لېکن آزادېدل يې ممکن دي، او دا خبره هم په ياد لرئ! چې د حکم ثابتېدلو لپاره د شرط موجودېدل ضروري دي، مثلاً که خاوند طلاق پر آزادۍ معلق کړي، نو د طلاق واقع کېدلو لپاره آزادېدل ضروري دي.

د عبارت حاصل دا دی که ديو سړي ښځه (زَوْجَه) د بل چا مينځه وي او خاوند هغې ته ووايي: "چې کله ستا مالک تا آزاده کړي. نو ته په دوو طلاقو سره (پر ما) طلاقه يې"، وروسته مالک هغه آزاده کړي، نو اوس پر دغه ښځې دوه طلاقه واقع کيږي. خو تر دې وروسته به هم خاوند ته د رجعت حق حاصل وي، ځکه چې خاوند طلاق پر إعْتَاق (يعني آزادولو) يا پر عِتْق (آزادېدلو) معلق کړی دی، او د خاوند په دې قول "مَعَ عِتْقِ ....." کې عِتْق إعتاق او عتق دواړو ته شامل دی او خاوند په همدغه عِتْق سره تطليق معلق کړی دی (لهذا دواړو ته به شامل وي). نو عِتْق شرط دی او تطليق مشروط يعني جزاء ده. او څرنګه چې جزاء تر شرط وروسته په وجود کې راځي، نو ځکه به اول شرط يعني عتق ثابتيږي او تر هغه وروسته به جزاء يعني تطليق ثابتيږي، لهذا دلته هم د دغه ښځې په حق کې اول شرط يعني عتق ثابتيږي او هغه آزاديږي او تر آزادۍ وروسته پر هغې دوه طلاقه واقع کيږي. او څرنګه چې آزاده ښځه په دوو طلاقو سره مغلظه بائنه نه ګرځي. نو ځکه به دغه ښځه هم په دوو طلاقو سره مغلظه نه ګرځي او خاوند لره به د رجعت حق وي.

صاحب د هدايې چې کوم دليل بيان کړی دی په هغه کې څه إغلاق او ګراني ده. ما د آسانۍ په خاطر د هغه غورچاڼ او خلاصه ستاسو په مخ کې پېش کړه. إن كان خطأً فمنّي. وإن كان صواباً فمن الله وبتوفيقه

**بِأَيِّ شَيءٍ إلخ**: په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې دلته خاوند په خپل کلام أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ مَعَ عِتْقِ..." کې د "مَعَ" کلمه استعمال کړې ده، او د أهلِ لغت په نېز دا کلمه د اتصال او قران لپاره استعماليږي، يعني تر دې کلمې چې کوم شی مخکې وي هغه تر دې کلمې د وروسته شي سره متصل او مقارن واقع کيږي، لهذا په دې اعتبار د عتق سره يو ځای پر مينځې دوه طلاقه واقع کېدل پکار دي، او په هغه دوو طلاقو سره مغلظه کېدل پکار دي، ځکه چې په هغه وخت کې دا مينځه وي او مينځه په دوو طلاقو سره مغلظه ګرځي، همدارنګه خاوند د رجعت حق حاصلېدل پکار نه دي، حال دا چې تاسو دلته د "مَعَ" کلمه د "بَعْد" او "وروسته" په معنیٰ سره استعمال کړې ده، آخر تاسو ولې د أهلِ لغت مخالفت وکړی.

صاحب د کتاب د دې په جواب کې فرمايي چې کلمه د "مَعَ" چې څرنګه د مصاحبت او اتصال لپاره استعماليږي، همدارنګه د بعديت او تأخر لپاره هم استعماليږي، لکه څرنګه چې په دې آيت کې د همدغه

معنىٰ لپاره استعمال سوې ده: إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. يعني تر عُسْر بعد يُسر دی (تر سختي وروسته آساني ده).
او ګورئ! کله چي په قرآن کي "مَعَ" د "بَعْد" په معنىٰ سره استعمال سوی دی، نو بيا موږ ته هم د دې پوره حق
سته، لهذا ستاسو اعتراض بې ځايه دی، او څرنګه چي د خاوند په کلام کي "مَعَ" موجود دی، نو هغه به هم د
"بَعْد" په معنىٰ سره وي او تر آزادۍ وروسته به پر ښځي طلاق واقع کيږي، د "فَيُحْمَلُ عَلَيْهِ بِدَلِيلِ مَا ذَكَرْنَا"
همدغه مطلب دی.

## د پورتنۍ مسئلې يو بل صورت

وَلَوْ قَالَ: إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ او که [خاوند] ووايي: کله چي د سبا ورځ راسي [يعني کله چي سبا سي] نو
ته په دوو طلاقو سره طلاقه يې! وَقَالَ الْمَوْلَى: إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ حُرَّةٌ او مالک ووايي: کله چي د سبا ورځ راسي
نو ته آزاده يې! فَجَاءَ الْغَدُ نو د سبا ورځ [چي] راسي لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ نو دا ښځه [تر هغه وخته
پوري] د دغه خاوند لپاره نه حلاليږي تر دې چي د يو بل خاوند سر نکاح وکړي [يعني تر څو چي دا ښځي
"حلاله" (تحليل) کړی نه وي تر هغه وخته دا ښځه مخکني خاوند لپاره حرامه ده] وَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ او د هغې علت
به درې حيضه وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ:
زَوْجُهَا يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د هغې خاوند به د رجعت مالک وي لِأَنَّ الزَّوْجَ قَرَنَ
الْإِيقَاعَ بِإِعْتَاقِ الْمَوْلَى ځکه چي خاوند [دلته] د طلاق إيقاع د مالک د إعتاق سره متصل کړې ده حَيْثُ عَلَّقَهُ
بِالشَّرْطِ الَّذِي عَلَّقَ بِهِ الْمَوْلَى الْعِتْقَ ځکه چي [خاوند] پر هغه شرط طلاق معلق کړی دی پر کوم چي مالک
عتق [آزادېدل] معلق کړی دی [چي هغه د سبا ورځ ده] وَإِنَّمَا يَنْعَقِدُ الْمُعَلَّقُ سَبَبًا عِنْدَ الشَّرْطِ او معلق د شرط په
وخت کي سبب منعقد کيږي [يعني کوم شی چي معلق کړی سوی دی هغه د شرط د موجودېدلو په وخت کي سبب
جوړيږي] وَالْعِتْقُ يُقَارِنُ الْإِعْتَاقَ او عتق د إعتاق سره متصل کيږي لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ ځکه چي إعتاق د عتق علت
دی أَصْلُهُ الِاسْتِطَاعَةُ مَعَ الْفِعْلِ او د دې أصل دا دی چي قدرت مع الفعل وي [يعني د علت مطلب دا دی چي د کار
سره د کار کولو قدرت هم وي] فَيَكُونَ التَّطْلِيقُ مُقَارِنًا لِلْعِتْقِ ضَرُورَةً لهذا تطليق به د ضرورت پر بناء د عتق سره
متصل وي فَتَطْلُقُ بَعْدَ الْعِتْقِ نو تر عتق وروسته به پر ښځي طلاق واقع کيږي فَصَارَ كَالْمَسْأَلَةِ الْأُولَى لهذا دا
[مسئله] د اولي مسئلې په څېر سو وَلِهٰذَا تُقَدَّرُ عِدَّتُهَا بِثَلَاثِ حِيَضٍ او له همدې وجهي د دې ښځي علت

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله كما ذُكِر في رد المحتار (ج: ١ ص:٤٨٥)، وكذا في الهندية (ج:١ ص:٣٦٩).
[القول الراجح ج:١ ص:٣٢٠]

درې حيض تاکل سوی دی وَلَهُمَا: أَنَّهُ عَلَّقَ الطَّلَاقَ بِمَا عَلَّقَ بِهِ الْمَوْلَى الْعِتْقَ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې خاوند پر هغه شي طلاق معلق کړی دی پر کوم شي مالک عتق معلق کړی دی [چې هغه د سبا ورځې راتلل دي] ثُمَّ الْعِتْقُ يُصَادِفُهَا وَهِيَ أَمَةٌ نو عتق [آزادي] به په داسې حالت کې د دغه ښځې سره مخامخ کيږي چې هغه مينځه وي فَكَذَا الطَّلَاقُ نو همداسې به طلاق [په داسې حالت کې د دغې سره مخامخ کيږي چې هغه مينځه وي] وَالطَّلْقَتَانِ تُحَرِّمَانِ الْأَمَةَ حُرْمَةً غَلِيظَةً او دوه طلاقه مينځه په حرمت غليظه سره حراموي بِخِلَافِ الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى په خلاف د اولې مسئلې [کوم چې په تېر عبارت کې ذکر سوه] لِأَنَّهُ عَلَّقَ التَّطْلِيقَ بِإِعْتَاقِ الْمَوْلَى ځکه چې [هلته] خاوند تطليق د مالک پر إعتاق معلق کړی دی فَيَقَعُ الطَّلَاقُ بَعْدَ الْعِتْقِ نو ځکه به [هلته] تر عتق وروسته طلاق واقع کيږي عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ لکه مخکې چې موږ دا ثابته کړه وَبِخِلَافِ الْعِدَّةِ او په خلاف د علت لِأَنَّهُ يُؤْخَذُ فِيهَا بِالِاحْتِيَاطِ ځکه چې په علت کې په احتياط سره عمل کيږي وَكَذَا الْحُرْمَةُ الْغَلِيظَةُ يُؤْخَذُ فِيهَا بِالِاحْتِيَاطِ او همداسې په حرمت غليظه کې [هم] په احتياط سره عمل کيږي وَلَا وَجْهَ إِلَى مَا قَالَ او امام محمد رَحِمَهُ الله چې څه ويلي دي د هغه هيڅ وجه [او دليل] نسته لِأَنَّ الْعِتْقَ لَوْ كَانَ يُقَارِنُ الْإِعْتَاقَ ځکه که عتق د إعتاق مقارن [او د هغه سره متصل] دی لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ نو د هغه وجه [خو] دا ده چې إعتاق د عتق علت دی فَالطَّلَاقُ يُقَارِنُ التَّطْلِيقَ نو طلاق به [هم] د تطليق مقارن وي لِأَنَّهُ عِلَّتُهُ ځکه چې تطليق [بيا] د طلاق علت دی فَيَقْتَرِنَانِ نو به [إعتاق او تطليق] دواړه يو د بل مقارن [او سره متصل] وي.

**اللغات:** ﴿غَلِيْظَةً﴾ سخت، درونډ. ﴿يَقْتَرِنَان﴾ د افتعال له باب څخه د تثنيه مذکر غائب مضارع معلوم صيغه ده: متصل کېدل، يو ځای کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته (کوم چې د بل چا مينځه وي) ووايي: إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ (يعني کله چې د سبا ورځ راسي، نو ته په دوو طلاقو سره (پر ما) طلاقه يې)، او د مينځې مالک هم هغې ته ووايي: إِذَا جَاءَ غَدٌ فَأَنْتِ حُرَّةٌ (کله چې د سبا ورځ راسي، نو ته آزاده يې)، اوس په دې صورت کې د امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر ښځې دوه طلاقه واقع کيږي، او ځرنګه چې هغه مينځه ده، نو په دې دوو طلاقو سره مغلظه ګرځي او د خاوند لپاره حراميږي، او له حلاله (تحليل) څخه بغير هغه د خاوند لپاره نه حلاليږي، لېکن د هغې چې کوم علت دی، هغه به احتياطاً درې حيضه وي.

د دې په خلاف امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر ښځي دوه طلاقِ رجعي واقع کيږي او تر دوو طلاقو وروسته د هغې خاوند ته د رجعت کولو پوره حق ستنه.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې مالک چې پر کوم شي إعتاق معلق کړی دی (يعني د سبا ورځي راتلل)، پر هغه شي خاوند هم د طلاق إيقاع معلق کړی دی، نو د خاوند إيقاع د مالک د إعتاق سره متصل او مقارن دی، او څرنګه چې إعتاق (آزادول) د عتق (آزادېدلو) علت دی، نو څکه به عتق د إعتاق مقارن او د إعتاق سره متصل وي، څکه چې د علت اصل قدرت مع الفعل دی (يعني چې يو کار تر اوسه سوی نه وي لېکن سړی د هغه پر کولو قادر وي، او إعتاق [آزادول] هم تر اوسه واقع سوي نه دي، بلکې کله چې شرط موجود سي، يعني د سبا ورځ راسي، نو آزادي واقع کيږي، لهذا إعتاق د عتق علت دی، او علت له فعل څخه جلا نه وي بلکې مقارن وي)، لنډه دا چې عتق د إعتاق مقارن دی (يعني دوی دواړه سره متصل دي)، او څرنګه چې تطليق او إعتاق دواړه پر يوه شرط معلق سوي دي (چې هغه د سبا ورځ ده)، نو په دې وجه به تطليق هم د إعتاق مقارن وي (يعني پر يوه شرط د معلق کېدلو په وجه به په إعتاق او تطليق کې هم اتصال وي)، او موږ وويل چې عتق د إعتاق مقارن دی، او د مقارن، مقارن هم مقارن وي، نو څکه به تطليق د عتق مقارن وي. اوس چې کله په تطليق او عتق کې مقارنت ثابت سو، نو دا دواړه خو به يو ځای واقع کيږي، خو څرنګه چې طلاق د تطليق حکم دی (او تطليق يې علت دی)، او د يو شي حکم د هغه شي تر وجود وروسته راځي (يعني اول يو شی ثابتيږي، وروسته بيا د هغه حکم ثابتيږي) نو څکه به طلاق هم تر تطليق وروسته او مؤخر وي. او کله چې طلاق تر تطليق وروسته دی، نو بيا به طلاق يقيناً بعد العتق ثابتيږي او واقع کيږ. څکه چې عتق خو د تطليق مقارن دی او تطليق تر طلاق مخکې ثابت سوی دی نو عتق به هم تر طلاق مخکې ثابت سوی وي، لهذا کله چې دلته طلاق بعد العتق ثابت سوی او واقع سوی دی (يعني تر آزادی وروسته طلاق واقع سوی دی)، نو څکه به هغه ښځه په دوو طلاقو سره مغلظه نه ګرځي، څکه چې هغه آزاده ده (او آزاده ښځه په دريو طلاقو سره مغلظه ګرځي). لهذا څرنګه چې په آزاده ښځه کې د خاوند لپاره تر دوو طلاقو وروسته له حلاله څخه بغير د رجعت کولو حق ستنه، همداسې به دلته هم خاوند لره د رجعت حق وي.

او د طلاق بعد العتق واقع کېدلو بل څرګند دليل دا هم دی چې د دې ښځي عدت درې حيضه تاکل سوی دی، که چيري دا ښځه د مينځي توب په وجه په دوو طلاقو سره مغلظه سوې وای، نو بيا به د هغې عدت هم دوه حيضه وای، لهذا په عدت کې د دريو حيض تعيين (ټاکل کېدل) هم د دې ښځي پر نه مغلظه کېدلو دلالت کوي، نو په دې وجه به هم خاوند لره د رجعت حق وي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چي مالک هم پر مجئ غَد (يعني د سبا ورځي په راتللو باندي) عتق معلق کړی دی او خاوند پر مجئ غَد طلاق معلق کړی دی. او دا خبره تسليم سوې ده چي عتق (آزادي) د مينځي توب په حالت کي واقع کيږي، لهذا طلاق به هم د مينځي توب په حالت کي واقع کيږي. او ځرنګه چي مينځه د دوو طلاقو محل ده، نو د خاوند په دوو طلاقو سره به هغه مغلظه ګرځي. او له حلاله څخه بغير به د خاوند لپاره د رجعت حق نه وي.

په خلاف د مخکنۍ مسئلې (کوم چي په تېر عبارت کي تېره سوه)، ځکه چي هلته خاوند د مالک پر إعتاق تطليق معلق کړی وو، نو ګواکي إعتاق شرط او تطليق جزاء وه، او جزاء تر شرط وروسته واقع کيږي، نو په هغه مسئله کي تر إعتاق يعني د ښځي تر آزادولو وروسته پر هغې طلاق واقع سوی دی، نو ځکه به هلته خاوند لره د رجعت حق وي، خو ځرنګه چي دلته د مينځي توب په حالت کي دوه طلاقه واقع سوي دي، او مينځه په دوو طلاقو سره مغلظه ګرځي، نو ځکه به دلته خاوند لره د رجعت حق نه وي.

**بخلاف العدة إلخ**: امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي وو چي د دې ښځي عدت درې حيضه تاکل کېدل پر دې دلالت کوي چي دا ښځه بائنه مغلظه نه ده او خاوند لره د رجعت حق سته .صاحب د هدايې په دې عبارت سره د هغه ترديد کوي، فرمايي چي د اصل او قياس په اعتبار سره خو زموږ په نېز د دې ښځي عدت دوه حيض کېدل پکار وو، خو ځرنګه چي عدت له هغو اُمورو څخه چي په هغوی کي احتياط کيږي، نو ځکه موږ احتياطاً د دې ښځي عدت درې حيضه تاکلی دی، لهذا په دې سره د ښځي پر نه مغلظه کېدو دليل نه سي نيول کېدای.

او حُرمت (يعني طلاق) هم له هغو اُمورو څخه دی چي په هغوی کي احتياط کيږي، او د احتياط تقاضا دا ده چي دا ښځه په دوو طلاقو سره مغلظه وګرځي، نو ځکه دلته بيا موږ په دوو طلاقو سره د حرمت غليظه د ثبوت فتویٰ ورکړې ده.

**ولا وجه إلخ**: په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، فرمايي چي کله د إعتاق د علت کېدلو پر بناء عتق د إعتاق مقارن دی، نو د تطليق د علت کېدلو پر بناء به طلاق هم د تطليق مقارن وي. او دلته عتق د إعتاق سره واقع کيږي، لهذا طلاق به هم د تطليق سره واقع کيږي، او ځرنګه چي عتق د مينځي توب په حالت کي واقع کيږي، نو طلاق به هم د مينځي توب په حالت کي واقع کيږي، او د مينځي توب په حالت کي که يوې مينځي ته طلاق ورکول سي، نو هغه مغلظه ګرځي. لهذا په دې مسئله کي به هم ښځه مغلظه ګرځي، او د رجعت ټولي دروازې به د خاوند لپاره بندي وي.



# فَصْلٌ فِيْ تَشْبِيْهِ الطَّلَاقِ وَوَصْفِهٖ

(دا) فصل (د يو شي سره) د طلاق د تشبيه ورکولو او د هغه د وصف بيانولو په باره کې دی

**تشريح:** څرنګه چې وصف د أصل تابع وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله مخکې د أصل يعني د طلاق بيان وکړی، اوس له دې ځايه د طلاق د وصف او د هغه د بېلابېلو صورتونو بيان کوي.

## د ګوتو په اشاره سره د طلاق ورکولو حکم

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهٖ: أَنْتِ طَالِقٌ هٰكَذَا يُشِيْرُ بِالْإِبْهَامِ وَالسَّبَابَةِ وَالْوُسْطٰى او کوم سړی چې خپلې ښځې ته ووايي: ته داسې [يعني دومره] طلاقه يې [او] اشاره وکړي په بټه او د شهادت او د مينځ په ګوتو سره. فَهِيَ ثَلَاثٌ نو دا درې طلاقه دي لِأَنَّ الْإِشَارَةَ بِالْأَصَابِعِ تُفِيْدُ الْعِلْمَ بِالْعَدَدِ فِيْ مَجْرَى الْعَادَةِ إِذَا اقْتَرَنَتْ بِالْعَدَدِ الْمُبْهَمِ ځکه چې په ګوتو سره اشاره کول عادتاً د عدد د معلومولو فايده ورکوي کله چې [دا اشاره] د مبهم عدد سره يو ځای سي قَالَ ﷺ [1]: اَلشَّهْرُ هٰكَذَا وَهٰكَذَا وَهٰكَذَا [لکه څرنګه چې] نبي ﷺ وفرمايل: مياشته د دومره، دومره او دومره [شپو] کيږي [يعني يو ځل نبي کريم ﷺ د ګوتو په اشاره د مياشتې ټوله شپې خلکو ته بيان کړې چې ځينې مياشتې د نهه ويشت شپو وي، او ځينې مياشتې د دېرشو شپو وي] وَإِنْ أَشَارَ بِوَاحِدَةٍ فَهِيَ وَاحِدَةٌ او که [خاوند] په يوه ګوته سره اشاره وکړي نو دا يو طلاق دی وَإِنْ أَشَارَ بِثِنْتَيْنِ فَهِيَ ثِنْتَانِ او که په دوو ګوتو سره اشاره وکړي نو دا دوه طلاقه دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې [اوس] موږ ذکر کړی وَالْإِشَارَةُ تَقَعُ بِالْمَنْشُوْرَةِ مِنْهَا او اشاره به په خلاصو ګوتو سره واقع کيږي [نه په بندو ګوتو سره] وَقِيْلَ: إِذَا أَشَارَ بِظُهُوْرِهَا فَبِالْمَضْمُوْمَةِ مِنْهَا او ويل سوي دي: چې که [خاوند] د ګوتو په شا سره اشاره وکړي نو په بندو ګوتو سره به اشاره واقع کيږي وَإِذَا كَانَ تَقَعُ الْإِشَارَةُ بِالْمَنْشُوْرَةِ مِنْهَا او کله چې [خبره داسې ده چې] په خلاصو ګوتو سره اشاره واقع کيږي فَلَوْ نَوَى الْإِشَارَةَ بِالْمَضْمُوْمَتَيْنِ نو که [خاوند] په دوو بندو ګوتو سره د اشارې نيت وکړي يُصَدَّقُ دِيَانَةً لَا قَضَاءً

---

[1] تخريج: أخرجه البخاری فی كتاب الصوم، باب قول النبی ﷺ إذا رأيتم الهلال، حديث رقم: ۱۹۰۸ و ابو داؤد فی كتاب الصوم، باب الشهر يكون تسعًا وعشرين، حديث رقم: ۲۳۲.

نو دیانتاً به [د هغه] تصدیق کیږي، نه قضاءً وَكَذَا إِذَا نَوَى الْإِشَارَةَ بِالْكَفِّ او همداسي که هغه په ورغوي سره د اشارې نیت وکړي انو هم به فقط دیانتاً د هغه تصدیق کیږي، نه قضاءً] حَتَّى يَقَعَ فِي الْأُولَى ثِنْتَانِ دِيَانَةً وَفِي الثَّانِيَةِ وَاحِدَةٌ تر دې چې په اول صورت کي به دیانتاً دوه طلاقه واقع کیږي او په دویم صورت کي به یو طلاق [دیانتاً] واقع کیږي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُهُ لَكِنَّهُ خِلَافُ الظَّاهِرِ ځکه چې هغه د دې احتمال لري وَلَوْ لَمْ يَقُلْ هَكَذَا او که [خاوند] هَكَذَا نه وواییي تَقَعُ وَاحِدَةٌ نو یو طلاق واقع کیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَقْتَرِنْ بِالْعَدَدِ الْمُبْهَمِ ځکه چې اشاره د مبهم عدد سره یو ځای نه سوه فَبَقِيَ الْاِعْتِبَارُ لِقَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ نو [فقط] د خاوند د دې قول: أَنْتِ طَالِقٌ اعتبار پاته سو.

**اللغات:** ﴿يُشِيرُ﴾ د افعال مضارع ه: اشاره کول، ﴿مَنْشُورَةٌ﴾ د اسم مفعول مؤنث صیغه ده، له نصر او ضرب دواړو ځخه راځي، نَشَرَ يَنْشِرُ نَشْرًا: غوړول، خپرول، خلاصول، ﴿مَضْمُومَةٌ﴾ د نصرب له باب ځخه د اسم مفعول مؤنث صیغه ده، ضَمَّ يَضُمُّ ضَمًّا: جمع کول، ګوتي سره یو ځای کول (منډلول)، ﴿كَفٌّ﴾ ورغوی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی خپلي ښځي ته وواییي: أَنْتِ طَالِقٌ هٰكَذَا (ته دومره پر ما طلاقه یې) او په دریو ګوتو سره اشاره وکړي یعني په بټه ګوته او د شهادت په ګوته او د مینځ په ګوته سره، نو په دې صورت کي د هغه پر ښځي دري طلاقه واقع کیږي؛ دلیل دا دی چې کله اشاره د مبهم عدد سره متصل سي، نو بیا عادتاً (په عامه محاوره) کي په ګوتو سره اشاره کول د علم بالعدد فایده ورکوي (یعني په څومره ګوتو سره چې اشاره سوې وي، په عامه محاوره کي هغومره ګوتي ځني مرادیږي)، همدارنګه نبي کریم ﷺ هم د میاشتي د عدد د بیانولو لپاره په ګوتو سره اشاره کړې ده، لکه په عبارت کي چې په دې هکله حدیث ذکر سو، له دې ځخه هم معلومیږي چې په ګوتو سره اشاره کول د عدد بیانولو لپاره کافي دي.

**وإن أشار بواحدة إلخ:** او که خاوند هٰكَذَا وواییي او په یوه ګوته سره اشاره وکړي، نو یو طلاق واقع کیږي، او که په دوو ګوتو سره اشاره وکړي، نو دوه طلاقه واقع کیږي، د مخکني دلیل په وجه.

**والإشارة إلخ:** صاحب د هدایې فرمایي چې د طلاق په عدد او شمېر بیانولو کي خلاصي کړل سوي ګوتي معتبر دي (ځکه چې په محاوره کي هم فقط د خلاصو ګوتو اعتبار کیږي، مثلاً که دوې ګوتي خلاصي وي او درې ګوتي بندي وي، نو دوو ګوتو اعتبار کیږي او هغه عدد شمارل کیږي)، او د ځینو

حضراتو را په دا ده، چې که خاوند د ګوتو د شا په طرف سره اشاره وکړي، نو بيا بندې ګوتې معتبرې دي.

**وإذا كان تقع إلخ:** د دې حاصل دا دی چې اصل اعتبار خو د خلاصو ګوتو دی، لېکن بندې ګوتې هم د اشارې احتمال لري، لهذا که خاوند درې ګوتې خلاصې کړي وي او دوې بندې وي، او په بندو ګوتو سره د اشارې نيت وکړي، نو که څه هم دا د اشارې احتمال لري، خو د ظاهر خلاف دي، نو ځکه به فقط دياتتاً د هغه تصديق کيږي (او دوه طلاقه به واقع کيږي)، او قضاءً يعني د قاضي په دربار کې به د هغه تصديق نه کيږي. او که په ورغورې سره د اشارې نيت وکړي، نو بيا به هم دياتتاً د هغه اعتبار کيږي، او يو طلاق به واقع کيږي، ځکه چې ورغوی يو دی.

**ولولم يقل:** او که خاوند تر أَنْتِ طَالِقٌ وروسته هٰكَذَا نه وايي، او په درېو ګوتو سره اشاره وکړي، نو يو طلاقِ رجعي واقع کيږي، ځکه چې دلته اشاره د عددِ مبهم سره متصل نه سوه، لهذا اوس دوو يا درېو طلاقو ته اشاره نه وسوه، نو ځکه فقط أَنْتِ طَالِقٌ باقي پاته سو، او په أَنْتِ طَالِقٌ سره يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

## د طلاق په الفاظو کې شدت او زياتوب کول

| |
|---|
| وَإِذَا وَصَفَ الطَّلَاقَ بِضَرْبٍ مِنَ الشِّدَّةِ أَوِ الزِّيَادَةِ کله چې [خاوند] صفت وکړي د طلاق ايعني طلاق موصوف کړي] په يو زياتوب او سختۍ سره كَانَ بَائِنًا نو هغه [طلاق] به بائن وي مِثْلُ أَنْ يَقُوْلَ: أَنْتِ طَالِقٌ بَائِنٌ أَوْ أَلْبَتَّةَ مثلاً [خاوند] ووايي: ته بائنه طلاقه يې يا ته البته [قطعًا] طلاقه يې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ ❀: يَقَعُ رَجْعِيًّا إِذَا كَانَ بَعْدَ الدُّخُولِ بِهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې [په دې سره] يو طلاقِ رجعي واقع کيږي که چيرې دا تر دخول وروسته وي [يعني که تر دخول وروسته په دې الفاظو سره طلاق ورکړي، نو بيا يو طلاقِ رجعي واقع کيږي] لِأَنَّ الطَّلَاقَ شُرِعَ مُعَقِّبًا لِلرَّجْعَةِ ځکه چې طلاق په داسې حالت کې مشروع سوی دی چې تر ځان وروسته رجعت ثابتوي فَكَانَ وَصْفُهُ بِالْبَيْنُوْنَةِ خِلَافَ الْمَشْرُوْعِ لهذا په بينونت سره به د هغه موصوف کول د مشروع خلاف وي فَيَلْغُو نو ځکه به [دا وصف] لغو کيږي كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ عَلَى أَنْ لَا رَجْعَةَ لِي عَلَيْكِ لکه په هغه صورت کې چې کله [خاوند] |

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: فعلم أن ما ذكره أولًا قول الإمام، وعليه المتون (ج:٣، ص:٢٨٧). [القول راجح ج:١، ص:٣٢٠]

وايي: پر دې شرط ته طلاقه يې چې ما ته به [بيا] پر تا د رجعت حق نه وي وَلَنَا: أَنَّهُ وَصَفَهُ بِمَا يَحْتَمِلُهُ لَفْظُهُ زموږ دليل دا دی: چې خاوند په داسې شي سره طلاق متصف کړی دی چې الفظ د طلاق] د هغه احتمال لري أَلَا تَرَى أَنَّ الْبَيْنُونَةَ قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا وَبَعْدَ الْعِدَّةِ تَحْصُلُ بِهِ آيا ته نه ګورې! چې تر دخول مخکې [د طلاق ورکولو په صورت کې] يا تر عدت وروسته په دې الفظ د طلاق يعنې أَنْتِ طَالِقٌ] بينونت حاصليږي فَيَكُونُ هٰذَا الْوَصْفُ لِتَعْيِيْنِ أَحَدِ الْمُحْتَمَلَيْنِ نو دا وصف به په دوو احتمالاتو کې د يوه احتمال د تعيين [ټاکلو] لپاره وي وَمَسْأَلَةُ الرَّجْعَةِ مَمْنُوْعَةٌ او مسئله د رجعت ممنوع ده [يعنې موږ ته تسليم نه ده] فَتَقَعُ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ إِذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ أَوْ نَوَى الثِّنْتَيْنِ نو ځکه به يو طلاق بائن واقع کيږي کله چې خاوند [په دې الفاظو سره] نيت کړی نه وي يا يې د دوو [طلاقو] نيت کړی وي أَمَّا إِذَا نَوَى الثَّلَاثَ فَثَلَاثٌ ليکن کله چې هغه د دريو [طلاقو] نيت وکړی نو درې طلاقه به وي لِمَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چې مخکې تير سو وَلَوْ عَنٰى بِقَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَبِقَوْلِهِ بَائِنٌ أَوْ أَلْبَتَّةَ أُخْرٰى او که [خاوند] په خپل دې قول: أَنْتِ طَالِقٌ سره د يوه طلاق او په خپل دې قول: بَائِنٌ يا أَلْبَتَّةَ سره د بل طلاق اراده وکړه تَقَعُ تَطْلِيْقَتَانِ بَائِنَتَانِ نو دوه بائن طلاقونه واقع کيږي لِأَنَّ هٰذَا الْوَصْفَ يَصْلُحُ لِابْتِدَاءِ الْإِيْقَاعِ ځکه چې دا لفظ ابتداءً [د طلاق] واقع کولو صلاحيت لري.

**اللغات:** ﴿ضَرْب﴾ قسم، نوع، ﴿أَلْبَتَّةَ﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه اسم مرة دی: قطعاً، يقيناً. بَتَّ يَبِتُّ بَتًّا: غوڅول، نافذول، پخه اراده کول. الْبَتَّةَ د داسې کار په وخت کې ويل کيږي چې بيا انسان هغه ته رجوع نه کوي. مثلاً ويل کيږي: لَا أَفْعَلُهُ الْبَتَّةَ أَيْ لَا رَجْعَةَ فِيْهِ: زه قطعاً او يقيناً دا کار نه کوم يعنې هيڅکله به رجوع نه ورته کوم. همدا وجه ده چې دا لفظ د طلاقِ غير رجعي (طلاقِ بائن) لپاره استعماليږي. ﴿مُعَقِّب﴾ د تفعيل اسم فاعل دی: وروسته کونکی، وروسته راوړونکی (وروسته ثلبتونکی)، تر شا پربښوونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د شدت يا د زيادت په وصف سره طلاق متصف کړي. مثلاً وايي: أَنْتِ طَالِقٌ بَائِنٌ يا أَنْتِ طَالِقٌ أَلْبَتَّةَ يا داسې نور. نو په دې صورت کې پر ښځې طلاق بائن واقع کيږي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که خاوند تر جماع او دخول وروسته په دې الفاظو سره طلاق ورکړي، نو بيا طلاقِ رجعي واقع کيږي، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي طلاقِ صریح په داسي حالت کي مشروع کړی سوی دی چي تر هغه وروسته خاوند لره د رجعت حق سته، لهذا طلاقِ صریح د بینونت په وصف سره متصف کول خلافِ مشروع دي، او کوم شی چي خلافِ مشروع وي، هغه لغو کیږي، نو په دې وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز دا وصف لغو دی، او پر ښځي یو طلاقِ رجعي واقع کیږي، لکه په هغه صورت کي چي هم طلاقِ رجعي واقع کیږي، کله چي خاوند د طلاق ورکولو په وخت کي صراحتاً د رجعت نفي وکړي، مثلاً داسي ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ عَلَىٰ أَنْ لَّا رَجْعَةَ لِيْ.

**زموږ دليل:** دا دی چي دلته خاوند په یو داسي وصف سره طلاق متصف کړی دی چي د طلاق لفظ د هغه احتمال لري، ځکه چي په أَنْتِ طَالِقٌ کي د بینونت احتمال موجود دی، تاسو غور وکړئ! چي که خاوند په دې الفاظو سره غیرِ مدخول بها ښځي ته طلاق ورکړي، نو طلاقِ بائن واقع کیږي، همدارنګه مدخول بها ښځه هم تر عدت تېرولو وروسته په دې الفاظو سره بائنه ګرځي، نو که چیري د طلاق په لفظ کي د بینونت احتمال نه وای، نو په دې سره به بینونت نه واقع کېدای، لهذا کله چي د خاوند طلاق د دغه وصف احتمال لري، نو دا وصف به صحیح وي، او داسي به ویل کیږي، چي خاوند د وصف په ذریعه د رجعي او بائن له دواړو احتمالاتو څخه یو احتمال (یعني بینونت) متعین کړی.

**ومسألة الرجعة إلخ:** په دې سره امام شافعي رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا خبره موږ نه تسلیمو چي "که خاوند صراحتاً د رجعت نفي وکړي نو طلاقِ رجعي واقع کیږي"، ځکه چي موږ په هغه صورت کي هم په دې سره یو طلاقِ بائن واقع کوو کله چي خاوند د یوه یا دوو طلاقو نیت کړی وی، او که د دریو طلاقو نیت يې کړی وي، نو درې طلاقه واقع کوو (دلیل يې د إِيْقَاعِ الطلاق په باب کي تېر سو)، لهذا کله چي زموږ په نیز د امام شافعي دا خبره صحیح نه ده، نو د امام شافعي لپاره پر هغه قیاس کول او زموږ د مذهب په مقابل کي په هغه سره دلیل نیول صحیح نه دي، په دې هکله باید امام شافعي څرګند او مُسلّم دلیل پېش کړي.

**ولوعنى إلخ:** فرمايي که خاوند په أَنْتِ طَالِقٌ یا البَتَّةَ کي په أَنْتِ طَالِقٌ سره د یوه طلاق اراده وکړي، او په بَائِنٌ یا البَتَّةَ سره د دویم طلاق اراده وکړي، نو دوه طلاقِ بائن واقع کیږي؛ دلیل دا دی چي بَائِنٌ او البَتَّةَ داسي الفاظ دي چي په دوی سره ابتداءً (د طَالِقٌ له واسطې څخه بغیر) هم طلاق ورکول صحیح دي، مثلاً که یو سړی خپلي ښځي ته فقط داسي ووايي: أَنْتِ بَائِنٌ (او طَالِقٌ ور سره ذکر نه کړي)، نو هم پر ښځي طلاق واقع کیږي، نو همداسي به دلته هم له بَائِنٌ څخه دویم طلاق مرادول صحیح وي، او څرنګه چي دلته دویم طلاقِ بَائِنٌ دی، نو اولیٰ او خوره به هم طلاقِ بائن وي، ځکه چي په یوه ښځه کي طلاقِ رجعي او طلاقِ بائن دواړه سره جمع کېدای نه سي، بلکي د دوی اجتماع محال ده.

## د طلاق په الفاظو کې د شدت کولو يو بل صورت

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ أَفْحَشَ الطَّلَاقِ او همدارنګه [طلاق بائن واقع کيږي] کله چې خاوند ووايي: ته په بد طلاق سره [پر ما] طلاقه يې لِأَنَّهُ إِنَّمَا يُوصَفُ بِهٰذَا الْوَصْفِ بِاعْتِبَارِ أَثَرِهٖ ځکه چې طلاق په دغه وصف سره د خپل أثر په وجه متصف کيږي وَهُوَ الْبَيْنُوْنَةُ فِي الْحَالِ او [د دې وصف] أثر في الحاله [فوراً] بينونت [واقع کېدل] دي فَصَارَ كَقَوْلِهٖ: بَائِنٌ نو دا داسې سو لکه د خاوند دا قول: [أَنْتِ] بَائِنٌ

وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَخْبَثَ الطَّلَاقِ أَوْ أَسْوَأَهٗ او همدارنګه [طلاق بائن واقع کيږي] کله چې [خاوند] ووايي: [أَنْتِ طَالِقٌ] أَخْبَثَ الطَّلَاقِ يا أَسْوَأَ الطَّلَاقِ لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ [اوس] ذکر کړی

وَكَذَا إِذَا قَالَ: طَلَاقَ الشَّيْطَانِ أَوْ طَلَاقَ الْبِدْعَةِ او همدارنګه [طلاق بائن واقع کيږي] کله چې [خاوند] ووايي: [أَنْتِ طَالِقٌ] طَلَاقَ الشَّيْطَانِ يا طَلَاقَ الْبِدْعَةِ [تا ته د شيطان طلاق دی، يا تا ته د بدعت طلاق دی] لِأَنَّ الرَّجْعِيَّ هُوَ السُّنِّيُّ ځکه چې طلاق رجعي سنت طلاق دی فَيَكُوْنُ قَوْلُهٗ: الْبِدْعَةَ وَطَلَاقَ الشَّيْطَانِ بَائِنًا نو د هغه دا قول: الْبِدْعَةِ او طَلَاقَ الشَّيْطَانِ به طلاق بائن وي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ فِيْ قَوْلِهٖ أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ: أَنَّهٗ لَا يَكُوْنُ بَائِنًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د خاوند د دې قول أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ په باره کې روايت سوی دی: چې دا له نيت څخه بغير طلاق بائن نه ګرځي [يعني له نيت څخه بغير په دې سره طلاق بائن نه واقع کيږي] لِأَنَّ الْبِدْعَةَ قَدْ تَكُوْنُ مِنْ حَيْثُ الْإِيْقَاعِ فِيْ حَالَةِ حَيْضٍ ځکه چې بدعت کله د حيض په حالت کې د واقع کولو په اعتبار سره [هم] وي [مطلب دا چې د حيض په حالت کې طلاق واقع کول هم بدعت دي] فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ نو ځکه نيت ضروري دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهٗ إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ أَوْ طَلَاقَ الشَّيْطَانِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چې کله خاوند ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَةِ يا طَلَاقَ الشَّيْطَانِ يَكُوْنُ رَجْعِيًّا نو دا به رجعي طلاق وي [يعني په دې سره طلاق رجعي واقع کيږي] لِأَنَّ هٰذَا الْوَصْفَ قَدْ يَتَحَقَّقُ بِالطَّلَاقِ فِيْ حَالَةِ الْحَيْضِ ځکه چې د حيض په حالت کې په طلاق ورکولو سره [هم] دا وصف [طلاق لره] ثابتيږي فَلَا تَثْبُتُ الْبَيْنُوْنَةُ بِالشَّكِّ نو د شک په ذريعه سره به بينونت نه ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿أَفْحَش﴾ د كرُم دباب اسم تفضيل دی: تر ټولو بد. ﴿أَخْبَث﴾ د كرُمَ او نصر دواړو څخه اسمِ تفضيل دې: تر ټولو ناپاک (پليت). تر ټولو ردي او خراب. ﴿أَسْوَأ﴾ د نصر دباب اسمِ تفضيل دی: تر ټولو بد (قبيح).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلې ښځې ته د أَنْتِ طَالِقٌ أَفْحَشَ الطَّلَاق په الفاظو سره طلاق ورکړي، يا مثلاً د أَنْتِ طَالِقٌ أَخْبَثَ الطَّلَاق يا أَسْوَأَ الطَّلَاق په الفاظو سره طلاق ورکړي، نو په دې ټولو صورتونو کي پر ښځي يو طلاقِ بائن واقع کيږي، دا په هغه وخت کله چې خاوند په دې الفاظو سره د طلاق نيت نه وي کړی، يا يې د يوه او دوو طلاقو نيت کړی وي، لېکن که خاوند د دريو طلاقو نيت کړی وي، نو بيا درې طلاقه واقع کيږي.

په دې اوصافو سره د طلاقِ بائن د واقع کېدلو وجه دا ده چې عموماً په داسې اوصافو سره هغه وخت يو شی متصف کيږي کله چې د دې اوصافو أثر مرادول مقصود وي، او د طلاق په باب کي د دې اوصافو اثر فوراً بينونت دی، نو به دا الفاظ د بَائِنٌ او البَتَّةَ په درجه کي وي، او په بَائِنٌ او البَتَّةَ سره طلاقِ بائن واقع کيږي، لهذا په دې الفاظو سره د طلاق د متصف کولو په صورت کي به هم طلاقِ بائن واقع کيږي.

**وكذا إلخ:** د دې حاصل دا دی که يو سړی خپلې ښځې ته د أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقَ الشَّيْطَان يا أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقَ الْبِدْعَة په الفاظو سره طلاق ورکړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې دواړو صورتونو کي هم پر ښځي طلاقِ بائن واقع کيږي، ځکه چې طلاقِ رجعي ورکول سنت دي، او د سنت په ضد يعني د بدعت په وصف سره چې کوم طلاق ورکول سي، يا د سنت تر ټولو د غټ دښمن او مخالف يعني د لعين شيطان په وصف سره چې کوم طلاق ورکول سي نو ښکاره خبره ده چې هغه خو رجعي کېدای نه سي، لهذا هغه به خامخا بائن وي.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چې د أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَة د ويلو په صورت کي هغه وخت طلاقِ بائن واقع کيږي، کله چې خاوند د بينونت نيت کړی وي، ځکه چې کله نا کله د حيض په حالت کي په طلاق ورکولو سره هم طلاق بدعي ګرځي، نو د دې احتمال د ختمولو لپاره د بينونت نيت کول ضروري دي، ځکه چې يو احتمال ختمول او بل احتمال متعينول دا د نيت کار دی، لِأَنَّهُ لِتَمِييز أَحَدِ الأَمْرَيْن دی.

**وعن محمد إلخ:** له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه هم دا روايت نقل سوی دی چې د أَنْتِ طَالِقٌ لِلْبِدْعَة او طَلَاقَ الشَّيْطَان د ويلو په صورت کي طلاقِ رجعي واقع کيږي، ځکه چې د حيض په حالت کي طلاق ورکول هم په دې أوصافو سره متصف کيږي، نو په دې کي شک واقع سو چې آيا په دغه صورت کي طلاقِ بائن واقع

کيږي، که نه، او بينونت په شک سره نه ثابتيږي نو ځکه به دلته طلاق بائن نه واقع کيږي. خو څرنګه چې د طلاق وقوع يقيني ده نو ځکه به د طلاقِ رجعي له وقوع څخه هيڅ خلاصون نه وي، هغه به خامخا واقع کيږي.

## د طلاق په الفاظو کې د زياتوب کولو يو بل صورت

وَكَذَا إِذَا قَالَ: كَالْجَبَلِ او همدارنګه [طلاقِ بائن واقع کيږي] کله چې [خاوند] ووايي: [أَنْتِ طَالِقٌ] كَالْجَبَلِ [تا ته لکه غر دومره طلاق دی] لِأَنَّ التَّشْبِيهَ بِهِ يُوجِبُ زِيَادَةً لَا مَحَالَةَ ځکه چې د غره سره تشبيه ورکول خامخا زياتوب ثابتوي وَذٰلِكَ بِإِثْبَاتِ زِيَادَةِ الْوَصْفِ او دا [زياتوب] د وصف د زياتوب په إثبات سره راځي وَكَذَا إِذَا قَالَ: مِثْلَ الْجَبَلِ او همدارنګه [طلاقِ بائن واقع کيږي] کله چې [خاوند] ووايي: [تا ته] د غره په شان [طلاق دی] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ [اوس] ذکر کړی وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: يَكُونُ رَجْعِيًّا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا [طلاق] به رجعي وي ايعني په دې سره طلاقِ رجعي واقع کيږي] لِأَنَّ الْجَبَلَ شَيْءٌ وَاحِدٌ ځکه چې [ټوله] غر يو شی دی فَكَانَ تَشْبِيهًا بِهِ فِي تَوَحُّدِهٖ نو به د غره سره [د طلاق] تشبيه ورکول د هغه [غره] په يووالي کې وي.

**اللغات:** ﴿جَبَل﴾ غر، جمع: جِبَال. ﴿تَوَحُّد﴾ د تفعّل مصدر دی: يو کېدل، يو والي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د يو ډېر غټ شي مثلاً د غره سره د طلاق تشبيه ورکړي او ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ كَالْجَبَلِ يا مِثْلَ الْجَبَلِ، نو په دې صورت کې د طرفينو په نېز پر ښځې يو طلاقِ بائن واقع کيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې دلته خاوند د ډېر غټ شي يعني د غره سره تشبيه ورکړې ده. لهذا د طلاق په صفت کې هم زياتوب (زيادت) راتلل پکار دي، او دا هغه وخت راځي چې طلاقِ بائن واقع سي. نو ځکه به په دې صورت کې طلاقِ بائن واقع کيږي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې غر که څه هم غټ شی دی خو بيا هم ټوله يو (واحد) شی. نو په يووالي (وحدانيت) کې د هغه سره د طلاق تشبيه راغله. نو ځکه به يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

## • د طلاق په الفاظو کي د شدت يا زياتوب کولو يو بل تفصيلي صورت

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ أَشَدَّ الطَّلَاقِ أَوْ كَأَلْفٍ أَوْ مِلْءَ الْبَيْتِ او که [خاوند] خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ أَشَدَّ الطَّلَاقِ [تا ته تر ټولو سخت طلاق دی] يا كَأَلْف [تا ته د زرو طلاقو په څير طلاق دی] يا مِلْءَ الْبَيْت [تا ته ډک کور طلاق دی] فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ نو دا يو طلاق بائن دی إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ ثَلَاثًا خو دا چي خاوند د دريو [طلاقو] نيت وکړي أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ وَصَفَهُ بِالشِّدَّةِ کوم چي اول لفظ [أَشَدَّ الطَّلَاق] دی نو ځکه چي خاوند طلاق په شدت [سختۍ] سره متصف کړی دی وَهُوَ الْبَائِنُ او هغه [شديد طلاق] بائن دی لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُ الِانْتِقَاضَ وَالِارْتِفَاضَ ځکه چي بائن طلاق د ختمېدلو او ضايع کېدلو [فسخ کېدلو] احتمال نه لري أَمَّا الرَّجْعِيُّ فَيَحْتَمِلُهُ ليکن طلاق رجعي د دې [ختمېدلو او ضايع کېدلو] احتمال لري وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ لِذِكْرِهِ الْمَصْدَرَ او د دريو [طلاقو] نيت ځکه صحيح دی چي خاوند مصدر ذکر کړی دی وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّهُ قَدْ يُرَادُ بِهٰذَا التَّشْبِيهُ فِي الْقُوَّةِ تَارَةً وَفِي الْعَدَدِ أُخْرٰى او کوم چي دويم لفظ دی [يعني كَأَلْف] نو ځکه چي کله په دې سره په قوت کي تشبيه ورکول مراديږي او کله [په دې سره] په عدد کي [تشبيه ورکول مراديږي] يُقَالُ: هُوَ كَأَلْفِ رَجُلٍ ويل کيږي: هغه د زرو خلکو په څير دی وَيُرَادُ بِهِ الْقُوَّةُ او په دې سره [د هغه] قوت مراديږي فَتَصِحُّ نِيَّةُ الْأَمْرَيْنِ لهذا د دواړو شيانو نيت کول صحيح دي وَعِنْدَ فِقْدَانِهَا يَثْبُتُ أَقَلُّهُمَا او د نيت د نشتوالي په صورت کي به د دواړو شيانو أقل [کمه درجه] ثابتيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ: أَنَّهُ يَقَعُ الثَّلَاثُ عِنْدَ عَدَمِ النِّيَّةِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی: چي د نيت د نشتوالي په صورت کي درې طلاقه واقع کيږي لِأَنَّهُ عَدَدٌ ځکه چي "أَلْف" عدد دی فَيُرَادُ بِهِ التَّشْبِيهُ فِي الْعَدَدِ ظَاهِرًا نو په ظاهري توګه به له هغه څخه تشبيه في العدد مراد وي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ كَعَدَدِ أَلْفٍ نو هغه داسي دي لکه [خاوند] چي ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ كَعَدَدِ أَلْف [ته د زرو طلاقو د شمېر په څير طلاقه يې] وَأَمَّا الثَّالِثُ فَلِأَنَّ الشَّيْءَ قَدْ يَمْلَأُ الْبَيْتَ لِعِظَمِهِ فِي نَفْسِهِ او کوم چي دريم لفظ [مِلْءَ الْبَيْت] دی نو ځکه چي کله نا کله يو شی د خپل ځان د غټوالي په وجه سره کور ډکوي وَقَدْ يَمْلَأُ لِكَثْرَتِهِ او کله د خپل ډېرښت په وجه سره [کور] ډکوي فَأَيُّ ذٰلِكَ نَوٰى صَحَّتْ نِيَّتُهُ لهذا د کوم شي نيت چي هم خاوند وکړي د هغه نيت به صحيح وي وَعِنْدَ

اِنْعِدَامِ النِّيَّةِ يَثْبُتُ الْأَقَلُّ او د نيت د نشتوالي په صورت كي به أقل [كمه درجه طلاق] ثابتيږي ثُمَّ الْأَصْلُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ مَتَى شَبَّهَ الطَّلَاقَ بِشَيْءٍ يَقَعُ بَائِنًا بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز أصل دا دی چې كله هم ديو شي سره طلاق ته تشبيه وركول سي نو طلاقِ بائن واقع كيږي أَيَّ شَيْءٍ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ [برابره ده] كه مشبه هر [ډول] شی وي [د كوم شي سره چي تشبيه وركول سوي وي هغه شي ته مشبه بهٖ وايي] ذُكِرَ الْعِظَمُ أَوْلَمْ يُذْكَرْ [برابره ده، لفظ د] عظمت ذكر سوى وي كه نه وي لِمَا مَرَّ أَنَّ التَّشْبِيهَ يَقْتَضِي زِيَادَةَ وَصْفٍ د هغه دليل په وجه كوم چي تېر سو چي تشبيه وركول د وصفت د زياتوب تقاضا كوي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ إِنْ ذُكِرَ الْعِظَمُ يَكُونُ بَائِنًا وَإِلَّا فَلَا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز كه [لفظ د] عظمت ذكر سوى وي نو هغه [طلاق] به بائن وي كني [بائن] به نه وي أَيَّ شَيْءٍ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ مشبه بهٖ كه هر شی وي لِأَنَّ التَّشْبِيهَ قَدْ يَكُونُ فِي التَّوْحِيدِ عَلَى التَّجْرِيدِ ځكه چي ځيني وخت تشبيه په يو والي كي وي د خالي كولو پر بناء [يعني كله نا كله وصف (غټ شی) د عظمت له معنیٰ څخه خالي كړی سي او په يو والي كي تشبيه ور سره وركول سي] أَمَّا ذِكْرُ الْعِظَمِ فَلِلزِّيَادَةِ لَا مَحَالَةَ كوم چي د عظمت ذكر كول دي نو هغه يقيناً د زياتوب لپاره وي وَعِنْدَ زُفَرَ إِنْ كَانَ الْمُشَبَّهُ بِهِ مِمَّا يُوصَفُ بِالْعِظَمِ عِنْدَ النَّاسِ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز كه مبشه بهٖ له هغه شيانو څخه وي كوم چي د خلكو په نېز په عظمت سره متصف كيږي يَقَعُ بَائِنًا نو طلاقِ بائن واقع كيږي وَإِلَّا فَهُوَ رَجْعِيٌّ كني هغه به رجعي وي وَقِيلَ: مُحَمَّدٌ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ وَقِيلَ: مَعَ أَبِي يُوسُفَ ۞ او ويل سوي دي: چي امام محمد رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی او ويل سوي دي: چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی وَبَيَانُهُ فِي قَوْلِهِ: مِثْلُ رَأْسِ الْإِبْرَةِ مِثْلُ عِظَمِ رَأْسِ الْإِبْرَةِ وَمِثْلُ الْجَبَلِ مِثْلُ عِظَمِ الْجَبَلِ او د دې اختلاف وضاحت د خاوند په دې قول سره كيږي: ① [أَنْتِ طَالِقٌ] مِثْلُ رَأْسِ الْإِبْرَةِ [ته دستني د سپم په شان طلاقه يې، يا ته دستني د سپم په شان طلاق دی]، ② مِثْلَ عِظَمِ رَأْسِ الْإِبْرَةِ [ته دستني د سپم د غټوالي په شان طلاقه يې،

---

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة قاضي خان رَحِمَهُ الله : رجل قال لامرأته: أنت طالق كألف، إن نوىٰ ثلاثًا فثلاث، وإن لم ينوي شيئا فهي واحدة في قول أبي حنيفة وأبي يوسف الآخر (الخانية ج:٢، ص:٢١٨). [القـــول الـــراجح ج:١، ص:٣٢٢]

يا تا ته...]، ③ مِثْلَ الْجَبَلِ [تا ته د غره په شان طلاق دی، يا ته د غره په شان طلاقه يې] ④ مِثْلَ عِظَمَ الْجَبَلِ [تا ته د غره د غټوالي په شان طلاق دی].

**اللغات:** ﴿أَشَدّ﴾ له نصر او ضرب دواړو څخه اسم تفضيل دی: ډېر سخت، ﴿التَّجْرِيْد﴾ د تفعيل مصدر دی: مجرّد کول، خالي کول، لڅول، ﴿الِتِقَاص﴾ د افتعال مصدر دی: ماتېدل، ﴿إِرْتِقَاص﴾ دا هم د افتعال مصدر دی: پاته کېدل، ضايع کېدل، ﴿فُقْدَان﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ورکول، معدوم کول، ورکېدل، معدوم کېدل (نيستېدل)، ﴿أَقَلّ﴾ د ضرب اسم تفضيل دی: کم، د کمې درجې (کمتر)، ﴿يَمْلَأُ﴾ د فتح مضارع ده: ډکول، ﴿عِظَم﴾ عِظَم، عُظَم درې سره لغتونه پکښې جائز دي: غټوالی، لوی والی، ﴿إِبْرَاة﴾ ستن، ﴿رأْسُ الإِبْرَاة﴾ د ستنې سپم، د ستنې سوری چې تار په ننه ايستل کيږي.

**تشريح:** صاحب د هدايې په دې عبارت کې د طلاق د تشبيه ورکولو درې مثالونه ذکر کړي دي او د هريوه يې پوره تشريح کړې ده.

خلاصه يې دا ده چې کله خاوند ند خپلې ښځې ته أَنْتِ طَالِقٌ أَشَدَّ الطَّلَاقِ ووايي، يا أَنْتِ طَالِقٌ كَأَلْف، يا أَنْتِ طَالِقٌ مِلْءَ الْبَيْت ورته ووايي، نو که په دې دريو (۳) صورتونو کې خاوند د طلاق نيت نه وي کړی، يا يې د يوه او دوو طلاقو نيت کړی وي، نو پر ښځې طلاقِ بائن واقع کيږي، او که خاوند د دريو طلاقو نيت کړی وي، نو بيا درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چې دلته خاوند مصدر ذکر کړی دی (او تقدير د عبارت دا دی: أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا هُوَ أَشَدُّ الطَّلَاقِ)، او مصدر اسمِ جنس وي، کوم چې له يو وصف څخه بغير هم دريو (ثَلَاث) ته شامليږي او د دريو احتمال هم لري، لهذا کله چې د أَشَد او أَلْف او داسې نورو أوصافو سره مصدر ذکر کړی سي، نو بيا به دا اوصاف په درجه اولیٰ د دريو (ثَلَاثَ) احتمال لري، نو ځکه موږ وايو چې دلته به د دريو طلاقو د نيت په صورت کې پر ښځې درې طلاقه واقع کيږي.

**أما الأول إلخ:** له دې ځای څخه دا رانبيي چې په اوله جمله يعني په أَنْتِ طَالِقٌ أَشَدَّ الطَّلَاقِ سره ولې طلاقِ بائن واقع کيږي، نو فرمايي چې په دې مثال کې خاوند طلاق د شدت په وصف سره متصف کړی دی، او دا شدت د بينونت په ذريعه حاصليږي، ځکه چې طلاق د بائن کېدلو په صورت کې مضبوطيږي او سختيږي، ځکه په بائن کې د فسخ کېدلو او ختمېدلو احتمال نسته، همدا وجه ده

چي تر طلاق بائن وروسته له نوي نکاح څخه بغير رجعت نه سي کېدای حالانکي په طلاق رجعي کي له نکاح څخه بغير فقط په قول او فعل سره نکاح بيرته پر خپل حال پاتيږي او له نکاح څخه بغير خاوند ښځي ته رجعت کولای سي، نو د شدت د وصف د تحقق او ثبوت په وجه به په دې صورت کي طلاقِ بائن واقع کيږي.

**وأما الثاني:** او په دويمه جمله يعني په أَنْتِ طَالِقٌ كَأَلْف سره ځکه طلاقِ بائن واقع کيږي، چي کله ناکله دأَلْف په تشبيه سره په مُشبه کي "قوت" مراديږي او کله په دې سره په مشبه کي د عدد او شمېر "کثرت" مراديږي، لکه څرنګه چي ويل کيږي: فُلَانٌ كَأَلْفِ رَجل، أى فى القُوَّةِ (فلانکی د زرو خلکو په شان دی، په مېړانه او قوت کي)، او له دې څخه کله دا مراديږي چي: فُلَانٌ وَحْدَهٗ يُعَدُّ كَأَلْفِ رَجُلٍ (يعني فلانکی يک تنها د زرو خلکو په اندازه شمارل کيږي، يعني يک تنها د زرو خلکو سره برابر دی)، لهذا کله چي د أَلْف په تشبيه سره عدد او قوت دواړه مراديږي، نو د دواړو نيت کول به صحيح وي، يعني که خاوند په دې سره د يوه طلاق نيت وکړي، نو دا به په تَشبيه فى القوة باندي حمل کيږي، او که هغه د دريو نيت وکړي نو دا به په تشبيه فى العدد باندي حمل کيږي، او که هيڅ نيت نه وکړي، نو په دې صورت کي به أَقَل يعني يو طلاقِ بائن ثابتيږي، ځکه چي هغه د دريو طلاقو په مقابله کي أَقَل دی.

**وعن محمد:** له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دلته دا روايت نقل سوی دی چي د نيت نه کولو په صورت کي به په أَنْتِ طَالِقٌ كَأَلْف سره درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چي أَلْف عدد دی، نو له دې څخه تشبيه فى العدد مرادول زيات غوره او د قياس موافق دي، لهذا څرنګه چي د أَنْتِ طَالِقٌ كَعَدَدِ أَلْفٍ ويلو په صورت کي (يعني تر "أَلْف" مخکي د "العَدَد" د ذکر کولو په صورت کي) درې طلاقه واقع کيږي، همداسي به دلته هم درې طلاقه واقع کيږي.

**وأما الثلاث إلخ:** فرمايي چي په دريمه جمله يعني په أَنْتِ ملْءَ البَيْتِ سره د طلاقِ بائن واقع کېدلو وجه دا ده چي کله نا کله يو شی کور د خپل عظمت او غټوالي په وجه سره ډکوي، او کله نا کله يې د خپل کثرت او ډېرښت په وجه سره ډکوي، لهذا په طلاق کي به عظمت او غټوالی د إبانت په ذريعه ښکاره کيږي، او کثرت او ډېرښت به د دريو طلاقو په ذريعه ښکاره کيږي، لهذا دا دواړه احتماله به صحيح وي، او خاوند چي د کوم احتمال نيت هم وکړي، هغه به واقع کيږي.

او د نيت نه کولو په صورت کې به أَقَل ثابتيږي، او أَقَل يو طلاقِ بائن دی.

ثم الأصل إلخ: په دې سره صاحب د هدايې يوه قاعده بيانوي، چې پر هغه باندې د ائمه ثلاثه وو او د امام زفر رَحِمَهُمُ الله أقوال مبني دي، قاعده دا ده چې که طلاق په داسې وصف سره موصوف کړی سي چې په هغه سره طلاق نه موصوف کيږي، نو دا وصف به لغوه وي او طلاقِ رجعي به واقع کيږي، لکه خاوند چې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا لَا يَقَعُ عَلَيْكِ، او که طلاق په داسې وصف سره موصوف کړی سي چې په هغه سره طلاق موصوف کيږي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① دا وصف به د أثر په زياتوب کې مفيد وي، ② يا به نه وي، که چيرې هغه وصف داسې وي چې په هغه سره د وصف په اثر کې زياتوب نه راځي، نو دا وصف به هم زائد او لغوه وي او رجعي طلاق به واقع کيږي، لکه خاوند چې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ أَحْسَنَ الطَّلَاق يا أَجْمَلَ الطَّلَاق، يا أَفْضَلَ الطَّلَاق، ښکاره خبره ده چې په دې اوصافو سره په نفسِ وصف کې هيڅ زياتوب نه راځي، لهذا د دوی ذکر کول او نه ذکر کول دواړه سره برابر دي، نو په داسې اوصافو سره به طلاقِ رجعي واقع کيږي.

او که هغه وصف داسې وي چې په هغه سره د وصف په أثر کې زياتوب او مضبوطي راځي، نو په دې صورت کې به هغه وصف مفيد وي او په هغه سره به طلاقِ بائن واقع کيږي، برابره ده مشبه بهٖ که هر ډول شی وي، همدارنګه برابره ده لفظ د عِظَم ذکر سوی وي، که نه وي، کله چې هم طلاق په داسې وصف سره موصوف کړی او تشبيه ورکول سي، نو هغه بائن ګرځي، ځکه چې نفسِ تشبيه مطلقاً د وصف د زياتوب تقاضا کوي (دا حکم او تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی).

او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې که په تشبيه کې لفظ د عِظَم ذکر سوی وي، نو طلاقِ بائن واقع کيږي، کنې نه واقع کيږي، هغه که مشبه بهٖ هر شی وي، ځکه چې کله نا کله فقط د يو والي او وحدانيت د ښکاره کولو لپاره تشبيه ورکول کيږي، لهذا د دې احتمال د ختمولو لپاره به لفظ د عِظَم ذکر کول ضروري وي.

امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې که مشبه به داسې شی وي کوم چې د خلکو په عُرف کې عظيم شمارل کيږي، نو په دې صورت کې به طلاقِ بائن واقع کيږي، کنې طلاقِ رجعي به واقع کيږي، برابره ده لفظ د عظم ذکر سوی وي، که نه وي. او په دې هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله قول مضطرب دی، يو قول دا دی چې هغه د امام صاحب سره دی، او دويم قول دا دی چې هغه د امام ابو يوسف سره دی.

**وبيانه الخ:** فرمايي چي د دې اختلاف ثمره په لاندې مثالو کې ښکاره کيږي: هغه دا چي که يو سړی خپلې ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ مِثْلَ رَأْسِ الإِبْرَةِ يا أَنْتِ طَالِقٌ مِثْلَ عَظْمِ رَأْسِ الإِبْرَةِ، نو څرنګه چي دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تشبيه موجوده ده، نو ځکه به په دې دواړو صورتونو کې د هغه په نيز طلاقِ بائن واقع کيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز رأس الإبْرَة (د ستني سر) د خلکو په عرف کې عظيم نه شمارل کيږي، نو ځکه د هغه په نيز په دې دواړو صورتونو کې طلاقِ رجعي واقع کيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په اول صورت کې طلاقِ رجعي واقع کيږي، ځکه چي په هغه کې لفظ د عظم ذکر سوی نه دی، لېکن په دويم صورت کې لفظ د عظم ذکر سوی دی، نو ځکه په هغه کې د امام ابو يوسف په نيز طلاقِ بائن واقع کيږي کما هو الأصل عنده.

همدا اختلاف په أَنْتِ طَالِقٌ مِثْلَ الجبَل يا مِثْلَ عَظْمِ الجَبَل کې هم دی، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کې طلاقِ بائن واقع کيږي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په اول صورت کې طلاقِ رجعي او په دويم صورت کې طلاقِ بائن واقع کيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز هم په دې دواړو صورتونو کې طلاقِ بائن واقع کيږي، ځکه چي جَبَل له هغو شيانو څخه دی کوم چي د خلکو په عرف کې عظيم شمارل کيږي.

## د طلاق په الفاظو کې د شدت کولو يو بل صورت

**وَلَوْقَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيقَةً شَدِيْدَةً أَوْ عَرِيْضَةً أَوْ طَوِيلَةً** او که [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ تَطْلِيْقَةٌ شَدِيْدَةٌ...[ته په سخت طلاق سره، يا په پراخ طلاق سره، يا په اوږده طلاق سره (پر ما) طلاقه يې] **فَهِيَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ** نو دا به يو طلاقِ بائن وي **لِأَنَّ مَالَا يُمْكِنُ تَدَارُكُهُ يَشْتَدُّ عَلَيْهِ** ځکه چي د کوم شي تدارک [اتلافي] چي ممکنه نه وي هغه شی پر خاوند سخت [او ګران] وي **وَهُوَ الْبَائِنُ** او هغه طلاقِ بائن دی **وَمَا يَصْعُبُ تَدَارُكُهُ يُقَالُ فِيْهِ: لِهٰذَا الْأَمْرِ طُوْلٌ وَعَرْضٌ** او د کوم شي تدارک چي مشکل وي د هغه په هکله [داسي] ويل کيږي: لِهٰذَا الأَمْرِ طُوْلٌ وَعَرْض [دا کار اوږد او پراخ دی] **وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ**[*]**: أَنَّهُ يَقَعُ بِهَا رَجْعِيَّةٌ** او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په دې [جملې] سره طلاقِ رجعي واقع کيږي **لِأَنَّ هٰذَا الْوَصْفَ لَا يَلِيقُ بِهِ** ځکه چي دا وصف د طلاق لائق نه دی **فَيَلْغُو** نو ځکه به لغو کيږي **وَلَوْ نَوَى الثَّلَاثَ فِي هٰذِهِ الْفُصُوْلِ** او که په دې [ټولو] صورتونو

[*] القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله ، كما قال العلامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله : وعليه المتـــون (ج: ٣، ص: ٣٩١). [القـــول الراجح ج: ١، ص: ٣٢٣]

کي خاوند د دريو [طلاقو] نيت وکړي صَحَّتْ نِيَّتُهُ نو د هغه نيت صحيح کيږي لِتَنَوُّعِ الْبَيْنُونَةِ د بينونت د منقسم کېدلو په وجه [يعني بينونت څو اقسام لري] عَلٰى مَا مَرَّ د هغه دليل په وجه کوم چي [مخکي] تېر سو وَالْوَاقِعُ بِهَا بَائِنٌ او په دې [الفاظو] سره به واقع سوی [طلاق] بائن طلاق وي.

**اللغات:** ﴿يَشْتَدُّ﴾ دافتعال مضارع ده: سختېدل، بوج کېدل، ګرانېدل. ﴿يَصْعُبُ﴾ د کرُم مضارع ده: مشکل کېدل، ستونزمن کېدل. ﴿فُصُوْل﴾ صورتونه. ﴿تَنَوُّع﴾ د تفعّل مصدر دی: قسما قسم کېدل، څو قسمه کېدل (منقسم کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند ښځي ته د طلاق ورکولو په وخت کښي د طلاق سره د شَدِيْد (سخت) وصف ذکر کړي، يا د طَوِيْل (اوږد) يَا د عَرِيْض (پراخ) وصف ذکر کړي، نو په دې صورت کي طلاق بائن واقع کيږي؛ دليل دا دی چي پر خاوند به هغه طلاق سخت، اوږد او مشکال وي چي تر هغه وروسته ر نه سي جعت کېدای، او طلاقِ بائن له همدغه قبيلې څخه دی، لهذا په شديد او سخت وصف سره به طلاقِ بائنِ واقع کيږي.

**ومايصعب الخ:** د دې حاصل دا دی چي څرنګه د سخت او ګران کار لپاره شِدَّة استعماليږي، همداسي طُوْل او عَرْض هم د سخت او ګران لپاره استعماليږي (مثلاً د سختي معاملې په هکله ويل کيږي چي دا معامله ډېره اوږده ده، يا داسي نور...).

**وعن أبي يوسف الخ:** له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي په دې الفاظو (شَدِيْدَةٌ او داسي نورو) سره طلاقِ رجعي واقع کيږي؛ دليل دا دی چي دا أوصاف (يعني شدت او داسي نور) د طلاق سره مناسب نه دي؛ ځکه چي دغه أوصاف د أجسامِ انسانيه وو له قبيلې څخه دي، او طلاق د أعراضو له قبيلې څخه دی، لهذا کله چي د طلاق سره دغه أوصاف ذکر سي، نو دا به لغو کيږي او فقط أَنْتِ طَالِقٌ به پاتيږي، او په أَنْتِ طَالِقٌ (صريح طلاق) سره طلاقِ رجعي واقع کيږي.

**ولونوٰى:** د دې حاصل هغه دی کوم چي تاسو ته بار، بار ذکر سو يعني له أَنْتِ طَالِقٌ بَائِنٌ او البَتَّةَ څخه تر دې ځايه پوري چي کوم صورتونه ذکر سول، له هغه ټولو صورتونو څخه که په هر صورت کي خاوند د دريو طلاقو نيت وکړي، نو درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چي د خاوند په کلام کي د دې احتمال هم سته. او څرنګه چي د بينونت پر دوه قسمه دی: ① غليظه، يعني درې طلاقه واقع کېدل. ② خفيفه، يعني يو طلاق واقع کېدل، نو د نيت نه کولو په صورت کي خو به أقل او بينونت خفيفه يعني يو طلاق واقع کيږي، او د دريو طلاقو د نيت کولو په صورت کي به فردِ کل او بينونتِ غليظه يعني درې طلاقه واقع کيږي.



# فَصْلٌ فِي الطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ

(دا) فصل تر دخول مخکې د طلاق ورکولو په بيان کې دی

**تشريح:** څرنګه چې نکاح له ښځې څخه د نفع اخيستلو (استمتاع) او دخول په خاطر مشروع سوې ده، نو ځکه طلاق قبل الدّخول يو عارض دی، او عارض تر اصل وروسته بيانيږي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله تر طلاق بعد الدخول وروسته طلاق قبل الدخول بيانوي.

**ضروري يادونه:** د غيرِ مدخول بها ښځې په باره کې دا پنځه خبرې په ياد لرئ!، تر نکاح وروسته چې د کومي ښځې سره تر اوسه وطي او جماع سوې نه وي، يا خلوت صحيحه ور سره سوی نه وي، داسې ښځې ته غيرِ مدخول بها وايي، او د کومي ښځې سره چې وطي او جماع سوې وي، هغې ته مدخول بها وايي: ①... که غيرِ مدخول بها ښځې ته په يوه ځای درې طلاقه ورکول سي، نو درې سره طلاقه واقع کيږي، بيا د مخکني خاوند سره د هغې نکاح له "حلاله" (تحليل) څخه بغير حرامه ده، ②... او که هغې ته په متفرقه توګه درې طلاقه ورکول سي، مثلاً أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، نو اول طلاق واقع کيږي، او پاتې دوه طلاقه لغوه کيږي، ③... پر غيرِ مدخول ښځې عدت نسته، لهذا کله چې هم طلاقه سي، نو بغير له عدت څخه تللای سي، ④... څرنګه چې پر هغې عدت نسته، نو په دې وجه خاوند هغې ته رجعت هم کولای نه سي، ⑤... او ګواکې د غيرِ مدخول بها ښځې په حق کې طلاقِ بائن واقع کيږي، نه طلاقِ رجعي. (په راروانو عبارتو کې به هم دا پنځه خبرې په تفصيل سره ذکر سي).

## غيرِ مدخول بها ښځې ته درې طلاقه ورکول (تفصيلي حکم)

**وَإِذَا طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ الدُّخُوْلِ بِهَا** او کله چې سړی خپلې ښځې ته تر دخول مخکې درې طلاقه ورکړي **وَقَعْنَ عَلَيْهَا** نو هغه [ټوله] پر دغه [غيرِ مدخول بها] ښځې واقع کيږي **لِأَنَّ الْوَاقِعَ مَصْدَرٌ مَحْذُوْفٌ** ځکه چې واقع کېدونکی [طلاق] محذوف مصدر دی [يعني کوم طلاق چې واقع کيږي هغه مصدرِ محذوف دی] **لِأَنَّ مَعْنَاهُ: طَلَاقًا ثَلَاثًا** ځکه چې د هغه مفهوم دا دی: **طَلَاقًا ثَلَاثًا عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ** لکه [مخکې] چې مورږ د دې بيان وکړی **فَلَمْ يَكُنْ قَوْلُهُ أَنْتِ طَالِقٌ إِيْقَاعًا عَلَى حِدَةٍ** نو دا خاوند دا قول أَنْتِ

طَالِقٌ به عليحده [جلا] د طلاق واقع كول نه وي فَيَقَعْنَ جُمْلَةً نو ځکه به هغه [تولّه] پر يوه ځای واقع کيږي فَإِنْ فَرَّقَ الطَّلَاقَ او که خاوند طلاقونه سره جلا کړي [يعني په متفرقه توګه طلاق ورکړي] بَانَتْ بِالْأُولٰى نو [دا غير مدخول بها] ښځه به په اول طلاق سره بائنه کرځي وَلَمْ تَقَعِ الثَّانِيَةُ وَالثَّالِثَةُ او دويم او دريم [طلاق] به نه واقع کيږي وَذٰلِكَ مِثْلُ أَنْ يَقُوْلَ: أَنْتِ طَالِقٌ طَالِقٌ طَالِقٌ او دا مثلاً خاوند [داسي] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدَةٍ إِيْقَاعٌ عَلٰى حِدَةٍ ځکه چي [په دوی کي] هريو عليحده [طلاق] واقع کول دي إِذَا لَمْ يَذْكُرْ فِي آخِرِ كَلَامِهِ مَا يُغَيِّرُ صَدْرَهُ [په دې شرط] چي کله خاوند د خپل کلام په آخر کي داسي شی ذکر کړی نه وي کوم چي شروع د کلام بدله کړي حَتّٰى يَتَوَقَّفَ عَلَيْهِ تر دې چي وقوع [د طلاق] پر هغه موقوفه سي فَتَقَعُ الْأُوْلٰى فِي الْحَالِ نو اول طلاق خو به فی الحاله [پر غيرِ مدخول بها] واقع کيږي فَتُصَادِفُهَا الثَّانِيَةُ وَهِيَ مُبَانَةٌ او دويم طلاق به په داسي حالت کي د هغې سره مخامخ کيږي چي هغه بائنه ګرځېدلې وي وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً او همدارنګه کله چي هغه [غيرِ مدخول بها] ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ نو [هم] يو طلاق واقع کيږي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهَا بَانَتْ بِالْأُوْلٰى د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] ذکر کړی چي دا ښځه په اول طلاق سره بائنه کيږي وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً او که [خاوند] هغې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً فَمَاتَتْ قَبْلَ قَوْلِهِ وَاحِدَةً او د خاوند تر وَاحِدَةً ويلو مخکي هغه مړه سي كَانَ بَاطِلًا نو دا [کلام] به باطل [او لغو] وي لِأَنَّهُ قَرَنَ الْوَصْفَ بِالْعَدَدِ ځکه چي [دلته] خاوند وصف [طَالِقٌ] د عدد سره متصل کړی فَكَانَ الْوَاقِعُ هُوَ الْعَدَدَ نو به عدد واقع کيږي [يعني په عدد سره به طلاق واقع کيږي] فَإِذَا مَاتَتْ قَبْلَ ذِكْرِ الْعَدَدِ [خو] کله چي د عدد تر ذکر کېدلو مخکي ښځه مړه سوه فَاتَ الْمَحَلُّ قَبْلَ الْإِيْقَاعِ نو [د طلاق] تر إيقاع مخکي لا محل فوت سو فَبَطَلَ نو ځکه به [إيقاع] باطل وي وَكَذَا لَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا او همدارنګه کله چي [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ يا ثَلَاثًا [او تر ثِنْتَيْنِ يا ثَلَاثًا ويلو مخکي ښځه مړه سي، نو طلاق نه واقع کيږي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] ذکر کړی دی وَهٰذِهِ تُجَانِسُ مَا قَبْلَهَا مِنْ حَيْثُ الْمَعْنٰى او دا [درې مسئلې] د معنیٰ له رويه د مخکني مسئلې سره مشابه دي.

**اللغات:** ﴿تُصَادِفُ﴾ د مفاعلې مضارع ده: مخامخ کېدل، لاحق کېدل، (واقع کېدل)، ﴿تُجَانِسُ﴾ دا هم د مفاعلې مضارع ده: همجنسه کېدل، مشابه کېدل، ورته کېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کې څو مسئلې بیان سوي دي، او ټولي به انشاء الله ستاسو مخته په ترتیب سره ذکر سي: (۱)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلي غیرِ مدخول بها ښځي ته په أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا سره درې طلاقه ورکړي، نو درې سره طلاقه پر هغې واقع کیږي؛ دلیل مخکې تېر سو، هغه دا چي په أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا کې ثَلَاثًا مخکې مصدر محذوف دی، او عبارت داسي دی: أَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا ثَلَاثًا، او کله چي وصف د طلاق (یعني طَالِقٌ) د عدد (ثَلَاثًا او داسي نورو) سره ذکر سي، نو طلاق د عدد په ذریعه واقع کیږي، نه د وصف په ذریعه، لهذا دلته په دې أَنْتِ طَالِقٌ سره طلاق نه واقع کیږي، بلکي په طَلَاقًا ثَلَاثًا (عدد) سره طلاق واقع کیږي، ، نو ځکه به دلته درې سره طلاقه واقع کیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده که خاوند ښځي ته درې طلاقه جلا، جلا ورکړي، مثلاً ورته ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، نو په دې صورت کې به دې ته کتل کیږي چي خاوند خپل د کلام په آخر کې یو شرط یا استثناء ذکر کړې ده، که نه، که چیري خاوند د خپل کلام په آخر کې هیڅ شرط او استثناء ذکر کړي نه وي، نو په دې صورت کې پر ښځي درې طلاقه نه واقع کیږي، بلکي په اول أَنْتِ طَالِقٌ سره پر ښځي یو طلاق واقع کیږي، (لکه د باب په تشریح کې چي موږ ذکر کړه)، او څرنګه چي دا ښځه غیرِ مدخول بها ده، نو په همدغه یوه طلاق سره بائنه ګرځي، لهذا کله چي هغه بائنه سوه او عدت هم پر نسته، نو ځکه به دویم او دریم طلاق نه پر واقع کیږي، ځکه چي هغه د دویم او دریم طلاق محل پاته نه سو، نو په دې وجه به دویم او دریم طلاق لغو او بېکاره وي.

لېکن که چیري خاوند د خپل کلام په آخر کې یو شرط او استثناء ذکر کړي، مثلاً داسي ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ، أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ دَخَلْتِ الدَّار، نو څرنګه چي د هغه د کلام په آخر کې (یعني تر دریم أَنْتِ طَالِقٌ وروسته) د إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ شرط موجود دی، او دغه شرط د خاوند د کلام معنیٰ او مفهوم وربدل کړی دی، نو ځکه به اوس درې سره أَنْتِ طَالِقٌ پر إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ موقوف وي، او کله چي هم دا شرط موجود سي (یعني ښځه کور ته داخله سي)، نو په یوه ځل به درې سره طلاقه پر ښځي واقع کیږي.

(۳)... دریمه مسئله دا ده که خاوند خپلې غیرِ مدخول بها ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً (ته په يوه طلاق سره، او يوه طلاق سره پر ما طلاقه يې)، نو په دې صورت کې يو طلاقِ بائن واقع کيږي (يعني په دې صورت کې پر هغه غيرِ مدخول بها ښځې فقط يو طلاق واقع کيږي، او په همدې يو سره بائنه گرځي، او د دويم طلاق محل نه پاتيږي).

(۴)... څلورمه مسئله دا ده که خاوند دا اراده وکړه چې خپلې غير مدخول بها ښځې ته به أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً په ويلو سره طلاق ورکووم، نو کله چې هغه خپلې ښځې ته وويل أَنْتِ طَالِقٌ نو ناڅاپه تر وَاحِدَةً ويلو مخکې هغه ښځه مړه سوه، يا مثلاً د خاوند دا اراده وکړه چې په أَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ يا ثَلَاثًا سره به طلاق ورکووم، او تر ثِنْتَيْنِ يا ثَلَاثًا ويلو مخکې هغه مړه سوه، نو په دې ټولو صورتونو کې هيڅ طلاق نه واقع کيږي، او د خاوند کلام لغو کيږي.

دليل هغه دی کوم چې لږ څه مخکې ذکر سو چې کله د طلاق وصف (يعني طَالِقٌ) د عدد (ثَلَاثًا او داسې نورو) سره ذکر سي، نو طلاق د عدد په ذريعه واقع کيږي، نه د وصف په ذريعه، او دلته ښځه د عدد تر ذکر کولو مخکې مړه سوه، نو د طلاق تر إيقاع مخکې محل د طلاق فوت سو، نو ځکه به د خاوند کلام لغوه او باطل وي، او طلاق به نه واقع کيږي.

وهٰذا تجانس: صاحب د هدايې فرمايي چې دا درې سره مسائل يعني أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً...إلخ (يعني چې په هغوی کې د عدد تر ذکر کېدلو مخکې د ښځې د مرګ مسئله بيان سوې ده، دا درې سره مسائل)، د معنیٰ له رويه د مخکې ذکر سوي مسئلې (يعني کله چې خاوند غيرِ مدخول بها ښځې ته قبل الدخول درې طلاقه ورکړي) سره همجنسه او مشابه دي، دا خبره په ياد لرئ! چې د دوی په مينځ کې دا مجانست او مشابهت فقط په دې خبره کې دي چې دا ټوله مسئلې د طلاق په ايقاع کې پر عدد موقوفه او منحصره دي، يعني څرنګه چې په أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا کې په عدد ثَلَاثًا سره إيقاع د طلاق کيږي (يعني د ثَلَاثًا په ذريعه طلاق واقع کيږي)، همداسې په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً. وثِنْتَيْنِ. وثَلَاثًا کې هم إيقاع د طلاق په عدد يعني په وَاحِدَةً او داسې نورو سره کيږي.

د دوی په مفهوم او حکم کې بالکل مجانست نسته، ځکه چې په أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا کې پر ښځې درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چې "ثَلَاث" د هغې د ژوند په حالت کې ذکر سوی دی. ليکن په دا

نورو دريو مسئله کي ښځه د عدد تر ذکر کېدلو مخکې مره سوې ده، لهذا د مفهوم او حکم په اعتبار سره په دوی کي هيڅ مجانست نسته.

## غیرِ مدخول بها ښځې ته د طلاق ورکولو په وخت کي د دوو کلمو د استعمالولو بیان

وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ أَوْ بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ او که [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ أَوْ بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ [ته تر يوه طلاق مخکي په يوه طلاق سره طلاقه يې يا تر يوه طلاق وروسته په يوه طلاق سره طلاقه يې] وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ نو [په دې صورت کي] يو طلاق واقع کيږي وَالْأَصْلُ: أَنَّهُ مَتَى ذَكَرَ شَيْئَيْنِ وَأَدْخَلَ بَيْنَهُمَا حَرْفَ الظَّرْفِ او اُصول دا دی: چي کله خاوند دوه شيان ذکر کړي او د دوی په مينځ کي د ظرف حرف [قَبْل يا بَعْد] داخل کړي إِنْ قَرَنَهَا بِهَاءِ الْكِنَايَةِ [نو] که چيري هغه دا حرفُ الظرف د هاءِ کنايه [يعني د ةُ يا د هَا د ضمير] سره متصل کړي كَانَ صِفَةً لِلْمَذْكُورِ آخِرًا نو دا حرفُ الظرف به د هغه جملې صفت وي کوم چي په آخر کي [يعني تر حرفُ الظرف وروسته] ذکر سوې وي كَقَوْلِهِ: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَهُ عَمْرٌو لکه يو څوک چي ووايي: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَهُ عَمْرٌو [ما ته زيد راغلی مخکي تر هغه عمر وو، يعني تر زيد مخکي عمر راغلی] وَإِنْ لَمْ يَقْرِنْهَا بِهَاءِ الْكِنَايَةِ او که حرفُ الظرف د هاءِ کنايه سره متصل نه کړي كَانَ صِفَةً لِلْمَذْكُورِ أَوَّلًا نو دا حرفُ الظرف به په شروع کي د ذکر سوي جملې صفت وي كَقَوْلِهِ: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَ عَمْرٍو لکه د هغه دا قول: جَاءَنِي زَيْدٌ قَبْلَ عَمْرٍو [ما ته زيد تر عمر مخکي راغلی] وَإِيقَاعُ الطَّلَاقِ فِي الْمَاضِي إِيقَاعٌ فِي الْحَالِ او په ماضي کي د طلاق واقع کول [داسي دي لکه] په حال کي د طلاق واقع کول لِأَنَّ الْإِسْنَادَ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ ځکه چي [د ماضي و طرف ته د طلاق] نسبت کول د خاوند په وس کي نه دي فَالْقَبْلِيَّةُ فِي قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ صِفَةٌ لِلْأُولَى نو به قبليت د هغه په دې قول: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ کي د مخکني جملې صفت وي فَتَبِينُ بِالْأُولَى نو په اول طلاق سره به دا [غيرِ مدخول بها] ښځه بائنه وګرځي فَلَا تَقَعُ الثَّانِيَةُ لهذا دويم طلاق به نه واقع کيږي وَالْبَعْدِيَّةُ فِي قَوْلِهِ: بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ صِفَةٌ لِلْأَخِيرَةِ او د خاوند په دې قول: [أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً] بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ کي به بعديّت د آخري [وروستنۍ] جملې صفت وي فَحَصَلَتِ الْإِبَانَةُ بِالْأُولَى نو په همدا اول طلاق سره به إبانت حاصل سي وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَهَا وَاحِدَةٌ او که [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَهَا

وَاحِدَةً تَقَعُ ثِنْتَانِ نو دوه طلاقه واقع كيږي لِأَنَّ الْقَبْلِيَّةَ صِفَةٌ لِلثَّانِيَةِ لِاتِّصَالِهَا بِحَرْفِ الْكِنَايَةِ ځكه چې د حرفِ كنايه سره د متصل كېدلو په وجه قبليّت د دويم [وَاحِدَةً] صفت دى فَاقْتَضَى إِيقَاعَهَا فِي الْمَاضِي لهذا هغه په ماضي كي د دې [دويم وَاحِدَةً] د واقع كېدلو تقاضا كوي وَإِيقَاعُ الْأُولَى فِي الْحَالِ او په حال كي د اول [وَاحِدَةً] د واقع كېدلو تقاضا كوي غَيْرَ أَنَّ الْإِيقَاعَ فِي الْمَاضِي إِيقَاعٌ فِي الْحَالِ أَيْضًا خو دا چې په ماضي كي إيقاع په حال كي إيقاع هم ده ايعني كوم طلاق چې په ماضي كي واقع كړى سي هغه به اوس في الحاله واقع كيږي] فَيَقْتَرِنَانِ فَيَقَعَانِ نو ځكه به دواړه [واقع سوي طلاقونه يعني يو د ماضي طلاق او يو د حال طلاق] سره يو ځاى كيږي او [پر يوه ځاى به] واقع كيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةٍ او همدارنګه كله چې [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةٍ تَقَعُ ثِنْتَانِ نو [هم] دوه طلاقه واقع كيږي لِأَنَّ الْبَعْدِيَّةَ صِفَةٌ لِلْأُولَى ځكه چې بعديت د اول [وَاحِدَةً] صفت دى فَاقْتَضَى إِيقَاعَ الْوَاحِدَةِ فِي الْحَالِ وَإِيقَاعَ الْأُخْرَى قَبْلَ هٰذِهِ نو هغه تقاضا كوي د اول [وَاحِدَة] د واقع كېدلو في الحاله او د دويم [وَاحِدَةً] د واقع كېدلو تر دې مخكي ايعني د دې تقاضا كوي چې اول وَاحِدَةً اوس في الحاله واقع سي او دويم وَاحِدَةً دې تر دې مخكي واقع سي] فَيَقْتَرِنَانِ نو ځكه به دواړه سره متصل كيږي [او دوه طلاقه به واقع كيږي] وَلَوْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَ وَاحِدَةٍ أَوْ مَعَهَا وَاحِدَةً او كه [خاوند] ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَ وَاحِدَةٍ يا مَعَهَا وَاحِدَة تَقَعُ ثِنْتَانِ نو [هم] دوه طلاقه واقع كيږي لِأَنَّ كَلِمَةَ مَعَ لِلْقِرَانِ ځكه چې كلمه د "مَعَ" د اتصال لپاره ده وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁ فِي قَوْلِهِ مَعَهَا وَاحِدَةً: أَنَّهُ تَقَعُ وَاحِدَةٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د خاوند د دې قول [أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً] مَعَهَا وَاحِدَةً په هكله نقل سوي دي: چې [په دې سره] يو طلاق واقع كيږي لِأَنَّ الْكِنَايَةَ تَقْتَضِي سَبْقَ الْمَكْنِيِّ عَنْهُ لَا مَحَالَةَ ځكه چې كنايه خامخا [په هر حال كي] له مكني عنهُ څخه د وړانديتوب تقاضا كوي وَفِي الْمَدْخُولِ بِهَا تَقَعُ ثِنْتَانِ فِي الْوُجُوهِ كُلِّهَا او پر مدخول بها ښځي په ټولو صورتونو كي دوه طلاقه واقع كيږي لِقِيَامِ الْمَحَلِّيَّةِ بَعْدَ وُقُوعِ الْأُولَى ځكه چې تر اول طلاق واقع كېدلو وروسته [د هغې] محل كېدل قائم [او باقي] وي.

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله أنه تقع ثنتين في هذه الصورة، كما ذكر في رد المحتار (ج:٢، ص:٤٩٦)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٣٧٣)، وقال الأستاذ المفتي غلام قادر النعماني: إذا كان مع الإمام واحد من صاحبيه فقولهما راجح. [القول الراجح ج:١، ص:٣٢٦]

**اللغات:** ﴿قَرَنَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: یو شی د بل شي سره یو ځای کول، متصل کول، جمع کول، تړل، ﴿هَاءِ الْكِنَايَةِ﴾ د ضمیر "ه"، ﴿مَكْنِيٌّ عنه﴾ د ضرب اسم مفعول دی: د ضمیر مرجع.

**تشریح:** دا ټوله عبارت فقط پر دوو قاعدو او اُصولو مبني دی، په هغه قاعدو چې تاسو ځان پوه کړی، نو بغیر له تشریح څخه به هم تاسو په عبارت پوه سئ! تر ټولو مخکي دا خبره په یاد لرئ! چې دې عبارت ټولي مسئلې د غیرمدخول بها ښځي سره تعلق لري، او د هغې حکم مخکي ذکر سو چې هغه په یوه طلاق سره بائنه ګرځي، او عدت نه پر واجبیږي، او محل د طلاق نه پاتیږي.

اوس اُصولو ته ګورئ: ①... اول اُصول دا دی چې که خاوند د طلاق د إیقاع لپاره (یا مثلاً یو بل څوک د یو شي لپاره) دوې جملې استعمال کړي، او د هغه دواړو جملو تر مینځ د ظرف په حرف یعني په قَبْل او بَعْد سره فصل وکړي، نو اوس به دې ته کتل کیږي چې دا د ظرف حرف (یعني قَبْل یا بَعْد) د ضمیرِ کنایه سره (یعني د "ةُ" یا "هَا" سره) متصل دی کنه دی، که چیري د ظرف حرف د ضمیرِ کنایه سره متصل وي، نو دا ظرف د هغه جملې (یا کلمې) صفت واقع کیږي کوم چې تر ظرف وروسته ذکر سوې وي، مثلاً جَاءَنِيْ زَيْدٌ قَبْلَهٗ عَمْرٌو، دلته ضمیرِ کنایه یعني "ةُ" د ظرف یعني د قَبْلُ سره متصل دی، نو ځکه به ظرف د وروسته کلمي یعني د "عَمْرٌو" صفت وي، او د دې عبارت مطلب به دا وي چې "تر زید مخکي ما ته عمر راغلی".

②... دویم اُصول دا دی چې که یو سړی حالاً یعني نن ورځ په ماضي کي طلاق واقع کړي مثلاً ووایي: أَنْتِ طَالِقٌ بِالأَمْس، نو دا طلاق په ماضي کي نه، بلکي په حال او موجوده زمانه کي واقع کیږي، ځکه چې په ماضي کي د طلاق إیقاع د انسان په وس او قدرت کي نه دي، ځکه چې طلاق د یو مباح شي (إستمتاعُ المرأة) د ختمولو لپاره دی، او کوم مباح شی چې په ماضي کي انسان حاصل کړی وي، د هغه ختمول او ردول د انسان په وس کي نه دي، خلاصه دا چې إیقاع فی الماضي به إیقاع فی الحال وي.

اوس دا دوه اُصول او د غیرِ مدخول بها ښځي حکم مخته کښېږدئ! او د عبارت حاصل او خلاصه ته ګورئ!

د عبارت حاصل دا دی چې که خاوند خپلي غیرِ مدخول بها ښځي ته په دې الفاظو سره طلاق ورکړي؛ أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ یا أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ، نو په دې دواړو صور تونو کي د هغه پر ښځي فقط یو طلاق واقع کیږي، ځکه چې په اول صورت یعني په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَ وَاحِدَةٍ

کي د ظرف کلمه (قَبْل) د ضمير کنايه سره متصل نه دی، نو ځکه به هغه خپل د ماقبل (اول أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً) صفت وي، او په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحَدةً سره به پر ښځي يو طلاق واقع کيږي، او په همدې سره به هغه بائنه ګرځي، ځکه چي قَبْل دلته د اول وَاحِدةً يعني د أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً صفت دی، او د دې عبارت مطلب دا دی چي إيقاع أُولٰى (يعني د اول طلاق واقع کېدل) مخکي دي، او د همدغه اول طلاق په واقع کېدلو سره ښځه بائنه ګرځي، ځکه چي هغه غيرِ مدخول بها ده فلا تبقى محلًا للثانية.

او څرنګه چي په دويم صورت يعني په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَهَا وَاحِدَةً کي ظرف (بَعْد) د ضميرِ کنايه (هَا) سره متصل دی، نو ځکه به دلته ظرف د دويم وَاحِدةً صفت وي، او د عبارت مطلب دا دی چي ته په يوه طلاق سره پر ما طلاقه يې او تر هغه وروسته (هم) په يوه طلاق سره پر ما طلاقه يې، خو څرنګه چي دا (غيرِ مدخول بها ښځه) په اول طلاقه سره بائنه ګرځي، نو ځکه به د محل د فوتېدلو په وجه تر بَعْد وروسته والا طلاق (يعني دويم وَاحِدَةً) پر هغې نه واقع کيږي.

او کله چي خاوند غيرِ مدخول بها ښځي ته په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحَدَةً قَبْلَهَا وَاحِدَة سره طلاق ورکړي، نو په دې صورت کي پر هغې دوه طلاقه واقع کيږي، ځکه چي دلته ظرف (قَبْل) د ضمير کنايه (هَا) سره د متصل کېدلو په وجه د خپل ما بعد لپاره صفت دی، او د عبارت مطلب دا دی: چي ته په يوه طلاق سره پر ما طلاقه يې او تر هغه مخکي (هم) په يوه طلاق سره پر ما طلاقه يې، يعني يو طلاق خو اوس فى الحاله (اوس) درکوم، او تر هغه مخکي (هم) په تېره (ماضي) زمانه کي طلاق درکوم، او تاسو ته په دويم أُصول کي دا خبره ذکر سوه چي إيقاع فى الماضي به إيقاع فى الحال وي، لهذا دلته به هم د ماضي إيقاع، د فى الحال إيقاع وي، او د ماضي طلاق به د اوسني (فى الحاله) طلاق سره يو ځای کيږي او پر يوه ځای به دوه طلاقه واقع کيږي.

همدارنګه کله چي خاوند خپلي ښځي ته په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةً سره طلاق ورکړي، نو په دې صورت کي هم دوه طلاقه واقع کيږي، ځکه چي دلته ظرف (بَعْد) د ضميرِ کنايه سره د نه اتصال په وجه د ما قبل صفت دی، او د عبارت مطلب دا دی چي: تا ته تر يوه طلاق وروسته يو طلاق دی، ښکاره خبره ده چي تر يوه طلاق وروسته والا طلاق خو د فى الحال إيقاع لپاره دی، خو تر دې مخکي چي کوم په بَعْدَ وَاحِدَة سره طلاق ورکول سوی دی، هغه د إيقاع فى الماضي لپاره دی، لهذا د دويم أُصول مطابق به دواړه سره يو ځای کيږي، او دوه طلاقه به پر يوه ځای واقع کيږي.

**ولو قال أنت طالق واحدة مع إلخ**: تر دې ځايه خو عبارت د مخکنۍ دوو أصولو سره مربوط او متعلق وو، اوس له دې ځای څخه بله مسئله بيانيږي، هغه دا چي که خاوند خپلي غير مدخول بها ښځي ته په دې الفاظو سره طلاق ورکړی: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَ وَاحِدَةٍ يا أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَهَا وَاحِدَةٌ. نو په دې دواړو صورتونو کي هم پر ښځي دوه طلاقه واقع کيږي، ځکه چي دلته خاوند د دوو جملو په مينځ کي "مَعَ" داخل کړی دی، او د "مَعَ" کلمه د اتصال او قِران (يو ځای والي) لپاره راځي، لهذا پر يوه ځای به دواړه طلاقه واقع کيږي.

ليکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چي د أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً مَعَهَا وَاحِدَةٌ په صورت کي به فقط يو طلاق واقع کيږي، ځکه چي په مَعَهَا کي ضمير د کنايه يعني "هَا" موجود دی، او دا ضمير د دې تقاضا کوي چي مکنی عنه (يعني مرجع) دې په هر حال کي مخکي وي (يعني د دې تقاضا کوي چي کوم شي ته دا ضمير راجع کيږي، هغه به خامخا مخکي په وجود کي راغلی وي)، لهذا تر مَعَهَا وَاحِدَةٌ مخکي چي کوم أَنْتِ طَالِقٌ وَاحَدَةً دی، په هغه سره به يو طلاق واقع کيږي، او څرنګه چي دا ښځه په يوه طلاق سره بائنه ګرځي، نو ځکه به تر مَعَهَا وروسته دويم وَاحَدَةٌ (دويم طلاق) پر هغې نه واقع کيږي.

**وفي المدخول بها**: د دې حاصل دا دی چي که په مخکنيو پنځو صورتونو کي ښځه مدخول بها وي، نو پر هغې دوه طلاقه واقع کيږي؛ ځکه چي هغه د اول طلاق تر وقوع وروسته هم د طلاق محل پاتيږي، نو ځکه به دويم طلاق هم پر هغې واقع کيږي.

## په پورتني صورت کي د تعليق کولو بيان

**وَلَوْ قَالَ لَهَا: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً** او که [خاوند] [غير مدخول بها] ښځي ته ووايي: که ته [دغه] کور ته ننوتې نو په يوه طلاق او يوه طلاق سره [پر ما] طلاقه يې **فَدَخَلَتْ** او ښځه ننوځي **وَقَعَتْ عَلَيْهَا وَاحِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغې يو طلاق واقع کيږي **وَقَالَا: تَقَعُ ثِنْتَانِ** [1] او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي دوه طلاقه واقع کيږي **وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ** او که هغې ته ووايي: ته په يوه طلاق او يوه طلاق سره [پر ما] طلاقه

[1] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله ، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: وقولهما راجح (فتح القدير ج:۳، ص:۲۹۶)، وكذا في رد المحتار (ج:۲، ص:۴۹۶). [القول الراجح ج:۱، ص: ۳۲۶]

یې که چیرې [دغه] کور ته ننوتې [یعني د طلاق خبره مخکې کړې او د شرط خبره وروسته کړې] فَدَخَلَتْ او هغه ننوځې طُلِّقَتْ ثِنْتَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق په دوو طلاقو سره طلاقه کیږي لَهُمَا: أَنَّ حَرْفَ الْوَاوِ لِلْجَمْعِ الْمُطْلَقِ د صاحبینو دلیل دا دی: چې د "واو" حرف د مطلق جمع لپاره دی فَيَقَعْنَ جُمْلَةً نو ټوله [یعني دواړه] طلاقونه به واقع کیږي كَمَا إِذَا نَصَّ عَلَى الثِّنْتَيْنِ أَوْ أَخَّرَ الشَّرْطَ لکه په هغه صورت کې [چې دواړه واقع کیږي] کله چې [خاوند] د دوو طلاقونو صراحت وکړي یا شرط وروسته کړي وَلَهُ: أَنَّ الْجَمْعَ الْمُطْلَقَ يَحْتَمِلُ الْقِرَانَ وَالتَّرْتِيبَ د امام صاحب دلیل دا دی: چې مطلق جمع د اتصال او ترتیب دواړو احتمال لري فَعَلَى اعْتِبَارِ الْأَوَّلِ تَقَعُ ثِنْتَانِ نو د اول شي [اتصال] پر اعتبار به دوه طلاقه واقع کیږي وَعَلَى اعْتِبَارِ الثَّانِي لَا تَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ او د دویم شي [ترتیب] پر اعتبار به فقط یو طلاق واقع کیږي كَمَا إِذَا نَجَّزَ بِهٰذِهِ اللَّفْظَةِ لکه په هغه صورت کې چې کله په دې لفظ سره فی الحاله طلاق [منجز طلاق] ورکړي فَلَا يَقَعُ الزَّائِدُ عَلَى الْوَاحِدَةِ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه تر یوه زاید طلاق نه واقع کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخَّرَ الشَّرْطَ په خلاف د هغه صورت کله چې خاوند شرط وروسته کړی وي لِأَنَّهُ مُغَيِّرٌ صَدْرَ الْكَلَامِ ځکه چې [په دې صورت کې] هغه د کلام د صدر [یعني د کلام د اولي حصې] بدلونکی دی فَيَتَوَقَّفُ الْأَوَّلُ عَلَيْهِ لهذا اول طلاق [وَاحِدَة] به پر هغه [شرط] موقوف وي فَيَقَعْنَ جُمْلَةً نو ټوله [دواړه] طلاقونه به واقع کیږي وَلَا مُغَيِّرَ فِيمَا إِذَا قَدَّمَ الشَّرْطَ او په هغه صورت کې [صدر د کلام لره] هیڅ بدلونکی نسته کله چې خاوند شرط مخکې کړی وي فَلَمْ يَتَوَقَّفْ نو [په هغه صورت کې] طلاق [پر شرط] نه موقوف کیږي وَلَوْ عَطَفَ بِحَرْفِ الْفَاءِ او که [خاوند] د "فاء" په ذریعه عطف وکړي فَهُوَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ فِيمَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ نو هغه [هم] پر دغه اختلاف دي په هغه صورت کې کوم چې امام کرخي رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی وَذَكَرَ الْفَقِيهُ أَبُو اللَّيْثِ: أَنَّهُ يَقَعُ وَاحِدَةً بِالِاتِّفَاقِ او فقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله [دا] ذکر کړي دي: چې بالاتفاق یو طلاق واقع کیږي لِأَنَّ الْفَاءَ لِلتَّعْقِيبِ ځکه چې فاء د تعقیب لپاره وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا [قول د اتفاق] زیات صحیح دی.

**اللغات:** ﴿جُمْلَةً﴾ ټوله، مجموعه، ﴿نَجَّزَ﴾ د افعال ماضي ده: سمدستي یو کار کول، فوراً کول، ﴿مُغَيِّرٌ﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: بدلونکی، ﴿تَعْقِيب﴾ وروسته راوړل، وروسته کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند دوه يا درې طلاقه پر شرط معلق کړي، او يو پر بل د حرفِ "واو" په ذريعه سره عطف کړي، نو د دې دوه صورتونه دي، شرط به يا مقدم (مخکې) وي، يا به مؤخر (وروسته) وي، که شرط مؤخر وي، مثلاً: خاوند غيرِ مدخول بها ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةٌ وَ وَاحِدَةٌ إِنْ دَخَلْتِ الدَّار، او بيا ښځه کور ته داخله سي، نو بالاتفاق دواړه طلاقه واقع کيږي، او که شرط مقدم وي، مثلاً خاوند خپلې غيرِ مدخول بها ښځې ته ووايي: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةٌ وَ وَاحِدَةٌ، او غير مدخول بها ښځه کور ته داخله سي، نو د صاحبينو په نيز په دې صورت کې دوه طلاقه واقع کيږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز يو طلاق واقع کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د "واو" حرف مطلقاً د جمع لپاره راځي، نو دواړه طلاقه به سره جمع کيږي او پر يوه ځای به واقع کيږي، لکه څرنګه چې د إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْن د ويلو په صورت کې دواړه طلاقه پر يوه ځای واقع کيږي همداسې به دلته هم دواړه پر يوه ځای واقع کيږي، او برابره ده خاوند شرط مقدم کړی وي، که نه وي، ځکه کله چې د شرط د مؤخر کولو په صورت کې ستاسو په نيز هم دوه طلاقه واقع کيږي، نو د مقدم کولو په صورت کې به هم دوه طلاقه واقع کيږي، او په تقديم او تأخير سره به د طلاق په شمېر کې هيڅ فرق نه کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې صحيح ده (موږ دا خبره منو) چې "واو" مطلقاً د جمع لپاره راځي خو مطلقاً جمع د اتصال او ترتيب دواړو احتمال لري، نو که د جمع د اتصال د معنیٰ لحاظ وسي، نو دواړه طلاقه به واقع کيږي، او که د ترتيب د معنیٰ لحاظ يې وسي، نو يو طلاق به واقع کيږي، او د غيرِ مدخول بها کېدلو په وجه هغه ښځه په يوه طلاق سره بائنه ګرځي، لکه څرنګه چې په هغه صورت کې غيرِ مدخول بها ښځه په يوه طلاق سره بائنه ګرځي کله چې خاوند هغې ته طلاقِ مُنجز ورکړي (يعني کله چې خاوند طلاق پر شرط معلق نه کړي بلکې فی الحاله [فوراً] يې واقع کړي)، لهذا په مطلقاً جمع کې دوه احتماله ستنه، او دا خبره تسليم سوې ده چې محض په احتمال سره طلاق نه واقع کيږي، نو ځکه به د شرط د تقديم په صورت کې فقط يو طلاق واقع کيږي.

هاا د شرط د تأخير په صورت کې به دوه طلاقه واقع کيږي، ځکه چې د شرط د مؤخر کېدلو په وجه به صدر د کلام يعني أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةٌ وَ وَاحِدَة د شرط پر وجود موقوف او معلق وي، او کله چې هم شرط موجود سي، نو پر يوه ځای به دواړه طلاقه واقع کيږي، او داسې نه سي کېدلای چې يو دې واقع سي او بل دې نه واقع کيږي.

**ولا مغير إلخ**: د دې په خلاف د شرط د تقديم په صورت کې صدر د کلام پرېو شي نه موقوف کيږي، نو ځکه به د کلام په صدر يعني په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً سره فقط يو طلاق واقع کيږي، او ښځه به د غيرِ مدخول بها کېدلو په وجه د دويم طلاق محل پاتې نه سي.

**ولوعطف إلخ**: او که خاوند د "واو" پر ځای "فاء" استعمال کړه، يعني د "فاء" په ذريعه يو طلاق پر بل طلاق عطف کړي، او داسې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً فَوَاحِدَةً، نو د امام کرخي رَحِمَهُ الله د بيان مطابق دا هم مختلف فيه دي، يعني په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز يو طلاق واقع کيږي، او د صاحبينو په نېز دوه طلاقه واقع کيږي، ګواکي امام کرخي رَحِمَهُ الله عطف بالواو او عطف بالفاء سره برابر کړي دي، حالانکې دا صحيح نه دي.

په دې هکله صحيح او معتبر قول د فقيه ابو الليث سمرقندي رَحِمَهُ الله دی، هغه دا دی چې د عطف بالفاء صورت کې بالاتفاق يو طلاق واقع کيږي، ځکه چې فاء د تعقيب او ترتيب لپاره ده، نو د ترتيب په خاطر به په أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً سره يو طلاق واقع کيږي، او په همدغه يوه طلاق سره به ښځه بائنه ګرځي.

## د کناياتو بيان

وَأَمَّا الضَّرْبُ الثَّانِي او کوم چې دويم قسم دی وَهُوَ الْكِنَايَاتُ لَا يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ إِلَّا بِالنِّيَّةِ أَوْ بِدَلَالَةِ الْحَالِ او هغه کنايات دي چې په هغوی سره طلاق نه واقع کيږي مګر په نيت سره يا په دلالت د حال سره لِأَنَّهَا غَيْرُ مَوْضُوعَةٍ لِلطَّلَاقِ ځکه چې کنايات د طلاق لپاره وضع کړل سوي نه دي بَلْ تَحْتَمِلُهُ وَغَيْرَهُ بلکې د طلاق او غيرِ طلاق [دواړو] احتمال لري فَلَا بُدَّ مِنَ التَّعْيِينِ أَوْ دَلَالَتِهِ نو ځکه [په نيت سره د هغوی] تعيين يا دلالت د تعيين ضروري دی.

**اللغات**: ﴿الضَّرْب﴾ قسم، نوع.

**تشريح**: مصنف رَحِمَهُ الله چې کله د اول قسم يعني د "صريح طلاق" له بيان څخه فارغ سو، نو اوس د دويم قسم يعني د کنايو بيان کوي، کنايه: هغه لفظ ته وايي چې مراد يې پټ او مخفي وي، او د کنايه حکم دا دی چې پر هغه عمل کول واجب نه دي، خو دا چې کله نيت موجود سي، يا د نيت قائم مقام يعني دلالت د حال موجود سي (يعني حالت دا تقاضا کوي چې خاوند طلاق ورکول غواړي)، دليل دا دی چې د کنايه الفاظ فقط د طلاق لپاره نه دي وضع سوي، بلکې د طلاق او غيرِ طلاق دواړو احتمال

لري، لهذا په نيت سره د طلاق احتمال له غيرِ طلاق څخه جلا كول او متعين كول يا په دلالت د حال سره د طلاق احتمال متعين كېدل ضروري دي.

## د كنايات رجعيه وو بيان

قَالَ: وَهِيَ عَلَى ضَرْبَيْنِ فرمايي: او كنايات پر دوه قسمه دي مِنْهَا ثَلَاثَةُ أَلْفَاظٍ يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ له هغوى څخه درې الفاظ داسي چي طلاقِ رجعي په واقع كيږي وَلَا يَقَعُ بِهَا إِلَّا وَاحِدَةٌ او فقط يو طلاق په واقع كيږي وَهِيَ قَوْلُهُ: اعْتَدِّي وَاسْتَبْرِئِي رَحِمَكِ وَأَنْتِ وَاحِدَةٌ او هغه د خاوند دا قول دى: اِعْتَدِّيْ [ته يې شمار كړه] اِسْتَبْرِئِيْ [خپل د رحم استبراء وكړه، خپل رحم صفا كړه] أَنْتِ وَاحِدَةٌ [ته يوه يې] أَمَّا الْأُولَى فَلِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ الِاعْتِدَادَ عَنِ النِّكَاحِ كوم چي اوله جمله [اِعْتَدِّيْ] ده نو ځكه چي دا جمله د نكاح د شمارلو احتمال [هم] لري [يعني د أيامِ عدت د شمارلو احتمال هم لري] وَتَحْتَمِلُ اعْتِدَادَ نِعَمِ اللهِ تَعَالَى او د الله د نعمتونو د شمارلو احتمال [هم] لري فَإِنْ نَوَى الْأَوَّلَ تَعَيَّنَ بِنِيَّتِهِ لهذا كه [خاوند] د اول نيت وكړى نو هغه د ده په نيت سره متعين سو فَيَقْتَضِيْ طَلَاقًا سَابِقًا نو به د مخكني طلاق تقاضا كوي وَالطَّلَاقُ يُعَقِّبُ الرَّجْعَةَ او طلاق [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي [يعني تر طلاق وروسته ښځي ته رجوع كېداى سي] وَأَمَّا الثَّانِيَةُ فَلِأَنَّهَا تُسْتَعْمَلُ بِمَعْنَى الِاعْتِدَادِ او كوم چي دويمه جمله [اِسْتَبْرِئِيْ] ده نو ځكه چي [كله] د عدت په معنىٰ سره استعماليږي لِأَنَّهُ تَصْرِيْحٌ بِمَا هُوَ الْمَقْصُوْدُ مِنْهُ ځكه دا [اِسْتَبْرِئِيْ] د هغې معنىٰ تصريح ده كوم چي له عدت [اعتداد] څخه مقصود ده فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو به د عدت په درجه كي وي وَتَحْتَمِلُ الِاسْتِبْرَاءَ لِيُطَلِّقَهَا او د استبراء [هم] احتمال لري چي خاوند هغه طلاقه كړي وَأَمَّا الثَّالِثَةُ فَلِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ أَنْ تَكُوْنَ نَعْتًا لِمَصْدَرٍ مَحْذُوْفٍ كوم چي دريمه جمله [أَنْتِ وَاحِدَةٌ] ده نو ځكه چي هغه د محذوف مصدر د صفت جوړېدلو احتمال [هم] لري مَعْنَاهُ: تَطْلِيْقَةٌ وَاحِدَةٌ چي د هغه [محذوف مصدر] مفهوم دى: تَطْلِيْقٌ وَاحِدَةٌ [يعني تر وَاحِدَةٌ مخكي تَطْلِيْقَةٌ مصدر محذوف دى] فَإِذَا نَوَاهُ جُعِلَ كَأَنَّهُ قَالَهُ نو كله چي [خاوند] د دې [مصدر، يعني د يوه طلاق] نيت وكړي نو داسي سو لكه هغه چي [په خوله] ويلى وي وَالطَّلَاقُ يُعَقِّبُ الرَّجْعَةَ او طلاق [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي وَتَحْتَمِلُ غَيْرَهُ او دا [دريمه جمله] [د محذوف مصدر له صفت څخه بغير] د بل احتمال [هم] لري

وَهُوَ: أَنْ تَكُوْنَ وَاحِدَةً عِنْدَهُ أَوْ عِنْدَ قَوْمِهِ او هغه احتمال دا دی: چې دا ښځه د خاوند په نېز يا د هغه د قوم په نېز يوه ده [يعني ته زما يا زما د قوم په نېز يکتا او لاثاني ښځه يې] وَلَمَّا احْتَمَلَتْ هٰذِهِ الْأَلْفَاظُ الطَّلَاقَ وَغَيْرَهُ او کله چې دا الفاظ د طلاق او غير طلاق [دواړو] احتمال لري تَحْتَاجُ فِيهِ إِلَى النِّيَّةِ نو په دې کې به د نيت ضرورت وي وَلَا تَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ او فقط يو طلاق به واقع کيږي لِأَنَّ قَوْلَهُ: أَنْتِ طَالِقٌ فِيهَا مُقْتَضًى أَوْ مُضْمَرٌ ځکه چې په دې الفاظو کې د خاوند دا قول: إِنْتِ طَالِقٌ مقتضیٰ دی يا مضمر دی [يعني أَنْتِ طَالِقٌ يا په دې الفاظو کې اقتضاء او د تقاضا په توګه دی يا په دوی کې پټ دی] وَلَوْ كَانَ مُظْهَرًا لَا تَقَعُ بِهَا إِلَّا وَاحِدَةٌ که چيرې مظهر وای نو په هغوی سره به [هم] فقط يو طلاق واقع کېدای فَإِذَا كَانَ مُضْمَرًا أَوْلَى لهذا کله چې هغه مضمر وي نو په طريقه اولیٰ سره به [په هغوی يو طلاق واقع کيږي] وَفِي قَوْلِهِ: وَاحِدَةٌ وَإِنْ صَارَ الْمَصْدَرُ مَذْكُورًا او د خاوند په دې قول: وَاحِدَةٌ کې که څه هم مصدر ذکر سوی دی لٰكِنَّ التَّنْصِيصَ عَلَى الْوَاحِدَةِ يُنَافِي نِيَّةَ الثَّلَاثِ ليکن د وَاحِدَةٌ يوه طلاق] صراحت د دريو طلاقو د نيت منافي دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِإِعْرَابِ الْوَاحِدَةِ عِنْدَ عَامَّةِ الْمَشَايِخِ او د زياتره مشايخو په نېز د وَاحِدَةٌ اعراب لره هيڅ اعتبار نسته هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح خبره ده لِأَنَّ الْعَوَامَّ لَا يُمَيِّزُونَ بَيْنَ وُجُوهِ الْإِعْرَابِ ځکه چې عوام د اعراب د صورتونو تر مينځ توپير نه سي کولای.

**اللغات:** ﴿رَحِم﴾ رِحْم: بچه دانی، زيلانځه، د ښځي په نس کې هغه ځای چې اولاد پکې وي، ﴿مُضْمَر﴾ پټ کړی سی، ﴿تَنْصِيص﴾ د تفعيل مصدر دی: صراحت کول، په الفاظو کې ذکر کول، ﴿وُجُوه﴾ صورتونه، شکلونه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې څرنګه د طلاق إيقاع پر دوه قسمه ده: صريح او کنايه، همداسې کنايه هم پر دوه قسمه ده: يو قسم هغه کنايه ده چې په هغه سره فقط يو طلاق رجعي واقع کيږي، دويم قسم هغه کنايه ده چې په هغه سره طلاقِ بائن واقع کيږي.

په کومه کنايه چې سره طلاقِ رجعي واقع کيږي، د هغې لپاره درې الفاظ دي: (۱)... اِعْتَدِّيْ: دا کلمه له الفاظِ کنايه وو څخه ده، او په دې سره طلاقِ رجعي واقع کيږي، ځکه چې د اِعْتَدِّيْ معنیٰ ده: شمارل، او په دې معنیٰ کې دوه احتماله دي: ① د عدت ورځې شمار کړه!، ② د الله نعمتونه شمار کړه!، څرنګه چې په دې کې دوه احتمال دي، لهذا د طلاق د وقوع لپاره د نيت يا دلالت حال

موجودېدل ضروري دي، اوس که خاوند په دې سره د اولي معنیٰ یعنې "د أیام عدت د شمارلو" نیت وکړي، نو همدغه احتمال به متعین کیږي، او د عدت ورځې شمارل هغه وخت کېدای سي کله چې تر هغه مخکې طلاق واقع سوي وي، نو ځکه به تر هغه مخکې د طلاق وقوع منل کیږي (یعنې دلته به د طلاق لفظ محذوف منل کیږي او عبارت به داسي وي: أَنْتِ طَالِقٌ فَاعْتَدِّيْ)، او عدت تر طلاقِ رجعي وروسته ثابتیږي، نو ځکه به په دې سره یو طلاقِ رجعي واقع کیږي.

**وأمّا الثانية:** (۲)... دریم لفظ او تعبیر اِسْتَبْرِئِيْ رَحِمَكِ، په دې سره هم طلاقِ رجعي واقع کیږي. ځکه چې دا هم د دوو معناوو احتمال لري: ① د عدت ورځې شمار کړه!، ځکه چې د اِسْتَبْرِئِيْ معنیٰ ده: ته خپل رحم صفا کړه!، او ښکاره ده چې د رحم صفايي په عدت تېرولو سره کیږي، نو ګواکي خاوند د اِسْتَبْرِئِيْ په ویلو سره د عدت معنیٰ مراد کړه، لهذا د خاوند اِسْتَبْرِئِيْ ویل به د اِعْتَدِيْ ویلو په معنیٰ سره وي، ② دویم احتمال دا دی چې د اِسْتَبْرِئِيْ په خپله معنیٰ یعنې استبراء مراد کړی سي، او د دې مطلب به دا وي چې ته رحم صفا کړه! چې زه تا ته د سنت طریقې مطابق طلاق درکړم. اوس دلته که خاوند په دې سره د اولي معنیٰ یعنې د اِعْتَدِّيْ نیت وکړي، نو پر ښځې به طلاق واقع کیږي، لأن الاعتداد يقتضي وجود الطلاق ووقوعهٗ سابقًا، كما قلنا، او که په دې سره د دویمي معنیٰ نیت وکړي، نو بیا في الحاله طلاق نه واقع کیږي.

**وأما الثالثة:** (۳)...دریم لفظ أَنْتِ وَاحِدَةٌ دی، په دې کي هم دوه احتماله دي: ① یو دا چې دا به د محذوف مصدر تَطْلِيْقَةٌ صفت وي او د دې مفهوم به دا وي: أَنْتِ تَطْلِيْقَةٌ وَاحِدَةٌ، ② دویم احتمال دا دی چې د وَاحِدَةٌ مطلب به دا وي چې په دې سره خاوند د ښځې تعریف کوي چې ته زما په نېز په ټوله ښاریا په ټوله قوم کي یوه ښځه یې، ستا په مثل ښځه هیڅ ځای نسته. اوس که خاوند د اول احتمال (یعنې د محذوف مصدر د صفت) نیت وکړي، نو پر ښځې یو طلاقِ رجعي واقع کیږي، ځکه چې أَنْتِ تَطْلِيْقَةٌ د طلاق د إیقاع لپاره صریح لفظ دی.

**ولما احتملت إلخ:** فرمايي کله چې دا درې سره الفاظ د طلاق او غیرِ طلاق دواړو احتمال لري، نو ځکه به په دوی کي د یوه احتمال د تعیین او ټاکلو لپاره نیت هم ضروري وي، او په دې الفاظو سره واقع کېدونکی طلاق به یو وي، ځکه چې له دې الفاظو څخه په اولو دوو الفاظو یعنې په اِعْتَدِّيْ او اِسْتَبْرِئِيْ

رَحْمَتِ سره خو اقتضاءً طلاق ثابت دی، د اقتضاءً ثابتېدلو مطلب دا دی چي په دې الفاظو کي فقط د نيت په وخت کي د علت تېرولو مفهوم پيدا کيږي، او علت هغه وخت ښځه تېروي کله چي تر هغه مخکي طلاق واقع او ثابت وي، لهذا د دې دواړو الفاظو د اختيارولو په صورت کي خو به اقتضاءً طلاق واقع کيږي، او په دريم لفظ أَنْتِ وَاحِدَةٌ کي طلاق مخفي او مضمر دی، که چيري په دې صورت کي طلاق ظاهر او ښکاره کړل سوی وای، او خاوند أَنْتِ تَطْلِيْقَةٌ وَاحِدَةٌ ويلي وای (يعني تَطْلِيْقَةٌ يې هم ذکر کړي وای)، نو بيا به هم فقط يو طلاق واقع کېدای، لهذا د مخفي کېدلو په صورت کي به په طريقه اولیٰ سره فقط يو طلاق واقع کيږي.

**وفي قوله واحدة إلخ**: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي کوم چي د دريم لفظ يعني د أَنْتِ وَاحِدَةٌ په باره کي دی، سوال دا دی چي کله په أَنْتِ وَاحِدَةٌ کي مصدر يعني تَطْلِقَيةٌ موجود دی، نو ځرنګه چي په دې سره خاوند د فردِ حقيقي يعني د يوه طلاق نيت کولای سی، همداسي د هغه لپاره د فردِ حکمي يعني د دريو طلاقو نيت هم بايد صحيح وای؟ صاحب د کتاب د دې په جواب کي فرمايي چي دلته که څه هم مصدر موجود دی، خو د مصدر سره د وَاحَدَةٌ صراحت هم سوی دی، او واحِدَةٌ (يو طلاق) د دريو طلاقو د نيت منافي دی، نو ځکه به په دې سره د دريو طلاقو نيت صحيح نه وي.

**ولا معتبر إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چي په أَنْتِ وَاحِدَةٌ کي د وَاحِدَةٌ اعرابي حالت لره هيڅ اعتبار نسته، يعني برابره ده هغه که مرفوع وويل سي، که منصوب وويل سي، او که مسکون وويل سي، په ټولو صورتونو کي طلاق واقع کيږي، د عامو مشائخو همدغه رايه ده او همدا صحيح دي، او د ځينيو مشائخو رايه دا ده چي که وَاحِدَة منصوب وويل سي، نو بغير له نيت کولو څخه به هم طلاق واقع کيږي، او که مرفوع وويل سي، نو د نيت کولو باوجود به هم طلاق نه واقع کيږي، او که په سکون سره وويل سي، نو بيا به نيت ته کتل کيږي، صحيح اول قول دی، ځکه چي عوام د اعراب په اشارو او صورتونو واقف نه دي او نه د هغوی تر مينځ توپير کولای سي، نو په دې وجه به په هر صورت کي طلاق واقع کيږي.

## د کنایاتو دویم قسم

قَالَ: وَبَقِيَّةُ الْكِنَايَاتِ إِذَا نَوَى بِهَا الطَّلَاقَ فرمايي: او په پاتې کناياتو سره چې کله [خاوند] د طلاق نيت وکړي كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نو هغه به يو بائن [طلاق] وي ايعني د نيت کولو په صورت کې په هغوی سره يو طلاقِ بائن واقع کيږي| وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا او که د دريو [طلاقو] نيت وکړي كَانَتْ ثَلَاثًا نو هغه به درې [طلاقه] وي وَإِنْ نَوَى ثِنْتَيْنِ او که د دوو [طلاقو] نيت وکړي كَانَتْ وَاحِدَةً نو هغه به يو [طلاق] وي وَهَذَا وِمِثْلُ قَوْلِهِ: أَنْتِ بَائِنٌ او دا [کنايات] مثلاً خاوند [داسې] ووايي: ته جلا يې وَبَتَّةٌ او ته غوڅونکې [پرېکونکې] يې [يا ته پرېکړې سوې يې، يا ته عليحده يې] وَحَرَامٌ ته حرامه يې وَحَبْلُكِ عَلَى غَارِبِكِ ستا رسۍ ستا پر غاړه ده وَالْحَقِي بِأَهْلِكِ د خپل خاندان [کورنۍ] سره يو ځای سې اخپل کور ته ولاړه سه| وَخَلِيَّةٌ ته فارغه يې [يا ته پرېښوول سوې يې، يا ته يوازې يې] وَبَرِيَّةٌ ته خلاصه يې ايعني له نکاح څخه خلاصه يې] وَوَهَبْتُكِ لِأَهْلِكِ ما ته ستا وخاندان ته هبه کړې يې [ما ته خپل خاندان ته ډالۍ کړې يې] وَسَرَّحْتُكِ ما ته پرېښوولې وَفَارَقْتُكِ زه ستا څخه جلا سوم وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ ستا معامله ستا په لاس کې ده [ته پوه سه! خپل کار پوه سه!] وَاخْتَارِي ته يې اختيار کړه وَأَنْتِ حُرَّةٌ ته آزاده يې وَتَقَنَّعِي ته نقاب وکړه [پرده وکړه] وَتَخَمَّرِي ته پوړنۍ پر سر کړه [چادري وکړه] وَاسْتَتِرِي ته پټه سه [ته غلې سه!] وَاعْزُبِي [زما څخه] ليرې سه وَاخْرُجِي ته ووځه وَاذْهَبِي ته ولاړه سه وَقُومِي ته ولاړه سه وَابْتَغِي الْأَزْوَاجَ خاوندان تلاش کړه [د ځان لپاره مېړه وګوره] لِأَنَّهَا تَحْتَمِلُ الطَّلَاقَ وَغَيْرَهُ ځکه چې دا الفاظ د طلاق او غير طلاق دواړو احتمال لري فَلَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ لهذا [په دوی کې د طلاق] نيت ضروري دی.

**اللغات:** ﴿بَتَّةٌ﴾ د ضرب د باب اسمِ مرة دی: بَتَّ يَبِتُّ بَتًّا: غوڅول (پرېکول)، نافذول، پخه اراده کول. ﴿غَارِب﴾ غاړه، اوږه. ﴿خَلِيَّةٌ﴾ د نصر له باب څخه د صفتِ مشبه صيغه ده. خَلَا يَخْلُوْ خَلْوَةً: يوازې کېدل، ديو کار لپاره فارغېدل. خَلَا يَخْلُوْ خُلُوًّا: خالي کېدل، يوازې کېدل، بېزاره کېدل. د تفعيل له باب څخه د "پرېښوولو" او "آزادولو" په معنیٰ سره راځي. ﴿بَرِيَّةٌ﴾ د سمع له باب څخه د صفتِ مشبه صيغه ده: نجات تر لاسه کول، خلاصېدل، ليرې کول. ﴿تَقَنَّعِي﴾ د تفعل له باب څخه د واحد أمرِ حاضر مؤنث صيغه ده: دا په اصل کې "نقاب کولو" ته وايي، ځکه چې د دې معنیٰ ده: ته قِنَاع وکړه، او قِنَاع په عربي ژبه کې نقاب

(Mask) ته وايي (يعني د ښځو د مخ پټولو پرده)، صاحب د معجم لغة الفقهاء يې داسې تعريف كړى دى: مَا يُسْتَرُ بِهِ الْوَجْه (معجم لغة الفقهاء، ص: ٣٧٠)، او صاحب د معجم الوسيط يې داسې تعريف كړى دى: مَا تُغَطِّيْ بِهِ الْمَرْأَةُ رَأْسَهَا...وَمَا يُسْتَرُ بِهِ الْوَجْه، نو په دې اعتبار له دې څخه مراد "پوړنى" دى، لكه څرنګه چې زياترو شارحينو همدغه معنىٰ څنې مراد كړې ده، خلاصه دا چې د دې لفظ اصلي مطلب دا دى چې: ته پرده وكړه، كه چيرې په دې سره د خاوند دا نيت وي چې زما څخه پرده وكړه، نو په دې سره طلاق واقع كيږي، ځكه چې دا د طلاق پر معنىٰ دلالت كوي، او كه د دغه نيت دا وي چې له نورو خلكو څخه پرده كوه، نو طلاق نه واقع كيږي، ﴿وَاعْزُبِي﴾ د واحد أمرِ حاضر مؤنث صيغه، دا صيغه له څو بابونو څخه راتلى سي، كه د نصر له باب څخه راسي نو معنىٰ يې راځي: ته جلا سه، ته ليرې سه، ته پرديسه سه (بل وطن ته ولاړه سه)، او كه د كرُم له باب څخه راسي، نو معنىٰ يې ده: ته پټه سه، او كه د إفعال له باب څخه راسي، نو معنىٰ يې ده: ته لوېديځ (مغرب) ته ولاړه سه (يعني تر توره تېره سه).

**تشريح**: د كناياتو له اول قسم څخه تر فارغه كېدو وروسته اوس مصنف رَحِمَهُ الله له دې ځاى څخه د كناياتو دويم قسم بيانوي، حاصل د عبارت دا دى له مخكنيو دريو الفاظو څخه بغير د كنايه په نورو الفاظو كي د يوه يا دوو طلاقو په نيت سره يو طلاقِ بائن واقع كيږي، او د دريو طلاقو په نيت سره درې طلاقه واقع كيږي، په عبارت كي چې څومره الفاظِ كنايه بيان سوي دي، په ټولو كي د طلاق او غيرِ طلاق احتمال سته، نو په دې وجه د طلاق د معنىٰ متعينولو لپاره نيت ضروري دى، او له هر لفظ څخه د دوو احتمالاتو را ايستل مشكل نه دي، لكه په تَقَنَّعِيْ كي چې موږ دوه احتمال پورته (په لغاتو كي بيان كړه)، او مثلاً په آخري كلمه وَابْتَغِي الْأَزْوَاجَ كي يو احتمال دا دى چې ته خپلي همزولي ښځي تلاش كړه چې د هغوى سره ګپه شپه وكړې (او د هغوى سره دي سات تېر سي)، او دويم احتمال پكښې دا دى چې ته د ځان لپاره خاوند تلاش كړه، په دې سره طلاق واقع كيږي، او دريم احتمال پكښې دا دى چې ته له اوس څخه د خاوند تلاش كوه، وروسته زه طلاق دركوم، نو په دې احتمال سره اوس طلاق نه واقع كيږي، لنډه دا چې په دې ټولو الفاظو كي د طلاق او غيرِ طلاق دواړو احتمال سته، لهذا په دې ټولو كي به د خاوند نيت ته كتل كيږي.

## د طلاق احوال او د کنايي (کنايه) الفاظ

قَالَ: إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي حَالِ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ فرمايي: خو دا چي [د دې الفاظو د ويلو په وخت کې] خاوند د طلاق د مذاکرې [خبرو اترو] په حالت کې وي فَيَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ فِي الْقَضَاءِ نو [بيا] په دې الفاظو سره قضاءً طلاق واقع کيږي وَلَا يَقَعُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى ليکن فيما بينه وبين الله [ديانتاً] طلاق نه واقع کيږي إِلَّا أَنْ يَنْوِيَهُ خو دا چي [خاوند] د طلاق نيت وکړي قَالَ رضي الله عنه سَوَّى بَيْنَ هٰذِهِ الْأَلْفَاظِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله دا [قوله]الفاظ سره برابر کړي دي ايعني پر ټولو الفاظو يو حکم جاري کړی دی] وَهٰذَا فِيمَا لَا يَصْلُحُ رَدًّا [ليکن] دا د خاوند قول به په هغو الفاظو کې صحيح وي کوم چي د ردّ [انکار] صلاحيت نه لري وَالْجُمْلَةُ فِي ذٰلِكَ أَنَّ الْأَحْوَالَ ثَلَاثَةٌ او په دې هکله خلاصه د کلام دا ده چي حالات درې [قسمه] دي حَالَةٌ مُطْلَقَةٌ وَهِيَ حَالَةُ الرِّضَا ① مطلق حالت، او دا د رضا حالت دی وَحَالَةُ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ ② او د طلاق د مذاکرې [خبرو اترو] حالت وَحَالَةُ الْغَضَبِ ③ او د غضب [او غصې] حالت وَالْكِنَايَاتُ ثَلَاثَةُ أَقْسَامٍ او کنايات [هم] پر درې قسمه دي مَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَرَدًّا ① [يو] هغه [کنايات دي] کوم چي د جواب او ردّ دواړو صلاحيت [لياقت] لري ايعني جواب او ردّ دواړه کېدای سي] وَمَا يَصْلُحُ جَوَابًا لَا رَدًّا ② او هغه کوم چي [فقط] د جواب صلاحيت لري، نه د ردّ وَمَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَسَبًّا وَشَتِيمَةً ③ او هغه کوم چي د جواب او د پېغور او ښکنځا [دواړو احتمال لري فَفِي حَالَةِ الرِّضَا لَا يَكُونُ شَيْءٌ مِنْهَا طَلَاقًا إِلَّا بِالنِّيَّةِ نو د رضا [خوښۍ] په حالت کې له دې الفاظو څخه هيڅ شی طلاق نه کرځي مګر په نيت ايعني د رضا په حالت کې له نيت څخه بغير په دې الفاظو کې په يوه لفظ سره هم طلاق نه واقع کيږي] فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ فِي إِنْكَارِ النِّيَّةِ او د نيت د انکار په هکله به د خاوند قول معتبر وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَفِي حَالَةِ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ لَا يُصَدَّقُ فِيمَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَلَا يَصْلُحُ رَدًّا فِي الْقَضَاءِ او د مذاکرهٔ طلاق په حالت کې به د هغو الفاظو په باره کي د خاوند تصديق نه کيږي کوم چي [فقط] د جواب صلاحيت لري او د ردّ صلاحيت نه لري مِثْلُ قَوْلِهِ: خَلِيَّةٌ بَرِيَّةٌ بَائِنٌ بَتَّةٌ حَرَامٌ اعْتَدِّي أَمْرُكِ بِيَدِكِ اخْتَارِيْ لکه د خاوند دا قول: خَلِيَّةٌ. بَرِيَّةٌ. بَائِنٌ. بَتَّةٌ. حَرَامٌ. اِعْتَدِّيْ. أَمْرُكِ بِيَدِكِ او اِخْتَارِيْ لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مُرَادَهُ الطَّلَاقُ عِنْدَ سُؤَالِ الطَّلَاقِ

ځکه چې ښکاره همدغه ده چې د طلاق د مطالبې [اغوښتنې] په وخت کې [په دې الفاظو سره] د خاوند مراد طلاق دی وَيُصَدَّقُ فِيمَا يَصْلُحُ جَوَابًا وَرَدًّا او په هغو الفاظو کې به د هغه تصديق کيږي کوم چې د جواب او دواړو صلاحيت لري مِثْلُ قَوْلِهِ: اذْهَبِيْ أُخْرُجِيْ قُوْمِيْ تَقَنَّعِيْ تَخَمَّرِيْ لکه د خاوند دا قول: اِذْهَبِيْ، أُخْرُجِيْ، قُوْمِيْ، تَقَنَّعِيْ، تَخَمَّرِيْ وَمَا يَجْرِي هٰذَا الْمَجْرٰى [یا] هغه الفاظ کوم چې د دې قائم مقام وي لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ الرَّدَّ ځکه چې دا د ردّ احتمال لري وَهُوَ الْأَدْنٰى او ردّ ادنیٰ درجه ده فَحُمِلَ عَلَيْهِ نو پر هغه [ردّ] به حمل کيږي وَفِي حَالَةِ الْغَضَبِ يُصَدَّقُ فِي جَمِيْعِ ذٰلِكَ او د غضب په حالت کې به په ټولو صورتونو کې [د خاوند] تصديق کيږي لِاحْتِمَالِ الرَّدِّ وَالسَّبِّ ځکه چې [د غضب په حالت کې] د ردّ او ښکنځا دواړو احتمال سته إِلَّا فِيمَا يَصْلُحُ لِلطَّلَاقِ وَلَا يَصْلُحُ لِلرَّدِّ وَالشَّتْمِ مګر په هغو الفاظو کې [به د خاوند تصديق نه کيږي] کوم چې [فقط] د طلاق صلاحيت لري او د رد او ښکنځا صلاحيت نه لري كَقَوْلِهِ: اعْتَدِّيْ وَاخْتَارِيْ وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ لکه د خاوند دا قول: اِعْتَدِّيْ، اِخْتَارِيْ، أَمْرُكِ بِيَدِكِ فَإِنَّهُ لَا يُصَدَّقُ فِيهَا نو په دې الفاظو کې به د خاوند تصديق نه کيږي لِأَنَّ الْغَضَبَ يَدُلُّ عَلٰى إِرَادَةِ الطَّلَاقِ ځکه چې غضب [په دې الفاظو سره] د طلاق پر اراده دلالت کوي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ فِي قَوْلِهِ: لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكِ وَلَا سَبِيْلَ لِيْ عَلَيْكِ وَخَلَّيْتُ سَبِيْلَكِ وَفَارَقْتُكِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی د خاوند په دې قول کې: لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكِ [زما پر تا هيڅ ملکيت نسته] لَا سَبِيْلَ لِيْ عَلَيْكِ [زما پر تا هيڅ لاره نسته] خَلَّيْتُ سَبِيْلَكِ [ما ستا لاره پرېښوول] او فَارَقْتُكِ [زه ستا څخه جلاسوم، يا ما ته جلا کړې] أَنَّهُ يُصَدَّقُ فِي حَالَةِ الْغَضَبِ چې [په دې جملو کې به] د غضب په حالت کې [هم] د خاوند تصدق کيږي لِمَا فِيهَا مِنْ احْتِمَالِ مَعْنَى السَّبِّ ځکه چې په دې الفاظو کې د ښکنځلو د معنیٰ احتمال [هم] سته.

**اللغات:** ﴿مُذَاكَرَة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په خپل مينځ کې بحث او مباحثه کول، خبرې اترې سره کول، ﴿سَبّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: سخته ښکنځا (درانه ښکنځل)، پېغور، ﴿شَتِيْمَة﴾ د نصر او ضرب دواړو څخه د صفت صيغه ده: ښکنځا، ښکنځل، پوچ ورد.

**تشريح:** دا عبارت د مخکني عبارت سره مربوط او متعلق دی، په تېر عبارت کې دا خبره ذکر سوه چې د کنايي (کنايه) په الفاظو سره هغه وخت طلاق واقع کيږي، کله چې خاوند د طلاق نيت وکړي، په دې عبارت کې له همدغه نيت کولو څخه د يو صورت استثناء کوي فرمايي چې که د خاوند او

ښځي په مينځ کي د طلاق خبري اتري او مذاکره جاري وي (مثلاً ښځه د طلاق مطالبه څني کوي يا داسي نوري د طلاق خبري شروع وي)، او په همدغه حالت کي خاوند له کنايي الفاظو څخه يو لفظ استعمال کړي، نو په دې صور کي د طلاق واقع کېدلو لپاره د نيت هيڅ ضرورت نسته، بلکي له نيت څخه بغير قضاءً طلاق واقع کيږي، که څه هم دياتتاً (فيما بينه وبين الله) له نيت څخه بغير طلاق نه واقع کيږي (ځکه چي د خاوند او د الله ﷻ په مينځ کي همدغه حکم دی چي که خاوند نيت کړی وي نو طلاق واقع کيږي، او که هغه نيت نه وي کړی نو طلاق نه واقع کيږي).

**قال رضي الله عنه إلخ**: صاحب د هدايې فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د طلاق د مذاکرې په حالت کي له نيت څخه بغير د طلاق واقع کېدلو په باره کي ټوله کنايي الفاظ برابر کړي دي، حالانکي دا حکم مطلق نه دی، بلکي فقط په هغه الفاظو کي دا حکم دی کوم چي د ردّ (ترديد) صلاحيت نه لري، او د دې تفصيل دا دی چي حالات پر درې قسمه دي: ① مطلق حالت، يعني د رضا او خوښي حالت، ② د طلاق د مذاکرې (خبرو اترو) حالت، مثلاً ښځه له خپل خاوند څخه د طلاق مطالبه يا پوښتنه کوي، يا يو بل سړی له خاوند څخه د دغه ښځي د طلاق په هکله پوښتنه کوي، ③ د غضب او خښم حالت، يعني له دواړو طرفو څخه د خښم او غصې خبري شروع وي.

همدارنګه کنايات هم پر درې قسمه دي: ① يو هغه الفاظ کنايه دي چي کوم چي د جواب صلاحيت هم لري او د ردّ صلاحيت هم لري، يعني د ښځي له طرفه چي کوم د طلاق مطالبه سوې ده، دا لفظ د هغه جواب هم کېدای سي، او د هغې د مطالبې ردّ هم کېدای سي، ② بل هغه الفاظ دي چي د جواب صلاحيت خو لري، لېکن د رد صلاحيت نه لري، ③ بل هغه الفاظ دي چي هغه د جواب صلاحيت هم لري، او ښکنځا (او سپکتيا) هم کېدای سي.

تر دې تفصيل وروسته اوس د دوی احکامو ته ګورئ! فرمايي چي د رضا او خوښي په حالت کي به له نيت څخه بغير په دې کنايي الفاظو کي په يوه لفظ سره هم طلاق نه واقع کيږي، او که خاوند د نيت انکار وکړي، نو د نيت په انکار کي به د هغه خبره منل کيږي او د هغه قول به معتبر وي، ځکه چي دا ټوله الفاظ د طلاق او د غيرِ طلاق دواړه احتمال لري، لهذا د يوه احتمال د متعينولو لپاره د خاوند نيت ضروري دی.

او که د طلاق د مذاکرې په حالت کي خاوند هغه الفاظ استعمال کړي، کوم چي فقط د ښځي د مطالبې د جواب صلاحيت لري، او د ردّ صلاحيت نه لري، نو په دې صورت کي به په دغه اتو (٨) الفاظو کي قضاءً د خاوند د قول تصديق نه کيږي: أَنْتِ خَلِيَّةٌ، أَنْتِ بَرِيَّةٌ، أَنْتِ بَتَّةٌ، أَنْتِ حَرَامٌ، اِعْتَدِّيْ، أَمْرُكِ بِيَدِكِ، اِخْتَارِيْ، دليل دا دی چي کله ښځه د طلاق مطالبه يا پوښتنه وکړي، او خاوند

په دې اته الفاظو کې په يو لفظ سره جواب ورکړي، نو ښکاره ده چې په دې سره به د ښځې د مطالبې يا پوښتنې جواب مراد وي، او يو طلاقِ بائن به واقع کيږي، او که خاوند په دې اته الفاظو کې د طلاق د نيت انکار وکړي، نو قضاءً به د هغه تصديق نه کيږي، ځکه چې دا الفاظ د طلاق د مطالبې او پوښتنې په جواب کې ښکاره او څرګند دي، او مُفتي او قاضي د ظاهري حالت مطابق په فتوىٰ ورکولو سره مکلف دی.

**ويصدق إلخ**: او کوم الفاظ چې جواب او ردّ دواړه کېدای سي (يعني د دواړو صلاحيت لري)، په هغه الفاظو کې به د نيت په انکار کې قضاءً هم د خاوند تصديق کيږي، او هغه اووه (۷) الفاظ دي: اِذْهَبِيْ، اُخْرُجِيْ، قُوْمِيْ، تَقَنَّعِيْ، تَخَمَّرِيْ، اُعْزُبِيْ، اِسْتَتِرِيْ، دليل دا دی چې دا الفاظ د غيرِ طلاق احتمال هم لري، او ردّ ادنىٰ او أسهل شی دی، او د ادنىٰ کېدلو په وجه مُتيقن دی، لهذا که خاوند د ردّ او انکار دعوىٰ کوي، نو د هغه خبره به منل کيږي، او دا الفاظ به پر ردّ حمل کيږي.

**وفي حالة الغضب إلخ**: او د غضب په حالت کې به په ټولو کنايي الفاظو کې د نيت د انکار په هکله د خاوند تصديق کيږي، ځکه چې په دې کې د غضب او خښم په وجه فقط يا د ردّ احتمال سته، يا د ښکنځلو.

خو کوم الفاظ چې فقط د طلاق لپاره وضع سوي دي، او د رد او ښکنځا صلاحيت نه لري، په هغه الفاظو کې به د نيت د انکار په هکله د خاوند تصديق نه کيږي، او هغه درې الفاظ دي: اِعْتَدِّيْ، اِخْتَارِيْ، أَمْرُكِ بِيَدِكِ، دليل دا دی چې د غصې او غضب په وجه سره په دې الفاظو کې د طلاق د إيقاع اړخ غالب دی، لهذا په دې سره به يو طلاقِ بائن واقع کيږي، او د نيت د انکار په هکله به د خاوند خبره نه منل کيږي.

**وعن أبي يوسف إلخ**: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که خاوند د غضب په حالت کې ووايي: لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكِ، يا لَا سَبِيْلَ لِيْ عَلَيْكِ، يا خَلَّيْتُ سَبِيْلَكِ، يا فَارَقْتُكِ، او بيا ووايي چې ما په دې سره د طلاق نيت نه دي کړی، نو د هغه تصديق به کيږي، ځکه چې په دې الفاظو کې د ښکنځا د معنىٰ احتمال هم موجود دی، په لَا مِلْكَ لِيْ عَلَيْكِ کې د ښکنځا د معنىٰ احتمال په دې توګه دی چې ته ډېره رذيله او خسيسه ښځه يې او د دې لائق نه يې چې زه يو چا ته ووايم چې دا زما مايينه ده او پر دې زما ملکيت ثابت دی (ليرې سه! زما د مخه)، او په لَا سَبِيْلَ لِيْ عَلَيْكِ کې د ښکنځا احتمال په دې توګه دی چې ته دومره بد اخلاقه او بد چلنده ښځه يې چې ستا سره د ژوند تېرولو او ګزاره کولو هيڅ لاره نه

جوړېږي (ستا سره خو نه توري خوړل کېږي، نه سپيني، ځغله سه!)، او په خَلِّيتُ سَبِيلَكِ کي په دې توګه دا احتمال موجود دی چي ستا د نافرمانۍ او سرکښۍ په وجه ما اوس ستا لاره خالي کړه.

يعني اوس زما تر وس وتلې يې، زه هيڅ کار نه در لرم، او په فَارَقْتُكِ کي په دې توګه د ښکنځا احتمال سته چي ستا د ګندګۍ او مردار خورۍ په وجه يا ستا د نافرمانۍ په وجه ما ته له خپلې بستري څخه جلا کړي (اوس داسي نه وايم چي ته زما مېنه يې!).

## په کنايي الفاظو سره د واقع کېدونکي طلاق حيثيت

ثُمَّ وُقُوعُ الْبَائِنِ بِمَا سِوَى الثَّلَاثَةِ الْأُوَلِ مَذْهَبُنَا بيا له اولو دريو [جملو] څخه بغير په نورو سره د طلاقِ بائن واقع کېدل زموږ مذهب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَقَعُ بِهَا رَجْعِيًّا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په هغوی [ټولو الفاظو] سره [هم] طلاقِ رجعي واقع کېږي لِأَنَّ الْوَاقِعَ بِهَا طَلَاقٌ ځکه چي په هغوی سره يو طلاق واقع کېږي لِأَنَّهَا كِنَايَاتٌ عَنِ الطَّلَاقِ ځکه چي دا الفاظ له طلاق څخه کنايه [کنايت] دي وَلِهَذَا تُشْتَرَطُ النِّيَّةُ او له همدې وجهي [په هغوی کي] د نيت شرط لګول کېږي وَيَنْتَقِصُ بِهَا الْعَدَدُ او په هغوی سره [د طلاق] يو شمېر کمېږي وَالطَّلَاقُ مُعَقِّبٌ لِلرَّجْعَةِ او [په دې الفاظو سره ورکول سوی] طلاق [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي كَالصَّرِيحِ لکه صريح طلاق [يعني لکه تر صريح طلاق وروسته چي رجعت ثابتېږي او خاوند لره د رجعت اختيار ورکول کېږي] وَلَنَا: أَنَّ تَصَرُّفَ الْإِبَانَةِ صَدَرَ مِنْ أَهْلِهِ مُضَافًا إِلَى مَحِلِّهِ عَنْ وِلَايَةٍ شَرْعِيَّةٍ زموږ دليل دا دی: چي د بائن جوړولو تصرف له خپل أهل څخه صادر سوی دی [او] د خپل محل وطرف ته منسوب دی [او تصرف کوونکي ته] شرعي ولايت هم [حاصل] دی وَلَا خَفَاءَ فِي الْأَهْلِيَّةِ وَالْمَحَلِّيَّةِ او په اهل کېدلو او محل کېدلو کي هيڅ پټوالی نسته وَالدَّلَالَةُ عَلَى الْوِلَايَةِ: أَنَّ الْحَاجَةَ مَاسَّةٌ إِلَى إِثْبَاتِهَا او پر ولايت دلالت دا دی [يعني د ولايت دليل دا دی] چي حاجت مجبوره کوونکی دی د ولايت و ثابتولو ته [يا دا چي "د ولايت د ثابتولو ضرورت متحقق او موجود دی"، يا دا چي "د ولايت ثابتولو ته سخت ضرورت دی"] كَيْلَا يَنْسَدَّ عَلَيْهِ بَابُ التَّدَارُكِ د دې لپاره چي پر خاوند د تلافۍ دروازه بنده نه سي وَلَا يَقَعُ فِي عُهْدَتِهَا بِالْمُرَاجَعَةِ مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ او [د دې لپاره چي] خاوند بېله ارادې په مراجعت کولو سره د ښځي په ذمه کي واقع نه سي وَلَيْسَتْ كِنَايَاتٍ عَلَى التَّحْقِيقِ او دا الفاظ حقيقي کنايات نه دي لِأَنَّهَا عَوَامِلُ فِي حَقَائِقِهَا ځکه چي دا په خپلې حقيقي معانيو کي

عمل کونکي [مستعمل] دي وَالشَّرْطُ تَعْيِيْنُ أَحَدِ نَوْعَيِ الْبَيْنُوْنَةِ دُوْنَ الطَّلَاقِ او شرط د بینونت له دواړو قسمونو څخه د یوه قسم متعینول دي، نه طلاق ور کول وَانْتِقَاصُ الْعَدَدِ لِثُبُوْتِ الطَّلَاقِ او [د طلاق] د شمېر کمېدل د طلاق [بائن] د ثابتېدلو په وجه دي بِنَاءً عَلٰى زَوَالِ الْوُصْلَةِ د تعلق پر زائلېدلو باندي په بناء کولو سره وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ فِيهَا لِتَنَوُّعِ الْبَيْنُوْنَةِ إِلٰى غَلِيظَةٍ وَخَفِيْفَةٍ او په دې الفاظو کي د درېو [طلاقو] د نیت صحیح کېدل د بینونت د منقسم کېدلو په وجه دي د غلیظه او خفیفه وطرف ته وَعِنْدَ انْعِدَامِ النِّيَّةِ يَثْبُتُ الْأَدْنٰى او د نیت د نشتوالي په صورت کي به ادنیٰ ثابتیږي وَلَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثِّنْتَيْنِ عِنْدَنَا او زموږ په نېز د دوو [طلاقو] نیت کول نه صحیح کیږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ عَدَدٌ ځکه چي هغه [ثِنْتَيْن] عدد دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او مخکي موږ د دې بیان کړی دی.

**اللغات:** ﴿مُعَقِّب﴾ د تفعیل له باب څخه د اسم فاعل صیغه ده: عَقَّبَ يُعَقِّبُ تَعْقِيْبًا: یو شی تر بل شي وروسته کول، (ترڅان) وروسته راوړل، وروسته ثابتول (مراد ځني دا دی چي طلاقِ صریح تر ځان وروسته رجعت ثابتوي او طلاقِ رجعي واقع کوي)، ﴿مَاسَّة﴾ د مونث اسم فاعل صیغه ده، له سمع او نصر دواړو څخه راځي، مسه کول، رسېدل، لاحق کېدل، مجبوره کول، حَاجَةٌ مَاسَّةٌ: سخت حاجت، کله چي یې په صله کي "إِلیٰ" راسي، لکه دلته چي راغلي دي، نو بیا د "مجبوره کولو" په معنیٰ سره راځي، لکه عرب چي وایي: مَسَّتْنِي إِلیٰ كَذَا (زه دې ته حاجت مجبوره کړم)، ﴿لَا يَنْسَدُّ﴾ د انفعال له باب څخه د نفي صیغه ده: بندېدل، ﴿التَّدَارُک﴾ تلافي، جبران، د نقصان عوض (د تاوان بدله)، ﴿إِنْتِقَاص﴾ د افتعال مصدر دی: کمېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي له اِعْتَدِّيْ، اِسْتَبْرِئِيْ رَحِمَكِ او أَنْتِ وَاحِدَةٌ څخه بغیر په نورو کنایي الفاظو سره د طلاقِ بائن واقع کېدل زموږ مذهب دی، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز چي څرنګه په اِعْتَدِّي، اِسْتَبْرِئِيْ رَحِمَكِ او أَنْتِ وَاحِدَةٌ سره طلاقِ رجعي واقع کیږي، همداسي په نورو کنایي الفاظ مثلاً په خَلِيَّةٌ، بَرِيَّةٌ... او نورو سره هم طلاقِ رجعي واقع کیږي، همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله یو روایت او د امام مالک رَحِمَهُ الله مسلک دی.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چي په دې الفاظو سره هم طلاق واقع کیږي، ځکه چي دا الفاظ کنایات دي (یعني له طلاق څخه کنایه دي) ، او د کنایه عن الطلاق کېدلو په وجه په دوی کي نیت کول او د نیت وجود شرط او ضروري دي، او څرنګه چي د صریح طلاق په ورکولو د طلاق شمېر کمیږي (مثلاً

که ښځه آزاده وي، نو تر صريح طلاق وروسته د دوو طلاقو محل پاتې کېږي، او مينځه دېوه طلاق محل پاتېږي)، او تر هغه وروسته د رجعت اختيار ثابتيږي، همداسې په دې الفاظو سره واقع کېدونکي طلاق هم د طلاق شمېر کموي، او تر طلاق وروسته رجعت ثابتوي، او د رجعت ثبوت په طلاقِ رجعي سره کيږي، لهذا په دې الفاظو سره د رجعت د ثابتېدلو مطلب همدغه دی چې په دې الفاظو سره به واقع کېدونکی طلاق، طلاقِ رجعي وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې کله دلته د إبانت تصرف له خپل أهل (يعني له خاوند) څخه صادر سوی دی او د خپل محل يعني د ښځې وطرف ته منسوب دی، او خاوند ته د دې تصرف شرعي ولايت هم حاصل دی، نو اوس د دې په وقوع کي خنډ او مانع اچول پکار نه دي، ځکه کله چې شريعت خاوند ته په ولايت ورکولو سره د داسې تصرفاتو اختيار ورکړی دی، نو بيا د دې په وقوع که هيڅ خبره نسته.

**ولاخفاء إلخ:** فرمايي چې په أهليت او محليت کي خو هيڅ خفاء نسته، يعني په دې خبره کي خو هيڅ ابهام او پټوالی نسته چې خاوند د طلاق واقع کولو (إيقاع) أهل دی، او ښځه د طلاق واقع کېدلو (وقوع) محل ده، او د شرعي ولايت ليل دا دی چې خاوندانو ته د داسې تصرف ورکولو حاجت او ضرورت متحقق دی، ځکه چې کله نا کله خاوند د ښځي له چلند او بد اخلاقۍ څخه ډېر تنگ سي او داسې اقدام کول غواړي چې په هغه سره نه د ده لپاره ښځه حرامه سي، او نه په آسانۍ سره هغې ته د رجعت او رجوع کولو گنجايش وي، او د داسې اقدام کولو لپاره د طلاقِ بائن څخه بغير بله هيڅ چاره نسته، ځکه چې په طلاقِ رجعي کي خو فقط په مچولو او داسې نورو سره هم رجعت ثابتيږي، او په طلاقِ مغلظ کي بالکل د رجعت دروازه بنديږي او له شرعي "حلاله" څخه بغير خاوند بيا د ښځي سره نکاح کولای نه سي، لهذا د إفراط او تفريط تر مينځ يوازې د طلاقِ بائن لاره سته، چې په هغه کي نه محض په مچولو او داسې نورو سره رجعت ثابتيږي، او نه د نکاح لپاره د "حلاله" ضرورت پيدا کيږي، نو ځکه زموږ په نيز له پورتنيو دريو صورتونو څخه بغير په ټولو کنايي الفاظو طلاقِ بائن واقع کيږي.

**وليست بکنايات إلخ:** مخکي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي وو چې دا الفاظ کنايات دي، په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د هغه قول ترديد کوي فرمايي چې دا الفاظ خو له کناياتو څخه دي، لېکن حقيقي کنايات نه دي، بلکي دا خو په خپلي حقيقي معنیٰ کي استعمال سوي دي، او په حقيقي معنیٰ کي استعمال سوي الفاظو ته کنايات نه ويل کيږي.

**والشرط تعيين الخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې الفاظو سره د طلاق د وقوع لپاره نيت شرط ګرځولی وو. په دې عبارت سره د هغه ترديد کوي فرمايي چې دلته نيت د طلاق د وقوع لپاره شرط نه دی، بلکې د بينونت چې کوم دوه قسمونه دي يعني: خفيفه، او غليظه، په دې قسمونو کې د يوه قسم د تعيين لپاره نيت شرط دی.

**وانتقاص العدد الخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي وو چې په دې الفاظو سره د طلاق شمېر کميږي (لکه څرنګه چې په صريح طلاق سره د طلاق شمېر کميږي)، نو ځکه به په دې سره طلاقِ رجعي واقع کيږي، په دې عبارت سره د هغه ترديد کوي، حاصل يې دا دی چې د طلاق په انتقاص (کمېدلو) او طلاقِ بائن کې هيڅ منافات نسته، بلکې څرنګه چې په طلاقِ رجعي سره د طلاق په شمېر کې کمي راځي، همداسې په طلاقِ بائن سره هم د طلاق په شمېر کې کمي راځي، ځکه چې طلاق د ښځې او خاوند د تعلق ختمېدلو ته وايي، لهذا په دې سره دليل نيول او د طلاقِ رجعي قائل کېدل صحيح نه دي.

**وانما تصح الخ**: فرمايي چې په دې کنايي الفاظو کې د دريو طلاقو نيت کول ځکه صحيح دی چې په دوی سره طلاقِ بائن واقع کيږي، او بينونت پر دوه قسمه دی: ① خفيفه يعنې يو طلاق، ② غليظه، يعني دوه يا درې طلاقه، لهذا کوم قسم چې هم خاوند په خپل نيت سره متعين کړي، هغه قسم به واقع کيږي، برابره ده خفيفه وي او که غليظه وي، خو د نيت د نه کولو په صورت کې به د بينونت له دواړو قسمونو څخه هغه ادنیٰ قسم (خفيفه) ثابتيږي، او ادنیٰ (خفيفه) يو طلاق دی، ځکه چې ادنیٰ او أقل خو په دې الفاظو کې خامخا (په هر حال کې) متعين او متيقن وي، ها! که خاوند د دوو طلاقو نيت وکړي، نو په دې صورت کې به د هغه نيت صحيح نه وي، ځکه چې دلته دوه عدد دی، او دلته د عدد نيت کول او د هغه مرادول صحيح نه دي، لکه مخکې چې هم د دې بحث تېر سو.

## د طلاقِ کنايي يو صورت

وَإِنْ قَالَ لَهَا: اِعْتَدِّيْ اِعْتَدِّيْ اِعْتَدِّيْ او که [خاوند] ښځې ته [درې واره] ووايي: ته عدت تېر کړه، ته عدت تېر کړه، ته عدت تېره کړه وَقَالَ: نَوَيْتُ بِالْأُوْلٰى طَلَاقًا وَبِالْبَاقِي حَيْضًا او ووايي: چې په اول لفظ [اِعْتَدِّيْ] سره ما د طلاق نيت وکړی او په پاته [دوو] سره مې د حيض [نيت وکړی] دُيِّنَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً به [د هغه] تصديق کيږي لِأَنَّهُ نَوٰى حَقِيْقَةَ كَلَامِهٖ ځکه چې هغه خپل د کلام د حقيقت نيت کړی دی وَلِأَنَّهُ يَأْمُرُ امْرَأَتَهٗ فِي الْعَادَةِ بِالْاِعْتِدَادِ بَعْدَ الطَّلَاقِ او په دې وجه [هم] چې خاوند په عامه توګه تر طلاق وروسته ښځې ته د عدت تېرولو حکم کوي فَكَانَ الظَّاهِرُ شَاهِدًا لَهٗ نو ظاهري حال [هم] د

هغه په حق کي ګواه دی وَإِنْ قَالَ: لَمْ أَنْوِ بِالْبَاقِيْ شَيْئًا او که [خاوند] ووايي: چي ما په پاته [دوو] سره هيڅ نيت نه دي کړی فَهِيَ ثَلَاثٌ نو هغه به درې [طلاقه] وي لِأَنَّهُ لَمَّا نَوٰى بِالْأُوْلَى الطَّلَاقَ ځکه کله چي هغه په اول لفظ د طلاق نيت وکړی صَارَ الْحَالُ حَالَ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ نو دغه حالت د طلاق د مذاکري حالت وګرځېدی فَتَعَيَّنَ الْبَاقِيَانِ لِلطَّلَاقِ بِهٰذِهِ الدَّلَالَةِ نو پاته دوه لفظونه [هم] په دې دلالت سره د طلاق لپاره متعين سول فَلَا يُصَدَّقُ فِي نَفْيِ النِّيَّةِ نو ځکه د نيت د نفي په هکله [د خاوند] تصديق نه کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: لَمْ أَنْوِ بِالْكُلِّ الطَّلَاقَ په خلاف د هغه صورت کله چي خاوند ووايي: ما په ټولو الفاظو سره د طلاق نيت نه دي کړی [يعني په يوه لفظ سره مي هم د طلاق نيت نه دي کړی] حَيْثُ لَا يَقَعُ شَيْءٌ نو [په دې صورت کي] يو طلاق [هم] نه واقع کيږي لِأَنَّهُ لَا ظَاهِرَ يُكَذِّبُهُ ځکه چي [هيڅ] ظاهري حال د هغه تکذيب نه وي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: نَوَيْتُ بِالثَّالِثَةِ الطَّلَاقَ دُوْنَ الْأُوْلَيَيْنِ او په خلاف د هغه صورت کله چي [خاوند] ووايي: چي ما په دريم لفظ سره د طلاق نيت وکړی، نه په اولو دوو سره حَيْثُ لَا يَقَعُ إِلَّا وَاحِدَةٌ نو [په دې صورت کي] فقط يو طلاق واقع کيږي لِأَنَّ الْحَالَ عِنْدَ الْأُوْلَيَيْنِ لَمْ تَكُنْ حَالَ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ ځکه چي [په دې صورت کي] د اولو دوو لفظونو حالت د طلاق د مذاکرې حالت نه دی وَفِي كُلِّ مَوْضِعٍ يُصَدَّقُ الزَّوْجُ عَلٰى نَفْيِ النِّيَّةِ إِنَّمَا يُصَدَّقُ مَعَ الْيَمِيْنِ او هر هغه ځای چي د نيت د نفي په هکله د خاوند تصديق کيږي هلته به د قسم سره [د هغه] تصديق کيږي لِأَنَّهُ أَمِيْنٌ فِي الْإِخْبَارِ عَمَّا فِي ضَمِيْرِهِ ځکه چي خاوند أمين [امانتدار] دی د هغه شي په خبر ورکولو کي کوم چي د هغه په زړه کي دی وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْأَمِيْنِ مَعَ الْيَمِيْنِ او د أمين قول د قسم سره معتبر وي.

**اللغات:** ﴿لَمْ أَنْوِ﴾ د ضرب له باب څخه د جحد صيغه ده، په اصل کي لَمْ أَنْوِيْ وو: نيت کول، اراده کول. ﴿يُكَذِّبُ﴾ د تفعيل مضارع ده: درواغ ګڼل، درواغجن کول. ﴿يُصَدَّقُ﴾ د تفعيل مضارع مجهوله ده: تصديق کول، رښتونی ګڼل، ديو چا خبره ور سره منل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته درې واره "اِعْتَدِّيْ" ووايي، او بيا ووايي چي په اول "اِعْتَدِّيْ" سره ما د طلاق نيت کړی دی او په دويم او دريم سره مي د حيض (يعني د عدت تېرولو) نيت کړی دی، نو قضاءً به د هغه تصديق کيږي، همدا قول د امام شافعي، امام مالک او

امام احمد رَحِمَهُمَا الله دی؛ دلیل دا دی چي دغه سړي په دویم او دریم لفظ سره د خپل کلام د حقیقي معنیٰ نیت کړی دی، او په اول لفظ سره يې د خپل کلام د احتمالي معنیٰ نیت کړی دی، نو په دې وجه به دواړه نیتونه قضاءً معتبر وي، دویم دلیل دا هم دی چي په عامه توګه خاوند تر طلاق ورکولو وروسته خپلي ښځي ته د عدت تېرولو حکم کوي، لهذا دلته د طلاق واقع کېدل ظاهراً هم ثابت سو، او د ظاهر په هکله قاعده دا ده چي أَنَّ مَنْ سَاعَدَهُ الظَّاهِرُ فَالقَوْلُ قَوْلُهُ (یعني ظاهري حال چي د چا موافقت وکړي، نو قول به د هغه معتبر وي)، او څرنګه چي دلته د خاوند قول د ظاهري حال موافق دی، نو ځکه به د هغه قول معتبر وي.

**وإن قال لم إلخ**: او که خاوند ووایي چي په دویم او دریم لفظ (اِعْتَدِيْ) سره ما هیڅ نیت نه دي کړی، نو په دې صورت کي به درې طلاقه واقع کیږي؛ ځکه کله چي خاوند په اول لفظ سره د طلاق نیت وکړی، نو دا حالت به د طلاق د مذاکرې (خبرو اترو) حالت وي، نو دویم او دریم لفظ به هم په دې قرینه سره (یعني د طلاق د مذاکرې د حالت په وجه سره) پر طلاق حمل کیږي، او درې طلاقه به واقع کیږي، او د نیت په انکار کي به د هغه تصدیق نه کیږي.

**بخلاف ما إذا قال إلخ**: او که خاوند ووایي چي ما په دې دریو سره الفاظو سره هیڅ نیت نه دي کړی، نو طلاق به نه واقع کیږي، ځکه چي په اول طلاق کي د نیت نه کولو په وجه د طلاق د مذاکرې حالت موجود نه سو، لهذا کله چي د طلاق د مذاکرې حالت موجود نه سو، نو په پاته دوو لفظونو کي د طلاق د متعینولو هیڅ قرینه او دلالت موجود نه سو، او ظاهري حال هم د خاوند تکذیب نه کوي، نو ځکه به په دې صورت کي هیڅ طلاق نه واقع کیږي.

لېکن که خاوند ووایي چي په دریم لفظ سره ما د طلاق نیت کړی دی، او په اولو دوو لفظو سره مي هیڅ نیت نه دي کړی، نو بیا به فقط یو طلاق واقع کیږي؛ ځکه چي د نیت د نشتوالي په وجه د اولو دوو لفظو د اداء کولو وخت د طلاق د مذاکرې حالت نه وو، نو ځکه به فقط یو طلاق واقع کیږي.

**وفي كل موضع إلخ**: د نیت د انکار په هکله د خاوند د تصدیق کولو په سلسله کي صاحب د کتاب یوه قاعده بیان کړې ده، هغه دا ده چي په کوم ځای کي چي هم د نیت د انکار په هکله د خاوند د خبري تصدیق کیږي هلته به د قسم سره د هغه خبره منل کیږي؛ ځکه چي نیت یو پټ شی دی کوم چي د خاوند په زړه کي مخفي وي، او په زړه کي د پټو شیانو په څرګندولو او خبر ورکولو کي انسان أمین (امانتدار) وي، او قسم د دې امانتدارۍ لپاره مضبوط مُهر دی، لهذا کله چي هم د نیت د انکار په حق کي د خاوند تصدیق کیږي، نو په قسم سره به د هغه تصدیق کیږي، او همدا قاعده هم ده: اَلْقَوْلُ قَوْلُ الأَمِیْنِ مَعَ الْیَمِیْنِ.



# بَابُ تَفْوِيْضِ الطَّلَاق

(دا) باب د طلاق د ور سپارلو (په بیان کي) دی

**تشریح:** مخکي تر دې صاحب د کتاب د هغه طلاق بحث او بیان وکړی کوم چي يې انسان په خپله (بذاتِ خود) واقع کوي، اوس له دې ځای څخه د هغه طلاق بيان کوي، کوم چي يې انسان د بل چا په واسطه واقع کوي، ځرنګه چي په هر شي کي د انسان په خپله (بذاتِ خود) تصرف کول اصل دی، او د بل چا په واسطه کار او تصرف کول فرع دي، نو ځکه يې مخکي اصَل بيان کړی، او اوس د هغه قائم مقام او نائب بيانوي.

په دې باب کي درې فصلونه بيان سوي دي: ① فصل في الاختيار، ② فصل في الأمر باليد، ③ فصل في المشية.

## ﴿فَصْلٌ فِي الْإِخْتِيَار﴾

(دا) فصل په (بيان د) اختيار ورکولو کي دی

### د "خيارِ مجلس" بيان

وَإِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ: اِخْتَارِيْ يَنْوِيْ بِذٰلِكَ الطَّلَاقَ او كه [خاوند] خپلي ښځي ته ووايي: اِخْتَارِی [ته يې اختيار كړه] حال دا چي په دې سره هغه د طلاق نيت وكړي أَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ يا ښځي ته ووايي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ [ته خپل ځان ته طلاق ور كړه] فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا مَا دَامَتْ فِيْ مَجْلِسِهَا ذٰلِكَ نو ښځي لره دا اختيار سته چي خپل ځان ته طلاق ور كړي تر څو چي ښځه په خپل دغه مجلس كي پاته وي فَإِنْ قَامَتْ مِنْهُ أَوْ أَخَذَتْ فِيْ عَمَلٍ آخَرَ لېكن كه ښځه له مجلس څخه ولاړه سي يا په يو بل كار اخته سي خَرَجَ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا نو دا اختيار د هغې د لاس څخه ووتى لِأَنَّ الْمُخَيَّرَةَ لَهَا الْمَجْلِسُ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ ځكه چي اختيار وركول سوي ښځي لره د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په اجماع سره [اختيار د] مجلس ثابت دی وَلِأَنَّهُ تَمْلِيْكُ الْفِعْلِ مِنْهَا او په دې وجه [هم] چي اختيار وركول [په اصل كي] ښځه د فعل [طلاق] مالكه جوړول دي وَالتَّمْلِيْكَاتُ تَقْتَضِيْ جَوَابًا فِي الْمَجْلِسِ او تمليكات په مجلس

کي د جواب تقاضا کوي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چي په بيع کي کيږي لِأَنَّ سَاعَاتِ الْمَجْلِسِ أُعْتُبِرَتْ سَاعَةً وَاحِدَةً ځکه چي د [يوه] مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت [په څير] شمارل کيږي إِلَّا أَنَّ الْمَجْلِسَ تَارَةً يَتَبَدَّلُ بِالذَّهَابِ عَنْهُ خو دا چي کله له مجلس څخه د تللو په وجه مجلس بدليږي وَتَارَةً بِالِاشْتِغَالِ بِعَمَلٍ آخَرَ او کله په بل د مشغولېدلو په وجه [مجلس بدليږي] إِذْ مَجْلِسُ الْأَكْلِ غَيْرُ مَجْلِسِ الْمُنَاظَرَةِ وَمَجْلِسُ الْقِتَالِ غَيْرُهُمَا ځکه چي د خوراک مجلس د بحث او مباحثې له مجلس څخه جلا دی او د جنګ [او نبنتي] مجلس له دې واړو څخه جلا دی وَيَبْطُلُ خِيَارُهَا بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ او محض په ولاړېدلو سره د ښځي خيار باطليږي لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ ځکه چي ولاړېدل د اعراض کولو دليل دی بِخِلَافِ الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ لِأَنَّ الْمُفْسِدَ هُنَاكَ الِافْتِرَاقُ مِنْ غَيْرِ قَبْضٍ ، په خلاف د بيع صرف او بيع سلم، ځکه چي هلته بغير له قبضې څخه جلا کېدل مفسد [فاسدونکي] دي ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ النِّيَّةِ فِي قَوْلِهِ: اخْتَارِيْ بيا د خاوند په دې قول: اِخْتَارِيْ کي نيت ضروري دی لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ تَخْيِيْرَهَا فِي نَفْسِهَا ځکه چي دا [قول] ښځي ته په خپل نفس کي د اختيار ورکولو احتمال [هم] لري وَيَحْتَمِلُ تَخْيِيْرَهَا فِي تَصَرُّفٍ آخَرَ غَيْرِهِ او په يو بل کار کي د تصرف د اختيار ورکولو احتمال [هم] لري.

**اللغات:** ﴿مَا دَامَتْ﴾ له افعال ناقصه وو څخه يو فعل دی، د دې معنیٰ ده: تر څو چي هغه پاته وي، ﴿أَخَذَتْ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده، کله چي د دې باب په صله کي "فِيْ" يا "يو فعل" نو بيا د "شروع کولو" په معنیٰ سره راځي، لکه څرنګه چي په عربي کي ويل کيږي: أَخذ فِي الْأَمر وَأَخذ يَفْعَله. أي شَرَعَ فِيهِ، ﴿مُخَيَّرَة﴾ د تفعيل مؤنث اسم مفعول دی: اختيار ورکول سوې ښځه، ﴿تَمْلِيْک﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک جوړول، ﴿إِعْرَاض﴾ د افعال مصدر دی: مخ اړول، توجه نه کول، ﴿صَرْف﴾ په نغدو سره د نغدو بيع، ﴿سَلَم﴾ په نغدو سره د ځنډمن شي (مؤجل) بيع، ﴿إِفْتِرَاق﴾ د افتعال مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د طلاق په نيت خپلي ښځي ته په اِخْتَارِيْ نَفْسَکِ يا طَلِّقِيْ نَفْسَکِ (يا په داسي نورو الفاظو) سره د طلاق اختيار ورکړي، نو په دې صورت کي چي تر څو دا ښځه په خپل مجلس (يعني د اختيار ورکولو په مجلس) کي پاته وي، تر هغه وخته پوري به د

هغې اختيار پاتـه وي، او هغې تـه بـه دا حق او اختيار وي چي خپل ځان تـه طلاق ورکړي؛ ځکه کـه څـه هم دا مسئله د قياس مخالفه ده، خو د صحابه وو د اجماع په وجه قياس پرېښوول کيږي. ځکه چي خلفاءِ ثلاثه وو يعني حضرت عمر، حضرت عثمان، حضرت علي، همدارنګه حضرت ابن مسعود، ابن عمر او داسي نورو سترو صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پر دې خبره اجماع کړې ده چي کله خاوند خپلي ښځي ته اختيار ورکړي، نو ښځي لره تر هغه وخته پوري اختيار ثابتيږي، تر څو چي هغه خپل په دې مجلس کي موجوده وي، او کله چي هغه ولاړه سي، نو د هغې اختيار ختميږي، لهذا د صحابه وو په دې اجماع سره د ښځي لپاره خيار (اختيار) هم ثابت سو او دا هم ثابته سوه چي دا خيار به د مجلس سره خاص وي.

دا مسئله ځکه د قياس مخالفه ده چي انسان چي د کوم شي ملکيت نه لري، هغه د دې شي تمليک نه سي کولای (يعني انسان چي په خپله د کوم شي مالک نه وي، هغه بل څوک د داسي شي مالک نه سي جوړولای)، او په پورتنی الفاظو مثلاً په اِخْتَارِیْ سره که انسان په خپله طلاق ورکړي، نو طلاق نه واقع کيږي، نو کله چي انسان يوه ښځه په دې الفاظو سره د طلاق مکلفه جوړه کړي، او بيا ښځه ځان ته طلاق ورکړي، نو د قياس له رويه په داسي طريقه سره طلاق واقع کېدل پکار نه دي، خو د سترو صحابه وو د اجماع په وجه دلته قياس پرېښوول سوی دی.

**ولأنه تمليك إلخ**: مخکي په اجماع سره دا ثابته سوه چي ښځي ته به خيار ورکول کيږي، او تر څو چي ښځه له مجلس څخه ولاړه سوې نه وي يا په يو بل کار مشغوله سوې نه وي، تر هغه وخته به ښځي لره دا اختيار ثابت وي، په دې عبارت سره د دې مسئلې دويم (عقلي) دليل بيانوي چي ښځي ته د طلاق اختيار ورکول په حقيقت کي هغه د طلاق مالکه جوړل دي، او په تمليکاتو کي اُصول دا دی چي تمليکات په مجلس کي د جواب تقاضا او انتظار کوي، لکه څرنګه چي په بيع کي اُصول دا دی چي په کوم مجلس کي ايجاب وسي، په هغه مجلس کي د قبول موجودېدل شرط دي، ځکه چي د مجلس ټوله ساعتونه د يوه ساعت په درجه کي دي، همدا وجه ده که په يوه مجلس کي د سجدې آيت بار، بار (بيا، بيا) وويل سي، نو يوه سجده واجبيږي، لهذا تر څو چي ښځه په مجلس کي وي، هغې ته به د طلاق ورکولو خيار وي، او کله چي هم مجلس بدل سي، د هغې دا خيار به ختميږي.

او د مجلس بدلېدلو دوه صورتونه دي: يو دا چي ښځه له مجلس څخه ولاړه سي، نو په دې سره هم مجلس بدليږي، دويم دا چي ښځه په دغه مجلس کي په يو بل کار مشغوله سي چي په هغه سره دا معلومه سي چي دا ښځه داختيار وطرف ته توجه نه کوي، بلکي له هغه څخه اعراض کوي، نو بيا هم مجلس بدليږي، او د ښځي اختيار ختميږي، مثلاً د خوراک او ډوډۍ مجلس وي، او خاوند ښځي ته

د طلاق اختيار ورکړي، او بيا دوی په همدغه مجلس کي په مناظره يا په جنګ او نښته مشغول سي، نو که څه هم دلته ښځه په هغه مجلس کي ده، لېکن دقاعدې په اعتبار سره د هغې مجلس په دې شيانو سره بدل سو.

**ويبطل خيارها بمجرد إلخ:** فرمايي چي محض د ښځي په ولاړېدلو (پورته کېدلو) سره هم مجلس ختمېږي؛ ځکه چي دا هم د اعراض دليل دی، لېکن په بيع سلم او بيع صرف کي محض د مجلس څخه په ولاړېدلو مجلس نه ختمېږي، ځکه چي په بيع سلم او صَرف کي أصلاً هغه وخت مجلس ختمېږي، کله چي دواړه عاقدين له قبضې څخه بغير سره جلا سي (يعني په دواړو عاقدينو کي يو عاقد بېله قبضې د مجلس څخه بل ځای ولاړ سي، په مجلس کي دننه په اعراض کولو سره مجلس نه بدلېږي، او په اختيار کي فقط په اعراض سره مجلس بدلېږي).

**ثم لا بد إلخ:** د اِخْتَارِیْ لفظ کنايه ده، ځکه چي دا لفظ دوه احتمال لري، يو دا چي "ته ځان اختيار کړه" (دا د طلاق پر معنیٰ دلالت کوي،)، او بل دا چي "تا ته په هر کار کي د تصرف کولو اختيار سته"، نو ځکه د خاوند لپاره دا ضروري دي چي د دغه لفظ د ويلو په صورت کي "ښځي ته د نفس او د طلاق دا اختيار ورکولو" نيت وکړي، او که دا نيت نه وکړي، نو بيا طلاق نه واقع کېږي.

## په "اِخْتَارِیْ" سره د طلاق واقع کېدلو بحث

وَإِنِ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فِي قَوْلِهِ اِخْتَارِيْ او که د خاوند د اِخْتَارِیْ ويلو په صورت کي ښځي خپل ځان اختيار کړی كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نو هغه به په يوه طلاق سره بائنه وي [يعني په دې صورت کي پر هغې يو طلاقِ بائن واقع کېږي] وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يَقَعَ بِهٰذَا شَيْءٌ وَإِنْ نَوَى الزَّوْجُ الطَّلَاقَ او قياس دا دی: چي په دې لفظ سره هيڅ طلاق واقع نه سي که څه هم خاوند د طلاق نيت کړی وي لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْإِيْقَاعَ بِهٰذَا اللَّفْظِ ځکه چي [په خپله] خاوند په دې لفظ سره د طلاق واقع کولو مالک نه دی فَلَا يَمْلِكُ التَّفْوِيْضَ إِلٰى غَيْرِهِ لهذا بل چا ته به د دې د ورسپارلو مالک [هم] نه وي إِلَّا أَنَّا اِسْتَحْسَنَّاهُ لِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ لېکن موږ دا د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د اجماع په وجه استحساناً منلی دی وَلِأَنَّهُ بِسَبِيْلٍ مِنْ أَنْ يَّسْتَدِيْمَ نِكَاحَهَا أَوْ يُفَارِقَهَا او ځکه چي خاوند ته دا اختيار سته چي هغه د ښځي نکاح قائم وساتي يا ښځه جلا کړي [او ښځه پرېږدي] فَيَمْلِكُ إِقَامَتَهَا مَقَامَ نَفْسِهِ فِي حَقِّ هٰذَا الْحُكْمِ نو د دغه حکم په حق کي به هغه د دې ښځي د خپل قائم مقام جوړولو مالک [هم] وي ثُمَّ الْوَاقِعُ بِهَا بَائِنٌ بيا به دې لفظ سره واقع

کېدونکي طلاق، طلاقِ بائن وي لِأَنَّ اِخْتِيَارَهَا نَفْسَهَا بِثُبُوْتِ اخْتِصَاصِهَا بِهَا ځکه چي د ښځي خپل ځان اختيارول د نفس سره د ښځي د خاص کېدلو په وجه دي وَذٰلِكَ فِي الْبَائِنِ او [اختصاص] په طلاقِ بائن کي وي وَلَا يَكُوْنُ ثَلَاثًا وَإِنْ نَوَى الزَّوْجُ ذٰلِكَ او درې [طلاقه] نه [واقع] کيږي که څه هم خاوند د دريو [طلاقو] نيت وکړي لِأَنَّ الْاِخْتِيَارَ لَا يَتَنَوَّعُ ځکه چي اختيار نه منقسم کيږي [او دوو قسمونو ته] بِخِلَافِ الْإِبَانَةِ په خلاف د بائن جوړولو [بينونت] لِأَنَّ الْبَيْنُوْنَةَ قَدْ تَتَنَوَّعُ ځکه چي بينونت منقسم کيږي [او دوو قسمونو ته: خفيفه، غليظه]

**اللغات:** ﴿إِيْقَاع﴾ د افعال مصدر دی: واقع کول. ﴿تَفْوِيْض﴾ د تفعيل مصدر دی: ور سپارل. ﴿يَسْتَدِيْمُ﴾ د استفعال مضارع ده: پاتېدل، قائم ساتل. ﴿إِخْتِصَاص﴾ د افتعال مصدر دی: خاص کېدل. ﴿إِبَانَة﴾ د افعال مصدر دی: بائن کول (بائن جوړول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د خاوند تر "اِخْتَارِیْ" ويلو وروسته ښځه په هغه مجلس کي خپل نفس (ځان) اختيار کړي، نو پر هغې يو طلاقِ بائن واقع کيږي.

**والقياس أن لا يقع إلخ:** له دې ځای څخه هغه دليل بيان سوی دی کوم چي په تېر عبارت کي په تفصيلي توګه بيان سو چي د قياس له رويه په داسي الفاظو سره طلاق نه واقع کيږي، لېکن موږ فقط د صحابه وو د اجماع په وجه استحساناً په داسي الفاظو سره طلاق واقع کوو.

**ثم الواقع إلخ:** د دې حاصل دا دی چي په لفظ د اِخْتَارِیْ سره په دې وجه يو طلاقِ بائن واقع کيږي، چي د ښځي لپاره خپل نفس (ځان) اختيارول هغه وخت ثابتيږي، کله چي د نفس سره د ښځي اختصاص ثابت سي، يعني د هغې له نفس څخه د خاوند ملک زائل سي، او هغه په خپله د خپل نفس مالکه سي، او ښکاره ده چي دا خبره فقط په طلاقِ بائن سره حاصليږي، نه په طلاق رجعي سره.

او که خاوند په اِخْتَارِیْ سره د دريو طلاقو نيت وکړي، نو درې طلاقه نه واقع کيږي، ځکه چي اختيار اقسام نه لري او نه تقسيميږي (دريو طلاقو او يوه طلاق ته)، د دې په خلاف د بينونت، ځکه چي بينونت د غليظه (دريو طلاقو) او خفيفه (دوو طلاقو) وطرف ته تقيسميږي (لکه مخکي چي موږ وويل)، لهذا د بينونت په صورت کي خو د دريو طلاقو نيت کول صحيح دي، لېکن د اختيار په صورت د دې نيت کول صحيح نه دي.

## د "نفس" د لفظ د شرطيت بحث

قَالَ: وَلَا بُدَّ مِنْ ذِكْرِ النَّفْسِ فِي كَلَامِهِ أَوْ فِي كَلَامِهَا فرمايي: چې د خاوند يا د ښځې په کلام کې د "نفس" [د لفظ] ذکر کول ضروري دی حَتَّى لَوْ قَالَ لَهَا: اخْتَارِيْ تر دې که [خاوند] ښځې ته [فقط] اِخْتَارِيْ وايي فَقَالَتْ قَدْ: اخْتَرْتُ او ښځه هم [فقط] اِخْتَرْتُ ووايي فَهُوَ بَاطِلٌ نو دا [کلام] باطل دي لِأَنَّهُ عُرِفَ بِالْإِجْمَاعِ ځکه چې دا په اجماع سره معلوم سوي دی وَهُوَ فِي النَّفْسِ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ او اجماع په هغه کې ده چې په دواړو طرفونو کې له يو طرف څخه [د نَفْس] تفسير [او وضاحت] سوی وي وَلِأَنَّ الْمُبْهَمَ لَا يَصْلُحُ تَفْسِيْرًا لِلْمُبْهَمِ الْآخَرِ او ځکه چې يو مبهم د بل مبهم د تفسير جوړېدلو صلاحيت نه لري وَلَا تَعْيِيْنَ مَعَ الْإِبْهَامِ او د ابهام سره هيڅ تعيينکېدلای نه سي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله خاوند ښځې ته د اِخْتَارِيْ په کلمه سره د طلاق اختيار ورکوي، نو د ښځې يا د خاوند په کلام کې د اِخْتَارِيْ د کلمې سره د "نَفْس" د لفظ صراحت کول او ذکر کول يا د هغه قائم مقام (مثلاً تَطْلِيْقَة) ذکر کول ضروري دي (په لنډه توګه دا چې د اختيار د لفظ سره د ښځې يا د خاوند له طرفه د "نفس" لفظ يا د "نفس" قائم مقام لفظ ذکر کول هم ضروري دي)؛ دليل دا دی چې په اِخْتَارِيْ نَفْسَكِ سره د طلاق واقع کېدل خلافُ القياس د صحابه وو په اجماع سره ثابت دي، او څرنګه چې په اجماع کې د "نَفْس" لفظ مشهور، متعارف او موجود دی، نو ځکه به د خاوند يا ښځې په کلام کې د هغه وجود او ذکر کېدل ضروري وي.

دويمه خبره دا ده چې که خاوند د "نفس" د لفظ څخه بغير اِخْتَارِيْ ووايي نو هغه به مبهم وي، او کله چې ښځه هم د "نفس" څخه بغير اِخْتَرْتُ ووايي، نو هغه به هم مبهم وي، او مبهم د مبهم وضاحت او تفسير نه سي کولای، نو په دې وجه هم د خاوند د يا د ښځې په کلام کې د "نفس" د لفظ وجود او ذکر کېدل ضروري دي، د دې لپاره چې فيصله د "نفس" د اختيارولو په هکله وکړی سي، او کله چې په دواړو طرفونو کې ابهام او اخفاء وي، نو ښکاره ده چې بيا په نيت سره هم طلاق متعين کېدلای نه سي، ځکه چې ابهام او تعيين سره منافي دي.

## په "إِخْتَارِيْ نَفْسَكِ" سره د واقع کېدونکي طلاق حيثيت

وَلَوْقَالَ لَهَا: اخْتَارِي نَفْسَكِ او که [خاوند] ښځې ته وايي: اِخْتَارِيْ نَفْسَكِ [ته خپل نفس اختيار کړه] فَقَالَتْ: اخْتَرْتُ او ښځه ووايي: اِخْتَرْتُ [ما اختيار کړی] تَقَعُ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ نو يو طلاقِ بائن واقع کېږي لِأَنَّ كَلَامَهُ مُفَسَّرٌ ځکه چې د خاوند کلام مفسر دی [يعني د تفسير سره واقع سوی دی] وَكَلَامُهَا خَرَجَ جَوَابًا لَهُ او د ښځې کلام د خاوند د جواب په توګه را وتلی دی [يعني د ښځې کلام د خاوند په جواب کي صادر سوی دی] فَيَتَضَمَّنُ إِعَادَتَهُ نو [د ښځې کلام] به د خاوند د کلام راګرځولو ته متضمن [شامل] وي وَكَذَا لَوْقَالَ: اخْتَارِيْ اخْتِيَارَةً او همدارنګه که [خاوند] ووايي: اِخْتَارِيْ اِخْتَيَارَةً [ته يې اختيار کړه يو وار اختيارول] فَقَالَتْ: اخْتَرْتُ او ښځه ووايي: اِخْتَرْتُ [ما اختيار کړی] لِأَنَّ الْهَاءَ فِي الِاخْتِيَارَةِ تُنْبِئُ عَنِ الِاتِّحَادِ وَالِانْفِرَادِ ځکه چې د اِخْتَيَارَة ها [تاء] د متحد او منفرد کېدلو خبر ورکوي وَاخْتِيَارُهَا نَفْسَهَا هُوَ الَّذِي يَتَّحِدُ مَرَّةً وَيَتَعَدَّدُ أُخْرَى او د ښځې خپل نفس اختيارول کله متحد [يو] کېږي او کله متعدد [څو شمېره] کېږي فَصَارَ مُفَسَّرًا مِنْ جَانِبِهِ نو د خاوند له طرفه دا [کلام] مفسر سو وَلَوْقَالَ: اخْتَارِيْ او که [خاوند] ووايي: اِخْتَارِيْ [ته يې اختيار کړه] فَقَالَتْ: قَدِ اخْتَرْتُ نَفْسِيْ او ښځه ووايي: اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ [ما خپل ځان اختيار کړی] يَقَعُ الطَّلَاقُ نو طلاق واقع کېږي إِذَا نَوَى الزَّوْجُ [په دې شرط] چې کله خاوند نيت کړی وي لِأَنَّ كَلَامَهَا مُفَسَّرٌ ځکه چې [دلته] د ښځې کلام مفسر دی وَمَا نَوَاهُ الزَّوْجُ مِنْ مُحْتَمَلَاتِ كَلَامِهِ او خاوند چې د کوم شي نيت کړی دی هغه د خاوند د کلام له محتملاتو [احتمالي معنیٰ] څخه دی.

**اللغات:** ﴿إِعَادَة﴾ د افعال مصدر دی: راګرځول، ﴿إِنْفِرَاد﴾ د انفعال مصدر دی: يو کېدل، مفرد کېدل.

**تشريح:** په تېر عبارت کي دا خبره ذکره سوه چې که د خاوند له طرفه يا د ښځې له طرفه د اختيار د لفظ سره د "نَفس" لفظ ذکر نه سي، نو په دې صورت کي له دواړو طرفونو څخه د ابهام په وجه پر ښځې طلاق نه واقع کېږي.

په دې عبارت کي د هغه مسئلې نوره تشريح کوي، حاصل يې دا دی چې که فقط د يوه له طرفه د "نفس" لفظ ذکر سي، مثلاً که خاوند ووايي: اِخْتَارِيْ نَفْسَكِ، او د دې په جواب کي ښځه فقط

اِخْتَرْتُ ووايي، نو بيا يو طلاقِ بائن واقع كيږي، ځكه چي د "نَفس" د ذكر كولو په وجه د خاوند كلام مُفسر سو او په يوه طرف كي ابهام ختم سو، او د ښځي كلام د خاوند د جواب په توګه صادر سوى دى، نو ځكه به د هغې كلام د خاوند ټوله كلام لره شامل وي، ځكه چي د جواب په هكله قاعده دا ده چي "الجَوَابُ يَتَضَمَّنُ إِعَادَةَ مَا فِي السُّؤَال". يعني په جواب كي بيرته د سوال عبارت او مفهوم راګرځي، او كوم مطالب او معاني چي په سوال كي وي جواب هم هغه مطالبو لره شامل وي، مثلاً كه يو څوك له يو عالم څخه پوښتنه وكړي چي "آيا په ټي سره اودس ماتيږي"، او هغه ورته ووايي: هو!، نو اوس دا د "هو!" لفظ "اودس ماتيږي" لره شامل دى، لهذا د ښځي د جواب حاصل به دا وي چي "تا (خاوند) چي په خپل اختيار سره ما ته د كوم شي حكم كړى دى، هغه ما اختيار كړى"، او خاوند د "نفس" اختيار وركړى وو، نو په دې توګه به د ښځي په جواب كي هم د "نفس" ذكر كېدل ثابت سي.

**وكذالوقال إلخ:** دويمه مسئله دا ده كه خاوند د "نفس" لفظ ذكر نه كړي، بلكي د هغه قائم مقام لفظ اِخْتَيَارَةً ذكر كړي، مثلاً ووايي: اِخْتَارِيْ اِخْتِيَارَةً، او په جواب كي ښځه اِخْتَرْتُ ووايي، نو په دې صورت كي هم طلاق واقع كيږي، د دې مسئلي دليل دا دى چي خاوند چي كوم لفظ (يعني اِخْتَيَارَة) ذكر كړى دى، په هغه كي "ة" موجوده ده، او دا تاء كله د انفراد لپاره راځي او كله د جمع او تعدّد لپاره راځي، او د ښځي خپل "نفس" اختيارول پر دې دواړو شيانو دلالت كوي، مثلاً كه ښځه يو طلاق اختيار كړي نو دا انفراد دى، او كه هغه درې طلاقه اختيار كړي نو دا تعدّد دى، خلاصه دا چي د "نَفس" د لفظ په څير د "اِخْتَيَارَة" لفظ هم مفسر دى، او په يوه طرف كي واقع دى (يعني د خاوند له طرفه ذكر سوى دى)، نو ځكه به په دې سره يو طلاق واقع كيږي.

**ولوقال لها إلخ:** د دې حاصل دا دى كه خاوند فقط اِخْتَارِيْ ووايي، او ښځه په جواب كي اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ ووايي، او خاوند د طلاق نيت كړى وي، نو په دې صورت كي هم يو طلاقِ بائن واقع كيږي؛ دليل دا دى چي د ښځي كلام خو مفسر دى، او خاوند چي د كوم شي (يعني د طلاق) نيت كړى دى، هغه د خاوند د كلام احتمالي معنىٰ ده، ځكه مخكي موږ ووېل چي په اِخْتَارِيْ كي د طلاق د معنىٰ احتمال هم سته، او انسان لره د خپل كلام د احتمالي معنىٰ د نيت كولو پوره حق او اختيار سته.

## په مضارع (أَخْتَارُ نَفْسِيْ) سره خاوند ته د جواب ورکولو بحث

وَلَوْقَالَ: اخْتَارِيْ او که [خاوند] ووايي: إِخْتَارِيْ [ته يې اختيار کړه!] فَقَالَتْ: أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِيْ او ښځه ورته ووايي: أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِيْ [زه خپل ځان اختياروم] فَهِيَ طَالِقٌ نو هغه مطلقه ده ايعني په دې صورت کې هم هغه طلاقيږي] وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَطْلُقَ او قياس دا دی چې هغه طلاق نه سي لِأَنَّ هٰذَا مُجَرَّدُ وَعْدٍ ځکه چې دا خو فقط وعده ده أَوْ يَحْتَمِلُهُ يا د وعدې احتمال لري فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ لَهَا: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ فَقَالَتْ: أَنَا أُطَلِّقُ نَفْسِيْ نو داسي سو لکه [خاوند] چې ښځي ته ووايي: ته خپل ځان ته طلاق ورکړه! او ښځه ووايي: زه خپل ځان ته طلاق ورکوم وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: حَدِيْثُ عَائِشَةَ رضي الله عنها [1] فَإِنَّهَا قَالَتْ: لَا بَلْ أَخْتَارُ اللهَ وَرَسُوْلَهُ د استحسان دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث دی، ځکه چې [عائشې رضي الله عنها] وفرمايل: چې نه! بلکي زه الله او د هغه رسول [ﷺ] اختياروم اعْتَبَرَهُ النَّبِيُّ ﷺ جَوَابًا مِنْهَا او نبي کريم ﷺ دا حضرت هغې له طرفه جواب وشمېرى وَلِأَنَّ هٰذِهِ الصِّيْغَةَ حَقِيْقَةٌ فِي الْحَالِ وَتَجُوْزُ فِي الِاسْتِقْبَالِ او په دې وجه [هم] چې دا لفظ [أَخْتَارُ] په حال کې حقيقت دی او په استقبال کې مجاز دی كَمَا فِيْ كَلِمَةِ الشَّهَادَةِ وَأَدَاءِ الشَّهَادَةِ لکه د شهادت په کلمه او د ګواهۍ په اداء کولو کې [چې د مضارع له صيغې څخه د حال معنیٰ اخيستل کيږي] بِخِلَافِ قَوْلِهَا: أُطَلِّقُ نَفْسِيْ لِأَنَّهُ تَعَذَّرَ حَمْلُهُ عَلَى الْحَالِ په خلاف د ښځي د دې قول: أُطَلِّقُ نَفْسِيْ، ځکه چې دا قول پر حال حمل کول ناممکن دي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِحِكَايَةٍ عَنْ حَالَةٍ قَائِمَةٍ ځکه چې دا د يو ثابت سوي حالت حکايت نه دی وَلَا كَذٰلِكَ قَوْلُهَا: أَنَا أَخْتَارُ نَفْسِيْ او د ښځي دا قول: اخْتَارُ نَفْسِيْ داسي نه دی لِأَنَّهُ حِكَايَةٌ عَنْ حَالَةٍ قَائِمَةٍ ځکه چې دا د يو ثابت سوي حالت حکايت دی وَهُوَ اخْتِيَارُهَا نَفْسَهَا او هغه [ثابت سوی حالت] د ښځي خپل ځان اختيارول دي.

**اللغات:** ﴿مُجَرَّد﴾ تنها، فقط، صرف، محض.

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الطلاق، باب من خير أزواجه، حديث رقم: ۵۲۶۲. وابن ماجه في كتاب الطلاق، بـــاب الرجل يخير امراته، حديث رقم:۲۰۵۳.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که سړی خپلې ښځې ته ووايي: اِخْتَارِیْ، او ښځه په جواب کې ورته ووايي: أَنَا اَخْتَارُ نَفْسِیْ، نو په دې سره استحساناً پر ښځې يو طلاقِ بائن واقع کيږي، او د قياس تقاضا دا ده چې پر هغې دې طلاق واقع نه سي، د قياس دليل دا دی چې دلته ښځې د فعلِ مضارع صيغه يعني د "اَخْتَارُ" استعمال کړې ده، او فعلِ مضارع د حال او استقبال دواړو احتمال لري، لهذا که د ښځې مراد استقبال وي نو دا به محض وعده وي، او محض د طلاق په وعده سره طلاق نه واقع کيږي، او که د ښځې مراد حال وي نو بيا هم په دې کې د استقبال احتمال پاتيږي، نو دا مسئله داسې ده لکه خاوند چې خپلې ښځې ته طَلِّقِیْ نَفْسَکِ ووايي، او ښځه يې په جواب کې أَنَا اُطَلِّقُ نَفْسِیْ ووايي نو په دې سره طلاق نه واقع کيږي، لهذا په أَنَا اَخْتَارُ نَفْسِیْ سره هم طلاق واقع کېدل پکار نه دي.

د استحسان دليل دا دی چې کله دا آيت "أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا" نازل سو، نو نبي کريم ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل: إِنِّیْ أُرِيْدُ أَنْ أَعْرِضَ عَلَيْكِ أَمْرًا أُحِبُّ أَنْ لَا تَعْجَلِیْ فِيْهِ حَتّٰی تَسْتَشِيْرِیْ أَبَوَيْكِ، يعني زه تا په يو حکم خبروم، په دې باره کې تلوار مه کوه! او د خپل مور او پلار له مشورې څخه بغير جواب مه راکوه!، بيا نبي کريم ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته تول له حکم بيان کړی، نو حضرت عائشې رضي الله عنها فوراً جواب ورکړی: فَفِیْ هٰذَا أَسْتَأْمِرُ أَبَوَایَ، لَا، بَلْ أَخْتَارُ اللهَ وَرَسُوْلَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ، يعني په دې باره کې به زه هيڅکله هم د خپل مور و پلار څخه مشوره نه اخلم، بلکي زه الله او د هغه رسول... اختياروم. (بخاري ومسلم)

په دغه حديث سره په دې توګه دليل نيول کيږي چې حضرت عائشې رضي الله عنها په خپل جواب کې د اَخْتَارُ فعلِ مضارع استعمال کړې ده او نبي ﷺ د هغې د جواب اعتبار کړی دی او د هغې جواب يې اختيار منلی دی، نو معلومه سوه چې په فعلِ مضارع سره هم اختيار ثابتيږي.

د استحسان دويم دليل دا دی چې اَخْتَارُ يعني د مضارع صيغه د حال لپاره حقيقت ده او د استقبال لپاره مجاز ده، لکه د شهادت په کلمه کې يعني أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ...إلخ کې چې هم د مضارع صيغه موجوده ده، او هلته هم د حال په معنیٰ سره ده، ځکه چې د "أَشْهَدُ" معنیٰ ده "زه ګواهي ورکوم"، نه دا چې "زه به ګواهي ورکړم"، ځکه که دلته د استقبال معنیٰ مراد سي، نو بيا به هيڅوک هم مسلمان پاته نه سي، بلکي د ټولو ايمان به پر وعدې معلق او موقوف وګرځي، همدارنګه کله چې

په يوه مسئله کي په اَشْهَدُ سره ګواهي ورکول کيږي نو هلته هم دا صيغه پر حال حمل کيږي، لهذا کله چي دا ثابته سوه چي په مضارع کي حال حقيقت دی او دا هم ثابته سوه چي په زياتره ځايو کي د مضارع صيغه پرحال حمل کيږي، نو ځکه به دلته هم پر حال حمل کيږي او استحساناً به پر ښځي يو طلاق بائن واقع کيږي.

**بخلاف قولها إلخ**: په دې عبارت سره د قياس جواب ورکوي، فرمايي چي أَنَا اخْتَارُ نَفْسِيْ پر أَنَا أُطَلِّقُ نَفْسِيْ قياسول صحيح نه دي، ځکه چي أُطَلِّقُ د حال پر معنیٰ حمل کول ناممکن دي، او أَخْتَارُ د حال پر معنیٰ حمل کول ناممکن نه دي، وجه يې دا ده چي طلاق ورکول د ژبې عمل دی، نه د زړه، او د يو شي اختيارول د زړه عمل دی، او بل دا چي حکايت د محکي عنهٔ د وجود تقاضا کوي، يعني د کوم شي حکايت چي کيږي، هغه تر حکايت کولو مخکي موجودېدل پکار دي، نو أُطَلِّقُ پر حال حمل کول ځکه ناممکن دي چي کـه چيري دا د حال پر معنیٰ حمل کړی سی، نو دا به حکايت وي، حالانکي دا ديو شي حکايت کېدای نه سي، ځکه چي د دې لفظ تر تلفظ او تکلم مخکي يو داسي شی موجود نه دی چي هغه محکي عنهٔ جوړ سي، ځکه چي تر دې مخکي د ښځي له طرفه د طلاق په هکله هيڅ خبره نه ده سوې چي هغه محکي عنهٔ جوړه کړی سي نو ځکه دا صيغه پر حال حمل کول ناممکن دي، د دې په خلاف أَنَا أَخْتَارُ پر حال حمل کېدای سي، په دې توګه چي اختيار د زړه عمل او ارادې ته وايي، لهذا د أَخْتَارُ نَفْسِيْ د ويلو په وخت کي به دغه د زړه اراده محکي عنهٔ جوړيږي او دا صيغه به پر حال حمل کيږي.

## درې واره د "اِخْتَارِيْ" ويلو بحث

| وَلَوْقَالَ لَهَا: اخْتَارِيْ اخْتَارِيْ اخْتَارِيْ او که [خاوند] ښځي ته وايي: ته يې اختيار کړه. ته يې اختيار کړه، ته يې اختيار کړه [درې واره] فَقَالَتْ: قَدْ اِخْتَرْتُ الْأُولَىٰ وَالْوُسْطَىٰ وَالْأَخِيْرَةَ او ښځه ووايي: ما اول او مينځوی او آخر [درې سره] اختيار کړل طُلِّقَتْ ثَلَاثًا فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په قول کي [پر هغې] درې طلاقه واقع کيږي وَلَا يُحْتَاجُ إِلَىٰ نِيَّةِ الزَّوْجِ او [په دې صورت کي] د خاوند نيت لره ضرورت نسته وَقَالَا: تَطْلُقُ وَاحِدَةً او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي هغه په يوه طلاق سره |
|---|

القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين (رد المحتار ج:٢، ص:٥٢١)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٣٨٩). [القول الراجح ج:١، ص:٣٢٨]

طلاق قيږي وَإِنَّمَا لَا يُحْتَاجُ إِلَى نِيَّةِ الزَّوْجِ لِدَلَالَةِ التَّكْرَارِ عَلَيْهِ او د خاوند نيت لره ځکه ضرورت نسته چې تکرار [د اِخْتَارِيْ] پر تکرار دلالت کوي إِذْ الِاخْتِيَارُ فِي حَقِّ الطَّلَاقِ هُوَ الَّذِيْ يَتَكَرَّرُ ځکه چې اختيار د طلاق په حق کي مکرر کېداى سي لَهُمَا: أَنَّ ذِكْرَ الْأُوْلَى وَمَا يَجْرِيْ مَجْرَاهُ إِنْ كَانَ لَا يُفِيْدُ مِنْ حَيْثُ التَّرْتِيْبِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د أُوْلَى ذكر كول يا د هغه د قائم [ذکر کول] که څه هم د ترتيب په حيثيت سره فايده نه ورکوي يُفِيْدُ مِنْ حَيْثُ الْإِفْرَادِ [لېکن] د إفراد په حيثيت سره فايده ورکوي فَيُعْتَبَرُ فِيْمَا يُفِيْدُ نو په کوم ځاى کي چي فايده ورکوي د هغه اعتبار به کيږي وَلَهُ: أَنَّ هٰذَا وَصْفٌ لَغْوٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا [د ترتيب والا] وصف لغو دی لِأَنَّ الْمُجْتَمِعَ فِي الْمِلْكِ لَا تَرْتِيْبَ فِيْهِ ځکه چي هغه شی [طلاقونه] کوم چي په ملکيت کي جمع سوي وي په هغه کي هيڅ ترتيب نسته كَالْمُجْتَمِعِ فِي الْمَكَانِ لکه په يوه ځاى کي [چي په] جمع سوي [اخلکو کي هيڅ ترتيب نه وي] وَالْكَلَامُ لِلتَّرْتِيْبِ او کلام د ترتيب لپاره راځي وَالْإِفْرَادُ مِنْ ضَرُوْرَاتِهِ او إفراد د ترتيب د لوازماتو څخه دی فَإِذَا لَغَا فِي حَقِّ الْأَصْلِ لَغَا فِي حَقِّ الْبِنَاءِ نو کله چي د أصل په حق کي کلام لغو سو نو د بناء په حق کي به [هم] لغو کيږي [يعني کوم چي پر اصل مبني دی (يعني إفراد) نو د هغه په حق کي به هم لغوه کيږي] وَلَوْ قَالَتْ: اِخْتَرْتُ اِخْتِيَارَةً او که ښځه ووايي: اِخْتَرْتُ اِخْتِيَارَةً [يعني د اِخْتَرْتُ سره مصدر اِخْتِيَارَة ذکر کړي] فَهِيَ ثَلَاثٌ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا نو دا د ټولو په قول کي درې طلاقه دي [يعني زموږ د ټولو امامانو په نيز درې طلاقه واقع کيږي] لِأَنَّهَا لِلْمَرَّةِ ځکه چي لفظ د اِخْتِيَارَةً د مَرَّة [يوه وار] لپاره دی فَصَارَ كَمَا إِذَا صَرَّحَتْ بِهَا نو داسي سو لکه ښځه چي [په خپل کلام کي] د مَرَّة تصريح وکړي وَلِأَنَّ الِاخْتِيَارَةَ لِلتَّأْكِيْدِ او په دې وجه [هم] چي اِخْتِيَارَةً د تأکيد لپاره دی وَبِدُوْنِ التَّأْكِيْدِ تَقَعُ الثَّلَاثُ او بغير له تأکيد څخه [هم] درې [طلاقه] واقع کيږي فَمَعَ التَّأْكِيْدِ أَوْلَى نو د تأکيد سره خو به په طريقه اولىٰ درې [طلاقه] واقع کيږي وَلَوْ قَالَتْ: قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِيْ أَوْ اخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِتَطْلِيْقَةٍ او که ښځه ووايي: قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِيْ [ما خپل ځان طلاق کړی] يا اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِتَطْلِيْقَةٍ [ما په يوه طلاق سره خپل ځان اختيار کړی] فَهِيَ وَاحِدَةٌ نو دا يو طلاق دی يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ چي خاوند به [په هغه کي] د رجعت مالک وي لِأَنَّ هٰذَا اللَّفْظَ يُوْجِبُ الِانْطِلَاقَ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځکه چي دا لفظ [تَطْلِيْقَة] تر عدت تېرېدلو

وروسته پرېښوول واجبوي ايعني په دې لفظ سره تر عدت تېرېدلو وروسته طلاق بائن واجبېږي، او د رجعت امکان ختمېږي او ښځه بالکليه پرېښوول کېږي] فَكَأَنَّهَا اخْتَارَتْ نَفْسَهَا بَعْدَ الْعِدَّةِ نو داسي سو لکه ښځي چي تر عدت وروسته خپل ځان [طلاق] اختيار کړی وي وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِي تَطْلِيقَةٍ أَوِ اخْتَارِيْ تَطْلِيقَةً او که خاوند ښځي ته ووايي چي: د يوه طلاق په حق کي ستا معامله ستا په لاس کي ده يا په يوه طلاق سره [خپل ځان] اختيار کړه فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا او ښځه خپل ځان اختيار کړي فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نو دا يو طلاق دی چي خاوند به [په هغه کي] د رجعت مالک وي ايعني په دې صورت کي يو طلاق رجعي واقع کېږي] لِأَنَّهُ جَعَلَ لَهَا الِاخْتِيَارَ ځکه چي [خاوند] هغې ته اختيار ورکړی دی لٰكِنْ بِتَطْلِيقَةٍ مګر په تَطْلِيقَةٌ سره ايعني خاوند خو ښځي ته اختيار ورکړی دی لېکن د تطليقه اختيار يې ورکړی دی] وَهِيَ مُعَقِّبَةٌ لِلرَّجْعَةِ او تَطْلِيقَة [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي ايعني په تطليقه سره طلاق رجعي واقع کېږي، ځکه چي دا له صريحو الفاظو څخه دی].

**اللغات**: ﴿مَرَّة﴾ يو وار، ﴿اِنْطِلَاق﴾ د انفعال د باب مصدر دی، د دې باب خپله معنیٰ ده: تلل (ذهاب)، او مجازاً د "خلاصېدلو" او "پرېښوولو" په معنیٰ سره هم راځي (تكملة المعاجم العربية ج:٧، ص:٧٢)، ﴿اِنْقِضَاء﴾ د انفعال مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي ښځي ته د اختيار ورکولو په هکله څو مسئلې بيان سوي دي، چي هغه به انشاء الله په ترتيب ستا سو مخته ذکر سي: (١)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلي ښځي ته درې واره دا لفظ ووايي: اِخْتَارِيْ، او ښځه يې په جواب کي ووايي: اِخْتَرْتُ الْأُوْلٰى وَالْوُسْطٰى وَالْأَخِيْرَة، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز درې طلاقه واقع کېږي، برابره ده که خاوند نيت کړی وي، که نه وي او د "نَفْس" لفظ يې ذکر کړی وي، که نه وي، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي يو طلاق واقع کېږي، برابره ده که خاوند نيت کړی وي، که نه وي (يعني په دې مسئله کي د ټولو په نېز نيت ضروري نه دی).

د نيت د نه ضروري کېدلو دليل دا دی چي دلته د اختيار د لفظ تکرار (يعني د اخْتَارِيْ تکرار) د طلاق پر معنیٰ دلالت کوي، ځکه کله چي هم خاوند اختيار مکرر کړي نو هغه د طلاق په باره کي مکرر وي (يعني کله چي خاوند ښځي ته درې واره د طلاق اختيار ورکوي، نو دا پر دې خبره دليل دی چي هغه د طلاق اختيار ورکوي، د جامې، سينګار يا داسي نورو شيانو اختيار نه ورکوي، ځکه چي درې واره فقط طلاق مکرر کېږي)، نو کله چي دلته د طلاق پر معنیٰ قرينه موجوده ده، نو ځکه به د خاوند لپاره نيت ضروري نه وي.

**د صاحبينو دليل:** د صاحبينو د دليل حاصل دا دی چې د ښځې په جواب کې چې کوم الفاظ ذکر سوي دي، يعني أُولیٰ، وُسطیٰ. او أُخِيرَةً. د دې الفاظو دوه حيثيته دي: ① ... يو دا چې دا الفاظ به يا د ترتيب فايده ورکوي او د ښځې د جواب مطلب به دا وي چې اول ما أُولیٰ (يعني اول اِخْتَارِیْ) اختيار کړی، بيا مې وُسطیٰ اختيار کړی او بيا مې أُخِيرَةً اختيار کړی (يعني درې سره مې په ترتيب سره اختيار کړل)، ② ... او د دې الفاظو دويم حيثيت دا دی چې يا دا الفاظ به د إفراد فايده ورکوي (د إفراد مطلب دا دی چې ما يو، يو اختيار کړی، يعني د أُولیٰ په لفظ سره به و أُول (اِخْتَارِیْ) ته اشاره وي، او د وُسطیٰ په لفظ سر به و دويم ته اشاره وي، او د أُخيره په لفظ سره به و دريم ته اشاره وي)، او دلته د دې الفاظو دويم حيثيت ممکن دی، ځکه چې دا د اختيار محل دی او د اختيار محل د ترتيب محل نه دی، لهذا دا کلمات به د ترتيب فايده نه ورکوي، بلکې د افراد فايده به ورکوي، او د ښځې د قول مطلب به دا وي چې ما هغه شی اختيار کړی کوم چې د أُولیٰ په لفظ سره (يعني په اول اِخْتَارِیْ) سره ما ته وسپارل سو، او د أُولیٰ په لفظ سره چې کوم شی هغې ته سپارل سوی دی، هغه يو طلاق دی، نو ځکه به يو طلاق واقع کيږي، او څرنګه دا (د اختيار) محل، د ترتيب محل نه دي، نو ځکه به پاته دوه الفاظ به پر اول لفظ نه مرتب کيږي، او کله چې پاته دوه الفاظ پر هغه نه مرتب کيږي، نو نور طلاقونه به هم نه واقع کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې وصف يعني اولیٰ. وُسطیٰ او أُخيرة لغو دي، ځکه کوم درې طلاقونه چې د خاوند په ملک کې جمع دي، په هغوی کې هيڅ ترتيب نسته، لکه په يو ځای کې چې د ېر خلګ جمع سي، نو په هغو کې هيڅ ترتيب نه چليږي او هٰذَا أَوّلُ وهٰذَا آخِرُ نه ويل کيږي، او قاعدا ده چې هر هغه شی په کوم کې چې ترتيب نه وي، د هغه شي په باره کې هغه کلام لغو کيږي کوم چې د ترتيب لپاره وي، او دلته اولیٰ، وسطیٰ او أُخيرة د ترتيب لپاره دي، او إفراد د ترتيب د لوازماتو څخه دی، نو کله چې د اصل يعني د ترتيب په حق کې دا الفاظ لغو سول، نو پر هغه چې کوم مبني دی يعني إفراد، د هغه په حق کې به هم لغو کيږي، او فقط د ښځې دا قول اِخْتَرْتُ به پاتيږي، او دا خبره تسليم سوې ده چې که ښځه د خاوند د درې وارو اِخْتَارِیْ په جواب کې فقط يو وار اِخْتَرْتُ ووايي، نو پر هغې درې طلاقه واقع کيږي، نو دلته به هم درې طلاقه واقع کيږي.

**ولو قال إلخ:** دريمه مسئله دا ده که چيري ښځه د درې واره اِخْتَارِیْ په جواب کې اِخْتَرْتُ اِخْتِيَارَةً ووايي، نو بالاتفاق درې طلاقه واقع کيږي، دليل دا دی چې د اِخْتِيَارَة تاء د مَرَّة لپاره ده، نو دا د اِخْتَرْتُ نَفْسِیْ مَرَّةً ويلو په څير سو (يعني ما يو وار خپل ځان اختيار کړی)، او په دې کلام سره درې طلاقه واقع کيږي، دويم دليل دا دی چې اِخْتِيَارَة د تأکيد لپاره دی، او دلته له تأکيد څخه بغير هم درې طلاقه واقع کيږي، نو د تأکيد په صورت کې خو به په طريقه اولیٰ درې طلاقه واقع کيږي.

**ولوقالت إلخ:** دریمه مسئله دا ده که چیرې ښځه د درې واره اِخْتَارِیْ په جواب کې طَلَّقْتُ نَفْسِیْ یا اِخْتَرْتُ نَفْسِیْ بِتَطْلِیْقَةٍ ووايي، نو يو طلاق رجعي واقع کیږي، دلیل دا دی چې دا لفظ تر عدت تېرېدلو وروسته بینونت ثابتوي (يعني په دې لفظ سره تر انقضاء عدت وروسته طلاق بائن واقع کیږي)، ځکه چې لفظ د طَلَّقْتُ او تَطْلِيْقَةٌ له صریحو الفاظو څخه دي، او صریح الفاظ تر عدت تېرېدلو وروسته بینونت واجبوي، او په کوم لفظ سره چې تر عدت تېرېدلو وروسته بینونت واجبیږي، په هغه لفظ سره واقع کېدونکی طلاق، طلاقِ رجعي وي، او همدا رجعي طلاق تر عدت تېرېدلو وروسته بائن کیږي، نو ځکه به دلته طلاقِ رجعي واقع کیږي.

**لکنّها اختارت إلخ:** په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې د اِخْتَارِیْ په لفظ سره طلاق بائن واقع کیږي، نه طلاق رجعي، (ځکه چې دا کنايي لفظ دی او په کنايي الفاظو سره طلاق بائن واقع کیږي)، جواب دا دی چې دلته ګواکي ښځې خپل ځان تر عدت وروسته اختيار کړی او (ګواکي) تر عدت وروسته يې ځان ته طلاق ورکړی (ځکه چې رجعي طلاق هم تر عدت وروسته بائن جوړیږي، که څه هم درې میاشتې په مینځ کې راسي، نو دلته پر ښځې د طلاق رجعي واقع کېدل داسې سو، لکه پر هغې چې طلاقِ بائن واقع سي). (د صحيح روايت مطابق په دغه دريمه مسئله کې له کاتب څخه سهو سوې ده چې د تشريح په آخر کې به د هغه يادونه وسي).

**وإن قال إلخ:** څلورمه مسئله دا ده چې که خاوند خپلې ښځې ته داسې ووايي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِيْ تَطْلِيْقَةٍ يا اِخْتَارِیْ تَطْلِيْقَةً، او بيا ښځه خپل ځان اختيار کړي، نو په دې صورت کې پر هغې يو طلاقِ رجعي واقع کیږي، ځکه چې دلته خاوند د تَطْلِيْقَة په لفظ سره طلاق ورکړی دی، او د تَطْلِيْقَة په لفظ سره ورکول سوی طلاق رجعي وي، نو ځکه به دلته هم طلاقِ رجعي واقع کیږي.

**يادونه:** په دريمه مسئله کې صاحب د هدايې وفرمايل چې کله ښځه د درې واره اِخْتَارِیْ په جواب کې قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِیْ ووايي، نو فَهِيَ وَاحِدَةٌ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ، يعني په دې صورت کې يو طلاقِ رجعي واقع کیږي، خو په دې باره کې د هدايې د سترو شارحينو مثلاً د علامه ابن الهمام او علامه عيني او داسې نورو تحقيق دا دی چې د وَاحِدَةٌ او يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ په مینځ کې له کاتب څخه د "لَا" لفظ هېر سوی دی، اصل عبارت داسې دی: فَهِيَ وَاحِدَةٌ لَا يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ (يعني دلته طلاقِ بائن واقع کیږي)، لکه څرنګه چې په مبسوط، زيادات او جامع صغير کې هم په دغه الفاظو سره دا مسئله ذکر سوې ده، او همدا د قياس مطابق دي، ځکه چې ښځه د اِخْتَارِیْ په جواب کې طلاق اختيار کړی دی، او اِخْتَارِیْ کنايي لفظ دی، او په کنايي الفاظو سره طلاقِ بائن واقع کیږي، نه طلاقِ رجعي (لکه مخکې چې په دې هکله تفصيلي بحث تېر سو).



# فَصْلٌ فِي الْأَمْرِ بِالْيَدِ

## (دا) فصل په (بيان د) أَمْرِبِالْيَدْ کي دی

### په "أَمْرُكِ بِيَدِكِ" سره د طلاق واقع کېدلو بحث

وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَمْرُكِ بِيَدِكِ يَنْوِي ثَلَاثًا او که [خاوند] ښځې ته ووايي چي: ستا معامله ستا په لاس کي ده او [په دې سره خاوند] د درېو [طلاقو] نيت وکړي فَقَالَتْ: قَدِ اخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِوَاحِدَةٍ او ښځه ووايي: چي ما په يوه سره خپل ځان اختيار کړی [يعني يو وار مي خپل ځان اختيار کړی] فَهِيَ ثَلَاثٌ نو دا درې [طلاقه] دي لِأَنَّ الِاخْتِيَارَ يَصْلُحُ جَوَابًا لِلْأَمْرِ بِالْيَدِ ځکه چي اختيار د أمر بالْيد لپاره د جواب جوړېدلو صلاحيت لري لِكَوْنِهِ تَمْلِيكًا كَالتَّخْيِيرِ ځکه چي أمر بالْيد [هم] د تخيير په څير تمليک دی [يعني د تخيير په څير أمر بالْيد هم د مالک جوړولو صلاحيت لري] وَالْوَاحِدَةُ صِفَةٌ لِلِاخْتِيَارَةِ او وَاحِدَة د اِخْتَارَة صفت دی فَصَارَ كَأَنَّهَا قَالَتْ: اخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِمَرَّةٍ وَاحِدَةٍ نو داسي سو لکه ښځي چي [داسي] ووېل: ما [فقط] يو وار خپل ځان اختيار کړی وَبِذَلِكَ يَقَعُ الثَّلَاثُ او په دې سره درې طلاقه واقع کيږي.

**اللغات:** ﴿تَمْلِيْک﴾ د تفعيل مصدر دی: مالک جوړول. ﴿تَخْيِيْر﴾ مخکنی صيغه ده: اختيار ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته په دې الفاظو سره د طلاق اختيار ورکړي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ (چي ستا معامله ستا په لاس کي ده)، او په دې سره خاوند د درېو طلاقو نيت وکړي، او ښځه په جواب کي ورته ووايي: اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِوَاحِدَةٍ (چي ما يو وار خپل ځان اختيار کړی)، نو په دې صورت کي درې طلاقه واقع کيږي، دليل دا دی چي ښځي د أمر بالْيد په جواب کي د اختيار (اِخْتَرْتُ) صيغه ذکر کړې ده، او اختيار دأمر بالْيد لپاره جواب جوړېدای سي، ځکه څرنګه چي په "اختيار ورکولو" کي د تمليک "مالک جوړولو" معنیٰ موجوده ده، همداسي په أمر

باليد کي دا معنیٰ موجوده ده، او په اِخْتَارِیْ سره د اختيار ورکولو په صورت کي طلاق واقع کيږي، لهذا دلته به هم طلاق واقع کيږي.

پاته سوه دا خبره چي په اختيار ورکولو کي د دريو طلاقو نيت کول صحيح نه دي. نو دلته څرنګه صحيح دی، د دې جواب دا دی چي دلته ښځي د وَاحِدَة لفظ استعمال کړی دی. او دا لفظ په حقيقت کي د محذوف موصوف يعني اِخْتِيَارَة صفت دی، او اِخْتِيَارَة د مَرَّة په معنیٰ سره دی. لهذا اصل تقدير د عبارت داسي سو: اِخْتَرْتُ نَفْسِیْ بِمَرَّةٍ وَاحِدَة (ما يو وار خپل ځان اختيار کړی). او په داسي جملې سره درې طلاقه واقع کيږي، نو په دې مسئله کي به هم درې طلاقه واقع کيږي. په دې شرط چي خاوند د دريو طلاقو نيت کړی وي (د دې مسئلې نور تفصيل به په راتلونکي عبارت کي بيان سي).

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَلَوْقَالَتْ: قَدْ طَلَّقْتُ نَفْسِیْ بِوَاحِدَةٍ أَوْ اخْتَرْتُ نَفْسِیْ بِتَطْلِيْقَةٍ او که ښځه ووايي: ما په يوه طلاق سره خپل ځان ته طلاق ورکړی يا ما په يوه طلاق وروسته خپل ځان اختيار کړی فَهِیَ وَاحِدَةٌ بَائِنَةٌ نو دا يو بائن [طلاق] دی لِأَنَّ الْوَاحِدَةَ نَعْتٌ لِمَصْدَرٍ مَحْذُوْفٍ وَهُوَ فِی الْأُوْلٰی الْاِخْتِيَارَةُ وَفِی الثَّانِيَةِ التَّطْلِيْقَةُ ځکه چي وَاحِدَة د محذوف مصدر دی چي هغه په اول صورت کي اِخْتِيَارَة دی او په دويم کي تَطْلِيْقَة دی إِلَّا أَنَّهَا تَكُوْنُ بَائِنَةً خو دا به بائن طلاق وي لِأَنَّ التَّفْوِيْضَ فِی الْبَائِنِ ضَرُوْرَةُ مِلْكِهَا أَمْرَهَا ځکه چي د ښځي د خپل ملک د مالک کېدلو د ضرورت په خاطر تفويض په بائن کي کيږي وَكَلَامُهَا خَرَجَ جَوَابًا لَهٗ او د ښځي کلام د خاوند [د کلام] د جواب په توګه صادر سوی دی فَتَصِيْرُ الصِّفَةُ الْمَذْكُوْرَةُ فِی التَّفْوِيْضِ مَذْكُوْرَةً فِی الْإِيْقَاعِ نو کوم صفت چي په تفويض کي ذکر سوی وي هغه به په إيقاع کي هم مذکور وي وَإِنَّمَا تَصِحُّ نِيَّةُ الثَّلَاثِ فِی قَوْلِهٖ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ او د خاوند په دې قول: أَمْرُكِ بِيَدِكِ کي د دريو [طلاقو] نيت په دې وجه صحيح دی لِأَنَّهٗ يَحْتَمِلُ الْعُمُوْمَ وَالْخُصُوْصَ ځکه چي دا جمله د عموم او خصوص دواړو احتمال لري وَنِيَّةُ الثَّلَاثِ نِيَّةُ التَّعْمِيْمِ او نيت د دريو [طلاقو] نيت د تعميم [او عموم] دی بِخِلَافِ قَوْلِهٖ: اِخْتَارِیْ په خلاف د خاوند د دې قول: اِخْتَارِیْ لِأَنَّهٗ لَا يَحْتَمِلُ الْعُمُوْمَ ځکه چي دا د عموم احتمال نه لري وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او مخکي موږ دا [خبره] ثابته کړه.

**اللغات:** ﴿حَقَّقْنَا﴾ د تفعيل له باب څخه د جمع متكلم ماضي صيغه ده: څېړل، ثابتول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلې ښځې ته د أَمْرُكِ بِيَدِكِ په الفاظو سره اختيار ورکړي، او ښځه يې په جواب کې طَلَّقْتُ نَفْسِيْ بَوَاحِدَة ووايي، يا اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ بِوَاحِدَةٍ ووايي، نو په دې دواړو صورتونو کې يو طلاق بائن واقع کيږي.

د دې مسئلې دليل دا دی چې د ښځې په الفاظو کې چې کوم د وَاحِدَة لفظ راغلی دی، هغه د محذوف مصدر صفت دی، او دا محذوف مصدر په اوله جمله يعني په طَلَّقْتُ نَفْسِي بِوَاحِدَةٍ کې تَطْلِيْقَةً دی، او تقدير د عبارت داسې دی: طَلَّقْتُ نَفْسِيْ تَطْلِيْقَةً وَاحَدَةً، او په دويمه جمله يعني په اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ کې دا محذوف مصدر اِخْتِيَارَةً دی، او تقدير د عبارت داسې دی: اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ اِخْتِيَارَةً وَاحِدَةً، نو ځکه به دلته يو طلاق بائن واقع کيږي.

**إلا أنها إلخ:** په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې طَلَّقْتُ نَفْسِيْ...الخ خو له صريحو الفاظو څخه دي، او په صريحو الفاظو سره طلاق رجعي واقع کيږي، نو دلته څرنګه طلاق بائن واقع کيږي؟

د دې په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې په دې صورتونو کې د طلاقِ بائن د واقع کېدلو وجه دا ده چې دلته خاوند د أَمْرُكِ بِيَدِكِ په ذريعه ښځې ته اختيار ورکړی دی، او أَمْرُكِ بِيَدِكِ لکه کنايي الفاظو څخه چې په هغوی سره طلاقِ بائن واقع کيږي، ځکه چې د أَمْرُكِ بِيَدِكِ په ذريعه د طلاق ورسپارل (تفويض) د دې تقاضا کوي چې ښځه په خپله د خپلې معاملې مالکه سي (او ټوله ملکيت د ښځې لاس ته راسي)، او ښکاره ده چې دا تقاضا او مطلب هغه وخت پوره کيږي کله چې پر ښځې طلاقِ بائن واقع سي (ځکه چې په طلاق رجعي کې د رجعت د حق په وجه په پوره توګه د خپل ځان ملکيت د ښځې په لاس کې نه راځي)، او څرنګه چې د ښځې دغه الفاظ (طَلَّقْتُ نَفْسِي...) هم د خاوند د کلام (أَمْرُكِ بِيَدِكِ) په جواب کې واقع سوي دي، او د خاوند په کلام کې د بينونت صفت ذکر سوی دی (ځکه چې أمر هغه وخت د ښځې لاس ته راځي کله طلاقِ بائن واقع سي)، نو په دې وجه به د ښځې په کلام کې هم دغه صفت ذکر سوی وي او پر ښځې به طلاقِ بائن واقع کيږي، د دې لپاره چې د ښځې او خاوند دواړو کلمات يو د بل مطابق او موافق سي.

وإنما تصح إلخ: له دې ځای ځخه د دريو طلاقونو د نيت په هکله د أَمْرُكِ بِيَدِكِ او إِخْتَارِیْ نَفْسِکِ تر مينځ فرق بيانوي فرمايي چې په أَمْرُكِ بِيِدِک کې ځکه د دريو طلاقو نيت کول صحيح دیَ چې لفظ د أمر عام دی کوم چې پر هر فعل صادقېدای سي، نو ځکه به پر طلاق هم صادقيږي او د أَمْرُكِ بِيَدِكِ معنیٰ به وي: طَلَاقُكِ بِيَدِكِ، او طلاق مصدر دی کوم چې د عموم او خصوص دواړو احتمال لري، لهذا کله چې خاوند د يوه طلاق نيت کړی وي نو دا (مصدر) به پر خصوص حمل کيږي، او که د دريو نيت يې کړی وي نو پر عموم به حمل کيږي.

د دې په خلاف د إِخْتَارِیْ په لفظ کې فقط د خصوص احتمال سته، نه د عموم، لهذا په إِخْتَارِیْ سره د عموم يعني د دريو طلاقو نيت کول صحيح نه دي، په دې سره فقط د خصوص يعني د يوه طلاق نيت کېدای سي، صاحب د هدايې فرمايي چې د فصل فی الاختيار په ضمن کې موږ دا خبره ځېړلې ده (چې اختيار نه تقسيميږي [او دريو طلاقو ته...لکه ځرنګه چې بينونت تقسيميږي...])فلا نعيدها هٰهنا.

## د مؤقت تفويض يو صورت

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ او که [خاوند] ښځې ته ووايي چې: ستا معامله نن ستا په لاس کې ده او سبا نه بل سبا [يعني نن او سبا نه بل سبا تا ته د طلاق اختيار دی] لَمْ يَدْخُلْ فِيهِ اللَّيْلُ نو په دې [اختيار] کې شپه نه داخليږي وَإِنْ رَدَّتِ الْأَمْرَفِيْ يَوْمِهَا او که ښځې په نن ورځ کې أمر [اختيار] رد کړی بَطَلَ أَمْرُذٰلِكَ الْيَوْمِ نو د دغه ورځې أمر [اختيار] باطل سو وَكَانَ الْأَمْرُبِيَدِهَا بَعْدَغَدٍ او سبا نه بل سبا [بيا] د هغې په لاس کې أمر [اختيار] وي لِأَنَّهُ صَرَّحَ بِذِكْرِ وَقْتَيْنِ بَيْنَهُمَا وَقْتٌ مِنْ جِنْسِهِمَا ځکه چې خاوند دوه داسې وختونه په صراحت سره ذکر کړي دي چې د دوی په مينځ کې د دوی د جنس يو وخت دی [يعني غد] لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْأَمْرُ چې هغه ته أمر [اختيار] شامل نه دی إِذْ ذِكْرُ الْيَوْمِ بِعِبَارَةِ الْفَرْدِ لَا يَتَنَاوَلُ اللَّيْلَ ځکه چې فقط د يَوْم ذکر کول لَيْلَ لره نه شامليږي فَكَانَا أَمْرَيْنِ نو دواړه دوه أمره [او اختياره] سول فَبِرَدِّ أَحَدِهِمَا لَا يَرْتَدُّ الْآخَرُ نو به د يوه [اختيار] په ردّ سره بل [اختيار] نه ردّ کيږي وَقَالَ زُفَرُ: هُمَا أَمْرٌوَاحِدٌ بِمَنْزِلَةِ قَوْلِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دوی دواړه يو أمر [اختيار] دی [او] د خاوند د دې قول په درجه کې دی: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ [نن او سبا نه بل

سبا ته (پر ما) طلاقه يې] قُلْنَا: اَلطَّلَاقُ لَا يَحْتَمِلُ التَّأْقِيْتَ موږ [ورته] وايو: چې طلاق د يو وخت سره د خاصولو احتمال نه لري وَالْأَمْرُبِالْيَدِ يَحْتَمِلُهٗ او أمر باليد [اختيار] د دې احتمال لري فَيُوَقَّتُ الْأَمْرُبِالْأَوَّلِ وَيُجْعَلُ الثَّانِيْ أَمْرًا مُبْتَدَأً نو به أمر باليد په اول [يَوْم] سره مؤقت کيږي او دويم [بَعْدَ غَدٍ] به له نوي سره [مستقل] أمر باليد ګرځول کيږي.

**اللغات:** ﴿تَأْقِيْت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل، وخت مقرر کول، د وخت سره خاصول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته په دې الفاظو سره اختيار ورکړي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ، (يعني نن او سبا نه بل سبا معامله ستا په لاس کې ده، يعني يو نن تا ته اختيار دی او بل سبا نه بل سبا)، نو په دې جمله کې ګواکې خاوند ښځې ته دوه اختيار ورکړي دي، يو اختيار يې نن ورکړی دی، او دويم اختيار يې سبا نه بل سبا ورکړی دی، او د دواړو په مينځ کې د سبا (غَد) ورځ له اختيار څخه خالي ده، لهذا کله چې د سبا ورځ له اختيار څخه خالي ده، نو په دې وجه به را روانه شپه يعني د نن ورځې (الْيَوْم) شپه هم له اختيار څخهٔ خالي وي، او څرنګه چې يې دوه اختيار ورکړي دي، نو په دې وجه که ښځه د نن ورځې اختيار رد کړي، نو دويم اختيار يعني د سبا نه بل سبا اختيار به پاته وي.

**لأنه صَرَّحَ إلخ:** په صورت د مسئلې کې دوې خبرې ذکر سوې، په دې عبارت سره د هغه دوو خبرو عقلي دليل بيانوي: يوه خبره دا ذکر سوه را روانه شپه په دغه اختيار (أمر باليد) کې نه داخليږي، او دويمه دا چې که ښځه نن اختيار رډ کړي، نو دويم اختيار نه ختميږي، نو د دويمې خبرې دليل دا دی چې د يَوْم او بَعْدَ غَدٍ په مينځ کې (يعني د نن او سبا نه بل سبا ورځې په مينځ کې) يو داسې وخت سته کوم چې د دې دواړو وختونو له جنس څخه دی چې هغه د سبا ورځ (غَد) ده، او په هغه کې اختيار نسته، نو په دې وجه د نن ورځې اختيار او د سبا نه بل سبا ورځې اختيار سره جلا سول، نو ځکه به د يوه اختيار په ردولو سره دويم اختيار نه رديږي، او د اولې خبرې دليل دا دی چې خاوند په صراحت يَوْم (ورځ) يوازې ذکر کړی دی، او کله چې يَوْم يوازې ذکر سي، نو په هغه کې لَيْل (شپه)، نه داخليږي نو ځکه به دلته هم په نن ورځ کې شپه نه داخليږي، لهذا که چيرې ښځه د شپې ځان ته طلاق ورکړي، نو پر هغې به طلاق نه واقع کيږي، ځکه چې په شپه کې هغې لره اختيار ثابت نه دی.

وقال زفر الخ: امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ کي ښځه ته دوه اختيار نه دي ورکول سوي، بلکي يو اختيار ورکول سوی دی (ځکه چي اَلْيَوْمَ او بَعْدَ غَدٍ دواړه سره معطوف او معطوف عليه دي)، او دا جمله داسي ده لکه خاوند چي ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ الْيَوْمَ وَبَعْدَ غَدٍ. او په دې سره يو اختيار ثابتيږي او يو طلاق واقع کيږي، لهذا دلته به هم يو اختيار ثابتيږي او يو طلاق به واقع کيږي.

موږ جواب ورکوو چي أمر بِالْيَد پر طلاق قياسول صحيح نه دي، ځکه چي طلاق د تأقيت يعني د يو وخت سره د خاصولو (او د تأخير) احتمال نه لري، همدا وجه ده کومي ښځي ته چي نن په طَالِقٌ يا داسي بل لفظ سره طلاق ورکول سي، هغه به په نورو ورځو کي هم مطلقه وي، د دې په خلاف أمر بالْيد کي د تأقيت او اختصاص بالوقت احتمال سته، او دا ممکن دي چي په يوه وخت کي دي أمر او اختيار د ښځي په لاس کي وي، او په بل وخت کي دي نه وي، لهذا د ښځي لپاره به په أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ سره يو أمر او اختيار ثابت وي، او په بَعْدَ غَدٍ سره به دويم أمر او اختيار ثابت وي، او تقدير د عبارت به داسي وي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ. و أَمْرُكِ بِيَدِكِ بَعْدَ غَدٍ، نو ځکه به دلته دوه جلا اختياره ثابتيږي.

## د مؤقت تفويض يو بل صورت

وَلَوْقَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَغَدًا او که [خاوند] ووايي چي: ستا معامله نن ستا په لاس کي ده او سبا يَدْخُلُ اللَّيْلُ فِي ذٰلِكَ نو په دې کي شپه] هم] داخليږي فَإِنْ رَدَّتْ الْأَمْرَ فِي يَوْمِهَا او که چيري ښځه په دغه ورځ [يَوْم] أمر [اختيار] رد کړي لَا يَبْقَى الْأَمْرُ فِي يَدِهَا فِي غَدٍ نو سبا د هغې په لاس کي أمر [اختيار] نه پاتيږي لِأَنَّ هٰذَا أَمْرٌ وَاحِدٌ ځکه چي دا أمر دی لِأَنَّهُ لَمْ يَتَخَلَّلْ بَيْنَ الْوَقْتَيْنِ الْمَذْكُورَيْنِ وَقْتٌ مِنْ جِنْسِهِمَا لَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْكَلَامُ ځکه چي د دغه دوو ذکر سوو وختونو تر مينځ يو داسي بېلونکی وخت نسته چي هغه لره کلام [اختيار] شامل نه وي وَقَدْ يَهْجُمُ اللَّيْلُ وَمَجْلِسُ الْمَشُوْرَةِ لَا يَنْقَطِعُ او کله ناکله شپه راسي او مجلس د مشورې لا ختم سوی نه وي فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِي يَوْمَيْنِ نو داسي سو لکه [خاوند] چي ووايي: په دوو ورځو کي ستا معامله ستا په لاس کي ده [يعني تر دوو ورځو پوري تا ته اختيار دی] وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا إِذَا رَدَّتِ الْأَمْرَ فِي الْيَوْمِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه

روايت دی: چي كله په نن ورځ [يَوْم] کي اختيار رد کړي لَهَا أَنْ تَخْتَارَ نَفْسَهَا غَدًا نو [هم] په سبا هغې لره د خپل ځان د اختيارولو اختيار [پاته] وي لِأَنَّهَا لَا تَمْلِكُ رَدَّ الْأَمْرِ ځکه چي ښځه د أمر باليد د ردولو مالکه نه ده كَمَا لَا تَمْلِكُ رَدَّ الْإِيقَاعِ لکه څرنګه چي هغه [د طلاق] د إيقاع د ردولو مالکه نه ده وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّهَا إِذَا اخْتَارَتْ نَفْسَهَا الْيَوْمَ لَا يَبْقَى لَهَا الْخِيَارُ فِي الْغَدِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چي که چيري ښځه نن ورځ خپل ځان اختيار کړی نو سبا به د هغې لپاره اختيار نه پاتيږي فَكَذَا إِذَا اخْتَارَتْ زَوْجَهَا بِرَدِّ الْأَمْرِ نو همداسي به [هغې لره اختيار نه پاتيږي] کله چي هغه د أمر باليد د ردولو په ذريعه خپل خاوند اختيار کړي لِأَنَّ الْمُخَيَّرَ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ لَا يَمْلِكُ إِلَّا اخْتِيَارَ أَحَدِهِمَا ځکه کوم چا ته چي په دوو شيانو کي اختيار ورکول سوی وي هغه په دې دواړو شيانو کي فقط د يوه د اختيارولو مالک وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّهُ إِذَا قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَأَمْرُكِ بِيَدِكِ غَدًا الخ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: چي کله [خاوند] ووايي: ستا معامله نن [هم] ستا په لاس کي ده او ستا معامله سبا [هم] ستا په لاس کي ده أَنَّهُمَا أَمْرَانِ نو دا دوه أمره [اختياره] دي لِمَا أَنَّهُ ذَكَرَ لِكُلِّ وَقْتٍ خَبَرًا عَلَى حِدَةٍ ځکه چي [دلته] خاوند د هر وخت لپاره جلا خبر ذکر کړی دی بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه [مسئلې] کوم چي [له مخه] مخکي ذکر سوه.

**اللغات:** ﴿يَهْجُمُ﴾ د نصر مضارع ده: ناڅاپه راتلل، ﴿لَا يَنْقَطِعُ﴾ دا انفعال له باب څخه نفي صيغه ده: ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځي ته په دې الفاظو سره اختيار ورکړي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَغَدًا، (يعني نن او سبا تا ته د طلاق اختيار دی)، نو په دغه اختيار (أَمر بِاليَد) کي د نن ورځي شپه هم داخليږي، او که ښځه د نن ورځي (يَوْم) اختيار رد کړي، نو د سبا (غَد) په ورځ کي به د هغې اختيار نه پاتيږي، دليل دا دی چي دا دواړه يو اختيار (أَمر بِاليَد) دی، ځکه چي دلته دواړو وختونو په مينځ کي يو داسي فاصل وخت نسته چي د هغه د دې دواړو همجنسه وي او اختيار لره شامل نه وي، لهذا دواړه وختونه (يعني نن او سبا ورځ) سره متصل دي، او اکثره وخت هم داسي کيږي چي خلک په ورځ (يَوْم) کي د يو بحث او مشورې لپاره کښيني، او په دغه ناسته کي پر هغو شپه راسي او هغه مشوره او بحث لا ختم سوي نه وي (او شپه په ورځ کي داخله او شامله ګڼل

کيږي)، لهذا دا جمله داسي سوه لکه خاوند چي ښځي ته ووايي: أَمْرُكِ بِيَدِكِ فِيْ يَوْمَيْنِ (تا ته تر دوو ورځو پوري د طلاق اختيار دی)، او په دې سره يو اختيار ثابتيږي، نو دلته به هم يو اختيار ثابتيږي.

او په يوه حصه (يَوْم) کي به د اختيار په ردولو سره په دويمه حصه (غَد) کي اختيار ختميږي.

له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چي په نن ورځ (يَوْم) کي به د اختيار په ردولو سره په سبا ورځ (غَد) کي اختيار نه ختميږي، بلکي سبا ورځ به هم ښځي لره اختيار پاته وي، دليل دا دی چي څرنګه ښځه د إِيقَاعُ الطلاق (طلاق واقع کولو) د ردولو قدرت نه لري همداسي به د أمر باليد (اختيار) د ردولو قدرت هم نه لري، مثلاً که خاوند ښځي ته أَنْتِ طَالِقٌ ووايي، نو پر ښځي خامخا طلاق واقع کيږي، هغه که ښځه طلاق قبول کړي يا نه کړي، همداسي به د أمر بِالْيَد په ويلو او اختيار ورکولو سره به هم اختيار ثابتيږي، که څه هم ښځه هغه قبول نه کړي، لهذا کله چي د ښځي په ردولو سره اختيار او أمر باليد نه ختميږي، نو ځکه به سبا ورځ هم هغې لره (د ځان اختيارولو) اختيار پاته وي.

**وجه الظاهر إلخ**: د ظاهر روايت دليل دا دی چي که چيري ښځه دلته نن ورځ ځان اختيار کړي (يعني ځان ته نن ورځ طلاق ورکړي)، نو دا ښکاره خبره ده چي سبا بيا هغې ته اختيار او أمر باليد نه حاصليږي بلکي د هغې اختيار ختميږي، لهذا څرنګه چي نن ورځ د ځان اختيارولو په وجه سبا د هغې اختيار ساقطيږي، همداسي په نن ورځ کي به هم د اختيار په ردولو او د خاوند په اختيارولو سره د هغې اختيار او أمر باليد ختميږي.

ځکه همدا قاعده ده چي: الْمُخَيَّرُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ لَا يَمْلِكُ إِلَّا اِخْتِيَارَ أَحَدِهِمَا، يعني کوم چا ته چي د دوو شيانو اختيار ورکول سوی وي، هغه په دواړو شيانو کي فقط يو شی اختيارولای سي، نه دواړه. (لېکن صاحب د أحسنُ الهدايې وايي چي د ظاهر روايت دغه دليل زما زړه سم نه تسليموي، ځکه چي مسئله د دوو شيانو د اختيار او عدمِ اختيار په هکله نه ده، بلکي په يَوْم او غَد کي د اختيار د بقاء او عدم بقاء په هکله ده، والله أعلم)

**ومن أبي يوسف إلخ**: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي که خاوند ښځي ته أَمْرُكِ بِيَدِكِ الْيَوْمَ وَ أَمْرُكِ بِيَدِكِ غَدًا ووايي، نو په دې صورت کي د ښځي لپاره دوه اختيار (أمر باليد) ثابتيږي، ځکه چي دلته دوې جلا، جلا جملې دي، او د دواړو جملو خبر سره جلا دی، نو ځکه به دوه اختياره ثابتيږي او د اولي ورځي د اختيار په ردولو سره به د دويمي ورځي اختيار نه ختميږي، په خلاف د مخکني مسئلې ځکه چي په هغه کي د دواړو جملو لپاره يو خبر دی نو هغه يوه جمله سوه، نو ځکه به هلته يو اختيار ثابتيږي، او د اولي ورځي د اختيار په ردولو سره به په دويمه ورځ کي هم اختيار ختميږي.

شمس الائمه رَحِمَهُ الله د امام ابو يوسف دغه روايت ته صحيح ويلي دي، او قاضي خان همدې ته أصلُ الرواية او متفق عليه ويلي دي.

## د "تخييرِ معلق" بيان

**وَإِنْ قَالَ: أَمْرُكِ بِيَدِكِ يَوْمَ يَقْدَمُ فُلَانٌ** او كه [خاوند] ووايي: ستا معامله ستا په لاس كي ده په كومه ورځ چي فلانكى راسي **فَقَدِمَ فُلَانٌ** بيا فلانكى راسي **وَلَمْ تَعْلَمْ بِقُدُومِهِ حَتّٰى جَنَّ اللَّيْلُ** او ښځه د هغه په راتګ خبره نه سي تر دې چي شپه راسي **فَلَا خِيَارَ لَهَا** نو د ښځي لره به اختيار نه وي ايعني په دې صورت كي د ښځي اختيار ختميږي] **لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْيَدِ مِمَّا يَمْتَدُّ** ځكه چي أمر باليد له هغه شيانو څخه دى كوم چي اوږديږي [او وخت غواړي، يعني أمر باليد او اختيار د فعلِ ممتد له قبيلې څخه دى] **فَيُحْمَلُ الْيَوْمَ الْمَقْرُونَ بِهِ عَلٰى بَيَاضِ النَّهَارِ** لهذا حمل كيږي به هغه يَوْم [ورځ] كوم چي د أمر باليد سره متصل وي د ورځي پر سپينوالي [رڼا] **وَقَدْ حَقَّقْنَاهُ مِنْ قَبْلُ** او مخكي موږ دا [خبره] ثابته كړه [يعني بيان كړه] **فَيُتَوَقَّتُ بِهِ** نو ځكه به أمر باليد په بياضِ نهار سره مؤقت كيږي **ثُمَّ يَنْقَضِي بِانْقِضَاءِ وَقْتِهِ** بيا به د بياضِ نهار په ختمېدلو سره دا أمر باليد [هم] ختميږي **وَإِذَا جَعَلَ أَمْرَهَا بِيَدِهَا أَوْ خَيَّرَهَا** او كله چي [خاوند] د ښځي معامله هغې ته وسپاري يا هغې ته اختيار وركړي **فَمَكَثَتْ يَوْمًا لَمْ تَقُمْ** بيا ښځه يوه ورځ [په مجلس كي] پاته سي او [له مجلس څخه] ولاړه نه سي **فَالْأَمْرُ فِي يَدِهَا مَا لَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ** نو اختيار به د هغې په لاس كي تر څو چي يې په بل كار شروع كړي نه وي **لِأَنَّ هٰذَا تَمْلِيكُ التَّطْلِيقِ مِنْهَا** ځكه چي دا ښځه د طلاق مالكه جوړول دي **لِأَنَّ الْمَالِكَ مَنْ يَتَصَرَّفُ بِرَأْيِ نَفْسِهِ** ځكه چي مالک هغه كس وي كوم چي په خپله رايه سره تصرف كوي **وَهِيَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ** او دا ښځه په هغه صفت سره [متصف] ده **وَالتَّمْلِيكُ يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ** او تمليک [هم] پر مجلس منحصر كيږي **وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ** او مخكي موږ دا [خبره] بيان كړې ده.

**اللغات:** ﴿يَقْدَمُ﴾ د سمع له باب څخه مضارع ده: راتلل، واپس راتلل، ﴿جَنَّ﴾ د نصر ماضي ده. كله چي د "لَيْل" سره ذكر سي نو معنىٰ يې راځي: شپه راتلل، شپه غوړېدل، ﴿يَمْتَدُّ﴾ د افتعال مضارع ده: اوږدېدل، كشېدل، ﴿بَيَاض﴾ سپينوالى، ﴿مَكَثَتْ﴾ د نصر مضارع ده: پاتېدل، درنګ كول، وخت تېرول، ﴿يَقْتَصِرُ﴾ د افتعال مضارع ده: منحصر كېدل.

**تشريح:** په دې عبارت كي دوې مسئلې بيان سوي دي: (١)... اوله مسئله دا ده كه يو سړى خپلې ښځي ته د طلاق اختيار وركړي او دا ورته ووايي چي په كومه ورځ فلانكى سړى راسي، په هغه ورځ

تا ته اختيار دی، نو اوس که فلانکی سړی په هغه ورځ راسي، خو ښځه په دې خبره نه سي تردې چي شپه راسي، او په شپه کي ښځي ته خبر ورسيږي چي فلانکی راغلی دی، نو په دې صورت کي د ښځي اختيار ختميږي، او هغې لره د خپل نفس د اختيارولو اختيار نه پاتيږي؛ دليل دا دی چي أمر باليد (اختيار) فعلِ ممتد دی (يعني له هغه افعالو څخه دی کوم چي وخت غواړي)، او مخکي دا خبره تېره سوه چي که يَوْم د فعلِ ممتد سره متصل سي، نو بيا له يَوْم څخه بياضِ نهار مراديږي، نه مطلق وقت (له بياض نهار څخه مراد دورځي دړنا حالت دی کوم چي له سهار وختي څخه شروع کيږي او ترلمر لوېدو پوري پاتيږي)، نو په دې وجه به دلته أمر باليد تر ورځي پوري خاص وي، او د ورځي په تېرېدلو سره به أمر باليد ختميږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که خاوند د طلاق معامله ښځي ته په لاس ورکړي يعني أَمْرُكِ بِيَدِكِ ورته ووايي، يا هغې ته د طلاق اختيار ورکړي مثلاً اِخْتَارِیْ نَفْسَکِ ورته ووايي، بيا دا ښځه په هغه مجلس (د اختيار) کي يوه ورځ پاته سي او (ټوله ورځ) له مجلس څخه ولاړه نه سي، نو تر څو چي دا ښځه په هغه مجلس کښي په يو بل کار اخته سوې نه وي، تر هغه وخته پوري د دې ښځي اختيار پاتيږي؛ دليل دا دی چي ښځي ته د طلاق اختيار ورکول (أمر باليد) په حقيقت کي د ښځي تمليک دی يعني اختيار ورکول په حقيقت کي ښځه د طلاق مالکه جوړل دي، ځکه چي مالک هغه کس ته وايي چي په خپله رايه سره تصرف کوي، او دا ښځه هم په دغه صفت سره متصفه ده (چي په خپله رايه سره ځان ته طلاق ورکوي)، او تمليکات پر مجلس منحصر او موقوف وي، لهذا دلته به هم د مجلس اعتبار کيږي.

## د "خيارِ مجلس" وضاحت

ثُمَّ إِنْ كَانَتْ تَسْمَعُ بيا که ښځي [د خاوند کلام] اورېدی يُعْتَبَرُ مَجْلِسُهَا ذٰلِكَ نو د ښځي د هغه مجلس اعتبار به کيږي وَإِنْ كَانَتْ لَا تَسْمَعُ او که يې نه اورېدی فَمَجْلِسُ عِلْمِهَا وَبُلُوغِ الْخَبَرِ إِلَيْهَا نو د ښځي د خبرېدلو د مجلس يا هغې ته د خبر رسېدلو [د مجلس] اعتبار کيږي لِأَنَّ هٰذَا تَمْلِيْكٌ فِيهِ مَعْنَى التَّعْلِيْقِ ځکه چي دا داسي تمليک دی چي په هغه کي د تعليق معنیٰ [هم] سته فَيَتَوَقَّفُ عَلَى مَا وَرَاءَ الْمَجْلِسِ نو ځکه به، پر ما وراء د مجلس [هم] موقوف کيږي وَلَا يُعْتَبَرُ مَجْلِسُهُ او د خاوند د مجلس اعتبار به نه کيږي لِأَنَّ التَّعْلِيقَ لَازِمٌ فِي حَقِّهِ ځکه چي تعليق د هغه په حق کي لازم اسوی [ دی بِخِلَافِ الْبَيْعِ لِأَنَّهُ تَمْلِيْكٌ مَحْضٌ لَا يَشُوبُهُ التَّعْلِيْقُ په خلاف د تعلق، ځکه چي هغه فقط تمليک دی

[او] په هغه کي د تعليق څه کډون نسته وَإِذَا اُعْتُبِرَ مَجْلِسُهَا او کله چي د ښځي د مجلس اعتبار وسي فَالْمَجْلِسُ تَارَةً يَتَبَدَّلُ بِالتَّحَوُّلِ وَمَرَّةً بِالْأَخْذِ فِي عَمَلٍ آخَرَ نو مجلس کله په منتقل کېدلو سره بدليږي او کله د بل په شروع کولو سره [بدليږي] عَلَى مَا بَيَّنَّا فِي الْخِيَارِ لکه په بابُ الْخيار کي چي موږ د دې بيان وکړی وَيَخْرُجُ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ او محض په ولاړېدو سره اختيار د ښځي د لاس څخه وځي لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ ځکه چي ولاړېدل د اعراض دليل دی إِذِ الْقِيَامُ يُفَرِّقُ الرَّأْيَ ځکه چي ولاړېدل رايه منتشر کوي بِخِلَافِ مَا إِذَا مَكَثَتْ يَوْمًا لَمْ تَقُمْ وَلَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ په خلاف د هغه صورت چي کله ښځه يوه ورځ [په مجلس کي] پاته سي نه ولاړه سي او نه په يو بل کار شروع وکړي لِأَنَّ الْمَجْلِسَ قَدْ يَطُولُ وَقَدْ يَقْصُرُ ځکه چي مجلس کله اوږديږي او کله مختصر کيږي فَيَبْقَى إِلَى أَنْ يُوجَدَ مَا يَقْطَعُهُ نو به مجلس تر هغه وخته باقي وي تر څو چي [د ښځي له طرفه] داسي شی موجود سي کوم چي مجلس ختموي أَوْ مَا يَدُلُّ عَلَى الْإِعْرَاضِ يا کوم چي پر اعراض دلالت کوي وَقَوْلُهُ: مَكَثَتْ يَوْمًا لَيْسَ لِلتَّقْدِيرِ بِهِ او [په جامع صغير کي] د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: فَمَكَثَتْ يَوْمًا [کوم چي د تېر عبارت په متن کي ذکر سو] د تحديد لپاره نه دی وَقَوْلُهُ: مَا لَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَرَ يُرَادُ بِهِ عَمَلٌ يُعْرَفُ أَنَّهُ قَطْعٌ لِمَا كَانَ فِيهِ او د هغه له دې قول: مَا لَمْ تَأْخُذْ فِي عَمَلٍ آخَر څخه داسي عمل مراد دی چي هغه پېژندل کيږي چي د مجلس ختمونکی [عمل] دی لَا مُطْلَقَ الْعَمَلِ نه مطلق عمل [يعني له عَمَل آخَر څخه مراد مطلق عمل نه دی].

**اللغات:** ﴿بُلُوْغ﴾ د نصر مصدر دی: رسېدل، ﴿لَا يَشُوْبُه﴾ د نصر نفي صيغه ده: ګډېدل، ور سره يو ځای کېدل، ﴿تَحَوّل﴾ د تفعّل مصدر دی: د حالت بدلېدل، ﴿يُفَرِّق﴾ د تفعيل مضارع ده: جلا کول (منتشر کول).

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې خبري نور وضاحت کوي چي "د ښځي اختيار پر مجلس منحصر او موقوف دی"، فرمايي که خاوند خپلي ښځي ته اختيار ورکړي (يعني په أَمْرُكِ بِيَدِكِ سره يا په اِخْتَارِيْ او داسي نورو الفاظو سره د طلاق اختيار ورکړي). نو د دې دوصور تونه دي: ① ښځه به د خاوند خبري او کلام اوري، ② يا به يې نه اوري، که چيري ښځي د خاوند کلام اورېدلی، نو د ښځي د هغه مجلس اعتبار به کيږي په کوم مجلس کي چي يې د خاوند

کلام اوربدلی وي، یعني که له هغه مجلس څخه ولاړه سي یا په یو بل کار اخته سي، نو د هغې اختیار باطلیږي، او پر ما وراء د مجلس اختیار نه موقوف کیږي.

لېکن که چیري ښځي د خاوند کلام نه اوربدی، نو بیا چي په کوم مجلس کي ښځه د خاوند کلام واوري یا په کوم مجلس کي چي هغې ته خبر ورسیږي، نو د هغه مجلس اعتبار به کیږي؛ دلیل دادی چي أَمر بِالْیَد تملیک دی، ځکه چي د أَمْرُکِ بِیَدِکِ معنیٰ دا ده: إِنْ أَرَدْتِ الطَّلَاقَ فَأَمْرُكِ بِيَدِكِ (یعني که ته د طلاق اراده لرې نو ستا معامله ستا په لاس کي ده). لنډه دا چي په أمر بالید کي تملیک او تعلیق دواړه سته، او دا خبره ثابته ده چي تملیک د مجلس سره خاص وي پر ماوراء د مجلس نه موقوف کیږي او تعلیق پر ماوراء د مجلس موقوف کیږي، نو په أمر بِالْیَد کي د تملیک د معنیٰ تقاضا دا ده چي أمر بالید د مجلس سره خاص سي او د تعلیق د معنیٰ تقاضا دا ده چي د مجلس سره خاص نه سي، بلکي پر ما وراء د مجلس هم موقوف سي (لکه په إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ کي چي پر ما وراء د مجلس موقوف کیږي)، لهذا کله چي دلته تملیک او تعلیق هریو جلا تقاضا کوي، نو ځکه به حتی الإمکان د دواړو رعایت کیږي، او د دې رعایت غوره او بهتره صورت همدغه دی چي کله ښځه د خاوند کلام اوري، نو په دې صورت کي به د تملیک رعایت کیږي او د ښځي اختیار به فقط د مجلس سره خاص وي، او که ښځي د خاوند کلام نه اوربدی، نو په دې صورت کي به د تعلیق رعایت کیږي، او تر مجلس وروسته به هم هغې لره د طلاق اختیار پاته وي.

**ولايعتبر إلخ**: فرمایي چي د اختیار په پاتېدلو او نه پاتېدلو کي د خاوند مجلس معتبرنه دی. لهذا که خاوند ولاړ سي او ښځه ناسته وي، نو بیا هم د ښځي اختیار پاتیږي؛ دلیل دا دی چي کله خاوند ښځي ته اختیار ورکړي، نو اختیار د خاوند په حق کي لازم او ثابت سي، بیا خاوند نه هغه ختمولای سي او نه له هغه څخه رجوع کولای سي، د دې په خلاف په بیع کي د مشتري او بائع دواړو مجلس معتبر دی، لهذا د بیع معامله به فقط د مجلس سره خاص وي، او په بائع او مشتري کي چي هر یو هم د مجلس تر پوره کېدلو مخکي ولاړ سي، نو بیع باطلیږي.

**وإذا اعتبر إلخ**: فرمایي چي کله دا خبره ثابته سوه چي د اختیار په سلسله کي د ښځي مجلس معتبر دی، نو اوس دا په یاد لرئ! چي تر څو ښځه په هغه (د اختیار په) مجلس کي وي، د هغې اختیار به پاته وي، او که هر وخت ښځه له مجلس څخه ولاړه سي یا په مجلس کي دننه په یو بل کار مشغوله سي، نو په دې دواړو صورتونو کي د هغې اختیار ختمیږي، ځکه چي له مجلس څخه ولاړېدل د إعراض کولو علامه ده، او بل دا چي تر څو انسان په یو مجلس کي وي. د هغه مجلس خبري د ده په

ذهن کي ګرځي راګرځي، لېکن هر کله چي له مجلس څخه ولاړه سي، نو خيال او سوچ يې نورو شيانو ته واوړي، او ذهن يې منتشر سي، نو په دې وجه هم له مجلس څخه ولاړېدل د ښځي اختيار ختموي.

**بخلاف ما إذا مكثت إلخ:** فرمايي چي د متن له دې قول مَكَثَتْ يَوْمًا څخه تحديد مراد نه دی، بلکي که ښځه د اختيار په مجلس کي تر يوې ورځي زياته پاته سي، او په يو بل کار مشغول نه سي، نو هم د هغې اختيار پاتېږي.

**وقوله ما لم تأخذ إلخ:** او د تېر عبارت په متن کي له دې قول مَا لَمْ تَأْخُذْ فِيْ عَمَلٍ آخَر څخه هم مطلق عمل مراد نه دی، بلکي داسي عمل او کار ځني مراد دی کوم چي عليحده او جلا عمل وي او چي له هغه څخه دا معلومه سي چي ښځه له اختيار څخه إعراض کوي، لېکن که چيري ښځه فقط په هغه مجلس کي جامي واغوندي، يا د قرآن کريم په تلاوت يا په لمانځه يا په خوراک مشغوله سي، نو په دې شيانو سره د هغې اختيار نه باطلېږي، ځکه چي دا شيان د انساني ژوند خاصه او د ايمان يوه حصه ده.

## د "خيارِ مجلس" وضاحت

وَلَوْ كَانَتْ قَائِمَةً فَجَلَسَتْ او که ښځه ولاړه وي او [بيا] کښېني فَهِيَ عَلٰى خِيَارِهَا نو هغه پر خپل اختيار [پاته] ده لِأَنَّهُ دَلِيْلُ الْإِقْبَالِ ځکه چي کښېنستل د متوجه کېدلو دليل دی فَإِنَّ الْقُعُوْدَ أَجْمَعُ لِلرَّأْيِ ځکه ناسته د رايې لپاره زيات جمع کونکی دی [يعني په ناستي سره د انسان فکر او ذهن ډېر يو ځای کېږي] وَكَذَا إِذَا كَانَتْ قَاعِدَةً فَاتَّكَأَتْ أَوْ مُتَّكِئَةً فَقَعَدَتْ او همدارنګه [د ښځي اختيار پاتېږي] کله چي هغه ناسته وي او [بيا] تکيه [ځنګ] ولګوي يا يې تکيه کړې وي او [بيا] کښېني لِأَنَّ هٰذَا انْتِقَالٌ مِنْ جَلْسَةٍ إِلٰى جَلْسَةٍ ځکه چي دا له يوې ناستي [حالت] څخه بلي ناستي [حالت] ته نقل کېدل دي فَلَا يَكُوْنُ إِعْرَاضًا لهذا دا به [دليل د] إعراض نه وي كَمَا إِذَا كَانَتْ مُحْتَبِيَةً فَتَرَبَّعَتْ لکه [هغه صورت چي هم دليل د إعراض نه دی] کله چي ښځه د احتباء په ډول [يعني زنګنونه يې درلوي وي پر کوناټو] ناسته وي او [بيا] چارزانو کښېني قَالَ ﷺ: هٰذَا رِوَايَةُ الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا د جامع صغير روايت دی وَذُكِرَ فِيْ غَيْرِهِ: أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ قَاعِدَةً فَاتَّكَأَتْ او له جامع صغير څخه په علاوه [مبسوط] کي دا ذکر سوي دي: چي که ښځه ناسته وي او [بيا] هغه تکيه ولګوي لَا خِيَارَ لَهَا نو هغې له به اختيار نه وي لِأَنَّ الاتِّكَاءَ إِظْهَارُ التَّهَاوُنِ بِالْأَمْرِ ځکه چي تکيه لګول د أمر باليد د

سپکاوي [او لا پرواهي] څرګندول دي فَكَانَ إِعْرَاضًا نو دا به هم [دليل د] إعراض وي وَالْأَوَّلُ هُوَ الْأَصَحُّ [لیکن] اول قول زیات صحیح دی وَلَوْ كَانَتْ قَاعِدَةً فَاضْطَجَعَتْ او که ښځه ناسته وي او [بیا] پر اړخ پرېوځي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ نو په دې کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي وَلَوْ قَالَتْ: ادْعُوا لِي أَسْتَشِيرُهُ أَوْ شُهُودًا أُشْهِدُهُمْ او که ښځه ووایي: چي زه پلار راغواړم مشوره ورسره کوم یا ګواهان [را غواړم] هغوی ګواهان جوړوم فَهِيَ عَلَى خِيَارِهَا نو هغه به پر خپل اختیار [پاته] وي لِأَنَّ الِاسْتِشَارَةَ لِتَحَرِّي الصَّوَابِ ځکه چي مشوره اخيستل د صحيح [او غوره] رایي د لټون [او معلومولو] لپاره وي وَالْإِشْهَادَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْإِنْكَارِ او ګواه جوړول له انکار څخه د ځان ساتلو لپاره وي فَلَا يَكُونُ دَلِيلَ الْإِعْرَاضِ نو ځکه به دا د إعراض دلیل نه وي وَإِنْ كَانَتْ تَسِيرُ عَلَى دَابَّةٍ أَوْ فِي مَحْمَلٍ فَوَقَفَتْ او که ښځه پر یو سورلي یا په کجاوه کي روانه وي او [بیا] سورلي ودرېږي فَهِيَ عَلَى خِيَارِهَا نو [هم] هغه پر خپل اختیار [پاته] ده وَإِنْ سَارَتْ بَطَلَ خِيَارُهَا او که سورلي روانه سي نو د هغې خیار باطلېږي لِأَنَّ سَيْرَ الدَّابَّةِ وَوُقُوفَهَا مُضَافٌ إِلَيْهَا ځکه چي د سورلۍ روانېدل او د هغه درېدل د ښځي و طرف ته منسوب دي وَالسَّفِينَةُ بِمَنْزِلَةِ الْبَيْتِ او کښتۍ د کور په څېر ده لِأَنَّ سَيْرَهَا غَيْرُ مُضَافٍ إِلَى رَاكِبِهَا ځکه چي د کښتۍ روانېدل د سپور کس وطرف ته منسوب نه دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلَى إِيقَافِهَا آیا نه ګورې! چي [د کښتۍ] سپور د کښتۍ پر درولو قدرت نه لري وَرَاكِبُ الدَّابَّةِ يَقْدِرُ او پر سورلۍ سپور [د دې] قدرت لري.

**اللغات:** ﴿إِقْبَال﴾ د افعال مصدر دی: متوجه کېدل، مخ ور اړول، ﴿مُخْتَبِيَة﴾ د افتعال مؤنث اسم فاعل دی، إِخْتِبَاء هغه ناستي ته وايي چي انسان پر کوناټو کښيني او دواړي پښې ودروي او لاسونه پر را وګرځوي (لکه د ژور فکر او سوچ په وخت کي چي څرنګه خلک کښيني)، ﴿تَحَرِّي﴾ د تفعل مصدر دی: طلب الأحرٰى: د غوره شي لټون کول، تلاش او طلب کول، غور او فکر کول، ﴿صَوَاب﴾ صحیح والی، دراستي، راستي. ﴿مَحْمَل﴾ کجاوه، ﴿سَفِيْنَة﴾ کښتۍ (سمندري جهاز)، ﴿إِيْقَاف﴾ د افعال مصدر دی: روان شي درول (راګرځول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی خپلي ښځي ته په أَمْرُكِ بِيَدِكِ یا داسي نورو الفاظو سره د طلاق اختیار ورکړي، او په کوم وخت کي چي اختیار ورکړي، په هغه وخت کي ښځه ولاړه وي، او تر هغه وروسته کښېني، نو په دې سره د ښځي اختیار نه ختمېږي، دلیل دا دی چي کښېنستل د متوجه کېدلو دلیل

دی، ځکه چې د ناستې په حالت کې د يو شي په هکله غور او فکر کول دولاړې په نسبت بهتره او غوره دی، همدارنګه که ښځه ناسته وي، او تر اختيار ملاوېدلو (حاصلېدلو) وروسته تکيه ولګوي او څنګ ووهي، يا يې څنګ وهلی وي او تر اختيار وروسته کښيني، نو په دې صورتونو کې هم د هغې اختيار نه ختمېږي؛ دليل دا دی چې له يوه حالت څخه بل حالت ته نقل کېدل د إعراض دليل نه دی، او دا صورتونه داسې دي لکه ښځې چې د اختيار په وخت کې دواړه زنګنونه درولي وي (پر کوناټو) ناسته وي، او تر اختيار وروسته چارزانو کښېني، نو په دې سره د ښځې اختيار نه ختمېږي، لهذا په دغه مذکوره صورتونو کې به هم د هغې اختيار نه ختمېږي.

**قال ﷺ الخ**: فرمايي چې له يوه حالت څخه و بل حالت ته د انتقال په باره کې چې کوم حکم بيان سو، هغه د جامع صغير روايت دی، لېکن د مبسوط روايت دا دی چې که د اختيار په وخت کې ښځه ناسته وي، او تر اختيار وروسته څنګ او تکيه ولګوي، نو د هغې اختيار باطلېږي، ځکه چې تکيه او څنګ لګول د "اختيار" وطرف ته د توجه او التفات نه کولو دليل دی، نو ځکه به تکيه او څنګ لګول هم إعراض شمارل کېږي. لېکن زيات صحيح او معتبر د جامع صغير روايت دی.

**ولو كانت قاعدة الخ**: او که ښځه د اختيار په وخت کې ناسته وي، بيا تر اختيار وروسته پرېوځي، نو په دې باره کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: ① حسن بن زياد له هغه څخه دا روايت نقل کړی چې په دې صورت کې هم د ښځې اختيار نه باطلېږي، ② و حسن بن أبي مالک دا روايت نقل کړی دی چې د هغې اختيار باطلېږي، او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دی.

**ولو قالت الخ**: مسئله دا ده که د خاوند تر اختيار ورکولو وروسته ښځه ووايي چې زه خپل پلار راغواړم مشوره ور سره کوم يا څو کسان راولم ګواهان يې جوړوم (يا ته زما پلار را وغواړه! چې مشوره ور سره وکړم، يا ګواهان حاضر کړه!) نو په دې صورت کې هم د هغې اختيار نه باطلېږي، ځکه چې مشوره د صحيح او غوره رايې د معلومولو لپاره کېږي، او ګواهان ځکه درول کېږي چې خاوند بيا انکار ونه کړي، لهذا دا هم د څه إعراض دليل نه دی.

او که ښځه پر يو سورلۍ سپره وي روانه وي (مثلاً په آس... يا موټر کې سپره وي)، او تر اختيار ورکولو وروسته سورلي ودروي، نو تر څو چې هغه ولاړه وي، د هغې اختيار به پاته وي، لېکن کله چې هم روانه سي نو د هغې اختيار ختمېږي؛ ځکه چې د سورلۍ درول او روانول د سپاره کس (ښځې) وطرف ته منسوب کېږي، او د ښځې په روانېدلو او تللو سره اختيار باطلېږي، نو د سورلۍ په روانولو سره به هم باطلېږي.

**والسفينة الخ**: فرمايي چې کښتۍ د کور په حکم کې ده، يعني که کښتۍ روانه سي، نو د هغې اختيار نه باطلېږي، ځکه چې د کښتۍ روانېدل د سپاره کس وطرف ته نه منسوب کېږي، همدا وجه ده چې په کښتۍ کې هر سپور کس نه کښتۍ چلولی سي، او نه يې درولی سي، لېکن د سورلۍ پر درولو او رانولو سپور کس قادر وي، نو ځکه به د کښتۍ په روانېدلو سره اختيار نه ختمېږي.

## د "طَلِّقِيْ نَفْسَكِ" بحث

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ او كوم څوک چې خپلې ښځې ته ووايي: ته خپل ځان ته طلاق ورکړه! وَلَا نِيَّةَ لَهُ أَوْ نَوَى وَاحِدَةً او د هغه کس هيڅ نه وي يا يې ديوه [طلاق] نيت کړی وي فَقَالَتْ: طَلَّقْتُ نَفْسِيْ نو ښځه ووايي: ما خپل ځان ته طلاق ورکړی فَهِيَ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو دا يو رجعي طلاق دی وَإِنْ طَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا او که ښځه خپل ځان ته درې طلاقه ورکړي وَقَدْ أَرَادَ الزَّوْجُ ذٰلِكَ او خاوند [هم] د دې اراده کړې وي وَقَعْنَ عَلَيْهَا نو درې سره [طلاقونه] پر ښځې واقع کيږي وَهٰذَا لِأَنَّ قَوْلَهُ طَلِّقِيْ مَعْنَاهُ: اِفْعَلِيْ فِعْلَ التَّطْلِيْقِ ځکه چې د خاوند د دې قول طَلِّقِيْ معنیٰ ده: اِفْعَلِيْ فِعْلَ الطَّلَاقِ اد طلاق کار وکړه] وَهُوَ اسْمُ جِنْسٍ او طلاق [مصدر] اسم جنس دی فَيَقَعُ عَلَى الْأَدْنٰى مَعَ احْتِمَالِ الْكُلِّ كَسَائِرِ أَسْمَاءِ الْأَجْنَاسِ نو د نورو اسماء جنس په څير هغه [لفظ د طلاق] هم د کُل [ثَلَاث] د احتمال سره پر ادنی [وَاحِدَة] واقع کيږي فَلِهٰذَا تَعْمَلُ فِيهِ نِيَّةُ الثَّلَاثِ او له همدې وجهې به په هغه کې د دريو [طلاقو] نيت عمل [أثر] کوي وَيَنْصَرِفُ إِلَى الْوَاحِدَةِ عِنْدَ عَدَمِهَا او د نيت د نشتوالي په وخت کې به د يوه [طلاق] وطرف ته راجع کيږي وَتَكُوْنُ الْوَاحِدَةُ رَجْعِيَّةً او [هغه] يو [طلاق] به رجعي وي لِأَنَّ الْمُفَوَّضَ إِلَيْهَا صَرِيْحُ الطَّلَاقِ ځکه چې سپارل سوی و ښځې ته صريح طلاق دی وَهُوَ رَجْعِيٌّ او هغه رجعي [طلاق] دی وَلَوْ نَوَى الثِّنْتَيْنِ او که هغه په دې سره د دوو [طلاقو] نيت وکړي لَا يَصِحُّ نو نه صحيح کيږي لِأَنَّهُ نِيَّةُ الْعَدَدِ ځکه چې دا د عدد [شمېر] نيت دی إِلَّا إِذَا كَانَتِ الْمَنْكُوْحَةُ أَمَةً خو دا چې [د هغه] منکوحه ښځه مينځه وي لِأَنَّهُ جِنْسٌ فِيْ حَقِّهَا ځکه چې دوه [طلاقه] د مينځې په حق کې جنس [فردِ حکمي] دی.

**اللغات:** ﴿سَائِرِ﴾ ټوله. ﴿مُفَوَّض﴾ د تفعيل اسمِ مفعول دی: سپارل سوی شی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که خاوند خپلې ښځې ته طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ووايي او په دې سره هيڅ نيت نه وکړي، يا ديوه طلاق نيت وکړي، بيا ښځه په جواب کې طَلَّقْتُ نَفْسِيْ ووايي، نو يو طلاق رجعي واقع کيږي، او که ښځه پر خپل ځان درې طلاقه واقع کړي او خاوند هم د دريو طلاقو نيت کړی وي، نو بيا پر هغې درې طلاقه واقع کيږي، د دې دواړو صورتونو دليل دا دی چې خاوند دا قول طَلِّقِيْ (يعني دامر صيغه) مصدر لره متضمن ده او د خاوند د کلام معنیٰ دا ده: اِفْعَلِيْ فِعْلَ الطَّلَاقِ. او تاسو ته معلومه ده چې مصدر اسمِ جنس دی، لهذا څرنګه چې په نورو اسماء اجناسو کې د فرد حقيقي او فردِ حکمي دواړو احتمال وي، همداسې به دلته هم د فرد حقيقي (يوه طلاق) او فردي حکمي (دريو طلاقو) دواړو احتمال وي، که چيرې خاوند نيت کړی نه وي، نو په دې صورت کې به فردِ حقيقي يعني يو طلاق واقع کيږي، او هغه به هم رجعي وي، ځکه چې ښځې ته د طَلِّقِيْ په ذريعه طلاق سپارل سوی دی کوم چې له صريحو الفاظو څخه دی، او په صريحو الفاظو سره طلاق رجعي واقع کيږي، او که خاوند د دريو طلاقو نيت کړی وي، نو بيا به فردِ حکمي يعني درې طلاقه واقع کيږي، او څرنګه چې په دې (طَلِّقِيْ) کې د فردِ حکمي احتمال هم سته، نو ځکه به د دريو نيت کول هم صحيح او مؤثر (اغېزمن) وي.

**ولو نوی الثنتين إلخ**: او که خاوند په دې سره د دوو طلاقو نيت وکړي، نو د هغه نيت صحيح نه دی؛ ځکه چې دوه عدد دی، او په مصدر سره د عدد نيت کول او عدد مرادول صحيح نه دي (لکه مخکې چې په دې هکله بحث تېر سو)، ليکن که د هغه ښځه مينځه وي، نو په دې سره د دوو طلاقو نيت کول هم صحيح دي، ځکه چې د نبوي فرمان طَلَاقُ الأَمَةِ ثِنْتَيْنِ په وجه دوه طلاقه د مينځې په حق کې جنس يعني فردِ حکمي دي، او په مصدر سره د فردِ حکمي نيت کول صحيح دی (كما في الزوجة الحُرَّةِ).

## د "مشيت" په جواب کې د ښځې له طرفه ځيني ويل سوي الفاظ

**وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ** او که [خاوند] ښځې ته ووايي: ته خپل ځان ته طلاق ورکړه **فَقَالَتْ: أَبَنْتُ نَفْسِيْ** او ښځه ووايي: ما خپل ځان بائنه کړی **طُلِّقَتْ** نو هغه مطلقه ګرځي **وَلَوْ قَالَتْ: قَدْ اخْتَرْتُ نَفْسِيْ** او که ښځه ووايي: ما خپل ځان اختيار کړی **لَمْ تَطْلُقْ** نو هغه طلاقيږي **لِأَنَّ الْإِبَانَةَ مِنْ أَلْفَاظِ الطَّلَاقِ** ځکه چې إبانت [بائنه کول] د طلاقو له الفاظو څخه دی **أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: أَبَنْتُكِ يَنْوِي بِهِ**

الطَّلَاقَ آيا ته نه گورې! چې که خاوند د طلاق په نيت خپلې ښځې ته ووايي: ما ته بائنه کړې أَوْ قَالَتْ: أَبَنْتُ نَفْسِي يا ښځه ووايي: ما خپل ځان بائنه کړې فَقَالَ الزَّوْجُ: قَدْ أَجَزْتُ ذٰلِكَ او خاوند [ورته] ووايي: ما د دې اجازه درکړه [يعني زما له طرفه اجازه ده] بَانَتْ نو ښځه بائنه کيږي فَكَانَتْ مُوَافَقَةً لِلتَّفْوِيضِ فِي الْأَصْلِ لهذا إبانت [بائنه کول] په أصل طلاق کې د تفويض مواق سو إِلَّا أَنَّهَا زَادَتْ فِيهِ وَصْفًا ليکن ښځې په دې کې يو وصف زيات کړی وَهُوَ تَعْجِيلُ الْإِبَانَةِ او هغه [وصف] په إبانت کې تلوار کول دي فَيَلْغُو الْوَصْفُ الزَّائِدُ وَيَثْبُتُ الْأَصْلُ لهذا زائد [اضافي] وصف به لغو کيږي او أصل [طلاق] به ثابتيږي كَمَا إِذَا قَالَتْ: طَلَّقْتُ نَفْسِي تَطْلِيقَةً بَائِنَةً لکه په هغه صورت کې چې [يو طلاق واقع کيږي] کله چې ښځه ووايي: ما خپل ځان ته يو بائن طلاق ورکړی وَيَنْبَغِي أَنْ تَقَعَ تَطْلِيقَةٌ رَجْعِيَّةٌ او مناسب دا ده چې طلاقِ رجعي واقع سي بِخِلَافِ الِاخْتِيَارِ لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَلْفَاظِ الطَّلَاقِ په خلاف د اختيار، ځکه چې هغه د طلاق له الفاظو څخه نه دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: اخْتَرْتُكِ أَوِ اخْتَارِي يَنْوِي الطَّلَاقَ آيا نه گورې که خاوند د طلاق په نيت سره خپلې ښځې ته ووايي: ما ته اختيار کړې [اما ته مختاره کړې]، يا ته [يې] اختيار کړه لَمْ يَقَعْ نو [هيڅ طلاق] نه واقع کيږي وَلَوْ قَالَتْ ابْتِدَاءً: اخْتَرْتُ نَفْسِي او که ښځه ابتداءً ووايي [يعني ښځه اول په کلام شروع وکړي او ووايي]: ما خپل ځان اختيار کړی او خاوند [ورته] ووايي: ما اجازه در کړې ده لَا يَقَعُ شَيْءٌ نو هيڅ شی نه واقع کيږي إِلَّا أَنَّهُ عُرِفَ طَلَاقًا بِالْإِجْمَاعِ إِذَا حَصَلَ جَوَابًا لِلتَّخْيِيرِ خو [د صحابه وو] په اجماع سره دا معلومه سوه چې اختيار [اخْتَرْتُ نَفْسِيْ] طلاق دی کله چې د تخيير [اِخْتَارِيْ] په جواب کې واقع سي وَقَوْلُهُ طَلِّقِي نَفْسَكِ لَيْسَ بِتَخْيِيرٍ او د خاوند دا قول: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ تخيير نه دی فَيَلْغُو نو ځکه به لغو کيږي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهُ لَا يَقَعُ شَيْءٌ بِقَوْلِهَا: أَبَنْتُ نَفْسِي او له امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ څخه روايت دی چې د ښځې په دې قول: أَبَنْتُ نَفْسِيْ سره هيڅ شی نه واقع کيږي لِأَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ مَا فَوَّضَ إِلَيْهَا ځکه چې [دلته] ښځې د هغه شي په غير [علاوه] سره راتگ وکړی کوم چې خاوند هغې ته سپارل سوی دی [يعني خاوند چې کوم طلاق رجعي ښځې ته سپارلی وو، ښځې له هغه څخه بغير بل شی يعني طلاقِ بائن اختيار کړی] إِذِ الْإِبَانَةُ تُغَايِرُ الطَّلَاقَ ځکه چې إبانت د طلاق مغاير دی [او له طلاق څخه بېل او عليحده دی].

**اللغات:** ﴿أَبَـنْـتُ﴾ د افعال له باب څخه د واحد متکلم ماضي صيغه ده: بائنه کول، جلا کول. ﴿أَجَزْتُ﴾ د افعال له باب څخه مخکني صيغه ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول. ﴿تَخْيِير﴾ د تفعيل مصدر دی: اختيار ورکول.

**تشريح:** په دې عبارت کې د "مشيت" په هکله بحث کيږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ووايي، او ښځه په جواب کې أَبَـنْـتُ نَفْسِيْ ورته ووايي، نو په دې صورت کې پر ښځې يو طلاقِ رجعي واقع کيږي، او که ښځه په جواب کې اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ ورته ووايي، نو طلاق نه واقع کيږي، د دې دواړو په مينځ کې وجه د فرق دا ده چې إبانت د طلاق له الفاظو څخه يو لفظ دی، همدا وجه ده که خاوند ښځې ته د طلاق په نيت أَبَنْتُكِ ووايي، يا ښځه أُبَنْتُ نَفْسِيْ ووايي، او خاوند په جواب کې أَجَزْتُ ذٰلِکَ ورته ووايي، نو په دې سره ښځه بائنه ګرځي، نو معلومه سوه چې دإبانت لفظ د طلاق له الفاظو څخه دی، لهذا د ښځې کلام أَبَنْتُ نَفْسِي د خاوند د کلام طَلِّقِيْ نَفْسَكِ سره په اصل طلاق کې موافق سو، خو ښځې په خپل جواب کې يو زائد وصف يعني بينونت هم اضافه کړی، نو اصل طلاق (طلاقِ رجعي) به ثابتيږي، او زائد وصف به لغو کيږي، او دا صورت داسې دی لکه ښځه چې د طَلِّقِيْ نَفْسَكِ په جواب کې طَلَّقْتُ نَفْسِيْ تَطْلِيْقَةً بَائِنَةً ووايي، نو په دې صورت کې هم طلاقِ رجعي واقع کيږي (ځکه چې په أصل کې خو د ښځې جواب د خاوند د کلام سره موافق دی، مګر په وصف کې مخالف دی، لهذا أصل به اخيستل کيږي او وصف به د ښځې پر مخ وهل کيږي).

**بخلاف الاختيار إلخ:** په خلاف د اختيار، ځکه چې لفظ د اختيار د طلاق له الفاظو څخه نه دی، همدا وجه ده که خاوند خپلې ښځې ته د طلاق په نيت اِخْتَرْتُكِ يا اِخْتَارِيْ ووايي، يا ښځه ابتداءً اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ ووايي، او خاوند په جواب کې أَجَزْتُ ورته ووايي، نو په دې ټولو صورتونو کې طلاق نه واقع کيږي، ځکه د اختيار لفظ د صحابه وو په اجماع سره خلافُ القياس هغه وخت طلاق ګرځي کله چې د تخيير په جواب کې واقع سي، يعني خاوند اِخْتَارِيْ ورته ووايي، او ښځه په جواب کې اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ ووايي، او څرنګه چې دلته د خاوند دا قول طَلِّقِيْ نَفْسَكِ د تخيير له قبيلې څخه نه دی، نو د خاوند د کلام (طَلِّقِيْ نَفْسَكِ) سره به د نه موافق کېدلو په وجه د ښځې کلام (اِخْتَرْتُ نَفْسِيْ) لغو کيږي.

**ومن أبي حنيفة إلخ:** او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې سلسله کې دا نقل سوې دې چې که د طَلِّقِیْ نَفْسَکِ په جواب کې ښځه أَبَنْتُ نَفْسِیْ ووايي، نو په دې سره هم طلاق نه واقع کيږي. ځکه په دې صورت کې هم د ښځې کلام د خاوند د کلام سره نه موافق کيږي، ځکه چې د خاوند ورسپارلی طلاق دی، او ښځې واقع کړی ابانت دی، او ښکاره خبره ده چې إبانت د طلاق مغاير دی. ځکه چې إبانت د طلاق د لفظ څخه بغير هم واقع کېدای سي، لهذا د خاوند او ښځې په کلام کې د مطابقت نه راتلو په وجه به د ښځې کلام لغو کيږي، او پر ښځې به هيڅ طلاق نه واقع کيږي.

## له "مشيت" څخه وروسته د رجوع کولو بيان

| |
|---|
| **وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِیْ نَفْسَكِ** او که [خاوند] ښځې ته ووايي: خپل ځان ته طلاق ورکړه [يعني د طلاق کار ښځې ته وسپاري] **فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَنْهُ** نو خاوند ته دا حق نسته چې له هغه څخه رجوع وکړي **لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْيَمِيْنِ** ځکه چې په دې [سپارلو] کې د يمين معنیٰ سته **لِأَنَّهُ تَعْلِيْقُ الطَّلَاقِ بِتَطْلِيْقِهَا** ځکه چې دا د ښځې پر طلاق ورکولو طلاق معلق کول دي **وَالْيَمِيْنُ تَصَرُّفٌ لَازِمٌ** او يمين يو لازمي تصرّف دی **وَلَوْ قَامَتْ عَنْ مَجْلِسِهَا** او که [په دې صورت کې] ښځه له مجلس څخه ولاړه سي **بَطَلَ** نو [مشيت] باطليږي **لِأَنَّهُ تَمْلِيْكٌ** ځکه چې دا تمليک دی **بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ لَهَا: طَلِّقِیْ ضَرَّتَكِ** په خلاف د هغه صورت کله چې [خاوند] ښځې ته [داسې] ووايي چې: ته خپل بَنْ ته طلاق ورکړه **لِأَنَّهُ تَوْكِيْلٌ وَإِنَابَةٌ** ځکه چې دا وکيل او نائب جوړول دي **فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ** نو ځکه به پر مجلس نه منحصر کيږي **وَيَقْبَلُ الرُّجُوْعَ** او رجوع به [هم] قبلوي. |

**اللغات:** ﴿ضَرَّة﴾ بَنْ (ديوه سړي دوې ښځې يوه د بلې بَن ده)، ﴿إِنَابَة﴾ د افعال مصدر دی: نائب جوړول (قائم مقام کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته طَلِّقِیْ نَفْسِکِ ووايي او د ښځې پر خوښه او مشيت طلاق موقوف کړي، نو اوس خاوند لره دا حق نسته چې له خپل قول څخه رجوع وکړي؛ دليل دا دی چې خاوند د طلاق کار ښځې ته سپارلی دی يعني په طَلِّقِیْ نَفْسَکَ سره يې د طلاق وقوع د ښځې پر إيقاع معلق کړې ده او دا د يمين مفهوم او معنیٰ لري، او يمين لازمي او ضروري تصرف دی چې نه له هغه څخه خلاصون سته او نه په هغه کې د رجعت گنجائش سته. لهذا دلته به هم خاوند لره د رجوع کولو حق او اختيار نه وي.

**ولو قامت الخ**: فرمايي که د خاوند د طَلِّقِيْ نَفْسَكِ تر ويلو وروسته ښځه له مجلس څخه ولاړه سي او هيڅ جواب نه ورکړي، نو د خاوند له طرفه ورکول سوى مشيت باطليږي؛ ځکه چي دا تمليک دی، او تمليکات پر مجلس موقوف او منحصر کيږي، لهذا دلته به هم مشيت پر مجلس منحصر وي، او د ولاړېدلو او تللو په وجه به سمدستي مشيت او اختيار باطليږي.

د دې په خلاف که خاوند ښځي ته داسي ووايي چي: ته خپل بَنْ ته طلاق ورکړه، او تر جواب ورکولو مخکي ښځه له مجلس څخه ولاړه سي، نو په دې سره د ښځي مشيت نه باطليږي؛ ځکه چي په دې صورت کي وبل چا ته د طلاق ورکولو معامله ده کوم چي د توکيل او إنابت څخه عبارت ده (يعني دلته خاوند خپله يوه ښځه بلي ښځي ته د طلاق ورکولو وکيله او نائبه جوړې کړې ده)، او توکيل يا إنابت پر مجلس نه موقوف کيږي، بلکي په ما وراء د مجلس کي هم د هغه أثر قائم او باقي وي، او بيا دا له هغه اُمورو څخه دی کوم چي رجعت هم قبلوي، نو ځکه به د مجلس څخه تر ولاړېدلو وروسته د ښځي وکالت او نيابت هم پاتيږي، او خاوند لره به دا حق هم حاصل وي چي له خپل قول څخه رجوع وکړي.

## د "مشيت" يو څو صورتونه

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ مَتَى شِئْتِ او که [خاوند] ښځي ته وايي: کله چي ته وغواړې نو خپل ځان ته طلاق ورکړه فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ نو ښځي لره [دا] اختيار سته چي په مجلس کي [دننه] او تر مجلس وروسته [په دواړو ځايو کي] خپل ځان ته طلاق ورکړي لِأَنَّ كَلِمَةَ مَتَى عَامَّةٌ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا ځکه چي کلمه د مَتَى په ټولو وختونو کي عام ده [يعني ټولو وختونو لره شامل ده] فَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ: فِي أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ نو داسي سو لکه [خاوند] چي [داسي] ووايي: په کوم وخت کي چي ته وغواړې [ځان ته طلاق ورکړه] وَإِذَا قَالَ لِرَجُلٍ: طَلِّقْ امْرَأَتِي او کله چي [خاوند] يو سړي ته ووايي چي: زما ښځي ته طلاق ورکړه فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ نو هغه سړي لپاره په مجلس کي او تر مجلس وروسته [په دواړو ځايو کي] د طلاق ورکولو اختيار سته وَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ او خاوند لره دا اختيار [هم] سته چي [د خپل قول څخه] رجوع وکړي لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ وَاسْتِعَانَةٌ ځکه چي دا وکيل جوړول او د مدد طلب کول [مرسته اخيستل] دي فَلَا يَلْزَمُ وَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ لهذا نه به لازميږي او نه به پر مجلس منحصر کيږي بِخِلَافِ قَوْلِهِ لِامْرَأَتِهِ: طَلِّقِي نَفْسَكِ په خلاف د خاوند د دې قول وخپلي ښځي

ته: خپل ځان ته طلاق ورکړه لِأَنَّهَا عَامِلَةٌ لِنَفْسِهَا ځکه چې [په دې صورت کې] ښځه د خپل ځان لپاره عمل کونکې ده فَكَانَ تَمْلِيكًا لَا تَوْكِيلًا نو دا به تمليک وي، نه توکيل وَلَوْ قَالَ لِرَجُلٍ: طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ او که [خاوند] يو سړي ته ووايي: که ته وغواړې نو [زما] ښځي ته طلاق ورکړه فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ خَاصَّةً نو هغه سړي لپاره خاص په مجلس کې طلاق ورکول جائز دي وَلَيْسَ لِلزَّوْجِ أَنْ يَرْجِعَ او [په دې صورت کې] خاوند لره [د خپل قول څخه] د رجوع کولو حق نسته وَقَالَ زُفَرُ: هٰذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا او اول صورت [دواړه] سره برابر دي لِأَنَّ التَّصْرِيحَ بِالْمَشِيئَةِ كَعَدَمِهِ ځکه چې [دلته] د مشيت صراحت کول د صراحت نه کولو په څير دی [يعني مشيت ذکر او نه ذکر کول دواړه سره برابر دي] لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ عَنْ مَشِيئَتِهِ ځکه چې انسان په خپل مشيت [خوښه] سره تصرف کوي فَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ نو د بيع د وکيل په څير سو إِذَا قِيلَ لَهُ: بِعْهُ إِنْ شِئْتَ کله چې هغه ته وويل سي: که ته وغواړې [او ستا خوښه وي] نو دا [شی] خرڅ کړه! وَلَنَا أَنَّهُ تَمْلِيكٌ او زموږ دليل دا دی: چې [د خاوند] دا قول تمليک دی لِأَنَّهُ عَلَّقَهُ بِالْمَشِيئَةِ ځکه چې خاوند دغه قول پر مشيت معلق کړی دی وَالْمَالِكُ هُوَ الَّذِي يَتَصَرَّفُ عَنْ مَشِيئَتِهِ او مالک هغه دی کوم چې په خپل مشيت [خوښه] سره تصرف کوي وَالطَّلَاقُ يَحْتَمِلُ التَّعْلِيقَ او طلاق د تعليق احتمال لري بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّهُ لَا يَحْتَمِلُهُ ځکه چې بيع د تعلق احتمال نه لري.

**اللغات:** ﴿إِسْتِعَانَة﴾ د استفعال مصدر دی: مرسته غوښتل، د مدد طلب کول، مرسته اخيستل، ﴿تَصْرِيح﴾ د تفعيل مصدر دی: په وضاحت سره ذکر کول. ﴿بِعْ﴾ د ضرب له باب څخه د أمر صيغه ده: خرڅول، بيع کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې د "مشيت" په هکله څو مسئلې بيان سوي دي، چې هغه به انشاء الله په ترتيب ستاسو په مخ کي ذکر سي: (١)... اوله مسئله دا ده که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ مَتَىٰ شِئْتِ (کله چې ستا خوښه سي ځان ته طلاق ورکړه)، نو ښځي لره دا اختيار سته چې په دغه مجلس کې ځان ته طلاق ورکړي، يا تر مجلس وروسته ځان ته طلاق ورکړي؛ دليل دا دی چې کلمه د مَتَىٰ عام، ټولو اوقاتو ته شامل او داخل ده، لهذا دا جمله داسي سوه لکه خاوند چې ښځي ته

وواييي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ فِيْ وَقْتٍ شَاءَ، نو د عمومُ الوقت په وجه به ښځي ته هر وخت اختيار حاصل وي. که په مجلس کي ځان ته طلاق ورکوي يا تر مجلس وروسته.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که يو خاوند يو سړي ته داسي وواييي: طَلِّقْ إِمْرَأَتِيْ (زما ښځه طلاق کړه)، نو د دې سړي (وکيل) لپاره اختيار دی که په هغه مجلس کي ښځي ته طلاق ورکوي يا تر مجلس وروسته، او خاوند لره د خپل قول څخه رجوع کول هم جائز دي؛ دليل دا دی چي دلته خاوند په طَلِّقْ إِمْرَأَتِيْ سره بل سړی د طلاق ورکولو وکيل جوړ کړی دی، او د طلاق په إيقاع (واقع کولو) کي يې له هغه څخه مدد غوښتی دی، او توکيل نه پر مجلس منحصر کيږي او نه د انسان پر ذمه لازميږي. نو ځکه به وکيل لره اختيار وي که په مجلس کي طلاق ورکوي او که تر مجلس وروسته، او خاوند لره به د رجوع اختيار وي.

د دې په خلاف که خاوند خپلي ښځي ته طَلِّقِيْ نَفْسَكِ وواييي، نو د ښځي دا اختيار د مجلس سره خاص کيږي، او په دې صورت کي خاوند لره د رجوع حق نسته، د دې دواړو په مينځ کي د فرق وجه دا ده چي د خاوند دا قول طَلِّقِيْ نَفْسَكِ تمليک دی، ځکه چي دلته ښځه خپل د ځان لپاره عمل کوي، او وکيل هغه چا ته وايي چي د بل چا لپاره عمل کوي، او مخکي دا خبره ذکر سوه چي د تمليک په صورت کي خاوند لره د رجوع حق او اختيار نه پاتيږي، او دا خبره هم تېره سوه چي تمليک پر مجلس موقوف او منحصر کيږي.

(۳)... دريمه مسئله دا ده که يو خاوند يو سړي ته داسي ووېل: طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ (زما ښځي ته طلاق ورکړه که چيري ته وغواړې)، نو په داسي صورت کي د دې سړي (وکيل) لپاره فقط په مجلس کي د طلاق ورکولو اختيار سته، نه تر مجلس وروسته، او خاوند لره د خپل قول څخه د رجوع کولو حق هم نسته.

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي دا قول طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ او مخکنی قول طَلِّقْ إِمْرَأَتِيْ دواړه په حکم کي برابر دي؛ دليل دا دی چي مشيت (إِنْ شِئْت) صراحتاً ذکر کول او نه ذکر کول دواړه سره برابر دي، ځکه خاوند چي کوم سړی وکيل جوړ کړی دی، ښکاره خبره ده چي هغه د تصرف أهل دی او هغه په خپل مشيت (خوښی) سره تصرف کوي، نو په دې وجه د مشيت ذکر او نه ذکر کول دواړه سره برابر دي، لکه څرنګه چي د بيع په وکالت کي هم د مشيت ذکر کول او نه ذکر کول دواړه برابر دي. يعني که يو څوک بل سړی د يو شي د خرڅولو وکيل جوړ کړي او داسي ورته وواييي: بِعْهُ إِنْ شِئْتِ. نو په دې (بيع) کي د مشيت ذکر کول او نه ذکر کول دواړه برابر دي، همدارنګه په دې کي توکيل د مجلس سره

نه مقيد كيږي، او مؤكل لره د رجوع حق هم حاصليږي، نو همداسي به دلته هم د طلاق وركولو اختيار د مجلس سره نه مقيد كيږي، او مؤكل يعني خاوند لره به د خپل قول څخه د رجوع كولو اختيار هم حاصل وي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي دويم قول طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ يو داسي تمليک دی چي په هغه کي د تعليق معنیٰ هم سته، نو د تمليک د معنیٰ په اعتبار سره به دا اختيار د مجلس سره مقيد كيږي. او د تعليق (يمين) د معنیٰ په اعتبار سره به دا تصرف لازميږي، او خاوند لره به د خپل قول څخه د رجوع هيڅ حق او اختيار حاصل نه وي.

والطلاق يحتمل إلخ: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د قياس جواب وركوي، حاصل د جواب دا دی چي طلاق پر بيع قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په طلاق کي د تعليق احتمال سته، لېکن په بيع کي د تعليق هيڅ احتمال نسته، لهذا كله چي د تعليق په احتمال کي د طلاق او بيع تر مينځ مغايرت او فرق سته، نو يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

## د "مشيت" يو څو صورتونه

وَلَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا او كه [خاوند] ښځي ته ووايي چي: ته خپل ځان ته درې طلاقه وركړه! فَطَلَّقَتْ وَاحِدَةً [لېكن] هغه [خپل ځان ته] يو طلاق وركړي فَهِيَ وَاحِدَةٌ نو هغه يو طلاق دی [يعني په دې صورت کي پر ښځي يو طلاق واقع كيږي] لِأَنَّهَا مَلَكَتْ إِيقَاعَ الثَّلَاثِ ځکه چي ښځه د درېو طلاقو د واقع كولو مالكه سوه فَتَمْلِكُ إِيقَاعَ الْوَاحِدَةِ ضَرُورَةً نو په بديهي توګه به د يوه طلاق د واقع كولو [هم] مالكه وي [يعني كله چي د درېو طلاقو مالكه سوه، نو د هغه په ضمن کي به د يوه طلاق هم مالكه وي]

وَلَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً او كه [خاوند] ښځي ته ووايي: ته خپل ځان ته يو طلاق وركړه فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا [لېكن] ښځي خپل ځان ته درې طلاقه وركړي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [*] نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هيڅ شی نه واقع كيږي وَقَالَا: تَقَعُ وَاحِدَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي يو طلاق واقع كيږي لِأَنَّهَا أَتَتْ بِمَا مَلَكَتْهُ وَزِيَادَةً ځکه چي ښځي د زيات [او اضافي] سره په هغه شي راتک وكړی د كوم چي ښځه مالكه سوه فَصَارَ كَمَا إِذَا طَلَّقَهَا الزَّوْجُ أَلْفًا نو داسي سو

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله (فتح القدير ج:٣، ص:٤٣١)، وكذا في الدر المختار (ج:٢، ص:٥٢٩). [القول الراجح ج:١، ص:٣٢٨]

لکه خاوند چي ښځي ته زر طلاقه ورکړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّهَا أَتَتْ بِغَيْرِ مَا فُوِّضَ إِلَيْهَا د امام صاحب دليل دا دی: چي ښځي په هغه شي راتګ وکړی کوم چي يې هغې ته سپارلی نه دی فَكَانَتْ مُبْتَدِئَةً نو ښځه به [په خپل کلام] شروع کونکې وي [يعني ښځه به ابتداءً خپل ځان ته طلاق ورکونکې وي] وَهٰذَا لِأَنَّ الزَّوْجَ مَلَّكَهَا الْوَاحِدَةَ او دا ځکه چي [دلته] خاوند ښځي [فقط] د يوه طلاق مالکه جوړې کړې ده وَالثَّلَاثُ غَيْرُ الْوَاحِدَةِ او درې له يوه ځخه بغير [او عليحده] دی لِأَنَّ الثَّلَاثَ اسْمٌ لِعَدَدٍ مُرَكَّبٍ مُجْتَمِعٍ ځکه چي درې د مرکب [او] مجتمع عدد نوم دی وَالْوَاحِدَةُ فَرْدٌ لَا تَرْكِيبَ فِيهِ او يو [عدد] فرد دی چي په هغه کي ترکيب نسته فَكَانَتْ بَيْنَهُمَا مُغَايِرَةٌ عَلَى سَبِيلِ الْمُضَادَّةِ لهذا د يوه او دريو په مينځ کي به د تضاد په توګه مغايرت وي بِخِلَافِ الزَّوْجِ لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ بِحُكْمِ الْمِلْكِ په خلاف د خاوند، ځکه چې هغه د ملکيت په حکم سره تصرف کوي [يعني ځکه چي هغه د خپل ملکيت په اعتبار سره تصرف کوي] وَكَذَا هِيَ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى او همدارنګه ښځه هم په اوله مسئله کي [د ملکيت په حکم تصرف کونکې ده] لِأَنَّهَا مَلَكَتِ الثَّلَاثَ ځکه چي [هلته] هغه د دريو [طلاقو] مالکه سوه أَمَّا هٰهُنَا لَمْ تَمْلِكُ الثَّلَاثَ لېکن دلته هغه د دريو [طلاقو] مالکه نه سوه وَمَا أَتَتْ بِمَا فُوِّضَ إِلَيْهَا او کوم شی چي [دلته] ښځي ته سپارل سوی وو هغه يې نه راوړی [يعني هغه يې پوره نه کړی] فَلَغَا نو ځکه [د هغې تصرف] الغو سو.

**اللغات:** ﴿إِيْقَاع﴾ د افعال مصدر دی: واقع کول، ﴿فُوِّضَ﴾ د تفعيل ماضي مجهوله ده: سپارل، ﴿مَلَّكَ﴾ بل څوک ديو شي مالک جوړول.

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (١)... د اولي مسئلې حاصل دا دی چي که خاوند خپلي ښځي ته د دريو طلاقو د إيقاع اختيار ورکړي (طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ثَلَاثًا)، او ښځه پر خپل ځان يو طلاق واقع کړي، نو په دې صورت کي يو طلاق واقع کيږي؛ دليل دا دی چي کله ښځه د دريو طلاقو مالکه ده، نو د دريو په ضمن کي به د يوه طلاق هم مالکه وي.

(٢)... دويمه مسئله د اولي مسئلې برعکس ده، حاصل يې دا دی چي که خاوند خپلي ښځي ته د يوه طلاق اختيار ورکړي (طَلِّقِيْ نَفْسَكِ وَاحِدَةً)، او ښځه بيداري وکړي پر خپل ځان درې طلاقه واقع کړي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هيڅ طلاق نه واقع کيږي، همدا د امام زفر او

امام مالک قول دی، او د صاحبينو په نيز يو طلاق واقع کيږي، همدا د امام شافعي او امام احمد قول دی.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې خاوند دا ښځه فقط د يوه طلاق د واقع کولو مالکه جوړه کړې ده. لېکن ښځې د خپل ځان له طرفه پر هغه دوه طلاقه نور اضافه کړل، نو دا اضافه به لغو کيږي، او څرنګه چې ښځه فقط د يوه طلاق مالکه جوړه سوې ده، نو فقط هغه يو طلاق به واقع کيږي، او دا مسئله داسې ده لکه خاوند چې خپلې ښځې ته زره (۱۰۰۰) طلاقه ورکړي، نو په دې صورت کې پر ښځې فقط درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چې خاوند فقط د دريو طلاقو مالک دی، او پاته (۹۹۷) طلاقونه به لغو کيږي، صاحب د بنايې او عنايې د دې مسئلې يو بل ښه مثال داسې بيان کړی دی چې دا مسئله داسې ده لکه خاوند چې ښځې ته ووايي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ، او ښځه خپل ځان ته هم طلاق ورکړي او خپل بَنْ ته هم طلاق ورکړي، نو په دې صورت کې پر ښځې خپل طلاق واقع کيږي، ځکه چې هغه خپل د طلاق مالکه ده، لېکن د هغې پر بَنْ طلاق نه واقع کيږي، ځکه چې هغه د دې مالکه نه ده، نو دغه بل زائد طلاق به لغو کيږي.

**د امام صاحب**: دليل دا دی چې خاوند دا ښځه فقط د يوه طلاق مالکه جوړه کړې ده او فقط د يوه طلاق اختيار يې ورکړی دی، مګر ښځې د هغه مخالفت وکړی او له هغه شخه بغير يې درې طلاقه پر ځان واقع کړه، او درې له يوه شخه بغير او عليحده دي، ځکه چې درې داسې عدد ته ويل کيږي کوم چې مرکب او مجتمع وي، د دې په خلاف واحد فرد دی، په هغه کې د ترکيب هيڅ احتمال نسته، نو د يوه او دريو په مينځ کې تضاد دی، ځکه چې يو غير مرکب دی او درې مرکب دی، لهذا کله چې ښځې د خاوند مخالفت وکړی او د يوه طلاق غير يې پر ځان واقع کړی، نو هغه ابتداءً (له نوي سره) خپل ځان ته طلاق ورکونکې سوه، او ښځه چې کله ابتداءً خپل ځان ته طلاق ورکړي نو پر ښځې هيڅ طلاق نه واقع کيږي، مګر دا چې کله خاوند اجازت ورکړي.

**بخلاف الزوج إلخ**: په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي، فرمايي چې د دې په خلاف که خاوند خپلې ښځې ته زر طلاقه ورکړي، نو درې واقع کيږي، ځکه چې خاوند د دريو طلاقو مالک دی، لهذا د شومره عدد چې خاوند مالک وي، په هغومره عدد کې به د هغه تصرف صحيح او معتبر وي، او دلته (په دغه پورتنې صورت کې) خو ښځه مالکه نه ده، او بيا هم هغې د دريو عدد (درې طلاقه) اختيار کړي دي، نو د هغې تصرف به څرنګه صحيح سي!؟ لهذا د هغې تصرف به لغو وي، خو څرنګه چې په اوله مسئله کې خاوند په طَلِّقِيْ نَفْسَكِ ثَلَاثًا سره ښځه د دريو طلاقو مالکه جوړه کړې ده، نو ځکه به هلته په دريو طلاقو کې هم د هغې تصرف صحيح وي، او په يوه طلاق کې به هم صحيح وي، لکه په دغه صورت کې چې پر هغې يو طلاق واقع سوی دی.

## د طلاق په وصف کې د خاوند مخالفت کول

وَإِنْ أَمَرَهَا بِطَلَاقٍ يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ او كه [خاوند] ښځې ته د داسې طلاق حكم وكړي چې [په هغه كې خاوند] د رجعت ملكيت لري فَطَلَّقَتْ بَائِنَةً او ښځه [خپل ځان ته] طلاقِ بائن وركړي أَوْ أَمَرَهَا بِالْبَائِنِ فَطَلَّقَتْ رَجْعِيَّةً يا [خاوند] هغې ته د طلاقِ بائن حكم وكړي او ښځه [خپل ځان ته] طلاقِ رجعي وركړي وَقَعَ مَا أَمَرَبِهِ الزَّوْجُ نو [په دې دواړو صورتونو كې] هغه طلاق واقع كيږي د كوم [طلاق] چې خاوند حكم كړى وي فَمَعْنَى الْأَوَّلِ أَنْ يَقُولَ لَهَا الزَّوْجُ: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً أَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نو د اول صورت مطلب دا دى چې خاوند ښځې ته [داسې] ووايي: ته خپل ځان ته يو داسې طلاق وركړه! چې [په هغه كې] زه د رجعت مالک يم فَتَقُولُ: طَلَّقْتُ نَفْسِي وَاحِدَةً بَائِنَةً او ښځه [په جواب كې] ووايي: ما خپل ځان ته يو طلاقِ بائن وركړى فَتَقَعُ رَجْعِيَّةً نو [په دغه صورت كې] يو طلاقِ رجعي واقع كيږي لِأَنَّهَا أَتَتْ بِالْأَصْلِ وَزِيَادَةِ وَصْفٍ ځكه چې [دلته] ښځې په أصل او د وصف په زياتوب [دواړو] سره راتګ كړى دى كَمَا ذَكَرْنَا لكه موږ چې [اوس] ذكر كړه فَيَلْغُو الْوَصْفُ وَيَبْقَى الْأَصْلُ نو ځكه به وصف لغو كيږي او أصل به پاتيږي وَمَعْنَى الثَّانِي أَنْ يَقُولَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً بَائِنَةً او د دويم صورت مطلب دا دى چې [خاوند] ښځې ته [داسې] ووايي: ته خپل ځان ته طلاقِ بائن وركړه! فَتَقُولُ: طَلَّقْتُ نَفْسِي وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً او ښځه [په جواب كې] ووايي: ما خپل ځان ته يو طلاقِ رجعي وركړى فَتَقَعُ بَائِنَةً نو [په دې صورت كې] طلاقِ بائن واقع كيږي لِأَنَّ قَوْلَهَا: وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً لَغْوٌ مِنْهَا ځكه چې د ښځې دا قول: وَاحِدَةً رَجْعِيَّةً د هغې له طرفه يو لغو حركت دى لِأَنَّ الزَّوْجَ لَمَّا عَيَّنَ صِفَةَ الْمُفَوَّضِ إِلَيْهَا ځكه كله چې خاوند ښځې ته د ورسپارل سوي طلاق وصف متعين كړى فَحَاجَتُهَا بَعْدَ ذٰلِكَ إِلَى إِيقَاعِ الْأَصْلِ دُونَ تَعْيِينِ الْوَصْفِ نو تر هغه وروسته د ښځې حاجت د أصل [طلاق] واقع كولو ته دى، نه د وصف متعينولو ته [يعني د خاوند تر تعيين وروسته اوس د ښځې كار أصل طلاق واقع كول دي، نه د وصف متعينول] فَصَارَ كَأَنَّهَا اقْتَصَرَتْ عَلَى الْأَصْلِ نو داسې سو لكه ښځه چې پر أصل [طلاق] اكتفاء وكړي فَيَقَعُ بِالصِّفَةِ الَّتِي عَيَّنَهَا الزَّوْجُ بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا نو ځكه به [طلاق] په هغه صفت سره واقع كيږي كوم چې خاوند متعين كړى وي [برابره ده] هغه كه بائن او كه رجعي وي.

**اللغات:** ﴿عَيَّنَ﴾ د تفعيل ماضي ده: متعينول، ټاکل، معلومول. ﴿اِلْتَصَرَتْ﴾ د افتعال ماضي مجهوله ده: اکتفاء کول.

**تشريح:** دا عبارت د طلاق په وصف کي د ښځي د مخالفت کولو په هکله دی.

**صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته د طلاق رجعي حکم وکړي، او ښځه پر ځان طلاق بائن واقع کړي، يا خاوند ښځي ته د طلاق بائن اختيار ورکړي، او هغه طلاق رجعي واقع کړي (يعني ښځه د طلاق په وصف کي د خاوند مخالفت وکړي)، نو په دې دواړو صورتونو کي هغه طلاق واقع کيږي د کوم طلاق حکم چي خاوند کړی وي.

**لمعنیٰ الأول إلخ:** صاحب د هدايې د دواړو صورتونو وضاحت کوي فرمايي چي کله خاوند ښځي ته په طَلِّقِیْ نَفْسَكِ وَاحِدَةً رَجْعِيةً سره د طلاق رجعي حکم وکړی، نو د دې معنیٰ او مطلب دا دی چي خاوند داسي ويل غواړي چي "ته پر خپل ځان داسي طلاق واقع کړه! چي په هغه کي ما ته د رجعت حق هم حاصل وي"، او ښکاره خبره ده چي د رجعت حق په طلاقِ رجعي کي خاوند ته حاصليږي. نو ځکه به په دې صورت کي طلاقِ رجعي واقع کيږي. او د أصل طلاق يعني د طَلَّقْتُ نَفْسِیْ سره چي ښځي کوم د بائنة وصف اضافه کړی دی، هغه وصف به لغو کيږي.

**ومعنیٰ الثانية إلخ:** او په دويم صورت کي چي کله خاوند خپلي ښځي ته په طَلِّقِیْ نَفْسَكِ وَاحِدَةً بَائِنَةً سره د يوه طلاق حکم وکړی، نو د دې معنیٰ او مطلب دا دی چي "ته خپل ځان ته داسي طلاق ورکړه! چي سمدستي زما څخه جلا او بائنه سې"، مګر ښځي په وصف کي د خاوند طلاق مخالفت وکړی او طلاقِ رجعي يې اختيار کړی، نو د هغې دا مخالفت به د هغې پر مخ وهل کيږي او کوم چي د خاوند مراد دی يعني طلاقِ بائن به واقع کيږي. ځکه کله چي خاوند په اول دويم صورت کي د أصل طلاق سره وصف د طلاق هم متعين کړی دی. نو ښکاره خبره ده چي اوس د ښځي کار فقط طلاق واقع کول دي، نه د وصف متعين کول. نو که سربېره پر دې ښځه په خپله خوښه وصف متعين کړي او د خاوند مخالفت وکړي، نو دا به ګڼل کيږي چي ښځي فقط پر أصل طلاق اکتفاء کړې ده. او داسي يې ويلي دي: طَلَّقْتُ نَفْسِیْ، او څرنګه چي د خاوند له طرفه په دواړو صورتونو کي د طلاق وصف ذکر سوی دی، نو د ښځي طَلَّقْتُ نَفْسِیْ به په هغه (د خاوند په) وصف سره متصف کيږي او په اول صورت کي به طلاقِ رجعي او په دويم صورت کي به طلاقِ بائن واقع کيږي.

## د طلاق په عدد کې د خاوند مخالفت کول

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ ثَلَاثًا إِنْ شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي: ته خپل ځان ته درې طلاقه ورکړه! که چيري ته وغواړې [يعني که ستا خوښه وي] فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا وَاحِدَةً [ليکن] ښځه خپل ځان ته يو طلاق ورکړي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ شی نه واقع کيږي لِأَنَّ مَعْنَاهُ: إِنْ شِئْتِ الثَّلَاثَ ځکه چې د دې [جملې] معنیٰ ده: که چيري ته درې [طلاقه] وغواړې [يعني که چيري ستا درې سره طلاقه خوښ وي] وَهِيَ بِإِيقَاعِ الْوَاحِدَةِ مَا شَاءَتِ الثَّلَاثَ او ښځې د يوه طلاق په واقع کولو سره درې طلاقه خوښ نه کړل فَلَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ نو شرط موجود نه سو انو ځکه به هيڅ شی هم نه واقع کيږي] وَلَوْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ وَاحِدَةً إِنْ شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته [داسې] ووايي: که چيري ته وغواړې نو خپل ځان ته يو طلاق ورکړه! فَطَلَّقَتْ ثَلَاثًا ليکن هغه [خپل ځان ته] درې طلاقه ورکړي فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو همدارنګه [هيڅ طلاق نه واقع کيږي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لِأَنَّ مَشِيئَةَ الثَّلَاثِ لَيْسَتْ بِمَشِيئَةٍ لِلْوَاحِدَةِ ځکه چې د دريو طلاقو غوښتل [خوښول] د يوه طلاق غوښتل نه دي كَإِيقَاعِهَا لکه څرنګه چې د دريو طلاقو واقع کول [يو طلاق واقع کول نه دي] وَقَالَا: تَقَعُ وَاحِدَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې يو طلاق واقع کيږي لِأَنَّ مَشِيئَةَ الثَّلَاثِ مَشِيئَةٌ لِلْوَاحِدَةِ ځکه چې د دريو مشيت د يوه مشيت [هم] دی [يعني ځکه چې د دريو طلاقو په خوښولو کې د يوه طلاق خوښول هم سته] لِمَا أَنَّ إِيقَاعَهَا إِيقَاعٌ لِلْوَاحِدَةِ ځکه چې د دريو إيقاع د يوه إيقاع ده [يعني لکه څرنګه چې د دريو طلاقو په واقع کولو کې د يوه طلاق واقع کول سته] فَوُجِدَ الشَّرْطُ لهذا شرط موجود سو.

**اللغات:** ﴿فَوُجِدَ﴾ د ضرب له باب څخه ماضي مجهوله ده: پيدا کېدل، موجودېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي، اوله مسئله متفق عليها ده او دويمه مختلف فيها ده: (۱)... د اولې مسئلې حاصل دا دی که يو سړی خپل ښځې ته داسې ووايي چې "که چيري ته وغواړې او ستا خوښه وي نو خپل ځان ته درې طلاقه ورکړه! (يعني درې طلاقه واقع کړه!)"، او ښځه خو طلاق خوښ کړي، ليکن د دريو پر ځای يو طلاق خوښ او اختيار کړي او فقط يو طلاق

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله (العناية ج:۳، ص:۴۳۱)، وكذا في الدر المختار (ج:۲، ص:۵۲۹)، كذا في الهندية (ج:۱ ص:۴۰۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۳۰]

ځان ته ورکړی، نو په دې صورت کې پر ښځې يو طلاق هم نه واقع کيږي؛ ځکه چې د خاوند دا قول إِنْ شِئْتِ د شرط په درجه کې دی، او د هغه مطلب او مفهوم دا دی چې "که چيري ته درې طلاقه غواړې نو ځان ته يې ورکړه! کنې ځان ته طلاق مه ورکوه"، لهذا کله چې ښځې يو طلاق اختيار کړی، نو ښکاره خبره ده چې درې طلاقه هغه نه غواړي او د هغې خوښه نه ده چې ځان ته درې طلاقه ورکړي، نو د إِنْ شِئْتِ الثَّلَاث شرط موجود نه سو. نو ځکه به مشروط يعني وقوع د طلاق به هم نه موجوديږي، ځکه چې همدا د فقهې مشهوره قاعده ده: إِذَا فَاتَ الشَرطُ فَاتَ المَشرُوط.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که خاوند ښځې ته ووايي "که ته وغواړې نو يو طلاق پر ځان واقع کړه!"، او ښځه درې طلاقه پر ځان واقع کړي، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د اولي مسئلې په څير دلته هم پر ښځې هيڅ طلاق نه واقع کيږي. ليکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې دلته پر ښځې يو طلاق واقع کيږي.

د امام صاحب دليل دا دی چې څرنګه زموږ په نيز د درېو طلاقو په اختيار او إيقاع کې د يوه طلاق إيقاع موجوده نه ده، همداسې به د درېو طلاقو په مشيت (خوښې) کې هم د يوه طلاق مشيت شامل نه وي، او دلته خاوند د يوه طلاق پر مشيت د ښځې إيقاع مشروط کړې ده، ليکن ښځې د يوه پر ځای د درېو مشيت اختيار کړی او د خاوند مخالفت يې وکړی، نو ځکه به د دې هيڅ اعتبار نه کيږي، او هسې هم په وَاحِدَة او ثَلَاث کې څرګند توپير او مغايرت سته.

د دې په خلاف د صاحبينو په نيز چې څرنګه د درېو طلاقو په إيقاع کې د يوه طلاق إيقاع شامله ده، همداسې به د درېو طلاقو په مشيت کې د يوه طلاق مشيت هم شامل او داخل وي، لهذا دلته که څه هم د ښځې د خاوند د وصف مخالفت کړی دی او د درېو مشيت يې اختيار کړی دی، ليکن د دې باوجود په اصل طلاق کې د خاوند د طلاق سره د ښځې طلاق موافق دی، نو په دې وجه به پر ښځې يو طلاق واقع کيږي.

## د "مشيت" په جواب کې "مشيت معلقه" ذکر کول

| وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي چې: که ته وغواړې [او ستا خوښه وي] نو ته طلاقه يې فَقَالَتْ: شِئْتُ إِنْ شِئْتَ او [په جواب کې] ښځه [خاوند ته] ووايي: که ته غواړې نو زه [هم] غواړم [يعني که ستا خوښه وي نو زما هم خوښه ده چې طلاقه سم] فَقَالَ: شِئْتُ يَنْوِي الطَّلَاقَ نو خاوند [په جواب کې ورته] ووايي: زه غواړم [زما خوښه ده] او نيت يې د طلاق وي بَطَلَ الْأَمْرُ نو أمر [اختيار] |
|---|

باطليږي لِأَنَّهُ عَلَّقَ طَلَاقَهَا بِالْمَشِيئَةِ الْمُرْسَلَةِ ځکه چي [ملته] خاوند د ښځي طلاق پر مشیتِ مُرسله ایمني د ښځي پر خوښه] معلق کړی دی وَهِيَ أَتَتْ بِالْمُعَلَّقَةِ [لیکن] ښځي په مشیتِ معلقه سره راتګ وکړی [یعني ښځي د خاوند پر خوښه طلاق معلق کړی] فَلَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ نو شرط پیدا نه سو [نو ځکه به طلاق نه واقع کیږي] وَهُوَ اشْتِغَالٌ بِمَا لَا يَعْنِيهَا او هغه په بې مقصده کار مشغولېدل دي ایمني په داسي کار مشغولېدل چي د هغه حکم خاوند نه دي کړی] فَخَرَجَ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا نو په دې وجه اختیار د ښځي د لاس څخه ووتی وَلَا يَقَعُ الطَّلَاقُ بِقَوْلِهِ: شِئْتُ وَإِنْ نَوَى الطَّلَاقَ او د خاوند په دې قول: شِئْتُ [زما خوښه ده] سره طلاق نه واقع کیږي که څه هم هغه [په دې سره] د طلاق نیت وکړي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي كَلَامِ الْمَرْأَةِ ذِكْرُ الطَّلَاقِ لِيَصِيرَ الزَّوْجُ شَائِيًا طَلَاقَهَا ځکه چي د ښځي په کلام کي د طلاق ذکر نسته چي خاوند د هغه د طلاق غوښتونکی [خوښونکی] سي وَالنِّيَّةُ لَا تَعْمَلُ فِي غَيْرِ الْمَذْكُورِ او نیت په نا ذکرسوي [طلاق] کي عمل نه کوي [یعني په کوم کلام کي چي طلاق ذکر نه سي، په هغه کي نیت عمل نه کوي] حَتَّى لَوْ قَالَ: شِئْتُ طَلَاقَكِ تر دې که [خاوند] ووايي: شِئْتُ طَلَاقَكِ [زه ستا طلاق غواړم] يَقَعُ إِذَا نَوَى نو [په دې سره] د نیت کولو په وخت کي طلاق واقع کیږي لِأَنَّهُ إِيقَاعٌ مُبْتَدَأٌ ځکه چي دا ابتداءً [طلاق] واقع کول دي إِذِ الْمَشِيئَةُ تُنْبِئُ عَنِ الْوُجُودِ ځکه چي مشیت د وجود خبر ورکوي بِخِلَافِ قَوْلِهِ: أَرَدْتُ طَلَاقَكِ په خلاف د خاوند د دې قول: أَرَدتُ طَلَاقَكِ [زه ستا د طلاق اراده لرم] لِأَنَّهُ لَا يُنْبِئُ عَنِ الْوُجُودِ ځکه چي اراده د وجود خبر نه ورکوي وَكَذَا إِذَا قَالَتْ: شِئْتُ إِنْ شَاءَ أَبِي او همدارنګه که ښځه ووايي: زه غواړم [په دې شرط] که زما پلار وغواړي أَوْ شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا یا زه غواړم که چیري [فلانی کار] داسي سوی وي لِأَمْرٍ لَمْ يَجِئْ بَعْدُ د داسي کار لپاره چي هغه تر اوسه سوی نه وي [یعني که ښځه خپل په مشیت کي داسي کار ذکر کړي چي هغه تر اوسه سوی نه وي، نو ځه طلاق نه واقع کیږي، مثلاً خاوند ورته ووايي: که ستا خوښه وي نو ته پر ما طلاقه یې، او ښځه په جواب کي ورته ووايي چي: زما خوښه ده که چیري زید واده کړی وي، او زید واده نه وي کړی...] لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ الْمَأْتِيَّ بِهِ مَشِيئَةٌ مُعَلَّقَةٌ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی چي په کوم شي سره چي راتګ سوی دی هغه مشیتِ معلقه دی فَلَا يَقَعُ الطَّلَاقُ نو ځکه به طلاق نه واقع کیږي وَبَطَلَ الْأَمْرُ او اختیار به [هم] باطلیږي وَإِنْ قَالَتْ: قَدْ شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا او که ښځه ووايي: زه غوام که

چيري [فلانۍ کار] داسي سوی وي ﴿لِأَمْرِقَدْ مَضٰى﴾ د داسي کار لپاره کوم تېر سوی وي [يعني د داسي کار لپاره کوم چي سوی وي، مثلاً ښځه ووايي: زما خوښه ده که چيري زيد واده کړی وي، او زيد مخکي لا واده کړی وي.....] ﴿طُلِّقَتْ﴾ نو [سمدستي] ښځه طلاقېږي ﴿لِأَنَّ التَّعْلِيْقَ بِشَيْءٍ كَائِنٍ تَنْجِيْزٌ﴾ ځکه چي پر تېر سوي شرط [طلاق] معلق کول تنجيز دی [يعني که پر کړل سوي کار طلاق معلق کړی سي نو په دې سره سمدستي (في الحاله) طلاق واقع کېږي].

**اللغات:** ﴿لَا يَحْتَمِيْ﴾ بې مقصده، ﴿مَشِيْئَة مُرْسَلَه﴾ د ښځي خپل مشيت (مشيئت) او خوښي ته وايي، او د خاوند پر مشيت او خوښه طلاق معلق کولو ته مَشِيْئَة مُعَلَّقَة وايي، ﴿شَائِيًا﴾ د فتح د باب اسمِ فاعل دی: غوښتونکی، ﴿تُنْبِئُ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول، ﴿تَنْجِيْز﴾ د تفعيل مصدر دی: فوراً (سمدستي) ديو کار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپلي ښځي پر مشيت (خوښه) طلاق معلق کړی او ښځي ته ووايي: "که ته غواړې او ستا خوښه وي نو ته طلاقه يې"، او په جواب کي ښځه خپل مشيت د خاوند پر مشيت موقوف کړي او داسي ووايي: "که ستا خوښه وي نو زما هم خوښه ده"، او تر دې وروسته خاوند د طلاق په نيت سره ورته ووايي چي: زما خوښه ده (شِئْتُ)، نو په دغه صورت کي طلاق هم نه واقع کېږي، او د ښځي د لاس څخه أمر باليد هم وځي؛ دليل دا دی چي دلته خاوند د ښځي طلاق پر مشيتِ مُرسله يعني پر غيرِ معلق مشيت موقوف کړی دی، لېکن ښځه را ولاړه سوه دغه مشيتِ مرسله يې د خاوند پر مشيت معلق کړی، نو ځکه د خاوند شرط ګواکي مفقود سو، يعني خاوند چي کوم شی پر مشيت مرسله معلق کړی وو، ښځه له هغه څخه بغير په بل شي يعني په مشيتِ معلقه کي مشغوله سوه او هغه شی يې ضايع کړی، نو ځکه به أمر باليد د ښځي د لاس څخه وځي، او هيڅ طلاق به نه واقع کېږي.

همدارنګه وروسته چي کله خاوند شِئْتُ ووايي، په هغه سره هم طلاق نه واقع کېږي که څه هم هغه د طلاق نيت وکړي؛ ځکه چي د ښځي جواب فقط د إِنْ شِئْتَ شِئْتُ سره خاص دی او په دې کلام کي د طلاق هيڅ ذکر نسته، نو ځکه به د خاوند وروسته شِئْتُ ويل پر طلاق نه حمل کېږي، که څه هم هغه نيت کړی وي، ځکه چي نيت په هغه شي کي أثر او عمل کوي کوم چي له مخکي څخه موجود او مذکور وي، او دلته مخکي د طلاق هيڅ ذکر او وجود نسته، نو ځکه به نيت هم هيڅ عمل نه کوي.

د دې په خلاف که خاوند د شِئْتُ سره د طَلَاقَكِ اضافه هم وکړي او د طلاق نيت هم وکړي، نو په دې صورت کې طلاق واقع کيږي، په دې وجه نه چې دا د ښځې د کلام جواب دی، بلکې په دې وجه دلته طلاق واقع کيږي چې په شِئْتُ طَلَاقَكِ کې له نوي سره (ابتداءً) د طلاق إيقاع موجوده ده، ځکه چې شِئْتُ له شئ څخه مأخوذ دی او د "شئ" معنیٰ ده "موجود"، نو شِئْتُ طَلَاقَكِ د أَوْجَدْتُ طَلَاقَكِ په معنیٰ سره سو، او إيجاد او إيقاع دواړه په يوه معنیٰ سره دي، نو ځکه به په دې لفظ سره طلاق واقع کيږي، لېکن که خاوند أَرَدْتُ طَلَاقَكِ ووايي او نيت هم وکړي، نو طلاق نه واقع کيږي، ځکه چې أَرَدْتُ له إِرَادَةٌ څخه مشتق دی، چې په هغه کې د "طلب" معنیٰ سته، نه د "وجود"، او د أَرَدتُ طَلَاقَكِ مطلب دا دی: طَلَبْتُ طَلَاقَكِ، او د طلاق په اراده يا د طلاق په طلب سره طلاق نه واقع کيږي، نو ځکه به په دې سره هم طلاق نه واقع کيږي.

وكذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه د ښځې د "شِئْتُ إِنْ شِئْتَ" ويلو په صورت کې طلاق نه واقع کيږي، همدارنګه که ښځه "شِئْتُ إِنْ شَاءَ أَبِيْ يا شِئْتُ إِنْ كَانَ كَذَا..." ووايي، او خپل مشيت د خپل پلار پر مشيت يا د يو کار پر نه کېدلو معلق کړي، نو په دې صورتونو کې هم طلاق نه واقع کيږي، ځکه چې دلته خاوند د ښځې وطرف ته مشيتِ مُرسله منسوب کړی دی، او په جواب کې ښځې مشيتِ معلقه اختيار کړی دی، نو په دې وجه به طلاق هم نه واقع کيږي، او أمر باليد هم د ښځې د لاس څخه وځي.

وإن قالت إلخ: او که ښځه د خاوند په جواب کې خپل مشيت پر داسې کار معلق کړي کوم چې په تېره زمانه کې سوی وي، نو په دې صورت کې پر ښځې فوراً طلاق واقع کيږي؛ ځکه کوم طلاق چې پر داسې شرط معلق کړی سي کوم چې مخکې موجود دی، هغه طلاق مُنَجَّز ګرځي يعني في الحاله او فوراً واقع کيږي، لهذا دلته به هم فوراً او سمدستي طلاق واقع کيږي.

## د "مشیت" د یو څو ځانګړو الفاظو حکم

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ أَوْ إِذَا مَا شِئْتِ أَوْ مَتٰى شِئْتِ أَوْ مَتٰى مَا شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ [کله چې ستا خوښه وي تا ته طلاق دی] يا [أَنْتِ طَالِقٌ] إِذَا مَا شِئْتِ يا [أَنْتِ طَالِقٌ] مَتٰى شِئْتِ [کوم وخت چې ستا خوښه وي تا ته طلاق دی] يا [أَنْتِ طَالِقٌ] مَتٰى مَا شِئْتِ فَرَدَّتِ الْأَمْرَ او ښځه أمر [اختيار] ردّ کړي لَمْ يَكُنْ رَدًّا نو دا به ردّ نه وي [يعني په دې صورت کې د ښځې په ردولو سره اختيار نه رديږي] وَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ او نه [دا اختيار] پر مجلس منحصر کيږي أَمَّا كَلِمَةُ مَتٰى وَمَتٰى مَا فَلِأَنَّهُمَا لِلْوَقْتِ پاتـه سو مَتٰى او مَتٰى مَا نو ځکه چې دا دواړه د وخت لپاره دي وَهِيَ عَامَّةٌ فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا او دا په ټولو وختونو کي عام دي كَأَنَّهُ قَالَ: فِي أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ نو ګواکي خاوند [داسي] وويل: [أَنْتِ طَالِقٌ] فِيْ أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ [په کوم وخت کي چې ستا خوښه وي تا ته طلاق دی] فَلَا يَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ بِالْإِجْمَاعِ نو به په اتفاق سره دا پر مجلس نه منصر کيږي وَلَوْ رَدَّتِ الْأَمْرَ او که ښځې أمر باليد [اختيار] رد کړی لَمْ يَكُنْ رَدًّا نو هغه [هم] نه رديږي لِأَنَّهُ مَلَّكَهَا الطَّلَاقَ فِي الْوَقْتِ الَّذِي شَاءَتْ ځکه چې خاوند ښځه په داسي وخت کي د طلاق مالکه جوړه کړې ده کله چې ښځه وغواړي فَلَمْ يَكُنْ تَمْلِيْكًا قَبْلَ الْمَشِيئَةِ حَتّٰى يَرْتَدَّ بِالرَّدِّ نو تر مشيت مخکي تمليک طلاق نه سو چې [د ښځې] په ردولو سره هغه رد سي وَلَا تُطَلِّقُ نَفْسَهَا إِلَّا وَاحِدَةً او [په دې صورت کي] ښځه خپل ځان ته طلاق نه سي ورکولای مګر يو طلاق لِأَنَّهَا تَعُمُّ الْأَزْمَانَ دُونَ الْأَفْعَالِ ځکه چې کلمه د مَتٰى د زمانې لپاره عام ده، نه د افعالو لپاره فَتَمْلِكُ التَّطْلِيقَ فِي كُلِّ زَمَانٍ وَلَا تَمْلِكُ تَطْلِيقًا بَعْدَ تَطْلِيقٍ لهذا ښځه به په هره زمانه کي [خپل ځان ته] د طلاق ورکولو مالکه وي [ليکن] تر يوه طلاق وروسته به د بل طلاق ورکولو مالکه نه وي وَأَمَّا كَلِمَةُ إِذَا وَإِذَا مَا فَهُمَا وَمَتٰى سَوَاءٌ عِنْدَهُمَا او کوم چې کلمه د إِذَا او إِذَا مَا ده نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا دواړې کلمې او مَتٰى [په حکم کي] سره برابري دي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَإِنْ كَانَ يُسْتَعْمَلُ لِلشَّرْطِ كَمَا يُسْتَعْمَلُ لِلْوَقْتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که څه هم [دا دواړې کلمې] د شرط لپاره استعماليږي لکه څرنګه چې د وقت لپاره استعماليږي [يعني د امام صاحب په نيز که څه هم دا دواړې کلمې د وخت په څير د شرط لپاره هم استعماليږي] لٰكِنَّ الْأَمْرَ صَارَ بِيَدِهَا خو [څرنګه چې] أمر باليد

[اختیار] د ښځي لاس ته [په یقیني توګه] رسېدلی دی فَلَا يَطْرُءُ بِالشَّكِّ نو ځکه به د شک په وجه [د هغې د لاس څخه] نه وځي وَقَدْ مَرَّمِنْ قَبْلُ او دا [بحث] مخکي تېر سوی دی.

**اللغات:** ﴿لَا يَقْتَصِرُ﴾ د افتعال نفي صیغه ده: اکتفاء کول، منحصر کېدل. ﴿مَلَّكَ﴾ د تفعیل ماضي ده: بل څوک د یو شي مالک جوړول، مالک کول (مالک ګرځول).

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا شِئْتِ ووایي، یا د إِذَا پر ځای إِذَمَا مَا یَا مَتٰی یا مَتٰی مَا استعمال کړي، او ښځي ته د طلاق اختیار ورکړي، او ښځه د طلاق واقع کولو پر ځای اختیار (أمر بالید) رد کړي نو دا نه ردیږي، بلکي تر دې وروسته هم ښځه خپل ځان ته طلاق ورکولای سي، او بالاجماع دلته أمر بالید د مجلس سره نه خاص کیږي، بلکي که څه هم ښځه له مجلس څخه ولاړه سي، یا په مجلس کي دننه په یوه بل کار مشغوله سي، نو بیا هم خپل ځان ته طلاق ورکولای سي.

صاحب د هدایې په دلیل کي فرمایي دلته خاوند څلور کلمې استعمال کړي دي: ① إِذَا، ② إِذَا مَا، ③ مَتٰی، ④ مَتٰی مَا، په دې کي مَتٰی او مَتٰی مَا د وخت لپاره راځي، او دا دواړه لفظونه په ټولو اوقاتو کي عام دي (یعني ټولو اوقاتو ته شامل دي)، لهذا مَتٰی شِئْتِ یا مَتٰی مَا شِئْتِ به د فِيْ أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ په درجه کي وي، نو د وخت د عموم په وجه به دا پر مجلس نه منحصر کیږي.

او که ښځه خپل دغه أمر بالید (اختیار) رد کړي، نو نه به ردیږي؛ ځکه چي دلته خاوند په هغه وخت کي ښځه د طلاق مالکه جوړه کړې ده په کوم وخت کي چي ښځه (پر ځان) طلاق واقع کول وغواړي، لهذا تر څو چي ښځي د طلاق إیقاع غوښتې نه وي نو تر هغه وخت پوري ښځه د طلاق مالکه نه ګرځي، او تر څو چي ښځه مالکه نه وي، نو د هغې په ردولو سره به اختیار هم نه ردیږي.

**ولاتطلق إلخ:** او په دې صورت کي ښځه خپل ځان ته یو طلاق ورکولای سي؛ دلیل دا دی چي مَتٰی او مَتٰی مَا د زمانې د عموم لپاره راځي، نه د افعالو د عموم لپاره، نو زمانې د عموم په وجه به دغه ښځي ته تر یو طلاق وروسته د دویم طلاق اختیار نه وي.

او إِذَا او إِذَا مَا د صاحبینو په نېز د مَتٰی په حکم سره دي، یعني کوم حکم چي د مَتٰی دی هغه حکم د إِذَا او إِذَا مَا هم دی، لېکن د امام صاحب په نېز چي څرنګه إِذَا او إِذَا مَا د وخت لپاره راځي، همداسي د شرط لپاره هم راځي، نو د شرط تقاضا دا ده چي په دې صورت کي اختیار د مجلس سره

خاص سي، او د وخت تقاضا دا ده چې له مجلس څخه د ولاړېدلو په وخت کې سملستي اختيار د ښځې د لاس څخه ووځي، لهذا کله چې په دې دواړو کلمو کې د وخت او شرط دواړو معنیٰ ستته. او دلته معلومه نه ده چې دوی د کومې معنیٰ لپاره مستعمل دي نو ځکه په دوی کې شک پيدا سو. او څرنګه چې د خاوند له طرفه ښځې ته په يقيني توګه اختيار ورکول سوی دی، نو د شک په وجه به هغه د ښځې د لاس څخه نه ووځي (لأن اليقين لا يزول بالشک).

وقد مرمن قبل: فرمايي چې په فصل في إضافة الطلاق کې د دې حروفو پوره بحث سوی دی. د نور وضاحت لپاره هغه ته رجوع وکړئ!

## د "أَنْتِ طَالِقٌ كُلَّمَا شِئْتِ" بحث

وَلَوْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ كُلَّمَا شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي: هر کله چې ته وغواړې طلاقه يې فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا وَاحِدَةً بَعْدَ وَاحِدَةٍ حَتَّى تُطَلِّقَ نَفْسَهَا ثَلَاثًا نو ښځې ته [دا] اختيار سته چې خپل ځان ته ترېوه [طلاق] وروسته بل [طلاق] ورکړي تر دې چې خپل ځان ته درې طلاقه ورکړي لِأَنَّ كَلِمَةَ كُلَّمَا تُوجِبُ تَكْرَارَ الْأَفْعَالِ ځکه چې کلمه د كُلَّمَا د افعالو تکرار واجبوي [ثابتوي] إِلَّا أَنَّ التَّعْلِيقَ يَنْصَرِفُ إِلَى الْمِلْكِ الْقَائِمِ خو دا چې تعليق د موجود ملک وطرف ته راجع کيږي حَتَّى لَوْ عَادَتْ إِلَيْهِ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ فَطَلَّقَتْ نَفْسَهَا تر دې که ښځه له دويم خاوند څخه وروسته اول خاوند ته واپس راسي او خپل ځان ته طلاق ورکړي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ طلاق نه واقع کيږي لِأَنَّهُ مِلْكٌ مُسْتَحْدَثٌ ځکه چې دا نوی ملکيت دی وَلَيْسَ لَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا ثَلَاثًا بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ او د ښځې لپاره په يوه کلمه سره خپل ځان ته د درېو طلاقو ورکولو اختيار نسته لِأَنَّهَا تُوجِبُ عُمُومَ الْإِنْفِرَادِ لَا عُمُومَ الْإِجْتِمَاعِ ځکه چې کلمه د كُلَّمَا د فرد عموم واجبوي، نه د اجتماع عموم فَلَا تَمْلِكُ الْإِيقَاعَ جُمْلَةً وَجَمْعًا نو په دې وجه به ښځه پر يوه ځای د ټولو طلاقونو د واقع کولو مالکه نه وي.

**اللغات:** ﴿كُلَّمَا﴾ هر کله چې، کله چې هم ﴿مُسْتَحْدَثٌ﴾ نوی پېښېدونکی شی. ﴿جُمْلَةً﴾ ټوله (په يوه وار)، ﴿جَمْعًا﴾ پر يوه ځای.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته په داسې الفاظو سره د طلاق اختيار ورکړي: أَنْتِ طَالِقٌ كُلَّمَا شِئْتِ"، نو اوس ښځې ته اختيار دی که يو طلاق وغواړي، نو يو طلاق دي پر

ځان واقع کړي، او که وغواړي چې يو تر بل وروسته (پرلپسې) واقع کړي، نو همداسې دې وکړي تر دې چې درې طلاقه واقع کړي؛ دليل دا دی چې کلمه د كُلَّمَا په افعالو کې د تکرار لپاره وضع سوې ده او تکرار ثابتوي، نو ځکه به ښځې ته د دريو طلاقو د إيقاع حق او اختيار وي.

إِلَّا أن التعليق: په دې سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله ستاسو په وينا كُلَّمَا په افعالو کې تکرار ثابتوي، نو که چيري ښځه درې طلاقه واقع کړي، بيا د دويم خاوند سره نکاح وکړي (د حلاله لپاره يا هسې نکاح ور سره وکړي)، او د دويم خاوند تر طلاق وروسته هغه بيرته د اول په خاوند په نکاح کې راسي، نو بيا د كُلَّمَا په وجه سره هغې ته د طلاق د إيقاع حق او اختيار حاصلېدل پکار دي، حالانکې داسې نه ده.

صاحب د هدايې د دې په جواب کې فرمايي چې دلته خاوند طلاق معلق کړی دی، او تعليق د قائم او موجود ملک وطرف ته راجع کيږي، نو د كُلَّمَا شِئْتِ معنیٰ به دا وي چې "زما په ملکيت کې چې څومره طلاقونه دي، ته چې کله وغواړې هغه واقع کړه)، او څرنګه چې د خاوند په ملکيت درې طلاقه دي، نو ځکه به ښځه فقط د دريو طلاقو د إيقاع حقداره وي، او د دويم خاوند تر طلاق وروسته چې هغه بيرته د اول خاوند په نکاح راسي، نو اول خاوند به په نوي (جديد) ملکيت سره د دريو طلاقو مالک وي، او په كُلَّمَا شِئْتِ سره د اختيار ورکولو په وخت کې دغه نوی (جديد) ملکيت معدوم وو، لهذا كُلَّمَا شِئْتِ به پر دغه ملکيت نه جاري کيږي، او په اول ملکيت کې به په ورکول سوي اختيار (كُلَّمَا شِئْتِ) سره د جديد ملکيت په طلاق کې د تصرف اجازه نه وي.

وليس لها إلخ: او ښځې ته دا اختيار نسته چې د خاوند د كُلَّمَا شِئْتِ په جواب کې پر يوه ځای درې طلاقه پر ځان واقع کيږي؛ ځکه که څه هم كُلَّمَا د افعالو تکرار ثابتوي، خو هغه د إفراد په توګه د افعالو تکرار ثابتوي، نه د إجتماع په توګه، نو په دې وجه به ښځې ته پر يوه ځای او په يو وار د دريو طلاقو د إيقاع اختيار نه وي.

## د "مشيت" يو څو الفاظ

وَلَوْقَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ حَيْثُ شِئْتِ أَوْ أَيْنَ شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته [داسې] ووايي: ته طلاقه يې په کوم ځای کې چې ته وغواړې يا چيري چې ته وغواړې لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى تَشَاءَ نو هغه نه طلاقيږي تر دې چې [طلاق] وغواړي [يعني په دې صورت کې چې تر څو ښځه طلاق خوښ نه کړي، تر هغه وخته پر ښځې طلاق نه واقع کيږي] وَإِنْ قَامَتْ مِنْ مَجْلِسِهَا او که [په دې صورت کې] ښځې له مجلس څخه ولاړه

سي فَلَا مَشِيئَةَ لَهَا نو د هغې لپاره مشيت نه پاتېږي لِأَنَّ كَلِمَةَ حَيْثُ وَأَيْنَ مِنْ أَسْمَاءِ الْمَكَانِ ځکه چې کلمه د حَيْثُ او أَيْنَ له اسماء مکان څخه دي وَالطَّلَاقُ لَا تَعَلُّقَ لَهُ بِالْمَكَانِ او د طلاق تعلق د هيڅ مکان سره نسته فَيَلْغُو نو ځکه به [د مکان ذکر] لغوه کيږي وَيَبْقَى ذِكْرُ مُطْلَقِ الْمَشِيئَةِ او مطلق د مشيت ذکر به پاتېږي فَيَقْتَصِرُ عَلَى الْمَجْلِسِ او هغه [مشيت] به پر مجلس منحصر کيږي بِخِلَافِ الزَّمَانِ لِأَنَّ لَهُ تَعَلُّقًا بِهِ په خلاف د زمانې، ځکه چې د زمانې سره د طلاق تعلق سته حَتَّى يَقَعَ فِي زَمَانٍ دُونَ زَمَانٍ تر دې چې په يوه زمانه کې طلاق واقع کيږي، نه په بله زمانه کې [يعني همدا وجه ده چې په يوه زمانه کې طلاق واقع کيږي او په يوه زمانه کې نه واقع کيږي] فَوَجَبَ اعْتِبَارُهُ خُصُوصًا وَعُمُومًا نو ځکه د خصوص او عموم په اعتبار سره د زمانې اعتبار کول ضروري دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته داسې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ حَيْثُ شِئْتِ يا أَنْتِ طَالِقٌ أَيْنَ شِئْتِ، نو په دې صورت کې چې تر څو ښځه طلاق نه وغواړي او طلاق خوښ نه کړي، تر هغه وخته پورې طلاق نه واقع کيږي، هغه که ښځه هر چيرې وي، او که هر څنګه وي، همدارنګه که ښځه د طلاق تر خوښولو مخکې له خپل ځای څخه ولاړه سي، نو دا د إعراض دليل دی، او په دې سره د ښځې مشيت ختميږي.

د دې دواړو حکمونو دليل دا دی چې دلته خاوند د ښځې مشيت د حَيْث او أَيْنَ سره متصل کړی دی، او دا دواړه کلمې د مکان سره خاص دي، حالانکې طلاق د مکان او مقام سره خاص نه دی، بلکې کله چې هم طلاق واقع سي، نو هغه په هر، هر مکان او مقام کې واقع کيږي، نو ځکه به د أَيْنَ او حَيْث ذکر لغو کيږي، او فقط أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شِئْتِ به پاتيږي، او د أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شِئْتِ د ويلو په وخت کې د ښځې طلاق پر مشيت هم موقوف کيږي، او هم د مجلس سره خاص کيږي، لهذا دلته به هم طلاق د ښځې پر مشيت موقوف وي، او تر څو چې ښځه نه وغواړي، تر هغه وخته به طلاق نه واقع کيږي، همدارنګه د مجلس څخه د ولاړيدلو په صورت کې به د ښځې مشيت ختميږي.

**بخلاف الزمان إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د طلاق د تعليق په هکله د زمان او مکان تر مينځ فرق سته، او هغه دا دی چې طلاق د مکان سره نه خاص کيږي (لکه اوس چې تاسو وويل)، ليکن د زمانې

سره د طلاق تعلق او ربط سته، او طلاق د زمانې سره خاص کيږي، همدا وجه ده که يو څوک داسې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ فِيْ غَدٍ (ته سبا طلاقه يې)، نو دغه پر ښځې نن طلاق نه واقع کيږي، بلکې سبا واقع کيږي.

او که داسې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ فِيْ أَيِّ وَقْتٍ شِئْتِ (په کوم وخت چې هم ته وغواړې، طلاقه يې)، نو په دې صورت کې طلاق د يوم او غد سره نه، بلکې د زمانې د هر ګړي او هرې لمحې سره خاص کيږي، او کله چې هم ښځه طلاق وغواړي، نو پر هغې طلاق واقع کيږي، لهذا د زمان او مکان تر مينځ فرق پيژندل ضروري دي، او د زمان سره د طلاق د متصل کيدلو په صورت کې د زمان د عموم او خصوص رعايت کول هم ضروري دي.

## د "مشيت" يو څو نور الفاظ

وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ كَيْفَ شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي: ته طلاقه يې څرنګه چې ته وغواړې طُلِّقَتْ تَطْلِيقَةً يَمْلِكُ الرَّجْعَةَ نو [په دې صورت کې] ښځه په يوه طلاق سره طلاقيږي [چې په هغه کې به] خاوند د رجعت مالک وي [يعني يو طلاقِ رجعي واقع کيږي] وَمَعْنَاهُ: قَبْلَ الْمَشِيْئَةِ او د دې معنى ده: چې تر مشيت مخکې [هم يو طلاقِ رجعي واقع کيږي] فَإِنْ قَالَتْ: قَدْ شِئْتُ وَاحِدَةً بَائِنَةً أَوْ ثَلَاثًا وَقَالَ الزَّوْجُ ذٰلِكَ نَوَيْتُ او که ښځه ووايي: ما يو طلاقِ بائن يا درې طلاقه وغوښتل [خوښ مې کړل] او خاوند ووايي: چې ما [هم] دغه نيت کړی دی فَهُوَ كَمَا قَالَ نو هغه به د خاوند د قول مطابق وي [يعني څرنګه چې د خاوند نيت وي، هغسې طلاق به واقع کيږي] لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ تَثْبُتُ الْمُطَابَقَةُ بَيْنَ مَشِيْئَتِهَا وَإِرَادَتِهِ ځکه چې په دې وخت کې د ښځې په مشيت او د خاوند په اراده کې مطابق ثابتيږي أَمَّا إِذَا أَرَادَتْ ثَلَاثًا وَالزَّوْجُ أَرَادَ وَاحِدَةً بَائِنَةً أَوْ عَلَى الْقَلْبِ ليکن کله چې ښځه د درېو [طلاقو] اراده وکړي او ښځه د يو طلاقِ بائن اراده وکړي يا د دې برعکس تَقَعُ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو يو طلاقِ رجعي واقع کيږي لِأَنَّهُ لَغَا تَصَرُّفُهَا لِعَدَمِ الْمُوَافَقَةِ ځکه چې د موافقت د نشتوالي په وجه د ښځې تصرف لغو سو فَبَقِيَ إِيقَاعُ الزَّوْجِ نو [فقط] د خاوند إيقاع باقي پاته سوه وَإِنْ لَمْ تَحْضُرْهُ النِّيَّةُ تُعْتَبَرُ مَشِيْئَتُهَا فِيْمَا قَالُوْا جَرْيًا عَلَى مُوْجِبِ التَّخْيِيْرِ او که خاوند ته نيت حاضر نه سي [يعني خاوند هيڅ نيت نه وکړي] نو د ښځې د مشيت اعتبار

به کيږي لکه څرنګه چي فقهاؤ ويلي دي، د تخيير پر موجب په عمل کولو سره قَالَ ﷺ: وَقَالَ فِي الْأَصْلِ هٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ صاحب د هدايې فرمايي: چي [امام محمد رَحِمَهُ الله] په مبسوط کي ويلي دي: چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَعِنْدَهُمَا لَا يَقَعُ مَا لَمْ تُوقِعِ الْمَرْأَةُ او د صاحبينو په نيز چي تر څو ښځه په خپله [طلاق] واقع نه کړي، [طلاق] نه واقع کيږي فَتَشَاءُ رَجْعِيَّةً أَوْ بَائِنَةً أَوْ ثَلَاثًا [برابره ده] ښځه که رجعي [طلاق] وغواړي يا بائن [ طلاق وغواړي] يا درې [طلاقه وغواړي] وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الْعِتَاقُ او پر همدغه اختلاف آزادېدل هم دي [يعني دعتاق په مسئله کي هم دغه اختلاف دی] لَهُمَا: أَنَّهُ فَوَّضَ التَّطْلِيقَ إِلَيْهَا عَلَى أَيِّ صِفَةٍ شَاءَتْ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي خاوند طلاق ښځي ته سپارلی دی پر کوم صفت چي ښځه وغواړي فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْلِيقِ أَصْلِ الطَّلَاقِ بِمَشِيئَتِهَا لهذا أصل طلاق د ښځي پر مشيت معلق کول ضروري دي لِيَكُونَ لَهَا الْمَشِيئَةُ فِي جَمِيعِ الْأَحْوَالِ: أَعْنِي قَبْلَ الدُّخُولِ وَبَعْدَهُ د دې لپاره چي د ښځي مشئيت په ټولو حالاتو کي وي: يعني تر دخول مخکي [هم] او تر دخول وروسته [هم] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ كَلِمَةَ كَيْفَ لِلِاسْتِيصَافِ او د امام صاحب دليل دا دی: چي کلمه د كَيْفَ د وصف د طلاق لپاره راځي يُقَالُ: كَيْفَ أَصْبَحْتَ [لکه چي] ويل کيږي: كَيْفَ أَصْبَحْتَ [تا څرنګه سهار کړی، يعني تا په کوم صفت سره سهار کړی] وَالتَّفْوِيضُ فِي وَصْفِهِ يَسْتَدْعِي وُجُودَ أَصْلِهِ او تفويض د طلاق په وصف کي د أصل طلاق د موجودګۍ تقاضا کوي وَوُجُودَ الطَّلَاقِ بِوُقُوعِهِ او د طلاق موجودګي د طلاق په وقوع سره وي [يعني طلاق په واقع کېدلو سره موجوديږي، نو ځکه به مخکي طلاق واقع کيږي].

**اللغات:** ﴿عَلَى الْقَلْبِ﴾ برعکس، چپه، ﴿عِتَاقٌ﴾ آزادي (آزادېدل)، ﴿إِسْتِيصَافٌ﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د وصف طلب کول، حال پوښتل، ﴿يَسْتَدْعِي﴾ د استفعال مضارع ده: تقاضا کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی خپلي ښځي ته د أَنْتِ طَالِقٌ كَيْفَ شِئْتِ په الفاظو سره طلاق وسپاري او د طلاق اختيار ورکړي، نو د دې څه حکم دی؟ آيا پر ښځي طلاق واقع کيږي، که نه؟ او که واقع کيږي، نو کله واقع کيږي؟ د ښځي تر مشيت مخکي، که وروسته؟

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما قال العلامة ابن نجيم المصرى رَحِمَهُ الله : والحق قول الإمام لانتقاض قاعدتهما كما بيناه فى شرح المنار (البحر الرائق ج:٣، ص:٥٩١)، كذا فى الدر المختار (ج:٢، ص:٥٣٢). [القول الراجح ج:١، ص:٣٣٢]

صاحب د کتاب فرمايي چي په دې مسئله کي زموږ د امامانو اختلاف دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي دلته که ښځه طلاق غواړي، که نه غواړي (يعني طلاق خوښ کړي، که نه)، په هر صورت کي پر هغې يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

اوس که ښځه خپل د مشيت إظهار وکړي او دا ووايي چي ما يو طلاقِ بائن وغوښتی (يعني ما يو طلاقِ بائن خوښ کړی)، يا مي درې طلاقه وغوښتل، نو کتل کيږي به چي خاوند د دې نيت کړی دی، که نه، که چيري خاوند ووايي چي ستا د مشيت مطابق ما نيت کړی دی، نو په دې صورت کي د خاوند او ښځي مشيت (خوښه) يو د بل موافق سو، لهذا د کوم طلاق نيت چي سوی وي، هغه طلاق به واقع کيږي.

لېکن که د خاوند او ښځي په مشيت کي موافقت نه وي، مثلاً ښځه درې طلاقه وغواړي (خوښ کړي) او خاوند ديوه طلاق نيت وکړي، يا خاوند د دريو طلاقو نيت وکړي او ښځه يو طلاق وغواړي، نو د خاوند د نيت سره د ښځي د مشيت د نه موافق کېدلو په وجه به په دې صورت کي د ښځي تصرف لغو کيږي، او فقط د خاوند إيقاع به پاتيږي، او په أَنْتِ طَالِقٌ سره به يو طلاقِ رجعي واقع کيږي.

**وإن لم تحضره النية**: د دې حاصل دا دی که په پورتني صورت کي خاوند نيت نه وکړي، نو بيا به د ښځي د مشيت (خوښي) اعتبار کيږي؛ ځکه چي خاوند په کَيْفَ شِئْتِ سره ښځي ته د تخيير اجازت ورکړی دی، او کله چي خاوند نيت نه وکړي، نو ښکاره خبره ده چي بيا به د تخيير پر موجب عمل کيږي، او د تخيير پر موجب باندي عمل کول دا دي چي د ښځي د مشيت او رضا مطابق د طلاق د وقوع فيصله وسي. دا ټوله تفصيل د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز دی.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک په دې مسئله کي دا دی چي دلته د طلاق د وقوع دار ومدار د ښځي پر مشيت موقوف دی، او تر څو چي ښځي نه وغواړي، هيڅ طلاق نه واقع کيږي، او کوم طلاق چي ښځه وغواړي، هغه به واقع کيږي، هغه که رجعي طلاق وغواړي، يا که بائن او مغلظ طلاق وغواړي، د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کي دا اختلاف د إعتاق په مسئله کي هم دی، مثلاً که يو مالک خپل غلام ته داسي ووايي: أَنْتِ حُرٌّ كَيْفَ شِئْتَ، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا غلام فوراً آزاديږي، او د صاحبينو په نېز چي تر څو غلام خپل ځان آزادېدل نه وغواړي، نه آزاديږي.

**لهما الخ**: د صاحبينو دليل دا دی چي خاوند ښځي ته د هغې د مشيت پر صفت طلاق سپارلی دی (يعني کله چي ستا خوښه وي، نو ته طلاقه يې)، نو اوس أصل طلاق هم پر مشيت معلق کول ضروري دي، ځکه چي وصف د أصل څخه بغير نه ثابتيږي، لهذا تر څو چي أصل د ښځي پر مشيت معلق نه سي، تر هغه وخته ښځه وصف غوښتلای (او خوښولای) نه سي. او څرنګه چي کَيْفَ هم د مطلقاً سوال عنِ الحال لپاره راځي،

نو په دې وجه هم أصل طلاق د ښځې پر مشیت معلق کول ضروري دي، د دې لپاره چې په ټولو احوالو کې د ښځې لپاره مشیت ثابت سي، او کله چې أصل طلاق د ښځې پر مشیت معلق سي، نو ښکاره خبره ده چې بیا د هغې له مشیت څخه بغیر هیڅکله طلاق واقع کېدای نه سي، که څه هم خاوند نیت وکړي.

**ولأبي حنیفة إلخ**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې خاوند د کَیْفَ په کلمه سره ښځې ته طلاق سپارلی دی، او په کَیْفَ سره د یو شي د وصف په باره کې پوښتنه کیږي، لکه څرنګه چې وېل کیږي کَیْفَ أَصْبَحْتَ. او د دې معنیٰ دا ده چې تا په کوم وصف سره سهار کړی (یعني په کوم وصف سره سهار دربانديې راغلی، د سهار په وخت کې دې طبیعت برابر وو، که نه...)، لهذا د کَیْفَ په وجه به دلته تفویض د طلاق په وصف کې وي، او د طلاق په وصف کې تفویض د أصل طلاق د وجود تقاضا کوي، ځکه که چیرې أصل موجود نه وي، نو وصف به پر هغه څرنګه مرتب سي، او أصل یعني "طلاق" په وقوع سره په وجود کې راځي، نو ځکه امام صاحب وایي چې أصل طلاق خو به د ښځې تر مشیت مخکې واقع کیږي، د دې لپاره چې وروسته وصف پر مرتب کړی سي او د هغه طلب وکړی سي.

## د "مشیت" یو څو نور الفاظ

**وَإِنْ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ كَمْ شِئْتِ أَوْ مَا شِئْتِ** او که [خاوند] ووایي: ته طلاقه یې څومره چې ته غواړې یا کوم څه چې ته غواړې **طَلَّقَتْ نَفْسَهَا مَا شَاءَتْ** نو ښځه چې څومره طلاقونه وغواړي هغه خپل ځان ته ورکولای سي **لِأَنَّهُمَا يُسْتَعْمَلَانِ لِلْعَدَدِ** ځکه چې كَمْ او مَا د عدد لپاره استعمالیږي **فَقَدْ فَوَّضَ إِلَيْهَا أَيَّ عَدَدٍ شَاءَتْ** او [خاوند] ښځې ته وسپاری هر هغه عدد کوم چې ښځه غواړي انو په دې وجه څومره طلاقونه چې ښځه وغواړي هغه ځان ته ورکولای سي **فَإِنْ قَامَتْ مِنَ الْمَجْلِسِ** او که ښځه له مجلس څخه ولاړه سي **بَطَلَ** نو [اختیار] باطلیږي **وَإِنْ رَدَّتِ الْأَمْرَ** او که چیرې ښځې دغه أمر [اختیار] رد کړی **كَانَ رَدًّا** نو دا به رد وي [یعني د ښځې په ردولو سره دا اختیار ردیږي] **لِأَنَّ هٰذَا أَمْرٌ وَاحِدٌ** ځکه چې دا أمر واحد دی **وَهُوَ خِطَابٌ فِي الْحَالِ** او هغه فی الحاله خطاب دی **فَيَقْتَضِي الْجَوَابَ فِي الْحَالِ** نو ځکه د في الحاله [اوسني] جواب تقاضا کوي.

**اللغات**: ﴿رَدَّتْ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: ردّ کول (ردول)، واپس کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که خاوند په دې الفاظو سره ښځې ته طلاق وسپاري: أَنْتِ طَالِقٌ كَمْ شِئْتِ یا مَا شِئْتِ، نو په دې صورتونو کې طلاق د ښځې پر مشیت موقوف کیږي، او ښځې ته به د

يوه، دوو او دريو طلاقونو د واقع کولو اختيار وي، ځکه چې کَمْ او مَا دواړه د عدد لپاره راځي چې د هغه ښکاره مطلب همدغه دی چې خاوند ښځې ته عدد سپارلی دی، او د عدد د تفويض (سپارلو) په صورت کې ښځې ته د دريو طلاقونو د إيقاع حق حاصليږي، لهذا دلته به هم ښځې ته د هغه حق حاصل وي.

**قوله: قامت إلخ:** فرمايي که چيرې په دغه پورتني صورت کې د طلاق تر إيقاع مخکې ښځه له مجلس څخه ولاړه سي، نو د خاوند له طرفه ور سپارل سوی طلاق (تفويض) باطليږي، همدارنګه که ښځه دغه تفويض رد کړي، نو هم رديږي او ختميږي.

له مجلس څخه د ولاړېدلو په صورت کې د تفويض د باطلېدلو وجه دا ده چې دا تفويض د خاوند له طرفه تمليک دی، او تاسو ته معلومه ده چې تمليک پر مجلس موقوف او منحصر کيږي، او څرنګه چې ولاړه د إعراض دليل دی، نو په دې وجه به له مجلس څخه د ولاړېدلو په وجه تفويض باطليږي.

او د ښځې په رد کولو سره د تفويض د ردېدلو دليل دا دی چې د خاوند دا قول أَنْتِ طَالِقٌ كَمْ شِئْتِ يا مَا شِئْتِ دواړه أمرِ واحد (يو شی) دی، او د كُلَّمَا په څير په دوی کې تکرار نسته، همدارنګه دوی دواړه د في الحاله خطاب لپاره راځي، د إِذَا او مَتَىٰ په څير د مطلق وخت لپاره نه راځي، لهذا دوی د في الحاله جواب تقاضا کوي (يعني د دې تقاضا کوي چې په مجلس کې دننه فوراً د دوی جواب ورکول سي)، او څرنګه چې دوی أمر واحد دي نو په دې وجه د واحد جواب تقاضا کوي چې په سوال او جواب کې مطابقت راسي، لهذا په دې صورتونو کې به په مجلس کې دننه د ښځې له طرفه د "هو!" يا "نه" ويل ضروري وي، کنې مشيئت باطليږي.

## د "مشيت" يو څو نور الفاظ

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ مِنْ ثَلَاثٍ مَا شِئْتِ او که [خاوند] ښځې ته ووايي: په دريو طلاقو کې چې څومره ته غواړې خپل ځان ته طلاق ورکړه فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا وَاحِدَةً أَوْ ثِنْتَيْنِ نو هغې ته دا اختيار سته چې خپل ځان ته يو يا دوه طلاقه ورکړي وَلَا تُطَلِّقَ ثَلَاثًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه [خپل ځان ته] درې طلاقه نه سي ورکولای وَقَالَا: تُطَلِّقُ ثَلَاثًا إِنْ شَاءَتْ او صاحبين رَحِمَهُمَا

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: و قول الإمام أظهر. (الدر المختار ج:۲، ص:۵۳۳)، كذا في البحر الرائق (ج:۳، ص:۵۹۲). وقال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: ولو حملت هذه المسئلة على العرف والعادة لكان أنسب، لأن العوام لا يميزون بين التبعيض والبيان، بل يتكلمون على عاداتهم ومحاوراتهم.

الله فرمايي: چي که ښځه وغواړي نو [خپل ځان ته] درې طلاقه ورکولای سي لِأَنَّ كَلِمَةَ مَا مُحْكَمَةٌ فِي التَّعْمِيمِ ځکه چي کلمه "مَا" د تَعْمِيم لپاره يقيني ده وَكَلِمَةَ مِنْ قَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلتَّمْيِيزِ او کلمه د مِنْ کله د تمييز لپاره استعماليږي فَحُمِلَ عَلَى تَمْيِيزِ الْجِنْسِ نو ځکه به د جنس پر تمييز حمل کيږي كَمَا إِذَا قَالَ: كُلْ مِنْ طَعَامِي مَا شِئْتَ أَوْ طَلِّقْ مِنْ نِسَائِي مَنْ شَاءَتْ لکه په هغه صورت کي چي کله ايو څوک بل سړي ته داسي] ووايي: كُلْ مِنْ طَعَامِي مَا شِئْتَ [زما له خوراک څخه چي څومره ستا خوښه وي وريې خوره!] يا طَلِّقْ مِنْ نِسَائِي مَنْ شَاءَتْ [زما په ښځو کي چي کومه يوه طلاق غواړي هغې ته طلاق ورکړه!] [نو په دې صورت کي دا سړی هغه ټوله خوراک خوړلای سي، او که ټولي ښځي طلاق وغواړي، نو ټولو ته طلاق ورکولای سي] وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ كَلِمَةَ مِنْ حَقِيقَةٌ لِلتَّبْعِيضِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي کلمه د "مِنْ" د تبعيض لپاره حقيقت دی وَمَا لِلتَّعْمِيمِ او [کلمه د] "مَا" د تعميم لپاره ده فَعُمِلَ بِهِمَا نو په دواړو به عمل کيږي وَفِيمَا اسْتَشْهَدَا بِهِ تُرِكَ التَّبْعِيضُ بِدَلَالَةِ إِظْهَارِ السَّمَاحَةِ او په کوم شي سره چي صاحبينو دليل نيولی دی په هغه کي د سخاوت د اظهار په دلالت سره تبعيض پرېښوول سوی دی أَوْ لِعُمُومِ الصِّفَةِ يا [په هغه کي] د صفت د عموم په وجه سره [تبعيض پرېښوول سوی دی] وَهِيَ الْمَشِيئَةُ او د صفت عموم مشيئت دی حَتَّى لَوْ قَالَ: مَنْ شِئْتَ همدا وجه ده که خاوند ووايي: [طَلِّقْ مِنْ نِسَائِي] مَنْ شِئْتَ كَانَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ نو هم به پر دغه اختلاف وي.

**اللغات:** ﴿مُحْكَمَةٌ﴾ د افعال له باب څخه مؤنث اسمِ مفعول دی: پوخ، مضبوط، يقيني. ﴿كُلْ﴾ د نصر له باب څخه د واحد مذکر أمر صيغه ده: خوړل. ﴿تَبْعِيض﴾ د تفعيل مصدر دی: بعض کېدل، بعضيت ښوول. ﴿سَمَاحَة﴾ سخاوت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځي ته داسي ووايي: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ مِنْ ثَلَاثٍ مَا شِئْتِ (په دريو طلاقو کي چي څو طلاقه ستا خوښيږي، هغه واقع کړه)، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ښځي ته اختيار دی که پر خپل ځان يو طلاق واقع کوي او که دوه طلاقه، لېکن هغې ته د دريو طلاقو اجازه نسته، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغې ته د دريو طلاقو د واقع کولو اختيار هم سته.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د "مَا" کلمه د تعميم لپاره قطعي (محکم) او يقيني ده، او د مَنْ کلمه کله د تميز يعني د بيان لپاره راځي، لکه په دې آيت کې چې د بيان لپاره راغلې ده: فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ، او کله د تبعيض لپاره راځي، او کله له دې دواړو څخه بغير د بل شي لپاره راځي (يعني کله له تميز او تبعيض څخه پرته نور احتمالات هم پکښې وي)، نو دلته د خاوند په کلام کې محکم او محتمل دواړه سره جمع شول، نو د يُحْمَلُ الْمُحْتَمَلُ عَلَى الْمُحْكَمِ په قاعدې سره به محتمل پر محکم حمل کيږي، او "مِنْ" به بيانيه وګرځول کيږي (او د تعميم معنیٰ به ځني مراديږي)، او د خاوند د کلام مطلب به دا وي چې "ته ځومره طلاقونه وغواړې، هغه واقع کړه، يعني درې)، نو ځکه به ښځې ته د دريو طلاقو د واقع کولو اختيار هم وي.

او د دې مثال دا دی لکه يو سړی چې ووايي: كُلْ مِنْ طَعَامِيْ... "يعني ځومره چې ستا خوښه وي، هغومره زما ډوډۍ وخوره، يا زما په ښځو کې چې کومه ښځه طلاق غواړي، هغې ته طلاق ورکړه"، نو په دې دواړو صورتونو کې مِنْ بيانيه منل کيږي، يعني که مأمور وغواړي، نو ټوله ډوډۍ خوړلای سي، همدارنګه که د آمر (مؤکِل) هره ښځه طلاق غواړي، نو مأمور هري ښځې ته طلاق ورکولای سي، لهذا ځرنګه چې په دې دوو مثالو کې مِنْ پر بيان حمل کيږي (او د تعميم معنیٰ ځني مراديږي) او د تبعيض معنیٰ پرېښوول کيږي، نو د کتاب په مسئله کې به هم مِنْ د بيان لپاره وي (او د تعميم معنیٰ به ځني مراديږي)، او ښځې ته به د دريو طلاقو اختيار وي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې مِنْ په تبعيض کې حقيقت دی (يعني دا حرف په حقيقت کې د تبعيض لپاره راځي)، او مَا په تعميم کې حقيقت دی، او قاعده دا ده چې تر ځو پر حقيقت عمل کول ممکن وي، تر هغه وخته به نه د مجاز وطرف ته رجوع کيږي، او نه به حقيقت پرېښوول کيږي، او دلته د مِنْ او مَا پر حقيقت عمل ممکن هم دی، په دې توګه چې د عام بعض مراد کړی سي، يعني ښځې ته د دوو طلاقو اختيار ورکول سي، او د دوو عدد همداسې دی (يعني د عام بعض دی)، ځکه چې د يوه (وَاحِد) په اعتبار سره د دوو عدد عام دی، او د دريو (ثَلاث) په اعتبار هغه د عام بعض دی،

لهذا کله چي دلته د مِنْ پر حقیقت عمل کول ممکن دي، نو پر حقیقت به عمل کیږي. او محتمل به پر محکم نه حمل کیږي.

وانما استشهدا به الخ: صاحبینو چي په خپل تائید کي کوم دوه مثالونه ذکر کړي وه، په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي په هغه دوارو مثالو کي د تبعیض د معنیٰ پر تَرْک او پرېښوولو قرینه موجوده ده، په اول مثال کي قرینه دا ده چي په داسي کلام (کُلْ مِنْ طَعَامِي...) سره د سړي مقصود دا وي چي د مېلمنو مخته خپل د سخاوت او د پراخ نیت اظهار وکړي، او پراخ نیت او سخاوت هغه وخت ثابتیږي، کله چي داسي کلام (کُلْ مِنْ طعَامِیْ...) پر عموم حمل کړی سي. لهذا په دې مثال کي د دغه قرینې په وجه د بیان او تعمیم معنیٰ پیدا سوې ده. نه ستاسو د ذکر سوي قاعدې په وجه.

په دویم مثال کي قرینه دا ده چي په طَلِّقْ مِنْ نَسِائِیْ مَنْ شَاءَتْ کي مِنْ نکره موصوف دی. او مشیت (شَاءتْ) د هغه صفت دی، او مشیت صفتِ عامه دی، او قاعده دا ده چي کله نکره په صفتِ عامه سره متصف سي، نو په نکره کي عموم پیدا کیږي، لهذا په دې مثال کي د تعمیم وجه ستاسو قاعده نه ده بلکي همدغه قاعده ده چي اوس مونږ بیان کړه.

همدا وجه ده که خاوند د طَلِّقْ مِنْ نِسَائِیْ مَنْ شَاءَتْ پر ځای مَنْ شِئْتَ ووایي. نو په دې صورت کي هم دغه پورتنی اختلاف دی، یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مِنْ پر حقیقت (تبعیض) باندي د عمل کولو لپاره کم از کم یوه ښځه غیرِ مطلقه پاتېدل ضروري دي، او څرنګه چي د صاحبینو په نېز په مِنْ نِسَائِیْ کي مِنْ د بیان لپاره دی، لهذا که مأمور وغواړي نو ټولو ښځو ته طلاق ورکولای سي.



# بَابُ الْأَيْمَانِ فِي الطَّلَاقِ

## (دا) باب د أيمان فی الطلاق (د احکامو په بيانځ کي) دی

**تشريح:** مخکښي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله مُنجّز طلاق د خپلو ټولو اقسامو (صريح او کنايه) سره بيان کړی. اوس تر هغه وروسته مُعَلّق طلاق بيانوي، طلاق معلق ځکه تر طلاق منجز وروسته بيانوي چي: ① منجز أصل دی، او معلق فرع دی، او فرع تر اصل وروسته وي، ② او بل دا چي منجز مفرد دی، او معلق مرکب دی (ځکه چي طلاق معلق له حرف شرط او طلاق دوو شيانو څخه مرکب دی)، او مرکب تر مفرد وروسته وي، نو په دې وجه صاحب د کتاب طلاقِ معلق تر منجز طلاق وروسته کړی دی.

**أيمان:** جمع د يَمِيْنٌ، يَمِيْن په لغت کي "قوت" ته وايي، او راسته لاس ته هم يَمِيْن وايي، ځکه چي په راسته لاس کي د چپه لاس په نسبت زيات قوت وي، او قسم ته هم يَمِيْن وايي، ځکه چي په قسم سره د انسان خبره قوي کيږي، او د طلاق په باب کي چي کله د يَمِيْن لفظ استعمال سي، نو بيا د يَمِيْن مطلب او مفهوم دا وي چي: طلاق پر داسي شي معلق کول چي په هغه کي د شرط او جزاء معنیٰ پيدا سي. (أحسن الهداية ج:۲، ص:۲۵۰)

### د نکاح پر شرط طلاق معلق کول

وَإِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى النِّكَاحِ او کله چي [خاوند] د نکاح وطرف ته د طلاق نسبت وکړي وَقَعَ عَقِيْبَ النِّكَاحِ نو تر نکاح وروسته به طلاق واقع کيږي مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ لِامْرَأَةٍ: إِنْ تَزَوَّجْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ مثلاً [يو سړی] يو ښځي ته [داسي] ووايي: که چيري ما ستا سره نکاح وکړه نو ته [پر ما] طلاقه يې! أَوْ كُلُّ امْرَأَةٍ أَتَزَوَّجُهَا فَهِيَ طَالِقٌ يا [ووايي] د هري ښځي سره چي زه نکاح وکړم نو هغه [پر ما] طلاقه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَقَعُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي طلاق نه واقع کيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام[1]: لَا طَلَاقَ قَبْلَ النِّكَاحِ ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: تر نکاح مخکښي طلاق نسته وَلَنَا: أَنَّ هٰذَا تَصَرُّفُ يَمِيْنٍ

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه فی كتاب الطلاق، باب لا طلاق قبل النكاح، حديث رقم: ۲۰۴۸، ۲۰۴۹.

لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ وَالْجَزَاءِ زموږ دليل دا دی: چي د شرط او جزاء د وجود په سبب دا د قسم تصرف [تصرف يمين] دی فَلَا يُشْتَرَطُ لِصِحَّتِهٖ قِيَامُ الْمِلْكِ فِي الْحَالِ نو ځکه به د هغه د صحيح کېدلو لپاره في الحاله د ملکيت قائمېدل شرط نه وي لِأَنَّ الْوُقُوْعَ عِنْدَ الشَّرْطِ ځکه چي [د طلاق] واقع کېدل د شرط په وخت کي دي وَالْمِلْكُ مُتَيَقَّنٌ بِهٖ عِنْدَهٗ او په هغه وخت کي خو ملکيت يقيني دی وَقَبْلَ ذٰلِكَ أَثَرُهُ الْمَنْعُ او د شرط تر وجود مخکي د يمين أثر منع [ځان ساتل] دي اله مشروط او جزاء څخه] وَهُوَ قَائِمٌ بِالْمُتَصَرِّفِ او هغه [ځان ساتل] په متصرف [قسم کونکي] سره قائم دي وَالْحَدِيْثُ مَحْمُوْلٌ عَلٰى نَفْيِ التَّنْجِيْزِ او حديث د طلاق منجز پر نفي حمل کړی سوی دی وَالْحَمْلُ مَأْثُوْرٌ عَنِ السَّلَفِ كَالشَّعْبِيِّ وَالزُّهْرِيِّ وَغَيْرِهِمَا او دا حمل کول [محمول کول] له سلفو مثلاً د امام شعبي او زهري او داسي نورو څخه نقل سوی دی.

**اللغات:** ﴿أَضَافَ﴾ د افعال ماضي ده: يو شي ته د بل شي نسبت کول، منسوبه کول (موقوفه کول، ﴿يَمِيْن﴾ قسم، ﴿مُتَيَقَّن﴾ د تفعّل اسم مفعول دی: يقيني، ﴿تَنْجِيْز﴾ د تفعيل مصدر دی: يو کار فوراً (سمدستي) کول، فوراً واقع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی طلاق پر نکاح معلق کړي او داسي ووايي: كُلُّ إِمْرَأَةٍ أَتَزَوَّجُهَا فَهِيَ طَالِقٌ، يا مثلاً يو ښځي ته ووايي: إِنْ تَزَوَّجْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ، نو په دې صورت کي زموږ په نېز تر نکاح وروسته سمدستي طلاق واقع کيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي نه واقع کيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا حديث دی: لَا طَلَاقَ قَبْلَ النِّكَاحِ (يعني تر نکاح مخکي طلاق نسته)، له دې حديث څخه دا معلوميږي چي تر نکاح مخکي طلاق نه واقع کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي دلته خاوند د ښځي طلاق د هغې پر نکاح معلق کړی دی، نو د خاوند دا قول تَزَوَّجْتُكِ شرط دی او فَأَنْتِ طَالِقٌ جزاء ده، او د شرط او جزاء په سبب دا کلام تصرف يمين (د قسم تصرف) دی، او په تصرف يمين کي دا ضروري نه دي چي حالف (قسم کونکي) لره به د تعليق په وخت کي ملکيت ثابت وي، بلکي په تصرف يمين کي د حالف لپاره د شرط موجودېدلو په وخت کي د ملکيت ثابتېدل ضروري دي، او ښکاره خبره ده چي کله (په دې صورت کي) خاوند د ښځي سره نکاح وکړي نو په هغه وخت کي خاوند لره د طلاق ملکيت يقيناً ثابتيږي، نو به د هغه په ملکيت کي طلاق واقع سي، نو ځکه به دلته د خاوند تعليق صحيح وي (او د حديث مخالفت به نه راځي)، او

د شرط تر وجود وروسته به د خاوند معلق کړی سنوي طلاق واقع کيږي (زموږ د دليل په لنډه توګه داسي هم ويل کېدای سي چي د شرط ويلو په وخت کي د نکاح موجودېدل ضروري نه دي، بلکي کله چي طلاق واقع کيږي، په هغه وخت کي د نکاح موجودېدل ضروري دي، او دلته خاوند د نکاح پر شرط طلاق ور کړی دی، نو د طلاق په وخت کي به يقيناً نکاح (او ملکيت) ثابت وي، لهذا په دې وخت کي به د طلاق په وقوع سره د حديث مخالفت نه راځي، ځکه چي تر نکاح مخکي طلاق نسته، او دلته خو د نکاح په وخت کي طلاق واقع کيږي).

**وقبل ذلك إلخ:** او د شرط تر وجود مخکي يمين (قسم) هيڅ أثر نه کوي، بلکي د شرط تر وجود مخکي د هغه أثر فقط دومره دی چي قسم کونکي (حالف) چي د کوم شي قسم اخيستی دی، له هغه شخه به ځان ساتي، او دا ځان ساتل د قسم کونکي کار دی، د طلاق واقع کېدل د هغه سره هيڅ تعلق نه لري.

**والحديث إلخ:** په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب ور کوي، فرمايي چي دا حديث پر طلاق منجز محمول دی، يعني که تر نکاح مخکي څوک طلاق ور کول وغواړي، نو طلاق نه واقع کيږي، او د حديث مطلب دا نه دی چي د شرط تر وجود وروسته او د نکاح تر وجود وروسته هم طلاق نه واقع کيږي، لکه څرنګه چي له حضرت شعبي او حضرت زهري رَحِمَهُمَا الله څخه د حديث همدغه تأويل منقول دی: عن الشعبي أنه سئل عن رجل قال لامرأته: كل امرأة تزوجتها عليكِ فهي طالق. قال: فكل امرأة يتزوجها عليها فهي طالق (مصنف ابن أبي شيبة ج:۴، ص:۶۶، رقم:۱۷۸۳۲)، عن الزهري في رجل قال: كل امرأة اتزوجها فهي طالق، وكل أمة أشتريها فهي حرة. قال: كما قال. (مصنف عبد الرزاق، ج:۶، ص:۳۲۵، رقم:۱۱۵۱۹)

## د طلاق معلق بالشرط حکم

وَإِذَا أَضَافَهُ إِلَى شَرْطٍ او کله چي [خاوند] طلاق د يو شرط وطرف ته منسوب کړي وَقَعَ عَقِيبَ الشَّرْطِ نو تر شرط وروسته [طلاق] واقع کيږي مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ لِامْرَأَتِهِ: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ مثلاً خپلي ښځي ته [داسي] ووايي: که چيري ته کور داخله سوې نو [پر ما] طلاقه يې وَهٰذَا بِالِاتِّفَاقِ او دا [مسئله] متفق عليها ده لِأَنَّ الْمِلْكَ قَائِمٌ فِي الْحَالِ ځکه چي [په دغه صورت کي] في الحاله [اوس] ملکيت قائم دی وَالظَّاهِرُ بَقَاؤُهُ إِلَى وَقْتِ وُجُوْدِ الشَّرْطِ او ظاهر د هغه بقاء ده د شرط د وجود تر وخته پوري [يعني دا ښکاره خبره ده چي د شرط تر موجودېدلو پوري به ملکيت قائم او موجود وي] فَيَصِحُّ يَمِيْنًا أَوْ

إِيقَاعًا لهذا يميناً [د شرط په اعتبار سره] او د واقع کولو په اعتبار سره [د هغه معلق کول] صحيح دي وَلَا تَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْحَالِفُ مَالِكًا أَوْ يُضِيفَهُ إِلَى مِلْكٍ او طلاق منسوبه کول صحيح نه دي خو دا چي قسم کونکی مالک وي يا هغه طلاق د خپل ملکيت وطرف ته منسوب کړي لِأَنَّ الْجَزَاءَ لَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ ظَاهِرًا ځکه چي د جزاء ښکاره کېدل ضروري دي لِيَكُونَ مُخِيفًا د دې لپاره چي هغه [جزاء] بېرونکې وګرځي فَيَتَحَقَّقُ مَعْنَى الْيَمِينِ وَهُوَ الْقُوَّةُ وَالظُّهُورُ بِأَحَدِ هَذَيْنِ نو په دې دواړو [صورتونو] کي به د يوه په ذريعه د يمين معنیٰ ثابته سي چي هغه قوت او د قوت ښکاره کېدل دي وَالْإِضَافَةُ إِلَى سَبَبِ الْمِلْكِ بِمَنْزِلَةِ الْإِضَافَةِ إِلَيْهِ او د ملکيت د سبب وطرف ته [د طلاق] نسبت کول داسي دي لکه د ملکيت وطرف ته [د طلاق] نسبت کول لِأَنَّهُ ظَاهِرٌ عِنْدَ سَبَبِهِ ځکه چي جزاء د ملکيت د سبب په وخت ښکاره کيږي فَإِنْ قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ او که [يو سړی] يو پردۍ ښځي ته [داسي] ووايي: که ته کور ته داخله سوې نو تا ته طلاق دی ثُمَّ تَزَوَّجَهَا بيا هغه د دې [پردۍ ښځي] سره نکاح وکړي فَدَخَلَتِ الدَّارَ او دا ښځه کور ته داخله سي لَمْ تَطْلُقْ نو نه طلاقيږي لِأَنَّ الْحَالِفَ لَيْسَ بِمَالِكٍ ځکه چي قسم کونکی نه د ښځي مالک دی وَلَا أَضَافَهُ إِلَى الْمِلْكِ أَوْ سَبَبِهِ او نه يې طلاق د ملکيت يا د هغه د سبب وطرف ته منسوب کړی دی وَلَا بُدَّ مِنْ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حال دا چي [د نسبت او تعليق د صحت لپاره] په دې دواړو کي يو ضروري دی.

**اللغات:** ﴿حَالِف﴾ د ضرب له باب څخه اسمِ فاعل دی، حَلَفَ يَحْلِفُ حَلْفًا و حِلْفًا: قسم کول، په يو شي قسم خوړل.

**تشريح:** په دې عبارت کي څو مسئلې بيان سوي دي: (۱)... اوله مسئله دا ده که خاوند د خپلي ښځي طلاق پر يو شرط معلق کړي، نو کله چي هم هغه شرط موجود سي، طلاق واقع کيږي، مثلاً خاوند خپلي ښځي ته ووايي: "که ته کور ته داخل سوې، نو پر ما طلاقه يې"، يا مثلاً "که ته بيا بازار ته ولاړې، نو پر ما طلاقه يې"، نو کله چي هم شرط موجود سي يعني ښځه کور ته داخله سي، يا بازار ته ولاړه سي، نو سمدستي طلاق واقع کيږي.

دا مسئله متفق عليها ده، دليل دا دی چي په دې مسئله کي چي حالف (خاوند) په کوم وخت کي شرط لګولی دي، په هغه وخت کي د ده (خاوند) ملکيت قائم دی، يعني ښځه د ده په نکاح کي ده (پردۍ ښځه نه ده)، او ښکاره خبره ده چي د ده دا ملکيت به د شرط د موجودېدلو تر وخته پوري

پاتېږي، نو طلاق به هم د ملكيت په وخت كي (او په ملكيت كي دننه) واقع سي، نو ځكه دا مسئله متفق عليها ده او د ټولو په نېز د خپلي ښځي طلاق پر يو شي معلق كول جائز دي.

## ﴿ د تعليق قاعدهٔ كليه ﴾

(۲) ... دويمه مسئله (كوم چي په حقيقيت كي د كُلي قاعدې حيثيت لري)، دا ده چي د طلاق تعليق (معلق كول) په دوو صورتونو كي صحيح دي: ① يو صورت دا چي په كوم وخت كي چي حالف شرط لګوي، په هغه وخت كي به د حالف ملكيت قائم او موجود وي، نو په دې صورت كي د هغه شرط لګول صحيح دي، ② دويم صورت دا چي كه د حالف ملكيت قائم نه وي نو بيا به د خپل ملكيت وطرف ته نسبت كوي او شرط به لګوي (يعني د خپل ملكيت د سبب وطرف ته به جزاء نسبت كوي او شرط به لګوي)، مثلاً داسي به وايي: "كله چي زه ستا سره نكاح وكړم، نو ته ما پر ما طلاقه يې"، نو په دې صورت كي هم شرط لګول صحيح دي، او كه په دې دواړو كي يو صورت نه وي، نو نه شرط صحيح كيږي، او نه طلاق واقع كيږي.

لأن الجزاء إلخ: پورتني دوه صورتونه ځكه صحيح دي چي يمين په لغت كي "قوت" ته وايي، او په قسم كولو سره د حالف (خاوند) مقصد دا وي چي مخاطب (ښځه) د جزاء له واقع كېدلو څخه وبيرېږي، او قوت په دوو صورتونو ښكاره كېداى سي: ① يا دا چي مخاطب (ښځه) د حالف په ملكيت كي وي (يعني د حالف ملكيت موجود وي)، ② يا دا چي د ملكيت و طرف ته د جزاء نسبت وكړي (يعني د ملكيت وسبب ته د طلاق نسبت وكړي)، د دې لپاره چي كله جزاء واقع كيږي، نو په هغه وخت كي مخاطب په ملكيت كي وي، او د دې جزاء له واقع كېدلو څخه وبيرېږي.

والإضافة إلخ: فرمايي چي د ملكيت د سبب (يعني كه زه ستا سره نكاح وكړم نو ته پر ما طلاقه يې) وطرف ته نسبت كول داسي دي لكه د ملكيت وطرف ته نسبت كول، ځكه چي د ملكيت د سبب په وخت كي (يعني د نكاح كولو په وخت) كي جزاء ښكاره كيږي، تر هغه مخكي نه ښكاره كيږي، نو ځكه موږ وايو چي كله ملكيت قائم نه وي او ښځه د خاوند په نكاح كي نه وي، نو د هغې پر نكاح به طلاق معلق كول صحيح وي.

(۳)... دريمه مسئله پر پورتنۍ قاعدې متفرع ده، حاصل يې دا دی چي كه يو سړی پردۍ ښځي (أجنبيه) ته ووايي: "كه ته كور ته داخله سوې نو پر ما طلاقه يې"، او بيا هغه سړی د دغه ښځي سره نكاح وكړي، او دا كور ته داخله سي، نو طلاق نه واقع كيږي، ځكه په قاعده كي تاسو ووېل چي تعليق او اضافت هغه وخت صحيح كيږي چي كله د حالف ملكيت قائم وي، يا حالف د ملكيت د سبب وطرف ته نسبت وكړي، او دلته دواړه صورتونه نسته، ځكه چي ښځه د هغه په ملكيت كي نه

دہ، او هغه د نكاح وطرف ته د طلاق نسبت هم كړی نه دي، بلكې د دُخُولُ الدَّار وطرف ته يې نسبت كړی دی كوم چې د ملكيت د سبب سره هيڅ تعلق نه لري، نو ځكه به نه دا تعليق صحيح وي، او نه به طلاق واقع كيږي.

## د شرط الفاظ

وَأَلْفَاظُ الشَّرْطِ إِنْ وَإِذَا وَإِذَا مَا وَكُلُّ وَكُلَّمَا وَمَتٰى وَمَتٰى مَا او [په عربي كې] د شرط الفاظ دا دي: إِنْ، إِذَا، إِذَا مَا، كُلُّ، كُلَّمَا، مَتٰى او مَتٰى مَا لِأَنَّ الشَّرْطَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْعَلَامَةِ ځكه چې شرط له علامت څخه مشتق دی وَهٰذِهِ الْأَلْفَاظُ مِمَّا تَلِيهَا أَفْعَالٌ او دا الفاظ داسې دي چې د دوی سره افعال متصل كيږي فَتَكُونُ عَلَامَاتٍ عَلَى الْحِنْثِ نو هغوی به پر حانثېدلو [او جزاء واقع كېدلو] علامات [نښې] وي ثُمَّ كَلِمَةُ إِنْ صِرْفٌ لِلشَّرْطِ بيا كلمه د إِنْ خالص د شرط لپاره ده لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهَا مَعْنَى الْوَقْتِ ځكه چې په كلمه د إِنْ كې د وخت معنىٰ نسته وَمَا وَرَاءَهَا مُلْحَقٌ بِهَا او له إِنْ څخه بغير نور الفاظ د إِنْ سره ملحق دي وَكَلِمَةُ كُلِّ لَيْسَتْ شَرْطًا حَقِيقَةً او كلمه د كُل حقيقتاً د شرط لپاره نه ده لِأَنَّ مَا يَلِيهَا اِسْمٌ ځكه چې د كُلّ سره اسم متصل كيږي وَالشَّرْطُ مَا يَتَعَلَّقُ بِهِ الْجَزَاءُ او شرط هغه وي چې د هغه سره جزاء متعلق كيږي وَالْأَجْزِيَةُ تَتَعَلَّقُ بِالْأَفْعَالِ او جزاګانې د افعالو سره متعلق كيږي إِلَّا أَنَّهُ أُلْحِقَ بِالشَّرْطِ لِتَعَلُّقِ الْفِعْلِ بِالْاِسْمِ الَّذِي يَلِيهَا ليكن دا كلمه [بيا هم] ځكه د شرط سره لاحقه كړی سوه چې فعل د هغه اسم سره متصل كيږي كوم اسم چې د دغه كلمې سره متصل وي [نو ځكه دا كلمه (كُلْ) د شرط په معنیٰ سره وګرځول سوه او د شرط د الفاظو څخه وشمارل سوه] مِثْلُ قَوْلِكَ كُلُّ عَبْدٍ اِشْتَرَيْتُهُ فَهُوَ حُرٌّ لكه ستا دا قول: هر هغه غلام چې زه يې رانيسم نو هغه آزاد دی قَالَ: فَفِي هٰذِهِ الْأَلْفَاظِ إِذَا وُجِدَ الشَّرْطُ انْحَلَّتْ وَانْتَهَتِ الْيَمِينُ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: په دې الفاظو چې كله هم شرط پيدا سي [موجود سي] نو قسم پوره كيږي او ختميږي لِأَنَّهَا غَيْرُ مُقْتَضِيَةٍ لِلْعُمُومِ وَالتَّكْرَارِ لُغَةً ځكه چې دا الفاظ د لغت په اعتبار سره د عموم او تكرار تقاضا نه كوي فَبِوُجُودِ الْفِعْلِ مَرَّةً يَتِمُّ الشَّرْطُ لهذا يو وار د فعل په موجودېدلو سره شرط پوره كيږي وَلَا بَقَاءَ لِلْيَمِينِ بِدُونِهِ او له شرط څخه بغير يمين باقي نه پاتيږي إِلَّا فِي كَلِمَةِ كُلَّمَا مګر په كلمه د كُلَّمَا كې فَإِنَّهَا تَقْتَضِي تَعْمِيمَ الْأَفْعَالِ ځكه چې دا كلمه د افعالو د عموم تقاضا كوي قَالَ اللهُ تَعَالَى كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ [النساء: ٥٦] الله تعالىٰ فرمايلي دي: هر كله چې پاخه سي [وسوځيږي] پوستكي د دوی

[په اُور کې نو موږ بدلوو د هغوی پوستکي په نورو پوستکو سره] وَمِنْ ضَرُوْرَةِ التَّعْمِيْمِ التَّكْرَارُ او د تعميم له ضرورت څخه تکرار دی [نو ځکه به بار، بار جزاء واقع کيږي]

**اللغات**: ﴿يَلِيْ﴾ د ضرب مضارع ده: متصل کېدل، څرمه کېدل، نژدې کېدل. ﴿حِنْث﴾ د سمع مصدر دی: قسم ماتېدل (قسم خوړل). ﴿صِرْفٌ﴾ خالص، سوچه، ويل کيږي: شَرَابٌ صِرْف: خالص شراب چې بل د هيڅ ګډون پکښې نه وي (مصباح اللغات: ۴۴۷). ﴿أُلْحِقَتْ﴾ د افعال ماضي مجهوله ده: لاحق کول، يو ځای کول. ﴿إِنْحَلَّتْ﴾ د انفعال ماضي ده: خلاصېدل. ﴿نَضِجَتْ﴾ د سمع د باب ماضي ده: پخېدل (د غوښې يا مېوې د پخېدو لپاره راځي). ﴿جُلُوْدٌ﴾ جمع د جِلد ده: پوست (پوستکي)، څرمن.

**تشريح**: په دې عبارت کې د شرط کلمات بيانيږي، صاحب د کتاب ځکه دا کلمات په الفاظُ الشرط سره نومولي دي، چې په دې کلماتو کې فقط د إنْ کلمه حرف ده، نور ټوله کلمې اسماء دي، نو د ټولو د رعايت کولو په خاطر يې الفاظُ الشرط ورته ويلي دي (نه حروفُ الشرط). د دې لپاره چې کلام اسماء او حروفو دواړو ته شامل سي.

**د الفاظُ الشرط وجه تسميه**: صاحب د هدايې فرمايي چې شرط د علامت څخه مشتق دی (يعني د هغه شرط څخه مشتق دی چې هغه د علامت او نښې په معنیٰ سره دی، ځکه چې د شرط دوې معناوي دي: ① شرط لګول، ② علامت او نښه، او دلته له دويمې معنیٰ څخه مشتق دی)، او دغه د شرط الفاظ او حروف چې د کوم فعل څخه مخکې يا وروسته راسي، نو د هغه فعل لپاره دوی علامت او نښه وي چې تر شرط لګېدلو وروسته کېدای سي چې هغه (شرط لګونکی) حانث سي، نو څرنګه چې کله نا کله دا الفاظ د حانث کېدلو علامت او نښه وي، نو ځکه دوی ته د شرط الفاظ او حروف ويل کيږي. (أثمار الهداية)

**ثم كلمة إن إلخ**: فرمايي چې په دې ټولو الفاظو کې د شرط لپاره تر ټولو أصلي او يقيني د "إنْ" کلمه ده، ځکه چې په "إنْ" کې د وخت څه شبهه هم نسته، لهٰذا د أصل شرط لپاره همدغه کلمه متعين ده، او له دې څخه بغير نور ټوله الفاظ د "إنْ" د کلمې سره لاحق دي، ځکه چې په هغوی کې هم د شرط معنیٰ سته.

**وكلمة كل إلخ**: فرمايي چې د "کُل" کلمه په حقيقت کې د شرط لپاره نه ده، ځکه چې دا کلمه د اسم سره متصل کيږي او شرط جوړيږي، او د فعل سره نه متصل کيږي، او د شرط سره جزاء متعلق کيږي، او

جزاء د افعالو سره متعلق کيږي، نه د اسماؤ سره، لهذا دا کلمه په حقيقت کي د شرط لپاره نه ده، خو ځرنګه چي دا کلمه د هغه اسم سره متصله وي د کوم اسم سره چي فعل په لازمي توګه متصل وي، نو په دې وجه دا کلمه د شرط سره لاحق سوه او د شرط له الفاظو ځخه وشمېرل سوه، مثلاً په كُلُّ عَبْدٍ اِشْتَرَيْتُهُ فَهُوَ حُرٌّ کي كُلُّ د عَبْد اسم سره متصل دی، او اِشْتَرَيْتُ فعل د دې اسم (عَبْدٍ) سره په داسي توګه ور سره متصل دی چي ګواکي د كُلُّ او اِشْتَرَيْتُ تر مينځ هيڅ فصل او بېلتون نسته.

**قال الشيخ**: فرمايي کله چي تاسو ته معلومه سوه چي إنْ او إذَا او داسي نور الفاظ د شرط لپاره استعماليږي، نو اوس د دوی حکم هم په ياد لرئ!، حکم دا دی چي په دوی کي چي هر لفظ هم د شرط لپاره استعمال سي، او بيا شرط موجود سي، نو قسم پوره کيږي او ختميږي او بس! (نو که دوباره شرط پيدا سي، نو بيا دوباره طلاق نه واقع کيږي).

دليل دا دی چي د كُلَّمَا ځخه بغير نور ټوله د شرط الفاظ د عموم او تکرار تقاضانه کوي، نو يو وار د فعل په واقع کېدلو سره شرط پوره کيږي، او له شرط ځخه بغير يمين باقي نه پاتيږي، لهذا په هغه اول وار يمين هم ختميږي.

او ځرنګه چي د كُلَّمَا کلمه په افعالو کي د تعميم تقاضا کوي، لکه د قرآن دا آيت چي د دې ګواهي ور کوي: كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ، او د تعميم لپاره تکرار لازم دی، ځکه چي تکرار د تعميم د لوازماتو ځخه دی، نو په دې وجه به د كُلَّمَا په کلمه کي د شرط تر موجودېدلو وروسته هم يمين باقي پاته وي (او هغه وخت به د كُلَّمَا د تکرار تقاضا ختميږي، کله چي درې واره شرط موجود سي، او درې واره طلاق واقع سي).

## د "كلما" د لفظ نور وضاحت

**قَالَ**: فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ ذٰلِكَ اَىْ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ فرمايي: بيا که [خاوند] د ښځي سره تر هغه يعني له دويم خاوند ځخه [تر حلاله کولو] وروسته نکاح وکړي وَتَكَرَّرَ الشَّرْطُ او شرط مکرر سي لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ شی نه واقع کيږي لِأَنَّ بِاسْتِيفَاءِ الطَّلَقَاتِ الثَّلَاثِ الْمَمْلُوكَاتِ فِي هٰذَا النِّكَاحِ لَمْ يَبْقَ الْجَزَاءُ ځکه چي په دې نکاح کي د مملوکه دريو طلاقو تر حاصلولو وروسته جزاء باقي پاته نه سوه وَبَقَاءُ الْيَمِيْنِ بِهِ

وَبِالشَّرْطِ حالانکې د قسم باقي پاتېدل په جزاء او شرط سره دي وَفِيهِ خِلَافُ زُفَرَ او په دې کې د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف [هم] دی وَسَنُقَرِّرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى چې هغه به موږ انشاء هم وروسته بيان کړو.

**اللغات:** ﴿إِسْتِيْفَاء﴾ د استفعال مصدر دی: خپل حق پوره اخيستل، حاصلول.

**تشريح:** په تېر عبارت کې دا خبره ذکر سوه چې د شرط په الفاظو کې كُلَّمَا د تعميم او تکرار تقاضا کوي، په دې عبارت کې پر هغه تفريع کوي، حاصل د عبارت دا دی که د خاوند د كُلَّمَا کلمه استعمال کړي، مثلاً ښځې ته ووايي: كُلَّمَا دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ، او بيا درې واره شرط موجود سي، يعني درې واره ښځه کور ته داخله سي، نو اوس ښکاره خبره ده چې پر هغې درې طلاقه واقع کيږي او مغلظه ګرځي، لېکن که تر دې وروسته هغه د دويم خاوند سره نکاح وکړي او تر "حلاله" وروسته د دويم خاوند څخه طلاق واخلي او بيرته د اول خاوند سره نکاح وکړي، او بيا کور ته داخله سي، نو اوس څلورم وار پر ښځې طلاق نه واقع کيږي؛ ځکه په اوله نکاح کې چې خاوند د کومو دريو طلاقونو مالک وو، هغه خاوند حاصل کړل او پوره سول، لهذا جزاء هم پاته نه سوه، ځکه چې جزاء د اول ملکيت (اولې نکاح) درې طلاقه وه، نو کله چې جزاء منتفي سوه، نو قسم هم ختم سو (په طلاق کې له قسم څخه مراد همدغه د شرط او جزاء معنىٰ ده)؛ او کله چې قسم ختم سو، نو بيا به څرنګه شرط او جزاء موجود سي!، نو ځکه موږ وايو چې په دې صورت کې طلاق نه واقع کيږي.

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې كُلَّمَا د تکرار تقاضا کوي، لهذا که تر "حلاله" وروسته بيا شرط پيدا سي، نو بيا به هم طلاق واقع کيږي.

## د "كلما" د لفظ يو بل صورت

وَلَوْ دَخَلَتْ عَلَىٰ نَفْسِ التَّزَوُّجِ او که [كُلَّمَا] خودي پر تزوّج [نکاح کولو] داخله سي بِأَنْ قَالَ: كُلَّمَا تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً فَهِيَ طَالِقٌ په دې توګه چې [خاوند داسې] ووايي: کله چې هم زه د يو ښځې سره نکاح وکړم نو هغه [پر ما] طلاقه ده يَحْنَثُ بِكُلِّ مَرَّةٍ وَإِنْ كَانَ بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ نو [خاوند] په هر وار [نکاح کولو] سره حانثيږي که څه هم [نکاح کول] تر دويم خاوند وروسته وي لِأَنَّ انْعِقَادَهَا بِاعْتِبَارِ مَا يَمْلِكُ عَلَيْهَا مِنَ الطَّلَاقِ بِالتَّزَوُّجِ ځکه چې د قسم منعقد کېدل په دې وجه سره دي چې خاوند د نکاح کولو په ذريعه

پر ښځي د طلاق مالک سوی دی وَذٰلِكَ غَيْرُمَحْصُوْرٍ او دا نکاح غیرِ محدود [ناشمېره] ده انو به طلاق هم غیرِ محدود او ناشمېره وي]

**اللغات:** ﴿زَوَالَ﴾ د نصر مصدر دی: زائلېدل، ختمېدل، لیري کېدل (ملکیت د لاسه وتل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی د کُلَّمَا په کلمه سره قسم وکړي او داسي ووایي: "هر کله چي هم زه د یو ښځي سره نکاح کوم هغه پر ما طلاقه ده"، نو دا سړی هر وار حانث کېږي، یعني کله چي هم نکاح کوي، په خپل قسم کي حانث کېږي، او د هغه پر ښځي طلاق واقع کېږي، هغه که جدیده (نوې) ښځه وي، او که د ده خپله ښځه وي او د دویم خاوند سره تر نکاح (او حلاله) وروسته بیرته د ده په نکاح کي راغلې وي؛ دلیل دا دی چي دلته خاوند د کُلَّمَا په ذریعه طلاق د نکاح پر شرط معلق کړی دی، لهذا هر وار په نکاح کولو سره قسم منعقد کېږي او خاوند د طلاق مالک کېږي، او نکاح کول غیرِ محدود (لا متناهي) او ناشمېره دي، لهذا د نکاح پر شرط به معلق سوی طلاق هم غیرِ محدود او ناشمېره وي، او هر وار چي نکاح کوي، طلاق به واقع کېږي.

**په پورتني صورت کي د نکاح کولو حیله:** په پورتنۍ مسئله کي یعني کله چي سړی په کُلَّمَا سره قسم وکړي او وایي "چي هر کله او هر وار چي زه د یو ښځي سره نکاح کوم، هغه پر ما طلاقه ده"، نو په داسي صورت کي ځیني علماؤ د نکاح پاتېدلو دا حیله لیکلې ده چي دغه قسم کونکي سړی دي نه په خپله نکاح کوي، او نه دي بل څوک د نکاح وکیل جوړوي، بلکي یو مخلص ملګری دي د ده له اجازي څخه بغیر د ده نکاح وکړي، او دی (قسم کونکي) دي نکاح په ژبه سره نه قبلوي، بلکي هدیه (سوغات) یا یو شی دي ښځي ته واستوي، او د دلالت په توګه دي له نکاح څخه راضي سي، نو ځیني حضرات وایي چي په دغه طریقه سره د داسي سړي نکاح صحیح کېږي، او طلاق نه واقع کېږي، ځکه چي په دې صورت کي هغه په خپله نکاح کونکی او په خپله د نکاح تړونکی نه دی.

## د شرط د حکم نور وضاحت

قَالَ: وَزَوَالُ الْمِلْكِ بَعْدَ الْيَمِيْنِ لَا يُبْطِلُهَا فرمايي: چي تر قسم وروسته د ملکیت زائلېدل قسم نه باطلوي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الشَّرْطُ فَبَقِيَ ځکه چي شرط موجود نه سو نو به شرط باقي وي وَالْجَزَاءُ بَاقٍ لِبَقَاءِ مَحَلِّهِ او د محل د بقاء په وجه سره جزاء [هم] باقي ده فَبَقِيَ الْيَمِيْنُ نو ځکه به یمین [هم] باقي وي ثُمَّ إِنْ وُجِدَ الشَّرْطُ فِي مِلْكِهِ بیا که د حالف [خاوند] په ملکیت کي شرط موجود سي انْحَلَّتِ الْيَمِيْنُ وَوَقَعَ الطَّلَاقُ نو قسم پوره کېږي او طلاق واقع کېږي لِأَنَّهُ وُجِدَ الشَّرْطُ وَالْمَحَلُّ قَابِلٌ لِلْجَزَاءِ ځکه چي شرط

په داسي حال کي موجود سو چي محل د جزاء قابل دی فَيَنْزِلُ الْجَزَاءُ نو به جزاء نازله سي [ثابته سي] وَلَا يَبْقَى الْيَمِينُ او يمين به پاته نه سي لِمَا قُلْنَا دهغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَإِنْ وُجِدَ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ او که له ملکيت څخه په علاوه [غيرِ ملکيت] کي شرط موجود سي انْحَلَّتِ الْيَمِينُ لِوُجُوْدِ الشَّرْطِ نو قسم به پوره کيږي د شرط د موجودېدلو په وجه وَلَمْ يَقَعْ شَيْءٌ لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ او هيڅ شی به نه واقع کيږي د محل د نشتوالي په وجه.

**تشريح:** د دې عبارت مسئله پر يوه قاعده متفرع ده، قاعده دا ده چي که تر يمين وروسته ملکيت زائل سي، نو هم يمين باقي پاتيږي، او د ملکيت په زوال سره يمين نه باطليږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د خپلي ښځي طلاق پر دُخُوْلُ الدَّار معلق کړي او داسي ورته ووايي: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ، او د شرط تر موجودېدلو مخکي (يعني کور ته د ښځي تر دخول مخکي) خاوند هغې ته په أَنْتِ بَائِنٌ سره طلاقِ منجز ورکړي، او هغه بائنه وګرځي، او د خاوند ملکيت له ښځي څخه زائل سي، نو اوس په دې صورت کي د ملکيت په زوال سره يمين نه باطليږي، دليل دا دی چي د يمين بقاء په شرط او جزاء سره ده، او شرط موجود سوی نه دی، لهذا شرط باقي پاته سو، او د محل د بقاء په وجه سره جزاء هم باقي ده (ځکه چي خاوند ښځي ته طلاقِ بائن ورکړی دی، درې طلاقه يې نه دي ورکړي چي هغه دي د طلاق محل پاته نه سي)، لهذا کله چي شرط او جزاء دواړه باقي دي، نو يمين به هم باقي وي.

**ثم إن وجد إلخ:** د دې حاصل دا دی چي کله شرط او جزاء دواړه پاته دي، نو يو وخت نه يو وخت خو شرط موجوديږي، اوس د دې دوه صورتونه دي: ① يو صورت دا دی چي شرط د (حالف) خاوند په ملکيت کي موجود سي، يعني خاوند دويم ځل د ښځي سره نکاح وکړي، او بيا ښځه د هغه په نکاح کي کور ته داخله سي، ② دويم صورت دا دی چي شرط د خاوند په ملکيت کي موجود نه سي، يعني تر دويم ځل نکاح کولو مخکي ښځه کور ته داخله سي.

نو اوس په اول صورت کي طلاق واقع کيږي، او يمين پوره کيږي، طلاق خو ځکه واقع کيږي چي شرط (کور ته داخلېدل) د خاوند په ملکيت کي موجود سو، لهذا جزاء (طلاق) به هم واقع کيږي، ځکه چي جزاء د شرط سره متعلق ده، او يمين ځکه پوره کيږي چي د خاوند په کلام کي د إِنْ لفظ پر تکرار دلالت نه کوي، لهذا تر يو وار شرط موجودېدلو وروسته به يمين هم پوره کيږي.

او په دويم صورت کي خو يمين پوره کيږي ځکه چي شرط موجود سو. لېکن طلاق نه واقع کيږي، ځکه چي محل معدوم دی. يعني ښځه د خاوند په ملکيت کي نه ده. لهذا په دې صورت کي ښځه د جزاء (طلاق) قابل نه سوه. نو ځکه به طلاق نه واقع کيږي.

## په شرط کي د اختلاف کولو په صورت کي د معتبر قول بيان

وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الشَّرْطِ او که د شرط [په وجود] کي خاوند او ښځه دواړه اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ نو [په دې باره کي] به د خاوند قول معتبر وي إِلَّا أَنْ تُقِيمَ الْمَرْأَةُ الْبَيِّنَةَ خو دا چي ښځه گواه ونړوي لِأَنَّهُ مُتَمَسِّكٌ بِالْأَصْلِ ځکه چي خاوند په أصل سره [دليل] نيونکی دی وَهُوَ عَدَمُ وُجُودِ الشَّرْطِ او هغه د شرط نه موجودېدل دي وَلِأَنَّهُ يُنْكِرُ وُقُوعَ الطَّلَاقِ وَزَوَالَ الْمِلْكِ او ځکه چي خاوند د طلاق واقع کېدل او د ملکيت زائلېدلو انکار کوي وَالْمَرْأَةُ تَدَّعِيهِ او ښځه د دې [دواړو] دعویٰ کوي.

**اللغات: ﴿مُتَمَسِّكٌ﴾** د تفعّل اسم فاعل دی: نيونکی (لاس نيونکی)، تَمَسَّكَ يَتَمَسَّكُ تَمَسُّكًا: پر يو شي ځان نيول، ټينگېدل، منښتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند او ښځه د شرط په موجودېدو کي اختلاف وکړي. مثلاً خاوند ووايي چي شرط نه دی موجود سوی او طلاق نه دی واقع سوی، او ښځه ووايي چي شرط موجود سوی دی او طلاق واقع سوی دی، نو په دې صورت کي که د ښځي سره گواهان موجود نه وي، نو د خاوند قول به معتبر وي، لېکن که د ښځي سره گواهان وي، نو بيا به د ښځي گواهي قبليږي: دليل دا دی چي د خاوند قول د اصل موافق دی، ځکه چي اصل عدمِ شرط دی. او د کوم چا قول چي د اصل موافق وي، هغه ته مدعیٰ عليه وايي، نو ښځه مدعيه او خاوند مدعیٰ عليه سو. او په حديث کي ذکر سوي دي چي که د مدعي سره بينه نه وي، نو د مدعی عليه قول به معتبر وي.

دويم دليل دا دی چي خاوند د طلاق د وقوع او د ملکيت د زوال منکر دی. او ښځه د دې شيانو مدعيه ده. او د گواهۍ د نشتوالي په صورت کي د منکر قول معتبر کيږي. نو ځکه موږ وايو چي که د ښځي سره گواهان نه وي، نو بيا به د خاوند قول معتبر وي.

## په شرط کي د اختلاف کولو په صورت کي د معتبر قول بيان

فَإِنْ كَانَ الشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا بيا که شرط يو داسي شی وي چي هغه فقط د ښځي له طرفه معلومېدای سي فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّ نَفْسِهَا نو د خپل نفس په حق کي د ښځي خبره منل کيږي مِثْلُ أَنْ يَقُولَ: إِنْ حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَفُلَانَةٌ مثلاً [خاوند داسي] ووايي: که چيري تا ته حيض راسي نو تا او

فلانۍ ښځه [بڼ] ته طلاق دی **فَقَالَتْ: قَدْ حِضْتُ** بيا ښځه ووايي: ما ته حيض راغلی **طَلُقَتْ هِيَ وَلَمْ تَطْلُقْ فُلَانَةُ** نو [فقط] هغه طلاقېږي او پر فلانۍ ښځې طلاق نه واقع کېږي **وَوُقُوعُ الطَّلَاقِ اسْتِحْسَانًا** او [دلته] د طلاق واقع کېدل د استحسان پر بناء دي **وَالْقِيَاسُ: أَنْ لَا يَقَعَ** او قياس دا دی: چې طلاق دې واقع نه سي **لِأَنَّهُ شَرْطٌ** ځکه چې دا [هم] يو شرط دی **فَلَا تُصَدَّقُ** نو ځکه به [د ښځې] تصديق نه کيږي **كَمَا فِي الدُّخُولِ** لکه [کور ته] په داخلېدلو کې چې [د ښځې] تصديق نه کيږي **وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي حَقِّ نَفْسِهَا** د استحسان دليل دا دی: چې دا ښځه د خپل نفس په حق کې امانتداره ده **إِذْ لَا يُعْلَمُ ذَلِكَ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا** ځکه چې د حيض علم فقط د ښځې له طرفه کېدای سي **فَيُقْبَلُ قَوْلُهَا كَمَا قُبِلَ فِي حَقِّ الْعِدَّةِ وَالْغَشَيَانِ** نو د دې ښځې قول به منل کيږي لکه څرنګه چې د عدت او وطي په حق کې د ښځې قول منل کيږي **لَكِنَّهَا شَاهِدَةٌ فِي حَقِّ ضَرَّتِهَا بَلْ هِيَ مُتَّهَمَةٌ** لېکن دا ښځه د خپل بڼ په حق کې ګواه ده بلکې متهمه ده **فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّهَا** نو ځکه به د دې ښځې قول د بڼ په حق کې نه منل کيږي.

**اللغات:** ﴿جِهَة﴾ طرف، خوا، ﴿غِشْيَان﴾ د سمع مصدر دی: راتلل، جماع کول، د دې باب په صله کې که "عَلیٰ" راسي، نو بيا د "بې هوښه کېدلو" په معنیٰ سره راځي، ﴿ضَرَّة﴾ بڼ.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که طلاق پر يو داسې شرط معلق سوی وي چې په هغه فقط ښځه خبرېدای سي، بل څوک په هغه نه سي خبرېدای، نو د داسې شرط په وجود کې به د ښځې قول فقط د هغې د ذات په حق کې معتبر او منل کيږي، د بل چا په حق کې به معتبر نه وي، همدا قول د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله دی، مثلاً يو سړی دوې ښځې لري، او په يوې ښځې ته ووايي: إِنْ حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَفُلَانَةُ (له فُلَانَةُ څخه مراد د ښځې بڼ ده، يعني که تا ته حيض راغلی نو تا او ستا بڼ ته طلاق دی)، او بيا دا ښځه ووايي: حِضْتُ (چې ما ته حيض راغلی)، نو هغه طلاقيږي، او پر فُلَانَة يعني د هغې پر بڼ طلاق نه واقع کيږي.

دا خبره په ياد لرئ! چې د هغې پر بڼ په هغه صورت کې طلاق نه واقع کيږي، کله چې خاوند د ښځې د قول "حِضْتُ" تکذيب وکړي، لېکن که خاوند د هغې د قول تصديق وکړي، نو بيا پر دواړو ښځو طلاق واقع کيږي.

**و وقوع الطلاق إلخ:** په دې مسئله کې د طلاق واقع کېدل استحساناً دي، او د قياس تقاضا دا ده چې طلاق نه واقع کيږي، ځکه چې په إِنْ حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ کې حيض شرط دی، او ښځه د دې شرط د وجود دعویٰ کوي، او خاوند د دې انکار کوي، او د مدعي سره که چيرې بَيِّنَه نه وي، نو بيا د منکر قول معتبر کيږي، نو ځکه به دلته د ښځې قول معتبر نه وي او د هغې تصديق به نه کيږي، لکه څرنګه چې په داسې صورت کې هم د ښځې تصديق نه کيږي کله چې خاوند ښځې ته ووايي: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ، او ښځه وايي چې شرط (دخولُ الدّار) موجود سو (يعني زه کور ته داخله سوم)، او خاوند د دې انکار وکړي، نو څرنګه چې په دې صورت کې د ښځې تصديق نه کيږي، همداسې به دلته هم د ښځې تصديق نه کيږي او د هغې قول به معتبر نه وي، بلکې د خاوند قول به معتبر وي.

د استحسان دليل دا دی چې ښځه د خپل ذات په حق کې أمانتداره (امانت ساتونکې) ده، ځکه د ښځې په رحم کې چې کوم کوچنی وي، ښځه د هغه په ښکاره کولو کې امانتداره هم ده او د هغه حکم هم ورته سوی دی، الله تعالیٰ فرمايي: لَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللهُ فِيْ أَرْحَامِهِنَّ. او په دې وجه هم ښځه امنتداره ده چې حيض يو داسې شرط دی چې په هغه فقط ښځه خبرېدای سي، بل څوک د ښځې په حيض خبرېدای نه سي، او قاعده دا ده چې د أمين قول به د هغه په حق کې معتبر او منل کيږي، نو ځکه به د ښځې دا قول (چې ما ته حيض راغلی) د هغې په حق کې معتبر او منل کيږي، لکه څرنګه چې د عدت او وطي په حق کې د ښځې قول منل کيږي، د عدت په حق کې د قول منل کېدلو مطلب دا دی چې که ښځه ووايي چې "زما عدت پوره سو يا پوره نه سو"، نو په دې هکله به د ښځې قول منل کيږي، نه د خاوند، او د وطي په حق کې د قول منل کېدلو دوه مطلبه دي: ① يو دا چې که بائنه مغلظه ښځه (يعني هغه ښځه چې درې طلاقه ورکول سوي وي) ووايي چې "زما عدت پوره سو، او بيا ما د دويم خاوند سره نکاح وکړه او هغه دخول هم وکړی"، نو د دويم خاوند د دخول په هکله به د ښځې قول منل کيږي، ② دويم مطلب يې دا دی چې که خاوند د خپلې ښځې سره جماع کول وغواړي، نو د ښځې د پاکوالئ يا حائضه کېدلو په حق کې به د ښځې قول منل کيږي.

**ولکنها إلخ:** فرمايي چې په دې مسئله کې به د ښځې قول فقط د هغې په حق کې معتبر وي، او د هغې د بَنْ په حق کې به د هغه اعتبار نه کيږي، او پر بَنْ به طلاق نه واقع کيږي، ځکه که څه هم هغه په خپل قول (يعني د حيض په دعویٰ) سره د خپل بَنْ په حق کې ګواه جوړيږي، لېکن هغه متهمه ده، ځکه د بَن په حق کې هغه امانتداره نه ده، ځکه چې د بنو په مينځ کې فطري دښمني وي، خلاصه دا چې دا

مطلقه ښځه د خپل ښَن په حق کي متهمه ده، او قاعده دا ده؛ قَوْلُ الْمُتَّهَمِ لَيْسَ بِحُجَّة (چي د متهم قول حجت نه ګرځي)، نو ځکه به د دې ښځي قول د ښَن په حق کي حجت نه وي او پر هغې به طلاق نه واقع کيږي.

## د طلاقِ معلق يو صورت

وَكَذٰلِكَ لَوْ قَالَ: إِنْ كُنْتِ تُحِبِّيْنَ أَنْ يُعَذِّبَكِ اللهُ فِيْ نَارِ جَهَنَّمَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَعَبْدِيْ حُرٌّ همدارنګه که [خاوند خپلي ښځي ته] ووايي: که چيري ته دا خوښوې چي الله تا ته د دوږخ په اُور کي عذاب درکړي، نو ته [پر ما] طلاقه يې او زما غلام آزاد دی فَقَالَتْ أُحِبُّهُ او ښځه وو ايي: چي دا خوښوم أَوْ قَالَ: إِنْ كُنْتِ تُحِبِّيْنِيْ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَهٰذِهٖ مَعَكِ يا [خاوند داسي] وو ايي: که چيري ته زما سره محبت لرې نو ته [پر ما] طلاقه يې او دا ښځه [ښَن] هم ستا سره ده [يعني که ته زما سره مينه او محبت کوې نو تا او ستا ملګري دواړو ته طلاق دی] فَقَالَتْ: أُحِبُّكَ او ښځه وو ايي: چي زه ستا سره محبت لرم طُلِّقَتْ هِيَ وَلَمْ يُعْتَقِ الْعَبْدُ وَلَا تُطَلَّقُ صَاحِبَتُهَا نو [فقط] دا ښځه طلاقيږي او نه غلام آزاديږي او د نه هغې ملګرې مطلقه ګرځي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَا يُتَيَقَّنُ بِكَذِبِهَا او د ښځي په دروا غجن کېدو يقين نه سي کېدای لِأَنَّهَا لِشِدَّةِ بُغْضِهَا إِيَّاهُ قَدْ تُحِبُّ التَّخْلِيْصَ مِنْهُ بِالْعَذَابِ ځکه چي د خاوند سره د سخت بغض [او عناد] په وجه کله نا کله د عذاب په بدله کي له هغه څخه خلاصون خوښوي وَفِيْ حَقِّهَا أَنْ تَعَلَّقَ الْحُكْمُ بِإِخْبَارِهَا وَإِنْ كَانَتْ كَاذِبَةً او د دې ښځي په حق کي دا دي چي [د طلاق] حکم د دې د خبر ورکولو [قول] سره تعلق لري که څه هم دا دروا غجنه وي [يعني که څه هم هغه دروا غجنه وي خو د هغې سره د طلاق حکم متعلق کېدل د هغې د خبر ورکولو په وجه دي] فَفِيْ حَقِّ غَيْرِهَا بَقِيَ الْحُكْمُ عَلَى الْأَصْلِ لهذا له دې ښځي څخه بغير [د بل چا] په حق کي به حکم پر خپل اصل پاتيږي وَهِيَ الْمَحَبَّةُ او هغه دی [حقيقي] محبت.

**اللغات**: ﴿يُعَذِّبُكَ﴾ د تفعيل مضارع ده: عذاب ورکول. ﴿بُغْض﴾ عناد، کينه، نفرت. ﴿تَخْلِيْص﴾ د تفعيل مصدر خلاصول (ځان خلاصول، خلاصون تر لاسه کول).

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... **صورت د مسئلې**: دا دی چي څرنګه د حيض، عدت او وطي په سلسله کي د ښځي قول خاص د ښځي په حق کي منل کيږي، همداسي که خاوند ښځي ته وو ايي: "که چيري ته دا خبره

خوښوې چې الله تعالیٰ تا ته د دوږخ په اُور کې عذاب درکړي، نو ته پر ما طلاقه يې، او زما غلام آزاد دی"، بيا ښځه ووايي چې زه د دوږخ اُور خوښوم، نو په دې صورت کې به د ښځې دا قول فقط د هغې په حق کې منل کيږي او طلاق به واقع کيږي، لېکن د غلام په حق کې به د ښځې د قول اعتبار نه کيږي او غلام به نه آزاديږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که خاوند ښځې ته داسې ووايي: "که چيرې ستا زما سره محبت وي نو ته او ستا ملګرې (بڼ) دواړو ته طلاق دی"، او بيا ښځه ووايي چې زما ستا سره محبت دی، نو په دې صورت کې هم فقط پر دغه اولې ښځې طلاق واقع کيږي، د هغې پر بَڼ طلاق نه واقع کيږي: دليل په اوله مسئله کې تېر سو چې دا ښځه په خپل حق کې امانتداره ده، او د اُمين قول به فقط په خپل حق کې معتبر وي، نه د بل چا په حق کې.

ولايتيقن الخ: په دې سره د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې د ښځې قول فقط د هغې په حق کې په دې وجه معتبر او منل کيږي چې هغه په خپل قول کې رېښتونې (صادقه) ده، لېکن د دوږخ د اُور خوښولو په باره کې د هغې خبر ورکول يقيني دروغ دي، ځکه چې دا د عقل خلاف خبره ده چې يو مسلمان دې د دوږخ اُور خوښ کړي، لنډه دا چې کله د دې ښځې دروغجن کېدل يقيني دي، نو د هغې قول بالکل منل پکار نه دي.

په جواب کې صاحب د هدايې فرمايي چې د ښځې پر دروغجن کېدلو يقين نه سي کېدای او نه د هغې پر دروغجن کېدلو يقين کول پکار دي، ځکه چې ښځه هسې هم ناقصُ العقل ده، او برسېره پر دې جاهله هم ده، او دا خبره هم ده چې کله نا کله د خاوند له طرفه پر ښځې داسې ظلم او تجاوز کيږي چې هغه ښځه د خاوند له ظلم او تجاوز څخه د خلاصون لپاره د دوږخ اُور هم خوښوي، لهذا د ښځې دروغجن کېدل يقيني نه دي، او کله چې يقيني نه دي نو د دې ښځې په حق کې به حکم د هغې د خبر او قول سره متعلق وي که څه هم هغه خبر او قول دروغ وي، لېکن د بل چا په حق کې به د هغې خبر او قول معتبر نه وي او حکم به پر خپل أصل يعني پر محبت او پر خوښولو پاته وي؛ ځکه چې محبت يا د دواړخ اُور خوښول ښځې په خپل ذاتي قول او خبر سره ښکاره کړي دي، په يو بل واضح او څرګند دليل سره دا نه دي ښکاره سوي چې د بل چا په حق کې هم حجت او دليل ومنل سي (او د بل چا يعني د بَڼ په حق کې به د ګواهۍ په ذريعه سره دا ثابتيږي چې هغه په صحيح معنیٰ د خاوند سره محبت کوي، کنه؟، او د محبت کولو په صورت کې به طلاق واقع کيږي، کنې نه به واقع کيږي).

## پر حیض طلاق معلق کول

وَإِذَا قَالَ لَهَا: إِذَا حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ او که [خاوند] ښځې ته ووایي: کله چې تا ته حیض راسي نو ته [پر ما] طلاقه یې فَرَأَتِ الدَّمَ او [بیا ښځه وینه ووینی لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ حَتَّى يَسْتَمِرَّ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ نو طلاق نه واقع کیږي تر دې چې وینه تر دریو ورځو پورې جاري پاته سي لِأَنَّ مَا يَنْقَطِعُ دُوْنَهَا لَا يَكُونُ حَيْضًا ځکه کومه وینه چې له دریو ورځو څخه په کم وخت کي بنده سي هغه حیض نه وي فَإِذَا تَمَّتْ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ حَكَمْنَا بِالطَّلَاقِ مِنْ حِيْنِ حَاضَتْ لهذا کله چې درې ورځې پوره سي نو موږ د دې ښځې د حائضه کېدلو له وخت څخه د طلاق [واقع کېدلو] حکم کوو لِأَنَّهُ بِالِامْتِدَادِ عُرِفَ أَنَّهُ مِنَ الرَّحِمِ ځکه چې [تر دریو ورځو پورې د وینې] په اوږدېدلو [او جاري کېدلو] سره دا معلومه سوه چې هغه له رحم څخه ده فَكَانَ حَيْضًا مِنَ الِابْتِدَاءِ نو ځکه به له ابتداء څخه د حیض وینه وي وَلَوْ قَالَ لَهَا: إِذَا حِضْتِ حَيْضَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ او که چیري [خاوند] ښځې ته ووایي: کله چې تا ته حیض راسي نو ته [پر ما] طلاقه یې لَمْ تَطْلُقْ حَتَّى تَطْهُرَ مِنْ حَيْضِهَا نو هغه نه طلاقیږي تر دې چې له حیض څخه پاکه سي لِأَنَّ الْحَيْضَةَ بِالْهَاءِ هِيَ الْكَامِلَةُ مِنْهَا ځکه چې په هاء [ة] سره حَيْضَة کامل [بشپړ] حیض وي وَلِهٰذَا حُمِلَ عَلَيْهِ فِي حَدِيْثِ الِاسْتِبْرَاءِ [1] او له همدې وجهې د استبراء په حدیث کي [حَيْضَة] پر کامل حیض حمل کړی سوی دی وَكَمَالُهَا بِانْتِهَائِهَا او د حیض کاملېدل د حیض په ختمېدلو سره دی وَذٰلِكَ بِالطُّهْرِ او د حیض ختمېدل په پاکېدلو سره دي.

**اللغات:** ﴿يَسْتَمِرَّ﴾ د استفعال مضارع ده: جاري کېدل، ﴿يَنْقَطِعُ﴾ د انفعال مضارع ده: بندېدل، درېدل، ﴿اِمْتِدَاد﴾ د افتعال مصدر دی: اوږدېدل، غوړېدل، کشېدل، ﴿اِسْتِبْرَاء﴾ د حیض په ذریعه د رحم د خالي والي (نه حامله کېدلو) خبر تر لاسه کول.

**تشریح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي او دواړې ډېرې آسانه دي: (۱)...اوله مسئله دا ده که خاوند خپلې ښځې ته ووایي: "کله چې تا ته حیض راسي، نو ته پر ما طلاقه یې"، او بیا ښځه وینه ووینی، نو محض د وینې په لیدلو سره پر هغې طلاق نه واقع کیږي، بلکي پر دغه ښځې هغه وخت طلاق واقع کیږي کله چې هغه مسلسل تر دریو ورځو پورې وینه ووینی؛ دلیل دا دی چې زموږ

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب النكاح، باب في وطء السبايا، حديث رقم:۲۱۵۷ ۲۱۵۸.

په نېږ د حيض کم (أقل) مودت درې ورځې دی، که چيري تر دريو ورځو مخکې وينه بنده سي، نو هغه د حيض وينه نه ده، بلکي د استحاضې وينه ده، لهذا کله چي تر دريو ورځو پوري وينه جاري وي، نو دا خبره به يقيني سي چي هغه له رحم څخه راځي، او له رحم څخه راتلونکې وينه د حيض وي، نو که چيري د دې ښځي وينه پوره درې ورځي وبهيږي او پوره درې ورځي هغه خپله وينه ووينې، نو له کوم وخت څخه چي وينه شروع سوې وي، له هغه وخت څخه به د طلاق واقع کېدلو حکم کيږي، ځکه چي تر درې ورځو وروسته معلومه سوه چي دا د رحم وينه ده، لهذا د أول وخت څخه به دا حيض شمارل کيږي. (په عبارت کي د حَتَّى يَسْتَمِرَّ مطلب دا نه دی چي درې ورځي به مسلسل او پرلپسې وينه جاري وي، کنې ښځه به تر شفاخانې او هديرې پوري ورسيږي، له دې څخه مراد تر دريو ورځو پوَرَي د ويني تګ راتګ دی، يعني چي تر دريو ورځو پوري به وينه يو وخت او بل وخت جاري وي).

(۲)... دويمه مسئله دا که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: إِذَا حِضْتِ حَيْضَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ، نو په دې صورت کي چي تر څو د ښځي حيض ختم سوی او هغه پاکه سوې نه وي، تر هغه وخته پر ښځي طلاق نه واقع کيږي، يعني د طهر په شروع کي پر هغې طلاق واقع کيږي؛ دليل دا دی چي حَيْضَةً په "ة" سره کامل او بشپړ حيض ته وايي، او حيض په ختمېدلو سره کامل کيږي، نو ځکه موږ وايو چي د طهر په شروع کي به طلاق واقع کيږي، تر هغه مخکي به نه واقع کيږي.

**ولهذا إلخ**: صاحب د هدايې اوس ووېل چي "ة" د کمال او بشپړتيا لپاره ده، دلته د هغه په دليل کي د ابو داؤد يو حديث ذکر کوي، فرمايي: همدا وجه ده چي د استبراء په حديث کي هم حَيْضَةً پر کامل حيض حمل کړی سوی دی، د استبراء له حديث څخه مراد دا حديث دی: عن أبي سعيد الخدري: أَنَّهُ قَالَ...: لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ وَلَا غَيْرُ ذَاتِ حِمْلٍ حَتَّى تَحِيضَ حَيْضَةً (ابو داؤد شريف، ص: ۳۱۱، حديث شمېره: ۲۱۵۷)، په دې حديث کي له حَيْضَةً څخه مراد کامل حيض دی، او تر کامل حيض مخکي به صحابه د مينځو له وطي څخه منع کېدل، لهذا دلته به هم له حَيْضَةً څخه مراد کامل حيض وي.

## د روژې پر نيولو طلاق معلق کول

وَإِذَا قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا صُمْتِ يَوْمًا او که [خاوند] ووايي: کله چې ته يوه ورځ روژه ونيسې نو [پر ما] طلاقه يې طُلِّقَتْ حِيْنَ تَغِيْبُ الشَّمْسُ فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ تَصُوْمُ نو په کومه ورځ چې روژه ونيسي د هغه ورځې د لمر لوېدلو په وخت کې طلاقېږي لِأَنَّ الْيَوْمَ إِذَا قُرِنَ بِفِعْلٍ مُمْتَدٍّ يُرَادُ بِهِ بَيَاضُ النَّهَارِ ځکه کله چې يَوْم د ممتد فعل سره متصل سي نو له هغه څخه د ورځې سپينوالی [رڼا] مراديږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ إِذَا صُمْتِ په خلاف د هغه صورت کله چې [خاوند] ووايي: [أَنْتِ طَالِقٌ] إِذَا صُمْتِ يعني يَوْم ذکر نه کړي، نو په دې صورت کې که ښځه ديو څو دقيقو لپاره روژه ونيسي نو هم طلاق واقع کيږي] لِأَنَّهُ لَمْ يُقَدِّرْهُ بِمِعْيَارٍ ځکه چې [دلته] خاوند روژه په يو معيار سره اندازه کړې نه ده وَقَدْ وُجِدَ الصَّوْمُ بِرُكْنِهِ وَشَرْطِهِ او روژه د خپل رکن او د خپل شرط سره موجوده سوه.

**اللغات**: ﴿بَيَاض﴾ سپينوالی، رڼا، ځلا، ﴿لَمْ يُقَدِّرْ﴾ د تفعيل له باب څخه د جحد معلوم صيغه ده: اندازه کول، مقدار ټاکل (اندازه معلومول).

**تشريح**: دا قاعده مخکې تېره سوه چې که لفظ د يَوْم د فعلِ ممتد سره متصل او مقرون وي، نو بيا به له يَوْم څخه مراد بياضِ نهار وي، نه مطلق وخت، او دلته روژه فعلِ ممتد دی (يعني داسې فعل دی چې پوره يوه ورځ غواړي، په لږ ګړي نه پوره کيږي)، نو ځکه به دلته د يَوْم څخه بياضِ نهار مراد وي، او د طلاق د وقوع لپاره به تر لمر لوېدو پورې ټوله ورځ روژه نيول شرط وي، او کله چې هم شرط پوره سي (يعني ښځه تر لمر لوېدلو پورې روژه ونيسي)، نو طلاق به واقع کيږي، او د أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا صُمْتِ صَوْمًا هم دغه حکم دی.

دې په خلاف که خاوند أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا صُمْتِ ووايي، او لفظ د يَوْم ذکر نه کړي، نو په دې صورت کې که ښځه د روژې په نيت د لږ ګړي لپاره هم روژه ونيسي، نو بيا هم طلاق واقع کيږي، ځکه چې دلته خاوند روژه په يو معيار يعني په يَوْم او داسې نورو سره اندازه کړې نه ده، بلکې مطلقاً روژه يې ذکر کړې ده، لهذا کله چې هم مطلقاً روژه د خپل رکن او شرط سره ونيول سي، نو سمدستي به پر دغه ښځې طلاق واقع کيږي، د روژې رکن خوراک اُو څښاک پرېښوول دي، او د روژې شرط نيت او د حيض او نفاس څخه پاکېدل دي.

## د کوچني پر پيدا ينبت د طلاق معلق کولو يو صورت

وَمَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: إِذَا وَلَدْتِ غُلَامًا فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً او کوم سړی چې خپلې ښځې ته ووايي: که چيرې ته هلک وزيږوې نو په يوه [طلاق] سره [پرما] طلاقه يې وَإِذَا وَلَدْتِ جَارِيَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ او که چيرې ته نجلۍ وزيږوې نو په دوو [طلاقو] سره طلاقه يې فَوَلَدَتْ غُلَامًا وَجَارِيَةً او ښځې هلک او نجلۍ دواړه وزيږول وَلَا يَدْرِي أَيُّهُمَا أَوَّلُ او دا معلومه نه وه چې اول کوم يو دی [يعني چې اول کوم يو پيدا سو] لَزِمَهَا فِي الْقَضَاءِ تَطْلِيقَةٌ وَفِي التَّنَزُّهِ تَطْلِيقَتَانِ نو قضاءً پر دغه ښځې يو طلاق لازم سو او تورّعاً دوه طلاقه [پر لازم سو] وَانْقَضَتِ الْعِدَّةُ او عدت [هم] پوره کيږي لِأَنَّهَا لَوْ وَلَدَتِ الْغُلَامَ أَوَّلًا وَقَعَتْ وَاحِدَةٌ ځکه که چيرې ښځه اول هلک وزيږوي نو يو طلاق به واقع کيږي وَتَنْقَضِي عِدَّتُهَا بِوَضْعِ الْجَارِيَةِ او د نجلۍ په زيږولو سره به د هغې عدت پوره کيږي ثُمَّ لَا تَقَعُ أُخْرَى بِهِ بيا د دغه [دويم حمل زيږولو] په به [پر هغې] بل طلاق نه واقع کيږي لِأَنَّهُ حَالُ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځکه چې دا د عدت پوره کېدلو [ختمېدلو] وخت دی وَلَوْ وَلَدَتِ الْجَارِيَةَ أَوَّلًا او که چيرې اول نجلۍ وزيږوي وَقَعَتْ تَطْلِيقَتَانِ نو دوه طلاقه به واقع کيږي وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا بِوَضْعِ الْغُلَامِ او د هلک په زيږولو [پيداينبت] سره به د هغې عدت پوره کيږي ثُمَّ لَا يَقَعُ شَيْءٌ آخَرُ بِهِ بيا به د هغه په وجه بل شی نه واقع کيږي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ حَالُ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی چې دا د عدت پوره کېدلو [ختمېدلو] وخت دی فَإِذَا فِي حَالٍ تَقَعُ وَاحِدَةٌ وَفِي حَالٍ تَقَعُ ثِنْتَانِ نو اوس [په دې صورت کې] په يوه حالت [د هلک پيدا کېدلو په حالت] کې يو طلاق واقع کيږي او په بل حالت [د نجلۍ پيدا کېدلو په حالت] کې دوه طلاقه واقع کيږي فَلَا تَقَعُ الثَّانِيَةُ بِالشَّكِّ وَالِاحْتِمَالِ نو دويم طلاق به د شک او احتمال په وجه نه واقع کيږي وَالْأَوْلَى أَنْ تَأْخُذَ بِالثِّنْتَيْنِ تَنَزُّهًا وَاحْتِيَاطًا او غوره دا ده چې موږ د تورّع او احتياط په خاطر دوه طلاقه اختيار کړو وَالْعِدَّةُ مُنْقَضِيَةٌ بِيَقِينٍ او عدت خو په يقيني توګه پوره سوی [او ختم سوی] دی لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿غُلَام﴾ په عربي ژبه کي "غُلَام" هلک ته وايي، هغه که کوچنی وي او که غټ وي، جمع: غِلْمَة. ﴿جَارِيَة﴾ په اصل کي مينځې ته وايي، همدارنګه پېغلې ښځې او کوچنۍ نجلۍ ته هم وايي،

جمع: جَوَارِیْ. ﴿التَّقَرُّه﴾ د تفعّل مصدر دی؛ پرهېز کول، احتیاط کول. ﴿إِنْقَضَتْ﴾ د انفعال ماضي ده: تېرېدل، ختمېدل، پوره کېدل.

**تشریح:** مسئله: دا ده که خاوند خپلې ښځې ته داسي ووایي: إِذَا وَلَدْتِ غُلَامًا فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَإِذَا وَلَدْتِ جَارِيَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ ثِنْتَيْنِ، او تر دې وروسته ښځه هلک او نجلۍ دواړه وزېږوي، نو صاحب د فتح القدیر او داسي نورو د دې مسئلې څلور صورتونه ذکر کړي دي:

① ... که چیرې هلک مخکې پیدا سي، نو یو طلاق واقع کیږي، او د دې ښځې عدت د نجلۍ په پیدایښت سره پوره کیږي، ځکه چې د حاملې ښځې عدت وضعُ الحمل (د پاته حمل زېږول) دي، او تر هلک وروسته د نجلۍ په پیدایښت سره طلاق نه واقع کیږي.

② ... او که نجلۍ مخکې پیدا سي، نو دوه طلاقه واقع کیږي.

③ ... او که خاوند او ښځه اختلاف وکړي، مثلاً خاوند وایي چې هلک مخکې پیدا سوی دی، او ښځه وایي چې نجلۍ مخکې پیدا سوې ده، نو په دې هکله به د خاوند قول معتبر وي، ځکه چې هغه د طلاق د زیادت مُنکر دی

④ ... څلورم صورت (کوم چې په کتاب کې په تفصیل سره ذکر سوی دی) دا دی چې که معلومه نه وي، چې په هلک او نجلۍ کې څوک مخکې پیدا سو، نو قضاءً یو طلاق واقع کیږي، ځکه چې د یوه طلاق واقع کېدل ثابت دي، او د بل په واقع کېدلو کې شک دی، لېکن دیانتاً او احتیاطاً به دوه طلاقه واقع کیږي.

د څلورم صورت دلیل دا دی چې که چیرې اول غلام پیدا سوی وي، نو یو طلاق واقع کیږي، او د نجلۍ په پیدایښت سره د ښځې عدت ختمیږي، ځکه چې تر هلک پیدا کېدلو وروسته دا ښځه حامله پاته سوه، او د حاملې عدت وضعُ الحمل (د حمل زېږول) دی، او تر هلک وروسته د نجلۍ په پیدا کېدلو سره پر دغه ښځې هیڅ طلاق نه واقع کیږي، ځکه چې دا وخت د عدت پوره کېدلو او ختمېدلو وخت دی، یعني د نجلۍ په پیدایښت سره سمدستي د ښځې عدت ختم سو، او هغه د خاوند په نکاح کې پاته نه سوه، نو په دې وجه پر هغې بل طلاق نه سي واقع کېدای.

او که چیرې نجلۍ اول پیدا سوې وي، نو دوه طلاقه واقع کیږي، او د هلک په پیدایښت سره د ښځې عدت ختمیږي، او د هلک په پیدایښت سره بل طلاق نه واقع کیږي د مخکني دلیل په وجه چې دا د عدت ختمېدلو وخت دی، خلاصه دا چې په یوه حالت کې یو طلاق واقع کیږي، او په بل حالت کې دوه طلاقه واقع کیږي، نو د یوه طلاق واقع کېدل خو یقیني دي، او د بل طلاق په واقع

کېدلو کې شک او احتمال دی، او د شک په وجه سره طلاق نه واقع کیږي، نو ځکه به په دې ځلورم صورت کې قضاءً یو طلاق واقع کیږي، او احتیاط او تقویٰ دا ده چې دوه طلاقه واقع سي.

**والعدة الخ:** فرمايي چې که يو طلاق واقع سي يا دوه طلاقه، په هر صورت کې د دويم کوچني په پيداينبت سره عدت پوره کيږي او ختميږي، ځکه چې د اول کوچني تر پيداينبت وروسته ښځه حامله پاته سي، او د حاملې عدت په وضعُ الحمل سره متعين او متيقن دی.

## د تعليق يو صورت

وَإِنْ قَالَ لَهَا: إِنْ كَلَّمْتِ أَبَا عَمْرٍو وَأَبَا يُوسُفَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا او که [خاوند] خپلې ښځې ته [داسي] ووايي: که چيري ته د ابو عمر او ابو يوسف سره خبري وکړې نو ته په دربو [طلاقو] سره [پر ما] طلاقه يې ثُمَّ طَلَّقَهَا وَاحِدَةً فَبَانَتْ بيا [خاوند] هغې ته يو طلاق ورکړی او هغه بائنه سوه وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا او عدت يې پوره سو فَكَلَّمَتْ أَبَا عَمْرٍو او هغې [په دغه وخت کې] د ابو عمرو سره خبري وکړې ثُمَّ تَزَوَّجَهَا بيا [خاوند] د هغې سره نکاح وکړه فَكَلَّمَتْ أَبَا يُوسُفَ او بيا ښځې د ابو يوسف سره خبري وکړې فَهِيَ طَالِقٌ ثَلَاثًا مَعَ الْوَاحِدَةِ الْأُولَى نو دا ښځه اول [مخکني] طلاق سره په دربو [طلاقو] سره طلاقه ده [يعني په دې صورت کې به پر دغه ښځې د اول طلاق سره درې طلاقه واقع کيږي] وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَقَعُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې [هيڅ طلاق] نه واقع کيږي وَهٰذِهِ عَلَىٰ وُجُوْهٍ او دا مسئله پر څو صورتونو [مشتمله] ده إِمَّا إِنْ وُجِدَ الشَّرْطَانِ فِي الْمِلْكِ [۱] يا به دواړه شرطونه په ملکيت کې موجود سوي [پيدا سوي] وي [يعني يا به ښځې د ابو عمر او ابو يوسف دواړو سره د خاوند په ملکيت (د نکاح په حالت) کې خبري کړي وي) فَيَقَعُ الطَّلَاقُ نو [په دې صورت کې] طلاق واقع کيږي وَهٰذَا ظَاهِرٌ او [په دې صورت کې واقع کېدل] ښکاره دي أَوْ وُجِدَا فِي غَيْرِ الْمِلْكِ [۲] يا به دواړه شرطونه له ملکيت څخه په علاوه [غير ملکيت] کې پيدا سوي وي فَلَا يَقَعُ نو [طلاق] نه واقع کيږي أَوْ وُجِدَ الْأَوَّلُ فِي الْمِلْكِ وَالثَّانِي فِي غَيْرِ الْمِلْكِ [۳] يا به اول شرط په ملکيت کې پيدا سوی وي او دويم به په غير ملکيت کې [پيدا سويی وي] فَلَا يَقَعُ أَيْضًا نو هم [طلاق] نه واقع کيږي لِأَنَّ الْجَزَاءَ لَا يَنْزِلُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ ځکه چې په غير ملکيت کې جزاء نه ثابتيږي [نه واقع کيږي] فَلَا يَقَعُ نو ځکه به [طلاق] نه واقع کيږي أَوْ وُجِدَ الْأَوَّلُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ وَالثَّانِي فِي الْمِلْكِ [۴] يا به اول شرط په غير ملکيت کې پيدا سوی وي او دويم شرط په غير ملکيت کې وَهِيَ

مَسْأَلَةُ الْكِتَابِ الْخِلَافِيَّةُ او همدا د متن مختلف فيه مسئله ده لَهُ اِعْتِبَارُ الْأَوَّلِ بِالثَّانِي د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل پر دويم شرط د اول شرط قياسول دي إِذْ هُمَا فِي حُكْمِ الطَّلَاقِ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ ځکه چي د طلاق په حكم دواړه د يوه شي په څير دي وَلَنَا: أَنَّ صِحَّةَ الْكَلَامِ بِأَهْلِيَّةِ الْمُتَكَلِّمِ او زموږ دليل دا دی: چي د كلام صحيح كېدل د متكلم د اهليت په وجه سره دي إِلَّا أَنَّ الْمِلْكَ يُشْتَرَطُ حَالَةَ التَّعْلِيقِ خو د تعليق په حالت كي ملكيت [ځكه] شرط كيږي لِيَصِيرَ الْجَزَاءُ غَالِبَ الْوُجُودِ لِاسْتِصْحَابِ الْحَالِ چي د استصحابُ الحال په وجه جزاء غالبُ الوجود سي فَتَصِحُّ الْيَمِيْنُ نو به قسم صحيح سي وَعِنْدَ تَمَامِ الشَّرْطِ لِيَنْزِلَ الْجَزَاءُ او چي د شرط په پوره كېدلو په وخت كي جزاء ثابته سي لِأَنَّهُ لَا يَنْزِلُ إِلَّا فِي الْمِلْكِ ځكه چي جزاء فقط په ملكيت كي ثابتيږي وَفِيمَا بَيْنَ ذٰلِكَ الْحَالُ حَالُ بَقَاءِ الْيَمِيْنِ او په دې مينځ كي چي كوم وخت دی هغه د يمين د بقاء وخت دی فَيَسْتَغْنِيْ عَنْ قِيَامِ الْمِلْكِ نو [په دې مينځوي وخت كي] به يمين د ملكيت د وجود څخه مستغني وي إِذْ بَقَاؤُهُ بِمَحَلِّهِ ځكه چي د يمين بقاء په خپل محل سره ده وَهُوَ الذِّمَّةُ او محل [د قسم كونكي (حالف)] ذمه ده.

**اللغات:** ﴿كَلَّمْتِ﴾ د تفعيل له باب څخه د واحد مؤنث مخاطب ماضي صيغه ده: خبري كول، ﴿اِنْقَضَتْ﴾ ختمېدل، تېرېدل، پوره كېدل.

**تشريح:** په دې عبارت كي د بيان سوي مسئلې څو صورتونه دي، خو څرنګه چي هغه ټوله د يوې مسئلې بڼاخونه او شكلونه دي، نو ځكه د اصل مسئلې مفهوم ته ګورئ! مسئله دا ده كه خاوند خپلې ښځي ته داسي ووايي: إِنْ كَلَّمْتِ أَبَا عَمْرٍو وَ أَبَا يُوْسُفَ فَأَنْتِ طَالِقٌ (كه تا د ابو عمر او ابو يوسف سره خبري وكړې، نو پر ما طلاقه يې)، او بيا خاوند هغې ته د ابو عمر...سره تر خبري كولو مخكي طلاق وركړي او تر عدت پوره كېدلو وروسته هغه بائنه سي او د خاوند له نكاح څخه ووځي، او په دغه حالت كي ښځه د ابو عمر سره خبري وكړي، بيا خاوند د دې ښځي سره دويم وار نكاح وكړي، نو كه اوس دا ښځه د هغه په نكاح كي د ابو يوسف سره خبري وكړي، نو په دې صورت كي د اول طلاق سره زموږ په نېز پر دغه ښځي دريږ طلاقه واقع كيږي، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي يو طلاق هم نه واقع كيږي.

د دې مسئلې ټوله څلور صورتونه دي: ① اول دا چي دواړه شرطونه د خاوند په ملكيت كي موجود سي (يعني ښځه د خاوند په نكاح كي وي، او د ابو عمر او ابو يوسف دواړو سره خبري وكړي)، نو په دې صورت كي د ټولو په نېز طلاق واقع كيږي، ځكه چي د طلاق واقع كېدلو شرط (يعني

خبري كول) د خاوند په ملكيت كې موجود سو. ② دويم دا چې اول شرط په ملكيت كې او دويم په غيرِ ملكيت كې موجود سي (يعني ښځه د نكاح په حالت كې د يوه سړي سره خبري وكړي، او تر نكاح وروسته د طلاق په حالت كې د بل سره خبري وكړي)، نو په دې صورت كې د ټولو په نېز طلاق نه واقع كيږي. ③ دريم دا چې اول شرط په ملكيت كې موجود سي (يعني ښځه د اوبو عمر سره د نكاح په حالت كې خبري وكړي)، او دويم شرط په غيرِ ملكيت كې موجود سي، نو په دې صورت كې هم هيڅ طلاق نه واقع كيږي؛ دليل دا دى چې خاوند د دوو خلكو پر خبرو شرط معلق كړى، لهذا تر څو چې ښځه د نكاح په حالت كې (يعني د خاوند په ملكيت كې) د دواړو سره خبري نه وكړي، تر هغه وخته پوري شرط نه پوره كيږي يعني جزاء نه واقع كيږي، او څرنګه دلته دويم شرط په غيرِ ملكيت (د طلاق په حالت كې) موجود سوى دى، نو ځكه به جزاء يعني طلاق نه واقع كيږي.

④ څلورم صورت دا دى چې اول شرط په غيرِ ملكيت كې موجود سي، او دويم شرط په ملكيت كې موجود سي، همدا صورت په متن كې بيان سوى دى، او زموږ او د امام زفر په مينځ كې مختلف فيه دى، يعني په دې صورت كې زموږ په نېز دري طلاقه واقع كيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز يو طلاق هم نه واقع كيږي.

**د امام زفر دليل:** قياس دى، يعني هغه اول شرط پر دويم شرط قياسوي، علامه اترازي رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر دويم شرط د اول شرط قياسولو مطلب دا دى چې كه چيري دويم شرط په غيرِ ملكيت كې موجود سي، نو جزاء نه واقع كيږي، لهذا همداسي كه اول شرط هم په غيرِ ملكيت كې موجود سي، نو هم جزاء واقع كېدل پكارنه دي، ځكه كله چې په يوه شرط كې ملكيت شرط دى، نو په بل كې به هم ملكيت شرط وي.

او علامه تاجُ الشريعه رَحِمَهُ الله فرمايي چې د امام زفر د قياس مطلب دا دى چې كله د دويم شرط د موجودېدلو په وخت كې د طلاق د وقوع لپاره ملكيت شرط دى، نو د اول شرط د موجودېدلو په وخت كې به هم د طلاق د وقوع لپاره ملكيت شرط وي، او څرنګه چې دلته اول شرط په غيرِ ملک كې موجود سوى دى، نو ځكه به طلاق نه واقع كيږي. (عنايه)

**زموږ دليل:** دا دى چې د كلام د صحيح كېدلو دار ومدار د متكلم پر أهليت وي، او څرنګه چې دلته خاوند عاقل، بالغ او د كلام د تصرف أهل دى، لهذا د هغه پر كلام معلق كړى سوى يمين به صحيح وي، او د دغه يمين محل د حالف ذمه ده (يعني دا يمين د قسم كونكي پر ذمه قائم او باقي دى).

**إلا أن الملك إلخ:** په دې سره د يو مقدّر سوال جواب وركوي، سوال دا دى چې كله د خاوند دا كلام صحيح دى او د يمين لپاره كافي دى، بيا د تعليق په وخت كې ملكيت ولې شرط كړى سو؟ نو د دې

جواب دا دی چې د تعليق په وخت کې د ملکيت شرط کېدلو وجه دا ده چې د استصحابُ الحال په وجه سره جزاء غالب الوجود سي، د دې جملې واضح مطلب دا دی چې که د تعليق په حالت کې د خاوند ملکيت قائم او پر خپل حال پاته سي، نو همدغه د ملک قائمېدل به د جزاء ثابتېدلو په وخت کې علت او دليل جوړېږي او له هغه څخه به دا ګڼل کيږي چې کله په هغه وخت کې (د تعليق په وخت کې)-د خاوند ملکيت موجود دی، نو غالب ګومان همدغه دی چې د شرط تر موجودېدو او د جزاء تر پاتېدلو پوري به د هغه دا ملکيت پاته او قائم وي (همدې ته استصحابُ الحال وايي)، لهذا دې مسئله کې د خاوند تعليق او د هغه يمين صحيح دی.

بيا که يو څوک سوال وکړي چې د شرط تر موجودېدو پوري ملکيت پاتېدل ولې ضروري دي، نو د دې جواب دا دی چې تر شرط پوره کېدلو وروسته سمدستي جزاء ثابتيږي، او د جزاء د ثابتېدلو او واقع کېدلو لپاره ملکيت ضروري دی، ځکه چې جزاء په غيرِ ملکيت کې نه واقع کيږي، نو په دې وجه د شرط په ابتداء کې هم ملکيت ته ضرورت سته، او د شرط په انتهاء کې هم ملکيت ته ضرورت سته، لېکن د ابتداء او انتهاء په مينځ کې چې کوم حالت دی (يعني تر شرط لګولو وروسته د جزاء تر واقع کېدلو پوري چې کوم وخت دی)، هغه د يمين د بقاء وخت دی، او د يمين د بقاء لپاره د ملکيت وجود او د يمين محل يعني د حالف ذمه ضروري ده، او د ملکيت وجود او بقاء په خپل محل سره وي، او دلته د ملکيت محل يعني د حالف ذمه هر ګړی او هره لمحه موجوده ده، لهذا د يمين د بقاء د ملکيت وجود ضروري نه دی (يعني د ابتداء او انتهاء په مينځ کې چې کوم وخت دی، هغه د يمين د بقاء وخت دی، او هغه د قسم کونکي پر ذمه باقي پاتيږي، نو ځکه په دغه مينځوي (منځني) وخت کې ملکيت پاتېدل ضروري نه دي، لهذا که په دې مينځوي وخت کې مطلقه ښځه د ابو عمر سره خبري وکړي، او اول شرط موجود سي، نو هيڅ حرج نسته، ځکه چې د دويم شرط په وخت کې [يعني د ابو يوسف سره د خبرو کولو په وخت کې] ملکيت موجود دی، نو طلاق لپاره همدومره ملکيت کافي دی).

## د تعليق يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ لَهَا: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا او که [خاوند] خپلې ښځې ته [داسي] وويل: که چيري ته کور ته داخله سوې نو په دريو [طلاقو] سره [پر ما] طلاقه يې فَطَلَّقَهَا ثِنْتَيْنِ بيا [خاوند] دغه ښځې ته دوه طلاقه ورکړه وَتَزَوَّجَتْ زَوْجًا آخَرَ وَدَخَلَ بِهَا او دې ښځې د بل خاوند سره نکاح وکړه او [دويم خاوند] په دې دخول [هم] وکړی ثُمَّ عَادَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بيا دا ښځه [بيرته] اول خاوند ته را

وګرځېدل [يعني بيرته د اول خاوند په نکاح کي واپس راغله] فَدَخَلَتِ الدَّارَ او کور ته داخله سوه طُلِّقَتْ ثَلَاثًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمُ الله په نيز دا ښځه په دريو [طلاقو] سره طلاقېږي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: هِيَ طَالِقٌ مَا بَقِيَ مِنَ الطَّلَقَاتِ ❁ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه طلاقه ده په هغه طلاق سره کوم چي له [مخکني دريو] طلاقو څخه پاته دی [يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز پر دې ښځې هغه يو باقي طلاق واقع کيږي] وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی وَأَصْلُهُ: أَنَّ الزَّوْجَ الثَّانِيَ يَهْدِمُ مَا دُونَ الثَّلَاثِ عِنْدَهُمَا او د دې [اختلاف] اصل دا دی: چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دويم خاوند تر دريو کم [طلاقونه] له منځه وړي [ساقطوي] [يعني هغه مخکني طلاقونه داسي ګرځوي لکه ګرسره چي واقع سوي نه وي] فَتَعُودُ إِلَيْهِ بِالثَّلَاثِ نو دا ښځه به اول خاوند ته په دريو [طلاقو] سره را وګرځي [يعني په دريو طلاقو سره به د اول خاوند په نکاح کي راسي] وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ لَا يَهْدِمُ مَا دُونَ الثَّلَاثِ او د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز [دويم خاوند] تر دريو کم [طلاقونه] له منځه نه وړي [نه ساقطوي] فَتَعُودُ إِلَيْهِ مَا بَقِيَ نو دا ښځه به د هغه وطرف ته په پاته سوي طلاق سره را وګرځي وَسَنُبَيِّنُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او وروسته به موږ انشاء الله د دې [مسئلې] بيان وکړو.

**اللغات:** ﴿عَادَتْ﴾ د نصر ماضي ده: دويم ځل راتلل، راګرځېدل (واپس راتلل)، ﴿يَهْدِمُ﴾ د ضرب مضارع ده: نړول، خرابول، مراد ځني ساقطول او له منځه وړل دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلي ښځي ته داسي ووايي: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا، او بيا د شرط تر وجود يعني تر دخولُ الدّار مخکي خاوند هغې ته دوه طلاقه ورکړي، او ښځه تر عدت پوره کېدلو وروسته د دويم خاوند سره نکاح وکړي او دويم خاوند په هغې دخول هم وکړي، بيا هغه له دويم خاوند څخه طلاق واخلي او تر عدت پوره کېدلو وروسته بيرته د اول خاوند په نکاح کي راسي، نو اوس که د اول خاوند په نکاح کي هغه کور ته داخله سي، نو د شيخينو په نيز پر هغې درې طلاقه واقع کيږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز ما بقى (پا ته طلاق) يعني يو طلاق واقع کيږي همدا د امام زفر، امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله قول دی.

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله ، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله : وعند محمد رَحِمَهُ الله وباقى الائمة بما بقى وهو الحق (رد المحتار ج:٢، ص:٥٨٩)، وكذا فى فتح القدير (ج:٤، ص:٣٦). [القول الراجح ج:١، ص:٣٣٤]

د اختلاف بنياد دا دی چې د شيخينو په نيز دويم خاوند ملغوی الثلاث (تر دريو کم طلاقونه) ساقطوي او بالکل يې ختموي. نو دا ښځه به (چې هوه يا يو طلاق ورکول سوی وي) بيرته د دريو طلاقو سره د اول خاوند په نکاح کې راسي (نو ځکه به دريې طلاقه پر واقع کيږي). او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دويم خاوند ما دون الثلاث نه ساقطوي. لهذا د امام محمد په نيز دا ښځه د ملبقي (پاته طلاق) سره د اول خاوند په نکاح کې راځي (نو ځکه د هغه په نيز يو طلاق واقع کيږي). دا مسئله به انشاء الله وروسته په تفصيل سره بيان سي.

## د تعليق يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ لَهَا: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا ثَلَاثًا او که [خاوند] خپلي ښځي ته وويل: که چيري ته کور ته داخله سوې نو په دريو [طلاقو] سره [پر ما] طلاقه يې ثُمَّ قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا بيا خاوند هغې ته [د شرط ذکر کولو څخه بغير] وويل: ته په دريو [طلاقو] سره [پر ما] طلاقه يې فَتَزَوَّجَتْ غَيْرَهُ وَدَخَلَ بِهَا او [بيا] دې ښځي د بل خاوند سره نکاح وکړه او [دويم خاوند] په دې ښځي دخول وکړی ثُمَّ رَجَعَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بيا دا ښځه [بيرته] د اول خاوند [په نکاح کې] واپس راغله فَدَخَلَتِ الدَّارَ او کور ته داخله سوه لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ شی نه واقع کيږي وَقَالَ زُفَرُ: يَقَعُ الثَّلَاثُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دري طلاقه واقع کيږي لِأَنَّ الْجَزَاءَ ثَلَاثٌ مُطْلَقٌ لِإِطْلَاقِ اللَّفْظِ ځکه چې د لفظ د مطلق کېدلو په وجه جزاء مطلق دري [طلاقه] دي وَقَدْ بَقِيَ اِحْتِمَالُ وُقُوعِهَا او د هغوی [د دريو طلاقو] د واقع کېدلو احتمال باقي دی فَيَبْقَى الْيَمِينُ نو يمين به [هم] باقي پاته وي وَلَنَا: أَنَّ الْجَزَاءَ طَلَقَاتُ هٰذَا الْمِلْكِ زموږ دليل دا دی: چې جزاء د دې ملکيت طلاقونه دي لِأَنَّهَا هِيَ الْمَانِعَةُ ځکه چې همدغه [له دخولُ الدّار] څخه منع کونکي دي لِأَنَّ الظَّاهِرَ عَدَمُ مَا يَحْدُثُ ځکه چې د نوي ملکيت عدمِ حدوث ښکاره دی [يعني ظاهرا د بلي نکاح کېدل معدوم دي، مطلب دا چې په دې صورت کې ښکاره همدا خبره ده چې بله نکاح به نه وسي] وَالْيَمِينُ تَنْعَقِدُ لِلْمَنْعِ أَوِ الْحَمْلِ او يمين [له يو کار څخه] د منع کولو يا [پر يو کار] د اماده کولو لپاره منعقد کيږي وَإِذَا كَانَ الْجَزَاءُ مَا ذَكَرْنَاهُ لهذا کله چې جزاء هغه ده کوم چې موږ ذکر کړه وَقَدْ فَاتَ بِتَنْجِيزِ الثَّلَاثِ الْمُبْطِلِ لِلْمَحَلِّيَّةِ او حال دا دی چې د محليت د باطلونکو دريو [طلاقو] په سمدستي واقع کېدلو سره جزاء فوت سوه فَلَا يَبْقَى الْيَمِينُ نو ځکه به يمين [هم] باقي نه پاتيږي

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَبَانَهَا په خلاف د هغه صورت کله چې [خاوند] ښځه بائنه کړي لِأَنَّ الْجَزَاءَ بَاقٍ لِبَقَاءِ مَحَلِّهِ ځکه چې [په دې صورت کې] د محل د بقاء په وجه سره جزاء باقي ده.

**اللغات:** ﴿يَحْدُثُ﴾ د نصر مضارع ده: پېښېدل، نوی شی پیدا کېدل، ﴿حَمْل﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب ډېرې معناوې دي، دلته يې معنیٰ "پارول" او "اماده کول" دي، ﴿تَنْجِيْز﴾ د تفعيل مصدر دی: يو کار سمدستي (فوراً) کول، فوراً واقع کول، له څه تعليق او شرط څخه بغير واقع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته ووايي: إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا، او بيا تر دخولُ الدّار مخکې هغې ته أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا ووايي (يعني بيا له شرط ذکر کولو څخه بغير درې طلاقه ورکړي)، او ښځه تر عدت وروسته د دويم خاوند سره نکاح وکړي، او دويم خاوند دخول هم په وکړي، بيا هغه د دويم خاوند څخه طلاق واخلي او تر عدت وروسته بيرته د اول خاوند په نکاح کې راسي، نو که په دغه حالت کې کور ته داخله سي، نو زموږ د درېو علماؤ په نيز هيڅ طلاق نه واقع کيږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز درې طلاقه واقع کيږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې خاوند چې تر إِنْ دَخَلْتِ الدَّارِ وروسته چې کومه جزاء ذکر کړې ده يعني فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا، دا جزاء مطلق ده، ځکه چې لفظ د ثَلَاث مطلق دی، نو د خاوند دا کلام به مطلقاً درېو طلاقو ته شامل وي، هغه (درې طلاقونه) که في الحاله د خاوند په ملکيت کې وي، يا وروسته د هغه په ملکيت کې راسي، او مطلق لفظ مقيّد لره نه شامليږي، ځکه چې مقيّد د مطلق ضد دی، لهذا مطلق درې طلاقه به د موجود ملکيت په قيد سره نه مقيد کيږي، او کله چې هم خاوند په نکاح کې راسي، نو پر هغې به درې طلاقه واقع کيږي، ځکه چې د درېو طلاقو د وقوع احتمال باتې دی (يعني بيرته پر دې ښځې درې طلاقه واقع کېدل ممکن دي)، په دې توګه چې دا ښځه د دويم خاوند سره نکاح وکړي او "حلاله" وکړي او تر هغه وروسته د اول خاوند سره وکړي (يعني په دې توګه چې د دويم خاوند سره تر نکاح کولو وروسته بيرته د اول خاوند په نکاح کې راسي)، لهذا کله چې جزاء (فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا) مطلق ده، او په هغه کې د في هذا النکاح يا في هذا الملک قيد نسته، همدارنګه تر "حلاله" وروسته د رجعت امکان هم پاته دی، نو يمين يعني د إِنْ دَخَلْتِ الدَّارِ شرط به باقي پاته وي، او کله چې هم ښځه کور ته داخله سي، نو د درېو طلاقو د وقوع حکم به کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې جزاء مطلق درې طلاقه نه دي، بلکې د هغه په ملک کې موجود درې طلاقه دي، ځکه چې جزاء داسې شی وي کوم چې شرط د وجود څخه مانع وي، يا د شرط پر وجود اماده

کونکی وي، ځکه چي یمین د همدغه دوو مقصدونو لپاره منعقد کیږي (یعني په قسم اخیستلو سره د خاوند هدف همدغه وي چي ښځه له جزاء [طلاق] څخه ویرېږي او ځني منع سي، یا پر جزاء اماده سي). او دلته د دخولُ الدار څخه منع کونکي شی د همدغه ملکیت درې طلاقونه دي، نه وروسته پیداسوی طلاقونه، او کوم طلاقونه چي د دویم خاوند تر ملکیت وروسته پیدا کیږي، هغه په ښکاره معدوم او نیستي دي، لنډه دا چي دا ثابته سوه چي جزاء د همدغه ملکیت طلاقونه دي، او د دې ملکیت درې سره طلاقه خاوند ښځي ته ورکړي دي، لهذا یمین باقي پاته نه سو، ځکه چي د یمین بقاء په شرط او جزاء سره ده، او جزاء (یعني فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا) کوم چي د یمین یوه حصه ده هغه فوت سوه، او قاعده دا ده چي د جزاء په فوتېدلو سره شرط فوتیږي، لهذا دلته یمین فوت سو، نو کله چي یمین فوت او ختم سو، نو په دخولُ الدّار سره به پر ښځي هیڅ طلاق نه واقع کیږي.

بخلاف إلخ: د دې په خلاف که خاوند د إنْ دَخَلْتِ الدَّارَ تر ویلو وروسته ښځه په یوه یا دوو طلاقو سره بائنه کړي، او دا ښځه د دویم خاوند سره تر نکاح وروسته بیرته د اول خاوند په نکاح کي راسي، نو په دې صورت کي هغه مخکنی یمین نه فوتیږي، بلکي باقي پاتیږي، ځکه چي د خاوند په یوه یا دوو طلاقو سره محلیت نه باطلیږي، او د محل د بقاء په وجه سره جزاء باقي پاتیږي، نو ځکه به په دې صورت کي په دخولُ الدّار سره پر ښځي درې طلاقه واقع کیږي.

## پر وطي او جماع د طلاق معلق کولو تفصیل

وَلَوْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ: إذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا او که [خاوند] خپلي ښځي ته ووايي: کله چي زه ستا سره جماع [کور والی] وکړم نو [بیا] ته په دریو طلاقو سره [پر ما] طلاقه یې فَجَامَعَهَا بیا [خاوند] د هغې سره جماع وکړي فَلَمَّا الْتَقَى الْخِتَانَانِ طُلِّقَتْ ثَلَاثًا نو کله چي هم د دواړو د ختنې ځایونه [فرجونه] سره ولګیږي نو ښځه په دریو طلاقو سره طلاقیږي وَإِنْ لَبِثَ سَاعَةً لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الْمَهْرُ او که خاوند څه کړی [د همدغه جماع په حالت کي] پاته سي نو پر هغه مهر نه واجبیږي وَإِنْ أَخْرَجَهُ ثُمَّ أَدْخَلَهُ وَجَبَ عَلَيْهِ الْمَهْرُ او که خاوند خپل ذَکَر [د تناسل آله] راوباسي او بیرته یې [په فرج] دننه کړي نو پر هغه مهر واجبیږي وَكَذَا إذَا قَالَ لِأَمَتِهِ: إذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ حُرَّةٌ او همدارنګه کله چي [مالک] خپلي

مينځي ته داسي ووايي: کله چي زه ستا سره جماع وکړم نو ته آزاده يې وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ أَوْجَبَ الْمَهْرَ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ أَيْضًا ❁ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چي هغه په اول صورت کي هم مهر واجب کړی دی لِوُجُودِ الْجِمَاعِ بِالدَّوَامِ عَلَيْهِ په دوام سره د جماع د موجود والي په وجه ايعني ځکه چي په اول صورت کي په دوام سره جماع موجوده سوه] إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَدُّ لِلِاتِّحَادِ ليکن [د جماع] د اتحاد په وجه پر هغه حد نه واجبيږي وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ الْجِمَاعَ إِدْخَالُ الْفَرْجِ فِي الْفَرْجِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چي جماع په فرج کي د فرج داخلول دي وَلَا دَوَامَ لِلْإِدْخَالِ او د داخلولو لپاره دوام نسته [نو ځکه به مهر نه واجبيږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا أَخْرَجَ ثُمَّ أَوْلَجَ په خلاف د هغه صورت کله چي [خاوند خپل ذکر] راوباسي [او] بيا يې داخل کړي لِأَنَّهُ وُجِدَ الْإِدْخَالُ بَعْدَ الطَّلَاقِ ځکه چي [په دې صورت کي] تر طلاق وروسته داخلول موجود سو إِلَّا أَنَّ الْحَدَّ لَا يَجِبُ بِشُبْهَةِ الِاتِّحَادِ بِالنَّظَرِ إِلَى الْمَجْلِسِ وَالْمَقْصُودِ خو مجلس او مقصود ته په نظر کولو سره د اتحاد د شبهي په وجه حد نه واجبيږي وَإِذَا لَمْ يَجِبِ الْحَدُّ وَجَبَ الْعُقْرُ او کله چي حد واجب نه سي نو مهر به واجبيږي إِذِ الْوَطْءُ الْمُحَرَّمُ لَا يَخْلُو عَنْ أَحَدِهِمَا ځکه چي حرام وطي په دې دواړو کي له يوه څخه خالي نه وي وَلَوْ كَانَ الطَّلَاقُ رَجْعِيًّا او که طلاق رجعي وي يَصِيرُ مُرَاجِعًا بِاللُّبَاثِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د پاتېدلو [درنگ کولو] په وجه سره [خاوند] رجعت کونکی ګرځي خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله لِوُجُودِ الْمَسَاسِ د مسه کولو د موجود والي په وجه وَلَوْ نَزَعَ ثُمَّ أَوْلَجَ او که [خاوند خپل ذکر] را وکاږي [او] بيا يې داخل کړي صَارَ مُرَاجِعًا بِالْإِجْمَاعِ نو په اتفاق سره رجعت کونکی ګرځي لِوُجُودِ الْجِمَاعِ د جماع د موجود والي په وجه ايعني ځکه چي په دې صورت کي دوباره جماع ثابته سوه].

**اللغات:** ﴿الخِتَانَانِ﴾ تثنيه د خِتَانٌ ده: د سنت کېدلو ځای، مراد ځني فرج (شرمګاه) ده. ﴿لَبِثَ﴾ د سمع ماضي ده: پاتېدل، درنګ کول، وخت تېرول. ﴿إِدْخَال﴾ د افعال مصدر دی: ننه کول، داخلول.

❁ القول الراجح: په دې مسئله کي راجح قول ظاهر روايت دی کوم چي قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی چي "د جماع په حالت کي په څه وخت تېرولو سره مهر مثل نه واجبيږي". قال العلامة داماد افندى رَحِمَهُ الله : وهذا عند محمد، وهو مختار أصحاب المتون (مجمع الأنهر ج:۱، ص:۴۲۵). ولكن قال العلامة ابن عابدين: وينبغي تصحيح قول أبي يوسف لظهور دليله. وقال الاستاذ غلام قادر النعماني: ولأن مبنا قول أبي يوسف على الاحتياط...(الخ). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۳۵]

اچول، ﴿اللُّبَاث﴾ په فتحه د لام سره د سمع د باب اسم مصدر دی: پاتېدل، وخت تېرول، ﴿أَوْلَج﴾ د افعال ماضي ده: داخلول، ﴿نَزَع﴾ د فتح ماضي ده: کښل، را ایستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته داسې ووايي: إِذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا، بيا خاوند د ښځې سره جماع وکړي، نو کله چې هم د خاوند ذکر د ښځې د فرج سره ولګيږي (يعني پکښې داخل سي)، نو شرط پوره کيږي او پر ښځې درې طلاقه واقع کيږي، او که خاوند د جماع په حالت کې څه ګړی پاته سي يعني څه وخت د جماع په حالت کې تېر کړي، خوند او لطف حاصل کړي، نو که څه هم په دغه حالت کې پاتېدل او درنګ کول حرام دي، لېکن د دې پاتېدلو او درنګ کولو په وجه نه پر هغه مهرِ مثل (عقر) واجبيږي، او نه پر هغه څه حد جاري کيږي، همدا ظاهر روايت دی، لېکن که ترېو وار إدخال وروسته خاوند بيا خپل ذکر را وباسي او بيا يې په فرج دننه کړي، نو په دې صورت کې هغه فقط له حد څخه ساتل کيږي، او د حرام وطي په وجه مهرِ مثل (عقر) پر واجبيږي.

**وکذا إلخ:** او همدارنګه په هغه صورت کې هم پر مالک د پاتېدلو او درنګ کولو په وجه مهر نه واجبيږي، کله چې مالک خپلې مينځې ته داسې ووايي: إِذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ حُرَّةٌ، او که ترېو وار دخول وروسته بيا دخول وکړي، نو بيا مهر پر واجبيږي.

او په نوادر کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په اول صورت (يعني په إِدخَال مِن غيرِ إِخرَاج) کې هم مهر واجبيږي؛ د امام ابو يوسف دليل دا دی چې تر دخول وروسته څه ګړی پاتېدل د ابتدائي دخول په څېر دی (يعني داسې دی لکه تر طلاق واقع کېدلو وروسته چې دوباره خاوند د ښځې سره جماع وکړي)، نو ګواکې دې سړي د درېو طلاقو تر وقوع وروسته د ښځې سره جماع وکړه، او دا ښکاره خبره ده چې کومې ښځې ته درې طلاقه ورکول سي او مغلظه وګرځي، د هغې سره وطي کول حرام دي، او د حرام وطي په وجه مهر واجبيږي، نو په دې وجه به دلته هم مهرِ مثل واجبيږي.

**إلا أنه إلخ:** په دې سره د يو سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چې کله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د جماع په حالت کې څه ګړی پاتېدل د حرام وطي او دخول په درجه کې دي، او په حرام وطي سره د زنا حد واجبيږي، لهذا دلته هم پر دې سړي د زنا حد واجبېدل پکار دي، لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې صورت کې هم حد نه واجبوي، د دې څه وجه ده؟

د دې په جواب کې فرمايي چې بېله شکه د زنا حد واجبېدل پکار دي، لېکن دلته د جماع د اتحاد (يو والي) په وجه سره شبهه پيدا سوه، يعني حرام دخول او حرام لُبث (پاتېدل) د مقصود (يعني په يوه جماع سره د شهوت پوره کولو) په اعتبار سره متحد سول، نو جماع خو يوه جماع ده، او دلته د جماع اوله حصه نه موجِب د مهر ده، او نه موجب د حد ده، لېکن د جماع آخره حصه هم د حد موجب ده، او هم د مهر، او څرنګه چې جماع يوه ده، او په دواړو حصو کې يې هيڅ امتياز او توپير نسته، نو څکه يوه حصه د بلې حصې سره ګډه سوه، او د

حد په وجوب کې شبه پیدا سوه، او د حد په سلسله کې قاعده دا ده چې "اَلْحُدُوْدُ تَنْدَرِءُ بِالشُّبُهَاتِ" (په شبهې سره حدود ساقطیږي)، لهذا دلته به هم حد ساقطیږي.

**وجه الظاهر إلخ**: څرنګه چې په ظاهر روایت کې د دُخُول من غیر إخرَاج په صورت کې مهرِ مثل نه واجبیږي، نو د هغه دلیل دا دی چې د جماع معنیٰ دا ده چې سرې له دباندې (خارج) څخه د ښځې په فرج کې ذکر داخل کړي، او د دخول لپاره هیڅ دوام نسته چې پر هغه د ابتدائي وطي حکم ولګول سي، ځکه چې دخول کول یعني د ښځې په فرج ذکر ننه کول د یوه ګړي کار دی یعني په یوه ثانیه کې دخول پوره کیږي، او تر دریو طلاقو وروسته د جماع معنیٰ پیدا نه سوه، نو ځکه به د حرام وطي د نښتوالي په وجه مهرِ مثل نه واجبیږي.

لېکن که دا سړی یو وار خپل ذکر را وباسي، او بیا دخول وکړي، نو بیا تر دریو طلاقو وروسته د جماع معنیٰ پیدا سوه او حرام وطي ثابت سوې، نو ځکه به په دې صورت کې پر خاوند مهرِ مثل واجبیږي، لېکن د زنا حد په دې صورت کې هم نه واجبیږي، ځکه چې د إدخال او إخراج په مېنځ کې د اتحاد شبهه سته، ځکه چې د إدخال او إخراج مجلس هم یو دی، او مقصود (یعني قضاءُ الشهوة) هم یو دی (یعني له یوه جماع څخه شهوت پوره سوی دی)، لهذا کله چې په دې صورت کې حد نه واجبیږي، نو مهرِ مثل به یقیناً واجبیږي، ځکه چې د حرام وطي په وجه په دې دواړو شیانو کې خامخا یو شی واجبیږي.

**ولو کان الطلاق رجعیا إلخ**: او که خاوند خپل ښځې ته داسې ووایي: إِذَا جَامَعْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً، او تر دې وروسته جماع ور سره وکړي، نو په دې صورت کې پر ښځې یو طلاقِ رجعي واقع کیږي، اوس که خاوند د دغه جماع په حالت کې څه ګړی پاته سي، نو هم د امام ابو یوسف په نېز رجعت ثابتیږي، او هم د امام محمد په نېز، د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز خو ځکه چې د هغه په نېز څه ګړی پاتېدل د ابتدائي وطي (دوباره جماع کولو) په څېر دی، او په جماع سره رجعت ثابتیږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که څه هم په دې صورت کې دوباره جماع ثابته نه سوه، خو ښځه په شهوت سره مسه کول ثابت سو، نو د دغه مسه کولو په وجه د هغه په نېز رجعت ثابتیږي. د خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ همدغه مطلب دی (او شارح د أحسن الهدایه فرمایي چې لِوُجُوْدِ الْمَسَاسِ هم د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دی، یعني په دې صورت کې فقط د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز رجعت ثابتیږي، نه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز، ځکه چې د هغه په نېز د رجعت د ثبوت لپاره ابتدائي دخول [دوباره جماع] ده. والله أعلم)

**ولو نزع إلخ**: ها! که په دې صورت کې خاوند ذکر دباندې را وباسي، او بیا دخول وکړي، نو بیا د ټولو په نېز په یوه وجه رجعت ثابتیږي، چې هغه دوباره جماع کول دي (یعني تر طلاق واقع کېدلو وروسته له خارج څخه د ښځې په فرج کې ذکر داخلول).



# فَصْلٌ فِي الْإِسْتِثْنَاءِ

## (دا) فصل په (بيان د حکم د) استثناء کي دی

**تشريح:** داستثناء معنیٰ ده: تَكَلُّمٌ بِالْبَاقِي بَعْدَ الثُّنْيَاءِ (يعني تر استثناء کولو وروسته باقي مانده خبره پوره کول)، همدارنګه که څوک يو خبره وکړي بيا هغه دالله پر غوښتني (إنشاء الله) موقوفه کړي، يا يو عدد (شمېر) بيان کړي، بيا د "إِلَّا" په ذريعه له هغه څخه څه عدد کم کړي، دې ته هم استثناء وايي، تر استثناء وروسته چي کوم کلام او کوم مقدار باقي پاته سي، حکم پر هغه جاري کيږي.

صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله مخکي د تعليق په هکله بيان وکړی، او اوس د استثناء بيان کوي، د تعليق بيان يې ځکه تر استثناء مخکي کړی چي تعليق د ټوله کلام (کُل کلام) لپاره مانع وي، او استثناء د بعض کلام لپاره مانع وي، او ښکاره خبره ده چي کُل تر بعض زيات قوي دی، نو ځکه يې اول د أقویٰ بيان وکړی، اوس له دې ځای څخه د استثناء تفصيل بيانوي.

او څرنګه چي "إِنْشَاء الله" صورتاً د تعليق په څېر ده، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دې فصل کي اول د "إِنْشَاء الله" مسئله بيانوي، د دې لپاره چي د تعليق د بيان سره د دې مسئلې بيان نژدې سي.

او په دې باره کي اختلاف دی چي "إِنْشَاء الله" د مخکني کلام (کلامِ سابق) لپاره تعليق ده او که مخکنی کلام باطلوي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي مخکنی کلام باطلوي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مخکني کلام لپاره تعليق ده.

### تر طلاق وروسته "انشاء الله" ويل

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى مُتَّصِلًا او کله چي خاوند خپلي ښځي ته ووايي: ته [پر ما] طلاقه يې إنشاء الله متصلاً [انشاء الله ووايي] لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ نو طلاق نه واقع کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي مَنْ حَلَفَ بِطَلَاقٍ أَوْ عَتَاقٍ وَقَالَ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى مُتَّصِلًا بِهِ فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ څوک چي [د ښځي] طلاقولو يا [د غلام] آزادولو قسم وکړي او د هغه سره متصل

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب النذور والأيمان، باب ما جاء في الاستثناء في اليمين، حديث رقم: ۱۵۳۱.

إِنْشَاءَ الله وايي نو پر هغه هيڅ حانثېدل نسته ايمني په دې صورت کې د هغه قسم نه ماتيږي. او قسم خوړه نه ګرځي] وَلِأَنَّهُ أَتَى بِصُورَةِ الشَّرْطِ او ځکه چې خاوند [خپل دغه کلام] د شرط په صورت سره ذکر کړی دی فَيَكُونُ تَعْلِيقًا مِنْ هٰذَا الْوَجْهِ نو په دې اعتبار سره به هغه تعليق وي وَأَنَّهُ إِعْدَامٌ قَبْلَ الشَّرْطِ او تعليق تر شرط مخکې معدوم کول دي ايمني تعليق د شرط تر وجود مخکې کلام معدوم کوي. يعني کوم کلام چې پر يو شرط معلق کړی سوي وي هغه د شرط تر وجود مخکې بالکل معدوم او نيستي وي] وَالشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ هٰهُنَا او شرط [د الله مشيئت] دلته نه معلوميږي فَيَكُونُ إِعْدَامًا مِنَ الْأَصْلِ نو دا به له شروع څخه [د کلام] معدوم کول وي وَلِهٰذَا يُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ مُتَّصِلًا بِهِ بِمَنْزِلَةِ سَائِرِ الشُّرُوطِ او له همدې وجهې دا شرط لګول کيږي چې دا استثناء [إِنشاء الله] به د نورو شرطونو په څېر د کلام سره متصل وي وَلَوْ سَكَتَ او که [خاوند تر أَنْتِ طَالِقٌ وروسته] چپ پاته سي يَثْبُتُ حُكْمُ الْكَلَامِ الْأَوَّلِ نو [په دې صورت کې] به داول کلام [د کلام داولي حصې] حکم ثابتيږي فَيَكُونُ الِاسْتِثْنَاءُ أَوْ ذِكْرُ الشَّرْطِ بَعْدَهُ رُجُوعًا عَنِ الْأَوَّلِ لهذا تر هغه وروسته استثناء کول يا شرط کول به له اول کلام څخه رجوع کول وي قَالَ: وَكَذَا إِذَا مَاتَتْ قَبْلَ قَوْلِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او همدارنګه [طلاق نه واقع کيږي] کله چې د خاوند تر إِنْشَاء الله ويلو مخکې ښځه مړه سي لِأَنَّ بِالِاسْتِثْنَاءِ خَرَجَ الْكَلَامُ مِنْ أَنْ يَكُونَ إِيجَابًا ځکه چې د استثناء په وجه سره کلام د ايجاب [موجب] جوړېدلو څخه ووتی وَالْمَوْتُ يُنَافِي الْمُوجِبَ دُونَ الْمُبْطِلِ او مرګ د موجب منافي دی، نه د مبطل بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ الزَّوْجُ په خلاف د هغه صورت کله چې [تر إِنشاء الله ويلو مخکې] خاوند مړ سي لِأَنَّهُ لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الِاسْتِثْنَاءُ ځکه چې [په دې صورت کې] هغه د اول کلام سره استثناء متصل نه کړه.

**اللغات:** ﴿عَتَاق﴾ په فتحه د عين سره د ضرب مصدر دی: آزادېدل، آزادي (مصباح اللغات)، ﴿حِنْث﴾ د سمع مصدر دی: حانث کېدل، قسم ماتېدل (قسم خوړل)، ﴿إِعْدَام﴾ د افعال مصدر دی: ختمول، له منځه وړل، نيست ونابود کول، ﴿مُبْطِل﴾ د افعال اسم فاعل دی: باطلونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځې ته داسې ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ إِنْشَاء الله تَعَالَى، او لفظ د إِنْشَاء الله د أَنْتِ طَالِقٌ سره متصل او سمدستي ووايي، نو په دې صورت کې طلاق نه واقع کيږي؛ دليل د کتاب حديث دی يعني "کوم څوک چې د طلاق ورکولو يا د غلام آزادولو قسم

وکړي، او بیا متصلاً إنشاء الله ورسره ووايي، نو هغه په خپل قسم کې نه حانثیږي". یعني نه د هغه پر ښځي طلاق واقع کیږي، او نه غلام آزادیږي.

دویم عقلي دلیل دا دی چي خاوند (حالف) دغه کلام د شرط په شکل سره کړی دی، نو په دې اعتبار سره به دا کلام تعلیق وي، او د تعلیق قاعده دا ده چي د شرط تر وجود مخکي ګواکي بالکل د کلام هیڅ وجود نه وي، او دلته د شرط هیڅ خبر نسته، ځکه چي دلته د الله په مشیت او خوښه خبرېدل د خاوند په وس او طاقت کي نه دي چي د الله کوم څه خوښ دي؟ نو ځکه به دلته له شروع او ابتداء څخه کلام معدوم وي، همدا وجه ده چي د نورو شرطیه کلامونه په څیر انشاء الله هم د کلام سره متصل ذکر کول ضروري دي.

ولو سکت إلخ: او که خاوند د أَنْتِ طَالِقٌ تر ویلو وروسته چپ پاته سي، تر هغه وروسته انشاء الله ووايي، نو په دې صورت کي د اول کلام حکم (یعني طلاق واقع کېدل) ثابتیږي (یعني پر ښځي طلاق واقع کیږي)، ځکه چي د جمهورو په نېز استثناء منفصل صحیح نه ده، ځکه چي تر سکوت وروسته استثناء (د امام محمد په قول) او شرط (د امام ابو یوسف په قول) ذکر کول د اول کلام څخه د رجوع لپاره دي، نو ځکه به استثناء باطل وي، او طلاق به واقع کیږي (یعني تر چپېدلو وروسته د إِنْشاء الله ویلو مطلب دا دی چي هغه له خپل قول څخه رجوع کول غواړي، نو ځکه به د هغه خبره نه منل کیږي او طلاق به واقع کیږي).

قال إلخ: همدارنګه که خاوند ښځي ته أَنْتِ طَالِقٌ ووايي او تر إِنْشَاء الله ویلو مخکي ښځه مړه سي، نو طلاق نه واقع کیږي: دلیل دا دی چي په أَنْتِ طَالِقٌ سره خاوند د کلام ایجاب کړی وو، خو بیا د استثناء کولو په وجه سره دا کلام ایجاب پاته نه سو، او ایجاب باطل سو، لهذا کله چي ایجاب باطل سو، نو حکم (د طلاق وقوع) به هم باطلیږي.

والموت ینافی الموجب إلخ: په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي دلته د ایجاب (موجب) یعني أَنْتِ طَالِقٌ د ښځي په ژوند کي موجود سو، او استثناء تر هغه وروسته موجوده سو، نو د عدمِ محل په وجه سره خو استثناء باطله سوه، او کله چي استثناء باطله سوه، نو ایجاب صحیح سو، لهذا طلاق واقع کېدل پکار دي.

د دې په جواب کي صاحب د هدایې فرمایي چي مرګ فقط د موجب یعني د أَنْتِ طَالِقٌ نمنافي دی، د مبطل یعني د استثناء، شرط او داسي نورو منافي نه دی، ځکه چي د موجب لپاره خو د محل بقاء ضروري ده، مګر د مبطل لپاره د محل بقاء ضروري نه ده، نو که د أَنْتِ طَالِقٌ تر پوره کېدلو مخکي،

مخکي ښځه مړه سي، نو موجب (ايجاب) خو باطليږي، لېکن مبطل يعني استثناء يا شرط په مړګ سره نه باطليږي، بيا دا خبره هم ده چي مړګ هم مبطل دی او استثناء هم مبطل ده، او مبطل خو د موجب لپاره مبطل کېدلای سي مګر د مبطل لپاره مبطل کېدلای نه سي.

بخلاف إلخ: د دې په خلاف که تر أَنْتِ طَالِقٌ ويلو وروسته او تر إِنْ شَاءَ الله ويلو مخکي خاوند مړ سي، نو طلاق واقع کيږي؛ ځکه چي دلته د أَنْتِ طَالِقٌ سره استثناء متصل نه سوه، يعني دلته فقط ايجاب پاته سو، مُبطل بالکل د خاوند تر خوله هم راوتلی نه دی، او په ايجاب (أَنْتِ طَالِقٌ) سره طلاق واقع کيږي، نو ځکه به دلته طلاق واقع کيږي (شارح د أحسن الهدايې فرمايي چي که په عبارت کي د لَمْ يَتَّصِلْ بِهِ الْإِسْتِثْنَاء پر ځای لَمْ يُوْجَدِ الْإِسْتِثْنَاء وويل سي، نو دا به د دليل لپاره زيات واضح او مناسب عبارت وي).

## د استثناء بيان

| |
|---|
| وَإِنْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا وَاحِدَةً او که [خاوند] وواييي: تا ته درې طلاقه دي مګر يو طُلِّقَتْ ثِنْتَيْنِ نو ښځه په دوو طلاقو سره طلاقيږي وَإِنْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا ثِنْتَيْنِ او که [خاوند] وواييي: تا ته دوه طلاقه دي مګر دوه طُلِّقَتْ وَاحِدَةً نو [په دې صورت کي] ښځه په يوه طلاق سره طلاقيږي وَالْأَصْلُ: أَنَّ الْإِسْتِثْنَاءَ تَكَلُّمٌ بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الثُّنْيَا او اُصول دا دی: چي استثناء په هغه مقدار سره تکلم کول دي کوم چي تر استثناء کولو وروسته حاصل سوی وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده وَمَعْنَاهُ: أَنَّهُ تَكَلُّمٌ بِالْمُسْتَثْنَى مِنْهُ او د دې مطلب دا دی: چي استناء کونکي په مستثنیٰ منه سره تکلم وکړی إِذْ لَا فَرْقَ بَيْنَ قَوْلِ الْقَائِلِ: لِفُلَانٍ عَلَيَّ دِرْهَمٌ وَبَيْنَ قَوْلِهِ: عَشَرَةٌ إِلَّا تِسْعَةً ځکه چي د يو سړي په دې قول: لِفُلَانٍ عَلَيَّ دِرْهَمٌ کي او د هغه په دې قول: [لِفُلَانٍ عَلَيَّ] عَشَرَةٌ إِلَّا تِسْعَةَ کي هيڅ فرق نسته فَيَصِحُّ اسْتِثْنَاءُ الْبَعْضِ مِنَ الْجُمْلَةِ نو له کُل څخه د بعض استثناء کول صحيح دي لِأَنَّهُ يَبْقَى التَّكَلُّمُ بِالْبَعْضِ بَعْدَهُ ځکه چي [په دې صورت کي] تر استثناء وروسته د بعض تکلم باقي پاتيږي وَلَا يَصِحُّ اسْتِثْنَاءُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ [لېکن] له کُل څخه د کُل استثناء کول صحيح نه دي لِأَنَّهُ لَا يَبْقَى بَعْدَهُ شَيْءٌ لِيَصِيْرَ مُتَكَلِّمًا بِهِ وَصَارِفًا لِلَّفْظِ إِلَيْهِ ځکه چي [په دې صورت کي] تر استثناء وروسته هيڅ شی باقي نه پاتيږي چي په هغه سره [استثناء کونکی کس] تکلّم کونکی وګرځي او د هغه وطرف ته د لفظ ګرځونکي [وګرځي] |

وَإِنَّمَا يَصِحُّ الِاسْتِثْنَاءُ إِذَا كَانَ مَوْصُولًا بِهِ او استثناء هغه وخت صحیح کیږي کله چې [استثناء] د مستثنیٰ منه سره متصله وي كَمَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ [دا خبره] ذکر کړه وَإِذَا ثَبَتَ هٰذَا فَفِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ الْمُسْتَثْنٰى مِنْهُ ثِنْتَانِ او کله چې دا [قاعده] ثابته سوه نو په اول صورت کې مستثنیٰ منه دوه دي فَيَقَعَانِ نو ځکه به هغه دواړه [طلاقه] واقع کیږي وَفِي الثَّانِي وَاحِدَةٌ او په دویم صورت کې [مستثنیٰ منه] یو دی فَتَقَعُ وَاحِدَةٌ نو ځکه به یو [طلاق] واقع کیږي وَلَوْ قَالَ: إِلَّا ثَلَاثًا او که [خاوند] ووایي: [أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا] إِلَّا ثَلَاثًا يَقَعُ الثَّلَاثُ نو [په دې صورت کې] درې طلاقه واقع کیږي لِأَنَّهُ اِسْتِثْنَاءُ الْكُلِّ مِنَ الْكُلِّ ځکه چې دا له کُل څخه د کُل استثناء ده فَلَمْ يَصِحَّ الِاسْتِثْنَاءُ نو استثناء صحیح نه سوه. وَاللّٰهُ أَعْلَمُ

**اللغات:** ﴿الثُّنْيَا﴾ والثَّنْوَى: استثناء (استثناء کول)، ﴿صَارِفًا﴾ د ضرب اسم فاعل دی: ګرځونکی، صَرَفَ يَصْرِفُ صَرْفًا: ګرځول، واپس کول.

**تشریح:** په دې عبارت کې بیان سوې مسئله پر یوه اُصول مبني ده، اُصول دا دی چې تر استثناء وروسته چې کوم مقدار باقي پاته سي، په هغه سره تکلم کولو ته استثناء وایي (لکه د فصل په شروع کې چې موږ دا خبره ذکره کړه)، یعني د مستثنیٰ منه چې کوم مقدار باقي پاته سي، په هغه تکلم کولو ته استثناء وایي، حاصل دا چې په استثناء کې له مستثنیٰ منه څخه پاته سوی مقدار مطلوب او مقصود وي، مثلاً که یو سړی داسې ووایي چې "لِفُلَانٍ عَلَيَّ دِرْهَمٌ" (د فلانکي پر ما یو درهم [باندې] دی)، نو ښکاره خبره ده چې پر هغه یو درهم واجب دي، همدارنګه که هغه د یوه درهم بیانولو لپاره د استثناء صورت اختیار کړي او داسې ووایي چې "لِفُلَانٍ عَلَيَّ عَشَرَةٌ إِلَّا تِسْعَةً" (د فلانکي پر ما لس درهمه دي له نهو درهمو څخه بغیر)، نو د دې مطلب هم دغه دی چې د فلانکي پر ما یو درهم (باندې) دی، ځکه کله چې له مستثنیٰ منه (عَشَرَةٌ) څخه مستثنیٰ یعني تِسْعَةً جلا او مستثنیٰ کړی سي، نو ښکاره ده چې فقط "یو" پاتیږي.

دویمه خبره دا ده چې له کُل څخه د بعض استثناء کول صحیح دي، لیکن له کُل څخه د کُل استثناء کول صحیح نه دي، ځکه چې د کُل تر استثناء کولو وروسته هیڅ داسې شی او مقدار باقي نه

پاتيږي چي په هغه تکلم وکړی سي، دريمه خبره دا ده چي د استثناء صحيح کېدلو لپاره د مستثنیٰ منه سره د مستثنیٰ متصل کېدل او ملحق کېدل ضرري دي، دا يو څو بنيادي خبري په ذهن کي خوندي کړئ! او صورت د مسئلې ته ګوري.

**صورت د مسئلې**: دا دی که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا وَاحِدَةً، نو په دې صورت کي دوه طلاقه واقع کيږي، او که خاوند ورته ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا وَاحِدَةً، نو بيا يو طلاق واقع کيږي، ځکه چي په دې دواړو صورتونو کي د استثناء صحيح کېدلو ټوله شرطونه موجود دي، يعني له کُل څخه د بعض استثناء سوې ده، مستثنیٰ د مستثنیٰ منه سره متصل او ملحق ده، لهذا دا استثناء صحيح ده، او په اول صورت کي خاوند له ثَلَاث څخه فقط د وَاحِدَة استثناء کړي، نو به له ثَلَاث څخه يو طلاق کميږي، او پر ښځي به له مستثنیٰ منه څخه پاته سوی مقدار يعني دوه طلاقه واقع کيږي، او په دويم صورت کي خاوند له مستثنیٰ منه يعني له ثَلَاثَ څخه د ثِنْتَيْن استثناء کړې ده، نو له ثَلَاث څخه به دوه طلاقه کميږي، او پر ښځي به فقط يو طلاق واقع کيږي.

لېکن که خاوند ښځي ته داسي ووايي: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا ثَلَاثًا، نو په دې صورت کي استثناء باطليږي، او پر ښځي درې سره طلاقونه واقع کيږي؛ ځکه چي دلته له کُل (ثَلَاث) څخه د کُل (ثَلَاث) استثناء سوې ده، او له کُل څخه د کُل استثناء صحيح نه ده، لهذا کله چي دلته استثناء صحيح نه سوه، نو استثناء به ساقطيږي او د أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا په وجه به پر ښځي درې طلاقونه واقع کيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ طَلَاقِ الْمَرِيْضِ

(دا) باب د مریض (ناروغه) د طلاق (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې مصنف رَحِمَهُ الله د صحیح او روغ انسان طلاق او د هغه اقسام بیان کړل، اوس له دې ځایه د ناروغ او مریض انسان د طلاق احکام بیانوي، ځرنګه چې مرض (ناروغي) عارض دی او صحت (روغتیا) أصل دی، او دا خو تاسو ته معلومه ده چې أصل پر عارض مخکې وي، نو ځکه اول د روغ انسان د طلاق احکام بیان سول، او تر هغه وروسته د مریض د طلاق احکام بیانیږي.

## د مرګ په مرض (مرضُ الموت) کې د واقع کړی سوي طلاق حکم

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ طَلَاقًا بَائِنًا او کله چې خاوند خپل د مرګ په مرض کې خپلې ښځې ته طلاقِ بائن ورکړي فَمَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ او بیا هغه مړ سي حال دا چې ښځه [تر اوسه] په عدت کې وي وَرِثَتْهُ نو ښځه د هغه وارثه جوړیږي وَإِنْ مَاتَ بَعْدَ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او که سړی [د ښځې] تر عدت تېرېدلو مخکې مړ سي فَلَا مِيرَاثَ لَهَا نو [په دې صورت کې] د ښځې لپاره میراث نسته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَرِثُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې ښځه به په دواړو صورتونو کې ایعني هم تر عدت مخکې او هم تر عدت وروسته] وارثه نه ګرځي لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ قَدْ بَطَلَتْ بِهَذَا الْعَارِضِ ځکه چې [د ښځې] ماینه والی [زوجه کېدل] د دغه عارض [طلاقِ بائن] په وجه ختم سو وَهِيَ السَّبَبُ او همدغه ماینه والی [د میراث] سبب دی وَلِهَذَا لَا يَرِثُهَا إِذَا مَاتَتْ او همدا وجه ده که ښځه مړه سي نو [خاوند] د هغې مالک نه ګرځي وَلَنَا أَنَّ الزَّوْجِيَّةَ سَبَبُ إِرْثِهَا فِي مَرَضِ مَوْتِهِ زموږ دلیل دا دی: چې د خاوند د مرګ په مرض کې ماینه والی [زوجه کېدل] د ښځې د وارث کېدلو سبب دی وَالزَّوْجُ قَصَدَ إِبْطَالَهُ او خاوند د هغه د باطلولو اراده کړې ده فَيُرَدُّ عَلَيْهِ قَصْدُهُ نو ځکه به د خاوند [دا] اراده پر هغه ردول کیږي بِتَأْخِيرِ عَمَلِهِ إِلَى زَمَانِ انْقِضَاءِ الْعِدَّةِ د عدت د زمانې تر تېرېدلو [ختمېدلو] پورې د هغه [طلاق] د عمل په ځنډولو سره دفعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا له ښځې څخه د ضرر لیرې کولو لپاره وَقَدْ أَمْكَنَ او

دا [د هغه ځنډول] ممکن [هم] دي لِأَنَّ النِّكَاحَ فِي الْعِدَّةِ يَبْقَى فِي حَقِّ بَعْضِ الْآثَارِ ځکه چي په عدت کي دننه د ځيني آثارو په حق کي نکاح باقي پاته وي فَجَازَ أَنْ يَبْقَى فِي حَقِّ إِرْثِهَا عَنْهُ نو جائز دي چي د خاوند [د ميراث (مال)] څخه د ښځي د وارثه کېدلو په حق کي هم نکاح باقي پاته سي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الِانْقِضَاءِ په خلاف د عدت تر ختمېدلو وروسته لِأَنَّهُ لَا إِمْكَانَ ځکه چي [په هغه وخت کي د وراثت] امکان نسته وَالزَّوْجِيَّةُ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ لَيْسَتْ بِسَبَبٍ لِإِرْثِهِ عَنْهَا. او په دغه [د مرضُ الموت] په حالت کي زوجيت د ښځي [د ميراث] څخه د خاوند د وارث کېدلو سبب نه دی فَتَبْطُلُ فِي حَقِّهِ خُصُوْصًا إِذَا رَضِيَ بِهِ نو د خاوند په حق کي به [د إرث سبب] باطليږي خصوصاً [په هغه صورت کي] کله چي خاوند په هغه راضي [هم] سي.

**اللغات:** ﴿وَرِثَتْهُ﴾ د حسب له باب څخه د ماضي صيغه ده: وارث کېدل، وارث ګرځېدل، وارث جوړېدل (ميراث خوره جوړېدل)، د ميراث حقداره جوړېدل، ﴿إِنْقِضَاء﴾ د انفعال مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند په داسي مرض مبتلا وي چي بيا يې د ژوند اُميد نه وي (يعني د مرګ او مړيني په مرض مبتلا وي چي هغه ته په عربي کي مرضُ الموت وايي)، او په همدغه حالت کي خپلي ښځي ته د هغې له رضا څخه بغير طلاقِ بائن ورکړي، او بيا هغه په داسي وخت کي مړ سي چي تر اوسه لا ښځه په عدت کي وي، نو په دې صورت کي ښځه د خاوند وارثه ګرځي (يعني داسي ښځي ته به د خاوند په ميراث کي خپله حصه ورکول کيږي)، او طلاق په وجه سره به دا ښځه د خاوند له ميراث څخه نه محروميږي، لېکن که چيري تر عدت تېرېدلو وروسته خاوند مړ سي، نو بيا دا ښځه د خاوند ميراث حقداره نه ګرځي.

**يادونه:** که دا پنځه شرطونه پوره سي، نو بيا دا (مطلقه) ښځه د مريض خاوند وارثه ګرځي: ① مريض خاوند به ښځي ته طلاقِ بائن ورکړی وي، ځکه که طلاقِ رجعي وي، نو بيا په هر صورت کي ښځه د هغه وارثه ګرځي، ځکه چي د طلاقِ رجعي په عدت کي ښځه په پوره توګه د خاوند زَوْجَه (ماينه) وي، ② په کوم مرض کي چي خاوند طلاق ورکړی وي، په هغه مرض کي به خاوند مړ سوی وي، ځکه که چيري خاوند يو وار جوړ سي، او بيا مړ سي، نو ښځه د ميراث حقداره نه ګرځي. ③ د ښځي له رضا څخه بغير به يې طلاق ورکړی وي، ځکه که ښځه په طلاق راضي وي، نو بيا وارثه نه ګرځي، ځکه چي په دې صورت کي ښځه په خپله د خپل حق په ساقطولو راضي ده. ④ ښځه به د

وارثت مستحقه وي، يعني مينځه او کتابيه به نه وي، ⑤ خاوند به د ښځي په عدت کي مړ سوی وي، ځکه که تر عدت تېرېدلو وروسته خاوند مړ سي، نو ښځه وارثه نه ګرځي.

**وقال الشافعي إلخ:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په پورتني صورت کي نه ښځه تر عدت مخکي وارثه ګرځي، او نه تر عدت وروسته.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د وراثت سبب زوجيت (مابينه کېدل) دي، او د طلاقِ بائن په وجه ښځه له خاوند څخه جلا کيږي، يعني تر طلاقِ بائن وروسته بيا ښځه د خاوند مابينه (زوجه) نه پاتيږي، او کله چي د طلاقِ بائن په وجه هغه د خاوند مابينه نه پاتيږي، نو د خاوند وارثه به هم نه ګرځي، همدا وجه ده که عدت په وخت کي دا مطلقه بائنه ښځه مړه سي، نو خاوند د هغې وراث نه ګرځي، لهذا ښځه به هم د خاوند وارثه نه ګرځي.

**زموږ نقلي دليل:** صاحب د هدايې فقط پر عقلي دليل اکتفاء کړې ده، نقلي دليل يې نه دي ذکر کړی، تر نقلي دليل مخکي تاسو د اِمْرَأَةُ الفَارّ په معنیٰ ځان پوه کړئ!، د فَارّ معنیٰ ده: تښتېدونکی سړی، کوم خاوند ته چي د مرض په وجه د مرګ يقين سي (چي زه خامخا مړ کېږم)، يا د رجم او قصاص په وجه يې د مرګ يقين سي، او په همدغه حالت کي ښځي ته طلاق ورکړي د دې لپاره چي ښځه له وراثت څخه محرومه سي، داسي خاوند ته فَارّ ويل کيږي، او د هغه ښځي ته اِمْرَأَةُ الفَارّ ويل کيږي، او داسي طلاق ته طَلَاقُ الفَار ويل کيږي، اوس نقلي دليل ته ګورئ! د نقلي دليل حاصل دا دی چي اِمْرَأَةُ الفَارّ د صحابه وو په اجماع سره د وراثت حقداره ده، ځکه کله چي عبد الرحمان بن عوف رضي الله عنه د مرضُ الموت په حالت کي خپلي ښځي "تماضر" ته طلاقِ بائن ورکړی، او بيا د هغې په عدت کي وفات سو، نو حضرت عثمان رَحِمَهُ الله هغه (تماضر) د عبد الرحمان بن عوف رضي الله عنه وارثه جوړه کړه، او په هغه وخت کي هيڅ صحابي هم د حضرت عثمان رضي الله عنه پر دې فيصله نکير نه وکړی، لهذا دا سکوتي اجماع سوه، او د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه هم دا روايت سوی دی: إِنَّ اِمْرَأَةَ الْفَارِ تَرِثُ (بېشکه اِمْرأة الفَار د خپل خاوند وارثه ګرځي)، نو ځکه موږ وايو چي پورتنۍ ښځه به د خاوند وارثه ګرځي.

**زموږ عقلي دليل:** دا دی چي کله د خاوند د مرګ په مرض کي هم ښځه د خاوند مابينه (زوجه) وي، نو دا د وراثت سبب دی، ځکه چي د خاوند د مرګ په مرض کي د خاوند د مال سره د ښځي حق متعلق کيږي (او بل دا چي کومه ښځه د ژوند تر آخري وخته پوري د خاوند مابينه وي، نو د هغې په هکله دا پوره اُميد وي چي هغه به د خاوند وارثه وګرځي)، لېکن خاوند په خپل آخري عمر کي په طلاقِ بائن

ور کولو سره د هغې د حق باطلولو اراده وکړه (او د هغې سره يې ظلم وکړی)، نو ځکه به دا لرلده د هغه پر مخ وهل کيږي، او د طلاق عمل او اثر به د عدت تر ختمېدو پورې ځنډول کيږي، د دې لپاره چې ښځه له ضرر او تاوان څخه وساتل سي (يعني چې له وراثت څخه محرومه نه سي).

**وقد أمكن إلخ**: فرمايي چې د عدت تر ختمېدو او تېرېدو پورې د طلاق عمل مؤخر کول ممکن هم دي، ځکه چې په عدت کې دننه د خاوند او ښځې تر مېنځ د ځينې وجوهاتو په اعتبار سره نکاح پاتې وي، مثلاً: ① ښځه په عدت کې د خاوند له اجازې څخه بغير نه سي وتلای. ② ښځه عدت د خاوند لپاره تېروي، ③ که چېرې په عدت کې کوچنی پيدا سي، نو د هغه نسب د خاوند سره ثابتيږي. ④ په عدت کې د ښځې نفقه او سکنیٰ د خاوند پر ذمه وي، دا ټوله د دې خبرې دليل دی چې دا ښځه اوس هم د خاوند مابېنه (زوجه) ده، لهذا معلومه سوه چې د عدت تر ختمېدو پورې د طلاق عمل ځنډول ممکن دي، نو ځکه به دا ښځه تر عدت ختمېدو پورې د خاوند وارثه ګرځي، لېکن څرنګه چې تر عدت ختمېدلو وروسته په هر اعتبار سره نکاح ختميږي، نو ځکه به تر عدت وروسته د خاوند د مړه کېدلو په صورت کې ښځه د هغه وارثه نه ګرځي.

**والزوجية في هذه إلخ**: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي (هغه فرمايلي وو چې د مطلقه بائنه ښځې د مړه کېدلو په صورت کې خاوند د هغې وارث نه ګرځي، نو ځکه به ښځه هم د خاوند وارثه نه ګرځي)، د جواب حاصل دا دی چې د مرګ په مرض کې د ښځې خاوند کېدل (زوجيت) د دې سبب نه دی چې خاوند د ښځې وارث وګرځي، ځکه چې د خاوند د مرګ په مرض کې د خاوند حق د ښځې د مال سره نه متعلق کيږي، بلکې د ښځې حق د هغه د مال سره متعلق کيږي (همدا وجه ده چې پر ښځې عدت سته، پر خاوند عدت نسته)، لهذا په طلاق ورکولو سره به د خاوند په حق کې د وراثت سبب باطليږي او هغه به د ښځې د ميراث حقداره نه ګرځي، خصوصاً په هغه صورت کې کله چې خاوند په خپله د خپل حق په ساقطولو راضي سي او ښځې ته طلاق ورکړي.

## په مرضُ الموت کې د طلاق ورکولو درې بېلابېل صورتونه (او د هغوی حکمونه)

**وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا بِأَمْرِهَا** او که [خاوند] د ښځې په حکم سره هغې ته درې طلاقه ورکړي **أَوْ قَالَ لَهَا: اِخْتَارِيْ فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا** يا ښځې ته ووايي: ته يې اختيار کړه او ښځې خپل ځان اختيار کړی **أَوِ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ** يا ښځه له خاوند څخه خلع وکړي **ثُمَّ مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ** بيا [خاوند] مړ سي حال دا چې ښځه [تر اوسه] په عدت کې وي **لَمْ تَرِثْهُ** نو دا ښځه د خاوند وارثه نه ګرځي **لِأَنَّهَا رَضِيَتْ بِإِبْطَالِ حَقِّهَا** ځکه چې [دلته] ښځه [په خپله] د خپل حق [ميراث] په باطلولو راضي سوه **وَالتَّأْخِيرُ لِحَقِّهَا** حال دا

چې [تر عدت پورې د طلاق عمل ځنډول] د هغې د حق په وجه دي وَإِنْ قَالَتْ: طَلِّقْنِي لِلرَّجْعَةِ او که ښځه ووايي: ما ته طلاقِ رجعي راکړه! [یعني له خاوند څخه د طلاقِ رجعي غوښتنه وکړي] فَطَلَّقَهَا ثَلَاثًا [لیکن] خاوند هغې ته درې طلاقه ورکړي وَرِثَتْهُ نو [په دې صورت کې] هغه د خاوند وارثه ګرځي لِأَنَّ الطَّلَاقَ الرَّجْعِيَّ لَا يُزِيلُ النِّكَاحَ ځکه چې طلاقِ رجعي نکاح نه زائلوي فَلَمْ تَكُنْ بِسُؤَالِهَا رَاضِيَةً بِبُطْلَانِ حَقِّهَا نو دا ښځه به د طلاقِ رجعي د غوښتنې په وجه سره د خپل حق په باطلولو راضي نه شمارل کیږي.

**اللغات:** ﴿اِخْتَلَعَتْ﴾ د افتعال ماضي ده: خلع کول، ﴿رَضِيَتْ﴾ د سمع ماضي ده: راضي کېدل، ﴿إِبْطَال﴾ د افعال مصدر دی: باطلول (ساقطول).

**تشریح:** په دې عبارت کې درې صورتونه بیان سوي دي: ①... یو صورت دا چې ښځه په خپله له خاوند څخه د دریو طلاقو غوښتنه وکړي او خاوند په مرضُ الموت کې هغې ته درې طلاقه ورکړي، ②... دویم دا چې خاوند په مرضُ الموت کې خپلې ښځې ته اختیار ورکړي او ښځه خپل ځان اختیار کړي، ③... دریم دا چې ښځه د خپل خاوند په مرضُ الموت کې له هغه څخه خلع وکړي.

د دې ټولو صورتونو حکم دا دی چې که خاوند د ښځې د عدت په زمانه کې مړ سي، نو دا ښځه د خاوند وارثه نه ګرځي.

دلیل دا دی چې په دې صورتونو کې ښځه د خپل حق په باطلولو راضي ده، ځکه په اول صورت کې خو په خپله هغې د دریو طلاقو غوښتنه کړې ده، او په دویم صورت کې یې د خپل ځان په اختیارولو سره فرقت واقع کړی دی کوم چې د رضا دلیل دی، او په دریم صورت کې یې د فرقت واقع کولو لپاره د خلع په ذریعه پر خپل ځان مال لازم کړی دی، او دا هم د رضا څرګند دلیل دی.

او دا تاسي ته معلومه ده چې د طلاق عمل د ښځې د حق په وجه (د عدت تر ختمېدلو پورې) مؤخر کیږي، لیکن کله چې ښځه د خپل حق (میراث) په باطلولو راضي سوه، نو بیا چا هم د هغې د حق حفاظت کول لازم پاته نه سو.

**وإن قالت إلخ:** او که ښځه له خپل خاوند څخه د طلاقِ رجعي غوښتنه وکړي، لیکن خاوند په خپل مرضُ الموت کې هغې ته درې طلاقه (طلاقِ مغلظ) ورکړي، نو په دې صورت کې ښځه د هغه وارثه ګرځي، دلیل دا دی چې طلاقِ رجعي نکاح نه ختموي (ځکه چې په طلاقِ رجعي کې په پوره توګه

نکاح پاته وي فقط رجعت ته باته غواړي). لهذا دا به نه ویل کیږي چي دا ښځه د طلاقِ رجعي په غوښتني سره د خپل حق په باطلولو راضي سوه.

## په مرضُ الموت کي د طلاق یو بل صورت

وَإِنْ قَالَ لَهَا فِي مَرَضِ مَوْتِهِ: كُنْتُ طَلَّقْتُكِ ثَلَاثًا فِي صِحَّتِي وَانْقَضَتْ عِدَّتُكِ او که [خاوند] خپل د مرګ په مرض کي ښځي ته [داسي] ووایي: ما تا ته خپل په صحت [روغتیا] کي دري طلاقه درکړي وه او ستا عدت هم تېر سو فَصَدَّقَتْهُ او ښځي د خاوند [د دغه خبري] تصدیق وکړی ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ أَوْ أَوْصَى لَهَا بِوَصِيَّةٍ بیا [خاوند] د هغې لپاره [پر خپله ذمه] د قرض اقرار وکړی، یا یې د هغې لپاره یو وصیت وکړی فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ وَمِنَ الْمِيرَاثِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ✿ نو په میراث او په هغه [اقرار یا وصیت] کي چي کوم یو کم [لږ] وي هغه به د ښځي لپاره وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: يَجُوزُ إِقْرَارُهُ وَوَصِيَّتُهُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د هغه [مریض] اقرار او وصیت جائز دی وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فِي مَرَضِهِ بِأَمْرِهَا او که [خاوند] په خپل مرضُ الموت کي ښځي ته د هغې په حکم دري طلاقه ورکړي [او عدت هم پاته وي] ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ أَوْ أَوْصَى لَهَا بِوَصِيَّةٍ او بیا [خاوند] د هغې لپاره د یو قرض اقرار وکړي، یا د هغې لپاره یو وصیت وکړي فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنْ ذَلِكَ وَمِنَ الْمِيرَاثِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو په میراث او په هغه [اقرار یا وصیت] کي چي کوم کم وي هغه به د ښځي لپاره وي [زموږ] د ټولو امامانو په قول کي إِلَّا عَلَى قَوْلِ زُفَرَ مګر د امام زفر رَحِمَهُ الله پر قول فَإِنَّ لَهَا جَمِيعَ مَا أَوْصَى وَمَا أَقَرَّ بِهِ ځکه چي [د امام زفر په نېز به] د ښځي لپاره هغه ټوله [مقدار] وي د کوم چي خاوند وصیت او اقرار کړی وي لِأَنَّ الْمِيرَاثَ لَمَّا بَطَلَ بِسُؤَالِهَا ځکه کله چي د ښځي [د طلاق] په غوښتني سره د هغې [حق] د میراث باطل سو زَالَ الْمَانِعُ مِنْ صِحَّةِ الْإِقْرَارِ وَالْوَصِيَّةِ نو د اقرار او وصیت د صحیح کېدلو چي کوم مانع وو هغه زائل سو وَجْهُ قَوْلِهِمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى: أَنَّهُمَا لَمَّا تَصَادَقَا عَلَى الطَّلَاقِ وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او په اوله مسئله کي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د قول وجه دا ده: چي کله [دلته] خاوند او ښځي پر طلاق او د عدت پر تېرېدلو اتفاق وکړی صَارَتْ أَجْنَبِيَّةً عَنْهُ نو دا ښځه له هغه شخصه پردۍ سوه حَتَّى

---

✿ القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله ، كما في الدر المختار (ج:٢، ص:٥٧٠)، وكذا هندية (ج:١، ص:٤٦٤). [القول الراجح ج:١، ص:٣٣٥]

جَازَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أُخْتَهَا همدا وجه ده چي د خاوند لپاره د دې ښځې د خور سره نکاح کول جائز دي فَانْعَدَمَتِ التُّهْمَةُ نو تهمت ختم سو أَلَا تَرَى أَنَّهُ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ لَهَا آيا ته نه ګورې! چي د دې ښځې په حق کې د خاوند ګواهي [هم] قبليږي وَيَجُوزُ وَضْعُ الزَّكَاةِ فِيهَا او [همدارنګه د خاوند لپاره] دغه ښځې ته طلاق ورکول جائز دي بِخِلَافِ الْمَسْأَلَةِ الثَّانِيَةِ په خلاف د دويمې مسئلې لِأَنَّ الْعِدَّةَ بَاقِيَةٌ وَهِيَ سَبَبُ التُّهْمَةِ ځکه چي [هلته] عدت پاته دی او همدا [عدت] د تهمت سبب دی وَالْحُكْمُ يُدَارُ عَلَى دَلِيلِ التُّهْمَةِ او د حکم دار ومدار د تهمت پر دليل دی وَلِهَذَا يُدَارُ عَلَى النِّكَاحِ وَالْقَرَابَةِ او له همدې وجهې پر نکاح او قرابت د حکم دار ومدار دی وَلَا عِدَّةَ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى او په اوله مسئله کې عدت [پاته] نه دی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ: أَنَّ التُّهْمَةَ قَائِمَةٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل په دواړو مسئلو کې دا دی: چي تهمت پاته دی لِأَنَّ الْمَرْأَةَ قَدْ تَخْتَارُ الطَّلَاقَ لِيَنْفَتِحَ بَابُ الْإِقْرَارِ وَالْوَصِيَّةِ عَلَيْهَا فَيَزِيدَ حَقُّهَا ځکه چي کله نا کله ښځه [د دې غرض لپاره] طلاق اختياروي چي د اقرار او وصيت دروازه پر هغې راخلاصه سي او د هغې حق زيات سي وَالزَّوْجَانِ قَدْ يَتَوَاضَعَانِ عَلَى الْإِقْرَارِ بِالْفُرْقَةِ وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او کله خاوند او ښځه دواړه د فرقت پر اقرار او د عدت پر تېرېدلو اتفاق [او موافقت] کوي لِيَبَرَّهَا الزَّوْجُ بِمَالِهِ زِيَادَةً عَلَى مِيرَاثِهَا د دې لپاره چي خاوند د خپل مال په ذريعه د هغې سره تر ميراث هم زيات احسان وکړي وَهَذِهِ التُّهْمَةُ فِي الزِّيَادَةِ او دا تهمت په زياتوب کې دی [يعني دا تهمت په هغه صورت کې سته کله چي خاوند د ښځې لپاره د ميراث څخه د زيات مال اقرار يا وصيت کړی وي] فَرَدَدْنَاهَا نو ځکه موږ زياتوب رد کړی وَلَا تُهْمَةَ فِي قَدْرِ الْمِيرَاثِ او د ميراث په مقدار کې هيڅ تهمت نسته فَصَحَّحْنَاهُ نو ځکه موږ د ميراث مقدار صحيح وګرځوی وَلَا مُوَاضَعَةَ عَادَةً فِي حَقِّ الزَّكَاةِ وَالتَّزَوُّجِ وَالشَّهَادَةِ او په عامه توګه د زکاة، نکاح او ګواهۍ په حق کې اتفاق نه کيږي فَلَا تُهْمَةَ فِي حَقِّ هَذِهِ الْأَحْكَامِ لهذا د دې احکامو په حق کې هيڅ تهمت نسته.

**اللغات:** ﴿تَصَادَقَا﴾ د تفاعل ماضي ده: يو د بل تصديق کول، ﴿يُدَارُ﴾ د فتح مضارع مجهوله ده: مدار کېدل، دائر کېدل، ﴿يَتَوَاضَعَانِ﴾ د تفاعل له باب څخه د تثنيه مذکر غائب مضارع صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي، يو معنیٰ يې دا ده: اتفاق کول، موافقت کول، او د مُوَاضَعَة هم دغه معنیٰ ده.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱)... که خاوند خپلې ښځې ته ووايي: زه چې کله جوړ او روغ وم، نو ما تا ته درې طلاقه درکړې وه، او تا د هغو طلاقونو عدت هم پوره کړی، او ښځې د خپل خاوند تصديق وکړی، بيا خاوند تر دې وروسته د دغه ښځې لپاره د قرض اقرار وکړی، يعني خاوند ووېل: چې پر ما د دې ښځې مثلاً لس زره (۱۰۰۰۰) روپۍ باندې دي، يا خاوند د دې ښځې لپاره په خپل ميراث کې د څه مال ورکولو وصيت وکړی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که ښځه له خپل خاوند څخه د هغه په مرض الموت کې د دريو طلاقو غوښتنه وکړي او خاوند هغې ته درې طلاقه ورکړي، او بيا خاوند په عدت کې د دغه ښځې لپاره د قرض اقرار وکړي يا د څه مال وصيت وکړي.

نو په دې دواړو مسئلو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې دلته به د ښځې د ميراث حصې ته کتل کېږي چې هغه د اقرار يا وصيت تر مال زياته ده او که کمه ده، که چيرې د ښځې د ميراث حصه تر هغه کمه وي، نو د ميراث حصه به ورکول کېږي، او که د ميراث حصه زياته وي، او د اقرار يا وصيت مال کم وي، نو بيا به د قرض يا وصيت مال ورکول کېږي (مثلاً که د وصيت مال ۵۰۰۰ زره روپۍ وي او د ميراث حصه ۶۰۰۰ زره روپۍ وي، نو د وصيت مال به ورکول کېږي).

او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دواړو مسئلو کې به هغه مقدار ورکول کېږي د کوم مقدار چې خاوند اقرار يا وصيت کړی وي برابره ده هغه مقدار د ميراث له حصې څخه کم وي او که زيات وي.

او د صاحبينو په نېز په اوله مسئله کې هغه حکم دی کوم چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دی او په دويمه مسئله کې هغه حکم دی کوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې د دې ښځې په حق کې د اقرار يا وصيت د صحيح کېدلو لپاره د هغې وارث کېدل مانع وو (يعني دا ښځه د خاوند وارثه (د ميراث حقداره) وه، او د وارثت په وجه د هغې لپاره د خاوند اقرار يا وصيت کول صحيح نه وو [ځکه چې د خپلې ښځې لپاره اقرار يا وصيت کول صحيح نه دي])، لېکن په اوله مسئله کې چې کله ښځې د خاوند تصديق وکړی او په دويمه مسئله کې يې د طلاق غوښتنه وکړه، نو د ښځې ميراث باطل سو، لهذا د قرار او وصيت د صحيح کېدلو مانع زائل سو، او کله چې مانع زائل سو، نو د ښځې لپاره د خاوند اقرار او وصيت کول صحيح سو، نو ځکه به د خاوند تر مرګ وروسته ښځه فقط د هغه مقدار حقداره وي، د کوم مقدار چې خاوند اقرار يا وصيت کړی وي، هغه که د ميراث له حصې څخه کم وي، او که زيات وي.

**د صاحبينو دليل:** په اوله مسئله کې د صاحبينو دليل دا دی چې کله خاوند او ښځې د طلاق پر قوع او د عدت پر پوره کېدلو اتفاق وکړی، نو دا ښځه له خاوند څخه اجنبيه (پردۍ) سوه، او په هر اعتبار سره

د دوی نکاح ختمه سوه. همدا وجه ده ① چي خاوند اوس د هغې د خوړ سره نکاح کولای سي، نو دا تهمت اوس نه سي کېدای چي خاوند د هغې د فايدې لپاره طلاق ورکوي چي بيا د هغې لپاره د زيات مقدار اقرار يا وصيت وکړي (ځکه دا تهمت به هغه وخت پاته وای کله چي په هر اعتبار سره نکاح ختمه نه وای. بلکي په يوه اعتبار (مِنْ وَجْه) نکاح پاته وای). ② او په هر اعتبار سره د نکاح ختمېدلو او د ښځي د اجنبي کېدلو دويمه وجه دا ده چي اوس خاوند د هغې په حق کي ګواهي ورکولای سي. ③ او هغې ته خپل زکاة ورکولای سي. له دې دريو دليلونو څخه ثابته سوه چي اوس دا ښځه بالکل پردۍ او اجنبيه ده. لهذا څرنګه چي د نورو اجانبو (پرديو کسانو) لپاره اقرار او وصيت کول صحيح دي. همداسي به د دې ښځي لپاره هم د خاوند اقرار او وصيت کول صحيح وي.

په خلاف د دويمي مسئلې، ځکه چي په دويمه مسئله کي د ښځي په حکم سره طلاق ورکول سوي دي. او په دويمه مسئله کي پر ښځي عدت هم پاته دی. لهذا په يوه اعتبار سره (مِنْ وَجْه) نکاح پاته سوه. نو دا عدت او مِنْ وَجْه نکاح پاتېدل د تهمت سبب دی چي خاوند په طلاق ورکولو سره د هغې لپاره له ميراث څخه د زيات مال اقرار يا وصت کوي (يعني د هغې د فايدې لپاره طلاق ورکوي). او د حکم دار ومدار د تهمت پر دليل دی (ځکه چي تهمت يو پټ شی دی، او په پټ شي خبرېدل ناممکن دي، نو ځکه به د پټ شي پر دليل حکم کيږي. چي هغه دلته عدت دی. ځکه چي د عدت په وجه مِنْ وَجْه نکاح پاته ده. او د همدغه مِنْ وَجْه نکاح پاتېدلو په وجه د خاوند په باره کي تهمت کيږي). لهذا د تهمت د دليل (عدت) په وجه په دويمه مسئله کي تهمت ثابت سو، نو ځکه به د ښځي لپاره د خاوند اقرار او وصيت کول جائز نه وي.

**ولهذا يُدار إلخ:** فرمايي همدا وجه ده چي په نکاح او قرابت کي د تهمت په وجه سره پر نکاح او قرابت د حکم دار ومدار دی. يعني که خاوند او ښځه يو د بل په حق کي ګواهي ورکول وغواړي، نو ګواهي نه سي ورکولای، ځکه چي د دوی په مينځ کي نکاح پاته ده، او نکاح د تهمت دليل دی چي دوی به د يوه او بل د فايدې لپاره ګواهي ورکوي. نه د نقصان لپاره. همدارنګه يو ورور د بل ورور لپاره ګواهي نه سي ورکولای. ځکه چي قرابت د تهمت دليل دی چي هغه به د خپل ورور د فايدې لپاره ګواهي ورکوي. نو همداسي عدت هم د تهمت دليل دی چي خاوند به د ښځي لپاره د زيات مال وصيت يا اقررار کوي، او نورو وارثانو ته به تاوان ورسوي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي په دواړو مسئلو کي تهمت موجود دی، په دويمه مسئله کي خو د ټولو په نيز تهمت موجود دی. او په اوله مسئله کي که څه هم ښځي د طلاق او د عدت تصديق کړی دی خو بيا هم دا تهمت سته چي ښځي به د دې لپاره د خاوند تصديق کړی وي چي د هغې لپاره د

اقرار او وصيت دروازه خلاصه سي، يا دا چي خاوند او ښځي به دواړو د طلاق او عدت تېرېدلو پلان جوړ کړی وي او اتفاق به يې کړی وي د دې لپاره چي خاوند د اقرار يا وصيت په وجه هغې ته تر ميراث زيات مقدار ورکړي، او دا تهمت په هغه مقدار کي سته کوم چي تر ميراث زيات وي (يعني کوم مقدار چي د ښځي د ميراث له حصې څخه زيات وي)، نو ځکه موږ د ميراث له حصې څخه د زيات مال اقرار او وصيت ردّ کړی، او د ميراث د حصې څخه په کم مقدار کي تهمت نسته، نو ځکه مو هغه جائز وګرځوی.

**ولا مواضعة عادة إلخ:** په دې سره صاحبينو ته جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي د ميراث په حق کي دا خبره عادتاً ممکنه ده چي خاوند او ښځي به دواړو اتفاق کړی وي او د طلاق او عدت پوره کېدلو پلان او بانه به يې جوړه کړې وي، لېکن ښځي ته د زکاة ورکولو لپاره يا د هغې د خور سره د نکاح کولو لپاره يا يو د بل په حق کي د ګواهي ورکولو لپاره عادتاً داسي پلان نه جوړېږي او د دې شيانو لپاره ښځه او خاوند پر طلاق او عدت اتفاق نه کوي، نو ثابته سوه چي په دغه احکامو کي تهمت نسته، لهذا د صاحبينو لپاره په خپل دليل او قياس کي دغه احکام ذکر کول صحيح نه دي.

## په مرضُ الموت کي د طلاق قاعده او اُصول

قَالَ: وَمَنْ كَانَ مَحْصُوْرًا أَوْ فِي صَفِّ الْقِتَالِ او کوم څوک چي کلا بند وي [يعني په قلعه کي محاصره کړی سوي وي] يا د جنګ په صف کي وي فَطَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا او [په همدغه حالت کي] خپلي ښځي ته درې طلاقه ورکړي [او بيا مړ سي] لَمْ تَرِثْهُ نو ښځه د هغه وارثه نه ګرځي وَإِنْ كَانَ قَدْ بَارَزَ رَجُلًا أَوْ قُدِّمَ لِيُقْتَلَ فِي قِصَاصٍ أَوْ رَجْمٍ او که هغه ديو سړي سره د مقابلې لپاره [مخته] راوتلی وي، يا هغه په قصاص يا رجم کي د قتل کېدلو لپاره پېش کړی سي وَرِثَتْ إِنْ مَاتَ فِي ذٰلِكَ الْوَجْهِ أَوْ قُتِلَ نو که هغه په دې باره کي مړ سو يا قتل کړی سو نو ښځه [د هغه] وارثه ګرځي وَأَصْلُهُ مَا بَيَّنَّا أَنَّ امْرَأَةَ الْفَارِّ تَرِثُ اسْتِحْسَانًا او د دې اُصل هغه دی کوم چي موږ بيان کړی چي [د ميراث څخه] د تښتېدلونکي سړي ښځه استحساناً وارثه ګرځي وَإِنَّمَا يَثْبُتُ حُكْمُ الْفِرَارِ بِتَعَلُّقِ حَقِّهَا بِمَالِهِ او د فرار [تښتېدلو] حکم هغه وخت ثابتېږي کله چي د ښځي حق د خاوند د مال سره متعلق سي وَإِنَّمَا يَتَعَلَّقُ بِمَرَضٍ يُخَافُ مِنْهُ الْهَلَاكُ غَالِبًا او اد خاوند د مال سره د ښځي حق] په داسي مرض سره متعلق کيږي چي له هغه مرض څخه غالباً د هلاکت [مړه کېدلو] بېره وي كَمَا إِذَا كَانَ صَاحِبَ الْفِرَاشِ مثلاً کله چي هغه د بسترې خاوند وي وَهُوَ أَنْ يَكُونَ بِحَالٍ لَا يَقُومُ بِحَوَائِجِهِ كَمَا يَعْتَادُهُ الْأَصِحَّاءُ او هغه دا چي مريض په داسي حالت کي وي چي د صحت

منډو [روغو] خلکو په شير عادتاً خپل ضروريات پوره کولای نه سي وَكَذٰ يَثْبُتُ حُكْمُ الْفِرَارِ بِمَا هُوَ فِي مَعْنَى الْمَرَضِ فِي تَوَجُّهِ الْهَلَاكِ الْغَالِبِ او کله نا کله د فرار حکم ثابتيږي په هغه شي سره کوم چي په غالب هلاکت کي د مرضُ الموت په معنیٰ سره وي [يعني له کوم شي څخه چي د مرګ غالب ګومان وي (لکه څرنګه چي په مرض الموت کي د مرګ غالب ګومان وي) نو په هغه شي سره هم د فرار حکم ثابتيږي] وَمَا يَكُوْنُ الْغَالِبُ مِنْهُ السَّلَامَةَ لَا يَثْبُتُ بِهٖ حُكْمُ الْفِرَارِ او له کوم شي څخه چي سلامتي غالب وي نو په هغه سره د فرار حکم نه ثابتيږي فَالْمَحْصُوْرُ وَالَّذِيْ فِيْ صَفِّ الْقِتَالِ الْغَالِبُ مِنْهُ السَّلَامَةُ نو کوم کس چي کلا بند وي او [همدارنګه] هغه کس کوم چي چي د جنګ په صف کي وي له هغه څخه سلامتي غالبه ده لِأَنَّ الْحِصْنَ لِدَفْعِ بَأْسِ الْعَدُوِّ وَكَذَا الْمَنَعَةُ ځکه چي قلعه خو د دښمن د ضرر [او هلاکت] دفع کولو لپاره وي او همدارنګه لښکر دی فَلَا يَثْبُتُ بِهٖ حُكْمُ الْفِرَارِ نو په دې سره به د فرار حکم نه ثابتيږي وَالَّذِيْ بَارَزَ أَوْ قُدِّمَ لِيُقْتَلَ الْغَالِبُ مِنْهُ الْهَلَاكُ او کوم څوک چي د مقابلې لپاره [مخته] راوتلی وي يا د قتل کېدلو لپاره پېش کړی سي نو له هغه څخه هلاکت غالب دی فَيَتَحَقَّقُ بِهِ الْفِرَارُ نو په هغه سره به د فرار حکم ثابتيږي وَلِهٰذَا أَخَوَاتٌ تُخَرَّجُ عَلٰى هٰذَا الْحَرْفِ او د دې [مسئلې] نور مثالونه [هم] سته چي هغوی پر همدغه اُصول را ايستل کيږي وَقَوْلُهٗ: إِذَا مَاتَ فِيْ ذٰلِكَ الْوَجْهِ أَوْ قُتِلَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: إِنْ مَاتَ فِيْ ذٰلِكَ الْوَجْهِ أَوْ قُتِلَ دَلِيْلٌ عَلٰى أَنَّهٗ لَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا مَاتَ بِذٰلِكَ السَّبَبِ أَوْ بِسَبَبٍ آخَرَ [دا قول] پر دې خبره دليل دی چي په دې کي هيڅ فرق نسته چي [که خاوند] په هغه سبب سره مړ سي يا په بل سبب سره كَصَاحِبِ الْفِرَاشِ بِسَبَبِ الْمَرَضِ إِذَا قُتِلَ لکه د مرض په وجه صاحبُ الفراش چي کله قتل کړی سي [نو بيا هم ښځه دهغه وارثه ګرځي]

**اللغات:** ﴿مَحْصُوْر﴾ له ضرب او نصر دواړو څخه اسمِ مفعول دی: کلا بند (هغه سړی چي په يوه قلعه يا په يو ځای کي محاصره او ايسار کړی سي)، ﴿بَارَزَ﴾ د مفاعلې ماضي ده: مقابله کول، ﴿فَارّ﴾ د ضرب اسم فاعل دی: فرار کونکی، تېښته کونکی (تښتېدونکی)، ﴿حِصْن﴾ قلعه، کلا، جمع: حُصُوْن، ﴿بَأْس﴾ حرج، ضرر، تاوان، ﴿الحَرْف﴾ طرز، طريقه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په قلعه (کلا) کي بندي وي او دښمنانو قلعه محاصره کړې وي يا هغه د جنګ په صف کي وي، او په دغه حالت کي خپلې ښځي ته درې طلاقه وکړي، او

بيا مړ سي. نو په دې صورت کي ښځه د هغه وارثه نه ګرځي. او که يو سړی د دښمن د مقابلې لپاره د جنګ له صف څخه مخته راووځي يا هغه د رجم يا د قصاص په بدله کي د قتل کېدلو لپاره ميدان ته راوستل سي. او په دغه حالت کي خپلي ښځي ته درې طلاقه وکړي، او بيا په هغه سبب سره قتل کړی سي (يعني له صف څخه د راوتلو يا د رجم او قصاص په سبب سره قتل کړی سي) يا په يو بل سبب سره قتل کړی سي، نو په دې صورت کي ښځه د هغه وارثه ګرځي.

د دې مسئلې اصل او بنياد د باب تر اول عبارت لاندي موږ بيان کړی چي اِمْرَأَةُ الفَاْرِ استحساناً وارثه ګرځي، نه قياساً. او د استحسان دليل هم موږ هلته بيان کړی چي د هغې پر وارث کېدلو صحابه وو اجماع کړې ده.

د قياس دليل دا دی چي د وراثت سببِ د مرګ په وجه سره د نکاح ختمېدل دي، او څرنګه چي دغه سړي په دريو طلاقو سره تر مرګ مخکي نکاح ختمه کړې ده، نو ځکه د وراثت سبب موجود نه سو. او بغير له سبب څخه وراثت نه ثابتيږي، نو ځکه به دا ښځه د خپل خاوند وارثه نه ګرځي.

پاته سوه دا خبره چي د فرار (طلاقُ الفاْر) حکم به کله ثابتيږي، نو په دې هکله صاحب د هدايې فرمايي چي کله د ښځي حق د خاوند د مال سره متعلق سي نو د فرار حکم به ثابتيږي يعني که په دې وخت کي خاوند خپلي ښځي ته طلاقِ بائن ورکړي، نو دا به طلاقُ الفار وي، او د ښځي حق د خاوند د مال سره هغه وخت متعلق کيږي، کله چي خاوند په مرضُ الموت مبتلا سي يعني په يو داسي مرض مبتلا سي چي غالب ګومان همدا وي چي خاوند به په هغه مرض کي مړ سي. مثلاً خاوند صاحبُ الفراش وګرځي، او له صاحبُ الفراش څخه مراد هغه کس دی چي بالکل د سمو (روغو) خلکو په څير خپل ضروريات نه سي پوره کولای، مثلاً د لمانځه لپاره بالکل مسجد ته نه سي تللای. او قضاءِ حاجت ته د تللو قدرت نه لري، همدارنګه دوکان او بازار ته د تګ قدرت نه لري.

او که مريض په داسي مرض مبتلا وي چي د کور دننه ضروريات خو پوره کولای سي، مثلاً بيتُ الخلاء ته تللای سي، لېکن دباندي نه سي وتلای او دباندېني ضروريات نه سي پوره کولای، نو داسي مرض هم د بُخارا د عامو مشائخو په نېز د مرضُ الموت په حکم کي دی، او د بلخ د عامو مشائخو په نېز د مرضُ الموت په حکم کي نه دی.

وقد يثبت إلخ: صاحب د هدايې فرمايي چي د فرار حکم فقط د مرض سره خاص نه دی. بلکي هر هغه شی چي له هغه څخه د مرګ غالب ګومان وي، هغه د مرضُ الموت په حکم سره دی، او په هغه سره د فرار حکم ثابتيږي، مثلاً که يو سړی په کښتۍ کي سپور وي، او د درياب په څپو کي دومره جوش او

مستي پيدا سي چي د کښتۍ د غرقېدلو غالب ګومان سي، نو که په دغه حالت کي هغه خپلي ښځي ته طلاقِ بائن ورکړي، نو د فرار حکم ثابتيږي (او کوم حکم چي د اِمْرَأَةُ الفَارّ دی، هغه حکم به د دغه سړي د ښځي هم وي).

او که داسي عارض پيدا سي چي له هغه څخه د خلاصېدلو او سلامتۍ غالب ګومان وي، نو په داسي عارض سره د فرار حکم نه ثابتيږي.

لهذا څرنګه چي د هغه سړي خلاصون غالب دی کوم چي په قلعه کي محاصره کړی سوي وي يا د جنګ په صف کي وي، ځکه چي قلعه د دښمن له حملو څخه د حفاظت لپاره جوړه سوې وي، همدارنګه د جنګ په صف کي له هغه سړي څخه بغير يو کامل او بشپړ لښکر ولاړ وي کوم چي هر ساعت د خپلو ملګرو څارنه کوي، نو په دې وجه به د داسي سړي په طلاق سره د فرار حکم نه ثابتيږي، او ښځه به د هغه وارثه نه ګرځي.

او کوم سړی چي د مقابلې لپاره له صف څخه دباندي راووځي، يا د قتل کېدلو لپاره راوستل سي، نو د هغه د هلاکت او مړ کېدل غالب دي، نو ځکه به په دې صورت کي د فرار حکم ثابتيږي او ښځه به د هغه وارثه ګرځي.

ولهذا أخوات إلخ: او د دې مسئلې (يعني چيري چي هلاکت او مرګ غالب وي او چيري چي هلاکت غالب نه وي) نور مثالونه هم سته، چي هغوی پر همدغه پورتني اُصول او قاعدې را ايستل کيږي (چي غالب شي ته به کتل کيږي)، مثلاً حامله ښځه د روغ رمټ کس په درجه کي ده، لېکن کله چي د هغې د لنګوالي درد شروع سي، نو هغه د مريضي او ناروغي ښځي په حکم سره ګرځي.

وقوله إذا مات إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول "چي که خاوند په هغه سبب سره مړ سي نو د فرار حکم به ثابتيږي" دا قول او دا عبارت شرط نه دی، بلکي د دې قول وضاحت دا دی چي د ښځي د وارثه کېدلو لپاره د خاوند مړ کېدل شرط دي، برابره ده خاوند که په هر سبب سره مړ سي، لکه يو سړی چي صاحبُ الفراش وي يعني سخت مريض وي لېکن په يوه بله وجه سره هغه قتل کړی سي، نو که څه هم هغه په خپل (خدايي) مرګ سره نه دي مړ سوی، لېکن بيا به هم پر هغه د خپل (خدايي) مرګ حکم کيږي، يعني که هغه په دغه حالت کي (يعني د صاحبُ الفراش والي په حالت کي) خپلي ښځي ته طلاق ورکړی وي، نو د هغه پر ښځي به د اِمْرَأَةُ الفَار حکم جاري کيږي او ښځه به د هغه وارثه ګرځي.

## د مرضُ الموت په وخت کې د طلاق د شرط موجودېدلو تفصیلي بیان

وَإِذَا قَالَ الرَّجُلُ لِامْرَأَتِهِ وَهُوَ صَحِيحٌ او که خاوند خپلې ښځې ته وایي [په داسې حال کې چې] هغه روغ وي
"إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ أَوْ إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ أَوْ إِذَا صَلَّى فُلَانٌ الظُّهْرَ أَوْ إِذَا دَخَلَ فُلَانٌ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ" "کله
چې د میاشتې سر [اوله ورځ] راسي، یا کله چې فلانکی د ماپښین لمونځ وکړي. یا کله چې
فلانکی کور ته داخل سي نو ته [پر ما] طلاقه یې" فَكَانَتْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءُ وَالزَّوْجُ مَرِيضٌ او [بیا] دغه
شیان په وجود کې راغلل [په داسې حال کې] چې خاوند مریض وو لَمْ تَرِثْ نو ښځه [د هغه] وارثه
نه کرځي وَإِنْ كَانَ الْقَوْلُ فِي الْمَرَضِ او که [د خاوند] قول [یعني معلق کول] د مرض په حالت کې وي وَرِثَتْ
نو ښځه وارثه کرځي إِلَّا فِي قَوْلِهِ: "إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ" مکر د خاوند په دې قول کې: "کله چې ته کور
ته داخله سې [نو پر ما طلاقه یې]"، په دې صورت کې ښځه وارثه نه کرځي] وَهٰذَا عَلَى وُجُوهٍ او دا [مسئله] پر
څو صورتونو ده إِمَّا أَنْ يُعَلِّقَ الطَّلَاقَ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ [۱] یا دا چې [خاوند] طلاق د یو وخت پر راتګ
معلق کړي أَوْ بِفِعْلِ الْأَجْنَبِيِّ [۲] یا یې د یو پردي سړي پر فعل [معلق کړي] أَوْ بِفِعْلِ نَفْسِهِ [۳] یا یې
د خپل ځان پر فعل [معلق کړي] أَوْ بِفِعْلِ الْمَرْأَةِ [۴] یا یې د ښځې پر فعل [معلق کړي] وَكُلُّ وَجْهٍ عَلَى
وَجْهَيْنِ او د هر صورت [بیا] دوه صورتونه دي أَمَّا إِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ یا به
تعلیق [یعني د طلاق معلق کول] د صحت په حالت کې وي او شرط [یعني د شرط موجودېدل] به په مرضُ
الموت کې وي أَوْ كِلَاهُمَا فِي الْمَرَضِ یا به دواړه په مرضُ الموت کې وي أَمَّا الْوَجْهَانِ الْأَوَّلَانِ وَهُوَ مَا إِذَا
كَانَ التَّعْلِيقُ بِمَجِيءِ الْوَقْتِ بِأَنْ قَالَ إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ فَأَنْتِ طَالِقٌ کوم چې اول دوه صورتونه دي [۱] او
هغه دا چې تعلیق [معلق کول] د وخت پر راتګ وي، مثلاً خاوند وایي: کله چې د میاشتې سر
راسي نو ته [پر ما] طلاقه یې أَوْ بِفِعْلِ لِأَجْنَبِيٍّ بِأَنْ قَالَ: إِذَا دَخَلَ فُلَانٌ الدَّارَ أَوْ صَلَّى فُلَانٌ الظُّهْرَ یا
[تعلیق] د أجنبي پر فعل وي، مثلاً خاوند وایي: کله چې فلانی کور ته داخل سي یا فلانی د
ماپښین لمونځ وکړي [نو ته پر ما طلاقه یې] وَكَانَ التَّعْلِيقُ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ او معلق کول او شرط
[الکول] دواړه د مرضُ الموت په حالت کې وي فَلَهَا الْمِيرَاثُ نو د ښځې لپاره به میراث وي لِأَنَّ
الْقَصْدَ إِلَى الْفِرَارِ قَدْ تَحَقَّقَ مِنْهُ ځکه چې [په دې صورتونو کې] د خاوند له طرفه د فرار [تېښتې] اراده
کول ثابت سو [یعني کله چې خاوند په خپل مرضُ الموت کې پر دغه شیانو (مجئ الوقت أو فعل الأجنبي)

طلاق معلق کړی نو له دې څخه دا ثابته سوه چې خاوند د ښځې له میراث څخه ځان خلاصوي او د فرار لاره اختیاروي، ځکه چې په مرض الموت کې د هغه د مال سره د ښځې حق متعلق سو! بِمُبَاشَرَةِ التَّعْلِيقِ فِي حَالِ تَعَلُّقِ حَقِّهَا بِمَالِهِ په داسې حالت کې [د طلاق] د معلق کولو په وجه چې [په هغه کې] د ښځې حق د خاوند د مال سره متعلق سو وَإِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ او که تعلیق د صحت په حالت کې وي او شرط [موجودېدل] په مرضُ الموت کې وي لَمْ تَرِثْ نو [په دې صورت کې] ښځه وارثه نه ګرځي وَقَالَ زُفَرُ: تَرِثُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې وارثه ګرځي لِأَنَّ الْمُعَلَّقَ بِالشَّرْطِ يَنْزِلُ عِنْدَ وُجُودِ الشَّرْطِ كَالْمُنَجَّزِ ځکه کوم طلاق چې پر شرط معلق کړی سوی وي هغه د شرط موجودېدلو په وخت کې داسې واقع کیږي لکه مُنجّز [غیرِ معلق] طلاق [چې واقع کیږي] فَكَانَ إِيقَاعًا فِي الْمَرَضِ نو دا به په مرضُ الموت کې [د طلاق] واقع کول وي وَلَنَا أَنَّ التَّعْلِيقَ السَّابِقَ يَصِيرُ تَطْلِيقًا عِنْدَ الشَّرْطِ حُكْمًا لَا قَصْدًا او زموږ دلیل دا دی: چې مخکنی تعلیق د شرط موجودېدلو په وخت کې حکماً تطلیق [طلاق ورکول] ګرځي نه قصداً وَلَا ظُلْمَ إِلَّا عَنْ قَصْدٍ او ظلم نه ثابتیږي مګر په قصد [اراده] سره فَلَا يُرَدُّ تَصَرُّفُهُ نو ځکه به د خاوند تصرف نه ردول کیږي وَأَمَّا الْوَجْهُ الثَّالِثُ وَهُوَ مَا إِذَا عَلَّقَهُ بِفِعْلِ نَفْسِهِ او کوم چې دریم صورت دی او هغه دا چې کله [خاوند] پر خپل فعل طلاق معلق کړي فَسَوَاءٌ كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ أَوْ كَانَا فِي الْمَرَضِ نو برابره ده تعلیق د صحت په حالت کې وي او شرط [موجودېدل] په مرضُ الموت کې وي، یا دواړه په مرضُ الموت کې وي وَالْفِعْلُ مِمَّا لَهُ مِنْهُ بُدٌّ أَوْ لَا بُدَّ لَهُ مِنْهُ او [برابره ده] فعل داسې شی وي چې له هغه څخه د خاوند چاره وي، یا له هغه څخه د خاوند چاره نه وي [یعني برابره ده د فعل کول پر خاوند ضروري وي او که نه وي] يَصِيرُ فَارًّا لِوُجُودِ قَصْدِ الْإِبْطَالِ نو [په دې صورت کې] خاوند [د ښځې د حق] د باطلولو د ارادې په وجه [په هر حال کې] فرار کونکی ګرځي إِمَّا بِالتَّعْلِيقِ یا خو [په مرض الموت کې] د تعلیق کولو په وجه أَوْ بِمُبَاشَرَةِ الشَّرْطِ فِي الْمَرَضِ یا په مرضُ الموت کې د شرط د [ارتکاب] کولو په وجه وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنْ فِعْلِ الشَّرْطِ بُدٌّ او که څه هم [په دغه صورت کې] د شرط له کولو څخه د خاوند هیڅ چاره نه وي [یعني که څه هم په دغه صورت کې د فعل کول پر خاوند ضروري دي] فَلَهُ مِنَ التَّعْلِيقِ أَلْفُ بُدٍّ خو د هغه لپاره له تعلیق کولو

ځخه [بغير نوري] زر چاري [او لاري] سته فَيَرُدُّ تَصَرُّفَهُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهَا نو ځکه به د هغه تصرف ردول کيږي له ښځي ځخه د ضرر ليرې کولو لپاره. وَأَمَّا الْوَجْهُ الرَّابِعُ وَهُوَ مَا إِذَا عَلَّقَهُ بِفِعْلِهَا او کوم چي څلورم صورت دی او هغه دا چي کله [خاوند] د ښځي پر فعل طلاق معلق کړي فَإِنْ كَانَ التَّعْلِيقُ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ نو که معلق کول او شرط [موجودېدل] دواړه په مرضُ الموت کي وي وَالْفِعْلُ مِمَّا لَهَا مِنْهُ بُدٌّ او فعل له هغه شيانو ځخه چي له هغه ځخه د ښځي چاره کيږي كَكَلَامِ زَيْدٍ وَنَحْوِهِ لکه د زيد سره خبري کول او داسي نور لَمْ تَرِثْ نو [په دې صورت کي] ښځه وارثه نه ګرځي لِأَنَّهَا رَاضِيَةٌ بِذَلِكَ ځکه چي هغه په دې [طلاق] سره راضي ده وَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ مِمَّا لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ او که فعل له هغه شيانو ځخه وي چي د ښځي هيڅ چاره ځني نه وي كَأَكْلِ الطَّعَامِ وَصَلَاةِ الظُّهْرِ وَكَلَامِ الْأَبَوَيْنِ لکه خوراک کول او [مثلاً] د ماپښين لمونځ کول او د مور و پلار سره خبري کول تَرِثُ نو [په دې صورت کي] ښځه وارثه ګرځي لِأَنَّهَا مُضْطَرَّةٌ فِي الْمُبَاشَرَةِ ځکه چي هغه [د دې فعل] په کولو کي مجبوره ده لِمَا لَهَا فِي الِامْتِنَاعِ مِنْ خَوْفِ الْهَلَاكِ فِي الدُّنْيَا أَوْ فِي الْعُقْبَى ځکه چي اله دغه فعل ځخه] په منع کېدلو کي د هغې لپاره يا په دنيا کي د هلاکت بېره سته يا په آخرت کي وَلَا رِضَا مَعَ الِاضْطِرَارِ او د مجبورۍ سره هيڅ رضا نسته [يعني رضا او مجبوري بالکل نه سي سره جمع کېدای] وَأَمَّا إِذَا كَانَ التَّعْلِيقُ فِي الصِّحَّةِ وَالشَّرْطُ فِي الْمَرَضِ او که معلق کول په صحت کي وي او شرط [موجودېدل] په مرضُ الموت کي وي فَإِنْ كَانَ الْفِعْلُ مِمَّا لَهَا مِنْهُ بُدٌّ نو که فعل له هغه شيانو ځخه وي چي د ښځي چاره ځني کيږي فَلَا إِشْكَالَ أَنَّهُ لَا مِيرَاثَ لَهَا نو په دې کي هيڅ مانع نسته چي [په دغه صورت کي به] د هغې لپاره ميراث نه وي وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ او که فعل له هغه شيانو ځخه وي چي د ښځي هيڅ چاره ځني نه وي فَكَذَلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز همدغه حکم دی [چي ښځه وارثه نه ګرځي] وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدْ مِنَ الزَّوْجِ صُنْعٌ بَعْدَمَا تَعَلَّقَ حَقُّهَا بِمَالِهِ ځکه چي [په دې صورت کي] د خاوند د مال سره د ښځي د حق تر متعلق کېدلو وروسته د خاوند له طرفه

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما فى رد المحتار (ج:٢، ص:٥٦٩)، وقال فخر الإسلام: وهو الصحيح، لكـن مختـار أصحاب المتون هو الأول أى قول الشيخين (مجمع الأنهر ج:١، ص:٤٣١). [القول الراجح ج:١، ص:٣٣٦]

هیڅ عمل موجود [واقع] نه سو وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ تَرِثُ [لیکن] د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نيز [په دې صورت کې] ښځه وارثه ګرځي لِأَنَّ الزَّوْجَ أَلْجَأَهَا إِلَى الْمُبَاشَرَةِ ځکه چې دا ښځه د فعل پر کولو خاوند مجبوره کړې ده. فَيَنْتَقِلُ الْفِعْلُ إِلَيْهِ نو [د ښځې] فعل به د خاوند و طرف ته منتقل کيږي كَأَنَّهَا آلَةٌ لَهُ ګواکې دا ښځه [په هغه فعل] کې د خاوند آله ده كَمَا فِي الْإِكْرَاهِ لکه په إکراه کې چې [داسې] کيږي.

**اللغات:** ﴿رَأْس﴾ سر، مراد ځنې د میاشتې شروع (اوله ورځ) ده، ﴿مَجِيْء﴾ مصدرِ میمي دی: راتلل، راتګ، ﴿مُبَاشَرَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په خپله یو کار کول، ﴿مُضْطَرَّة﴾ د افتعال د باب مؤنث اسمِ مفعول دی: مجبوره، ﴿إِمْتِنَاع﴾ د افتعال مصدر دی: له یو کار ځخه منع کېدل، پرهېز کول، ﴿صُنْع﴾ کار، کار کول (کار وایي)، ﴿أَلْجَأَهَا﴾ د افعال ماضي ده: بل څوک مجبوره کول (اړ ایستل).

**تشريح:** په دې عبارت کې د تعلیق څلور صورتونه بیان سوي دي:

①... يو صورت دا چې خاوند د صحت په زمانه کې خپلې ښځې ته داسې ووايي: إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ فَأَنْتِ طَالِقٌ.

②... يا داسې ورته ووايي: إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ.

③... يا ورته وايي: إِذَا صَلَّى فُلَانُ الظُّهْرَ فَأَنْتِ طَالِقٌ.

④... يا ورته ووايي: إِذَا دَخَلَ فُلَانُ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ. له "فَأَنْتِ طَالِقٌ" ځخه طلاقِ بائن مراد دی، ځکه چې د فرار حکم فقط په طلاقِ بائن سره ثابتيږي.

د دې څلورو صورتونو حکم دا دی چې که شرط د خاوند په مرضُ الموت کې موجود سي، نو ښځه د خاوند وارثه نه ګرځي، او که چيرې د خاوند معلق کول هم د مرضُ الموت په وخت کې وي (يعني که خاوند د مرضُ الموت په زمانه کې په پورتنيو څلورو جملو سره خپلې ښځې ته طلاق ورکړي)، نو له إِذَا دَخَلْتِ الدَّارَ ځخه بغير په نورو دريو صورتونو کې ښځه وارثه ګرځي.

خلاصه دا چې د مصنف رَحِمَهُ الله د بيان سوي مسئلې څلور صورتونه دي: ①... اول دا چې خاوند طلاق د يو وخت پر راتګ معلق کړي، ②... دويم دا چې د يو اجنبي (پردي) کس پر فعل يې معلق کړي، ③... دريم دا چې پر خپل فعل يې معلق کړي، ④... څلورم دا چې د ښځې پر فعل يې

معلق کړي؛ بیا په دې کي د هر صورت دوه، دوه صورتونه دي، یو دا چي معلق کول د صحت په حالت کي وي او شرط په مرضُ الموت کي موجود سي، دویم چي دواړه په مرضُ الموت کي موجود سي.

پاته سو دا صورت چي کله معلق کول په مرضُ الموت کي وي او شرط د صحت په حالت کي موجود سي، یا داسي چي معلق کول او شرط دواړه په صحت کي موجود سي، نو په دې دوو صورتونو کي بیله شکه طلاقه واقع کیږي او ښځه وارثه نه ګرځي، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دا دوه صورتونه پرې ایښي دي (کوم چي موږ ذکر کړل) او پورتني څلور صورتونه یې ذکر کړي دي.

دغه پورتني څلورو صورتونو ته که په دوو صورتونو کي ضرب ورکول سي نو ټول اته (۸) صورتونه جوړیږي، چي د هغوی تفصیل په دې توګه دی چي که په اولو دوو صورتونو کي (یعني کله چي خاوند د وخت پر راتګ طلاق معلق کړي مثلاً ووایي: إِذَا جَاءَ رَأْسُ الشَّهْرِ... یا د یو اجنبي کس پر فعل طلاق معلق کړي، مثلاً ووایي: إِذَا دَخَلَ فُلَانُ الدَّارَ یَا صَلّٰی فُلَانُ الظُّهْرِ...، نو که په دې دواړو صورتونو کي) معلق کول او شرط دواړه د خاوند د مرضُ الموت په حالت کي موجود سي، نو ښځه د خاوند وارثه ګرځي او د خاوند په میراث کي به حصه ورکول کیږي؛ دلیل دا دی چي په دغه دوو صورتونو کي د خاوند له طرفه د فرار قصد او اراده سوې ده؛ ځکه چي هغه د مرضُ الموت په حالت کي د ښځي طلاق معلق کړی دی حال دا چي په دې حالت کي د هغه د مال سره د ښځي حق متعلق سوی دی، لهذا کله چي دلته د خاوند "فَارّ" کېدل ثابت سو، نو د هغه طلاق به "طَلَاقُ الفَارّ" وي او د هغه ښځه به اِمْرَأَةُ الفَارّ وایي، او امرأةُ الفَارّ زموږ په نیز وارثه ګرځي، نو دغه ښځه به هم وارثه ګرځي او خپل میراث به ورکول کیږي.

او که معلق کول د صحت په حالت کي وي او شرط د مرضُ الموت په حالت کي موجود سي، نو په دې صورت کي ښځه وارثه نه ګرځي، لیکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چي وارثه ګرځي.

د امام زفر دلیل دا دی چي کوم طلاق چي معلق بالشرط وي، هغه طلاق د شرط د وجود په وخت کي داسي فوراً واقع کیږي لکه طلاقِ مُنجّز (غَیرِ مُعلّق طلاق) چي فوراً واقع کیږي، لهذا دغه طلاق داسي سو لکه خاوند چي ګواکي د مرَضُ الموت په حالت کي طلاق ورکړی وي، او په مرضُ الموت کي ورکول سوی طلاق "طلاقُ الفَارّ" وي، لهذا دغه طلاق به هم طلاقُ الفار وي او د طلاقُ الفار په صورت کي ښځه وارثه ګرځي، نو ځکه به په دې صورت کي هم ښځه وارثه ګرځي.

زموږ دلیل دا دی چي مخکني تعلیق (سابق تعلیق) د شرط د وجود په وخت کي حکماً تطلیق ګرځي، نه قصداً تطلیق، او زموږ دا خبره په دوو مسئلو سره ثابتیږي، یوه مسئله دا چي که یو عاقل بالغ سړی د خپلي ښځي طلاق پر شرط معلق کړي بیا شرط په داسي حالت کي موجود سي چي د هغه

عقل کار پرې ایښی وي او مجنون وي، نو طلاق واقع کیږي، سره د دې چې د مجنون طلاق نه واقع کیږي، نو ثابته سوه چې سابق تعلیق د شرط په وخت کي حکماً تطلیق ګرځي، نه قصداً تطلیق.
دویمه مسئله دا چې که یو سړی د خپلي ښځي طلاق پر یو شرط معلق کړي او تر هغه وروسته د طلاق نه ورکولو قسم وکړي او بیا شرط موجود سي، نو هغه سړی نه حانث کیږي، لهذا کله چې سابق تعلیق د شرط د وجود په وخت کي حکماً تطلیق ګرځي، نه قصداً، او دا تاسي ته معلومه ده چې له قصد او ارادې څخه بغیر ظلم نه ثابتیږي، نو ځکه به په دې صورت کي د خاوند تصرف نه ردول کیږي، لهذا کله چې د خاوند تصرف نه ردول کیږي، نو ګواکي هغه د صحت په حالت کي طلاق ورکړی، نو ځکه به د هغه ښځه د اِمْرَأَةُ الفَارّ نه کېدلو په وجه وارثه نه ګرځي.

<u>فأما الوجه الثالث</u>: او کوم چې دویم صورت دی یعني کله چې خاوند طلاق پر خپل ذاتي فعل معلق کړي، نو په دې کي دواړه صورتونه سره برابر دي، یعني برابره ده که معلق کول په صحت کي وي او شرط په مرضُ الموت کي موجود سي یا دواړه په مرضُ الموت کي موجود سي، او برابره ده که له هغه فعل څخه د خاوند چاره وي یا نه وي، یعني د هغه فعل کول پر خاوند ضروري وي او که نه وي، د غیرِ ضروري فعل مثال لکه د زید سره خبري کول (یعني خاوند د زید سره پر خبرو کولو طلاق معلق کړي)، ضروري فعل لکه فرض لمونځ کول یا خوراک کول یا قضاءِ حاجت او داسي نور، لنډه دا چې په هر حال کي په دغه دریم صورت کي خاوند "فَارّ" ګرځي، لهذا ښځه به د هغه وارثه ګرځي؛ ځکه چې دلته خاوند په مرضُ الموت کي د ښځي د طلاق په معلق کولو سره یا په مرضُ الموت کي د شرط په موجودېدلو سره د ښځي د حق باطلولو اراده کړې ده، نو ځکه به د خاوند تصرف ردّ کیږي چې له ښځي څخه ضرر دفع سي او له میراث څخه محرومه نه سي.

<u>وإن لم یکن له إلخ</u>: په دې سره د یو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې که خاوند پر یو داسي فعل طلاق معلق کړی وي چې له هغه څخه د خاوند چاره نه وي یعني پر خاوند د هغه کول ضروري وي مثلاً فرض لمونځ کول، نو په دې صورت کي خو خاوند د فعل پر کولو مجبوره دی، لهذا د هغه د تصرف ردول پکار نه دي.
د جواب حاصل دا دی چې دا خبره صحیح ده چې له دغه فعل څخه د خاوند هیڅ چاره نسته او د دې فعل پر کولو خاوند مجبوره دی، خو په نه معلق کولو کي خاوند لره هر ډول چاره حاصله وه یعني داسي نور افعال هم ول چې پر خاوند د هغوی کول ضروري نه وو او له هغوی څخه د خاوند چاره وه، نو خاوند باید پر هغوی طلاق معلق کړي وای، پر دغه فعل د طلاق معلق کولو هیڅ ضرورت نه وو، نو په دې وجه به د هغه تصرف ردّ کیږي.

**وأما الوجه الرابع إلخ:** او څلورم صورت يعني کله چې خاوند د ښځې پر فعل طلاق معلق کړي، نو د دې حکم دا دی چې که معلق کول او شرط دواړه په مرضُ الموت کي موجود سي، او فعل داسي (شرط) وي چې د هغه کول ضروري نه وي يعني غیرِ ضروري فعل وي او له هغه څخه د ښځې چاره وي (مثلاً خاوند په مرض الموت کي خپلي ښځې ته ووايي "که چیري تا د زید سره خبري وکړې نو ته پر ما طلاقه یې"، او بیا ښځه د خاوند په مرض الموت کي د زید سره خبري وکړي)، نو په دې صورت کي ښځه د خاوند وارثه نه ګرځي؛ دلیل دا دی چې دلته د غیرِ ضروري فعل د کولو په وجه (یعني د خاوند په مرضُ الموت کي د زید سره د خبرو کولو په وجه) ښځه په خپله د خپل حق په ساقطولو راضي سوه، نو ځکه به هغه له میراث څخه محرومه کیږي.

او که فعل داسي وي چې د هغه له کولو څخه د ښځې چاره نه وي بلکي د هغه کول ضروري وي (مثلاً خوراک کول، د ماپښين لمونځ کول او داسي نور)، نو که په دې صورت کي ښځه د خاوند په مرضُ الموت کي هغه کار وکړي، نو پر هغې طلاق واقع کیږي او که د ښځې په عدت کي خاوند مړ سي نو دا ښځه د هغه وارثه ګرځي؛ دلیل دا دی چې ښځې د دغه فعل پر کولو مجبوره ده، ځکه که ښځه دا فعل نه وکړي نو د ښځې د هلاکت خطره سته په دنیا کي یا په آخرت کي، او د مجبوری سره رضا نه ثابتیږي، لهذا په دې صورت کي داسي نه سي ویل کېدای چې ښځه د خپل حق په ساقطولو راضي سوه.

او که چیري په څلورم صورت کي معلق کول د صحت په حالت کي وي او شرط د مرضُ الموت په حالت کي موجود سي، نو اوس که فعل داسي وي چې د هغه کول ضروري نه وي او له هغه څخه د ښځې چاره وي (مثلاً دخولُ الدار) نو په دې صورت کي خو پر ښځې طلاق واقع کیږي لېکن وارثه نه ګرځي، او که فعل داسي وي چې له هغه څخه د ښځې چاره نه وي بلکي د هغه کول ضروري وي، نو د امام محمد او امام زفر په نېز په دې صورت کي هم دغه حکم دی یعني ښځه وارثه نه ګرځي: دلیل دا دی چې په دې صورت کي چې کله خاوند طلاق معلق کړی وو په هغه وخت کي د خاوند د مال سره د ښځې حق متعلق نه وو. او کله چې (په مرضُ الموت) کي د خاوند د مال سره د ښځې حق متعلق سو نو په دې وخت کي د خاوند له طرفه هیڅ عمل (طلاق) موجود نه سو. نو ځکه په دې صورت کي پر خاوند دا تهمت نه سي لګول کېدای چې هغه په طلاق سره د ښځې د حق باطلولو اراده کړې ده (ځکه چې هغه خو د صحت په حالت کي طلاق معلق کړی دی)، لهذا د هغه ښځه به "اِمْرَأَةُ الفَار" نه وي. او کله چې ښځه اِمْرَأَةُ الفَار نه ده. نو وارثه به هم نه ګرځي.

او د شیخینو مذهب دا دی چې هغه وارثه ګرځي؛ دلیل دا دی چې دا یو ضروري فعل دی چې د هغه پر کولو ښځه مجبوره ده، نو دغه فعل به د خاوند وطرف ته منسوب کیږي ځکه چې خاوند هغه

پر دې فعل مجبوره کړې ده، نو ګواکې ښځه په دې فعل کې د خاوند آله ده لهذا دغه فعل به د خاوند وطرف منتقل کیږي، لکه په إکراه کې چې هم داسې کیږي، مثلاً که خالد د یو چا د مال پر هلاکولو زید مجبوره کړي او زید هغه مال هلاک کړي، نو د دې ضمان پر خالد واجبیږي، یعني د مُکرَه (زید) فعل د مُکرِه (خالد) وطرف ته منتقل کیږي، نو همداسې به دلته هم د ښځې فعل د خاوند وطرف ته منتقل کیږي، ګواکې خاوند په مرضُ الموت کې دغه فعل کړی دی، لهذا د هغه ښځه به "اِمْرَأَةُ الْفَارّ" وي او د خاوند وارثه به ګرځي. (عنایه، عیني)

## په عام مرض کې طلاق ورکول او بیا مړ کېدل (حکم او اختلاف)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمایي وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا وَهُوَ مَرِيْضٌ او که [خاوند] ښځې ته درې طلاقه ورکړي [په داسې حال کې چې] هغه مریض وي ثُمَّ صَحَّ ثُمَّ مَاتَ بیا جوړ سي [او] بیا مړ سي لَمْ تَرِثْ نو ښځه [د هغه] وارثه نه ګرځي وَقَالَ زُفَرُ: تَرِثُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې [د هغه] وارثه ګرځي لِأَنَّهُ قَصَدَ الْفِرَارَ حِيْنَ أَوْقَعَ فِي الْمَرَضِ ځکه چې هغه د مرض په حالت کې په طلاق واقع کولو سره د فرار اراده وکړه وَقَدْ مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ او [بیا] هغه [په داسې حالت کې] مړ سو چې ښځه په عدت کې ده وَلٰكِنَّا نَقُوْلُ: اَلْمَرَضُ إِذَا تَعَقَّبَهُ بُرْءٌ فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الصِّحَّةِ لېکن موږ وایو: چې کله تر مرض وروسته صحت راسي نو هغه د صحت په درجه کې دی لِأَنَّهُ يَنْعَدِمُ بِهِ مَرَضُ الْمَوْتِ ځکه چې د صحت راتللو په وجه [بالکل] مرضُ الموت ختمیږي [نیستي کیږي] فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا حَقَّ لَهَا يَتَعَلَّقُ بِمَالِهِ نو ښکاره سوه چې د ښځې لپاره هیڅ داسې حق نسته چې هغه د خاوند د مال سره متعلق سي فَلَا يَصِيْرُ الزَّوْجُ فَارًّا نو ځکه به دغه خاوند فرار کونکی نه وي.

**اللغات**: ﴿تَعَقَّبَ﴾ د تفعّل ماضي ده: وروسته کېدل، وروسته راتلل (تر شا راتلل). ﴿بُرْءٌ﴾ روغتیا، صحت، جوړښت. ﴿فَارّ﴾ د ضرب د باب اسمِ فاعل دی: فرار کونکی (فرار اختیارونکی)، تښتېدونکی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که خاوند خپلې ښځې ته د مرض په حالت کې درې طلاقه ورکړي او بیا خاوند روغ رمټ سي، لېکن یو څو ورځې وروسته مړ سي، نو دا ښځه د هغه وارثه نه ګرځي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چې وارثه ګرځي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي دلته خاوند د خپل مرض په حالت کي په طلاق ورکولو سره د فرار قصد او اراده کړې ده، او خاوند هم د ښځي په عدت کي مړ سوی دی، نو دا ښځه به اِمْرَاَةُ الفَارِ وي. او اِمْرَاَةُ الفَارِ د خپل خاوند وارثه کيږي، لهذا دا ښځه به هم د هغه وارثه ګرځي، او کومه روغتيا او صحت چي د طلاق او مرګ په مينځ کي واقع سوی دی هغه به غير معتبر وي.

لېکن زموږ له طرفه هغه ته جواب دا دی چي تر کوم مرضُ الموت وروسته چي صحت راسي هغه د صحت په درجه کي دی، ځکه چي د صحت په وجه سره خو بالکل مرضُ الموت معدوم سو. نو دا خبره ښکاره سوه چي د خاوند د مال سره د ښځي متعلق نه سو، لهذا دغه خاوند فَارّ (فرار کونکی) نه سو، نو د ده ښځه به هم اِمْرَاَةُ الفَارِ نه وي، او کومه ښځه چي اِمْرَاَةُ الفَارِ نه وي هغه وارثه نه ګرځي. نو دا ښځه به هم د خاوند وارثه نه ګرځي.

## په مرضُ الموت کي تر طلاق ورکولو وروسته د ښځي د مرتد کېدلو بيان

وَلَوْ طَلَّقَهَا فَارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ او که [خاوند] ښځي ته [په مرضُ الموت کي] طلاق ورکړي او [بيا] عياذ بالله ښځه مرتده سي ثُمَّ أَسْلَمَتْ بيا اسلام راوړي ثُمَّ مَاتَ الزَّوْجُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ بيا خاوند په خپل [هغه] مرضُ الموت کي مړ سي وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ حال دا چي ښځه [تر اوسه] په عدت کي وي لَمْ تَرِثْ نو دا ښځه [د هغه] وارثه نه ګرځي وَإِنْ لَمْ تَرْتَدَّ بَلْ طَاوَعَتْ اِبْنَ زَوْجِهَا فِي الْجِمَاعِ او که مرتده نه سي بلکي په جماع کي د خاوند د زوی اطاعت وکړي [يعني د خپل ناسکه زوی سره جماع وکړي] وَرِثَتْ نو وارثه ګرځي وَوَجْهُ الْفَرْقِ: أَنَّهَا بِالرِّدَّةِ أَبْطَلَتْ أَهْلِيَّةَ الْإِرْثِ او [په مرتد کېدلو او د ناسکه زوی د جماع په اطاعت کولو کي] وجه د فرق دا ده: چي دغه ښځي په مرتد کېدلو سره د ميراث أهليت باطل کړی إِذِ الْمُرْتَدُّ لَا يَرِثُ أَحَدًا ځکه چي مرتد د هيچا وارث کېدلای نه سي وَلَا بَقَاءَ لَهُ بِدُونِ الْأَهْلِيَّةِ او له أهليت څخه بغير وراثت باقي نه پاتيږي وَبِالْمُطَاوَعَةِ مَا أَبْطَلَتِ الْأَهْلِيَّةَ او [په جماع کي د ناسکه زوی] په اطاعت کولو سره دې ښځي [د وراثت] أهليت باطل نه کړی لِأَنَّ الْمَحْرَمِيَّةَ لَا تُنَافِي الْإِرْثَ ځکه چي مَحرم کېدل د وراثت منافي نه دي وَهُوَ الْبَاقِي او وراثت پاته دی بِخِلَافِ مَا إِذَا طَاوَعَتْ فِي حَالِ قِيَامِ النِّكَاحِ په خلاف د هغه صورت کله چي ښځه د نکاح د بقاء [او موجود والي] په حالت کي [د هغه] اطاعت وکړي لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الْفُرْقَةَ ځکه چي [د نکاح د موجود والي په حالت کي] اطاعت کول فرقت ثابتوي فَتَكُونُ رَاضِيَةً

| بِبُطْلَانِ السَّبَبِ نو ښځه به [د وراثت] د سبب په باطلولو راضي وي وَبَعْدَ الطَّلْقَاتِ الثَّلَاثِ لَا تَثْبُتُ الْحُرْمَةُ بِالْمُطَاوَعَةِ او تر درېو طلاقو وروسته د مطاوعت په وجه سره حرمت نه ثابتېږي لِتَقَدُّمِهَا عَلَيْهَا پر اطاعت باندې د حرمت د مخکيوالي په وجه فَافْتَرَقَا نو دواړه صورتونه سره جلا سول [يعني په دواړو صورتونو کې فرق ثابت سو]. |
|---|

**اللغات:** ﴿اِرْتَدَّتْ﴾ د افتعال له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: مرتد کېدل، له دين اسلام څخه بل ناحق دين ته اوښتل. ﴿فُرْقَة﴾ جدايي، بېلتون. ﴿مُطَاوَعَة﴾ د مفاعلې مصدر دی: مراد څني (په جماع کې د ناسکه زوی) اطاعت کول او د هغه سره جماع کول دي (أحسن الهداية).

﴿مَحْرَمِيَة﴾ يو کس د بل کس مَحْرَم کېدل (مَحرم هغه قريب ته وايي چي نکاح ورسره حرامه وي، نو فرمايي چي دا د وراثت منافي نه دي چي يو کس د بل کس مَحرم وي ځکه چي د مَحرمو خلکو په مينځ کې هم وراثت جاري کېږي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند په خپل مرضُ الموت کې ښځي ته درې طلاقه ورکړي يا يو طلاقِ بائن ورکړي، بيا (معاذ الله!) ښځه مرتده سي او بيا دوباره اسلام راوړي، او تر دې وروسته خاوند د دغه ښځي په عدت کې د هغه مرضُ الموت په وجه مړ سي، نو دا ښځه د هغه وارثه نه ګرځي.

او که دا ښځه مرتده نه سي، بلکې د خپل خاوند د زوی (ميرزي زوی) سره جماع وکړي، نو په دې صورت کې هغه وارثه ګرځي.

په دواړو مسئلو کې د فرق جه دا ده چي د مرتد کېدلو په وجه د وراثت أهليت باطلېږي؛ ځکه چي مرتد د هيچا وارث کېدلای نه سي (يعني د دې أهل نه دی چي وارث وګرځي) او له أهليت څخه بغير وراثت باقي نه پاتېږي، نو ځکه موږ وايو چي د ارتداد په صورت کې ښځه وارثه نه ګرځي، لېکن د اِبْنُ الزّوج په اطاعت سره أهليت باطلېږي، ځکه چي محرميت د وراثت منافي نه دی، بلکې د نکاح منافي دی، لکه په مور او خور کې چي محرميت د نکاح منافي دی، لېکن د وراثت منافي نه دی، لنډه دا چي د اِبْنُ الزّوج د اطاعت په صورت کې وراثت باقي پاتېږي، نو ځکه موږ وايو چي په دې صورت کې ښځه وارثه ګرځي.

**بخلاف ما إلخ:** لېکن که خاوند ښځي ته طلاق ورکړی نه وي بلکې ښځه د خاوند په نکاح کې موجوده وي او بيا په دې وخت کې ښځه د خاوند د زوی سره جماع وکړي، نو په دې صورت کې بالکل ښځه وارثه نه ګرځي:

دليل دا دی چي په دې صورت کې د اِبْنُ الزّوج په اطاعت سره فرقت ثابت سو او نکاح ماته سوه (ځکه چي دغه ښځه اوس د خپل خاوند مړوړ وګرځېده)، نو ځکه به اوس هغه د خاوند وارثه نه ګرځي، ځکه چي هغه په خپله د طلاق په واقع کېدلو او د نکاح په ماتېدلو راضي سوه، نو ځکه به په ميراث کې حصه نه ورکول کېږي.

**وبعد الطلقات إلخ**: او كه خاوند په خپل مرضُ الموت كي ښځي ته دري طلاقه وركړي، بيا ښځه د اِبْنُ الزَّوج سره جماع وكړي او تر دې وروسته خاوند په هغه مرض كي د ښځي په عدت كي مړ سي، نو په دې صورت كي ښځه وارثه ګرځي؛ دليل دا دی چي دلته خاوند د دريو طلاقو په وجه د ښځي تر مطاوعت مخكي نكاح ماته كړې ده او ښځه مخكي لا د خاوند وارثه ګرځېدلې ده، او د هغې د مطاوعت په وجه نكاح نه ده ماته سوې، نو ځكه به په دې صورت كي هغه وارثه ګرځي.

## د صحت په حالت كي د تهمت لګولو او په مرضُ الموت كي د لعان كولو بيان

| |
|---|
| **وَمَنْ قَذَفَ امْرَأَتَهُ وَهُوَ صَحِيْحٌ وَلَاعَنَ فِي الْمَرَضِ** او كوم څوک چي د صحت په حالت كي پر خپلي ښځي د زنا تهمت [تور] ولګوي او په مرضُ الموت كي لعان وكړي **وَرِثَتْ** نو [د شيخينو په نيز] ښځه [د هغه] وارثه ګرځي **وَقَالَ مُحَمَّدٌ**● **: لَا تَرِثُ** او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي وارثه نه ګرځي **وَإِنْ كَانَ الْقَذْفُ فِي الْمَرَضِ** او كه تهمت لګول [هم] په مرضُ الموت كي وي **وَرِثَتْهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا** نو د ټولو په قول كي ښځه د هغه وارثه ګرځي **وَهٰذَا مُلْحَقٌ بِالتَّعْلِيقِ بِفِعْلٍ لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ** او دا مسئله ملحقه ده پر داسي فعل [د طلاق] د معلق كولو سره چي له هغه فعل څخه د ښځي چاره نه وي [يعني مخكي چي د ضروري فعل په هكله كوم صورت تېر سو، دا مسئله د هغه صورت سره متعلقه او ملحقه ده] **إِذْ هِيَ مُلْجَأَةٌ إِلَى الْخُصُوْمَةِ لِدَفْعِ عَارِ الزِّنَا عَنْ نَفْسِهَا** ځكه چي [دلته هم] ښځه له خپل ځان څخه د زنا د پېغور ختمولو لپاره خصومت ته مجبوره ده **وَقَدْ بَيَّنَّا الْوَجْهَ فِيهِ** او موږ مخكي د دې [صورت] دليل بيان كړی دی. |

**اللغات**: ﴿قَذَفَ﴾ د ضرب ماضي ده: پرېوتل، چا د زنا تهمت (تومت) لګول. ﴿عَار﴾ پېغور، شرمندګي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه يو سړی د روغتيا او صحت په حالت كي پر خپلي ښځي د زنا تهمت ولګوي، بيا په مرضُ الموت مبتلا سي او په همدغه حالت كي لعان وكړي او له ښځي څخه جلا سي، او بيا د ښځي د عدت په زمانه كي مړ سي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه ښځه وارثه ګرځي، لېكن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز وارثه نه ګرځي.

ها! كه د زنا تهمت لګول او لعان كول دواړه د مرضُ الموت په حالت كي وي، نو په دې صورت كي د ټولو په نيز د هغه ښځه وارثه ګرځي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مسئله د هغه صورت سره متعلقه ده چي په هغه كي د ښځي كار پر يو داسي فعل معلق سوی وي چي د ښځي هيڅ چاره ځني نه وي يعني هغه فعل

● **القول الراجح**: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما في الدر المختار (ج:٢، ص:٥٦٨)، وكذا في الهندية (ج:١، ص:٤٦٤).
[القول الراجح ج:١، ص:٣٣٨]

کول د ښځې لپاره ضروري وي (لکه مخکي چي دا صورت ذکر سو)؛ ځکه چي په دغه مسئله کي هم ښځه دې ته مجبوره او مضطره ده چي د قاضي په عدالت کي خپله مسئله پېش کړي او له ځان څخه د زنات تهمت ليري کړي، حاصل دا چي په دغه فرقت کي د ښځې د رضا هيڅ دخل نسته، ځکه چي رضا د مجبورۍ سره نه ثابتيږي (يعني رضا او مجبوري دواړه سره جمع کېدلای نه سي)، نو ځکه به دا ښځه وارثه ګرځي.

د دې مسئلې دليل، اختلاف او پوره تفصيل څه مخکي د دې عبارت په تشريح کي بيان سو: وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا بُدَّ لَهَا مِنْهُ فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ...(الخ)، د بيا کتني لپاره هلته رجوع وکړئ!.

## د مرضُ الموت په دوران کي د ايلاء پوره کېدلو بيان

وَإِنْ آلَىٰ إِمْرَأَتَهُ وَهُوَ صَحِيْحٌ او که چيري [خاوند] د صحت په حالت کي د خپلي ښځې سره ايلاء وکړي ثُمَّ بَانَتْ بِالْإِيْلَاءِ وَهُوَ مَرِيْضٌ [او] بيا ښځه د خاوند د مرضُ الموت په حالت کي د ايلاء په وجه بائنه سي لَمْ تَرِثْ نو دا ښځه [د هغه] وارثه نه ګرځي وَإِنْ كَانَ الْإِيْلَاءُ أَيْضًا فِي الْمَرَضِ او که ايلاء کول هم په مرض کي وي وَرِثَتْ نو دا ښځه وارثه ګرځي لِأَنَّ الْإِيْلَاءَ فِي مَعْنَىٰ تَعْلِيْقِ الطَّلَاقِ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ خَالِيَةٍ عَنِ الْوِقَاعِ ځکه چي ايلاء په داسي څلورو مياشتو باندي د طلاق معلق کولو په معنیٰ سره ده چي هغه [مياشتي] له جماع څخه خالي وي فَيَكُوْنُ مُلْحَقًا بِالتَّعْلِيْقِ بِمَجِيْءِ الْوَقْتِ نو دا [ايلاء] به د وخت پر راتګ د [طلاق] معلق کولو سره ملحق وي وَقَدْ ذَكَرْنَا وَجْهَهُ او د دې دليل [هم] موږ [مخکي] ذکر کړی دی.

**اللغات:** ﴿إِيْلَاء﴾ د افعال مصدر دی: إيلاء دې ته وايي چي خاوند قسم وکړي چي زه به خپلي ښځې ته څلور مياشتي (يا زيات) نه ور نژدې کېږم (وطي به نه ور سره کوم)، نو که هغه خپل قسم پوره کړی او ښځې ته څلور مياشتي نژدې نه سي، نو څلور مياشتي وروسته ښځه بائنه ګرځي، ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب د باب مصدرِ ميمي دی: تېرېدل، ختمېدل (پوره کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د صحت په زمانه کي د خپلي ښځې سره ايلاء وکړي (يعني قسم وکړي چي زه به څلور مياشتي ستا سره وطي نه کوم)، بيا هغه خپل قسم پوره کړی يعني څلور مياشتي د ښځې سره وطي نه وکړي، او دا څلور مياشتي په داسي حالت کي پوره سي چي (د پوره کېدلو په وخت کي) خاوند په مرضُ الموت مبتلا وي، نو د دې څلورو مياشتو په پوره کېدلو سره ښځه بائنه کيږي (يعني طلاقِ بائن پر واقع کيږي)، لېکن د خاوند وارثه نه ګرځي؛ دليل دا دی چي دلته بينونت د خاوند د ايلاء وطرف

ته منسوب دی، او په مرضُ الموت کي د خاوند له طرفه هيڅ عمل واقع سوی نه دی، نه د علت عمل او نه د شرط عمل، نو ځکه به خاوند فَارّ نه وي، لهذا د هغه ښځه به د اِمْرَاَةُ الفَارّ نه کېدلو په وجه وارثه نه ګرځي.
(عيني شرح هدايه)

او که خاوند د مرضُ الموت په زمانه کي ايلاء وکړي او بينونت هم په مرضُ الموت کي واقع سي او بيا خاوند د ښځي د عدت په زمانه کي مړ سي، نو دغه ښځه وارثه ګرځي؛ ځکه چي دايلاء معنیٰ دا ده: "تر څلور مياشتو پوري د ښځي سره پر جماع نه کولو طلاق معلق کول"، نو ايلاء د هغه صورت سره متعلق او ملحق سوه چي په هغه کي د وخت پر راتګ (مجيء الوقت) طلاق معلق سوی وي، او د مخکني مسئلې په څير د دغه صورت دليل او تفصيل هم څه مخکي بيان سو، هلته يې مطالعه کړئ!.

## طلاقِ رجعي د وراثت مانع نه دی

قَالَ : وَالطَّلَاقُ الَّذِي يَمْلِكُ فِيهِ الرَّجْعَةَ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: او په کوم طلاق کي چي [خاوند] د رجعت مالک ګرځي تَرِثُ بِهِ فِي جَمِيعِ الْوُجُوهِ د هغه په ټولو صورتونو کي [د خاوند] ښځه وارثه ګرځي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ لَا يُزِيلُ النِّكَاحَ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [مخکي] بيان کړی چي طلاقِ رجعي نکاح نه ختموي حَتَّى يَحِلَّ الْوَطْءُ همدا وجه ده چي [په طلاقِ رجعي کي] وطي روا دي فَكَانَ السَّبَبُ قَائِمًا لهذا [په هغه کي به د وراثت] سبب [يعني نکاح] پاته وي وَكُلُّ مَا ذَكَرْنَا أَنَّهَا تَرِثُ إِنَّمَا تَرِثُ إِذَا مَاتَ وَهِيَ فِي الْعِدَّةِ او هر هغه ځای چي موږ دا خبره ذکر کړه چي ښځه وارثه ګرځي هلته هغه وخت ښځه وارثه ګرځي کله چي خاوند د هغې په عدت کي مړ سوی وي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او دا [مسئله هم] موږ [مخکي] بيان کړې ده.

**اللغات**: ﴿يَمْلِكُ﴾ د ضرب د باب مضارع ده: مالک کېدل (مالک جوړېدل)، پر يو شي د انسان ملکيت ثابتېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې خبري بيان سوي دي: ①... او له خبره دا چي د طلاقِ رجعي په ټولو صورتونو کي ښځه د خپل خاوند وارثه پاتيږي؛ ځکه چي په طلاقِ رجعي سره نکاح نه ختميږي، همدا وجه ده چي تر طلاقِ رجعي وروسته د ښځي سره وطي کول حلال او روا وي، او دغه وطي رجعت شمارل کيږي، لهذا کله چي په طلاقِ رجعي کي نکاح باقي پاته ده، او دا تاسي ته معلومه ده چي وراثت سبب د نکاح بقاء ده، نو ښکاره خبره ده چي ښځه به وارثه ګرځي.

②... دويمه خبره دا ده چي هر ځای د ښځي د وراثت لپاره (يعني چيري چي هم مطلّقه ښځه د خاوند وارثه ګرځي، هلته) دا شرط او ضروري دي چي خاوند به په داسي حالت کي مړ سوی وي چي ښځه تر اوسه په عدت کي وي؛ ځکه چي تر عدت وروسته په پوره توګه خاوند او ښځه يو له بل څخه جلا کيږي او په هر اعتبار سره نکاح ختميږي، لکه د باب په شروع کي چي هم په دې هکله بيان سو. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# بَابُ الرَّجْعَةِ

(دا) باب د رجعت (د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي رجعت په طبعي توګه تر طلاق وروسته ثابتيږي، نو ځکه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په وضعي توګه هم "بَابُ الرّجعة" تر "کتَابُ الطلاق" وروسته بيان کړی دی، د دې لپاره چي په وضع او طبع کي مناسبت او موافقت راسي، وهکذا فی البنَاية. (ج:۵، ص:۲۲۶)

الرَّجْعَةُ د "راء" په کسره او فتحه دواړو سره ويل کېدای سي، لېکن فتحه يې فصيح لغت دی، د رجعت لغوي معنیٰ ده: واپس کېدل، راګرځېدل، واپس کول، واپس راوستل، (يعني دا باب هم لازمي دی او هم متعدي دی)، او څرنګه چي خاوند په طلاقِ رجعي کي د رجوع کولو په ذريعه ښځه په خپله نکاح کي واپس راولي، نو ځکه هغه ته "طلاقِ رجعي" وايي، او د شريعت په اصطلاح کي د رجعت معنیٰ ده: اِسْتِدَامَةُ مِلْكِ النِّكَاحِ (يعني د نکاح ملکيت باقي ساتل).

صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي رجعت په پنځو شرطونو سره صحيح کېږي: ① خاوند به ښځي ته په صريح لفظ سره طلاق ورکړی وي يا په هغه کنايي لفظ سره به يې طلاق ورکړی وي کوم چي د صريح په معنیٰ سره وي، ② د طلاق په عوض کي به مال نه وي، ③ خاوند به درې طلاقه ورکړي نه وي، ④ ښځه به مدخول بها وي، ⑤ د ښځي عدت به پاته وي. (بناية، ج:۵، ص:۲۲۶)

## له طلاق څخه د رجوع کولو حيثيت او شرائط

وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ إِمْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً رَجْعِيَّةً أَوْ تَطْلِيقَتَيْنِ او کله چي خاوند خپلي ښځي ته يو، يا دوه طلاقِ رجعي ورکړي فَلَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا فِي عِدَّتِهَا نو هغه ته دا اختيار سته چي په عدت کي [دننه] خپلي ښځي ته رجوع وکړي رَضِيَتْ بِذٰلِكَ أَوْ لَمْ تَرْضَ [برابره ده] ښځه په دې راضي وي يا راضي نه وي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ [البقرة: ۲۳۱] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: نو تاسي دا ښځي وساتئ! په ښه طريقه سره [يعني رجوع ورته وکړئ] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ [دا آيت] بغير له څه تفصيل څخه [وارد سوی دی] وَلَا بُدَّ مِنْ قِيَامِ الْعِدَّةِ او عدت باقي پاتېدل ضروري دي لِأَنَّ الرَّجْعَةَ اِسْتِدَامَةُ الْمِلْكِ

ځکه چې رجعت [د نکاح] ملکيت باقي ساتل دي [يعني رجعت د مخکنى نکاح باقي ساتلو ته وايي] أَلَا تَرَى أَنَّهُ سُمِّيَ إِمْسَاكًا آيا ته نه ګورې! چې [په قرآن کې] رجعت په إمساک سره نومول سوى دى وَهُوَ الْإِبْقَاءُ او إمساک باقي ساتل [پاته کول] دي [يعني إمساک هم باقي ساتلو ته وايي] وَإِنَّمَا يَتَحَقَّقُ الِاسْتِدَامَةُ فِي الْعِدَّةِ او باقي ساتل فقط په عدت کې ثابتېدای سي لِأَنَّهُ لَا مِلْكَ بَعْدَ انْقِضَائِهَا ځکه چې تر عدت تېرېدلو وروسته [د نکاح] ملکيت نه پاتېږي.

**اللغات:** ﴿مَعْرُوْف﴾ په ښه طريقه سره، د شرعي طريقې مطابق، ﴿إِسْتِدَامَة﴾ د استفعال مصدر دی: باقي ساتل، همېشه ساتل، ﴿إِمْسَاک﴾ د افعال مصدر دی: نيول، پاته کول (باقي ساتل)، راګرځول، ﴿إِبْقَاء﴾ باقي کول، باقي ساتل، پاته کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې مدخول بها ښځې ته يو، يا دوه طلاقِ رجعي وکړي، نو خاوند ته دا پوره اختيار سته چې د عدت په زمانه کې ښځې ته رجوع وکړي او بېر ته ښځه خپل په نکاح کې راولي، برابره ده ښځه که په دې راضي وي او که نه وي؛ دليل دا آيت دی: فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ أَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ، يعني کله چې مطلقاتِ رجعيه ښځې د عدت د اختتام وخت ته ورسيږي، نو تاسو ته اختيار دئ، که تاسې رجعت کول وغواړئ نو د شرعي طريقې مطابق هغوى په خپله نکاح کې راولئ!، او که تاسې هغوى جلا کول وغواړئ نو له څه ضرر څخه بغير هغوى جلا کرئ!.

په دې آيت کې د مراجعت (رجوع کولو) ذکر مطلق دی يعني د ښځې د رضا او ناراضى هيڅ تفصيل پکښې نسته. نو ځکه د رجعت حکم مطلق سوى دی (چې برابره ده ښځه په رجعت راضي او که نه وي، خاوند ته د هغه پوره اختيار سته).

**ولابد من قيام إلخ:** فرمايي چې د رجعت د صحيح کېدلو لپاره د عدت بقاء ضروري ده؛ دليل دا دی چې د رجعت معنیٰ ده: إِسْتِدَامَةُ مِلْكِ النِّكَاحِ. يعني د مخکنى نکاح ملکيت باقي ساتل (پاته کول)، لکه څرنګه چې په قرآن کريم کې هم رجعت ته "إِمْسَاک" ويل سوي دي، او إِمْسَاک هم "باقي ساتلو" ته وايي، او د نکاح ملکيت باقي ساتل فقط په عدت کې کېدای سي، ځکه چې تر عدت وروسته د نکاح ملکيت نه پاتېږي، نو هغه به څرنګه باقي وساتل سي!، نو ځکه موږ وايو چې د رجعت د صحت لپاره د عدت وجود او بقاء شرط او ضروري ده.

## د رجوع طريقه

وَالرَّجْعَةُ أَنْ يَقُوْلَ: رَاجَعْتُكِ أَوْ رَاجَعْتُ امْرَأَتِيْ او رجعت دا دی چي [خاوند داسي] ووايي: ما تا ته رجعت وکړی. يا ما خپلي ښځي ته رجعت وکړی وَهٰذَا صَرِيْحٌ فِي الرَّجْعَةِ او دا [دوه الفاظ] د رجعت کولو لپاره صريح [الفاظ] دي وَلَا خِلَافَ فِيْهِ بَيْنَ الْأَئِمَّةِ او په دې کي د امامانو هيڅ اختلاف نسته قَالَ: أَوْ يَطَأَهَا أَوْ يُقَبِّلَهَا أَوْ يَلْمِسَهَا بِشَهْوَةٍ أَوْ يَنْظُرَ إِلَىٰ فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ فرمايي: يا [رجعت دا دی چي خاوند] د خپلي ښځي سره وطي وکړي. يا يې په شهوت سره مچ کړي. يا يې په شهوت سره مسه کړي. يا يې په شهوت سره فرج ته وګوري وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا [حکم] زموږ په نيز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا تَصِحُّ الرَّجْعَةُ إِلَّا بِالْقَوْلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي رجعت [فقط] په قول سره صحيح کيږي پر قول د قدرت لرلو په صورت کي لِأَنَّ الرَّجْعَةَ بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ النِّكَاحِ ځکه چي رجعت د نکاح د ابتداء په درجه کي دی [يعني رجعت داسي دی لکه له شروع څخه نکاح کول] حَتّٰى يَحْرُمَ وَطْؤُهَا تر دې چي [د شوافعو په نيز] د هغې [مطلقه رجعيه] سره وطي کول حرام دي وَعِنْدَنَا هُوَ اسْتِدَامَةُ النِّكَاحِ عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ او زموږ په نيز رجعت د نکاح باقي ساتل دي لکه مخکي چي موږ دا [خبره] بيان کړه وَسَنُقَرِّرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او نږدې به موږ انشاء الله دا ثابته [هم] کړو وَالْفِعْلُ قَدْ يَقَعُ دَلَالَةً عَلَى الْاِسْتِدَامَةِ او فعل [هم] کله پر باقي ساتلو دليل واقع کيږي [يعني فعل هم ځيني وخت د باقي ساتلو دليل جوړيږي] كَمَا فِيْ إِسْقَاطِ الْخِيَارِ لکه د خيار شرط په ساقطولو کي [چي فعل دليل جوړيږي] وَالدَّلَالَةُ فِعْلٌ يَخُصُّ بِالنِّكَاحِ او د فعل دليل جوړېدل د نکاح سره خاص دي [يعني هغه فعل دليل جوړېدای سي کوم فعل چي د نکاح سره خاص وي] وَهٰذِهِ الْأَفَاعِيلُ تَخُصُّ بِهِ خُصُوْصًا فِي الْحُرَّةِ او دا ټوله [ذکر سوي] افعال [يعني وطي کول، مچول...] د نکاح سره خاص دي په ځانګړې توګه د آزادي ښځي په حق کي بِخِلَافِ الْمَسِّ وَالنَّظَرِ بِغَيْرِ شَهْوَةٍ په خلاف د بېله شهوته مسه کولو او کتلو لِأَنَّهُ قَدْ يَحِلُّ بِدُوْنِ النِّكَاحِ ځکه چي دا کله له نکاح څخه بغير هم حلال وي كَمَا فِي الْقَابِلَةِ وَالطَّبِيْبِ وَغَيْرِهِمَا لکه د دايي ښځي، ډاکټري ښځي او داسي نورو په حق کي وَالنَّظَرُ إِلَىٰ غَيْرِ الْفَرْجِ قَدْ يَقَعُ بَيْنَ الْمُسَاكِنَيْنِ او له فرج څخه بغير [نورو اندامونو] ته کتل کله نا کله د دوو [هَمْ څنګه] اوسېدونکو [ملګرو] په مينځ کي [هم] واقع کيږي وَالزَّوْجُ يُسَاكِنُهَا فِي الْعِدَّةِ او

خاوند د عدت په زمانه کې د ښځې سره اوسيږي فَلَوْكَانَ رَجْعَةً نو که الا فرج څخه بغير ته کتل ارجعت وي [يعني که له فرج څخه بغير نورو اندامونو ته کتل هم رجعت وشمارل سي] لَطَلَّقَهَا نو [خاوند] به ښځې ته اوبيم وار بيا] طلاق ورکړي لَتَطُوْلُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَا او د ښځې عدت به [نور] اوږد سي.

**اللغات:** ﴿الْقَابِلَة﴾ دايي، دايه (هغه ښځه کوم چې د ولادت او لنګوالي په وخت کې د لنګې ښځې مدد کوي)، رضاعي مور (د شيدو مور)، ﴿مُسَاكِنَيْنِ﴾ د مفاعلې له باب څخه د اسمِ فاعل تثنيه صيغه ده. سَاكَنَ يُسَاكِنُ مُسَاكَنَةً: يو د بل سره نږدې اوسېدل، نو دله مُسَاكِنْ څخه مراد هَمْ څنګه اوهمجواره ملګری دی.

**تشريح:** په دې عبارت کې د رجعت صورتونه او طريقې بيان سوي دي، حاصل يې دا دی چې زموږ په نېز قولي رجعت هم صحيح دی، او فعلي رجعت هم صحيح دی که څه هم خاوند پر قولي رجعت قادر دي، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که خاوند پر قولي رجعت قدرت لري نو بيا د هغه لپاره فعلي رجعت کول صحيح نه دي او نه بيا په فعلي رجعت سره رجعت ثابتيږي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې ښځې ته رجعت کول داسي دي لکه د نوي سره (او له شروع څخه) نکاح کول، نو څرنګه چې د نوي نکاح لپاره په ژبه سره ايجاب او قبول کول ضروري دي، همداسي په رجعت کې هم په ژبه سره د رجعت الفاظ اداء کول ضروري دي او له څه عذر څخه بغير فعلي رجعت ته عدول کول صحيح نه دي، له همدې وجهې د شوافعو په نېز د مطلّقه رجعيه ښځې سره وطي کول روا نه دي ځکه چې د شوافعو په نېز مطلقه رجعيه ښځه د خاوند په حق کې د پردۍ ښځې (أجنبيه) په څير ده او پردۍ ښځې له نکاح څخه بغير نه حلاليږي، لهذا مطلقه رجعيه ښځه هم د شوافعو په نېز له قولي رجعت څخه بغير نه حلاليږي.

د دې په خلاف زموږ په نېز د مطلقه رجعيه ښځې سره وطي کول هم روا دي. او پر رجعتِ قولي باندې د قدرت لرلو په وخت کې رجعتِ فعلي کول هم صحيح دي.

**زموږ دليل:** دا دی چې رجعت د مخکني نکاح باقي ساتلو ته وايي (له نوي سره نکاح کولو ته نه وايي لکه امام شافعي رَحِمَهُ الله چې فرمايي)، ځکه په قرآن کې هم د رجعت لپاره د "إِمْسَاک" لفظ ذکر سوی دی کوم چې "باقي ساتلو" ته وايي، لهذا هر داسي فعل کوم چې د نکاح پر "باقي ساتلو" دلالت کوي هغه به د رجعت لپاره کافي وي، ځکه کوم فعل چې هم د نکاح پر باقي ساتلو دلالت کوي په هغه سره نکاح باقي پاتيږي، لکه د خيارِ شرط په ساقطېدلو کې چې هم دغه تفصيل دی، مثلاً که زيد پر دې شرط له يو چا څخه آس رانيسي چې ما ته به درې ورځې اختيار وي، او بيا زيد پر

آس سپور سي، منظرې پر کوي او خپل کار ته پر ځي، نو په دې سره د زید اختیار ختمیږي او آس د زید په ملکیت کې راځي، نو دلته که څه هم زید په خپل قول او ژبه سره خیار (اختیار) نه دی ساقط کړی خو د زید فعل یعني پر آس د هغه سپرېدل د اختیار (خیار) ساقطېدلو او ختمېدلو دلیل دی، لهذا همداسې به د ښځې مسه کول، وطې ور سره کول او داسې نور هم د رجعت کولو دلیل وي که څه هم خاوند قول او ژبه استعمال نه کړي.

**والدلالة فعل إلخ:** فرمایي چې هر هغه فعل د رجعت او د نکاح پر باقي ساتلو دلیل جوړېدای سي کوم چې د خاوند او ښځې سره خاص وي او له نکاح څخه بغیر جائز نه وي او چې هغه خصوصاً د آزادې ښځې په حق کې له نکاح څخه بغیر جائز نه وي لکه وطې کول، مسه کول، مچول، ځکه چې دا کارونه د مینځې په حق کې د ملکیت په وجه له نکاح څخه بغیر جائز دي.

**بخلاف المس إلخ:** او بېله شهوته مسه کول یا بېله شهوته فرج (شرمګاه) ته کتل له نکاح څخه بغیر هم جائز دي؛ ځکه چې د ضرورت په وخت کې ډاکټر او دایي هم بېله شهوته فرج ته کتلای سي، نو په دې وجه بېله شهوته مسه کول یا فرج ته کتل د رجعت دلیل نه دی.

**والنظر إلى غیر الفرج:** او له فرج څخه بغیر نورو اندامونو ته په نظر کولو (کتلو) سره رجعت نه ثابتیږي، ځکه چې عموماً دوه ملګري او دوه نژدې خلک هم یو د بل نور اندامونه په آسانۍ سره ویني، او ښځه هم د عدت په حالت کې د خاوند سره نژدې اوسیږي، نو که نورو اندامونو ته په نظر کولو سره د رجعت د ثابتېدلو حکم وسي همدارنګه که بېله شهوته فرج ته په نظر کولو سره د رجعت د ثابتېدلو حکم وسي، نو بیا به په دې صورتونو کې د خاوند له اختیار څخه بغیر رجعت ثابت سي (ځکه چې پر دغه اندامونو بېله اختیاره د انسان نظر پرېوځي)، او د خاوند دا خوښه نه ده چې رجعت وکړي ځکه چې د هغه اراده د طلاق او د ښځې د جلا کولو ده، لهذا کله چې بېله اختیاره رجعت ثابت سي، نو خاوند به بیا ښځې ته طلاق ورکړي او پر ښځې به بېله څه وجهې عدت نور اوږد سي، او په دې کې د ښځې لپاره ضرر او حرج دی وَالحَرجُ مَدْفُوْعٌ فِی الشّرع، نو ځکه به له شهوت څخه بغیر همدارنګه له فرج څخه بغیر د نورو اندامونو په مسه کولو او هغوی ته په نظر کولو سره رجعت نه ثابتیږي.

## د رجوع کولو په وخت کې د ګواهۍ حکم

**قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُشْهِدَ عَلَى الرَّجْعَةِ شَاهِدَيْنِ** فرمایي: او مستحب دي چې خاوند پر [خپل] رجعت دوه خلک ګواهان جوړ کړي **فَإِنْ لَمْ يُشْهِدْ** او که خاوند [هیڅ] ګواه جوړ نه کړي **صَحَّتِ الرَّجْعَةُ** نو [هم] رجعت صحیح دی **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي أَحَدِ قَوْلَيْهِ: لَا تَصِحُّ وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ** او امام شافعي په خپل یوه

قول کې فرمايلي دي: چې [له ګواهۍ څخه بغير] رجعت نه صحيح کيږي او همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ [الطلاق: ۲] ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: او تاسي له خپل طرف څخه دوه عادله خلک ګواهان جوړ کړئ! وَالْأَمْرُ لِلْإِيجَابِ او امر د وجوب لپاره راځي [نو ځکه به دوه خلک ګواهان جوړول واجب وي] وَلَنَا إِطْلَاقُ النُّصُوصِ عَنْ قَيْدِ الْإِشْهَادِ او زموږ دليل د ګواه جوړولو له قيد څخه د آيتونو مطلق کېدل دي وَلِأَنَّهُ اِسْتِدَامَةٌ لِلنِّكَاحِ او ځکه چې رجعت د نکاح باقي ساتل دي وَالشَّهَادَةُ لَيْسَتْ شَرْطًا فِيهِ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ او په نکاح کې د بقاء په حالت کې ګواهي شرط نه ده كَمَا فِي الْفَيْءِ فِي الْإِيلَاءِ لکه په فيء او ايلاء کې [چې ګواهي شرط نه ده] إِلَّا أَنَّهَا تُسْتَحَبُّ لِزِيَادَةِ الِاحْتِيَاطِ خو [بيا هم] د زيات احتياط لپاره ګواهي مستحب ده كَيْ لَا يَجْرِيَ التَّنَاكُرُ فِيهَا د دې لپاره چې په دې کې انکار [او ناګاري] جاري نه سي [يعني که وروسته خاوند يا ښځه ځان ناګاره واچوي يا مثلاً خاوند انکار وکړي، نو ګواه به يې مخ نيسي] وَمَا تَلَاهُ مَحْمُولٌ عَلَيْهِ او کوم آيت چې [امام شافعي] تلاوت کړی دی هغه پر استحباب حمل کړی سوی دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ قَرَنَهَا بِالْمُفَارَقَةِ آيا ته نه ګوري! چې الله تعالیٰ رجعت د مفارقت سره متصل کړی دی وَهُوَ فِيهَا مُسْتَحَبٌّ او ګواه جوړول په مفارقت کې مستحب دي [نو په رجعت کې به هم مستحب وي] وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُعْلِمَهَا كَيْ لَا تَقَعَ فِي الْمَعْصِيَةِ او مستحب دي چې خاوند ښځې ته د رجعت خبر [اطلاع] ورکړي د دې لپاره چې ښځه په ګناه کې واقع نه سي..

**اللغات:** ﴿يُشْهِدُ﴾ د افعال مضارع ده: بل څوک ګواه جوړول (په بل چا ګواهي ورکول)، ګواه درول، ﴿ذَوَيْ عَدْلٍ﴾ دوه د عدل او انصاف خاوندان، ﴿إِسْتِدَامَةٌ﴾ د استفعال مصدر دی: باقي ساتل، ﴿فَيْء والإِيْلَاء﴾ که خاوند داسي قسم وکړي چې زه به څلور مياشتي ښځې ته نه نژدې کېږم، نو دې ته خو "ايلاء" وايي (لکه مخکې چې موږ د دې تعريف وکړی)، او که قسم مات کړي او تر څلورو مياشتو مخکې وطي وکړي، نو دې ته له ايلاء څخه "فيء" کول وايي، ﴿تَنَاكُر﴾ ځان ناخبره اچول، ناګاره کېدل (عارفانه تجاهل)، انکار کول، ﴿يُعْلِمَهَا﴾ د افعال مضارع ده: بل څوک خبرول، اطلاع ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله يو خاوند خپلې ښځې ته رجعت کول وغواړي نو هغه ته پکار دي چې پر خپل رجعت دوه عادلان خلک ګواهان جوړ کړي، زموږ په نېز دغه ګواهي مستحب

ده، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په يوه قول کي دا گواهي واجب او ضروري ده.

**دليل**: د دې حضراتو دليل دا دی چي الله په دې آيت: "فَإِذَا بَلَغْنَ.....وَأَشْهِدُوا ذَوَىْ عَدْلٍ مِنْكُمْ" کي د أمر په صيغه (أَشْهِدُوا) سره د رجعت او مفارقت پر موقع د گواهي حکم کړی دی(يعني که تاسو خپلو ښځو ته رجعت کول غواړئ يا هغوی جلا کول غواړئ. نو په دې صورت کي تاسو دوه عادله خلک گواهان جوړ کړئ!). او د أمر صيغه د وجوب لپاره راځي. نو ځکه به د رجعت په وخت کي گواهي واجب او ضروري وي.

**زموږ دليل**: د گواهي پر استحباب زموږ دليل هغه ټوله آيتونه دي کوم چي د إِشْهَاد (گواه جوړولو) له قيد څخه خالي دي، مثلاً د قرآن کريم دا آيتونه: ① فَأَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ. ② فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوْفٍ. ③ وَبُعُوْلَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ او داسي نور، دغه ټوله آيتونه فقط پر رجعت دلالت کوي او د رجعت لپاره د گواهي د وجوب په هکله هيڅ تفصيل پکښي نسته، اوس که موږ دلته گواهي واجب کړو نو پر دې آيتونو او نصوصو به زياتوب ثابت سي، کوم چي صحيح نه دی.

په رجعت کي د گواهي نه واجبېدلو عقلي دليل دا دی چي رجعت د نکاح بقاء (پاتېدلو) ته وايي، او د نکاح د بقاء لپاره گواهي (گواهان درول) شرط نه دي، لهذا د رجعت لپاره به هم گواهي شرط نه وي، لکه څرنګه چي په فَيْء او إِيْلَاء کي هم د نکاح بقاء مطلوب ده او د فَيْء او إِيْلَاء لپاره هم گواهي شرط نه ده. ها! د زيات احتياط لپاره په رجعت کي گواهي مستحب او ښه کار دی. د دې لپاره چي بيا خاوند د يو مشکل سره مخامخ نه سي او د خلکو له بدگوماني څخه وساتل سي.

**وما تلاه إلخ**: امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم آيت په خپل دليل کي پېش کړی هغه پر استحباب محمول دی، ځکه چي په هغه آيت کي رجعت د مفارقت (تفريق) سره متصل بيان سوی دی. الله تعالیٰ فرمايي: "فَأَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ أَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ وَ أَشْهِدُوْا...". او په تفريق کي د ټولو په نېز گواهي مستحب ده. لهذا په رجعت کي به هم گواهي مستحب وي. واجب او ضروري به نه وي.

**ويستحب أن يعلمها إلخ**: فرمايي: خاوند ته پکار دي چي په خپل رجعت کولو ښځه خبره کړي (چي ما تا ته رجعت کړی دی يا زه تا ته رجعت کوم)؛ ځکه کله چي ښځي ته د رجعت خبر نه وي. نو کېدای سي چي ښځه به تر عدت وروسته د بل خاوند سره د خپل واده بندوبست وکړي او د هغه سره به وطي وکړي او په گناه او معصيت به مبتلا سي، نو په دې وجه مخکي خبرول غوره او مستحب دي.

## تر عدت وروسته د "رجوع في العدة" دعوىٰ كول

وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ او كله چې عدت ختم سي فَقَالَ: كُنْتُ رَاجَعْتُهَا فِي الْعِدَّةِ او [خاوند] ووايي: چې ما خپلې ښځې ته په عدت کې رجوع كړې وه فَصَدَّقَتْهُ او ښځه د هغه تصديق وكړي فَهِيَ رَجْعَةٌ نو دا رجعت دی وَإِنْ كَذَّبَتْهُ او كه ښځه د هغه تكذيب وكړي فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو قول به د ښځې معتبر وي لِأَنَّهُ أَخْبَرَ عَمَّا لَا يَمْلِكُ إِنْشَاءَهُ فِي الْحَالِ ځكه چې [دلته] خاوند د داسې شي خبر وركړی دی چې خاوند في الحاله د هغه د پيدا كولو مالک نه دی [يعني دلته خاوند د داسې كار خبر وركړی دی چې خاوند اوس هغه كار نه سي كولای] فَكَانَ مُتَّهَمًا لهذا هغه به متهم [تورن] وي إِلَّا أَنَّ بِالتَّصْدِيقِ تَرْتَفِعُ التُّهْمَةُ خو [د ښځې] په تصديق سره تهمت ليرې كيږي وَلَا يَمِينَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او [په دې صورت كې] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر ښځې قسم نسته وَهِيَ مَسْأَلَةُ الِاسْتِحْلَافِ فِي الْأَشْيَاءِ السِّتَّةِ او دا په شپږو شيانو كې د قسم د طلب كولو مسئله ده وَقَدْ مَرَّ فِي كِتَابِ النِّكَاحِ او په كتابُ النكاح كې [د دې بيان] تېر سو.

**اللغات:** ﴿مُتَّهَمٌ﴾ د افتعال اسم مفعول دی: تورن، تهمتي (تومتي)، هغه كس چې تهمت پر ولګول سي. ﴿إِسْتِحْلَافٌ﴾ د استفعال مصدر دی: له بل چا څخه د قسم طلب كول، په بل چا قسم كول (په بل چا قسم خوړل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه خاوند د عدت تر تېرېدلو او ختمېدلو وروسته خپلې ښځې ته ووايي چې ما خو ستا په عدت كې تا ته رجعت كړی وو، او ښځه د هغه تصديق وكړي. نو دا به رجعت شمارل كيږي. او كه ښځه د هغه تكذيب وكړي، نو دا به رجعت نه شمارل كيږي بلكې د ښځې قول به معتبر وي؛ دليل دا دی چې دلته خاوند د يو داسې شي خبر وركړی دی چې خاوند هغه نه سي كولای. نو خاوند به په خپل خبره كې متهم وي. خو كله چې ښځه د هغه تصديق وكړي. نو له خاوند څخه دا تهمت ليرې كيږي. نو ځكه به د ښځې د تصديق په صورت كې رجعت ثابتيږي.

**ولا يمين عليها إلخ:** او كله چې ښځه د هغه تكذيب او انكار وكړي، نو كه څه هم پر منكر قسم اخيستل ضروري دي (ځكه كله چې د مدعي [خاوند] سره بَيِّنَه نه وي. نو د منكر قول هغه وخت معتبر كيږي كله چې قسم واخلي)، خو بيا هم په دې مسئله كې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر

ښځي قسم نه لازميږي، ځکه چي په شپږو مسئلو کي د امام صاحب په نيز پر منکر قسم نه لازميږي چي له هغوی څخه يوه دا مسئله هم ده.

وقد مرفی کتاب النکاح: فرمايي چي په کتابُ النکاح کي د دې شپږو مسئلو بيان تېر سو، خو صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مصنف دا دعویٰ صحيح نه ده، ځکه چي په کتابُ النکاح کي دغه شپږي مسئلې نه دي بيان سوې بلکي فقط معمولي اشاره ورته سوې ده، او د دې پوره بحث او تفصيل به انشاء الله په كِتَابُ الدَّعوَات کي ذکر سي. (بنايه ج:٥، ص:٢٣٣)

## تر عدت وروسته د "رجوع فی العدة" دعویٰ کول

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ: قَدْ رَاجَعْتُكِ او کله چي خاوند [خپلي ښځي] ته ووايي: چي ما تا ته رجعت کړی دی فَقَالَتْ مُجِيبَةً لَهُ: قَدْ انْقَضَتْ عِدَّتِي او ښځه هغه ته په جواب کي ووايي: چي زما عدت تېر سوی دی لَمْ تَصِحَّ الرَّجْعَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❁ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز رجعت نه صحيح کيږي وَقَالَا: تَصِحُّ الرَّجْعَةُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي رجعت صحيح کيږي لِأَنَّهَا صَادَفَتِ الْعِدَّةَ ځکه چي [دلته] رجعت په عدت کي وارد سوی دی [يعني رجعت او عدت دواړه سره يو ځای سوي دي] إِذْ هِيَ بَاقِيَةٌ ظَاهِرًا إِلَى أَنْ تُخْبِرَ ځکه چي ظاهراً د ښځي د خبر ورکولو تر وخته پوري عدت پاته دی [يعني ظاهري حالت دا دی چي تر اوسه د ښځي عدت پاته دی] وَقَدْ سَبَقَتْهُ الرَّجْعَةُ او رجعت [د ښځي] تر خبر ورکولو مخکي سوی دی وَلِهٰذَا لَوْ قَالَ لَهَا طَلَّقْتُكِ فَقَالَتْ مُجِيبَةً لَهُ: قَدْ انْقَضَتْ عِدَّتِي او له همدې وجهي که خاوند خپلي ښځي ته ووايي: چي ما تا ته طلاق درکړی دی او ښځه په جواب کي ورته ووايي: چي زما عدت خو پوره سوی دی يَقَعُ الطَّلَاقُ نو طلاق واقع کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهَا صَادَفَتْ حَالَةَ الِانْقِضَاءِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي رجعت د عدت تېرېدلو په حالت کي وارد سوی دی لِأَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي الْإِخْبَارِ عَنِ الِانْقِضَاءِ ځکه چي ښځه د [عدت] تېرېدلو په خبر ورکولو کي امانتداره وي فَإِذَا أَخْبَرَتْ دَلَّ ذٰلِكَ عَلَى سَبْقِ الِانْقِضَاءِ لهذا کله چي ښځه [د عدت تېرېدلو] خبر ورکړي نو دا د دې

---

❁ القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما فی الهندية: والصحيح قول أبی حنيفة، كذا فی المضمرات (الهندية ج:١، ص:٢٧٠). [القول الراجح ج:١، ص:٢٢٩]

خبري دليل دی چي [د عدت] تېرېدل [پر رجعت] مخکي دي ﴿وَأَقْرَبُ أَحْوَالِهِ حَالُ قَوْلِ الزَّوْجِ﴾ او د عدت تېرېدلو له حالاتو څخه تر ټولو نژدې د خاوند د قول حالت دی [نو به عدت د خاوند تر قول لږ مخکي تېر سوی وي، نو په دې وجه رجعت نه صحیح کیږي] ﴿وَمَسْأَلَةُ الطَّلَاقِ عَلَى الْخِلَافِ﴾ او د طلاق مسئله پر اختلاف ده ﴿وَلَوْ كَانَتْ عَلَى الِاتِّفَاقِ﴾ او که [بیا هم] پر اتفاق سي ﴿فَالطَّلَاقُ يَقَعُ بِإِقْرَارِهِ بَعْدَ الِانْقِضَاءِ﴾ نو طلاق تر عدت تېرېدلو وروسته د خاوند په اقرار سره واقع کیږي ﴿وَالْمُرَاجَعَةُ لَا تَثْبُتُ بِهِ﴾ او رجعت په اقرار سره نه ثابتیږي.

**اللغات:** ﴿صَادَفَتْ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: وارد بېدل، مخامخ کېدل، واقع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند خپلې ښځي ته ووايي چي ما تا ته رجعت کړی دی، لېکن ښځه سمدستي جواب ورکړي چي زما خو عدت لا پوره سوی دی (او ته اوس د رجعت خبره کوې)، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز رجعت نه صحیح کیږي، همدا د امام احمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، او د صاحبینو په نېز رجعت صحیح کیږي او دا ښځه د خاوند په نکاح کي راځي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د خاوند "رَاجَعْتُكِ" ویل د دې خبري علامه ده چي رُجعت د عدت په زمانه کي واقع سوی دی، ځکه چي ظاهري حال هم دغه دی چي د رجعت کولو په وخت کي د ښځي عدت پاته وو او ښځه په عدت کي وه، او د عدت تېرېدل (انْقِضَاءِ عِدَّة) د هغې په خبر ورکولو سره معلومیږي، لېکن دلته خاوند د هغې له خبر ورکولو څخه مخکي د رجعت خبر ورکړی دی، نو ځکه به د خاوند قول معتبر وي، ځکه چي د خاوند قول (خبر) د ښځي د عدت تېرېدلو له خبر څخه مخکي دی، همدا وجه ده که خاوند خپلې ښځي ته ووايي: چي ما تا ته طلاق درکړی دی، او ښځه په جواب کي ورته ووايي چي سرېه! زما خو عدت لا پوره سوی دی (او ته اوس د طلاق خبره کوې)، نو په دې صورت کي هم طلاق واقع کیږي، ځکه چي د طلاق ورکولو قول او خبر د هغې د عدت تېرېدلو له خبر څخه مخکي دی.

**د امام صاحب دليل:** په دې سلسله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي دلته د خاوند قول یعني د رجعت خبر ورکول له عدت تېرېدلو څخه مخکي نه دی بلکي د عدت تېرېدلو د حالت سره متصل دی، او څرنګه چي دغه ښځي د خاوند د قول سره یو ځای د عدت تېرېدلو خبر ورکړی دی، نو په دې وجه د ښځي خبر د خاوند تر خبر (رجعت) مخکي کېدای هم سي، ځکه چي د انقضاءِ عدت

په خبر ورکولو کې ښځه أمينه (امانتداره) ده او قول د أمين معتبر وي، لهذا د ښځې خبر ورکول د دې خبرې دليل دی چې د هغې عدت د خاوند له رجعت څخه مخکې ختم سوی دی او څرنګه چې د انقضاءِ عدت (عدت تېرېدلو) په حالاتو کې تر ټولو نږدې حالت د خاوند د قول حالت دی (يعني څرنګه چې د اِنْقَضَتْ عِدَّتِيْ د جملې سره تر ټولو نږدې جمله د خاوند د رَاجَعْتُكِ قول او جمله ده)، نو ځکه به هغه د خاوند له قول (رَاجَعْتُكِ) څخه لږ مخکې تېر سوی وي، نو اوس به يې حاصل دا وي چې عدت مخکې تېر سو او رجعت وروسته راغلی، او کوم رجعت چې تر عدت تېرېدلو وروسته وي، هغه نه صحيح کيږي، نو په دې وجه دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د خاوند رجعت نه صحيح کيږي.

ومسألة الطلاق إلخ: په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي. د جواب حاصل دا دی چې په دليل کې چې صاحبينو کومه د طلاق مسئله ذکر کړې ده هغه هم رجعت د مسئلې په څېر مختلف فيها ده، او که بيا هم هغه د طلاق مسئله متفق عليها ومنل سي، نو جواب دا دی چې تر عدت تېرېدلو وروسته خو د خاوند په اقرار سره طلاق واقع کېدای سي لېکن تر عدت تېرېدلو وروسته د خاوند په اقرار سره رجعت نه سي ثابتېدای، ځکه چې په دې کې د بل چا په حق کې د تصرف کولو په وجه تهمت سته، نو معلومه سوه چې په دې دواړو مسئلو کې فرق دی، او قياس مع الفارق صحيح نه دی. نو ځکه به دلته د صاحبينو قياس صحيح نه وي.

## په پورتنۍ مسئله کې د مينځې حکم

وَإِذَا قَالَ زَوْجُ الْأَمَةِ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّتِهَا: قَدْ كُنْتُ رَاجَعْتُهَا او که د مينځې خاوند د هغې تر عدت تېرېدلو وروسته ووايي: ما تا ته رجعت کړی وو وَصَدَّقَهُ الْمَوْلَى وَكَذَّبَتْهُ الْأَمَةُ او [بيا] مالک د خاوند تصديق وکړي [لېکن] مينځه د هغه تکذيب وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [1] نو [په دې صورت کې] به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مينځې قول معتبر وي وَقَالَا: الْقَوْلُ قَوْلُ الْمَوْلَى او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د مالک قول به معتبر وي لِأَنَّ بُضْعَهَا مَمْلُوكٌ لَهُ ځکه چې د مينځې بضع د مالک په ملکيت کې ده فَقَدْ أَقَرَّ بِمَا هُوَ خَالِصُ حَقِّهِ لِلزَّوْجِ نو مالک د خاوند لپاره د داسې شي اقرار وکړی کوم چې خالص د مالک حق دی فَشَابَهَ الْإِقْرَارَ عَلَيْهَا بِالنِّكَاحِ نو دا [صورت] پر مينځې د نکاح د اقرار

---

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ، كما ذكر في الهندية (ج:۱، ص:۴۷۱). [القول الراجح: ۳۴۰]

کولو سره مشابه سو [یعني دا صورت داسي سو لکه مالک چي د مینځي د نکاح اقرار وکړي] وَهُوَ يَقُولُ: حُكْمُ الرَّجْعَةِ يَنْبَنِيْ عَلَى الْعِدَّةِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د رجعت حکم پر عدت مبني دی وَالْقَوْلُ فِي الْعِدَّةِ قَوْلُهَا او د عدت په باره کي د ښځي [مینځي] قول معتبر وي فَكَذَا فِيمَا يَنْبَنِيْ عَلَيْهَا لهذا په هغه شي کي به هم د ښځي قول معتبر وي کوم چي پر عدت مبني کیږي وَلَوْ كَانَ عَلَى الْقَلْبِ او که معامله د دې برعکس وي فَعِنْدَهُمَا الْقَوْلُ قَوْلُ الْمَوْلَى نو [په دې صورت کي] به د صاحبینو په نېز د مالک قول معتبر دی وَكَذَا عِنْدَهُ فِي الصَّحِيحِ او همدارنګه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په صحیح روایت کي [هم د مالک قول معتبر دی] لِأَنَّهَا مُنْقَضِيَةُ الْعِدَّةِ فِي الْحَالِ ځکه چي دغه مینځي فی الحاله [اوس] عدت تېر کړی [پوره کړی] دی وَقَدْ ظَهَرَ مِلْكُ الْمُتْعَةِ لِلْمَوْلَى او د مالک لپاره ملک متعه [د تمتع ملکیت] ښکاره سوی دی فَلَا يُقْبَلُ قَوْلُهَا فِي إِبْطَالِهِ لهذا د ملک متعه د باطلولو په حق کي به د مینځي قول نه منل کیږي بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّ الْمَوْلَى بِالتَّصْدِيقِ فِي الرَّجْعَةِ مُقِرٌّ بِقِيَامِ الْعِدَّةِ عِنْدَهَا ځکه چي [هلته] مالک د رجعت د تصدیق په کولو سره د رجعت په وخت کي د عدت پاتېدلو اقرار کړی دی [یعني هلته مالک په خپل تصدیق کولو سره دا اقرار کړی دی چي د خاوند د رجعت کولو په وخت کي عدت موجود وو] وَلَا يَظْهَرُ مِلْكُهُ مَعَ الْعِدَّةِ او د عدت سره د هغه ملکیت ښکاره کېدای نه سي [یعني په عدت کي دننه د مالک ملکیت نه سي ثابتیدای. نو په دې وجه به هلته د مینځي خبره منل کیږي] وَإِنْ قَالَتْ قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي او که مینځه ووایي: چي زما عدت تېر سوی دی وَقَالَ الزَّوْجُ وَالْمَوْلَى: لَمْ تَنْقَضِ عِدَّتُكِ او خاوند او مالک [ورته] ووایي: چي ستا عدت [تر اوسه] نه دی تېر سوی فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو [په دې صورت کي] به د مینځي قول معتبر وي لِأَنَّهَا أَمِينَةٌ فِي ذَلِكَ ځکه چي هغه په دې سلسله کي امانتداره ده إِذْ هِيَ الْعَالِمَةُ بِهِ ځکه چي [فقط] هغه د عدت په تېرېدلو [په پوره توګه] خبره ده.

**اللغات: ﴿انْقِضَاء﴾** د انفعال مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل (عدت پوره کېدل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو مینځه د یو سړي په نکاح کي وي او هغه سړی مینځي ته طلاق رجعي ورکړي، بیا چي کله د مینځي عدت تېر سي، نو سړی (خاوند) ورته ووایي چي ته اوس هم زما په نکاح کي یې! ځکه چي په عدت کي ما تا ته رجعت کړی وو. نو په دې مسئله کي څلور صورتونه جوړېږي: ① یو صورت دا چي د مینځي مالک او مینځه دواړه د دې سړي (خاوند) تصدیق

وکړي، ② يا دواړه د خاوند تکذيب وکړي، ③ يا يې مالک تصديق وکړي او مينځه يې تکذيب وکړي، ④ يا د مخکني صورت برعکس وي، يعني مالک يې تکذيب وکړي، او مينځه يې تصديق وکړي.

په اول صورت کې د ټولو په نيز رجعت صحيح دی، او په دويم صورت کې د ټولو په نيز رجعت صحيح نه دی، مګر دا چې کله خاوند بَيِّنَه پيش کړي.

او په دريم صورت کې که د خاوند سره بَيِّنَه نه وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به د مينځې قول معتبر کيږي، همدا د امام زفر، امام شافعي او نورو قول دی، او د صاحبينو په نيز به د مالک قول معتبر کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې تر عدت تېرېدلو وروسته د بضع منافع د مالک په ملکيت (حق) کې راځي، نو د مالک تصديق او اقرار کول خالص د خپل حق اقرار کول دي، لهذا هغه نه سي ردّ کېدلای، او دا صورت داسي سو لکه مالک چې د خپلې مينځې د نکاح اقرار وکړي، مثلاً مالک ووايي: چې ما د فلانکي سړي سره د خپلې مينځې نکاح کړې ده، نو په دې اقرار کې د مالک قول معتبر کيږي، نو همداسي به دلته هم د مالک قول معتبر وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د رجعت حکم د عدت پر بقاء او انقضاء مبني دی (يعني که عدت باقي وي نو رجعت ثابتيږي، او که عدت تېر سي نو رجعت نه ثابتيږي)، او د عدت په بقاء او انقضاء کې د ښځې قول معتبر دی، لهذا کوم شی چې پر عدت مبني وي يعني رجعت، په هغه کې به هم د ښځې (مينځې) قول معتبر وي.

ولوكان على القلب: څلورم صورت يعني کله چې مينځه د خاوند تصديق وکړي او مالک د هغه تکذيب وکړي، نو په دې صورت کې به د صاحبينو په نيز د مالک قول معتبر کيږي؛ د صاحبينو دليل: دا دی چې منافع د بعض خالص د مالک حق دی، او خاوند پر مالک د هغه دعوىٰ کړې ده، نو خاوند مدعي سو او مالک منکر سو، او قول د منکر معتبر وي (په دې شرط چې د مدعي سره بـيّـنه نه وي).

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه هم صحيح روايت دا دی چې په دې صورت کې به د مالک قول معتبر کيږي؛ ځکه چې مينځه فی الحاله په داسي حالت کې ده چې د عدت ورځې تيرې سوې دي، او ظاهراً د مالک لپاره له خپلې مينځې څخه د تمتع حاصلولو ملکيت ثابت سوی دی، لهذا که د مينځې په اقرار سره رجعت ثابت سي، نو د مالک د تمتع ملکيت به باطل سي، حالانکي د بل چا د حق په باطلولو کې محض د يو چا اقرار نه منل کيږي، لهذا دلته به هم د مينځې قول د مالک د حق په باطلولو کې نه منل کيږي، بلکې د مالک قول به منل کيږي.

په خلاف د اول صورت يعني کله چې مالک د خاوند تصديق کړی وي او مينځې يې تکذيب کړی وي، نو په هغه صورت کې به د امام صاحب په نيز د مينځې قول معتبر کيږي؛ ځکه کله چې مالک د رجعت په خبره کې د خاوند تصديق وکړي، نو په دې سره مالک د دې خبرې اقرارو کړی چې د خاوند د رجعت په وخت کې عدت موجود وو، او د عدت په وجود او بقاء کې د مالک لپاره د تمتع ملکيت نه سي ثابتېدای، لهذا په دې اول صورت کې د مينځې د قول په منلو سره د مالک د حق باطلېدل نه لازميږي، نو ځکه به دلته د مينځې قول معتبر وي، نه د مالک.

وإن قالت إلخ: او که مينځه ووايي چې زما عدت تېر سوی دی، حال دا چې ظاهراً د طلاق له زمانې څخه دومره ورځې نه وي تيرې سوې چې په هغوی کې عدت تېر کړی سي (يعني په ښکاره د عدت په اندازه ورځې تيرې سوې نه وي)، او مالک او خاوند دواړه ووايي چې ستا عدت تېر سوی نه دی، نو په دې صورت کې به هم د ښځې قول معتبر کيږي، ځکه چې مينځه د عدت تېرېدلو په سلسله کې أمينه (اماتنداره) ده، او فقط مينځې (ښځې) ته د دې پوره خبره سته چې زما عدت تېر سوی دی، که نه؟ نو ځکه به د مينځې قول منل کيږي.

## عدت او د رجوع حق کله ختميږي؟ (تفصيلي بيان)

وَإِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ او کله چې د دريم حيض وينه په لسمه ورځ ودرېږي [بنده سي] انْقَطَعَتِ الرَّجْعَةُ نو رجعت ختميږي وَإِنْ لَمْ تَغْتَسِلْ که څه هم ښځې غسل کړی نه وي وَإِنِ انْقَطَعَ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ او که تر لسو ورځو په کم وخت کې [يعني تر لسو ورځو مخکې] وينه ودرېږي لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ حَتَّى تَغْتَسِلَ أَوْ يَمْضِيَ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ كَامِلٍ نو رجعت نه ختميږي تر دې چې ښځه غسل وکړي يا پر هغې د پوره لمانځه وخت تېر سي لِأَنَّ الْحَيْضَ لَا مَزِيدَ لَهُ عَلَى الْعَشَرَةِ ځکه چې تر لسو ورځو زيات حيض نه راځي فَبِمُجَرَّدِ الِانْقِطَاعِ خَرَجَتْ مِنَ الْحَيْضِ لهذا [تر لسو ورځو وروسته] محض د وينې په درېدلو [بندېدلو] سره ښځه له حيض څخه ووتله فَانْقَضَتِ الْعِدَّةُ نو عدت پوره سو وَانْقَطَعَتِ الرَّجْعَةُ او رجعت [هم] ختم سو وَفِيمَا دُونَ الْعَشَرَةِ يَحْتَمِلُ عَوْدُ الدَّمِ او تر لسو ورځو په کم وخت کې [د وينې بندېدلو صورت کې] د وينې د بيا راتللو احتمال سته فَلَا بُدَّ أَنْ يَعْتَضِدَ الِانْقِطَاعُ بِحَقِيقَةِ الِاغْتِسَالِ لهذا [په هغه صورت کې] په غسل کولو سره انقطاع [د وينې بندښت] ته قوت ورکول ضروري دي أَوْ بِلُزُومِ حُكْمٍ مِنْ أَحْكَامِ الطَّاهِرَاتِ يا [پر دغه ښځې] د پاکو ښځو د يو حکم په

لازمولو سره انقطاع ته قوت ورکول ضروري دي] بِمُضِيِّ وَقْتِ الصَّلَاةِ [مثلاً] د لمانځه د وخت په تېرېدلو سره بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتْ كِتَابِيَّةً په خلاف د هغه صورت کله چې ښځه کتابي وي لِأَنَّهُ لَا يُتَوَقَّعُ فِي حَقِّهَا أَمَارَةٌ زَائِدَةٌ ځکه چې د هغې په حق کې دیو زائد علامت توقع نه سته فَاكْتُفِيَ بِالِانْقِطَاعِ نو د هغې په حق کې به د وینې پر انقطاع اکتفاء کېږي وَتَنْقَطِعُ إِذَا تَيَمَّمَتْ وَصَلَّتْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او رجعت ختمېږي کله چې ښځه تیمم وکړي او لمونځ وکړي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ *: إِذَا تَيَمَّمَتْ انْقَطَعَتْ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چې کله ښځه [محض] تیمم وکړي نو رجعت ختمېږي وَهَذَا الْقِيَاسُ او دا قیاس دی لِأَنَّ التَّيَمُّمَ حَالَ عَدَمِ الْمَاءِ طَهَارَةٌ مُطْلَقَةٌ ځکه چې تیمم د اوبو د نشتوالي په صورت کې طهارتِ مطلقه دی حَتَّى يَثْبُتَ بِهِ مِنَ الْأَحْكَامِ مَا يَثْبُتُ بِالِاغْتِسَالِ تر دې چې د تیمم په ذریعه هغه ټوله احکام ثابتېږي کوم چې د غسل په ذریعه ثابتېږي فَكَانَ بِمَنْزِلَتِهِ نو [تیمم] به د غسل په درجه کې وي [او په غسل کولو سره عدت ختمېږي، نو په تیمم کولو سره به هم عدت ختمېږي] وَلَهُمَا: أَنَّهُ مُلَوِّثٌ غَيْرُ مُطَهِّرٍ او د شیخینو دلیل دا دی: چې تیمم چټلونکی [خیرنونکي] دی، پاکونکی نه دی ایعني د هغه په وجه د انسان مخ او لاسي نور په خاورو ککړ کېږي] وَإِنَّمَا اعْتُبِرَ طَهَارَةً ضَرُورَةَ أَنْ لَا تَتَضَاعَفَ الْوَاجِبَاتُ [لېکن] هغه د دې ضرورت په وجه طهارت منل سوی دی چې واجبات [او فرائض] څو چنده نه سي وَهَذِهِ الضَّرُورَةُ تَتَحَقَّقُ حَالَ أَدَاءِ الصَّلَاةِ او دا ضرورت د لمانځه اداء کولو په حالت کې ثابتېږي لَا فِيمَا قَبْلَهَا مِنَ الْأَوْقَاتِ نه تر لمانځه په مخکي وختونو کې وَالْأَحْكَامُ الثَّابِتَةُ أَيْضًا ضَرُورِيَّةٌ اقْتِضَائِيَّةٌ او [د تیمم په ذریعه] ثابت سوي احکام هم د ضرورت په وجه او [د لمانځه] د تقاضا په وجه دي [یعني د لمانځه د جواز د ضرورت په وجه دي] ثُمَّ قِيلَ: تَنْقَطِعُ بِنَفْسِ الشُّرُوعِ عِنْدَهُمَا بیا ویل سوي دي: چې د شیخینو په نیز محض د لمانځه په شروع کېدلو سره رجعت ختمېږي وَقِيلَ: بَعْدَ الْفَرَاغِ او ویل سوي دي: چې [د لمونځ څخه] تر فارغه کېدلو وروسته [رجعت ختمېږي] لِيَتَقَرَّرَ حُكْمُ جَوَازِ الصَّلَاةِ د دې لپاره چې د لمانځه د جواز [جائز کېدلو] حکم ثابت سي.

**اللغات**: ﴿مُجَرَّد﴾ یوازې، محض، فقط. ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب مصدر میمي دی: تېرېدل، ختمېدل. ﴿مُلَوِّث﴾ د تفعیل اسمِ فاعل دی: چټلونکی (خیرونکی. ککړونکی). ﴿ضَرُورِيَّة﴾ هغه شی چې د ضرورت او مجبورۍ په وجه ثابت وي. ﴿اِقْتِضَائِيَّة﴾ هغه چې دیو شي د تقاضا پر بناء ثابت وي.

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ رَحِمَهُ الله ، كما ذكر فى رد المحتار (ج:٢، ص:٥٧٩). [القول الراجح ج:١، ٣٤٢]

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی کله چې يو ښځې ته طلاقِ رجعي ورکول سوی وي (يعني مطلقه رجعيه وي) او د عدت په تېرولو هغه مصروفه وي نو هر کله چې د هغې دوه حيضه په عدت کې تېر سي او د دريم حيض په لسمي ورځې يې ويني بندې سي (يعني لسمه ورځ پوره سي او د هغې ويني بندې سي)، نو په دغه ګړي د ښځې عدت هم ختمېږي او د خاوند د رجعت حق هم ختمېږي که څه هم دا ښځه غسل نه وکړي. او که د دريم حيض د لسمي ورځې څخه مخکې (مثلاً په نهمه ورځ) د ښځې ويني بندې سي. نو بيا محض د وينو په بندېدلو سره عدت او رجعت نه ختمېږي. بلکې کله چې هغه غسل وکړي يا پر هغې د يوه لمانځه پوره وخت تېر سي، نو بيا عدت او رجعت ختمېږي.

دليل دا دی چې د رجعت ختمېدل موقوف دي د عدت پر تېرېدلو (ختمېدلو). او د عدت تېرېدل موقوف دي د دريم حيض پر ختمېدلو. او د دريم حيض ختمېدل موقوف دي د طهارت پر حاصلولو (يعني د ښځې پر پاکېدلو)، نو که چيري د ښځې د حيض وخت او نېټه پوره لس ورځې وي. نو تر هغه وروسته محض د ويني په بندېدلو سره طهارت حاصلېږي. ځکه چې حيض د لسو ورځو څخه زيات احتمال نه لري. لهذا کله چې لس ورځې پوره سي او د ښځې وينه ودرېږي. نو د هغې حيض ختم سو نو عدت يې هم تېر سو او د رجعت حق هم ختم سو. برابره ده که دغه ښځه غسل وکړي او که يې نه وکړي.

او کله چې د لسو ورځو څخه په کم وخت کې وينه ودرېږي، نو څرنګه چې په دې صورت کې دا احتمال سته چې وينه به بيرته راسي، نو ځکه په دغه صورت کې د ويني د انقطاع او بندښت د معلومولو لپاره يو داسې ځانګړې مضبوط علامت ضروري دی چې په هغه سره د ويني د راتګ احتمال ختم سي او ښځه پاکه وشمارل سي، او دا ځانګړی علامت خو يا غسل دی يا د يوه لمانځه پوره وخت د ښځې وينه بندېدل دي، نو کله چې دغه علامت موجود سي. يعني ښځه غسل وکړي يا د يوه لمانځه پوره وخت پر تېر سي. نو د هغې پاکوالي ته به ترجيح ورکول کيږي او هغه به د طاهراتو په صف کې شامليږي او په همدې وخت کې به د هغې عدت او د رجعت حق ختمېږي.

د دې په خلاف که ښځه يهودي يا نصراني وي او د لسو ورځو څخه په کم وخت کې د هغې وينه بنده سي، نو له غسل څخه بغير همدارنګه د لمانځه له وخت تېرېدلو څخه بغير محض د ويني په بندېدلو سره د هغې عدت او رجعت ختمېږي؛ ځکه چې د هغې په حق کې د يو داسې زائد علامت توقع نسته چې په هغه علامت سره د هغې د ويني د راتګ احتمال ختم سي، ځکه چې پر کتابي ښځې نه لمونځ واجب دی او نه غسل، نو ځکه به د هغې په حق کې محض د ويني پر بندېدلو اکتفاء کيږي.

**وتنقطع إلخ**: او که د مطلقه رجعیه ښځي وینه د دریم حیض د لسو ورځو څخه مخکي بنده سي او بیا هغه تیمم وکړي او فرضي یا نفلي لمونځ وکړي، نو د شیخینو په نیز د هغې عدت او رجعت ختمیږي، یعني په تیمم او لمونځ دواړو سره د هغې عدت او رجعت ختمیږي (نه یوازي په تیمم سره)، همدا د استحسان تقاضا ده، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي محض په تیمم کولو سره عدت او رجعت ختمیږي، همدا د امام زفر او امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی، او همدا د قیاس تقاضا ده.

د امام محمد دلیل دا دی چي کله انسان پر اوبو قدرت نه لري نو په هغه وخت کي تیمم طهارت مطلقه دی، ځکه چي په هغه وخت کي په تیمم سره هغه ټوله احکام ثابتیږي کوم چي په غسل سره ثابتیږي، مثلاً مسجد ته داخلېدل، قرآن لوستل، لمونځ اداء کول، سجده تلاوت کول او قرآن مسه کول، نو تیمم د غسل په څیر سو، لهذا کوم حکم چي د غسل وي، هغه حکم به تیمم وي، او د ښځي په غسل سره رجعت (یعني د رجعت حق) ختمیږي، نو محض د هغې په تیمم سره به هم رجعت ختمیږي.

د شیخینو دلیل دا دی چي تیمم په حقیقت کي مُلوّث دی، نه مُطهِّر (یعني د تیمم په وجه د انسان اندامونه په خاورو لړل کیږي، پاکیږي نه) لیکن شریعت د ضرورت په وجه د هغه مُطهِّر شمارلی دی، د ضرورت مطلب دا دی چي کله یو څو ورځي اوبه نه وي او د شریعت له طرفه د تیمم اجازه هم نه وي، نو ورځ په ورځ به د انسان پر ذمه فرائض او واجبات پاتیږي او په آخر کي به څو چنده فرائض او واجبات د هغه پر ذمه پاته سي چي اداء کول به يې پر انسان ډېر مشکل وي، نو د دغه ضرورت په وجه تیمم مشروع سوی دی، او ضرورت فقط د لمانځه د اداء کولو په وخت کي متحقق کیږي، نه تر لمانځه مخکي، نو معلومه سوه چي که تر تیمم کولو وروسته لمونځ وسي نو تیمم به طهارت شمارل کیږي، کنې طهارت به نه شمارل کیږي، نو ځکه موږ وایو چي که ښځه تیمم وکړي او بیا لمونځ هم وکړي، نو په دغه صورت کي به د عدت او د رجعت د حق ختمېدلو حکم کیږي، نه تر هغه مخکي.

**والأحكام الثابتة إلخ**: په دې سره امام محمد رَحِمَهُ الله ته جواب ورکوي، هغه په خپل دلیل کي دا خبره وکړه چي کوم احکام په غسل سره ثابتیږي هغه ټوله په تیمم سره هم ثابتیږي، نو د هغه په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي په تیمم سره د دغه احکامو ثبوت د لمانځه د جواز د ضرورت په وجه دی، ځکه چي قرآن لوستل د لمانځه رکن دی او مسجد د لمانځه مکان دی او سجدهٔ تلاوت د قرائت له توابعو څخه ده او د قرآن مسه کولو ته هم کله نا کله په لمانځه کي ضرورت پیښیږي (یعني په هغه صورت کي کله چي تر مَا يَجُوزُ بِهِ الصَّلَاة قرائت کولو مخکي د لمونځ گزار څخه سورت هېر سي نو په داسي

صورت کې خلمخا د قرآن مسه کولو ضرورت پېښېږي)، نو دا ټوله شیان دلمانځه د ضرورت په وجه په تیمم سره جائز دي. لهذا أصلاً تیمم دلمانځه داداء کولو د ضرورت په وجه مُطهر جوړ سوی دی (یعني تیمم د لمانځه په وجه مُطهّر [پاکونکی] ګرځول سوی دی). نو ځکه موږ وایو چي عدت او رجعت به هغه وخت ختمیږي کله چي ښځه لمونځ وکړي، کنې نه به ختمیږي.

ثم قیل إلخ: د شیخینو مسلک اوس تېر سو چي د هغو په نیز په لمونځ کولو سره عدت او رجعت ختمیږي، نو اوس پوښتنه دا ده چي د لمانځه په شروع کېدلو سره عدت او رجعت ختمیږي او که د لمانځه تر ختمېدلو وروسته دا شیان ختمیږي، نو په دې هکله دوه قولونه دي: ①... یو قول دا دی چي محض د لمانځه په شروع کېدلو سره عدت او رجعت ختمیږي، ②... لېکن معتبر او معتمد قول دا دی چي تر لمانځه وروسته عدت او رجعت ختمیږي (یعني کله چي لمونځ ختم سي او ښځه د لمانځه څخه فارغه سي)؛ ځکه چي په تیمم سره د لمانځه د جواز حکم تر لمانځه وروسته ثابتیږي، نو ځکه به تر لمانځه وروسته عدت او رجعت منقطع کیږي، نه محض د لمانځه په شروع کېدلو سره.

## د مطلقهٔ رجعیه ښځي د طهر په غسل کي د بدن د څه حصې هېرېدلو بیان

وَإِذَا اغْتَسَلَتْ وَنَسِيَتْ شَيْئًا مِنْ بَدَنِهَا لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ او کله چي ښځه غسل وکړي او د خپل بدن یوه حصه څني هېره سي [او] هغه ته اوبه نه ورسیږي فَإِنْ كَانَ عُضْوًا فَمَا فَوْقَهُ نو که هغه حصه یو اندام وي یا تر یوه اندام زیاته وي لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ نو رجعت نه ختمیږي وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ او که هغه تر یوه اندام کمه وي اِنْقَطَعَتْ نو رجعت ختمیږي قَالَ ﷺ: وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ فِي الْعُضْوِ الْكَامِلِ: أَنْ لَا تَبْقَى الرَّجْعَةُ او په پوره اندام کي قیاس دا دی: چي رجعت پاته نه سي لِأَنَّهَا غَسَلَتِ الْأَكْثَرَ ځکه چي [دلته] ښځي [د بدن] اکثره حصه پرېولې ده وَالْقِيَاسُ فِيمَا دُونَ الْعُضْوِ: أَنْ تَبْقَى او له یوه اندام څخه په کم کي [بیا] قیاس دا دی: چي [رجعت] پاته سي لِأَنَّ حُكْمَ الْجَنَابَةِ وَالْحَيْضِ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه چي حکم د جنابت او حیض نه متجزي کیږي [یعني د پاکی او ناپاکی حکم حصه حصه اوجزء جزء نه سي کېدای] وَوَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ وَهُوَ الْفَرْقُ او د استحسان دلیل او همدا [د قیاس او د استحسان په مېنځ کي] فرق هم دی، دا دی أَنَّ مَا دُونَ الْعُضْوِ يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْجَفَافُ لِقِلَّتِهِ چي له یوه اندام څخه کمي حصې ته د هغې د کموالي [او لږوالي] په وجه ډېر ژر

وچوالي رسیږي فَلَا يُتَيَقَّنُ بِعَدَمِ وُصُوْلِ الْمَاءِ إِلَيْهِ لهذا هغې ته د اوبو نه رسېدلو یقین نه سي کېدای فَقُلْنَا بِأَنَّهُ تَنْقَطِعُ الرَّجْعَةُ نو ځکه موږ وویل چي رجعت ختمیږي وَلَا يَحِلُّ لَهَا التَّزَوُّجُ او د ښځي لپاره اد دویم خاوند سره انکاح کول روا نه دي اهم د کامل اندام د هېرېدلو په صورت کي او هم له یوه اندام څخه د کمي حصې د هېرېدلو په صورت کي ا أَخْذًا بِالِاحْتِيَاطِ فِيهِمَا په احتیاط باندي په عمل کولو سره په دواړو [صورتونو] کي بِخِلَافِ الْعُضْوِ الْكَامِلِ لِأَنَّهُ لَا يَتَسَارَعُ إِلَيْهِ الْجَفَافُ په خلاف د پوره اندام. ځکه چي هغه ته ژر وچوالی نه رسیږي وَلَا يُغْفَلُ عَنْهُ عَادَةً او په عامه توګه له هغه څخه غفلت نه کیږي فَافْتَرَقَا نو دواړه سره جلا سول ایعني په کامل اندام او ناقص اندام کي فرق راغلی ا وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ: أَنَّ تَرْكَ الْمَضْمَضَةِ وَالِاسْتِنْشَاقِ كَتَرْكِ عُضْوٍ كَامِلٍ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چي مضمضه او استنشاق پرېښوول [په حکم کي] د پوره اندام د پرېښوولو په څېر دي وَعَنْهُ وَهُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ عَلَيْهِ: بِمَنْزِلَةِ مَا دُوْنَ الْعُضْوِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دویم روایت چي هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله قول هم دی. دا دی: چي [مضمضه او استنشاق] له یوه اندام څخه د کم په مرتبه کي دي لِأَنَّ فِي فَرْضِيَّتِهِ اِخْتِلَافًا ځکه چي د دوی په فرضیت کي اختلاف دی بِخِلَافِ غَيْرِهِ مِنَ الْأَعْضَاءِ په خلاف د نورو اندامونو.

**اللغات:** ﴿يَتَسَارَعُ﴾ د تفاعل مضارع ده: تیزي کول. ژر رسېدل. ﴿جَفَاف﴾ مصدر دی. له ضرب او سمع دواړو بابونو څخه راځي: وچېدل (وچوالی). ﴿مَضْمَضَة﴾ د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر دی: په خوله اوبه رغړول (چي په عامه اصطلاح کي "خوله پرېولل" ورته وايي). ﴿اِسْتِنْشَاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پزي ته اوبه کشول. په پزه کي اوبه اچول (چي په عامه اصطلاح کي "پزه پرېولل" ورته وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مطلقه رجعیه ښځي وینې په دریم حیض کي تر لسو ورځو مخکي بندي سي او هغه غسل وکړي لېکن په غسل کي د بدن څه حصه څني هېره سي او وچه پاته سي، نو کومه حصه چي د له ښځي څخه هېره سوې وي که هغه یو کامل (پوره) اندام یا تر اندام زیات وي، نو بیا د ښځي غسل نه صحیح کیږي. لهذا د خاوند د رجعت حق هم نه ختمیږي. لېکن که هغه حصه تر یوه اندام کمه وي، نو هغه لره هیڅ اعتبار نسته غسل هم صحیح کیږي او د رجعت حق هم ختمیږي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي دا د استحسان تقاضا ده. او په کامل اندام کي د قیاس

تقاضا دا ده چي رجعت ختم سي، یعني که د غسل په دوران کي یو کامل اندام پاته سي. نو د قیاس تقاضا دا ده چي غسل پوره او ثابت سي او د رجعت او عدت معامله ختمه سي؛ د قیاس دلیل دا دی چي که څه هم یو کامل اندام پاته سوی دی لېکن له هغه څخه بغیر ښځي نور ټوله بدن پرېولی دی. او ټوله بدن تر کامل اندام ډېر زیات دی، او قاعده دا ده چي لِلأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُل. نو په دې وجه به رجعت ختمیږي. صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چي دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قیاس دی. او د امام محمد رَحِمَهُ الله قیاس دا دی چي محل د قیاس مَا دُوْنَ العُضْو دی، یعني که له یوه اندام څخه کمه حصه په غسل کي پاته سي، نو هم غسل نه صحیح کیږي، ځکه په دې صورت کي هم حدث (ناپاکي) نه ختمیږي، ځکه چي په پاکي او ناپاکي کي تجزی او تقسیم نه سي کېدای سي (یعني داسي نه سي کېدای چي د یوه اندام څه حصه دي له حیض او جنابت څخه پاکه وګرځي او بله حصه دي ناپاکه پاته سي، لهذا حدث [ناپاکي] به پاته وي) او تر څو چي حدث پاته وي، تر هغه وخته پوري غسل نه صحیح کیږي، او کله چي غسل نه صحیح کیږي. نو ښکاره خبره ده چي رجعت او عدت به هم نه ختمیږي.

**ووجه الاستحسان:** د استحسان دلیل دا دی چي تر یوه اندام کمه حصه ډېره لږ او معمولي غوندي وي، نو کېدای سي چي پر هغه حصې به اوبه تیري سوي وي لېکن هغه حصه به د خپل کموالي (او لږ والي) په وجه بیرته ژر وچه سوې وي، او داسي معمولي حصې ته د انسان هیڅ توجه هم نه کیږي. بلکي انسان دا ګومان کوي چي دا لږ حصه به خامخا پرېول سوې وي. لهذا احتیاطاً به دلته دا حکم کیږي چي تر یوه اندام کمي حصې ته اوبه رسیدلي دي، نو ځکه به رجعت او عدت ختمیږي. لېکن که پوره اندام وچ پاته سوی وي، نو دا ګومان نه سي کېدای چي پر ټوله اندام دي اوبه تیري سوي وي او بیرته دي هغه وچ سوی وي. او په عامه توګه په کامل اندام کي غفلت هم نه کیږي یعني کامل اندام ته د انسان توجه کیږي. نو غالب ګومان همدغه دی چي دغه کامل اندام له شروع څخه وچ پاته سوی دی. نو ځکه به د کامل اندام پاتېدلو په صورت کي رجعت او عدت نه ختمیږي.

او څرنګه چي په دواړو صورتونو کي دا خطره هم سته چي رجعت به ختم سوی نه وي. نو ځکه په دغه دواړو صورتونو کي احتیاطاً د ښځي لپاره د بل خاوند سره نکاح کول صحیح نه دي.

**وعن أبي یوسف إلخ:** په دې عبارت سره دا راښیي چي که له ښځي څخه د غسل په وخت کي د خولې یا د پزې پرېولل (مضمضه او استنشاق) هېر سي، نو د هغې د غسل څه حکم دی؟ په دې سلسله کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي: ①... اول روایت د هشام دی، او هغه دا دی چي

مضمضه او استنشاق پرېښوول هم د کامل اندام د پرېښوولو په شان دي، يعني قياساً په دې صورت کي هم د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز رجعت ختميږي د مخکنۍ قاعدې په وجه (يعني د لِلْأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ د قاعدې په وجه)، ليکن استحساناً رجعت نه ختميږي. ②... او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت امام کرخي نقل کړی دی، او هغه دا دی چي مضمضه او استنشاق پرېښوول هم د مَا دُوْنَ الْعُضْو د پرېښوولو په درجه کي دی (يعني داسي دي لکه تر يوه اندام چي کمه حصه پرېښوول سوې وي)، ځکه چي د دې دواړو په فرضيت کي اختلاف دی، ځکه د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله په نيز مضمضه او استنشاق فرض نه دي، بلکي سنت دي، نو د دغه اختلاف په وجه دا دواړه مَا دُوْنَ الْعُضْو په حکم کي دی، نو ځکه به د مضمضه او استنشاق د هېرېدلو په صورت کي هم غسل پوره کيږي او د رجعت ختمېدلو حکم به کيږي.

## د جماع د انکار په صورت کي حاملې ښځي ته د خاوند د رجوع کولو بيان

وَمَنْ طَلَّقَ اِمْرَأَتَهُ وَهِيَ حَامِلٌ أَوْ وَلَدَتْ مِنْهُ او کوم خاوند چي خپلي ښځي ته طلاق ورکړي په داسي حال کي چي ښځه حامله وي يا يې له خاوند څخه کوچنی پيدا سوی وي وَقَالَ: لَمْ أُجَامِعْهَا او [بيا] هغه ووايي: چي ما د دې ښځي سره جماع نه ده کړې فَلَهُ الرَّجْعَةُ نو د هغه لپاره د رجعت حق سته لِأَنَّ الْحَبَلَ مَتَى ظَهَرَ فِي مُدَّةٍ يُتَصَوَّرُ أَنْ يَكُونَ مِنْهُ ځکه کله چي حمل په داسي مودت کي ښکاره سي چي [د هغه په هکله] دا تصور کېدای سي چي دا حمل به له خاوند څخه وي جُعِلَ مِنْهُ نو هغه به د خاوند [حمل] ګرځول کيږي لِقَوْلِهِ عليه السلام ❶: اَلْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي بچی د [صاحب] فراش لپاره دی وَذٰلِكَ دَلِيلُ الْوَطْءِ مِنْهُ او دا له خاوند څخه د وطي دليل دی وَكَذَا إِذَا ثَبَتَ نَسَبُ الْوَلَدِ مِنْهُ او همدارنګه کله چي د خاوند سره د کوچني نسب ثابت سو جُعِلَ وَاطِئًا نو خاوند وطي کونکی وګرځېدی وَإِذَا ثَبَتَ الْوَطْءُ او کله چي وطي [جماع] ثابته سوه تَأَكَّدَ الْمِلْكُ نو ملکيت مؤکد سو وَالطَّلَاقُ فِي مِلْكٍ مُتَأَكِّدٍ يُعَقِّبُ الرَّجْعَةَ او په مؤکد ملکيت کي طلاق [تر ځان] وروسته رجعت ثابتوي وَيَبْطُلُ زَعْمُهُ بِتَكْذِيبِ الشَّرْعِ او د شريعت په تکذيب سره د خاوند ګومان باطليږي أَلَا

---

❶ تخريج: أخرجه الائمة الستة كلهم فی كتبهم، البخاری فی كتاب الفرائض، باب الولد للفراش حديث رقم: ۶۷۵۰، ومسلم فی كتاب الرضاع حديث رقم: ۳۸، وابو داؤد فی كتاب الطلاق حديث رقم: ۲۲۷۴.

تَرَى أَنَّهُ يَثْبُتُ بِهٰذَا الْوَطْءِ الْإِحْصَانُ آيا ته نه ګورې! چې په دغه وطي سره إحصان ثابتيږي فَلَأَنْ تَثْبُتَ بِهِ الرَّجْعَةُ أَوْلٰى نو په دې سره به رجعت په طريقه اولیٰ سره ثابتيږي وَتَأْوِيْلُ مَسْأَلَةِ الْوِلَادَةِ: أَنْ تَلِدَ قَبْلَ الطَّلَاقِ او [په متن کې] د ولادت د مسئلې تأويل دا دی: چې ښځه تر طلاق مخکې کوچنی وزېږوي [يعني د أَوْ وَلَدَتْ مِنْهُ مطلب دا دی چې د کوچني پيدا کېدل تر طلاق مخکې وي] لِأَنَّهَا لَوْ وَلَدَتْ بَعْدَهُ ځکه که چيرې دا ښځه تر طلاق وروسته کوچنی وزېږوي تَنْقَضِي الْعِدَّةُ بِالْوِلَادَةِ نو په ولادت [زېږولو] سره به عدت پوره سي فَلَا تُتَصَوَّرُ الرَّجْعَةُ نو د رجعت هيڅ تصور به کېدای نه سي [ځکه چې تر عدت پوره کېدلو وروسته د رجعت هيڅ امکان نسته].

**اللغات:** ﴿تَأَكَّدَ﴾ د تفعّل ماضي ده: مؤکّد کېدل، مضبوطېدل، ﴿زَعْم﴾ ګومان، خيال.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي خپلې ښځې ته په داسې حالت کې طلاق ورکړي چې هغه حامله وي يا د کوچني له پيدايښت (زېږولو) څخه وروسته طلاق ورکړي او بيا ووايي: چې ما د دې ښځې سره جماع نه ده کړې (يعني د جماع انکار وکړي)، نو تر دغه انکار وروسته هم خاوند ته د رجعت حق حاصل دی؛ دليل دا دی چې په اول صورت کې (يعني د حمل په صورت کې) ښځه د خپل حمل په وجه تر طلاق وروسته او د کوچني تر پيدايښت (وضعُ الحمل) مخکې د خاوند په عدت کې ده، او د عدت په وخت کې ښځې ته رجوع کول صحيح دي، او په دويم صورت کې (يعني د کوچني د پيدايښت په صورت کې) ښځې د خاوند تر طلاق مخکې د هغه په نکاح کې کوچنی زېږولی دی، لهذا تر انکار وروسته به هم د هغه لپاره د رجعت کولو حق حاصل وي، ځکه کله چې ښځه په دومره مودت کې کوچنی وزېږوي چې په هغه مودت کې کوچنی د خاوند حمل شمارل ممکن وي نو هغه کوچنی به د خاوند حمل شمارل کيږي (او هغه مودت شپږ مياشتې دی يعني که تر طلاق وروسته په شپږو مياشتو کې دننه ښځه کوچنی وزېږوي نو هغه به د خاوند (طلاق ورکونکي) بچی شمارل کيږي)، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې د ښځې کوچنی د صاحبُ الفراش حمل شمارل کيږي، او څرنګه چې دغه ښځه د کوچني (حمل) تر زېږولو مخکې د خپل خاوند ښځه ده نو ځکه به دا کوچنی هم د خاوند وي، او کله چې کوچنی د خاوند دی نو خاوند به واطي (وطي کونکی) ګرځول کيږي (چې د هغې سره خاوند وطي کړي دي او دا بچی د خاوند حمل دی)، او د وطي د ثابتېدلو په صورت کې پر دغه ښځې د خاوند ملکيت مؤکد کيږي او ښځه مدخول بها شمارل کيږي، او په مؤکد ملکيت کې تر طلاق وروسته رجعت ثابتيږي، نو ځکه به دلته د خاوند لپاره رجعت کول صحيح وي، پاتې سوه د خاوند دا ګومان او انکار چې "ما د دې ښځې سره جماع نه ده کړې"، نو هغه لره هيڅ اعتبار نسته. ځکه چې

دلته د خاوند د انکار په مقابله کي د شريعت اقرار سته او شريعت په دلالةُ الحال سره د کوچني نسب د دغه خاوند سره ثابت کړی دی، او د شريعت اقرار د خاوند تر انکار ډېر قوي دی. نو ځکه به د شريعت اقرار د خاوند پر انکار غالب وي، او د خاوند انکار لره به هيڅ اعتبار نه وي.

**ألا يرىٰ إلخ**: صاحب د کتاب څه مخکي دا خبره وکړه چي په مؤکد ملکيت کي تر طلاق وروسته رجعت ثابتيږي. دلته د هغه خبري نور وضاحت کوي فرمايي چي د خاوند په دغه وطي سره (يعني کله چي ښځه حامله وي يا يې کوچنی زېږولی وي او خاوند له وطي څخه انکار وکړي نو په دغه حمل او کوچني سره) إحصان ثابتيږي. لهذا کله چي په دې سره إحصانَ ثابتيږي نو رجعت خو به په طريقه اولیٰ په دې سره ثابتيږي (ځکه چي إحصان د عقوبت په وجوب کي مؤثر دی لېکن رجعت د عقوبت د وجوب سره هيڅ تعلق نه لري، نو ځکه به په دغه حمل او کوچني سره په درجه اولیٰ رجعت ثابتيږي). (عنايه، بنايه ج: ۵، ص: ۲۴۲)

**وتأويل مسألة إلخ**: په متن کي ذکر سوه: أَوْ وَلَدَتْ مِنْهُ. صاحب د هدايې فرمايي چي د دغه جملې مطلب دا دی چي ښځه تر طلاق مخکي د خاوند په نکاح کي کوچنی وزېږوي او وروسته خاوند طلاق ورکړي (نو په دې صورت کي خاوند رجعت کولای سي)، لېکن که ښځه تر طلاق وروسته کوچنی وزېږوي نو د کوچني په زېږولو سره د ښځي عدت پوره کيږي (ځکه چي د حاملې عدت وضعُ الحمل دی) لهذا په دې صورت کي بالکل د رجعت امکان ختميږي. نو ځکه به په دغه جمله کي د رجعت د إمکان لپاره دا تأويل کيږي چي له دې څخه تر طلاق مخکي د کوچني زېږول مراد دي.

## تر خلوت وروسته د جماع په انکار سره د رجوع ساقطېدلو بيان

فَإِنْ خَلَا بِهَا وَأَغْلَقَ بَابًا أَوْ أَرْخٰى سِتْرًا او که [خاوند] د ښځي سره خلوت وکړي او دروازه بنده کړي يا پرده وځړوي وَقَالَ: لَمْ أُجَامِعْهَا او [بيا] ووايي: چي ما د هغې سره جماع نه ده کړې ثُمَّ طَلَّقَهَا بيا هغې ته طلاق ورکړي لَمْ يَمْلِكِ الرَّجْعَةَ نو [په دې صورت کي خاوند] د رجعت مالک نه ګرځي لِأَنَّ تَأَكُّدَ الْمِلْكِ بِالْوَطْءِ ځکه چي د ملکيت مؤکد کېدل په وطي سره دي وَقَدْ أَقَرَّ بِعَدَمِهِ حال دا چي خاوند د وطي نه کولو اقرار کړی دی فَيُصَدَّقُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ نو به د هغه د ذات په حق کي [د هغه د اقرار] تصديق کيږي وَالرَّجْعَةُ حَقُّهُ او رجعت د هغه حق دی وَلَمْ يَصِرْ مُكَذَّبًا شَرْعًا او شرعاً هغه درواغجن نه دی ګڼل سوی بِخِلَافِ الْمَهْرِ لِأَنَّ تَأَكُّدَ الْمَهْرِ الْمُسَمّٰى يَبْتَنِيْ عَلٰى تَسْلِيْمِ الْمُبْدَلِ په خلاف د مهر. ځکه چي د متعين [ټاکلي] مهر مؤکد کېدل د مبدل پر تسليمولو مبني دي لَا عَلَى الْقَبْضِ نه د مبدل پر قبضه

کولو بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت [کوم چې په تېر عبارت کې بیان سو. یعني کله چې ښځه حامله وي یا یې له خاوند څخه کوچنی پیدا سوی وي] فَإِنْ رَاجَعَهَا بیا که [خاوند] ښځې ته رجعت وکړي مَعْنَاهُ: بَعْدَمَا خَلَا بِهَا وَقَالَ لَمْ أُجَامِعْهَا یعني وروسته تر دې چې د ښځې سره خلوت وکړي او ووایي چې ما دهغې سره جماع نه ده کړې ده ثُمَّ جَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ بِيَوْمٍ بیا ښځه له دوو کالو څخه په یوه ورځ کم کوچنی راوړي صَحَّتْ تِلْكَ الرَّجْعَةُ نو دغه رجعت صحیح دی لِأَنَّهُ ثَبَتَ النَّسَبُ مِنْهُ ځکه چې نسب د خاوند سره ثابت سو إِذْ هِيَ لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځکه چې دې ښځې د عدت تېرېدلو اقرار نه دی کړی وَالْوَلَدُ يَبْقَى فِي الْبَطْنِ هٰذِهِ الْمُدَّةَ او تر دغه مودت پورې [یعني تر دوو کالو پورې] کوچنی په نس کې پاتېدای سي فَأُنْزِلَ وَاطِئًا قَبْلَ الطَّلَاقِ دُونَ مَا بَعْدَهُ نو ځکه به [خاوند] تر طلاق مخکې وطي کونکی ګرځول کیږي، نه تر طلاق وروسته لِأَنَّ عَلَى اعْتِبَارِ الثَّانِي يَزُولُ الْمِلْكُ بِنَفْسِ الطَّلَاقِ ځکه چې پر دویم اعتبار [یعني چې خاوند تر طلاق وروسته واطئ وګرځول سي نو] به په نفس طلاق سره ملکیت ختمیږي لِعَدَمِ الْوَطْءِ قَبْلَهُ ځکه چې [په دې صورت کې] به تر طلاق مخکې وطي نه وي [نو ښځه به غیرِ مدخول بها وي او په طلاق سره به بائنه وګرځي] فَيَحْرُمُ الْوَطْءُ نو [د هغې سره] وطي کول به حرام وي وَالْمُسْلِمُ لَا يَفْعَلُ الْحَرَامَ او مسلمان حرام کار نه کوي.

**اللغات:** ﴿مُكَذِّب﴾ د تفعیل اسمِ مفعول دی: دروغجن ګڼل سوی. كَذَّبَ يُكَذِّبُ تَكْذِيبًا: دروغجن ګڼل. تکذیب کول (دروغجن کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که خاوند د خپلې ښځې سره خلوت وکړي او د خونې (کمرې) دروازه بنده کړي یا پردې وځړوي، وروسته ووایي چې "ما د ښځې سره جماع نه ده کړې" او بیا هغې ته طلاق ورکړي. نو په دې صورت کې خاوند ته د رجعت حق نسته؛ دلیل دا دی چې ملکِ نکاح په وطي سره مؤکد کیږي، حال دا چې دلته خاوند د وطي نه کولو اقرار کړی دی، نو د خاوند په حق کې به د هغه د اقرار تصدیق کیږي. او رجعت د خاوند حق دی، لهذا د رجعت د حق په باطلولو کې به د هغه قول معتبر وي (او بل دلیل دا چې غیرِ مدخول بها ښځه په طلاق سره بائنه ګرځي. او په بائنه ښځه کې خاوند ته د رجعت هیڅ حق نه حاصلیږي. لهذا په دغه صورت کې به هم خاوند ته د رجعت حق نه وي)

**ولم يصر مكذبا إلخ:** په دې سره ديو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چې د شريعت له طرفه هم د دغه سړي (خاوند) تکذيب سوی دی، ځکه چې شريعت پر دغه سړي کامل مهرِ مسمیٰ واجب کړی دی، او کامل مهر د طلاق بعد الدخول په صورت کي واجبيږي، نه د طلاق قبل الدخول په صورت کي، نو پر هغه د کامل مهر واجبېدل د دې خبري دليل دی چې په شريعت کي د هغه دا قول "ما جماع نه ده کړې" معتبر نه دی بلکي شريعت يې تکذيب کړی دی، لهذا کله چې هغه په خپل دغه قول کي شرعاً دروغجن دی نو ګواکي تر جماع وروسته طلاق واقع سوی دی، او تر جماع وروسته د طلاق واقع کېدلو په صورت کي د رجعت حق پاتيږي، لهذا په دغه صورت کي هم د هغه لپاره د رجعت حق پاتېدل پکار دي.

په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چې د مهرِ مسمیٰ مؤکد کېدل د مبدل يعني د بضع پر سپارلو موقوف دي، نه پر قبضه (وطي) کولو. او په خلوت سره د بضع سپارل ثابت سو، لهذا په خلوت سره د مهرِ مسمیٰ مؤکد کېدل د دغه سړي پر واطي کېدلو دلالت نه کوي، نو ثابته سوه چې شريعت د هغه د دې قول چې "ما جماع نه ده کړې" تکذيب نه دی کړی (بلکي شريعت د خلوت پر بناء پر هغه کامل مهرِ مسمیٰ واجب کړی دی).

د دې په خلاف په مخکني صورت کي د نسب د ثبوت معامله ده، او نسب له وطي شخه بغير نه ثابتيږي، نو ځکه به هلته شرعاً د خاوند د دغه خبري تکذيب کيږي چې "ما جماع نه ده کړې"، کنې حمل به له وطي شخه بغير ثابت سي کوم چې صحيح نه دی، او په دې کي نور هم ډيري خرابياني دي.

**فإن راجعها إلخ:** د دې حاصل دا دی که تر خلوت وروسته خاوند ووايي چې "ما د ښځي سره جماع نه ده کړې" او بيا ښځي ته طلاق ورکړي او تر هغه وروسته رجعت هم وکړي او بيا ښځه له دوو کالو شخه په يوه ورځ کم کوچنی وزېږوي، نو دا رجعت هم صحيح کيږي او د کوچني نسب هم د خاوند سره ثابتيږي؛ د دوو کالو اعتبار به د طلاق له ورځي شخه کيږي، نه د رجعت له ورځي شخه، د رجعت د صحيح کېدلو دليل دا دی چې د دغه کوچني نسب د خاوند سره ثابتيږي، نه د بل چا سره، ځکه چې ښځي د عدت تېرېدلو اقرار نه دي کړی، او (کله نا کله) کوچنی د مور په نس کي دوه کاله هم پاتيږي، لهذا د کوچني نسب د دې سړي سره ثابتيږي، او د نسب ثابتېدل د دې خبري دليل دی چې دغه سړی د خپلي ښځي سره (تر طلاق مخکي) جماع کړې ده. (لهذا دا ښځه مدخوله بها سوه، نو ځکه به هغې ته د خاوند رجعت صحيح کيږي)

دلته که څه هم دوه احتماله سته، يعني دا احتمال هم سته چې طلاق به تر وطي وروسته وي (يعني خاوند به تر طلاق وروسته جماع کړې وي) او دا احتمال هم سته چې طلاق به تر وطي مخکي

وي، خو موږ دا پر وطي قبل الطّلاق حمل کوو، ځکه که دا پر وطي بعد الطلاق حمل کړی سي نو دا وطي به حرام وي، ځکه کله چي دلته تر طلاق مخکي وطي نه وي سوي نو هغه ښځه به غيرِ مدخول بها وي او په نفس طلاق سره به بېله عدّته بائنه وګرځي او تر هغه وروسته به وطي حرام وي. او مسلمان د حرام فعل ارتکاب نه کوي، نو ځکه به دا وطي پر قبل الطّلاق حمل کيږي د دې لپاره چي د مسلمان فعل پر صلاح حمل کړی سی (ځکه چي په دې هکله فقهي قاعده دا ده: اَلْأَصْلُ أَنَّ أُمُوْرَ الْمُسْلِمِيْنَ تُحْمَلُ عَلَى السَّدَادَ وَالصَّلَاحِ حَتَّى يَظْهَرَ غَيْرُهُ، چي حتى الامکان به د مسلمانانو أمور او معاملات پر سموالي او صِحت حمل کيږي).

## په طلاقِ معلق کي د رجوع کولو يو صورت

فَإِنْ قَالَ لَهَا: إِذَا وَلَدْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ او که [خاوند] خپلي ښځي ته [داسي] ووايي: کله چي ته بچی وزيږوې نو تا ته طلاق دی [يعني کله چي ستا بچی پيدا سي نو له هغه وخت څخه پر ما طلاقه يې!] فَوَلَدَتْ ثُمَّ أَتَتْ بِوَلَدٍ آخَرَ بيا ښځي بچی وزيږوی [او] بيا يې بل بچی وزيږوی [يعني تر اول کوچني شپږ مياشتي يا زيات وروسته ښځه بيا حامله سوه او بل بچی يې پيدا سو، که څه هم دوه کاله وروسته بل بچی پيدا سي] فَهِيَ رَجْعَةٌ نو دا دويم ولادت رجعت دی [يعني کله چي هم دويم بچی پيدا سي، نو خاوند ښځي ته رجوع کونکی ګرځي په دې شرط چي ښځي د عدت ختمېدلو اقرار کړی نه وي، ځکه چي په اول بچي سره پر ښځي طلاق واقع سو او عدت پر واجب سو، لېکن کله چي ښځه تر اول بچي وروسته بيا حامله سوه، نو دا د دې خبري دليل سو چي خاوند تر طلاق وروسته بيا د هغې ښځي سره په عدت کي وطي کړي دي (ځکه چي هغې د عدت ختمېدلو اقرار نه دي کړی)، او دا تاسي ته معلومه ده چي که خاوند په عدت کي وطي وکړي نو رجعت ثابتيږي، نو ځکه به د دويم بچي پيداينبت رجعت ګرځول کيږي که څه هم خاوند په ژبه سره اقرار نه وکړي ځکه چي د دويم بچي پيداينبت د رجعت قوي علامت دی. نو ځکه به خاوند هغې ته رجعت کونکی ګرځي، اوس د مصنف رَحِمَهُ الله تشريح ته ګورئ!] مَعْنَاهُ: مِنْ بَطْنٍ آخَرَ [د دويم کوچني زيږولو] مطلب دا دی: چي له بل نس [حمل] څخه وي وَهُوَ أَنْ يَكُونَ بَعْدَ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او هغه [دويم حمل] دا دی چي تر شپږ مياشتي وروسته وي وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ که څه هم تر دوو کالو زيات وي إِذَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ [په دې شرط] کله چي ښځي د عدت ختمېدلو اقرار نه وي کړی لِأَنَّهُ وَقَعَ الطَّلَاقُ عَلَيْهِ بِالْوَلَدِ الْأَوَّلِ ځکه چي [دلته] په اول بچي سره پر ښځي طلاق واقع سو وَوَجَبَتْ الْعِدَّةُ او [پر هغې] عدت واجب سو فَيَكُونُ الْوَلَدُ الثَّانِي مِنْ عَلُوْقٍ حَادِثٍ مِنْهُ فِي الْعِدَّةِ نو دويم بچی به له هغه حمل څخه وي کوم حمل چي د خاوند [په وطي سره] په

عدت کي پيدا سوی وي [يعني تر اول بچي وروسته به د دويم بچی پيدا کېدل د دې خبري دليل وي چي خاوند د دې ښځي سره په عدت کي وطي کړي دي] لِأَنَّهَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ ځکه چي ښځي د عدت ختمېدلو اقرار نه دی کړی فَيَصِيرُ مُرَاجِعًا لهذا خاوند به رجوع کونکی وګرځي.

**اللغات:** ﴿بَطْن آخَر﴾ دويم نس، مراد ځني دويم حمل دی (يعني چي د دويم وار حامله کېدلو په وجه بل بچی پيدا سي)، ﴿عُلُوْق﴾ د سمع د باب مصدر دی: په رحم کي نطفه قرار نيول. ښځه حامله کېدل (حملداره کېدل)، په وطي سره حامله کول.

**تشريح:** مسئله د ترجمې په ضمن کي تشريح سوه.

## په طلاقِ معلق کي د رجوع کولو يو بل صورت

وَإِنْ قَالَ: كُلَّمَا وَلَدْتِ وَلَدًا فَأَنْتِ طَالِقٌ او که[خاوند] ووايي: هر کله چي ته بچی زېږوې نو تا ته طلاق دی [يعني که خاوند په "كُلَّمَا" سره قسم وکړي او ووايي: چي د هر بچي د پيدا کېدلو په وخت کي ته پر ما طلاقه يې!] فَوَلَدَتْ ثَلَاثَةَ أَوْلَادٍ فِي بُطُونٍ مُخْتَلِفَةٍ بيا ښځي په بېلا بېلو نسونو [حملونو] کي دري بچيان وزېږول [يعني هر بچی يې په جلا حمل سره پيدا سو] فَالْوَلَدُ الْأَوَّلُ طَلَاقٌ وَالْوَلَدُ الثَّانِي رَجْعَةٌ وَكَذَا الثَّالِثُ نو اول بچی طلاق دی، او دويم او همدارنګه دريم بچی رجعت دی [يعني کله چي اول بچی پيدا سي، نو يو طلاقِ رجعي واقع کيږي او ښځه به عدت تېروي، او بيا چي کله دويم وار ښځه حامله سي او دويم بچی پيدا سي، نو په دويم کوچني سره رجعت ثابتيږي او بل (دويم) طلاقِ رجعي هم واقع کيږي (ځکه چي خاوند په "كُلَّمَا" سره د طلاق ورکولو قسم کړی دی)، او بيا چي کله دريم بچی پيدا سي، نو په دې سره هم رجعت ثابتيږي او دريم طلاقِ رجعي هم واقع کيږي، او په دغه دريم طلاقِ رجعي سره ښځه مغلظه ګرځي] لِأَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ بِالْأَوَّلِ وَقَعَ الطَّلَاقُ وَصَارَتْ مُعْتَدَّةً ځکه کله چي ښځي اول کوچنی راوړی نو طلاق واقع سو او ښځه عدت تېرونکې وګرځېده وَبِالثَّانِي صَارَ مُرَاجِعًا او په دويم بچي سره [خاوند] رجعت کونکی وګرځېدی لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ يُجْعَلُ الْعُلُوقُ بِوَطْءٍ حَادِثٍ فِي الْعِدَّةِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي [تر اول کوچني وروسته د ښځي] حامله کېدل به په داسي وطي سره وي کوم چي په عدت کي پېښ سوي وي وَيَقَعُ الطَّلَاقُ الثَّانِي بِوِلَادَةِ الْوَلَدِ الثَّانِي او د دويم بچي په پيدايښت سره دويم طلاق [رجعي] واقع کيږي لِأَنَّ الْيَمِينَ مَعْقُودَةٌ بِكَلِمَةِ كُلَّمَا ځکه چي قسم د "كُلَّمَا" په کلمه سره منعقد سوی دی وَوَجَبَتِ الْعِدَّةُ او عدت واجبيږي [او خاوند رجعت کونکی ګرځي] وَبِالْوَلَدِ الثَّالِثِ صَارَ مُرَاجِعًا لِمَا ذَكَرْنَا او د دريم بچي

[په پيدايښت] سره [هم خاوند] رجعت کونکی ګرځي د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی [يعني په دويم او دريم بچي دواړو سره خاوند رجعت کونکی ګرځي. دليل هغه دی کوم چې مخکې ذکر سو او هغه دا چې تر دويم او دريم کوچني وروسته د ښځې بيا حامله کېدل د دې خبرې دليل دی چې خاوند د هغې سره په عدت کې وطي کړې دي، او په عدت کې وطي د رجعت سبب دی، نو ځکه به خاوند رجعت کونکی وي] وَتَقَعُ الطَّلْقَةُ الثَّالِثَةُ بِوِلَادَةِ الثَّالِثِ او د دريم کوچني په پيدايښت سره دريم طلاق واقع کيږي وَوَجَبَتْ الْعِدَّةُ بِالْأَقْرَاءِ او عدت واجبيږي په حيضونو سره لِأَنَّهَا حَامِلٌ مِنْ ذَوَاتِ الْحَيْضِ حِيْنَ وَقَعَ الطَّلَاقُ ځکه چې د طلاق واقع کېدلو [يعني د کوچني د پيدا کېدلو] په وخت کې دا حامله ښځه له ذوات الحيض څخه ده [يعني کله چې د دغه حاملې ښځې دريم بچی پيدا سي او دريم طلاق پر واقع سي او ښځه مطلقه مغلظه وګرځي. نو بيا به ښځه خپل عدت د حيض په شمار سره تېروي، ځکه چې تر دريم کوچني وروسته هغه حيض والا وګرځېده. او د حائضې ښځې عدت په حيض سره شمارل کيږي].

**اللغات:** ﴿كُلَّمَا﴾ هر کله چې، هر وخت چې.

**تشريح:** مسئله د ترجمې په ضمن کې تشريح سوه.

## د مطلقهٔ رجعيه ښځې احکام

وَالْمُطَلَّقَةُ الرَّجْعِيَّةُ تَتَشَوَّفُ وَتَتَزَيَّنُ او مطلقه رجعيه به سينګار کوي او ښکلا به اختياروي لِأَنَّهَا حَلَالٌ لِلزَّوْجِ ځکه چې هغه د خپل خاوند لپاره حلاله ده إِذِ النِّكَاحُ قَائِمٌ بَيْنَهُمَا ځکه چې د دوی دواړو په مېنځ کې اتر اوسه] نکاح پاته ده ثُمَّ الرَّجْعَةُ مُسْتَحَبَّةٌ بيا رجعت کول مستحب دي وَالتَّزَيُّنُ حَامِلٌ عَلَيْهَا او ښکلا اختيارول پر رجعت آماده کونکی دی [يعني د ښځې سينګار او ښکلا خاوند ځان ته را جلبوي او رجعت ته يې آماده کوي] فَيَكُوْنُ مَشْرُوْعًا نو ځکه به مشروع [او روا] وي وَيُسْتَحَبُّ لِزَوْجِهَا أَنْ لَا يَدْخُلَ عَلَيْهَا حَتَّى يُؤْذِنَهَا أَوْ يُسْمِعَهَا خَفْقَ نَعْلَيْهِ او مستحب دي د مطلقه رجعيه ښځې خاوند لره چې داخل نه سي پر هغې تر دې چې له هغې څخه اجازت واخلي يا د خپلو څپليو کنبهاری په واوروي مَعْنَاهُ: إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ الْمُرَاجَعَةُ د دې مطلب دا دی: چې کله د خاوند اراده د رجعت کولو نه وي لِأَنَّهَا رُبَّمَا تَكُوْنُ مُتَجَرِّدَةً فَيَقَعُ بَصَرُهُ عَلَى مَوْضِعٍ يَصِيْرُ بِهِ مُرَاجِعًا ځکه چې کله نا کله ښځه لڅه وي نو د خاوند نظر به پر داسې ځای پرېوځي چې په هغه سره به خاوند رجعت کونکی وګرځي ثُمَّ يُطَلِّقُهَا او بيا به هغې ته طلاق ورکړي فَتَطُوْلُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَا او د ښځې عدت به [نور] اوږد سي وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَ بِهَا حَتَّى يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا او جائز نه دي خاوند لره چې مطلقه رجعيه ښځه په سفر بوځي تر دې چې د هغې پر رجعت [يو څو ک] ګواه جوړ کړي وَقَالَ زُفَرُ: لَهُ ذٰلِكَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د

خاوند لپاره دا جائز دي لِقِيَامِ النِّكَاحِ ځکه چې نکاح پاتـه ده [یعني ځکه چې تر طلاقِ رجعي وروسته نکاح باقي پاتېږي] وَلِهٰذَا لَهُ أَنْ يَغْشَاهَا عِنْدَنَا او له همدې وجهې د خاوند لپاره د هغې سره وطي کول زموږ په نیز جائز دي وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالٰى: لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ [الطلاق: ۱] او زموږ دلیل دا الله تعالیٰ دا فرمان دی: تاسو مه باسئ! دغه ښځې له خپلو کورو څخه وَلِأَنَّ تَرَاخِيَ عَمَلِ الْمُبْطِلِ لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمُرَاجَعَةِ او ځکه چې د مبطل [طلاق] د عمل مؤخر کېدل د رجعت وطرف ته د خاوند د ضرورت په وجه دي فَإِذَا لَمْ يُرَاجِعْهَا حَتَّى انْقَضَتِ الْعِدَّةُ لیکن کله چې خاوند د عدت تېرېدلو [پوره کېدلو] تر وخته پورې رجعت نه وکړی ظَهَرَ أَنَّهُ لَا حَاجَةَ لَهُ نو ښکاره سوه چې هغه ته د رجعت ضرورت نسته فَتَبَيَّنَ أَنَّ الْمُبْطِلَ عَمَلَ عَمَلَهُ مِنْ وَقْتِ وُجُودِهِ نو څرګنده سوه چې مبطل [طلاق] د خپل وجود [واقع کېدلو] له وخت څخه خپل عمل وکړی وَلِهٰذَا تُحْتَسَبُ الْأَقْرَاءُ مِنَ الْعِدَّةِ او له همدې وجهې [د طلاق تر واقع کېدلو وروسته] حیضونه له عدت څخه شمارل کیږي فَلَمْ يَمْلِكِ الزَّوْجُ الْإِخْرَاجَ نو په دې وجه به خاوند [له کور څخه د ښځې] د ایستلو مالک نه وي إِلَّا أَنْ يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا خو دا چې د هغې پر رجعت [څوک] ګواه جوړ کړي فَتَبْطُلُ الْعِدَّةُ نو [په هغه وخت کې] به عدت باطلیږي وَيَتَقَرَّرُ مِلْكُ الزَّوْجِ او د خاوند ملکیت به مؤکد کیږي وَقَوْلُهُ: حَتَّى يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا مَعْنَاهُ الِاسْتِحْبَابُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې قول: "حتى يُشْهِدَ عَلَى رَجْعَتِهَا" مطلب [د إِشْهَاد] مستحب کېدل دي [یعني پر رجعت ګواه جوړول مستحب دي] عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ لکه مخکې چې موږ د دې بیان وکړی.

**اللغات:** ﴿الْمُطَلَّقَةُ الرَّجْعِيَّةُ﴾ هغه ښځه چې طلاقِ رجعي ورکول سوی وي.

**تشریح:** په دې عبارت کې د مطلقه رجعیه ښځې او د هغې د خاوند په هکله درې مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې مطلقه رجعیه ښځې ته پکار دي چې د عدت په دوران کې دې خپل ځان ښکلی او سینګار ساتي او هر وخت دې پاکه او تیاره اوسیږي، د دې لپاره چې د خاوند زړه مائل سي او هغې ته رجعت وکړي؛ د مطلقه رجعیه په حق کې د سینګار او ښکلا د جواز دلیل دا دی چې دا ښځه د خپل خاوند لپاره حلاله ده، ځکه چې اوس هم د دواړو نکاح پاتـه ده، ځکه چې په طلاقِ رجعي سره نکاح نه ختمیږي، او بل دا چې رجعت کول هم یو مستحب او غوره کار دی، او سینګار او ښکلا خاوند په رجعت باندې آماده کوي، نو ځکه به سینګار او ښکلا مشروع او غوره کار وي.

**ویستحب لزوجها إلخ:** (۲)... دویمه مسئله د مطلقه رجعیه ښځې د خاوند په هکله ده، حاصل یې دا دی که چیرې تر طلاقِ رجعي وروسته د خاوند د رجعت کولو اراده نه وي، نو هغه ته پکار دي چې په کومه خونه (او

کمره) کي ښځه اوسيږي، هغه خوني ته بايد د ښځي له اجازت او خبر ورکولو څخه بغير داخل نه سي. بلکي له ښځي څخه بايد اجازت واخلي، يا دي د څپليو په کښهاري يا په بله طريقه سره د خپل راتګ خبر ورکړي، ځکه کېدای سي چي ښځي به په دغه حالت کي خپل ستر او عورت ښکاره کړی وي، او خاوند به ناڅاپه په شهوت سره د هغې فرج ته وګوري او رجعت به ثابت سي، حالانکي خاوند د رجعت اراده نه ده کړې، نو ځکه به بيا طلاق ورکړي او پېله څه وجهي به د دغه ښځي عدت نور اوږد سي، او دا د ښځي په حق کي ډېر نقصان دی، نو په دې وجه مخکي اطلاع ورکول او اجازت اخيستل مستحب او غوره کار دی.

ولیس له إلخ: (۳)..... دريمه مسئله هم د خاوند سره تعلق لري، حاصل د مسئلې دا دی چي تر څو خاوند خپلي ښځي ته رجعت نه وکړي او پر دې رجعت څوک ګواه جوړ نه کړي، تر هغه وخته پوري دا ښځه د خپل ځان سره په سفر نه سي بېولای، همدا د جمهورو احنافو مسلک دی، د دې په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي پر رجعت له ګواه جوړولو څخه بغير هم خاوند ښځه په سفر بېولای سي، په دې کي هيڅ حرج نسته.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي په طلاقِ رجعي کي تر عدت ختمېدلو مخکي نکاح باقي پاته وي، همدا وجه ده چي زموږ په نېز د ښځي سره وطي کول جائز دي (نو د وطي روايښت او جواز د دې خبري دليل دی چي نکاح پاته ده)، لهذا څرنګه چي منکوحه ښځه د ځان سره په سفر بېول شرعاً صحيح دي، همداسي به په دې ښځي هم سفر کول صحيح وي.

**زموږ دليل:** زموږ د جمهورو احنافو دليل دا آيت دی: وَلَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ. دا آيت د طلاقِ رجعي په سلسله کي نازل سوی دی، او ترجمه يې دا ده چي "مه باسئ! هغه ښځي چي طلاق رجعي ورکول سوی وي له خپلو کورو څخه"، نو له دې آيت څخه ثابته سوه چي د خاوند لپاره د مطلقه رجعيه ښځي ايستل جائز نه دي.

ولأن تراخي إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چي طلاق داسي شی دی کوم چي نکاح باطلوي او له منځه يې وړي، لهذا مناسب خو دا ده چي د طلاق د وجود په وخت کي فوراً نکاح باطله سي، خو د طلاق عمل په دې وجه تر عدت ختمېدلو پوري مؤخر سوی دی چي که خاوند رجعت کول وغواړي نو رجعت به کولای سي. لېکن کله چي خاوند رجعت نه وکړي او عدت ختم سو، نو دا خبره ښکاره سوه چي خاوند ته د رجعت هيڅ ضرورت نسته. او کله چي هغه ته د رجعت ضرورت نسته، نو ښکاره سوه چي د طلاق عمل له هغه وخت څخه دی په کوم وخت کي چي طلاق واقع سو (يعني کله چي عدت پوره سو او خاوند ښځي ته رجعت نه وکړی نو طلاق د خپل وقوع [واقع کېدلو] له وخت څخه عامل وګرځېدی، نه د عدت پوره کېدلو له وخت څخه)، همدا وجه

ده چي هغه حيضونه کوم چي تر عدت پوره کېدلو (ختمېدلو) مخکې تېر سوي وي (او تر طلاق وروسته راغلي وي)، هغوي له عدت څخه شمارل کيږي، او په هغوي سره عدت پوره کيږي (نو که د طلاق عمل د عدت ختمېدلو او پوره کېدلو له څخه واى، نو کوم حيضونه چي تر عدت پوره کېدلو مخکې تېر سوي دي، هغوى به له حيض څخه نه شمارل کېداى، بلکي کوم حيضونه چي تر عدت پوره کېدلو وروسته دي، هغوى به له عدت څخه شمارل کېداى، او په هغوى سره به عدت پوره کېداى، حال دا چي حکم داسي نه دى، او نه داسي ممکنه ده). لهذا کله چي د طلاق واقع کېدلو له وخت څخه نکاح ختمه سوه، نو دا ښځه به له هغه وخت څخه بائنه شمارل کيږي، او د مطلقه بائنه ښځي سره سفر کول جائز نه دي، نو همداسي به د دغه ښځي سره هم سفر کول جائز نه وي. ها! که خاوند دغه ښځي ته رجعت وکړي او پر رجعت کولو څوک گواه جوړ کړي، نو بياعدت باطليږي او پر ښځي د خاوند ملکيت مؤکد کيږي، لهذا په داسي صورت کي ښځه د ځان سره په سفر بيول بالکل صحيح او جائز دي.

**وقوله حتّٰى إلخ**: فرمايي چي په متن کي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې قول حَتّٰى يُشْهِدَ عَلٰى رَجْعَتِهَا مطلب او مفهوم دا دى چي د خاوند لپاره پر خپل رجعت گواه جوړول مستحب او مندوب دي، نه واجب، لهذا که هغه له گواه جوړلو څخه بغير ښځي ته رجعت وکړي نو هم رجعت صحيح کيږي، لکه د باب په اولو عُباراتو کي چي هم د دې بيان وسو.

## په طلاقِ رجعي سره وطي نه حراميږي

**وَالطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ لَا يُحَرِّمُ الْوَطْءَ** او طلاق رجعي وطي [جماع] نه حراموي [يعني کله چي خاوند ښځي ته طلاق رجعي ورکړي نو تر هغه وروسته د خاوند لپاره وطي جائز دي، او هر کله چي وطي ور سره وکړي نو سمدستي رجعت ثابتيږي] **وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُحَرِّمُهُ** او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [طلاقِ رجعي] وطي حراموي **لِأَنَّ الزَّوْجِيَّةَ زَائِلَةٌ لِوُجُوْدِ الْقَاطِعِ وَهُوَ الطَّلَاقُ** ځکه چي [په طلاقِ رجعي کي] زوجيت ختم سوى دى [د نکاح] د ختمونکي شي د وجود په وجه او هغه [د نکاح ختمونکى شى] طلاق دى [يعني د طلاق په وجه سره ښځه د خاوند زوجه (ماينه) نه پاتيږي، نو ځکه به تر طلاق وروسته د ښځي سره وطي کول حرام وي، هغه که هر طلاق وي] **وَلَنَا: أَنَّهَا قَائِمَةٌ** او زموږ دليل دا دى چي زوجيت پاته دى [يعني زموږ دليل دا دى چي په طلاقِ رجعي کي نکاح پاته ده، ختمه سوې نه ده] **حَتّٰى يَمْلِكَ مُرَاجَعَتَهَا مِنْ غَيْرِ رِضَاهَا** همدا وجه ده چي د ښځي له رضا څخه بغير خاوند هغې ته د رجعت کولو مالک دى [يعني په طلاقِ رجعي کي خاوند د ښځي له رضا څخه بغير هغې ته رجعت کولاى سي، نو معلومه سوه چي نکاح پاته ده، ځکه که پاته نه واى نو بيا به د ښځي رضا او گواهي ضروري واى] **لِأَنَّ**

حَقَّ الرَّجْعَةِ ثَبَتَ نَظَرًا لِلزَّوْجِ ځکه چې [په عدت کې] د رجعت حق د خاوند د شفقت [او مصلحت] په خاطر ثابت سوی دی لِيُمْكِنَهُ التَّدَارُكُ عِنْدَ اعْتِرَاضِ النَّدَمِ د دې لپاره چې د پښېمانه کېدلو په وخت کې خاوند لره [د طلاق] تدارک کول ممکن وي [يعني پر خاوند د شفقت کولو لپاره هغه ته د رجعت حق ورکول سوی دی. يعني که چيرې خاوند تر طلاق ورکولو وروسته پر خپل حرکت (طلاق ورکولو) پښېمانه سي او د شرمندګی سره مخامخ سي، نو له دې څخه د ځان ساتلو لپاره به هغه ته د رجعت لاره خلاصه وي] وَهٰذَا الْمَعْنٰى يُوْجِبُ اِسْتِبْدَادَهٗ بِهٖ او دغه معنیٰ [يعني د شفقت په خاطر د رجعت ثابتېدل] د رجعت سره د خاوند مستقل کېدل واجبوي [يعني "د شفقت په خاطر خاوند ته د رجعت حق حاصلېدل" د دې خبرې دليل دی چې خاوند د رجعت په سلسله کې مستقل دی (يعني د ښځې له رضا څخه بغير او له ګواهی څخه بغير رجعت کولای سي) کنې بيا شفقت نه ثابتيږي. نو معلومه سوه چې د ښځې له رضا څخه بغير خاوند د رجعت مالک دی. او دا د نکاح د پاتېدلو دليل هم دی] وَذٰلِكَ يُؤْذِنُ بِكَوْنِهٖ اسْتِدَامَةً لَا اِنْشَاءً، اِذِ الدَّلِيْلُ يُنَافِيْهِ او دا [په رجعت کې د خاوند مستقل کېدل] د نکاح باقي ساتلو خبر ورکوي، نه د نوي سره د نکاح کولو ، ځکه چې دليل د إنشاء منافي دی [يعني په رجعت کې د خاوند مستقل کېدل د دې خبرې علامت دی چې رجعت د مخکنۍ نکاح باقي ساتلو ته وايي. له شروع څخه د نکاح کولو ته نه وايي (لکه څرنګه چې امام شافعي فرمايي)، ځکه چې دليل (يعني د شفقت په خاطر د رجعت حق ثابتېدل) د إنشاء منافي دی يعني دا دليل د دې خبرې منافي دی چې "رجعت له شروع څخه نکاح کول" دي، ځکه که چيرې رجعت له شروع څخه نکاح کول وي نو بيا به د ښځې رضا ضروري وي او دا به هم ضروري وي چې خاوند بل څوک ګواه جوړ کړي (ځکه چې د نکاح په شروع کې دا دواړه شيان ضروري دي) لهذا شفقت به ثابت نه سي، حالانکې رجعت د شفقت په خاطر ثابت سوی دی. او دا د نکاح پاتېدلو بل دليل دی. او ثابته سوه چې په طلاق رجعي کې نکاح پاته ده. نو ځکه به طلاق رجعي وطي نه حراموي. بلکې د خاوند لپاره به وطي جائز وي] وَالْقَاطِعُ أُخِّرَ عَمَلُهٗ اِلٰى مُدَّةٍ اِجْمَاعًا او د قاطع [طلاق] عمل بالاتفاق تر يو مودت پوري مؤخر کړی سوی دی أَوْ نَظَرًا لَهٗ [او] يا پر خاوند د شفقت کولو په خاطر [د طلاق عمل مؤخر کړی سوی دی]. [په دې سره امام شافعي ته جواب ورکوي. هغه وويل چې په طلاق سره زوجيت (نکاح) ختمه سوه. نو په جواب کې فرمايي چې تر اوسه په طلاق سره نکاح نه ده ختمه سوې بلکې پر خاوند د شفقت کولو په خاطر تر عدت تېرېدلو پوري د طلاق عمل ځنډول سوی دی. او کله چې عدت تېر سي نو بيا نکاح ختميږي] عَلٰى مَا تَقَدَّمَ لکه مخکې چې ذکر سوه [چې پر خاوند د شفقت کولو په خاطر د رجعت حق ثابت سوی دی (او د طلاق عمل مؤخر سوی دی)].

**اللغات:** ﴿قَائِمَة﴾ د نصر مؤنث اسم مفعول دی: ولاړ، باقي، پاته. ﴿نَظَرًا﴾ شفقت، مصلحت (ښېګڼه).

**تشريح:** مسئله په پوره تفصيل سره د ترجمې په ضمن کې تشريح سوه.



# فَصْلٌ فِيْمَا تَحِلُّ بِهِ الْمُطَلَّقَةُ

دا فصل په (بیان د) هغو طریقو کې دی چې مطلقه ښځه حلاله په کړځي

**تشريح:** كله چې مصنف رَحِمَهُ الله د هغه صورتونو له بيان څخه فارغ سو چې په هغوی سره د طلاقِ رجعي تلافي او تدارک کېدای سي، اوس له دې ځای څخه هغه صورتونه بيانوي چې د هغوی په ذريعه له طلاقِ رجعي څخه بغير د نورو طلاقونو تدارک کېدای سي.

**يادونه:** مطلقه (طلاقه سوې) ښځه په کومو طريقو سره حلاليږي؟ د هغه خلاصه دا ده: ①... که ښځي ته يو يا دوه طلاقِ رجعي ورکول سوي وي نو ښځه فقط په رجعت سره حلاليږي، د نکاح هيڅ ضرورت نسته، ②... او که ښځي ته يو يا دوه طلاقِ بائن ورکول سوي وي نو بيا ښځي ته رجعت نه سي کولای، بلکي د هغې سره به په عدت کي دننه يا تر عدت وروسته نکاح کوي، په دې صورت کي د "حلاله" (تحليل) ضرورت نسته، ③... او که ښځي ته درې طلاقه ورکول سوي وي، نو دې ته طلاقِ مغلظ وايي، په دې کي له "حلاله" څخه بغير ښځه نه حلاليږي چې د هغه طريقه به انشاء الله په دې فصل کي بيان سي.

## د طلاقِ بائن بحث

وَإِذَا كَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا دُونَ الثَّلَاثِ او كله چې طلاقِ بائن وي [او] له درېو طلاقو څخه کم وي فَلَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا فِي الْعِدَّةِ وَبَعْدَ انْقِضَائِهَا نو خاوند ته اختيار سته چې د ښځي سره نکاح وکړي په عدت کي او د عدت له تېرېدلو څخه وروسته لِأَنَّ حِلَّ الْمَحَلِّيَّةِ بَاقٍ ځکه چې [د بَائِن دُون الثلاث په صورت کي] د محل حلال کېدل [تر اوسه] پاته دي لِأَنَّ زَوَالَهُ مُعَلَّقٌ بِالطَّلْقَةِ الثَّالِثَةِ ځکه چې د محل زوال پر دريم طلاق معلق دي فَيَنْعَدِمُ قَبْلَهُ نو تر دريم طلاق مخکي به [د محل زوال] معلوم وي [يعني كله چې د محل زائلېدل پر دريم طلاق معلق دي نو په دې وجه به تر دريم طلاق مخکي محل نه زائليږي] وَمَنْعُ الْغَيْرِ فِي الْعِدَّةِ لِاشْتِبَاهِ النَّسَبِ او په عدت کي [له خاوند څخه بغير] بل څوک [له نکاح څخه] منع کول د نسب د مشتبه کېدلو په وجه دي [يعني د عدت په دوران کي له خاوند څخه بغير د بل چا سره د ښځي د نکاح ممانعت د نسب د اشتباه په وجه دي] وَلَا اشْتِبَاهَ فِي إِطْلَاقِهِ او [د خاوند سره د نکاح] په اجازه ورکولو کي هيڅ اشتباه نسته.

**اللغات:** ﴿اِشْتِبَاه﴾ مشتبه کېدل، شکمن کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی خپلې ښځې ته يو طلاق بائن يا دوه طلاق بائن ورکړي، نو هغه ته اختيار دی، د عدت په دوران کې هم د ښځې سره نکاح کولای سي او تر عدت وروسته هم...؛ ځکه تر اوسه ښځې ته فقط دوه طلاقه ورکول سوي دي، طلاق مغلظ نه دي ورکول سوی، ځکه چې ښځه په دريم طلاق سره مغلظه ګرځي، لهذا تر څو چې ښځې ته دريم طلاق ورکول سوي نه وي، تر هغه وخته به د محل حِلّت پاته وي، او د خاوند لپاره به د هغې سره نکاح صحيح او جائز وي.

**ومنع الغير الخ:** په دې سره د يو مقدر اعتراض جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې د عدت په دوران کې نکاح کول صحيح نه دي، ځکه چې په دې آيت "وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ أَجَلَهٗ" [سورة البقرة:۲۳۵] سره د عدت په دوران کې د ښځې سره نکاح کول ممنوع دي، لهذا په عدت کې د نکاح اجازه ورکول او نکاح جائز ګرځول صحيح نه دي.

د دې اعتراض په جواب کې فرمايي چې په عدت کې د نکاح ممانعت له خاوند څخه بغير د بل سړي په حق کې دی، ځکه چې د بل چا سره په نکاح کولو کې د نسب د اشتباه او اختلاط خطره سته، او د خپل خاوند سره په نکاح کولو کې د نسب د اشتباه هيڅ خطره نسته، لهذا د عدت په دوران کې فقط له خاوند څخه بغير د بل سړي سره نکاح کول ممنوع دي لېکن د خپل خاوند سره نکاح کول جائز دي.

## د دريو طلاقونو د حُرمت بيان او د "حلاله" طريقه

وَإِنْ كَانَ الطَّلَاقُ ثَلَاثًا فِي الْحُرَّةِ أَوْ ثِنْتَيْنِ فِي الْأَمَةِ او که د آزادي ښځې په حق کې درې طلاقه وي يا د مينځې په حق کې دوه طلاقه وي لَمْ تَحِلَّ لَهٗ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ نِكَاحًا صَحِيحًا نو ښځه د اول خاوند لپاره نه حلالېږي تر دې چې هغه له اول خاوند څخه بغير د يو بل سړي سره صحيح نکاح وکړي وَيَدْخُلَ بِهَا ثُمَّ يُطَلِّقَهَا أَوْ يَمُوْتَ عَنْهَا او [بيا دا بل سړی] په هغې دخول وکړي بيا وهغې ته طلاق ورکړي يا مړ سي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهٗ تَعَالٰى: فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ [البقرة: ۲۳۰] او اصل په دې باره کې د الله تعالیٰ دا فرمان دی: او که خاوند ښځې ته دريم طلاق ورکړي نو دا ښځه د هغه لپاره نه حلالېږي تر دې چې ښځه له هغه څخه بغير د يو بل سړي سره نکاح وکړي وَالْمُرَادُ الطَّلْقَةُ الثَّالِثَةُ او له [فَإِنْ طَلَّقَهَا څخه] مراد دريم طلاق دی وَالثِّنْتَانِ فِي حَقِّ الْأَمَةِ كَالثَّلَاثِ فِي حَقِّ الْحُرَّةِ او د

مينځي په حق کي دوه طلاقه داسي دي لکه دآزادي ښځي په حق کي چي دري طلاقه دي لِأَنَّ الرِّقَّ مُنَصِّفٌ لِحِلِّ الْمَحَلِّيَّةِ عَلَى مَا عُرِفَ ځکه چي رقيت [غلامتوب] نيمونکی دی د محليت حلت لره لکه څرنګه چي [د اُصولو په کتابو کي دا خبره] پيژندل سوي ده ثُمَّ الْغَايَةُ نِكَاحُ الزَّوْجِ مُطْلَقًا بيا [د حَتّٰى تَنْكِحَ...الخ] غايت د دويم خاوند سره مطلقاً نکاح کول دي وَالزَّوْجِيَّةُ الْمُطْلَقَةُ إِنَّمَا تَثْبُتُ بِنِكَاحٍ صَحِيحٍ او مطلق زوجيت فقط په صحيح نکاح سره ثابتيږي وَشَرْطُ الدُّخُولِ ثَبَتَ بِإِشَارَةِ النَّصِّ او د دخول شرط په اشارۃُ النص سره ثابت سوی دی وَهُوَ أَنْ يُحْمَلَ النِّكَاحُ عَلَى الْوَطْءِ او هغه دا چي نکاح پر وطي حمل کړی سي حَمْلًا لِلْكَلَامِ عَلَى الْإِفَادَةِ دُونَ الْإِعَادَةِ پر إفاده باندي د کلام په حمل کولو سره نه پر إعاده باندي إِذِ الْعَقْدُ اُسْتُفِيدَ بِإِطْلَاقِ اسْمِ الزَّوْجِ ځکه چي عقد د لفظ زَوْج په تلفظ سره مستفاد سوی [حاصل کړی سوی] دی أَوْ يُزَادُ عَلَى النَّصِّ بِالْحَدِيثِ الْمَشْهُورِ يا به په حديثِ مشهور سره پر [دغه پورتني] آيت زياتوب کيږي وَهُوَ قَوْلُهُ عليه السلام [1] : لَا تَحِلُّ لِلْأَوَّلِ حَتّٰى تَذُوقَ عُسَيْلَةَ الْآخَرِ او حديثِ مشهور د نبي ﷺ دا قول دی : نه حلاليږي ښځه د اول خاوند لپاره تر دې چي د بل خاوند مزه وڅکي رُوِيَ بِرِوَايَاتٍ [دا حديث] په څو رواياتو سره نقل سوی دی وَلَا خِلَافَ لِأَحَدٍ فِيهِ سِوَى سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ * او له سعيد بن مسيب څخه بغير په دې کي بل د هيڅچا اختلاف نسته وَقَوْلُهُ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ او د سعيد بن مسيب رَحِمَهُ الله قول معتبر نه دی حَتّٰى لَوْ قَضٰى بِهِ الْقَاضِي لَا يَنْفُذُ تر دې که قاضي پر هغه فيصله وکړي نو [هم] به نه نافذيږي وَالشَّرْطُ الْإِيلَاجُ دُونَ الْإِنْزَالِ او شرط دخول کول [او وطي کول] دي نه إنزال بدل لِأَنَّهُ كَمَالٌ وَمُبَالَغَةٌ فِيهِ ځکه چي إنزال په دخول [او وطي] کي کمال او مبالغه ده وَالْكَمَالُ قَيْدٌ زَائِدٌ او کمال يو زائد [اضافي] قيد دی.

---

[1] تخريج: أخرجه الائمة الستة كلهم في كتبهم، ابو داؤد في كتاب الطلاق باب المبتوتة لا يرجع إليها زوجها حديث رقم: ٢٣٠٩، والبخاري في كتاب الطلاق حديث رقم: ٥٢٦١، ومسلم في كتاب النكاح حديث رقم:١١٥.

* أثر: د سعيد بن المسيب رَحِمَهُ الله أثر دا دی: عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ. قَالَ: أَمَّا النَّاسُ فَيَقُولُونَ حَتّٰى يُجَامِعَهَا. وَأَمَّا أَنَا فَإِنِّي أَقُولُ: إِذَا تَزَوَّجَهَا تَزْوِيجًا صَحِيحًا لَا يُرِيدُ بِذٰلِكَ إِحْلَالًا لَهَا. فَلَا بَأْسَ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا الْأَوَّلُ. (سنن سعيد بن منصور، باب المرأ تطلق ثلاثا...(الخ) ج:٢، ص:٤٩، رقم:١٩٨٩)، په دې أثر کي ذکر سوي دي چي له وطي څخه بغير هم "حلاله" جائز ده.

**اللغات:** ﴿قُرْبَان﴾ د سمع د باب مصدر دی، قَرِبَ يَقْرَبُ قُرْبًا و قُرْبَانًا و قِرْبَانًا: نږدې کېدل (نږدې راتلل)، ﴿تَصْحِيْح﴾ د تفعيل مصدر دی: صحيح کول، سمول.

**تشريح:** **مسئله**: دا ده که يو سړی خپلې آزادې ښځې ته درې طلاقه ورکړي، يا خپلې منکوحه مينځې ته دوه طلاقه ورکړي، نو دغه آزاده ښځه او مينځه هغه وخت د دې سړي لپاره حلالېږي کله چې تر عدت تېرولو وروسته د بل سړي سره نکاح وکړي او هغه سړی په دې آزادې ښځې يا مينځې دخول هم وکړي او بيا طلاق ورکړي يا تر طلاق ورکولو مخکې مړ سي، همدې ته "حلاله" وايي: د بل سړي (يعني د دويم خاوند) سره د نکاح کولو دليل دا آيت دی: فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ"، په دې آيت کې له "فَإِنْ طَلَّقَهَا" څخه مراد دريم طلاق دی، او د آيت مطلب دا دی چې: که خاوند تر دويم طلاق وروسته خپلې ښځې ته دريم طلاق هم ورکړي نو ښځه د هغه لپاره حرامېږي، او تر څو چې دا ښځه د بل سړي سره نکاح نه وکړي او طلاق نه ورکړي تر هغه وخته د اول خاوند لپاره نه حلالېږي.

**والثنتان إلخ:** د مينځې په حق کې دوه طلاقه داسې دي لکه د آزادې ښځې په حق کې چې درې طلاقه دي، يعني لکه څرنګه چې آزاده ښځه په دريو طلاقو سره مغلظه کېږي همدارنګه مينځه صرف په دوو طلاقو سره مغلظه کېږي؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې د رقيت (غلامتوب) په وجه د مينځې او غلام په حق کې نعمت هم نيم (نصف) ګرځي او عقوبت (سزا) هم نيمه ګرځي، او د بضع حلال کېدل يو ستر نعمت دی، لهذا مينځه به د آزادې ښځې په نيم طلاق سره مغلظه کېږي چې هغه يو نيم طلاق کېږي، خو څرنګه چې طلاق نه نيمايي کېږي، نو ځکه به په دوو طلاقو سره مغلظه کېږي، د الرّق مُنَصِّفُ لِحِلِّ المَحَلِيَّة همدغه مطلب دی.

**ثم الغاية إلخ:** د دې حاصل دا دی چې په پورتني آيت يعني په "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ" کې مطلق د نکاح حکم سوی دی يعني د صحيح او فاسدې نکاح هيڅ قيد پکښې نسته، او حکم چې کله مطلق ذکر سي نو له هغه څخه فرد کامل مرادېږي، او د نکاح فرد کامل صحيح نکاح ده، لهذا "حلاله" فقط په صحيح نکاح سره کول ضروري دي، په فاسدې نکاح سره "حلاله" کول صحيح نه دي.

**وشرط الدخول إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د "حلاله" لپاره فقط نکاح ضروري نه ده، بلکې له نکاح څخه وروسته د دويم خاوند دخول کول هم شرط او ضروري دي، او دا شرط که څه هم په دلالة النص سره ثابت نه دی، مګر په اشارة النص سره ثابت دی او هغه دا چې په دغه آيت کې دوه الفاظ ذکر سوي

دي؛ یو "حَتّٰی تَنۡکِحَ" او بل "زَوۡجًا". نو دلته به "تَنۡکِحَ" د وطي پر معنیٰ محمول کیږي یعنې له "تَنۡکِحَ" څخه به وطي مرادیږي، د دې لپاره چې دا آیت پر "إفاده" بلندي حمل کړی سي، ځکه چې له "زَوۡجًا غَیۡرَهٗ" څخه په خپله د نکاح معنیٰ فهمول کیږي، نو اوس که "تَنۡکِحَ" هم د نکاح پر معنیٰ محمول کړی سي، نو بیا به د نکاح "إعاده" لازم سي، او په إعاده کي هیڅ فایده نسته، نو ځکه به دا پر "إفاده" حمل کیږي او له "تَنۡکِحَ" څخه به د وطي معنیٰ مرادیږي.

أو يزاد على النص إلخ: د دې حاصل دا دی چې په "حلاله" کي د دخول شرط به له پورتني آیت څخه یا په اشارة النص سره ثابت وي، یا به پر دې آیت په حدیثِ مشهور سره اضافه او زیاتوب کیږي، او په حدیثِ مشهور سره پر کتابُ الله اضافه کول جائز دي، او حدیثِ مشهور دا حدیث دی: لَا تَحِلُّ لِلۡأَوَّلِ حَتّٰی تَذُوۡقَ عُسَیۡلَةَ الۡآخَرِ (یعني تر څو چې دا ښځه د بل خاوند مزه نه وڅکي، تر هغه وخته پوري د اول خاوند لپاره نه حلالیږي)، صاحب د هدایې فرمایي چې دا حدیث په بېلابېلو طریقو او راویانو سره نقل سوی دی او په هغه ټولو فقط په آخر کي وطي په پوره کیږي)، لهذا دا یوْ زائد قید سو، نو په دې وجه به دغه قید په "حلاله" کي شرط او ضروري نه وي.

## په "حلاله" کي د مُراهق خاوند حکم

وَالصَّبِيُّ الۡمُرَاهِقُ فِي التَّحۡلِيۡلِ كَالۡبَالِغِ او بلوغ ته نږدې هلک په "حلاله" کولو کي د بالغ په څېر دی لِوُجُوۡدِ الدُّخُوۡلِ فِيۡ نِكَاحٍ صَحِيۡحٍ په صحیح نکاح کي د دخول د موجودوالي په وجه وَهُوَ الشَّرۡطُ بِالنَّصِّ او همدا [دخول په صحیح نکاح کي] شرط دی په آیت سره وَمَالِكٌ يُخَالِفُنَا فِيۡهِ او امام مالک رَحِمَهُ الله په دې سلسله کي زموږ مخالف دی وَالۡحُجَّةُ عَلَيۡهِ مَا بَيَّنَّاهُ او د امام مالک په خلاف هغه دلیل حجت دی کوم چې موږ [مخکي] بیان کړی وَفَسَّرَهٗ فِي الۡجَامِعِ الصَّغِيۡرِ وَقَالَ: غُلَامٌ لَمۡ يَبۡلُغۡ وَمِثۡلُهٗ يُجَامِعُ او امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي د مراهق تفسیر بیان کړی دی او فرمایلي یې دي: چې هغه هلک کوم چې [تر اوسه] بالغ سوی نه وي [لېکن] د هغه په شان هلک جماع کولای سي جَامَعَ امۡرَأَةً [او که] هغه د ښځي سره جماع وکړي وَجَبَ عَلَيۡهَا الۡغُسۡلُ نو پر ښځي غسل واجبیږي وَأَحَلَّهَا عَلَى الزَّوۡجِ الۡأَوَّلِ او هغه دا ښځه د اول خاوند لپاره حلاله کوي وَمَعۡنٰى هٰذَا الۡكَلَامِ: أَنۡ تَتَحَرَّكَ آلَتُهٗ وَيَشۡتَهِيۡ او د دې کلام معنیٰ دا ده: چې د هغه ذکر ښوربښ خوري او اشتهاء لري وَإِنَّمَا وَجَبَ الۡغُسۡلُ عَلَيۡهَا لِالۡتِقَاءِ

الْخِتَانَيْنِ او پر ښځې د التقاء ختانين په وجه غسل واجبيږي وَهُوَ سَبَبٌ لِنُزُوْلِ مَائِهَا او همدا التقاء ختانين د ښځې د مني د نزول سبب دی وَالْحَاجَةِ إِلَى الْإِيْجَابِ فِي حَقِّهَا او [د غسل] واجبولو ضرورت د ښځې په حق کې دی أَمَّا لَا غُسْلَ عَلَى الصَّبِيِّ لیکن پر هلک غسل واجب نه دی وَإِنْ كَانَ يُؤْمَرُ بِهِ تَخَلُّقًا که څه هم د عادت کېدلو [روږدېدلو] لپاره به هغه ته [هم] د غسل حکم کیږي.

**اللغات:** ﴿مُرَاهِقٌ﴾ هغه هلک چې بلوغ ته نږدې وي، همداسې هلک ته "غُلَامٌ لَمْ يَبْلُغْ" وایي. ﴿يَتَحَرَّكُ﴾ د تفعّل مضارع ده: حرکت کول، ښوربښ کول. ﴿يَشْتَهِيْ﴾ د افتعال مضارع ده: اشتهاء کېدل، شهوت راتلل. ﴿إِلْتِقَاء﴾ د افتعال مصدر دی: دوه شیان سره یو ځای کېدل (لګېدل، جوختېدل). ﴿خِتَانَيْنِ﴾ تثنیه د خِتَانٌ ده: د سنت کېدلو ځای، مراد ځني فرج او ذکر دي. ﴿تَخَلُّق﴾ د تفعّل مصدر دی: مراد ځني د غسل سره عادت کېدل (اموخته کېدل) دي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړي، او بیا خاوند د "حلاله" لپاره د هغې نکاح د یو مراهق هلک سره وکړي، او هغه هلک په دې ښځې دخول وکړي او طلاق ورکړي، نو زموږ په نېز په دغه دخول سره "حلاله" ثابتيږي او دا ښځه د اول خاوند لپاره حلاليږي؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې د "حلاله" لپاره په صحیح نکاح کې فقط دخول شرط دی او هغه شرط دلته موجود دی، نو ځکه به د مُراهق "حلاله" صحیح او معتبره وي، لیکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز د مراهق "حلاله" معتبره نه ده، ځکه چې د هغه په نېز د حلاله لپاره انزال شرط دی، او په مراهق کې د انزال امکان نسته، نو ځکه به د هغه حلاله هم معتبره نه وي، لیکن د امام مالک په خلاف هغه دلیل حجت دی کوم چې مخکې بیان سو چې انزال یو زائد قید او د وطي نتیجه ده، او د حلاله لپاره زائد قید شرط نه دی بلکې فقط په دخول سره هم کار کیږي.

**وفسره إلخ:** فرمایي چې امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې د مراهق تعریف داسې کړی دی چې مراهق هغه هلک ته وایي کوم چې بلوغ ته نږدې وي او چې د هغه آله (ذکر) متحرک کیږي، او اشتهاء او رغبت لري او د جماع لذت احساسوي؛ نو که داسې هلک د یو ښځې سره جماع وکړي نو پر ښځې غسل واجبيږي او د هغه په جماع سره ښځه د اول خاوند لپاره حلاليږي.

پر ښځې د التقاء الختانين په وجه غسل واجبيږي، ځکه په کتابُ الطهارات کې دا خبره تېره سوه چې که د ښځې ختنه د نارینه د ختنه سره ولګیږي نو غسل واجبيږي (ځکه چې د ښځې مني د ننه وي، نو د هغې په حق کې التقاءُ الختانين د إنزال قائم مقام دی)، او دا غسل خصوصاً پر ښځې

واجبيږي، ځکه چې هغه بالغه ده، او د هغې د انزال پېدلو غالب گومان دی، او پر مراهق غسل نه واجبيږي، ځکه چې په مراهق کې د انزال امکان نشته، ليکن بيا به هغه ته د غسل حکم کيږي د دې لپاره چې هغه د غسل سره عادت سي او له شروع څخه په دې احکامو خبر سي.

## د "حلاله" يو څو احکام

قَالَ: وَوَطْءُ الْمَوْلٰى أَمَتَهٗ لَا يُحِلُّهَا فرمايي: او د خپلې مينځې سره د مالک وطي کول هغه نه حلالوي لِأَنَّ الْغَايَةَ نِكَاحُ الزَّوْجِ ځکه چې غايت د زَوج [دويم خاوند] نکاح ده وَإِذَا تَزَوَّجَهَا بِشَرْطِ التَّحْلِيلِ فَالنِّكَاحُ مَكْرُوهٌ او که [يو سړی] د ښځې سره د تحليل [حلاله کولو] پر شرط نکاح وکړي نو نکاح مکروه ده [او امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز] لِقَوْلِهِ ﷺ: ❶ لَعَنَ اللهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهٗ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې الله لعنت کړی دی پر حلاله کونکي او د چا لپاره چې حلاله کيږي وَهٰذَا هُوَ مَحْمَلُهٗ او همدا د دې حديث محمل دی فَإِنْ طَلَّقَهَا بَعْدَمَا وَطِئَهَا بيا که هغه تر وطي کولو وروسته دغه ښځې ته طلاق ورکړي حَلَّتْ لِلْأَوَّلِ نو دا ښځه د اول خاوند لپاره حلاله گرځي لِوُجُوْدِ الدُّخُوْلِ فِي نِكَاحٍ صَحِيْحٍ په صحيح نکاح کې د دخول د موجودوالي په وجه إِذِ النِّكَاحُ لَا يَبْطُلُ بِالشَّرْطِ ځکه چې نکاح په [فاسد] شرط سره نه باطليږي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهٗ يُفْسِدُ النِّكَاحَ ✿ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې نکاح فاسديږي لِأَنَّهٗ فِيْ مَعْنَى الْمُؤَقَّتِ فِيْهِ ځکه چې دا د هغه نکاح په معنیٰ سره ده چې په هغې کې وخت ټاکل سوي وي [يعني د تحليل پر شرط نکاح کول د نکاحِ مؤقت په معنیٰ سره ده] وَلَا يُحِلُّهَا عَلَى الْأَوَّلِ لِفَسَادِهٖ او دا [نکاح] د فاسد والي په وجه د اول خاوند لپاره ښځه نه حلالوي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهٗ يَصِحُّ النِّكَاحُ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې نکاح صحيح کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلَا يُحِلُّهَا عَلَى الْأَوَّلِ [ليکن] دا نکاح د اول خاوند لپاره ښځه نه حلالوي لِأَنَّهُ اسْتَعْجَلَ مَا أَخَّرَهُ الشَّرْعُ ځکه کوم شی چې شريعت وروسته کړی دی [شرط لگونکي

---

❶ تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب النكاح باب ما جاء في المحلل والمحلل له، حديث رقم: ١١٢٠. والنسائي في كتاب الطلاق، باب إحلال المطلقة ثلاثا حديث رقم: ٣٤٢٥.

✿ القول الراجح: هو قول أبي حنيفة أن النكاح بشرط التحليل مكروه، كما ذكر في فتح القدير (ج:٤، ص:٣٤). [القول الراجح ج:١، ص:٣٤٢]

کس] په تلوار سره د هغه طلب وکړي فَيُجَازِي بِمَنْعِ مَقْصُوْدِهِ نو بدله به ورکول کيږي د هغه د مقصود په منع کولو سره كَمَا فِي قَتْلِ الْمُوْرِثِ لکه د مُورث په قتل کولو کي چي داسي کيږي.

**اللغات:** ﴿غَايَةٌ﴾ انتهاء، آخري، ﴿تَحْلِيْل﴾ د تفعيل مصدر دی: حلالول (يعني د اول خاوند لپاره ښځه حلاله او روا ګرځول)، ﴿مُؤَقَّت﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: وخت ورکول سوی، تاکلي وخت والا، نېټه دار، ﴿إِسْتَعْجَلَ﴾ په تلوار سره ديو شي طلب کول (تلوار پکښي کول)، ژر ديو شي غوښتنه کول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که يو مينځه ديو سړي په نکاح کي وي او هغه دوه طلاقه ورکړي او له خپل نکاح څخه يې رباسي، بيا د مينځي مالک د هغې سره وطي وکړي، نو په دې وطي سره "حلاله" نه ثابتيږي، يعني په دې وطي سره دا مينځه د هغه سړي (خاوند) لپاره نه حلاليږي؛ دليل دا دی چي په مخکني آيت "حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ" کي د ښځي د حلالېدلو علت زَوْج (دويم خاوند) ګرځول سوی دی او مالک زَوْج نه دی، نو ځکه به د هغه په وطي سره حِلت نه ثابتيږي.

**وإذا تزوجها إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که يو سړی د مطلقه مغلظه ښځي سره د "حلاله" (تحليل) پر شرط نکاح وکړي، يا مثلاً مطلقه مغلظه ښځه ديو سړي سره د "حلاله" پر شرط نکاح وکړي (يعني د نکاح په وخت کي په ښکاره لفظو سره مثلاً دا شرط ولګوي چي زه ستا سره پر دې شرط نکاح کوم چي د اول خاوند لپاره حلاله سم او ته به ما ته بيرته طلاق راکوې)، نو په داسي نکاح سره خو "حلاله" ثابتيږي، لېکن داسي نکاح کول (يعني د "حلاله" پر شرط نکاح کول) مکروه دي (د امام صاحب په نېز)؛ ځکه چي په حديث کي پر "حلاله" کونکي او د چا لپاره چي "حلاله" کيږي لعنت سوی دی، او دا لعنت په هغه صورت کي دی کله چي د حلاله پر شرط نکاح وسي، نو په دې وجه حکم دا دی چي سړی او ښځه دي دواړه فقط په زړه کي د "حلاله" نيت وکړي او د نکاح په وخت کي دي د "حلاله" اظهار نه کوي د دې لپاره چي د لعنت څخه وساتل سي.

لنډه دا چي کله يو سړی يا ښځه د حلاله پر شرط نکاح وکړي او تر وطي کولو وروسته سړی او ښځه طلاق سره واخلي، نو دا وطي مُحلّل (حلاونکي) ګرځي او ښځه د اول خاوند لپاره حلاليږي، ځکه چي د حلت لپاره په صحيح نکاح کي وطي کول شرط دي او دا شرط دلته موجود دی. او پاته سو د "حلاله" (تحليل) شرط لګول، نو په هغه سره د نکاح پر صحت هيڅ اثر نه پرېوځي، ځکه مخکي ذکر سوه چي نکاح په شروطِ فاسده وو سره نه فاسديږي.

**ومن أبي يوسف إلخ:** او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت سوی دی چي د حلاله (تحليل) پر شرط نکاح فاسده ده، ځکه چي دا نکاح د نکاحِ مؤقت په معنیٰ سره ده، او نکاح مؤقت (يعني تر معلوم وخته پوري نکاح کول) فاسده نکاح ده، نو د حلاله پر شرط نکاح به هم فاسده وي، لهذا کله چي نکاح فاسده ده، نو د دې نکاح په وطي سره به ښځه هم حلاله نه ګرځي، ځکه چي د حلاله (تحليل) لپاره صحيح نکاح شرط ده، وهو لم يُوجد.

**ومن محمد إلخ:** په دې سلسله کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د حلاله (تحليل) پر شرط خو نکاح صحيح ده، ځکه چي په شروطِ فاسده وو سره نکاح نه باطليږي، لېکن په دې نکاح سره حلاله نه ثابتيږي، ځکه چي شريعت دائمي او ابدي نکاح روا کړې ده، او د دويم خاوند پر مرګ يې حلاله موقوفه کړې ده او د هغه تر مرګه پوره يې مؤخر کړې ده، لېکن د حلاله د شرط په لګولو سره دغه موقوفه او مؤخره نکاح مقدمه او مخکي ګرځي، نو ځکه به د شرط لګونکي دا شرط او عمل رد کيږي او هغه به له حلاله څخه محروميږي، لکه يو سړی چي د ژر ميراث حاصلولو لپاره خپل مورث قتل کړي نو هغه له ميراث څخه محروميږي، ځکه که څه هم هغه د ميراث مستحق دی خو د هغه استحقاق د مورث تر فطري مرګ (خدايي مرګ) وروسته دی، لېکن قتل کونکي وارث د هغه د ژر حاصلولو کوښښ وکړی او د شريعت تر ټاکلي وخت يې مقدم کړی، نو د هغه دا کوښښ به ضايع او بېکاره وي، همداسي به په دې مسئله کي هم د شرط لګونکي نکاح خو صحيح وي لېکن د حلاله (تحليل) شرط به ضايع او بېکاره وي، او حِلّت به نه په ثابتيږي.

## مسئلةُ الهدم (د "هدم" مسئله)

وَإِذَا طَلَّقَ الْحُرَّةَ تَطْلِيقَةً أَوْ تَطْلِيقَتَيْنِ او که [خاوند] آزادي ښځي ته يو يا دوه طلاقه ورکړه وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا او د هغې عدت پوره سو وَتَزَوَّجَتْ بِزَوْجٍ آخَرَ او [بيا] هغې د دويم خاوند سره نکاح وکړه ثُمَّ عَادَتْ إِلَى الزَّوْجِ الْأَوَّلِ [او بيا [بيرته] د اول خاوند وطرف ته را واپس سوه [يعني بيرته دا اول خاوند په نکاح کي راغله] عَادَتْ بِثَلَاثِ تَطْلِيقَاتٍ نو [اوس] هغه په دريو طلاقو سره را واپس سوه [يعني اوس هغه د دريو طلاقو د ملکيت سره د اول خاوند په نکاح کي راغله، مطلب دا چي خاوند اوس هم هغې ته د دريو طلاقو د ورکولو ملکيت او اختيار لري] وَيَهْدِمُ الزَّوْجُ الثَّانِي مَا دُونَ الثَّلَاثِ كَمَا يَهْدِمُ الثَّلَاثَ او دويم خاوند تر دريو طلاقو نو

کم داسي ساقطوي [له منځه وړي] لکه څرنګه چي درې طلاقونه ساقطوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَهْدِمُ مَا دُوْنَ الثَّلَاثِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دويم خاوند تر دريو طلاقونو کم نه ساقطوي لِأَنَّهُ غَايَةٌ لِلْحُرْمَةِ بِالنَّصِّ ځکه چي دويم خاوند د آيت په وجه سره د حرمت [غليظه] غايت دی فَيَكُوْنُ مُنْهِيًا نو هغه به د حرمت [غليظه] ختمونکی وي وَلَا إِنْهَاءَ لِلْحُرْمَةِ قَبْلَ الثُّبُوْتِ او تر حرمت ثابتېدلو مخکي حرمت نه سي ختم کېدای [يعني د حرمت ختمول د حرمت تر ثبوت مخکي نه سي کېدای] وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: لَعَنَ اللهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ او د شيخينو دليل د نبي کريم ﷺ دا حديث دی: لعنت کړی دی الله پر حلالونکي [حلاله کونکي] او د چا لپاره چي حلاله کيږي سَمَّاهُ مُحَلِّلًا [په دې حديث کي] نبي کريم ﷺ دويم خاوند په مُحلل [حلالونکي] سره نومولی دی وَهُوَ الْمُثْبِتُ لِلْحِلِّ او مُحلل هغه دی [يعني مُحلل هغه سړی ته وايي] چي حلالوالي ثابتوي.

**اللغات**: ﴿يَهْدِمُ﴾ د ضرب مضارع ده: نړول، ساقطول، له منځه وړل.

**تشريح: مسئله**: دا ده که يو سړی خپلي آزادي ښځي ته تر دريو طلاقو کم يعني يو، يا دوه طلاقه ورکړي او تر عدت تېرېدلو وروسته دا ښځه ديو بل سړي سره نکاح وکړي او بيا هغه بل سړی طلاق ورکړي او تر عدت تېرېدلو وروسته واپس د اول خاوند په نکاح کي راسي، نو د شيخينو په نيز اوس دغه ښځه په دريو طلاقو سره (د خاوند په نکاح کي) را واپس کيږي، يعني دغه اول خاوند به بيرته د دريو طلاقو مالک وي او تر څو چي درې طلاقه نه ورکړي تر هغه وخته به دا ښځه مُطلّقهٔ مُغلّظه نه ګرځي، ليکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي اوس به اول خاوند فقط له مخکني نکاح څخه د مَا بَقِيَ (پاته) طلاقونو مالک وي، يعني که اول خاوند په اوله نکاح کي ښځي ته دوه طلاقه ورکړي وي نو اوس به هغه ديوه طلاق مالک وي، او که مخکي هغه يو طلاق ورکړی وي نو اوس به د دوو طلاقو مالک وي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چي که څه هم دويم خاوند درې طلاقه منهدم کوي او ساقطوي ليکن مَا دُون الثّلاث نه ساقطوي، ځکه چي په دې آيت "فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ" کی د "فَلَا تَحِلُّ لَهُ" په ذريعه دويم خاوند د حُرمتِ غليظه غايت ګرځول سوی دی، او د غايت

سره يو ځای مغيا هم ختميږي، لهذا دويم خاوند به فقط د حرمتِ غليظه يعني د دريو طلاقو ساقطونکی او ختمونکی وي.

لېکن په دې مسئله کي چي خاوند تر دريو کم طلاقونه ورکړي دي، لهذا دلته حرمت غليظه ثابت نه دی. او کله چي حرمت غليظه ثابت نه دی نو هغه به څرنګه دويم خاوند ختم کړي (ځکه چي يو شی هغه وخت ختميږي، کله چي يو وار ثابت سي)، نو ځکه به ديوه يا دوو طلاقو په صورت کي اول خاوند فقط د مَابقي طلاقونو مالک وي.

**د شيخينو دليل:** دا حديث دی: "لَعَنَ اللهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ"، په دې حديث سره شيخين په دې توګه دليل نيسي چي نبي ﷺ په دې حديث کي دويم خاوند مُحلِل (حلالونکی) ګرځولی دی، او د مُحلّل مطلب دا دی چي دويم خاوند دا اول خاوند لپاره ښځه حلالوي، او په دې حديث کي دا قيد نسته چي که يو طلاق وي يا درې طلاقه وي نو بيا دويم خاوند مُحلّل دی، لهذا کله چي دا هول هيڅ قيد نسته نو په دې وجه به هغه په هر حال کي مُحلّل او حِلّت ثابتونکی وي، لهذا ښځه به هم په هر حال کي په دريو طلاقو سره اول خاوند ته را واپس کيږي يعني په هر حال کي به اول خاوند د دريو طلاقو مالک وي. (اثمار الهداية ج:۵، ص:۱۵۳)

## که مطلقهٔ مغلظه ښځه د خپل ځان پاکېدلو (حلاله کولو) دعویٰ وکړي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا او که [خاوند] ښځي ته درې طلاقه ورکړل فَقَالَتْ: قَدْ انْقَضَتْ عِدَّتِي بيا ښځي وويل: چي زما عدت پوره سو وَتَزَوَّجْتُ او [بيا] ما اد دويم خاوند سره] نکاح وکړه وَدَخَلَ بِي الزَّوْجُ وَطَلَّقَنِي او [دويم] خاوند په ما دخول وکړی او [بيا] يې طلاق راکړی وَانْقَضَتْ عِدَّتِي او زما [دويم] عدت [هم] پوره سو وَالْمُدَّةُ تَحْتَمِلُ ذٰلِكَ او مودت [هم] د دې احتمال لري جَازَ لِلزَّوْجِ أَنْ يُصَدِّقَهَا إِذَا كَانَ فِي غَالِبِ ظَنِّهِ أَنَّهَا صَادِقَةٌ نو د [اول] خاوند لپاره جائز دي چي د هغې تصديق وکړي کله چي د هغه غالب ګومان وي چي دا ښځه [په خپله دعویٰ کي] رېښتونې ده لِأَنَّهُ مُعَامَلَةٌ أَوْ أَمْرٌ دِينِيٌّ ځکه چي نکاح يو معامله ده يا يو ديني أمر دی لِتَعَلُّقِ الْحِلِّ بِهِ ځکه چي د نکاح سره حِلّت متعلق دی وَقَوْلُ الْوَاحِدِ فِيهِمَا مَقْبُولٌ او په معامله او ديني أمر کي د يوه سړي قول [هم] قبليږي وَهُوَ غَيْرُ مُسْتَنْكَرٍ إِذَا كَانَتِ الْمُدَّةُ تَحْتَمِلُهُ او د ښځي دغه دعویٰ [او خبر] د انکار قابل نه دی کله چي مودت د دې احتمال لري وَاخْتَلَفُوا فِي أَدْنٰى هٰذِهِ

المسئلة ليره دي [موده] په ادنیٰ مودت کي فقهاؤ اختلاف کړی دی وَسَنُبَيِّنُهَا فِي بَابِ الْعِدَّةِ او هغه به موږ [انشاء الله] په بابُ العدت کي بيان کړو.

**اللغات:** ﴿مُسْتَنْكِر﴾ د استفعال مصدر دی: د انکار قابل (د انکار ور). د انکار تقاضا لرونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي خپلې ښځي ته درې طلاقه ورکړل او ښځه يو څه وخت وروسته بېرته اول خاوند ته راغله او ورېته وويل چي ما ستا عدت تېر کړی. او بيا مې د بل خاوند سره نکاح وکړه هغه زما سره جماع وکړه او بيا هغه هم ما ته طلاق راکړی او اوس د هغه عدت هم پوره سو، نو که ستا زړه غواړي، راسه! بيا نکاح سره وکړو!. نو په دې صورت کي حکم دا دی چي که دغه اول خاوند ته د ښځي د رښتياوالي يقين وي چي ښځه رښتيار وايي يا يې غالب گومان وي چي هغه رښتيا وايي، او رښتيا هم دومره وخت تېر سوی وي چي دا ټوله معاملې پکښې پوره کېدای سي (چي هغه د صاحبينو په نېز ټولي ټرونيوي ۹۳ ورځي کيږي. تفصيل به د تشريح په آخر کي ذکر سي)، نو اول خاوند ته دا حق سته چي د هغې تصديق وکړي او دويم ځل نکاح ور سره وکړي: دليل دا دی چي په شرعي توګه د نکاح دوه حيثيته دي: ① ... يو دا چي نکاح يو معامله ده. ځکه چي په نکاح کي د ښځي پر بضع (شرمګاه) قبضه کيږي، نو په دې اعتبار سره نکاح معامله ده. ② دويم دا چي نکاح يو ديني أمر او عقد دی، ځکه چي د نکاح په ذريعه خاوند او ښځه يو د بل لپاره حلاليږي، او په معامله کي د شخصِ واحد (يوه کس) ګواهي هم قبليږي (هغه که ښځه وي او که نارينه وي)، همدارنګه په أمرِ ديني کي هم د يوه کس ګواهي قبليږي، نو ځکه به دلته د دغه ښځي دعویٰ او قول منل کيږي او د اول خاوند لپاره به دويم ځل د هغې سره نکاح کول صحيح او حلال وي، او خصوصاً کله چي دومره مودت تېر سوی وي چي په هغه کي دا ټوله شيان ممکن وي، نو بيا به له څه وجهي څخه بغير د دغه ښځي قول او دعویٰ نه رد کيږي. بلکي که د خاوند زړه مطمئن وي نو هغه ته پکار دي چي د دې ښځي ارمانونه پوره کړي او بيا نکاح ور سره وکړي.

**واختلفوا إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي " د ښځي د قول د منلو لپاره د هغې د طلاق او د هغې د قول او دعوې تر مينځ بايد څومره مودت فاصله وي؟ په دې باره کي د فقهاؤ مختلف أقوال دي. او دا به موږ انشاء الله په بابُ العدة کي بيان کړو": ليکن معلومه نه ده چي صاحب د هدايې ولي دغه أقول په بابُ العدة کي نه دي بيان کړي، شايد خپله وعده به ځني هېره سوي وي. خو بيا هم عربي شارحينو د دې خلاصه داسي بيان کړې ده چي:

① ... د صاحبينو په نېز دغه مودت (۹۳) ورځي دی. ② ... د امام اعظم صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پوره دوې مياشتي يعني (۶۰) ورځي دی. ③ ... د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د دغه مودت ادنیٰ مقدار (۳۲) ورځي دی (د دې مطلب دا دی چي نهه دېرش ۳۲ ورځي به د اول خاوند عدت شمارل

کېږي، او ۳۲ ورځې به د دويم خاوند عدت شمارل کېږي، او ۱۵ ورځې به د هغه طهر ور سره جمع کېږي چې په هغه کې به ښځې د دويم خاوند سره نکاح کړې وي)، ④... د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز د دې مودت ادنیٰ مقدار (۴۰) ورځې دی، ④... او د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله په نيز د دې مودت ادنیٰ مقدار (۲۹) ورځې دی. (عناية، بناية ج:۵، ص:۲۶۶)

**يادونه:** د صاحبينو په نيز ځکه دغه مُودت درو نيوي (۹۳) ورځې کيږي چې هغوی د هر خاوند د عدت ادنیٰ مودت (۳۹) ورځې شماري، په دې توګه چې د حيض ادنیٰ مودت (۳) ورځې دی، نو د دريو حيضو (۹) ورځې سوې، او د دوو حيضونو ترمينځ کم از کم (۱۵) ورځې مودت دی (يعني کم از کم هر طهر ۱۵ ورځې وي) او د دريو حيضو په مينځ کې دوه طهره راځي نو د دوو طهرو (۳۰) ورځې سوې، نهه (۹) او دېرش (۳۰) چې سره جمع کړل سي نو (۳۹) ورځې کيږي، دا د اول خاوند عدت سو، تر دې وروسته بل طهر راځي چې په هغه کې به ښځې د دويم خاوند سره نکاح کړې وي او طهر (۱۵) ورځې وي نو (۱۵) ورځې د دغه طهر سوې، تر دې وروسته به ښځه (۳۹) ورځې د دويم خاوند عدت تېروي، نو د ټولو مجموعه (۹۳) ورځې سوې، چې د هغه نقشه په لاندې ډول ده:

| د اول خاوند د عدت ورځې | = | حيض | طهر | حيض | طهر | حيض | مجموعه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | = | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۳۹ |
| د دويم خاوند سره د نکاح کولو او د هغه د عدت ورځې | طهر | حيض | طهر | حيض | طهر | حيض | مجموعه |
| | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۵۴ |
| د دواړو عدتونو مجموعه | ۳۹ + ۵۴ = ۹۳ درو نيوي ورځې | | | | | | |

خلاصه دا چې کله دغه ښځه د اول خاوند د طلاق له وخت څخه (۹۳) ورځې وروسته راسي، نو د صاحبينو په نيز خاوند ته دا حق سته چې د هغې تصديق وکړي او دويم ځل نکاح ور سره وکړي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ، وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَأَهْلِ بَيْتِهٖ وَعِتْرَتِهٖ أَجْمَعِيْنَ.

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِشَارِحِهٖ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِأَسَاتِذَتِهٖ وَلِمَنْ سَعٰى فِيْهِ. آمين

احقر حبيب الرحمن مدني

